# تفسیر معارف القرآن پښتو

حضرۃ مولانا مفتی محمد شفیع صاحب رحمۃ اللہ علیہ

مفتی اعظم پاکستان

تاج کتب خانہ

محلہ جنگی قصہ خوانی

پشاور





# تفسیر معارف القران پښتو

## دوهم ټوک

ليکوال : مفتي محمد شفيع رحمة الله عليه

برېښنا يې کوونکی: عزت الله سلطانزی

باور کتابتون

## دکتاب ځانګړنې

دکتاب نوم تفسیر معارف القران پښتو دوهم ټوک

مؤلف مُفتي محمد شفیع رحمة الله علیه

ټوک دوهم ټوک(څلورمه، پنځمه ،شپږمه ، پاره)

کال نومبر ۱۹۸۴ میلادي ( صفر ۱۴۰۵ ه)

خپرندویه تاج کتب خانه محله جنګي قصه خوانی پشاور

پر لیکه کوونکي عزت الله سلطانزي

زمونږ سره اړیکه : واټس اپ

**0093706912702**

اویا هم لاندي فیسبوک پاڼي سره اړیکه ونیسئ

www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai

دا تفسیر شریف د باور کتابتون څخه ښکته ( ډانلود) شوي




تالیف
حضرة مولینا مفتی محمد شفیع صاحب رحمة الله علیه
مفتیٔ اعظم پاکستان

تاج کتب خانه
محله جنگی قصه خوانی
پشاور

# تفسیر معارف القرآن

پښتو

## پاره (۴)

تالیف :- مُفتی اعظم پاکستان مولانا مفتی محمّد شفیع رحمة الله علیه

مجلس ترجمه و نظرثانی

(۱) ډاکټر قاضی محمّد مُبارک
سابق مدرس دارالعلوم سرحد و پروفیسر شعبه عربي پېښور یونیورسټی

(۲) ابوحسین مولانا گل برخان سواتی، فاضل علوم اسلامیه و عربیه

(۳) مولانا سیفُ الحنان حقّانی فاضل حقانیه و وفاق المدارس و جامعه بهاولپور، تلمیذ علامه شمس الحق افغانی و مولانا احمد علی" لاهوری.

باهتمام :- ډاکټر محمّد دین، فاضل وفاق المدارس، ایم اے عربي، ایم اے اسلامیات

تاج کُتب خانه ٥ محله جنګی قصّه خوانی پېښور،
فون : ۲۱۴۴۵۴

لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا مِمَّا تُحِبُّوْنَ ۵ وَمَا

هیڅ چرې به حاصل نه کړئ په نیکئ کښې کمال ترڅو چه خرچ نه کړئ د خپل خوښ شی نه څه شے۔ او کوم

تُنْفِقُوْا مِنْ شَیْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِیْمٌ (۹۲)

شے چه خرچ کوئ نو پس هغه الله تعالیٰ ته معلوم دے۔

## دَ ایاتونو تشریح

دَ دے نه په وړمبی ایات کښې دَ کفارو او دَ مُنکرانو خلقو دَ صد قو او خیراتونو دَ الله په نزد دَ نهٔ قبلید و بیان شوے دے۔ په دے ایات کښې دَ مؤمنانو دَ صد قو دَ قبلید و او دَ دے طریقې ئې خودَلی دی۔ دَ دے ایات په الفاظو کښې دَ ټولو نه دَ اَوّلی لفظ " بِرّ " په معنی او حقیقت ځان پوهه کړئ چه دَ ټول ایات حقیقت درته ښکاره شی۔

دَ لفظ " بِرّ " لفظی او حقیقی معنی ده دَ یو سړی دَ حق پوره اداکول او بیخی تورے ځان آزادَ وَل۔ او دَ احسان او دَ ښهٔ سلوک په معنیٰ کښې هم راځی۔ " بَرّ " په زبر سره او " بَارّ " دَ هغه سړی دَ پاره استعما لیږی چه دے دَ خپلو ذمه وارو حقو نه پوره په پوره اداکوی۔ په قرآن شریف کښې : بَرًّا بِوَالِدَتِیْ : او : بَرًّا بِوَالِدَیْهِ : په دے معنی کښې استعمال شوے دے دَ هغې حضراتو دَ پاره دا لفظ استعمال شوے دے چه دَ خپلو مورو پلا ر دَ حقو نو پوره په پوره اداکوُنکی وُو۔

دَ دے لفظ : بَرّ : په زبر سره جمع : ابرار : ده چه په قرآن شریف کښې ډیره زیاته استعمال شوے ده۔ ارشاد دے : اِنَّ الْاَبْرَارَ یَشْرَبُوْنَ مِنْ كَاْسٍ كَانَ مِزَاجُهَا كَافُوْرًا : او بل ځائے ارشاد دے : اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِیْ نَعِیْمٍ عَلَى الْاَرَآئِكِ یَنْظُرُوْنَ : او یو بل ځائے ارشاد دے : اِنَّ الْاَبْرَارَ لَفِیْ نَعِیْمٍ وَّاِنَّ الْفُجَّارَ لَفِیْ جَحِیْمٍ : دَ دے آخری ایات نه دا هم معلومه شوه چه دَ : بِر : مقابل او ضد : فجور : دے۔

دَ امام بخاریؒ په ادب المفرد کښې او په ابن ماجهؒ او مسند احمدؒ کښې دَ

حضرت صدیق اکبرؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمایلي دي رشتیا وُیله لازم او نیسئ (یعنې همیشه رشتیا وائئ) ځکه چه: صدق (یعنې رشتیا) دَ بِرّ: ملګرے دے۔ او دادواړه په جنّت کښے دي۔ او دَ دروغو نه ځان ساتئ ځکه چه دے دَ فجور: ملګرے دے۔ او دادواړه په دوزخ کښے دي۔

او دَ سورۂ بقرۂ په آیات کښے ذکر شوي دي چه: لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ. په دے آیات کښے ئے دَ نیکو عملونو یو فهرست ورکړے دے او دے ټولو ته ئے: بِرّ: فرمایلي دي۔ نو دَ دے ذکر شوي آیات نه معلومه شوه چه دَ: بِرّ: په عملونو کښے دَ ټولو نه زیات غوره او بهتر: بِرّ: دا دے چه خپل زیات خوښ شے دَ الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کړے شي - په دے ذکر شوي آیات کښے ارشاد دے چه تاسو به هیڅ کله: بِرّ: حاصل نه کړے شئ ترڅو چه دَ خپلو خوښو څیزونو نه څۀ خرچ نه کړئ - نو معنا ئے دا شوه چه دَ الله تعالیٰ دَ حقونو پوره په پوره ادا کول او دَ دے نه پوره په پوره خپله ځان آزادي کول ترهغه وخته پورے نه شي کیدے ترڅو چه دَ خپلو دَ خوښے او خوښو څیزونو نه دَ الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ نه کړي خپلے مکملے ادائیګۍ ته خیر کامل یا په نیکۍ کښے کمال یا په ډیرلوئے ثواب سره ئے ترجمه کړے شوے ده -

او مراد دا دے چه دَ ابرارو په صفت کښے داخلیدل ترهغے پورے نه شي کیدے ترڅو چه خپل خوښ څیزونه دَ الله تعالیٰ په لار کښے قربان نه کړي۔

## لنډ تفسیر

(اے مسلمانانو) تاسو کامل خیر (یعنے لوئے ثواب) لره چرته نه شئ حاصلولے ترهغے پورے چه خپل (دیر) خوښ شے (دَ الله په لاره کښے) خرچ نه کړئے او (دا ہم) چه څۀ خرچ کوئے (خواه که ستاسو خوښ شے نه وي) الله تعالیٰ دغه څۀ پیژني

(مطلق ثواب به پدے هم وركړى ليكن د كامل ثواب حاصلولو دغه طريقه ده)-

# معلومات او مسئلے

**دا ذكر شوے ايات او صحابو كرامو رض د عمل كولو شوق**

صحابه كرام الله تعالىٰ دے د دوى نه راضى شى د قرآن د حكمونو اوريدو او لوستلو او د نبى كريم صلے الله عليه وسلم ښېنځ په نيغه شاګردان وُو- او د قرآن په حكمونو د عمل كولو عاشقان وُو- كله چه دا ايات نازل شو نو هريو په خپلو خوښو شيانو باندے نظر واچولو- او دغه شيان ئے د الله تعالىٰ په لاره كښے د خرچ كولو د پاره د نبى كريم صلے الله عليه وسلم په خدمت كښے د درخواستونو وړاندے كول شروع كړل -

د مدينے منورے په انصارو كښے د ټولو نه زيات مالدار حضرت ابو طلحه رض وُه - مسجد نبوى ته بالكل مخامخ او متصل د ده باغ وُه - چه په دے باغ كښے يو كوهے وُه د بيرحاء په نوم باندے به ياديدو - اوس د دغے باغ په ځاى كښے باب مجيدى ته مخامخ يوه آبادى جوړه شوے ده چه اصطفاء منزل ورته وائى چه د مدينے منورے زيارت كونكى په كښے قيام كوى (پاتے كيږى) البته د دے په شمال مشرقى كوټ كښے دغه: بيرحاء: په دے نوم سره تر اوسه پورے موجود دے - نبى كريم صلے الله عليه وسلم به كله كله دے باغ ته تشريف وړلو او د بيرحاء اوبه به ئے سکلے - د دوى د دے كوهى اوبه خوږے ښے وے - د حضرت ابو طلحه رض دا باغ ډير قيمتى او تر و تازه وُه - د ده دا باغ په خپل ټول جائداد كښے د ټولو نه زيات خوښ وُه - كله چه دے ايات په نازليدو باندے - دے د نبى كريم صلے الله عليه وسلم په خدمت كښے حاضر شو - او عرض ئے اوكړو چه ځما په ټول جائداد كښے بيرحاء ځما د ټولو نه زيات خوښ دے - زه دا د الله تعالىٰ په لاره كښے خرچ كول غواړم - تاسو چه په څه كار كښے خوښوئے نو دا په كښے خرچ كړئ - حضور ع او فرمائيل چه دا خو ډيرو بے شماره نفعو باغ دے زه دا مناسب ګڼړم چه ته دا په خپلو خپلوانو

تقسیم کړے - حضرت ابو طلحهؓ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا مشوره قبوله کړه او دغه باغ ئے په خپلو خپلوانو او د تره په ځامنو تقسیم کړه - (دا حدیث په بخاری او مسلم کښې دے) د دے حدیث نه دا هم معلومه شوه چه خیرات صرف هغه نه دے چه په عامو فقیرانو او مسکینانو خرچ شی - خپل اهل و عیال او رشته دارانو ته ئے ورکول هم لوئے خیرات او ډیر ثواب دے -

حضرت زید بن حارثهؓ خپل یو آس را روان کړے وُه په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے او کړو چه ماته په خپل ټول مال کښې دا اس ډیر زیات خوښ دے - دا د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کول غواړم - نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دهٔ نه قبول کړو - لیکن د دهٔ ځوئ اُسامهؓ له ئے ورکړو - زید بن حارثهؓ په دے خهٔ دلګیر غوندے شو چه دا خو ځما صدقه ځما کورته واپس راغله - لیکن نبی کریم صلی الله علیه د هغهٔ د تسلئ د پاره او فرمایل چه الله تعالیٰ ستا صدقه قبوله کړه (تفسیر مظهری - بحواله د ابن جریر او طبری وغیره)

د حضرت عمر فاروق اعظم رضی الله عنه سره یوه وینځه وه چه د هغهٔ نه ئے زیاته خوښه وه - دا ئے خاص د رضا د الله تعالیٰ د پاره آزاده کړه -

دغه شان د حضرت عبدالله ابن عمرؓ سره یوه وینځه وه چه دے پرے ډیر مئین وُه هغه ئے د الله د پاره آزاده کړه -

غرض دا چه د ذکر شوی ایات حاصل دا دے چه د الله تعالیٰ د حق پوره په پوره ادا کول او کامل خیر او کامله نیکی هله حاصلیدے شی هرکله چه بنی آدم د خپلو خوښ شوو او غوره څیزونو نه د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کړی -

په دے ذکر شوی ایات کښې یو څو مسئلے د لیدلو او یاده ولو قابلے دی:

**اَوَّل** :- دا چه په دے ایات کښې د الله تعالیٰ په لاره کښې د خرچ کولو ترغیب دے - د دے نه مراد د بعضے تفسیر لیکونکو حضراتو په نزد واجب صدقے زکوٰة وغیره دی - او د بعضو په نزد نفل صدقے دی - لیکن د جمهور تحقیق کونکو په نزد دا نفلی او واجبو صدقو ټولو له شامل دے او د ټولو صدقو د پاره عام دے - او د اصحاب کرامو دا بره ذکر شوے واقعے په دے باندے ګواه دی - چه د

په دے ذکر شوی ایات کښې لفظ د ''بِرّ'' ټولو واجبو او نفلی صدقو له شامل دے

نفلي صدقې وي -

نو په دې وجه د آیات مطلب دا شو چه د الله تعالیٰ په لاره کښې هر یوه صدقه چه ورکوي که فرض زکوٰة وي او که نفلي صدقه او خیرات وي په دې ټولو کښې به مکمل غوره والے او ثواب هله وي چه خپل د خوښې شے او خوښ شے د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ شي - داسې نه چه یو تاوان ټے او کنړي او صرف د ځان خلاصولو د پاره فالتو او بے کاره یا خراب څیزونه را ټول کړي او هغه ورکړي -

په قرآن کریم کښې په یو بل آیات کښې دا مضمون زیات په وضاحت سره داسې بیان شوے دے -

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنْفِقُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُمْ مِنَ الْأَرْضِ وَلَا تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنْفِقُونَ وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلَّا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ -

"یعنې اے ایمانداروّ خپلې کټې نه او کوم څیزونه چه مونږ ستاسو د پاره د زمکے نه راوباسو په دے کښې ښه څیزونه را ټول ئے او د هغے نه خرچ کوئ او ورډي څیز نیت (د ورکولو) مه کوئ چه د هغے نه خرچ کړئ حال دا دے چه که دغه څیزونه ستاسو د حق په بدله کښې تاسو له درکړے شي نو تاسو به ئے هرګز قبول نه کړئ - په غیر د دے نه چه په څه وجه سره پرے سترګې پټې کړئ"

د دے حاصل دا شو چه د خراب او بے کاره شي انتخاب کول او صدقه کول ئے مقبول نه دي - بلکه قبوله صدقه چه مکمل ثواب پرے ملاویږي هغه ده چه د خوښې او خوږو څیزونو نه ورکړے شي -

**دویم مسئله** دا ده چه په آیات کښې په لفظ "د مِمَّا" سره اشاره کړے شوے ده دے خبرې ته چه دا مقصود نه دے چه څومره درسره د خوښې او خوا کږ وي (غیزونه) هغه ټول د الله په لاره کښې خرچ کړه - بلکه مقصد دا دے چه څومره خرچ کوې نو چه په څه کښې او کوري او د خوه ښې او د مینې شے ترے خرچ کړې نو د مکمل

په صدقه کولو کښې درمیانه روي په کار ده

ثواب مستحق به وی -

دریمه مسئله: داده چه دا دَغورے شے خرچ کول صرف دَ دے نوم نه دے چه دَ څهٔ ډیر قیمت شے خرچ کړے شي بلکه کوم شے چه دَچا په نزد باندے دَ خوښے اودَمینے وی خواه که هرڅومره دَکم قیمت وی اولږ وی - دَ دے په خرچ کولو به دَ دے "برّ" لایق شي -

حضرت حسن بصریؒ فرمائیلی دی چه کوم شے بنده په اخلاص سره دَ الله دَرضا دَپاره خرچ کړی هغه اګر چه دَ کجورے یو دانه ولے نه وی په دے سره هم بنده دَ دے لوئے ثواب او کامل بر: لایق کیدے شی - دَ کوم چه په ایات کښے وعده شوے ده -

څلورمه مسئله: داده چه دَ دے ایات نه په ظاهره دا معلومیږی چه په دے کښے دَ کوم لوئے خیر او بر: ذکر دے دَ دے نه به هغه غریبان خلق محرومه پاتے شي دَ چا سره چه دَ خرچ کولو دَپاره مال نه وی - ځکه چه په ایات کښے ئے دا فرمائیلی دی چه دا لوے خیر بغیر دَ خوښے او مینے دَ مال دَ خرچ کولو نه نه شي حاصلیدے - او دَ فقیرانو او مسکینانو سره خو دَ سره مال نه وی چه دَ هغے په ذریعه دوی دیته اورسی - لیکن چه غور او کړے شی نو دَ ایات دا مطلب نه دے چه که لوئے خیر او لوئے ثواب حاصلول غواړے نو په غیر دَ خوښے دَمال دَ خرچ کولو نه دَ دوی دا مقصد نه شی پوره کیدے - بلکه خبره داده چه دا لوئے خیر په څهٔ بله ذریعه سره مثلًا په عبادت، دَ الله په ذکر، دَ قرآن په تلاوت، په ډیرو نفلو سره هم حاصلیدے شي - نو په دے وجه فقیرانو او غریبانو ته هم دا لوئے خیر په نورو ذریعو سره حاصلیدے شی - لکه چه په بعض روایتو نو دَ احادیثو کښے دا مضمون بیهٔ په وضاحت سره راغلے دے -

دَ خوښے دَمال نه څهٔ مراد دے؟

پنځمه مسئله: داده چه دَ خوښے دَمال نه مراد څهٔ دے؟ دَ قرآن شریف دَ نورو ایاتو نو نه معلومه شوه - چه دَ خوښید و مطلب دادے چه دغه شے دَ دهٔ په کار کښے راځی اوده ته دَ دغه شي حاجت وی فالتو او بے کاره نه وی - دَ قرآن کریم ارشاد دے :-

وَيُطْعِمُوْنَ الطَّعَامَ عَلٰى حُبِّهٖ مِسْكِيْنًا۔ "یعنې د الله تعالیٰ مقبول بندګان هغه دي چه حاجتمند وګړو ته خوراک ورکوي سره د دې چه دې ته د دوی په خپله هم ضرورت وي"

دغه شان په یو بل ایات کښې ئې دا مضمون د دې نه هم زیات په وضاحت سره داسې بیان کړے دے فرمائي :-

وَيُؤْثِرُوْنَ عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ "یعنې د الله تعالیٰ مقبول بندګان نورو وګړو له په خپل ځان باندې ورباندې کوي اګرچه دوی په خپله هم حاجتمند وي"

فالتو سامان او د حاجت نه زیاتي څیزونه د الله په لار کښې خرچ کول هم د ثواب نه خالي نه دي

شپږمه مسئله : داده چه په ایات کښې دا خودلے شویده چه کامل خیر او لوئے ثواب او د ابرارو په صف کښې داخله هله کیدے شي چه خپل د خوښې شے د الله په لاره کښې خرچ کړي - مګر په دے سره دا نه لازمیږي چه د ضرورت نه زیات د فالتو مال په خرچ کولو سره به ثواب نه ملاویږي - بلکه د ایات په اخر کښې چه کوم دا ارشاد دے : وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ : "یعنې تاسو چه کوم مال خرچ کوئ الله تعالیٰ د دے نه خبر دار دے" د ایات د دے جملے مطلب دا دے چه اګر که کامل خیر او په صف د ابرارو کښې داخله خاص د خپلې خوښې د شي په خرچ کولو باندې موقوف دے - لیکن د مطلق ثواب نه یوه صدقه خالي نه ده - که د خوښې شے خرچ کړي یا زیاتي او فالتو څیزونه - البته مکروه او منع داده چه یو سړے د الله تعالیٰ په لاره کښې د خرچ کولو دپاره دا طریقه اختیار کړي - چه کله خرچ کوي نو د فالتو او خراب شي انتخاب کوي او خرچ کوي ئې - لیکن کوم سړے چه په صدقاتو او خیراتو کښې خپل د خوښې او خپله شے هم خرچ کوي او د خپل ضرورت نه زیات څیزونه، یا تے شوے خوراک، یا زړې جامې، عیب دار لوخي، یا د استعمال څیزونه هم په خیرات کښې ورکوي، هغه د دے څیزونو په خرچ کولو سره څه ګناهګار نه کیږي - بلکه د هٔ ته به په دے هم خامخا ثواب ملاویږي، او د خوښې څیزونو په خرچ کولو به د هٔ ته لوئے خیر هم حاصلیږي

او د ابرارو په صف کښې به دده داخله هم وی -

د آیات په دے آخری جملے کښې دا هم خودلے شوی دی چه بنده څه خرچ کوی د هغے اصل حقیقت الله تعالیٰ ته ښکاره دے چه دغه شے دده په نزد د خوښې دے او که نه دے - او په اخلاص سره ئے د الله تعالیٰ په لاره کښې خرچ کوی او که په ریاء سره او د شهرت د پاره - محض د چا ژبانی دعوه د دے د پاره پوره نه ده چه زه خپل د خوښې شے د الله د رضا د پاره خرچ کوم بلکه علیم او خبیر چه د زړه په رازونو خبر دے هغه ئے وینی چه په رښتیا سره د هغه د پاره د خرچ کړی شوی شی څهٔ درجه ده -

كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ إِلَّا مَا حَرَّمَ إِسْرَآءِيلُ

ټول د خوراک څیزونه حلال وو بنی اسرائیلو ته مګر هغه چه حرام کړی وو اسرائیل

عَلٰى نَفْسِهٖ مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا

په خپل ځان د نازلیدو د تورات نه وړاندے - ته ورته او وایه چه راؤړئ

بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوْهَآ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۹۳﴾ فَمَنِ

تورات او او لولئ دے که تاسو رښتونی یئ - بیا چه څوک

افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ

جوړ کړی په الله پاک باندے دروغ پس د دے نه نو هغه دی

هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۹۴﴾ قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ ۠ فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ

ډیر بے انصافه - ته او وایه رښتیا وائی الله تعالیٰ او س تابع شئ د دین د

اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۹۵﴾

ابراهیم چه یک سوځه - او نه وو د مشرکانو نه -

# لنډ تفسير

(دَ کومو څيزونو دَخوراک په باره کښې چه خبرې اترې دی دا) ټول دَخوراک څيزونه (دَحضرت ابراهيمؑ دَ وخت نه هيڅ کله هم حرام راروان نه دی بلکه دا څيزونه) دَ تورات دَنزول نه اول دَ هغې نه علاوه (يعنې دَغوښو دَاوښ) کوم چه (حضرت) يعقوب (عليه السلام) په (يو خاص وجه سره) په خپل نفس باندې حرام کړې وه (او بيا دغه دَ دهٔ په اولاد کښې هم حرام راروان نه وه، باقي ټول څيزونه په خپله) په بني اسرائيلو باندې (هم) حلال ؤو (نو دَ ابراهيم عليه السلام دَ وخت نه دَ دې دَحرامو والي دعوه کله صحيح کيدې شي. او دَ تورات دَ نزول نه وړاندې ځکه اوفرمايل چه دَ تورات دَ نزول نه پس په دې ذکر شوو حلالو څيزونو کښې هم ډير څيزونه حرام شوی ؤو. چه دَ هغې ټولو تفصيل دَ سورت انعام په دې آيات کښې دې: وَعَلَى الَّذِينَ هَادُوا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِي ظُفُرٍ الخ او اوس هم که يهودو دَ دې مبني حراموالي دعوه کوی نو اې محمد صلى الله عليه وسلم دوئ ته) اووايه چه (ښهٔ نو) بيا تورات راؤړئ او هغه (ښکاره کړئ) او لولئ که تاسو (په دې ذکر شوې دعوه کښې) رښتونی يئ (نو په دې کښې څهٔ آيات وغيره دَ دې مضمون دراوباسئ ځکه چه په نقل شوو کارونو کښې نص (دليل) ته ضرورت دې او نور نصونه (دليلونه) خو يقيناً چه پهٔ دې باره کښې نيشتې صرف تورات باقي دې نو په هغې کښې اوځايئ. نو په هغې کښې خو ځې نه شي خو دې نو دروغ دَ دوی په دې دعوه کښې ثابت شو نو اوس په دې باندې فرمائي) پس کوم سړی چه دَ (دليل دَ دروغ کيدو نه پس (هم) په الله تعالى باندې دَ دروغو تهمت لګوی (چه الله تعالى دَ ابراهيم عليه السلام دَ وخت نه دَ اوښ غوښه وغيره حرام کړې ده) نو دا سې خلق ډير بې انصافه دی.

ته اووايه چه الله تعالى رښتيا اووې پس (اوس) تاسو (لره په کار دی چه پس دَ قرآن دَحق ثابتيدو نه) دَملّت ابراهيم (يعنې اسلام) تابعداری (اختيار کوئ چه هيڅ کوږوالې په کښې نيشتې او هغه (ابراهيم عليه السلام) مشرک نه ؤه.

# معلومات او مسئلې

په دې بره ایا تو نو کښې د اهلِ کتابو سره بحث راروان دے کله د یهودو سره کله د نصارا و سره کله د دواړو سره - د یو بحث ویا ندے بیان راځي چه د هغې قصه په روح المعانی کښې په روایت د واحدی کلبی سره نقل ده - چه کله نبی کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمائل چه زهٔ په ملتِ ابراهیمی باندے یم "په اعتبار د قولو او صولو د شرعے سره او په اکثرو فروعو سره هم - نو یهو دو په اعتراض کښے اووے چه تهٔ خو د اوښ غوښه او پئ خورے او حال دا دے چه دا په ابراهیم علیه السلام باندے حرام وُو نو رسول الله صلے الله علیه وسلم جواب ورکړو چه نا - په هغه حلال وُو - یهو دوا ووے چه دا څو مره څیزونه مونږ ه حرام گنړو دا قول د حضرت نوح ؑ او حضرت ابراهیم علیهما السلام د وخت نه حرام راروان دی تردے چه مونږ ته دغه حراموالے را اُورسید و نو الله تعالیٰ په دے ذکر شوی آیات: كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيٓ الخ کښے د یهودو دروغژن والے نازل کړو - چه په دے کښے ئے ارشاد اوفرمایه چه د تورات د نازیدونه وړاندے په غیر د غوښے د اوښ نه چه حضرت یعقوب علیه السلام په یو خاص وجه سره په خپل نفس حرامه کړے وه او بیا دغه د دهٔ په اولاد کښے هم حرامه راروانه شوه. باقی ټول څیزونه په خپله په بنی اسرائیلو هم حلال وُو -

په اصل کښے په دے کښے خبره دا سے اوشوه چه په یعقوب علیه السلام د عرق النساء مرض وُه - دهٔ نذر منلے وُه چه که الله تعالیٰ زهٔ روغ کړم نو کوم یو خوراک چه ماته ډیر خوښ دے هغه به پاتے کړم - نو چه دے جوړ شو نو د ټولو نه دے د اوښ په غوښه زیات مینه وه نو دائے پاتے کړه - (دا روایت لے دے لوه حاکم په سند صحیح سره د ابن عباس ؓ نه لکه چه په روح المعانی کښے دی - او دے لوه ترمذی په سورت رعد کښے مرفوع راویستلے دے)

بیا دغه حراموالے چه په نذر سره شوے وُه په بنی اسرائیلو کښے په حکم د وحئ سره باقی پاتے شو - او معلومیږی چه د دهٔ په شریعت کښے به په نذر د

سره حرمت هم کیده - لکه زمونږ په شریعت کښې چه مباح واجب کیږی - لیکن دَ حرمت نذر چه په حقیقت کښې قسم دے زمونږ په شریعت کښې جائز نه دے بلکه په دے کښې دَ قسم ماتول او بیائې کفاره ورکول واجب دی - لکه چه الله تعالیٰ فرمائی: لِمَ تُحَرِّمُ مَا اَحَلَّ اللّٰهُ لَكَ الْاٰيَة : دغه شان په تفسیر کبیر کښې دی -

اِنَّ اَوَّلَ بَيْتٍ وُّضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِيْ بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّ

بے شکه دَ ټولو نه اوّلنے کور چه مقرر شو دَ خلقو دَ پاره دا دے چه په مکه کښې دے برکت والا

هُدًى لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿٩٦﴾

او هدایت دَ جهان دَ خلقو دَ پاره -

## لنډ تفسير

یقیناً هغه مکان چه دَ ټولو (مکانونو دَ عبادت) نه وړومبے دَ خلقو (دَ عبادت) دَ پاره (دَ جانبه دَ الله نه) مقرر کړے شه هغه مکان دے کوم چه په (ښهر) مکه کښې دے (یعنی خانه کعبه) چه دَ هغې حالت دا دے چه وغه برکت والا دے (ځکه چه په دے کښې دینی نفع یعنی ثواب دے) او (په خاص عبادت لکه مانځه کښې دَ ټولو دَ پاره) دَ ټولے دنیا دَ خلقو رهنما دے (مطلب دا دے چه حج هلته کیږی او لکه مثلاً دَ مانځه ثواب دَ احادیثو په بنا سره هلته ډیر زیات دے، دینی برکت خو دا شه، او کوم خلق چه هلته نه وی هغوئے ته دَ مانځه کولو معلومیږی نو دا ئې رهنمائی شوه)

## معلومات او مسئلے

په دے ذکر شوی آیات کښې دَ ټولے دنیا دَ مکانونو نه دَ ټولو نه لوی جماتونو په مقابله کښې دَ بیت الله یعنی دَ کعبے شریفې دَ شرافت او غوره والی

بیان دے۔او واشوا فت اوغوره والے په څو وجهو سره دے۔

## دَ بیت الله شریف فضیلتونه سره دَ تاریخ دَ اباديدلو

اوّل په دے وجه چه دَ دنیا دَ ټولو رشتو نو ځایو نو دَعبادت نه په ټولو کښے اوّلنے دَعبادت ځائے دے۔

دویم چه دا برکت والا دے۔

دریم دا چه دے دَ ټولے دنیا دَپاره دَ هدایت او راهنمائي ذریعه دے۔

دَ ایات دَ الفاظو خلاصه دا ده (یعنې څو مره دا دے) چه دَ ټولو نه اوّلنے کور چه دَ الله تعالیٰ دَ طرفه دَ خلقو دَپاره مقرر کړے شوے دے هغه دے چه په مکّه کښے دے۔ دَ دے مطلب دا دے چه په دنیا کښے دَ ټولو نه اولنۍ عبادت خانه کعبه ده۔ دَ دے دا صورت هم کیدے شی چه دَ دنیا په ټولو کورونو کښے اوّلنے کور دَعبادت دَ پاره جوړ شوے وی دو بنه وړاندے نۀ څۀ عبادت خانه جوړه شوے وی او نه دَ اوسیدو کور۔ حضرت ادم علیه السلام دَ الله تعالیٰ نبی دے دَ هغۀ دَ شان نه دا څۀ لرے خبره نۀ ده چه هغوی زمکے ته دَ راتلو نه پس دَ خپل کور جوړه ولو نه اوّل دَ الله کور یعنې دَعبادت ځائے جوړ کړے وی۔ په دے وجه حضرت عبد الله بن عمرؓ، مجاهدؒ، قتادهؒ، سدیؒ وغیره صحابه او تابعین دَ دے قائل دی۔ چه کعبه دَ دنیا دَ ټولو نه اوّلنے کور دے۔ او دا هم ممکنه ده چه دَ خلقو دَ اوسید و مکانات مخکښے هم جوړ شوی وی لیکن دَعبادت دَپاره دا اوّلنے کور جوړ شوے وی دَ حضرت علی رضی الله عنه نه دا سے نقل دی۔

بیهقی په خپل کتاب دلائل النبوت کښے په روایت دَ حضرت عبد الله بن عمرؓ بن عاصؓ روایت کړے دے۔ چه رسول الله صلے الله علیه وسلم فرمایلی دی چه حضرت آدم او حوا علیهما السلام دنیا ته راغلهٔ نو دَ دوی دَ راتلو نه پس الله تعا دَ جبرئیل امین په ذریعه دوی ته دا حکم را اولیږه چه دوی دے بیت الله (کعبه) جوړه کړی دوی حکم او مانه او عمل ئے پرے اوکړه۔ نو دا حکم ورته او شه چه دَ دے طواف دے کوی۔ او دوی ته او ویلے شو چه تاسو په خلقو کښے اوّلنی يئ یعنې اوّل الناس يئ او دا کور اوّل بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ دے، یعنې دَ ټولو نه

اولے کورچه دَ خلقو دَ پاره مقرر شوے دے (ابن کثیر) دے روایت لره ابن کثیر
دَ ابن لهیعه دَ وجه نه ضعیف گنړلے دے او دا څۀ پټه خبره نۀ ده دے مطلقاً دا سے
متروک الحدیث نۀ دے چه دَ دۀ هر یو روایت دے رد کړے شی او بیا په دے مقام کښے
چه دَ کتاب الله دَ اشارے نۀ ئے تائید کیږی -
په بعضے روایاتو کښے دی چه دَ آدم علیه السلام دَ لاسو دغه آبادی دَ کعبے
دَ نوح علیه السلام دَ طوفانه پورے باقی وه بیا په دغے طوفان کښے او نړیدله - او
نښے ئے ورانے شوے - دَ دینه پس حضرت ابراهیم علیه السلام په دغے زړو بنیادونو
بانده دوباره آباده کړه - بیا یوه پیره په څۀ حادثه کښے دَ دے آبادی او
نړیده نو دَ قبیله جرهم یو څو کسانو دا بیا جوړه کړه - بیا یوه پیره او نړیده
نو عمالقه دۀ وا آباده کړه - او بیا او نړیده نو قریشو دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم
په اولنی وخت کښے آباده کړه - چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم په کښے شریک شوے
وۀ او حجر اسود ئے په خپلو مبارکو لاسو بانده ایخودلے وۀ - لیکن قریشو دا
آبادی دَ ابراهیم علیه السلام دَ آبادئ نه لږ شان بدله کړے وه چه یوه حصه دَ
بیت الله ئے دَ بیت الله نه جدا کړه چه حطیم ورته ویلے شی - او دَ خلیل الله علیه
السلام په جوړه کعبه کښے دوه دروازے وے یوه دَ دننه تلو دَ پاره او دویمه
شا طرف ته دَ باهر تلو دَ پاره - او قریشو صرف مشرقی دروازه باقی پاتے کړه
دریم بدلون ئے په کښے دا او کړه چه دَ بیت الله سطح (دننه فرش) ئے دَ زمکے نه
پوره او چت کړه چه هر سړے ورته په آسانئ سره دَ ننه نه شی تلے - بلکه
چا ته چه دوی اجازت ورکوی هغه به تلے شی -
نبی کریم صلے الله علیه وسلم حضرت عائشے صدیقه رضی الله عنها ته فرمایلی وۀ چه زما زړۀ
غواړی چه دا موجوده آبادی او نړوم او بیا لکل دَ ابراهیم علیه السلام دَ
آبادئ په طریقه ئے جوړه کړم - او قریشو چه دَ ابراهیم علیه السلام په آبادئ کښے
کوم اَدلُون بدلون کړے دے دا برابر کړم لیکن په نوو او ناپوهه مسلمانانو کښے
دَ غلط فهمئ پیدا کید ویرۀ ده په دے وجه ئے فی الحال هم په دغے خپل حالت بانده
پاتے کوم - دَ دے ارشاد فرمائیلو نه پس دَ دوئ ژوند په دنیا کښے ډیرے
ورځے پاتے نه شو -

لیکن دَحضرت عائشے رض خورځې حضرت عبدالله ابن زبیرؓ دَ نبی کریم صلے الله علیه
وسلم داارشاد آوریدلے وه نوکلهٔ چې دهٔ دَخلفائے راشد ینو نه پس په مکهٔ
مکرمه حکومت شو نو هغوی بیت الله اُونړاوه اودَنبی علیه
السلام دَ ارشاد او دَ ابراهیم علیه السلام دَ اٰبادئ مطابق ئے جوړ کړو - خو لیکن
دَعبد الله ابن زبیر حکومت په مکه مکرمه باندے دَیو څو ورځو وه - دَ
امّت ظالم حجاج بن یوسف په مکه فوج راواغوړزاوه او دے ئے شهید
کړو او په حکومت ئے قبضه اوکړه - نو دائے خوښه نه کړه چه دَعبدالله ابن
زبیرؓ دَا کارنامه دے تر قیامته پورے دَ دهٔ دَ ثنا صفت ذریعه جوړه شی
په دے وجه ئے په خلقو کښے دا مشهوره کړه چه دَعبد الله ابن زبیرؓ دا کار
غلط وه - نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه دا په کوم حالت باندے پاتے کړے
وه مونږ لره هم په هغے حالت باندے دے لره پاتے کول په کاردی په دے
بهانه سره ئے بیت الله بیا اونړاوه او په هغه شان ئے اٰباد کړو په کوم
شان چه په جاهلیت کښے قریشو جوړ کړے وه - دَحجاج بن یوسف نه وروستو
راتلونکو بعضے مسلمانانو بادشاهانو بیا دَ ذکر شوی حدیث په بنا باندے
دا اراده اوکړه چه بیت الله دوباره بیا دَنبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ
حدیث مطابق جوړ کړی لیکن دَ هغه زمانے امام حضرت امام مالک بن
انسؒ دا فتوی ورکړه چه اوس بار بار بیت الله جوړه وُل اونړه ول په دَ
راتلونکو بادشاهانو دَپاره بیت الله یو دَ لوبو شے جوړ کړی هر یو راتلونکے
بادشاه به دَخپل نوم دَپاره دا کار کوی - په دے وجه چه اوس په کوم
حالت دے هم په دے حالت ئے پاتے کول مناسب دی - ټول امّت دا خبره
اومنله په دے وجه تر ننه پورے هم دغه دَحجاج بن یوسف هغه
اٰبادی باقی ده - البته دَمرمت سلسله ئے همیشه جاری ده -

دَ دے روایاتو نه یوه دا خبره معلومه شوه چه کعبه دَدنیا دَ
ټولو نه اوّلنے کور دے او یا دَ کومه کمه دَ ټولو نه اوّلنۍ عبادت خانه ده
په قرآن کریم کښے چه کوم ځائے دا ذکر دے چه دَ کعبے اٰبادی دَخدائے په حکم
باندے حضرت ابراهیم علیه السلام کړے ده - هلته دَ دے اشارے

هم موجود دی چه دے بزرګانو دا په اوّل ځل نه ده آباده کړے - بلکه
په تیرو بنیا دونو باندے ئے دوباره آباده کړے ده - او دَ کعبے بنیا دُ دَ
مخکښے نه وَه - دَ قرآن کریم ارشاد: وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهِيْمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ
وَاِسْمٰعِيْلُ ؛ نه هم دا مطلب اخستے شی چه بنیا دونه دَ بیت الله دَ وړاندے
نه موجود وُو - دَ سورتِ حج په آیات کښے دی:

وَاِذْ بَوَّأْنَا لِاِبْرٰهِيْمَ مَكَانَ الْبَيْتِ ؛ "یعنے هر کله چه ټهیک کړه مونږ ه دَ ابراهیمؑ دَپاره ټهکانه دَ دے کور"

دَ دینه هم دا فائده کیږی چه دَ بیت الله ځائے دَ اوّل نه معلوم را
روان وَه - او دَ دے وُړمبی آیات نه خو ئے دَ بنیا دونو پته هم معلومیږی.
په بعضے روایتو نو کښے دی چه کله حضرت ابراهیم علیه السلام ته دَ بیت الله
دَ آبادَولو حکم ورکړے شو نو دَ فرشتے په ذریعه ئے ورته دَ وُړمبنو تیرو
بنیا دونو ځائے اوخودلو چه دَ شګو دیرګئ پرے جوړے شوے وے -
په هرحال دَ ذکر شوی آیات نه دَ کعبے دا یو فضیلت (غوره والے)
هم ثابت شو چه دے دَ دنیا دَ ټولو نه اوّلنے کور یا اولنۍ عبادت ځا نه
ده - دَ صحیحینو په یو حدیث کښے دی چه حضرت ابوذرؓ دَ نبی کریم صلے الله
علیه وسلم نه تپوس اوکړه چه دَ دنیا دَ ټولو نه اوّلنے جمات کوم یو دے؟
دوئ اوفرمایل چه "مسجد حرام" هغوئؓ عرض اوکړه چه دَ دے نه پس
کوم جمات دے دوئ اوفرمایل چه "مسجد بیت المقدس" دے - بیا ئے
تپوس اوکړه چه دَ دے دواړو جماتو نو دَ آبادَولو په مینځ کښے دَ څومره
موده فاصله ده؟ نو اوئے فرمایل چه څلویښت کاله -
په دے حدیث کښے دَ بیت الله دَ نوے آبادئ کومه چه دَ ابراهیم
علیه السلام په لاس شوے ده دَ هغے په اعتبار سره ئے دَ بیت المقدس
دَ آبادئ فاصله بیان کړے ده - ځکه چه دَ روایاتو نه دا هم ثابته ده
چه دَ بیت المقدس اولنۍ آبادی هم دَ حضرت ابراهیم ع په ذریعه دَ
بیت الله دَ آبادَولو نه څلویښت کاله پس شوے ده - او حضرت سلیمان
علیه السلام چه دَ بیت المقدس کومه آبادی اوکړه دا هم دَ بیت الله په شان

بالکل نوے او ابتدائی آبادی نه وه - بلکه سلیمان علیه السلام د ابراهیم علیه السلام په آبادئ دا نوے جوړ کړے دے - په دے شان سره په روایتونو کښے د یو بل په درمیان کښے څۀ تعارض (اختلاف) نه راځی -

مطلب دا دے چه په دنیا کښے د همیشه نه د دے عزت او کرامت راروان دے په دے کښے په لفظ د وُضِعَ لِلنَّاسِ کښے دے طرفته هم اشاره ده چه د دے کور تعظیم او تکریم د څۀ خاص قوم یا جماعت حصّه نه ده بلکه عام خلق او ټول بنی آدم د دے تعظیم کوی - د دے په ذات کښے الله تعالی یو داسے لوئی او هیبت اچولے دے چه د خلقو زړونه د دے طرفته په خپله مائله کیږی

په دے کښے د لفظ د بکّۃ نه مراد مکه مکرمه ده - خواه که داسے او ویلے شی چه ب ئے په میم سره بدله کړے ده ځکه چه د عربو په کلام کښے د دے مثالونه ډیر زیات دی چه میم په ب سره بدلولے شی او یا داسے او ویلے شی چه د مکے دویم نوم بکّه هم دے -

## د بیت الله برکتونه

په دے آیات کښے د بیت الله دویم فضیلت دا بیان شوے دے چه دے "مبارک" دے - لفظ د مبارک د برکت نه مشتق دے - د برکت معنی ده لوئے کیدل او زیا تیدل او ثابت پاتے کیدل - بیا د یو شی د پاره زیا تیدل داسے هم کیدے شی چه د دۀ وجود ښکاره په مقدار کښے زیات شی - او داسے هم چه که په مقدار کښے ئے څۀ خاص زیاتے او نه شی لیکن کار ترے دومره اوځی چه په عادت کښے د دۀ نه په زیات سره کیدے شی - دیته هم د معنے په وجه سره زیاتے ویلے شی -

د بیت الله برکتی کیدل په ظاهری طور سره هم دی او د معنی په لحاظ سره هم د دۀ ظاهری برکات داسے لیدے شی چه مکه او د دے خوا وشا اګر چه یو خشک ریګستان او نیجر زمکه ده خو سره د دے په کښے همیشه په هر موسم کښے هر قسم میوے او ترکاریانے او ټول د ضرورت څیزونه هومره تیاروی چه صرف د مکے د خلقو د پاره نه بلکه د دُنیا د اطرافو نه د راتلونکو د پاره هم پوره کیږی - او دے ته د راتلو نکو حال خو دنیا ته معلوم دے چه خاص د

دَحج په موسم کښې په لاکونو مخلوقات دَ دنیا دَ کوټ کوټ نه جمع کیږی چه دَدوی شمار دَ مکې دَ خلقونه څلور چنده پنځه چنده وی او دا عظیمه ګڼړه هلته صرف دوه څلور ورځې نه بلکه په میاشتو وی - او دَحج دَ موسم نه علاوه هم څۀ وخت داسې نه راځی چه دَ باهرنه دَ زرګونو خلقو تلل دا تلل جاری نه وی - او بیا خاص دَحج په موسم کښې چه دَ لاکونو نه زیات خلق هلته جمع وی چرته څوک دی آوریدلی شوی چه په بازار کښې څۀ وخت هم دَ ضرورت څیز ونه ختم شو نه ملا ویږی - تر دې چه که دَ قربانۍ څاروی کوم خلق چه هلته تلی وی که ټول ټول هم قربانی کوی او اوسط خو یو یقینی دے دا په لاکونو څاروی هلته هم ملا ویږی - او دا هم نه ده چه دَ نورو ملکو نه ئې دَ راغوختو انتظام کولے شی - په قرآن شریف کښې: يُجْبٰٓى اِلَيْهِ ثَمَرٰتُ كُلِّ شَىْءٍ ؕ "یعنې دے ته دَ باهرنه راوړے کیږی میوے دَ هر شی" په دے الفاظو کښې دے طرف ته ښکاره اشاره هم موجوده دهٔ -

دا خو دَ ظاهری برکتونو حال دے چه دَ مقصود حیثیت نه لری - او معنوی او باطنی برکتونه خو ئې دومره دی چه شمار ئې نه شی کیدے بعض اَهَم عبادتونه خو په بیت الله پورے خاص دی په دوی کښې چه څومره لوئے اجر او روحانی برکتونه دی دا ټول دَ بیت الله په وجه سره دی - مثلاً حج او عمره او دَ بعضے نورو عبادتونو ثواب هم په مسجد حرام کښې په ډیر وډرجو سره زیات تیږی - دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے چه یو سړے په خپل کور کښې مونځ اوکړی نو دهٔ ته به دَ یو مانځه ثواب ملاؤ شی او که دَ خپلے محلے په جمات کښې ئې اوکړی نو دَ پنځه ویشتو مونځونو ثواب به ورته ملاؤ شی او چه په جامع مسجد کښې ئې اوکړی نو دَ پنځه سوه مونځونو ثواب به بیا مومی او که په مسجد اقصیٰ کښې ئې اوکړی نو دَ زرو مونځونو او چه ځما په جمات کښې ئې اوکړی نو دَ پنځوس زرو مونځونو او په مسجد حرام کښې دَ یو لاک مونځونو ثواب به ورته ملاؤ شی (دا روایت ابن ماجه طحاوی وغیره نقل کړے دے)

دَحج په فضیلتونو کښې دا حدیث عام مسلمانانو پیژنی چه په صحیح طور

سره دَ حج کوُنکي مسلمان تیر ټول ګناهونه معاف کیږي او داسې دَ ګناهونو نه پاک شي لکه نن چه دَ مور دَ ګیډې نه پاک صاف پیدا شوې وي - نو ښکاره خبره ده چه دا ټول دَ بیت الله شریف معنوي او روحاني برکتونه وي - دې برکتونو لره ئې دَ آیات په آخر کښې په لفظ دَ هُدًی سره تعبیر فرمائیلې دې مُبٰرَکًا وَّ هُدًی لِّلْعٰلَمِیْنَ ۝ -

فِیْهِ اٰیٰتٌۢ بَیِّنٰتٌ مَّقَامُ اِبْرٰهِیْمَ ۚ۬ وَمَنْ دَخَلَهٗ كَانَ اٰمِنًا ؕ

په دې کښې نښې دي ښکاره لکه مقام ابراهیم ع - او څوک چه ورته ننوځي شو نو په امن شو

وَلِلّٰهِ عَلَی النَّاسِ حِجُّ الْبَیْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَیْهِ سَبِیْلًا ؕ وَ

او دَ الله حق دې په خلقو باندې حج کول دَ دې کور کوم سړې چه قدرت لري دې ته دَ لارې دَ تللو او

مَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِیٌّ عَنِ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۹۷﴾

څوک چه نه مَني نو بیا الله بې پرواه نه کوي دَ مخلوقاتو -

# لنډ تفسیر

په دې کښې (څه دَ شریعت په لحاظ او څه دَ دنیا په لحاظ سره) ښکاره نښې دي (دَ دې دَ فضیلت - دَ شریعت په لحاظ نښې دَ مبارکًا او هدًی لاندې په ذکر شوي تفسیر سره بیان شوې او څه دَ مقام ابراهیم نه پس ذکر کیږي - چه دې ته راننوتونکي دَ امن مستحق او ګرځي - دَ شرطونو په پوره کید وچ فرض کیدل چه مطلق روا والې ئې په تیر ذکر باندې زیاتي مفهوم دې - دا څلور نښې دَ شریعت په لحاظ دلته ذکر دي او س په مینځ کښې ئې دَ تکویني نښو داسې ذکر فرمائي) چه په دې (نښو کښې) یو مقام ابراهیم دې او (یوه دَ شریعت په لحاظ نښه ئې دا ده چه) دَ الله (خوشحاله کولو) دَ پاره دَ خلقو په ذمه دَ دې مکان حج کول (فرض) دي (مګر دَ ټولو په ذمه نه بلکه دَ خاصو خاصو) یعنې دَ هغه

سړی په ذمه چه طاقت لری د هغه ځائے پورے (د رسیدو) د لارے او کوم سړے چه (د الله د حکمونو نه) منکر شو نو د خدائے تعالیٰ څۀ نقصان دے ځکه چه الله تعالیٰ د ټول مخلوق د دنیا نه بے حاجته دے (د چا په منلو پورے د هغۀ څۀ کار تړلے نۀ دے بلکه په خپله د دے منکر نقصان دے)-

# معلومات او مسئلے

**د بیت الله درے خصوصیات**

په دے آیات کښے د بیت الله یعنے خانه کعبے خاصیتونه او فضیلتونه بیان شوی دی یو دا چه پد ے کښے د الله تعالیٰ د قدرت ډیرے نښے دی چه په دوی کښے یو مقام ابراهیم دے، دویم دا چه څوک دے ته داخل شی هغۀ به په امن او محفوظ وی څوک به دے نۀ شی قتلولے، دریم دا چه د ټولے دنیا په مسلمانانو د دے بیت الله حج فرض دے په دے شرط چه هلته د رسیدو طاقت ئے وی او قدرت لری-

اول خبره چه په دے کښے د الله تعالیٰ د قدرت لوئے نښے دی - د دے وضاحت دا دے چه د کله نه بیت الله قائم شه نو د دے په برکت الله تعالیٰ د مکے خلق د مخالفینو د حملو نه محفوظ کړل - ابرهه د ها تیانو د لښکر سره حمله او کړه نو الله تعالیٰ په خپل کامل قدرت سره دوی د مرغو په ذریعه هلاک کړه - د مکے په حرم کښے داخلیدو نکے بنده بلکه ځنا ورهم محفوظ دے او ځنا ورهم په دے خبره پوهه دی، د حرم په حدونو کښے دننه دوی ځان هم خپل ځان محفوظ ګڼړی - هلته وحشی د ښکار ځنا ورهم د انسان نه نۀ تختی - عام طور سره دا هم لیدلی شویدی چه د بیت الله کوم جانب ته باران کیږی د دغے طرف ملکو ته په زیات باران سره سیرابه کیږی - یوه عجیبه نښه دا ده چه هر یو څوک روزانه هر یو جمرات په اووه کیڼو باندے درے ورځے وُلی - او هر کال په لاکونو حاجیان هلته جمع کیږی نو دا ټولے کیڼئ که هلته جمع شی او باقی پاتے شی نو په یو کال کښے به د غه جمرات د کیڼو په ډیری کښے پټ شی - او په یو څو کاله کښے خو به هلته یو غر جوړ شی-

حال دا دے چه دالیدلی شوی دی چه دَ ج دَ دوړے ورځو دَ تیریدو نه پس هلته دَ کیتهو څه خاص اَنبار نه وی جمع شوے البته خورے ورے څه کیتهٔ په نظر را ځی - چه دَ هغے وجه په حدیث کښے دا بیان شوے ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی چه دا کیتهٔ فرښتے اوچتوی او صرف دَ هغے خلقو کیتهٔ باقی پاتے کیږی چه ج ئے په څهٔ وجه سره قبول نه شی - او هم دا وجه ده چه دَ جمرا تو دَ خوا نه کیتهٔ اوچتول او جمرات پرے ویشتل منع شوی دی ځکه چه دغه غیر مقبولے کیتهٔ دی - دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ دے ارشاد رښتو نوالے هر سړے په خپلو سترګو سره کولے شی - چه دَ جمراتو په خوا وشا کښے لږے ډیرے کیتهٔ په نظر راځی حال دا دے چه دَ دغه ځائے نه دَ دے کیتهو دَ اوچتولو او یا دَ دغه ځائے دَ صفا کولو انتظام نه دَ حکومت دَ طرف نشته او نه دَ عوامو دَ طرف نه -

په دے وجه شیخ جلال الدین سیوطیؒ په خصائص کبرٰی کښے فرمائی چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ځینے معجزے داسے هم دی چه دَ دوئی دَ وفات نه پس هم موجودے او قائمے دی او ترقیامته پورے به باقی وی او هر سړے به ئے لیدے شی - په دے معجزو کښے یوه قرآن دے چه مثل ئے نیشته او نهٔ به اوشی - ټوله دنیا دَ دهٔ دَ مثل راوړو نه عاجزه ده - او دا عاجز والے لکه څنګه چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په زمانه کښے وُه دغه شان نن هم موجود دے او ترقیامته پورے به وی - دَ هرے زمانے مسلمان ټولے دنیا لره چیلنج (دَ مقابلے دعوت) وَر کولے شی چه (فَأْتُوا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِه) دغه شان دَ جمراتو په باره کښے چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے چه دیته ویشتلے کیتهٔ په نامعلومه طریقه سره فرښتے اوچتوی صرف دَ هغه بد نصیبو خلقو کیتهٔ پاتے کیږی دَ چا چه ج قبول نه شی - دَ دوی دَ دے ارشاد رښتو نوالے په هر وخت او هره زمانه کښے کیږی او تر قیامته پورے به کیدے شی - دا دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم همیشه پاتے کیدونکے معجزه او دَ بیت الله سره تعلق لرونکے دَ الله تعالٰی یو لویه نښه ده -

## مقامِ ابراهیم

په دے بښو کښے یو ه لویه نښه مقامِ ابراهیم دے په دے وجه قرآن کریم دا جُدا او ځانله بیان کړه - مقامِ ابراهیم هغه کټه ده چه په هغے به حضرت ابراهیم علیه السلام او دریده او دَ کعبے آبادی به ئے جوړه وله - او په بعضے روایتونو کښے دی چه ابادی به څومره دنګیده نو دا کټه به ورسره خود به خود دنګیده - او دَ خکته را کوزیده و په وخت کښے به را خکته کیده - په دے کټه دَ حضرت ابراهیم علیه السلام دخپو جوړ نشان ترا وسه پورے موجود دے - ښکاره خبره چه یو بے پوهے او بے شعوره کټه کښے دا تمیز چه دَ بره کیدو په وخت کښے بره کیدل او دَ خکته کیدو په وخت کښے خکته کیدل - او دَ موم و په شان ئے نرم کیدل چه دَ قدمونو پوره نقشه په ځان کښے جوړه وی دا ټولے دَ قدرت نښے دی چه دَ بیت الله دَ اعلیٰ فضیلت سره تعلق لری دا کټه دَ بیت الله په خواکښے دروازے ته نږدے وه - خو کله چه دَ قرآن دا حکم نازل شو چه په مقامِ ابراهیم باندے مونځ کوئ (وَاتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهِيْمَ مُصَلًّى) نو دغه وخت دَ طواف کونکو دَ خیکړے دَ یاره ئے دا دَ دغه ځائے نه او چته کړه او دَ بیت الله نه ئے په څهٔ فاصله سره بیرته دَ بیر زمزم خوا ته کیخوده چه مطاف ترے وُزګارشی - او نن صبا دا په هم دغه ځائے کښے په یو محفوظ مکان کښے بنده ده - دَ طواف نه پس دوه رکعتونه دَ دے مکان شا ته کیدے شی - خواوس په کښے دا ترمیم شوے دے چه هغه مکان ئے لرے کړے دے او دا ئے دَ شیشے په یو خول کښے محفوظه کړے ده (او دَ او سپنے مضبوط جال ترے تاؤ دے) - مقامِ ابراهیم په اصل کښے دَ دغه خاص کټے نوم دے - او دَ طواف نه پس دوه رکعتونه دَ دے دَ پاسه یا دَ دے په خواکښے کول غوره دی - لیکن دَ مقامِ ابراهیم دَ لفظی معنی په اعتبار سره ټول مسجد حرام مقامِ ابراهیم دے - په دے وجه فقهاؤ حضراتو فرمایلی دی چه په مسجد حرام کښے ونته په هر ځائے کښے چه هم دَ طواف رکعتونه اوشی واجب به اداشی - (دَ حج په دوران کښے چه یره ګنړه وی په طواف کښے او اکثر خلق دَ ګنړے پروا نهٔ کوی او نمونځ دَ دغه قبهٔ په خواکښے دا دوه رکعته کوی چه طواف کوونکو او په خپله دوی ته پرے ډیر

تکلیف رسی دا سے نه دی کول په کار بلکه د مطاف نه باهر ئې ځه په اطمینان سره دا کول په کار دی)

**دیته د داخل شوی په امن کیدل**

په ذکر شوی ایات کښې ئې د بیت الله بل دا خصوصیت خوولے دے چه څوک دیته داخل شه نو په امن او محفوظ به وی - دیته د داخلید ونکی په امن کیدل او محفوظ کیدل یو د شریعت په اعتبار سره دے - یعنی د الله تعالیٰ د طرف خلقو ته دا حکم دے چه کوم سړے دیته داخل شی هغهٔ ته به څۀ آزار هم نه د رسوئ او قتل کوئ بر ئے هم نه - که څوک چا لوه قتل کړی یا څۀ بل جرم او کړی او بیت الله ته د ننه شی نو دۀ لوه به هم دغه ځائے سزا نه شی ورکولے بلکه دے به مجبوره کولے شی چه د حرم نه باهر او ځی نو بیا دے پرے سزا جاری کړے شی - په دے شان سره حرم ته داخل شوے په شرعی طور سره په امن او محفوظ دے -

دویم حرم ته د داخل شوی امن او حفاظت دا سے هم دے چه الله تعالیٰ تکوینی (یعنی د دغه ځائے د اثو په) طور سره د هر قوم او ملت په زړونو کښے د بیت الله تعظیم او عزت اچولے دے - او ټول په عام طور سره د زرگونو اختلافاتو با وجود په دے عقیده متفق دی چه دے ته داخل شوے اگرچه مجرم یا زموږ دشمن ولے نه دے خو د حرم عزت په دے کښے دے چه دۀ ته دے دلته څۀ نهٔ شی ویلے - حرم دے د عامو جګړو جنګو نو نه محفوظ او ساتلے شی - د جاهلیت د زمانے عرب او د دوی مختلف قبائل خواه که هر څومره په بدعملو او خرابو کښے اخته وُو لیکن د بیت الله او د حرم محترم په عزت او احترام به ئے ځا نو نه قربانول - د دوی جنګ جوئی او تُند خوئ په ټوله دنیا کښے مشهوره ده لیکن د حرم د احترام دا حال وُه چه د پلار قاتل به ځوئے ته مخامخ راغے نو د مقتول ځوئے چه د دهٔ وینو ته به تګے نا ست وه ستر کے به ئے خکته کړے او تیر به شو - او دهٔ ته به ئے هیڅ هم نه وے -

په فتح مکه کښے صرف د رسول الله صلے الله علیه وسلم د پا ره

دَ دین دَ یوخاص مصلحت او دَ بیت الله شریف دَ پاکولو په خاطر دَ یو څو ګنټو دَ
پاره په حرم کښې دَ جنګ اجازت دَ الله تعالیٰ دَ طرفه نازل شوے وَه او دَ فتح نه
پس هغوی په ډیر تاکید سره دَ دے اعلان او اظهار او فرمایه چه دا اجازت
صرف دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ پاره دَ بیت الله دَ پاکولو په غرض
سره وَه - او هغه هم دَ یو څو ګنټو دَ پاره وَه - دَ دینه پس دَ همیشه دَ
پاره بیا هم هغه حرمت ثابت دے کوم چه وړاندې وَه - او اُوئے فرمائیل چه
په حرم کښې دننه جنګ جګړه نه ماته وړاندے حلال وه او نه ما نه
پس دَ چا دَ پاره حلال دَه - او ماته دَ پاره هم صرف دَ یو څو ګنټو دَ پاره
حلال شوے وه - بیا حرامه کړے شوه -

پاتے شوه دا معامله چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه پس حجاج بن
یوسف دَ حضرت عبد الله ابن زبیرؓ خلاف په مکه لښکر کشی اوکړه او قتلونه
او لوټ مار ئے اوکړه نو دَا مِن عام په تشریعي حکم دَ دے څکه اثر نیشتے چه
دَ امت په اتفاق سره دَ هغهٔ دا کار سخت ګناه او حرام وَه تول امت پرے نفرین
ولعنت کړے دے او په تکویني طور سره هم دا کار دَ هغه دَ بیت الله دَ احترام
منافي څکه نه دے چه دَ حجاج په خپله هم دا عقیده نه وه چه دا کار ما حلال دَے
هغه په دے پوهه وَه چه زهٔ یو ډیر غټ جرم کوم خو دَ سیاست او اقتدار
نشے هغه ړوند کړے وَه -

په هر حال دا خبره په خپل ځائے بیا محفوظ وه چه عامو خلقو بیت الله او
حرم لره هم په هغه درجه کښې دَ عزت او احترام قابل ګانړهٔ او ګنړی ئے چه
په دے کښې جنګ جګړے او قتلو نه ډیر سخت ګناه ګنړی - او دا په ټوله
دنیا کښې صرف دَ بیت الله او دَ حرم محترم خصوصیت دے -

**دَ بیت الله دَ حج فرض والے**

په آیات کښې ئے دَ بیت الله دریم خصوصیت دا
فرمائیلے دے چه الله تعالیٰ په خپل مخلوق باندے
دَ بیت الله شریف حج لازم او واجب کړے دے
په دے شرط چه دے بیت الله ته دَ رسید و طاقت او قدرت لري -
دَ دے طاقت او قدرت تفصیل دا دے چه دَ دهٔ سره دَ اصلي ضرورتو نو

نه زیاتی دومره مال وی چه دے پرے دَ بیت الله پورے دَ تلو راتلو او هلته دَاوسید و خرچ پوره کولے شی او دَ خپلے والپسئ پورے دَ خپل هغه اهل و عیال هم انتظام کولے شی دَکومو خرچ خوراک چه په دهٔ دے - دارنګ په لاسو خپو سترګو وغیره سره هم معذور نه وی ځکه چه دا سے معذور خو دلته په خپل ځائے کښے نه شی کرځیدے نو هلته دَ تلو او دَ حج کولو قدرت او طاقت به ئے څنګه اوشی -

دغه شان دَ ښځے دَپاره چونکه بغیر دَ محرم نه سفر کول په شریعت کښے جائز نه دی نو په دے وجه به دَ دے قدرت هغه وخت ګڼړلے شی هرکله چه دَ دے سره څوک محرم حج کونکے وی خواه دغه محرم په خپل خرچ سره حج کوی او که دا ښځه دَ هغهٔ خرچ هم برداشت کوی - دغه شان هلته دَرسید و دَپاره دلارے امن هم دَ قدرت او طاقت یو جزء دے که په لاره کښے بدامنی وی دَ جان او مال قوی خطره وی نو دَ حج طاقت به نه شی ګڼړلے -

دَ لفظ دَ حج لغوی معنی ده قصد کول او دَ شرعی معنی ضروری تفصیل ئے خو په خپله قرآن کریم اوفرمایه چه طواف دَ کعبے او وقوف دَ عرفے او مزدلفے وغیره دی او باقی تفصیلات ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم دخپل نه باقی ارشاداتو او عملی بیاناتو په ذریعه ښکاره کړی دی - په دے ایات کښے دَ بیت الله دَ حج فرض کید و دَ اِعلان فرمایلو نه پس په اٰخر کښے فرمائی: وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ○: یعنے کوم سړے چه منکر شو نو الله تعالیٰ بے نیازه دے دَ ټول جهان دَ مخلوق نه -

په دے کښے هغه سړے خو ځامخا داخل دے چه ډاګه په ډاګه دَ حج دَ فرض والی نه منکر وی حج فرض نه ګڼړی نو دَ دهٔ خو دَ اسلام دَ دائرے نه وتل او کافر کیدل ښکاره خبره ده - نو په دے وجه دَ: وَمَنْ كَفَرَ: لفظ په ده څهٔ په ډاګه صادق دے - او کوم سړے چه ئے دَ عقیدے په طور فرض ګڼړی لیکن سره دَ طاقت او قدرت نه حج نه کوی نو دغه هم ځامخا په یو حیثیت سره منکر دے په دهٔ باندے دَ لفظ دَ: وَمَنْ كَفَرَ: اطلاق دَ تهدید او تاکید دَپاره دے چه دا سړے دَ کافرانو شان په کافرانه عمل کښے

اخته دي - لکه کافر او منکر چه ځنګوي دي هم واسې دي - په دې
وجه فقهاء رحمة الله عليهم فرمائي چه د آياتو په دې جمله کښې د هغه خلقو
د پاره د عذاب سخته وعده ده چه سره د قدرت او طاقت نه حج نه کوي
چه دوی په خپل دې عمل باندې د کافرانو په شان شو - (العياذ
بالله تعالیٰ) -

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۖ وَاللّٰهُ شَهِيْدٌ
ته او وايه چه اے اهلِ کتابو ولې منکر شوئ د الله د کلام نه - او الله ته ښکاره دي
عَلٰى مَا تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٨﴾ قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَصُدُّوْنَ
څۀ چه تاسو کوئ - ته او وايه اے اهلِ کتابو ولې منع کوئ د الله
عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ تَبْغُوْنَهَا عِوَجًا وَّ اَنْتُمْ
د لارې نه ايمان راوړونکو لره چه لټوئ په دې کښې عيب او تاسو
شُهَدَآءُ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿٩٩﴾ يٰٓاَيُّهَا
په خپله پوهيږئ - او الله ناخبره نه دے ستاسو د کار نه - اے ايمان
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوْا فَرِيْقًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا
دارو که تاسو خبره اومنئ د بعضې اهل کتابو
الْكِتٰبَ يَرُدُّوْكُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ كٰفِرِيْنَ ﴿١٠٠﴾
نو او به ګرځوي دوی تاسو لره د ايمان راوړو نه پس کافران
وَكَيْفَ تَكْفُرُوْنَ وَاَنْتُمْ تُتْلٰى عَلَيْكُمْ اٰيٰتُ اللّٰهِ
او تاسو څنګه کافران کيږئ او په تاسو باندې لوستې شي آيات د الله

وَفِيكُمْ رَسُولُهٗ ط وَمَنْ يَّعْتَصِمْ بِاللّٰهِ فَقَدْ هُدِيَ

او پتاسو کښې د هغهٔ رسول دے - او څوک چه مضبوط اونیسی الله لره نو دهٔ ته هدایت

اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿١٠١﴾ ع ١٠ / ١١ / ١

اوشو د نیغې لارے -

**د آیاتو نوترون** د بره نه د اهلِ کتابو په فاسد وعقید واو د دوی په شبهو خبره روانه وه - په مینځ کښې د بیت الله او حج ذکر راغے او س بیا خبره اهلِ کتابو ته ده چه تعلق ئې د یو خاص واقعے سره دے چه یو یهودی شماس نومې د قیس د مسلمانانو سره ډیره کینه ساتله - دهٔ په یو مجلس کښې د انصارو د دوه وو قبیلو آوس او خزرج په مینځ کښې ډیرا تفاق اوجمع والے اولیده نو د کینې نه ډیر بے آرامه شو او په دوی کښې د اختلاف غورزه ولو په فکر کښې شو - آخر دا خبره ئې جوړه کړه چه یو سړی تهٔ ئې اووے چه په دے دواړو قبیلو کښې چه د اسلام نه وړاندے یو لوئے جنګ د ډیرے زمانے نه دا روان پاتے شوے دے او د دے جنګ سره تعلق لرونکی چه کوم دواړو فریقو کوم فخریه شعرونه دی هغه اشعار د دوی په مجلس کښې اوویلے شی - منو د دغے اشعارو د لوستو سره یو اُوربل شو نو د دوی په مینځ تکرار شو وع شو تر دے چه موقع او وخت د جنګ د پاره بیا مقرر شو - نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خبر اوشو نو د دوی خواته ئې تشریف راوړو او اُو ئې فرمایل چه څهٔ جهالت دے ، زما په موجودګئ کښې بیا د مسلمانید واو د یو بل سره د متفق کیدو او خوږ کیدو نه پس دا کومه ناپوهی ره ، د لے تاسو په دے حالت کښې کفر ته دوباره واپس کیدل غواړئ ؟ ټول پوهه شوا او ئې کنړله چه دا د شیطان حرکت وهٔ او د یو بل سره غاړه غړئ شو او ډیر ئې اوژړل او تو به ئې اوویسته - په دے واقعه کښې دا آیاتونه نازل شو -

دے واقع لره روح المعانی په روایت د ابن اسحاق او یو جماعت د زید بن اسلم نه روایت کړے دے - دا مضمون د څو ایاتونو پورے تلے دے چه اول په کښے ملامت کول دی هغې اهلِ کتابو لره چا چه دا کاروائی کړے وه او دا ملامت کول ډیر په بلیغ انداز کښے دی چه په دے کار د ملامته کولو نه ئے اول په کفر باندے هم ملامته کړه - چه مطلب ئے دا شه چه پکار خو دا وه چه په خپله هم مسلمانان شوی وے نه دا سے چه نور ولره په ګمراه کولو پسے وړپسے شوئے - بیا په کښے خبره او پوهه کول دی مسلمانانو لره -

# لنډ تفسیر

(اے محمد صلے الله علیه وسلم) تاسو (دے اهلِ کتابو ته) او فرمائی چه اے اهلِ کتابو تاسو (پس د نبکاره کیدو د دلیل د حق والی د اسلام نه) ولے انکار کوئے د الله تعالیٰ د احکامونه (اصول او فروع په دے کښے ټول راغله یعنی د اصلی او فرعی احکامونه) حال دا دے چه الله تعالیٰ ستا سو د ټولو کارونو نه خبردار دے (تاسو د دۀ نه هم نه یریږئ - او اے محمد صلے الله علیه وسلم دوی ته دا هم) او وایه چه اے اهلِ کتابو ولے (د ولړے کولو یعنی اړه ولو کوشش کوئے) د الله د لارے (یعنی د هغه د حق دین) نه دا سے خلقو لره چه (د دے دین په حق والی) ایمان ئے راوړے دے په دا سے طور چه کوږ والی (خبرے کړے) لټوئ په دے لارے کښے (لکه په ذکر شوی وقصه کښے چه دوی کوشش کړے وۀ چه په دے کاروائی کولو سره د دوی په دین کښے د بے اتفاقئ ګناه هم ئے او د اجتماعی قوت بربادی په کښے هم ده او دا چه په دے جنجالونو کښے په اخته شی د حق دین نه به لرے شی) حال دا دے چه تاسو په خپله هم د دے کار د ناکاروالی) خبرلرئ او الله تعالیٰ ستاسو د کارونو نه نا خبره نه دے (په مقرر وخت به سزا درکړی د دے کارونو) اے ایمان دارو که تاسو خبره اومنئ د یو فریقے د هغې خلقو نه چه کتاب ورته ورکړے شوے دے (یعنی د اهل کتابو نه) نو دا خلق به تاسو د ایمان راوړو نه پس (په عقیده یا عمل سره) کافر جوړ کړی او تاسو کفر ته کولے شئ (یعنی تاسو لره ظاهروا

کیدے شی) حال دا دے (چه د کفر نه منع کونکی اسباب ټول جمع دی ځکه چه) په تاسو کښے د الله تعالی احکام (په قرآن کښے) لوستے شی تاسو ته اورئے او (بیا) د الله رسول (صلے الله علیه وسلم) موجود دے (او دا دواړه په ایمان د قائم پاتے کیدو قوی ذریعے دی پس تاسو لره په کار دی چه کړدے دواړه ذریعو د تعلیم او تلقین موافق په ایمان او د ایمان په خبرو قائم پاتے شئ) او (بیا د لرئ چه) کوم سړے الله لره په کلکه سره نیسی (یعنی چه ایمان پوره قائم پاتے کیږی ځکه چه الله تعالی لره کلک نیول هم دا دی چه د هغه ذات او صفات رشتیا او ګنړی او حکمونه ئے کلک اونیسی د چا مخالف سره ځان جوړ نه کړی) نو (داسے سړی) خامخا د نیغے لارے هدایت کیدے شی (یعنے دے په نیغه لار روی او په نیغه لارے کیدل د هغے فلاح او کامیابی اصل دے پس په دے کښے د داسے سړی د پاره د هغے صلاح او کامیابی زیرے او وعده ده)

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ وَلَا تَمُوْتُنَّ

اے ایمان دارو! یریږئ د الله نه لکه ځنګ چه پکار دے د هغهٔ نه یره - او مه مره

اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۰۲﴾ وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا

کیږئ مګر مسلمانان - او مضبوط اونیسئ رسئ د الله ټول په جمع سره

وَّلَا تَفَرَّقُوْا ۖ وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ كُنْتُمْ

او جدا جدا کیږئ مه - او یاد کړئ احسان د الله تعالی په خپل ځان کله چه وئ تاسو

اَعْدَآءً فَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهٖٓ اِخْوَانًا ۚ

دشمنان د یو بل نو الفت ئے واچاوه ستاسو په زړونو کښے (وس شوئ د هغهٔ په فضل سره رونړه

وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَاَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ؕ

او تاسو وئ په غاړه د اور د یو کندے بیا ئے تاسو لره د هغے نه نجات درکړو -

كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۳﴾

دا رنګې بيانوی الله په تاسو باندے ایاتونه خپل چه تاسو لاره بیا موم‌ئ -

## د ایاتونو تړون

په تیرو ایاتونو کښې ئې مسلمانان په دے خبر کړی دُو چه اهل کتاب او نور خلق چه تاسو لره په ګمراهۍ کښے اخته کول غواړی د دوی د ګمراهۍ نه خبردار اوسئ د خپل ځان د بچاؤ کوشش کوئ - په دے دوه دُو ایاتونو کښې ئې د مسلمانانو د اجتماعی قوت د مضبوطولو دوه اَهَم اُصول او خودل۔
چه اوّل تقویٰ، دویم د یو بل سره اتفاق او یو کیدل او د جُدا جُدا ګروه کیدو او اختلافی نه ځان ساتل۔

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو د الله تعالیٰ نه (داسے) یره کوئ (لکه چه) د یرے حق دے ر د کاملے یرے مطلب دا دے چه لکه څنګه د کفر او شرک نه ځ شوئ د غسے د ټولو ګناهونو نه هم ځان ساتئ او بے د شرعی وجه نه جنګیدل ګناه دے نو د دے نه هم ځان ساتل فرض دی) او بغیر د اسلام (کامل) نه (چه مطلب ئې هم دغه دے کوم چه د کاملے یرے حق دے) په بل هیڅ یو حالت ساه مه ورکوئ (یعنے په دے کامله یره او کامل اسلام د مرګ د وخته پورے قائم اوسئ) او مضبوط نیولے لرئ د الله تعالیٰ سلسلے لره (یعنے د الله تعالیٰ دین لره چه اصول او فروع په کښے ټول را غلے) داسے چه د یو بل سره په اتفاق هم اوسئ (چه په ټول دین کښے د دے هم تعلیم یعنے خودنه ده) او د یو بل سره بے اتفاقی مه کوئ (چه دا په دے دین منع هم دی) او په تاسو چه د الله تعالیٰ کوم انعام (شوے) د دے لره یاد کړئ کله چه تاسو (د یو بل سره) دشمنان وئ (یعنے د اسلام نه اول - لکه چه د اوس او خزرج دواړه قبیلو په مینځ کښے د ډیر زمانے نه جنګونه راروان وُه - او په عام طور سره اکثر د عرب خلقو هم دا حالت وُه

پس الله تعالیٰ (اوس) ستاسو په زړونو کښې (د یو بل سره) اُلفت واچولو پس تاسو د خدائے تعالیٰ په (دے) انعام (د زړونو په اُلفت) سره (اوس) دیو بل رونړه رونړه شوئے او (یو انعام چه د دے ذکر شوی انعام هم اصل دے دا ئے درباندے اوکړو چه) تاسو خلق بالکل د دوزخ د کندے په غاړه ولاړ وئ (یعنے په وجه د کافر کیدو د دوزخ ته دومره نزدے وئے چه دوزخ ته په تلو کښې صرف د مرګ تدړئ فاصله وه) پس د دے (کندے) نه خدائے تعالیٰ ستاسو ځانونه بچ کړه (یعنے اسلام ستاسو نصیب شه چه په دے سره ئے د دوزخ نه اوساتلئ. نو اوس تاسو د دے انعام قدر اوکړئ او د یو بل سره په جنګ جګړو سره چه ګناه دے د الله تعالیٰ دغه نعمتونه مه زائله کوئ. ځکه چه د یو بل سره په جنګ جګړو به اولنے انعام چه د زړونو الفت او محبت دے په خپله لرے شي او بل انعام چه دین د اسلام دے کمزورے به شي. او لکه څنګه چه الله تعالیٰ دا احکام په واضح طور سره بیا نوی) دغه شان الله تعالیٰ تاسو ته خپل (نور) احکام (هم) بیانوی. ځانئ چه تاسو خلق په (دغه) لاره قائم پاتے شئ.

# معلومات او مسئلے

**د مسلمانانو د اجتماعی قوت دوه اُصول تقوٰی او اتفاق**

په ذکر شو وبره نو دوه ٓایاتو نو کښې په اولنی ٓایات کښې اولنے اصول او په دویم ایات کښې دویم اصول خود لے شوے دے. اولنے اُصول چه دے ایات او خود و هغه دادے چه د الله تعالیٰ نه د یریدو یعنے د هغهٔ د ناخوښه خیزونو نه د ځان ساتلو پوره کوشش کول چه د الله تعالیٰ د حق مطابق وی.

لفظ د تقوٰی په عربۍ ژبه کښې د بچ کیدو او پرهیز کولو په معنٰی کښې راځی نو ترجمه ئے یریدو هم په دے مناسبت سره کولے شی چه د کوم خیزونو نه د ځان ساتلو حکم ورکړے شوے دے هم دغه خیزونه د یره وی. یا چه په دے سره د الله تعالیٰ د عذاب خطره ده. نو دغه د یرے شے دے.

او د دے تقوٰی څو درجے دی، ادنیٰ درجه ئے د کفر او شرک نه ځان ساتل دی

دَ دے معنی په لحاظ سره هر یو مسلمان ته متقی ویلے شی - اګرچه په ګناهونو کښے مبتلا وی - دَ دے معنی دَ پاره هم په قرآن کښے ځو ځایه لفظ دَ متقین او تقوٰی راغلے دے - دویمه درجه چه په اصل کښے مطلوب ده (یعنے کومه چه الله تعالیٰ ئے غواړی) هغه دَ هر هغه څیز نه ځان ساتل دی کوم چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول په نزد خوښ نه وی - دَ تقوٰی کوم فضیلتونه او برکتونه چه په قرآن او حدیث کښے راغلی دی هغه هم دَ دے درجے دَ خلقو دَ پاره دی او دَ دوی دَ پاره ئے وعده شوے ده -

دریمه درجه دَ تقوٰی اعلیٰ مقام دے چه انبیاء علیهم السلام او دَ دوی خاصو نائبینو اولیاؤ ته نصیب کیږی چه خپل زړهٔ دَ هر غیر الله نه بچ کول او دَ هغه یعنے دَ الله په یاد و سره او رضا لټولو سره ئے آباد ساتل - په ذکر شوے آیات کښے دَ اِتَّقُوا اللّٰهَ نه پس دَ حَقَّ تُقَاتِهٖ کلمه زیاته شوے ده چه دَ تقوٰی هغه درجه حاصله کړئ کومه چه حق دے دَ تقوٰی -

## حق دَ تقوٰی څهٔ دے؟

دَ دے تفسیر حضرت عبد الله ابن مسعود رض او ربیع رح او قتاده رح او حسن بصری رضی الله عنهم دا فرمایلے دے چه مرفوعًا دَ رسول الله صلے الله علیه و سلم نه هم نقل دے :-

حَقَّ تُقَاتِهٖ هُوَ اَنْ یُّطَاعَ فَلَا یُعْصٰی وَیُذْکَرُ فَلَا یُنْسٰی وَیُشْکَرُ فَلَا یُکْفَرُ -
(بحر محیط)

"حق تقاته یعنے حق دَ تقوٰی دا دے چه دَ الله اطاعت په هر کار کښے اوشی یو کار دَ هغه دَ اطاعت نه خلاف نه وی او همیشه الله لره یاد ساتی چه ئے هم نه هیره وی او شکر ئے همیشه ادا کوی چه ئے ناشکری نه کوی"

دا مطلب دَ تفسیر اماما نو په نورو عنوانا نو سره هم ادا کړے دے لکه بعضو فرمایلی دی چه حق دَ تقوٰی دا دے چه دَ الله تعالیٰ په معامله کښے دَ چا دَ ملامته کولو او بد وئیلو پرواه نه کوی او همیشه په انصاف قائم وی - اګرچه په انصاف کولو کښے په خپله دَ خپل نفس یا خپل اولاد یا دَ خپلو مور و پلار نقصان وَلے نه وی - او بعضو فرمایلی دی چه یو سړے

ترهغه وخته پورې حق دَ تقوىٰ نه شي حاصلولې ترڅو پورې چه خپله ژبه محفوظه اونساتي -

او دَ قرآن کريم په يو بل آيات کښې چه: اِتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ: د ے يعنې دَ الله نه اوېرېږئ څومره چه ستاسو په طاقت کښې ده - نو حضرت ابن عباسؓ او طاؤسؒ فرمائي چه دا په حقيقت کښې دَ حَقَّ تُقَاتِهٖ خاص تشريح او تفسير دے - او مطلب دا دے چه دَ نافرمانو او ګناهونو نه په ځان ساتلو کښې خپل پوره طاقت او قوت اُولګوه - نو حق دَ تقوىٰ اَدا شه که يو سړے دَ خپل پوره طاقت لګولو نه پس په يو ناجائز شي کښې مبتلا هم شي نو دا دَ تقوىٰ دَ حق نه خلاف نه ده -

او بيا دَ دېنه په وروستو جُمله کښې چه کوم ارشاد فرمائي: فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ٥: دَ دېنه معلومه شوه چه تقوىٰ په حقيقت کښې پوره په پوره اسلام دے چه دَ الله تعالىٰ او دَ هغه دَ رسول صلے الله عليه وَسلّم دَ مکملې فرمانبردارئ او دَ نافرمانئ نه مُکمل پرهيز نوم تقوىٰ ده - او دے ته اسلام ويلے شي -

پاتې شوه دا معامله چه په آيات کښې حکم دا دے چه ستاسو مرګ دے په اسلام باندے وي دَ اسلام نه سِوا بل هيڅ يو حالت د ے تاسو لره مرګ رانه شي -

نو دلته دا شک نه دې کول په کار چه مرګ خو دَ سړي په اختيا ر کښې نه دے - په هر يو حالت کښې راتلے شي ځکه چه په حديث کښې د ی - :کَمَا تَحْيَوْنَ تَمُوْتُوْنَ وَکَمَا تَمُوْتُوْنَ تُحْشَرُوْنَ: يعنې په کوم حالت چه تاسو خپل ژوند تېره وئ په دغه به در لره مرګ راځي - او په کوم حالت کښې چه در لره مرګ راشي هم په دغې حالت به په محشر کښې پورته کولے شئ - نو کوم سړے چه خپل ټول ژوند په اسلام دَ تېره وَلو نيّته اراده لري - او دَ خپل طاقت مطابق پورې عمل کوي نو انشاء الله تعالىٰ چه دَ دهٔ مرګ به هم خاص په اسلام راځي -

په بعضې روايتو نو دَ حديث کښې چه دا راغلي دي چه بعضې سړي به

داسے هم وی چه ټول عمر بړئے په نیکو عملونو کښے تیر شوے وی په اخر کښے به یو داسے کار او کړی چه ټول عملونه به ئے حبط او برباد شی - دا داسے خلقو ته پیښیدے شی چه په عمل کښے ئے اول اخلاص او پوخ والے نه وَی - والله اعلم -

**دَ مسلمانانو دَ اجتماعی قوت دویم اصول دَ یو بل سره اتفاق او یو والے۔**

په بل ایت : وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيْعًا ‌ کښے ئے داډیر په بلیغ او حاکمانه انداز سره بیان کړے دے - چه دَ ټولو نه اوّل ئے حغه اصول او ښودو او خودلو کوم چه بنی آدمو لره دَ یو بل سره دَ ټولو او متفق کولو دَ پاره تریاق کار کوی او دَ دے نه پس ئے دَ یو بل سره دَ متفق کیدو حکم او کړو او بیائے دَ یو بل سره دَ اختلاف او جُدا جُدا کیدو نه منع او فرمایله۔

تشریح دَ دے داده چه اتفاق او یو کیدل یو داسے شے دے چه دَ دے په خهٔ والی او دَ دے په غوختو دَ دنیا ټول بنی آدم خواه دَ هر ملک او دَ هرے زمانے چه وی، دَ هر مذهب او هرے طریقے سره چه تعلق لری دَ ټولو اتفاق دے - چه دا ډیر خهٔ شے دے او دا ِدے ښا ښا وی - په دے کښے دَ دوه رائے کید و هم وامکان نیشتے - په دنیا کښے به شاید چه یو سړے هم داسے پیدا نه شی چه جنګ جګړو لره به فائده منی او غوره ګنړی - په دے وجه دَ دنیا هر جماعت او هره پارټئ خلقو ته دَ متفق کیدو بَلَنه ورکوی - لیکن دَ دنیا دَ حالاتو تجربه دا خائی چه اګر که دَ اتفاق په مُفید کیدو او ضروری کیدو دَ ټولو اتفاق دے خو بیا هم داسے کیږی چه ټول مخلوق (انسانیت) په فریقو، ډلو او پارټو کښے تقسیم دے - او بیا په هره فریقه کښے نورے فریقے او پارټئ کښے نورے پارټیانے دَ دے یو لا محدود دوه سلسله داسے ده چه په حقیقت کښے دَ دوه تنو یو کیدل او اتفاق هم عنقا شوے دے - دَ وقتی غرضو نو دَ پاره یو څو کسان په یو خبره باندے اتفاق کوی او چه دغه غرضونه پوره شی یا په کښے کامیاب نه شی نو بیا یو اځے دا نهٔ چه اتفاق ختم شی بلکه دشمنو ته خبره اورسی -

که فکر او کړے نو سبب به ئے دا معلوم شی چه هره ډله او هره فرقه

او هر سړے خلق په خپل جوړ کړی پروګرام باندے متفق او یو کول غواړی - او که نور خلق ځان له خپل څه نظام یا پروګرام لری نو د وی د هغو سره د متفق کیدو په ځائے هغوی خپل پروګرام ته رابلی او د یو کیدو بلنه ورکوی چه زمونږ سره یو شئ د غه خپل پروګرام پاتے کړئ - نو په دے وجه لازمی خبره ده چه د هر یو سړے بلنے د یو کیدو نتیجه به د یو قسم خلقو او یو ټولگی په کسانو کښے د جدا جدا کیدو او کړو وړو کیدو په صورت کښے را اوځی - او د اختلافاتو په چقړو کښے د نختی انسانیت لاس ته به د دنیه سوا نور هیڅ را نه شی چه ـ

**مرض زیا تیږی څومره چه علاج کوی**

په دے وجه قرآن حکیم نه صرف د یو کیدو اتفاق تنظیم او اجتماع وعظ او فرمایه - بلکه د دے د حاصلولو او باقی پاتے کولو یو داسے منصفانه او عادلانه اصُول هم او خودل چه د دے په منلو سره د یو کیدو نه پس هم اختلاف نه شی راتلے - هغه دا چه د انسان د دماغو یا د یو څو کسانو جوړ شوے نظام او پروګرام په نور مخلوق ور تپل او د هغوی نه دا امید لرل چه دا ټول به پدے متفق شی د عقل او انصاف خلاف او د ځان غولولو نه سوا نور هیڅ نه دی - البته د ربّ العلمین ور کړے شوے نظام او پروګرام ضرور داسے شے دے چه په دے ټول مخلوق لره متفق کیدل په کار دی - یو عقل مند سړے د دے نه په اصُولو سره انکار نه شی کولے - او س که د اختلاف څه لار باقی پاتے کیږی نو هغه صرف د دے خبرے په پیژندو سره کیدے شی چه د احکم الحاکمین رب العلمین رالیږلے شوے نظام څهٔ او څنګه دے - یهودیان د تورات نظام لره، نصارا د انجیل نظام لره د خدائے تعالیٰ د طرف نه رالیږلے شوے او عمل کول پرے واجب بولی - تر دے چه د مشرکانو مختلف جماعتونه هم د خپل خپل مذهبی رسمونو نسبت خدائے تعالیٰ ته کوی -

لیکن اوّل که بنی آدم د خپل د لئیز تعصُب او د پلار نیکه د غلطو رسمونو نه ځان را بهر کړی او د خپل خدائے ور کړی عقل نه کار واخلی نو دا

حقیقت به ورته بالکل بنکاره او په ډاګه شي چه د نبیا نو خاتم صلی الله علیه وسلم چه د الله تعالیٰ اخري پیغام د قرآن کریم په صورت کښې راوړی دے نن د هغې نه سِوا یل یو نظام هم د الله تعالیٰ په نزد مقبول نه دے او که داهم پاتے کړے شي او نظر انداز شي - نو دا وخت قرآن مسلمانانو ته خبره کوي او د دوی په دے باندے ایمان هم دے چه نن قرآنِ کریم د ژوند یو داسے نظام دے چه بے شکه د الله تعالیٰ د طرفه رالیږلے شوے دے او په خپله الله تعالیٰ د دے د حفاظت ذمه اغستے ده - نو په دے وجه تر قیامته پورے په دے کښې د څهٔ قسم اړَلون بدلون او تغیر امکان نیشتے په دے وجه زهٔ د غیر مسلمو ډلو بحث پاتے کوم اوپه قرآن ایمان لرُونکو مسلمانانو ته وایم چه د دوی د پاره خوصرف او صرف دے د عمل کولو جوګه دے - که د مسلمانانو مختلفے پارټۍ د قرآن کریم په نظام باندے متفقے شي نو په ذرګونو د لئیزنسلي او وطني اختلافونه به په یو ساعت کښې ختم شي کوم چه د انسان د ترقۍ کولو په لاره کښې بند یزونه جوړ شوي دي. او اوس که بیا هم په مسلمانانو کښې څهٔ اختلاف پاتے کیږي نو هغه هم صرف د قرآن نه د پو هے او تعبیر په باره کښې وي او که دغه اختلافات په حدودو کښې دننه پاتے شي نو دغه نه بیا بد دي او نه د انسان د اجتماعي ژوند د پاره ضرري دي - بلکه داسے اختلاف د هوښیا رانو په منځ کښې یو فطرتي شے دے پس په دے قابو موندل او په حدودو کښې ئې دننه ساتل څهٔ ګران کار نه دے - په خلاف د دے نه چه د قرآن د نظام نه بالکل آزاد ے زمونږ داموجوده پارټۍ جنګیږي نو په داسے حال کښې د خلاف او جګړے هیڅ علاج نیشتے - او دا اختلاف او ګډ وډ کیدل قرآن کریم په سختۍ سره منع کړي دي - او نن د قرآني اصُولو د پاتے کولو په وجه سره زمونږ پوره ملّت په انتشار او ګډ وډ کیدو کښې ډوُبت دے بربادیږي قرآن کریم په دے ذکر شوي ایات کښې د دے ګډ وډ کیدو او انتشار د ختمولو د پاره صحیح علاج داسے خودَلے دے چه:-

وَاعْتَصِمُوْا بِحَبْلِ اللهِ جَمِيْعًا | یعنې د الله رسۍ تول په جمعه سره

مضبوط اونیسئ -

دَ الله دَ رسئ نه مراد قرآن مجید دے - عبد الله ابن مسعودؓ راوی دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمایلی دی؛ کِتَابُ اللهِ هُوَحَبْلُ اللهِ الْمَمْدُوْدُ مِنَ السَّمَآءِ اِلَی الْاَرْضِ؛ یعنی دَ الله تعالیٰ کتاب دَ الله تعالیٰ رسئ ده چه دَ آسمان نه زمکے ته راځوړند شوے ده" (ابن کثیر)

دَ زید بن ارقمؓ په روایت کښے دَ؛ حَبْلُ اللهِ هُوَالْقُرْاٰنُ (یعنے دَ الله رسئ قرآن دے) الفاظ راغلی دی؛ (ابن کثیر)

په عربئ محاوره کښے دَ "حبل" نه مراد "عهد" هم دے - او مطلق هر هغه شے چه دَ ذریعے یا وسیلے کار ورکوی - دَ قرآن یا دین نه ئے په رسئ سره ځکه تعبیر اوکړو چه دا هغه رشته ده چه یو طرف ته دَ ایماندارو تعلق دَ الله تعالیٰ سره قائموی او بل طرفته ټول ایمان راوړونکی دَ یو بل سره یوځائے کوی یو جماعت ترے جوړه وی -

حاصل دا دے چه دَ قرآن دے یو دے جملے حکیمانه اصول خودلی دی یو دا چه هر بنده لره لازم دی چه دَ الله تعالیٰ را لیږلے شوے دَ ژوند نظام یعنے په قرآن باندے په کلکه سره عمل کونکے وی - دویم دا چه ټول مسلمانان یوشی په دے عمل اوکړی چه لازمی نتیجه ئے دا ده چه ټول مسلمانان یوموټے او منظم شی - لکه چه یو دے دَ لے په جمع سره یوه رسئ نیولے وی نو دغه ټول دَ لے یو بَدَنْ جوړه شی - قرآن کریم په یو بل ایات کښے دا خبره نوره زیاته واضحه داسے فرمائیلے ده :-

| | |
|---|---|
| اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَیَجْعَلُ لَهُمُ الرَّحْمٰنُ وُدًّا ؕ | "یعنے کوم خلق چه ایمان راوړی او نیک عملونه کوی الله تعالیٰ دَ دوی په مینځ کښے دوستی او محبّت پیدا کوی"؛ |

بیا په دے کښے یو باریک مثال هم دے چه مسلمان هر کله دَ الله تعالیٰ په کتاب منګلے لګولے وی - نو دَ دهٔ مثال دَ هغے حالت په شان دے چه او چت ځائے ته دَ ختو په وخت کښے یو مضبوطه رسئ اونیسی او دَ هلاکت نه په امن شی. نو اشاره ئے او فرمایله چه که ټول یوشی او په پوره قوت سره ئے او نیسی

- نو یو شیطان به هم د دوی په مینځ کښے په
شو، پوره توګه کولو کښے کامیاب نه شي - او د یواځے (انفرادي) ژوند په شان
به د مسلمان قوم اجتماعي (یوځائي) قوت هم یو داسے مضبوط طاقت جوړ
شي چه هیڅوک به ئے نه د ځائے نه خوزه ولے شي او نه به ئے فتح کولے شي -
په قرآن شریف باندے منکلے لګکول هم هغه شے دے چه خواره
واره قوتونه پرے جمع کیدے شي - او یو مړ قوم پرے تازه ژوند
حاصله ولے شي - او چه د دے نه اوړي نو قومي او یوځائي ژوند خو
ئے تباه برباد ېږي او په یواځے (انفرادي) ژوند کښے ئے هم هیڅ خیر
او نفع نیشته -

**د ټول مسلمان قوم اتفاق صرف د اسلام په بنیاد کیدے شي په نسبي او وطني یو والي سره د اکار نه شي کیدے.**

دلته د ټولو نه اول په دے ځان پوهه
کول لازمي دي - چه د یو والي او اتفاق
د پاره ضروري ده چه د دے یو والي
یو خاص مرکز وي - بیا د مرکز د
یو والي په باره کښے د دنیا د قومونو مختلفے لارے دي - چرته نسلي او نسبي شتو
لره د مرکز یو والے ګڼړي - لکه د عربو د قبیلو یو والے چه وه چه قریش یو
قوم او بنو تمیم بل قوم ګڼړلے کیده - او چرته به د رنګ جدا والے د
مرکز یو والے جوړیده چه تور خلق یو قوم او سپین بل قوم ګڼړلے کیده
او چرته د وطن او ژبے یو والے د مرکز یو والے جوړ شوے وه چه هندي
یو قوم او عربي بل قوم بللے شو - چرته د پلارنیکه رسم ورواج د مرکز
یو والے جوړ شوے وه - چه څوک د دغے رسمونو پابند وو هغه یو قوم
او څوک چه ئے پابند نه وو هغه بل قوم لکه د هندوستان هندوان
او آریه سماج وغیره -
قرآن کریم دا ټول پاتے کړل د مرکز یو والے ئے د الله تعالیٰ رسۍ
قرآن کریم یعنے د الله تعالیٰ رالیږلے شوے محکم نظام مقرر کړه - او دوه
ټوکه فیصله ئے او کړه چه مؤمن یو قوم دے چه د الله د رسۍ سره تړلے
شوے دے ، او کافر بل قوم دے چه د دے رسۍ سره تړلے شوے نه دے -

خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ : کَ دے هم دغه مطلب دے - جغرافیائی یو والی هیڅکله دے قابل نه دی چه د مرکز یو والے جوړ کړے شی - ځکه چه دغه یو والی عام طور سره غیر اختیاری وی چه یو سړے ئې په خپل کوشش او عمل سره نه شی حاصلولے ، کوم چه تور دے هغه سُور کید ے نه شی او څوک چه قریشی دے هغه تمیمی نه شی جوړید ے - څوک چه هندی دے هغه عربی نه شی جوړیدے - نو په دے وجه داسے یوکیدل به په یو محدوده دائره کښے وی - کَ دوی دا دائره به چرته هم ټول انسانیت په ځان کښے راګیر کړے ټول دنیا په یو مرکز نه شی جمع کولے په دے وجه قرآن کریم دَ مرکز یو والے دَ الله رسئ قرآن کریم او دَ خدائے تعالیٰ را لیږلے شوے دَ ژوند نظام جوړ کړه - چه دَ دے اختیاره وَل اختیاری کار دے - که څوک دَ مشرق او سید ونکے وی او که دَ مغرب، تور وی او که سپین، عربی ژبه وائی او که هندی او انګریزی دَ کومے قبیلے دَ کوم خاندان چه وی هر سړے دا صحیح مرکز دَ یو کید و اختیاره وَلے شی - او دَ ټولے دُنیا ټول انسانان په دے یو مرکز جمع کیدے او رونړه رونړه جوړیدے شی - او که دے دَ پلار ونیکه دَ رسم ورواج نه لږ پورته شی او غور فکر او کړی نو دۀ ته په دَ دے نه سوا بله صحیح لار بنکاره نه شی - چه دَ خدائے تعالیٰ را لیږلے شوے نظام او پیژنی او تابعداری ئے او کړی دَ حبل الله رسئ لره په مضبوطئ سره او نیسی - چه دَ دے نتیجه به یو طرفته داوی چه ټول انسانیت (مخلوق) به په یو مضبوط او محکم یو والی سره او تړلے شی -

او دویم داچه دَ دے یو والی (وحدت) هر سړے به دَ الله تعالیٰ دَ را لیږلی شوی نظام مطابق دَ خپلو عملونو او اخلاقو اصلاح اوکړی خپل دَ دنیا او آخرت ژوند به برابر کړی - دا هغه حکیمانه اُصول دی چه یو مسلمان ئے را واخلی نو دَ ټولے دنیا قومونه ورته راپاره وَلے شی چه دا صحیح لار دے طرفته راشئ او مسلمانان چه څومره په دے فخر هم کوی په ځائے دے. لیکن افسوس دے چه د یورپ والؤ هغه ژَوَرسازش چه دَ مسلمانانو

یو والی لره د ټکړے ټکړے کولو د پاره د صد وراسے چلیږی هغه په خپله د اسلام په دعویداروکښے کامیاب شو- او س د اسلامی ملّت یو والے په عربی، مصری، هندی، سندی کښے تقسیم شوے ټکړے ټکړے شو-

د قرآن کریم دا آیات هر وخت او هر ځائے د ے ټولو ته په اوچت آواز دا بلنه ورکوی چه دا د جاهلانو ځان ځانی نه په حقیقت کښے ځان ځانی ده او نه د دے په بنیاد سره قائم شوے وحدت (یووالے) عقل منونکے یووالے دے- په دے وجه په کار دی چه د الله په رسئ یا ندے یو کیدل اختیار شی- کوم چه دوی لره اول هم په ټوله دنیا غالب او اوچت کړی وُو- او بیا هم که د دوی په قسمت کښے څهٔ خیر وی نو هغه به د دے لاره کښے میلاویدے شی-

غرض دا دے چه په دے آیات کښے مسلمانانو ته دوه هدایتونه ورکړے شوی دی- اوّل دا چه د الله تعالیٰ د را لیږلی شوی د ژوند د نظام پابندی اوکړی- دویم دا چه ټول یو موټے شی په کلکه سره دا د خدائے تعالیٰ رسئ اونیسی- چه د اسلامی ملّت دا خور وُور والے راغونډ او منظم شی لکه چه په تیر و اوّلنو قرنونو (زمانو) کښے دا لیدلے شوے ده-

په مسلمانانو کښے د اتفاق د واجب والی نه پس فرمائی: وَلَا تَفَرَّقُوا، او د یو بل سره بے اتفاق مه کوئے- د قرآن کریم دا حکیمانه انداز دے چه دے په کوم ځائے کښے د یو شی د هغه اړخ وضاحت کوی چه په هغے عمل کول واجب وی نو بل طرفته د هغے اړخ نه هم خلق منع کوی په کوم چه دوی دغه شے پاتے کوی- نو په یو بل آیات کښے ارشاد فرمائی:-

وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِیْ مُسْتَقِیْمًا فَاتَّبِعُوْهُ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِکُمْ عَنْ سَبِیْلِهٖ؛ په دے آیات کښے هم په نیغه لارے د پاتے کید و تلقین دے او د خپلو خواهشاتو په بنا باندے په خپلو جوړو کړو لارو باندے د تلو نه منع ده- بے اتفاقی د یو قوم د هلاکت د سببونو نه د ټولو نه اوّل او آخری سبب دے- په دے وجه قرآن کریم په جدا جدا عنوانونو

بار بار ددے نه منع فرمائی :-

په یو بل ایات کښے فرمائی :-

اِنَّ الَّذِيْنَ فَرَّقُوْا دِيْنَهُمْ وَكَانُوْا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِيْ شَيْءٍ -

"يعنے کومو خلقو چه په خپل دین کښے ځان ځانی جوړکړه او په مختلفو پارټو کښے تقسیم شو ستا د دوی سره هیڅ تعلق او واسطه نيشته"

ددے نه علاوه د پیغمبرانو علیهم السلام د امتونو واقعات ئے نقل کړی دی چه څهٔ رنګ هغه امتونه د یو بل سره د اختلاف او ځان ځانی په وجه د ژوند د مقصد نه واوړیدل د دنیا او د آخرت په شرمندګو کښے اخته شو -

نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد فرمایلے دے چه الله تعالیٰ ستا سو د پاره درے څیزونه غوره کړی دی او درے څیزونه ئے نا خوښه کړی دی - خوښ کړی څیزونه ئے دا دی :-

اول دا چه تاسو عبادت خاص د الله تعالیٰ د پاره کوئ او د هغهٔ سره هیڅوک مه شریکوئ - دویم دا چه د الله تعالیٰ کتاب په کلکه سره اونیسئ او د بے اتفاقئ نه بچ اوسئ - دریم دا چه د خپلو حاکمانو او د مشرانو (اولوا الامر) په حق کښے د خیر خواهئ جذبه ساتئ -

او هغه درے څیزونه چه الله پاک پرے ناراضه کیږی دا دی . چه (۱) بے ضرورته بحث مباحثه، قیل وقال (۲) بے ضرورته د چا نه سوال کول - (۳) د مال ضائع کول (ابن کثیر) عن ابی هریرةؓ)

او س سوال دا پاتے شه چه آیا هر یو اختلاف ناکاره او مذموم دے یا څهٔ اختلاف په کښے نابدهم شته - نو جواب دا دے چه هر اختلاف بد نه دے بلکه بد هغه اختلاف دے په کوم کښے چه د خپلو خواهشاتو په بنا د قرآن نه لرے اوسی او سوچ کوی - لیکن که په قرآن باندے جمع اوسی او نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه کومه تشریح او کوم تفصیل بیان کړے وی هغه قبلوی د خپل پیدائشی استعداد (طاقت) او روغ دماغ په بنا باندے څهٔ فروعی اختلاف

کوی نو دا اختلاف فطری دے او اسلام د دینه منع نه کوی - د اصحابو تابعینو اماما نو او فقهاؤ اختلاف هم د دے قسمه اختلاف وَه او دے اختلاف ته رحمت ویلے شوے دے - البته که دغه فروعی بحثو نه اصل دین او گرځولے شی او په دے کښې جنګې جګړې او سپکو سپورو ته خبره اورسی (لکه نن صباچه زموږ عالمان صاحبان په فروعی اختلافاتو کښې په یو بل د کفر فتوے لګوی او ټول ملت اسلامی ئے د یو بل مخالف کړے دے د یو بل وینو سکلو ته تیار دی) نو بیا دا هم مذموم (بد) دے -

د یو بل سره د یو کیدو د دواړو واړخونو واضحه کولو نه پس دغه حالت طرفته اشاره او شوه په کوم کښې چه د اسلام نه وړاندے اهل عرب اخته وَه - د قبائلو د یو بل سره دشمنئ په خبره خبره د دوی جنګو نه د شپے او ورځے قتلونو او لوټ مار په سبب نژدے وَه چه ټول قوم د عرب نیست نابود شی - په دے او رکښې د سوزیدو او مره کیدو نه کم څه شی دوی بچ کړه نو هغه دا د اسلام نعمت وَه - چه فرمائی :

وَاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ كُنْتُمْ اَعْدَآءً فَاَلَّفَ بَيْنَ قُلُوْبِكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهٖٓ اِخْوَانًا ۚ وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَاَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ۔

" یعنې د الله تعالیٰ دا انعام په ځان باندے یا د کړئ چه کله تاسو د یو بل دشمنان وئ هغهٔ ستاسو په زړونو کښې الفت واچاؤ پس تاسو په دے انعام د یو بل رونړه رونړه شوئ - او تاسو د دوزخ د کنډے په غاړه وئ پس هغهٔ تاسو د دینه بچ کړئ "

یعنې د صدو دشمنئ او کینې ئے درنه لرے کړے الله تعالیٰ د اسلام او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په برکت سره رونړه رونړه کړئ - چه په د ے سره ستاسو دین او دنیا برابر شو او داسے دوستی موجوده شوه چه دشمن درته په یره کښے شو - او دا د دورولئ یو کیدل د خدائے تعالیٰ دومره لوئے نعمت دے چه که د دے د پاره د ټولے دنیا خزانے خرچ کړئ نو هم دا نه شی حاصل کیدے - یعنې په مال دولت لاس له نه راځی -

د شان نزول په واقعه کښې چه کوم شریر و خلقو د اوس او خزرج

قبیلو ته تیر جنګ رایاد کړے وه په دوی کښې ئې فساد راپورته کول غوښتل په ذکو شوی ایات کښې ئې د دے مکمل علاج اوشو ګاو د نتیجو او د اسلام په ذریعه ئې د دوی نه د خلاصی بیان او فرمایه -

| | |
|---|---|
| د مسلمانانو د یو یل سره یو کیدل په اسلام پاندے موقوف دی | د قرآن حکیم د دے ارشاد نه یو بل حقیقت په ډاګه شو - هغه دا چه د زړونو مالک |

په حقیقت کښې الله جل شانهٔ دے - په زړونو کښې د ننه محبت یا نفرت پیدا کول د هغهٔ کار دے - د یو بل سره محبت او دوستی پیدا کول خالص د الله تعالیٰ انعام دے - او دا هم ښکاره ده چه د الله تعالیٰ انعام صرف د هغهٔ په حکم منلو او فرمانبرداری سره حاصلیدے شی - په ګناه او نافرمانئ سره د انعام نه شی ملاویدے -

د دے نتیجه دا هم شوه چه که مسلمانان محکم تنظیم او یو کیدل غواړی نو د هغې ذریعه فقط دا ده چه د الله تعالیٰ حکم او منی او فرمانبرداری اختیار کړی - دے طرفته د اشاره کولو د پاره د ایات په اخر کښې ئې او فرمایل چه: كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ؛ یعنې دغه شان الله تعالیٰ تاسو خلقو ته حقیقتونه ښکاره بیانوی چه تاسو خلق صحیح لار ته راشئ -

---

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ وَيَاْمُرُوْنَ

او په کار دی چه وی دے په تاسو کښې یو جماعت داسے چه بلنه کوی نیک کار طرفته او حکم کوی

بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ

د خو کارونو او منع کوی د بدو نه - او دغه او رسیدل

هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا

خپل مراد ته - او مه کیږئ د هغو په شان چه که وړه شو

وَاخْتَلَفُوا مِنْ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ۚ وَاُولٰٓئِكَ

او اختلاف ئے اوکړه پس د هغې چه اورسيد دوی ته حکم صاف ۔ او دوی

لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۰۵﴾

لره لوئے عذاب دے ۔

**دا اياتونو تړون** په تير دوه دوا اياتونو کښې د مسلمانانو د اجتماعي کاميابۍ دوه اصول خود لے شوی دو ۔ چه په هغې کښې هريوتن ته په يوخاص انداز کښې د خپلے اصلاح کولو هدايت ده ۔ چه هر سړے تقوی اختيار کړی او د الله تعالیٰ د لړئ (اسلام) سره پيوست شی ۔ دغه شان په د انفرادی اصلاح سره خود به خود يو اجتماعي قوت مسلمانانو ته حاصل شی ۔ په دے ذکر شوی دوه اياتونو کښې د دے نظام اصلاح او کاميابي په دے شان سره مکمله کړے شوه ۔ چه مسلمان به صرف په خپله اصلاح صبر نه کوی بلکه د خپلو نورو ورونړو د اصلاح خيال به هم د دے سره سره ساتی ۔ په دے صورت سره به د ټول قوم اصلاح هم اوشی او د يو بل سره تړون او يو والے به ئے باقی او قائم پاتے شی ۔

## لنډ تفسير

او په تاسو کښې يو داسے جماعت کيدل ضروری دی چه (نورو خلقو لره هم) خير طرف ته رابلی او د نيکو کارونو ويناکوی او د بدو کارونو نه منع کوی او داسے خلق به (په اخرت کښې په ثواب سره) پوره کامياب وی او تاسو خلق د هغې خلقو په شان مه کيږئ چا چه (په دين کښې) ځان ځانے جوړه کړه او (په خپلو خواهشونو ئے د يو بل سره اختلاف اوکړه دوی ته د ښکاره حکمونو د رسيدو نه پس او د دے خلقو د پاره به لوئے

سزا وی (یعنې د قیامت په ورځ)

# معلومات او مسئلې

| | |
|---|---|
| د مسلمانانو قومی او اجتماعی کامیابی په دوه څیزونو موقوفه ده | اول د تقوای او د الله په رسئ د منګلې د لګولو په ذریعه خپله اصلاح - دویم |

د دعوت او تبلیغ په ذریعه د نورو اصلاح -
په آیات: وَلْتَكُنْ مِّنكُمْ، کښې د دې دویم هدایت بیان دے - ګویا د دې دوه وړو آیاتو نو نچوړ دا شو چه په خپله هم خپل عملونه او اخلاق د الله تعالیٰ د را لیږلی شوی قانون مطابق برابر کړه او د خپلو نورو رونړو د عملونو د برابرولو هم فکر ساته - هم دا مضمون دے چه په سورت والعصر کښې ئې ارشاد فرمایلے دے -

| | |
|---|---|
| اِلَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ وَ تَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَ تَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ - | "یعنې د آخرت د تاوان نه صرف هغه خلق په امان دی چه په خپله هم د ایمان او نیک عمل پابند دی او نورو ته هم د صحیح عقیدو او نیک عمل هدایت کوی" |

د قومی او اجتماعی ژوند د پاره لکه څنګه چه دا ضروری وه چه د دوی دے یو مضبوط او محکم تړون د یوکیدوی (یعنې یو مضبوط مرکز دے وی چه د ټولے دنیا مسلمانان ورته راغونډ وی) کوم چه په اولنی آیات کښې د الله په رسئ باندے د منګلې لګولو د الفاظو نه ئې واضحه کړه - د شان دے تړون لره د قائم او باقی پاتے کولو د پاره دا بل کار هم ضروری دے - چه په دے آیات کښې ئې ارشاد فرمایلے دے. یعنې نورو رونړو ته د قرآن او احادیثو مطابق د خو کارونو هدایت او د بد و کارونو نه ئې منع کول دے هر سړے خپل فرض اوګڼړی - د دے د پاره چه د الله دا رسئ د دۀ د لاسو نه خلاصه نه شي - څکه چه په قول د استاد مرحوم شیخ الاسلام مولانا شبیر احمد عثمانی رحمه الله "د الله تعالیٰ دا رسئ شو کیدی نه البته د لاسو نو نه خلاصه شي" په دے وجه قرآن کریم د دے رسئ د لاسونو نه د خلاصیدو د خطرے

دَ وجه نه ئې دا هدايت جاري اوفرمايه چه هرمسلمان لکه څنګه چه په خپله نيک عمل کول او دَ ګناه نه ځان ساتل خپل فرض ګنړي دا خبره دے هم ضرور اوګنړي چه نوروخلقو ته هم دَ نيک عمل هدايت او دَ بد وکاروونو نه دَ منع کولو کوشش دے کوي - چه نتيجه به ئې داوي چه دا ټول به يوشي او په مضبوطئ سره به دا مضبوطه رسئ اونيسي او دَ دے په نتيجه کښے به دَ دنيا او اٰخرت کاميابي دَ دوي سره وي - دَ خپلے اصلاح سره دَ نوروځا اصلاح ذمواري په هر مسلمان دَ غورزه ولو دَ پاره په قراٰن کريم کښے ډير واضح ارشادات راغلي دي: دَ سورت والعصر مضمون تاسو اوليده و - او په دے سورت اٰل عمران کښے ارشاد دے :-

كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ -

"تاسو غوره امت يئ چه دَ خلقو دَ پاره راوييستلے شوي يئ ځکه چه تاسو دَ نيکو کارونو خلقو ته حکم کوئ او دَ بد وکارونو نه ئې منع کوئ ـ"

په دے کښے هم په ټول امت باندے دَ نيک کار دَ حکم کولو او دَ بد نه دَ منع کولو فرض غورزه وَلي شوي دي - او په نوروامتونو باندے ئې دَ دوي دَ غوره والي سبب هم دا خاص کار خودلے دے - دغه شان دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشادات په دے باره کښے بے شماره دي - دَ ترمذي او ابن ماجه وغيره په روايت کښے دي چه نبي کريم صلے الله عليه وَ سلم فرمايلي دي :

وَالَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ لَتَاْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ اَوْلَيُوْشِكَنَّ اللهُ اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عِقَابًا مِّنْ عِنْدِهٖ ثُمَّ لَتَدْعُنَّهٗ فَلَا يَسْتَجِيْبُ لَكُمْ -

"قسم دے په هغه ذات چه په قبضه کښے ئې زما روح دے چه تاسو به ضامخا په نيکو حکم او دَ بد وند منع کول کوئ او که داسے نه وي نونزدے ده چه الله تعالیٰ دَ ګناه کارا نو سره په تاسو ټولو هم خپل عذاب راولیږي دَغه وخت به تاسو دَ الله تعا نه دعا غواړئ خو هغه به نه قبليږي ـ"

په یو حدیث کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے:

مَنْ رَاٰی مِنْکُمْ مُنْکَرًا فَلْیُغَیِّرْهُ بِیَدِهٖ فَاِنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهٖ وَاِنْ لَّمْ یَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهٖ وَذٰلِكَ اَضْعَفُ الْاِیْمَانِ۔

یعنې تاسو چه په خپلو کښې یو تن په ګناه کولو او وینئ نو په کار دی چه په لاس سره منع کړی او که د دے طاقت ئے نه وی نو په ژبه دے منع کړی او که د دے طاقت ئے نه وی نو په زړهٔ کښې دے بد ګنړی او دا کمزورے ایمان دے"۔

د دے ټولو آیاتونو او روایتونو نه دا خبره ثابته شوه چه د نیکو حکم کول او د بدو نه منع کول د امت په هر یو تن باندے لازم ده - البته د ټولو شرعی احکامو په شان په دے کښې هم د هر سړی د قدرت او طاقت په مطابق پرے دا حکم لازم کیږی د چا چه څومره طاقت وی دومره به پرے امر بالمعروف او نهی عن المنکر لازم وی - او س چه کوم حدیث تاسو اولید و په دے کښې هم د طاقت مطابق حکم دے -

بیا طاقت او قدرت په هر کار کښې جدا جدا وی - په نیکو باندے د حکم کولو قدرت اول خو په دے باندے موقوف دے چه دغه خهٔ او بد دے سړی ته پوره صحیح صحیح معلوم وی - چا ته چه په خپله د خهٔ او بد تمیز نه وی یا د دے مسئلے پوره علم ورته نه وی دے که نور و ته په امر بالمعروف او نهی عن المنکر شروع شی نو بشکاره خبره ده چه د اصلاح په ځائے به فساد جوړ کړی او ډیره ممکنه ده چه دے د خپلے نا خبرئے په وجه یو نیک (معروف) کار منع کول شروع کړی یا د بد کار (منکر) حکم کول شروع کړی - په دے وجه چه کوم سړے په خپله په معروف او منکر باندے خبر نه وی په هغهٔ دا فرض خو لازم کیږی چه یو هم حاصله کړی او په شرعی احکامو کښې د معروف او منکر علم حاصل کړی او بیا د دے مطابق امر بالمعروف او نهی عن المنکر خدمت پوره کوی -

لیکن تر څو پورے چه دهٔ ته دا پو هه نه وی کړے د دے خدمت د پاره پورته کیدل جائز نه دی - لکه په دے زمانه کښې چه ډیر جاهلان د وعظ

کولو د پاره او د ریږي نه ورته د قرآن علم وي او نه د حدیث - او یا لکه اکثر عوام چه د چا نه څه خبره واوري غلط او بیا په هغې د خلقو سره جګړې کوي - چه دا سې کوه دا سې مه کوه - دا کار په ځائے د دے چه معاشره برابره کړي معاشره خرابوي او جنګ جګړې جوړه وي -

دغه شان د امر بالمعروف په قدرت کښې دا هم داخله ده چه خپل ځان ته په کښې د څه قوي او نا قابل برداشت ضرر رسید و یره نه وي - ځکه ئې په حدیث کښې ارشاد فرمایلے دے چه که ګناه په لاس او په طاقت سره نه شي منع کولے نو په ژبه دے منع کوي او که په ژبه سره د منع کولو قدرت ئے نه وي نو په زړه کښې دې بد ګڼړي - بس کاره خبره ده چه په ژبه سره د منع کولو د قدرت نشتوالے دا نه دے چه کوندے دے د هغه ژبه نه چلیږي - بلکه مراد دا دے چه دوه ته قوي یره وي چه که دهٔ د حقے خبرے وینا او کړه نو مرګ به ئے کړي - یا به ورته بل څه سخت نقصان اوره سوي - په داسې حالت کښې به داسې په ژبه قادر نه شي ګڼړلے - او د نهي عن المنکر او امر بالمعروف په پاتې کولو به دے ګناه ګار نه شي بللے - دا بله خبره ده چه د الله په لاره کښې د خپل ځان او مال پرواه نه کوي او نقصان برداشت کوي د امر بالمعروف او نهي عن المنکر خدمت پوره کوي لکه چه د ډیر و اصحابو تابعینو او امامانو د اسلام واقعات مشهور دي - دا د دوي اولوالعزمي او لوئے فضیلت دے - چه په دے سره د دوي مقام په دنیا او په آخرت کښې او چت شو - مګر د دوي په ذمه دا فرض یا واجب نه وه -

د سورت والعصر د آیات او د "کُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ" وغیره آیاتو نو نه دا رنګې د ذکر شو و احادیثو وغیره نه د امت په هر فرد باندې د دهٔ د طاقت او قدرت مطابق امر بالمعروف او نهي عن المنکر واجب کولے شي - لیکن د دے په وجوب کښې دا تفصیل دے چه په واجبو کارونو کښې د نیکو حکم او د بدو نه منع کول واجب دي - او په مستحبو کارونو کښې مستحب دي - مثلاً پنځه وخته مونځ فرض دے نو په هر سړي باندې واجب دي چه بے نمازه ته نصیحت کوي - او نفل مستحب دي د دے نصیحت کول به مستحب وي - د دے نه علاوه بو ضروري طریقه دا هم په نظر کښې ساتل په کار دي چه په مستحبو کښې به

مطلق په نرمئ سره اظهار کوی - او په واجبا تو کښے اول نرمی او په نهٔ منلو باندے دَ سختئ هم گنجائیش شتے - نو صبا خلق په مستحبو کښے یا په صبا حو کښے خهٔ زور نه او سختی کوی لیکن دَ واجبو او فرضو په پاتے کولو هیڅوک ملامت تد رے هم نه وائی -

دا رنګ دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر فرض په هغه وخت په هر سړی لازم کیږی چه کله دے په خپل مخ کښے څهٔ بدکار په کید واووینی - مثلاً یو سړے وینی چه څوک مسلمان شراب سکی یا غلا کوی یا دَ پردئ ښځے سره بے ځایه خلط کوی - نو په دهٔ به واجب شی چه دَ خپل طاقت او قدرت مطابق هغه منع کړی - او که دَ دهٔ په وړاندے دا هر څهٔ نه کیږی - نو دا دَ دهٔ په ذمه فرض نه دی بلکه اوس دا فرض دَ اسلامی حکومت دی چه هغهٔ دَ مجرم دَ جُرم تلاش او تحقیق اُو کړی او سزا ور کړی -

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ارشاد کښے مَنْ رَاٰی مِنْکُمْ؛ کښے دے طرف ته اشاره ده ځکه چه په دے کښے ارشاد وے چه کوم سړے په تاسو کښے څهٔ بد کار لره په کید واووینی -

دَ امر بالمعروف دویمه درجه داده چه دَ مسلمانانو نه به یو جماعت خاص دَ دعوت او ارشاد دَ پاره قائم وی - دَ دوی کار به هم داوی چه په خپل قول او فعل سره یعنے په خپل عمل سره خلق دَ قرآن او سنت طرف ته رابلی - او کله چه خلقو لره په خو کارونو کښے سُستت یا په بدو کارونو کښے مبتلا او وینی نو دغه وخت به دَ نیکئ طرفته دَ دوی دَ راابه ولو او دَ بدئ نه دَ منع کولو په کار کښے دَ خپل دَ نس موافق کمے نه کوی - او چونکه دا اهمه ذمواری یعنے امر بالمعروف او نهی عن المنکر به پوره شان سره هغه وخت اداکید ے شی کله چه دهٔ ته دَ مسئلو پوره علم هم وی - اودَ امر بالمعروف اثر کوُنکے طریقے او آدبونه هم دَ سنتو مطابق دهٔ ته معلوم وی - په دے وجه په مکمل طور سره دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر فرضو دَ اداکولو دَ پاره به مسلمانانو کښے یو خاص جماعت په دے عهده باندے مأموره (مقرر) کړے شو کوم چه په هرشان خیر طرف ته دَ رابللو دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر اهل وی۔

چنانچه په دے ا یات کښے دَ داسے جماعت اهمیت او ضرورت ښائی فرمائی:

وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ يَّدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ: یعنے په تاسو کښے یو جماعت داسے جوړیدل ضروری دے چه دَ خیر طرف ته بلنه کوی او دَ نیکو کولو وَینا کوی او دَ بدو کارونو نه منع کوی۔

په : وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ اُمَّةٌ: کښے اشاره ده چه دَ دے جماعت وجود ضروری دے۔ که یو حکومت دا فرض نه ادا کوی نو په ټولو مسلمانانو به فرض وی چه هغوی داسے جماعت جوړ کړی۔ ځکه چه دَ دوی ملی ژوند به هغه وخت محفوظ پاتے کیږی ترڅو چه دا جماعت باقی وی۔ بیا دَ دے جماعت بعض اهم صفتونه او دَ نورونه ئے دَ فرق راوستو دَ پاره فرمائی: يَدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ: یعنی دَ دے جماعت اولنے کار به خیر طرف ته بلنه وی۔ گویا خیر طرفته بلنه به دَ دوی اعلیٰ مقصد وی۔ دَ خیر نه مراد څهٔ دے؟ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ دے په تفسیر کښے فرمایلی دی چه: اَلْخَيْرُ هُوَ اِتِّبَاعُ الْقُرْاٰنِ وَسُنَّتِيْ: یعنی دَ خیر نه مراد دَ قرآن او محمدؐ سنتو تابعداری ده (ابن کثیر)

دَ خیر' دَ دینه زیات جامع او پوره تفسیر او تعریف نه شی کیدے۔ ټول دین دَ شریعت په دے کښے راغے۔ بیا: يَدْعُوْنَ: ئے دَ مضارع په صیغه سره راوړه دائے او خوده چه دَ دے جماعت کار به خاص خیر طرف ته بلنه وی۔ یعنے دَ خیر طرف ته دَ بلنے کار به دوی مسلسل او په مخه همیشه کوی۔

دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر نه خو دا هم معلومیده چه دَ دے ضرورت به په خاصو موقعو باندے وی کله چه دغه ناکاره کارونه پیدا کید و نید لے شی لیکن: يَدْعُوْنَ اِلَى الْخَيْرِ: ئے اووے دلئے او خوده چه دَ دے جماعت کار به خیر طرفته بلنه وی۔ اگرچه یَدَ غه وخت کښے دغه منکرات موجود نه وی۔ یا دَ یو فرض دَ ادا کولو وخت نه وی۔ مثلاً دَ نمرختو نه پس دَ زوال پورے دَ مانځه وخت نیشته۔ لیکن دغه جماعت به په دغه وخت کښے هم دَ مانځه کولو تلقین کوی۔ چه کله دَ مانځه وخت راشی نو موږ ادا کول ضروری دی۔ یا دَ روژے وخت نه دے راغلے او س لا دَ روژے میاشت لرے ده۔ لیکن دغه جماعت به دَ خپلو فرضونه غافل نه اوسی۔ بلکه دَ مخکښے نه

به خلقوته خو دَنه کوی چه کله دَ روڼړے میاشت راشی نوروژه نیول به فرض وی - غرض دا دے چه هرڅه خو به دَ دے جماعت ذمواری خیر طرف ته بلنه وی -

بیا دَ دے دعوت الی الخیر (خیر طرفته دَ بلنے) دوه درجے دی - اوّل دا چه غیر مسلمو ته دَ خیر یعنے دَ اسلام طرفته بلنه ورکول دی - دَ مسلمانانو هر یو تن په عام طور سره او دا جماعت په خاص طور سره دَ دنیا ټولو قومونو ته دَ خیر یعنے دَ اسلام دعوت ورکوی په ژبه سره هم او په عمل سره هم - چنانچه په کوم ایات کښے دَ قتال اوجها د حکم شوے دے هلته دَ رِشتو نومؤمنانو صفت دا سے شوے دے :

اَلَّذِیۡنَ اِنۡ مَّکَّنّٰہُمۡ فِی الۡاَرۡضِ اَقَامُوا الصَّلٰوۃَ وَاٰتَوُا الزَّکٰوۃَ وَاَمَرُوۡا بِالۡمَعۡرُوۡفِ وَنَہَوۡا عَنِ الۡمُنۡکَرِ ؕ یعنے رشتینی مسلمانان هغه دی چه کله مونږ دوی لره په زمکه کښے طاقت او قدرت یعنے حکومت ورکړو نو دَ دوی اوّلنے کار دا وی چه دَ الله په زمکه کښے دَ اطاعت نظام قائموی چه دَ هغے یو ه نښه مونځ دے او خپل مالیاتی نظام دَ زکوٰة په اصولو باندے قائموی دا د نلئ امر بالمعروف او نهی عن المنکر دَ خپل ژوند مقصد جوړه وی که نن مسلمان امت خپل مقصد نورو قومونو ته دَ خیر طرف ته بلنه ورکول جوړ کړی نو هغه ټولے بیماری به ختم شی کومے چه دَ نورو قومونو دَ نقل کولو په وجه په مونږ کښے خورے شوے دی - ځکه چه هر کله یو قوم په دے لوئ مقصد (دعوت الی الخیر) باندے جمع او متفق شی او دا اوګڼړی چه مونږ لره په علمی او عملی حیثیت سره دَ دنیا په قومونو باندے غالب راتلل دی او دَ دنیا دَ قومونو تربیت او مهذب کول زمونږ په ذمه دی نو دَ دوی بے اتفاقی به هم ټولے ختم شی - او پوره قوم به دَ عظیم مقصد دَ حاصلولو دَپاره لګیاشی - دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او صحابه کرامو رض دَ کامیابو راز هم په دے کښے وه - په حدیث شریف کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا ایات : وَلۡتَکُنۡ مِّنۡکُمۡ : تلاوت کړو او بیا ئے اوفرمایل : هم خاصة اصحاب رسول الله صلے الله علیه وسلم؛

(ابن جریر) یعنې دا جماعت خاص دَ صحابه کرامؓ جماعت دے - ځکه چه دے پاکو نفسونو هر یو ځان دَ خیر طرفته دَ بلنې ذمه وارګڼړه

د دعوتِ الی الخیر (خیر طرفته دَ بلنې) دویمه درجه په خپله مسلمانانو ته دَ خیر طرفته بلنه ورکول دی - چه ټول مسلمانان به عام طور او دَ غه خاص جماعت به په خاص طور سره دَ مسلمانانو په منځ کښې تبلیغ کوی او خیر طرفته دَ بلنې فرض به ادا کوی، بیا به پکښې هم یو دعوت الی الخیر عام وی یعنې ټولو مسلمانانو ته به ضروری احکام او اسلامی اخلاق ښائی - بل دعوت الی الخیر به خاص وی - یعنې په مسلمان امت کښې به دَ قرآن او سنتو ماهر (ریوهه) عالمان پیدا کوی - دے طرفته په یو بل آیات کښې رهنمائی شوے ده :

فَلَوْلَا نَفَرَ مِنْ كُلِّ فِرْقَةٍ مِّنْهُمْ طَآئِفَةٌ لِّيَتَفَقَّهُوْا فِي الدِّيْنِ وَلِيُنْذِرُوْا قَوْمَهُمْ إِذَا رَجَعُوْٓا إِلَيْهِمْ لَعَلَّهُمْ يَحْذَرُوْنَ ؛ دَ لمانده دے دَ دے بلونکی جماعت دویم صفت او امتیاز (فرق) خاص دا سے ښائی چه : يَأْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ؛ یعنې دغه خلق دَ نیکو حکم کوی او دَ بد ونه منع کول کوی -

په معروف کښې هغه ټولے نیکئ او ښیګړے داخلے دی دَ کوم چه اسلام حکم ورکړے دے - او هر نبیؑ په هره زمانه کښې دَ دے دَ رواج کولو کوشش کړے دے - او چونکه دا دَ خیر کار ونه معلوم دی او پیژندے شی نو ځکه ورته معروف ویلے شی -

دغه شان په مُنکر کښې ټولے هغه بدئ او فسادونه داخل دی کوم لوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ناجائز کړی دی او معلوم دی - په دے مقام باندے دَ واجبو او ګناهونو (واجبات ومعاصی) په ځائے دَ معروف او منکر، عنوان اختیاره ولو کښې (یعنې چه معروف او منکر ئے او وے واجب او معاصی ئے او نه وے) شائد چه دا حکمت هم وی چه دَ روک ټوک معامله به صرف په هغه مسئلو کښې وی چه په امت کښې مشهورے او معلومے دی - او دَ ټولو پرے اتفاق وی - په اجتهادی مسئلو کښې چه دَ شریعت لاندے کنږ خیالات

کیدے شي۔ په دے کښې د روک تهوک سلسله نه ده په کار۔ افسوس دے چه عام طور سره د دے حکیمانه تعلیم نه غفلت او بے پرواهی کیدےشي او اجتهادی مسئلے د جنګړ میدان جوړ کړے دے د مسلمانو د جماعت سره ټکړے وهي او دا د ټولو نه لویه نیکي ګنړي۔ او د دے په مقابله کښې هغه ګناهونه چه د ټولو پورے اتفاق دے چه دا ګناهونه دی د هغوی نه د منع کولو طرفته هیڅ توجه نه شي ورکیدے۔ د ایات په ختمیدو سره د دے جماعت انجام او عاقبت په دے طور سره ستائیلے شوے دے۔

: د اُولٰٓئِکَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ؛ یعنې په حقیقت کښې دا خلق کامیاب دی۔ د دوا په دجهانو کامیابی د دوی حصه ده۔

د دے جماعت اطلاق د ټولونه اول د صحابهؓ په جماعت باندے کیږي یعنې اولنې مصداق ئے د صحابهؓ جماعت دے چه د دعوت الی الخیر او امر بالمعروف او نهی عن المنکر د عظیم مقصد سره را پورته شو او په لږ زمانه کښې ئے ټوله دنیا فتح کړه او قبضه ئے کړه، د روم او ایران لوئے لوئے حکومتونه ئے غوبل کړۀ او دنیا لره ئے د اخلاق او پاکئ سبق ورکړۀ د نیکئ او تقوٰی ډیوے ئے بلے کړے۔

الله تعالیٰ د دے خیر طرفته د دعوت ورکونکي امت ضرورت او صفتونو بیانولو نه پس په دغه ذکر شوی دویم ایات کښې مسلمانانو ته د یو بل سره د اختلاف او ګڼو ډلو کیدو نه د بچ کیدو هدایت فرمائیلے دے ارشاد دے چه:

وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ۔ یعنې د هغې خلقو په شانے مه جوړیږئ چا چه د ښکاره او روښانه دلیلونو د راتلو نه پس اختلاف او کړه۔

مطلب دا دے چه د یهودوا او نصاراؤ په شان مه جوړیږئ۔ چا چه د الله تعالیٰ د صافو حکمونو نه رسیدو نه پس محض د وهمونو او خواهشاتو تابعداری او کړه د شریعت په اصولو کښې ګڼې ډلې شو او د یو بل سره د جنګ جګړو په وجه د الله تعالیٰ په عذاب کښې ګرفتار شو۔

دا آیات په حقیقت کښې د آیات: وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللّٰهِ جَمِيعًا: تتمه ده - په دې آیات کښې د یو والي مرکز حبل الله باندې منګلې لګولو طرف ته بلنه ده - او اشارةً په کښې دا خبره او خودې شوه چه جمع کیدل او یو کیدل ټول امت او قوم لره یو تن بدن جوړه وي - بیا خیر طرف ته په بلنې سره او امر بالمعروف او نهي عن المنکر سره دې یو والي او جمع کیدو ته خوراک رسي - او پالنه ئې پرې کیدې شي - بیا: وَلَا تَفَرَّقُوا او په آیات: وَلَا تَكُونُوا كَالَّذِينَ تَفَرَّقُوا: سره د دې خبره خودَه شوې ده چه په کښې وَړه کیدو او اختلاف سره تیر قومونه تباه شوي دي د دوي نه عبرت واخلئ او په خپل ځان کښې دا مرض پیدا کیدو ته مه پریدئ -

په آیات کښې چه د کوم ګنډ وَړه کیدو او اختلاف بد والې ویلې شوې دې د دې نه مراد هغه اختلاف دې چه د دین په اُصولو کښې وي یا په فروعو کښې د نفس د غلبې په وجه سره وي - چنانچه په آیات کښې دا قید چه "د واضح احکامو راتلو نه پس" د دې خبرې خودَه نه ده - ځکه چه د دین اصول ټول واضح وي - او فروع هم بعضې داسې واضح وي چه که د نفس غلبه نه وي نو بیا د اختلاف هډو ځائے نه وي - لیکن کوم فروع چه واضح نه وي د ښکاره نَصّ د نشتوالي په وجه یا د نصونو د یو بل سره د ظاهري ټکواؤ په وجه نو په دې فروعو کښې په رائے او اجتهاد سره چه کوم اختلاف پیدا کیږي هغه په دې آیات کښې داخل نه دې او هغه صحیح حدیث د دې د اجازت د پاره پوره دې کوم چه بخاري او مسلم مرفوعًا د عمرو بن العاص رض نه روایت کړې دې چه هر کله څوک اجتهاد او کړي او هغه حکم ټیک وي نو دهٔ ته دوه اَجره ملاویږي - او چه په اجتهاد کښې غلطي او کړي نو یو اجر به ورته ملاویږي -

نو معلومه شوه چه په کومه اجتهادي غلطئ باندې هم یو ثواب ملاویږي هغه بد نه شي کیدې نو په دې بنا سره هغه اجتهادي اختلاف چه د اصحابو رض او د مجتهد ینو اماما نو په مینځ کښې شوې دې - د دې ذکر شوي آیات سره هیڅ تعلق نشته - په قول د حضرت قاسم بن محمد رض او حضرت عمرو بن عبد العزیز رض د اصحابو اختلاف د خلقو د پاره رحمت دې او رخصت دې (لکه چه په روح المعاني کښې

نقل شوي دي د بیهقي او مدخل نه)

**په اجتهادي اختلاف تو کښې یو جانب هم مُنکر نه وي، دوی ته بد ویل جائز نه دي**

دلته یو ډیره اهمه اُصولي خبره ښکاره شوه چه کوم اجتهادي اختلاف د شرعي اجتهاد په تعریف کښې داخل دے، په دے کښې په خپل خپل اجتهاد سره چه کوم امام کوم جانب اختیار کړو اګر چه د الله په نزد په دے کښې برابر او ټهیک صرف یو جانب دے بل خطاء دے۔ لیکن دا د غلط او صحیح فیصله به په خپله الله کول وي هغه به په محشر کښې چه کوم عالم په اجتهاد کښې صحیح ته رسیدلے وي هغه لره دوه اجره ورکړي او کوم عالم چه په اجتها د کښې خطا شوے وي هغه لره یو اجر ورکړي۔ د الله تعالیٰ نه سوا بل هیچا لره دا حق نیشتے چه هغه په اجتهادي اختلاف کښې یو ته صحیح او بل ته غلط او وائي۔ البته د خپلې پوهے او عقل تر حده پورے په دے دوا ړو کښې چه کوم یو لره دے قرآن او سنّت ته نزدے او ګنړي د هغهٔ متعلق دا ویلے شي چه زما په نزد دا برابر دے، لیکن احتمال د خطاء په کښې هم دے۔ او دوېم جانب خطاء دے لیکن احتمال د برابر په کښې هم دے اودا هغه خبره ده چه د ټولو امامانو د فقه په نزد منلے شوے ده۔ د دے نه دا خبره هم په ډاګه شوه چه په اجتهادي اختلاف کښې یو جانب مُنکر نه وي چه د امر بالمعروف او نهي عن المنکر لاندے په هغه نکیر او کړے شي (یعنے بد ورته او ویلے شي) او چه هرکله هغه مُنکر نه دے (یعنے بد نه دے) نو په غیرِ مُنکَر باندے نکیر په خپله امرِ مُنکَر (یعنے په بد و باندے امر کول دي) د دے نه ځان ساتل لازمي دي۔ دا هغه خبره ده چه په دے کښې نن صباچیر د علم خاوندان هم په غفلت کښې اخته دي مخالف نظریه لرونکو ته د کنځلو او بد وردو ویلو نه پرهیز نه کوي (بلکه په یو بل د کفر فتوے لږوي) چه نتیجه ئے په مسلمانانو کښې د جنګ جګړو او انتشار او اختلاف په صورت کښې مونږ مخے ته په نظر راځي۔

اجتهادي اختلاف په دے شرط چه د اجتهاد د اُصولو مطابق وي هغه هرګز د ذکر شوي ایات، وَلَا تَفَرَّقُوْا: نه خلاف او بد نه دے۔ البته د دے

اجتهادی اختلاف سره چه کومه معامله نن صبا کولے شی چه په دے کښې ئے بحث مباحثه دَدین بنیاد جوړ کړے دے - او په دے بانـدے ګے ډیو بل سره دَجنګ جګړو کنځلو ردو بدو ویلو ته نوبت رَسَوَلے دے داکار بے شکه چه دَ: وَلَا تَفَرَّقُوْا: ښکاره مخالفت بَدْ او دَ سنتو او صحابهؓ او تابعینوؒ نه بالکل خلاف دے - دَدین په تیرو مشرانو کښې به چرته یو ځائے نه وی اوریدلی شوی چه دَ اجتهادی اختلاف په بِنَا بانـدے به ئے په خپل مخالف داسے تکیر کړے وی، مثلًا دَ امام شافعیؒ او نورو اماما نو مسلک دا دے چه کوم مونځ په جماعت سره په امام پسے کولے شی په دے کښې هم په مقتدی یا نو بانـدے سورهٔ فاتحه لوستل فرض دی - او دا ښکاره خبره ده چه څوک دا فرض ادا نه کړی دَ هغهٔ مونځ به دَدوی په نزد اُونه شی - دَ دے په مقابله کښې امام ابوحنیفهؒ وائی چه مقتدی لره په امام پسے سورهٔ فاتحه لوستل جائز نه دی نو په دے وجه ئے حنفیان نه لولی - لیکن دَ ټول امت په تاریخ کښې به چا داخبره نه وی اوریدلے چه دَ شافعیؒ مذهبیانو حنفیانو ته تارکِ نماز (مونځ نه کونکی) ویلی وی- چه ستاسو مونځ نه دے شوے او تاسو بے نمازه ئی - او یائے په دوی بانـدے دا تکیر کړے وی لکه چه په شرعی مُنکَراتو بانـدے کولے شی-

امام ابن عبدالبرؒ په خپل کتاب جامع العلم کښې دَ دے معاملے متعلق دَ تیرو عالمانو دَ سنتو په باره کښې داسے فرمائی:-

عن یحیٰی بن سعید قال ما برح اهل الفتوٰی یفتون فیحلّ هذا ویحرم هذا فلا یری المُحَرِّمُ اَنَّ المُحِلَّ هلك لتحلیله ولا یری المُحِلّ انّ المُحَرِّمَ هلك لتحریمه۔

(جامع بیان العلم ص۸۰)

" یحیٰی بن سعید فرمائی چه همیشه اهلِ فتوٰی فتوٰی ورکوی یو سړے په هغه شی کښې چه نص په کښې نه وی یو شے په خپل اجتهاد سره حلالوی دویم ئے حراموی لیکن نه حرام کونکے داګنړی چه چا دَ حلالو فتوی ورکړے ده هغه هلاک او ګمراه شه - او نه حلالونکے دا ګنړی چه چا دَ حرامو فتوٰی ورکړے ده هغه هلاک او ګمراه شه "

**ضروري خبردارے**

دا تولے خبرے په هغه اجتهاد کښې دي چه د شریعت د اجتهاد اُصولو لاندے وي، چه د دے اولنے شرط دا دے چه اجتهاد صرف په هغه مسئلو کښې کولے شي چه د هغې متعلق په قرآن او حدیث کښې فیصله موجوده نه وي۔ یا دا سے فیصله دا سے مُبهمه وي چه تفسیر ونه ئے مختلف کیدے شي۔ یا د یو څوا یا تو نو یا روایتونو نه دوه متضاد (د یو بل مخالف) څیزونه کښل کیدلے شي۔ په دا سے موقعو کښې صرف هغه خلقو ته د اجتهاد کولو اجازت دے په چا کښې چه د اجتهاد د شرطونه موجود وي۔ مثلاً د قرآن او حدیثو متعلق په ټولو علومو او فنونو کښې مکمل مهارت لري، په عربۍ ژبه کښې مکمل مهارت لري، د صحابو او تابعینو د اقوالو او اٰثارو نه پوره خبردارے لري وغیره۔ نو کوم سړے چه په یو منصوصه (چه د قرآن یا حدیث واضح دلیل په کښې وي) مسئله کښې خپله رائے چلوي دغه اجتهادي اختلاف نه دے۔

دغه شان چه د اجتهاد د شرطونه په چا کښې موجود نه وي د دهٔ اختلاف ته اجتهادي اختلاف نه شي ویلے۔ د دهٔ قول په مسئله هیڅ اثر نه پریباسي۔ لکه چه نن صبا ډیرو تعلیمیافته خلقو دا آوز پیدا لی دی چه په اسلام کښې اجتهاد هم یو اُصول دے او په هغې مسئلو کښې چه شرعي نص په کښې موجود دے خپله رائے چلول شروع کړي دي۔ په کومو کښې چه مجتهد امام لره هم د خبرې کولو حق نیشته۔ او د لته خو د اجتهاد د شرطونه څهٔ کوے چه نفس د دین علم ورسره هم نه وي۔ (پناه غواړم په خدائے سره)۔

---

يَوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوهٌ وَتَسْوَدُّ وُجُوهٌ ج فَأَمَّا الَّذِينَ

په کومه ورځ چه سپین شي بعضے مخونه او تور شي بعضے مخونه پس کوم خلق چه

اسْوَدَّتْ وُجُوهُهُمْ قف أَكَفَرْتُمْ بَعْدَ إِيمَانِكُمْ

تور شو مخونه د دوي - دوي ته به او ویلے شي چه اے تا سو کافر شوئ پس د ایمان نه.

فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿١٠٦﴾ وَ

اوس او څکئ عذاب په بدله د هغې کفر کولو کښې - او

اَمَّا الَّذِيْنَ ابْيَضَّتْ وُجُوْهُهُمْ فَفِيْ رَحْمَةِ اللّٰهِ ؕ

کوم خلق چه سپین شو مخونه د دوی پس په رحمت کښې دی د الله -

هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿١٠٧﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا

او دوی به پدے کښې همیشه وی - دا حکمونه د الله دی مونږ ئے اوروو

عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ؕ وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِيْنَ ﴿١٠٨﴾

تا ته ټهیک ټهیک - او الله ظلم کول نه غواړی په مخلوق باندے -

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ

او خاص د الله دی ټول هغه چه دی په آسمانونو کښې او هغه چه دی په زمکه کښې - او خاص الله طرف ته

الْاُمُوْرُ ﴿١٠٩﴾ ع

واپسی ده د هر کار -

١١ ع ٨ ٢

## لنډ تفسیر

په هغه ورځ (یعنے د قیامت په ورځ) چه بعضے مخونه سپین (او روښانه) شی او بعضے مخونه تور (تیاره) شی پس د کوم مخونه چه تور شو دوی ته به او ویلے شی چه آیا تاسو خلق کافر شوی وئے د خپل ایمان راوړو نه پس هنو (اوس) سزا او څکئ په سبب د خپل کفر سره او د چا مخونه چه سپین شوی وی دوی به د الله په رحمت (یعنے جنت) کښې (داخل شوی) وی (او) دوی به په دے کښې همیشه وی دا (کوم چه بره ذکر شو) د الله تعالیٰ آیاتونه دی

کوم چه صحیح صحیح مونږ په تاڅرګندوو (دا دے نه څوګ بره مضمون صحیح کیدل معلوم شو) او الله تعالیٰ په مخلوقات باندے ظلم کول نه غواړی (پس کومه سزا چه ئې د چا د پاره تجویز کړے ده هغه بالکل مناسب ده لکه چه دا مخکښے ذکر شوی تجویز مناسب کیدل معلوم شو۔) او خاص د الله تعالیٰ ملکیت دے څه چه هم په اسمانونو او زمکه کښے دے (پس چه هر کله ټول ملکیت د هغه دے نو په دے ټولو باندے د هغه حکم منل واجب وه۔ د دے نه دا خبره ثابته شوه چه هر شے د هغه په ملکیت کښے دے نو د هغه حکم منل واجب دی) او خاص الله طرف ته به ټول مقدمے واپس کړے شی (بل هیڅ څوک به د اختیار خاوند نه وی)۔

# معلومات او مسئلے

**د مخ د سپینوالی او تور والی نه څه مراد دے؟** د مخ د سپینوالی او تور والی ذکر په قرآن شریف کښے په ډیرو ځایونو کښے راغلے دے مثلاً: وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ وُجُوْهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ؛ (زمر) وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ مُّسْفِرَةٌ ضَاحِكَةٌ مُّسْتَبْشِرَةٌ وَّوُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ عَلَيْهَا غَبَرَةٌ تَرْهَقُهَا قَتَرَةٌ۔ (عبس) وُجُوْهٌ يَّوْمَئِذٍ نَّاضِرَةٌ اِلٰى رَبِّهَا نَاظِرَةٌ (قیامة)۔

په دے ایاتونو کښے د یو معنیٰ ډیر الفاظ ذکر شوی دی یعنے "بیاض" او "سواد"؛ غبرة؛ قترة؛ او نضرة؛ د جمهورو مفسرینو په نزد د سپینوالی نه مراد د ایمان د نور سپینوالے دے۔ یعنے د مومنانو مخونه به د ایمان په نور سره روښانه او د ډیرے خوشحالئ نه به خندان او خوشحاله وی۔ او د تور والی نه مراد د کفر تور والے دے۔ یعنی د کافرانو په مخونو باندے به د کفر تور والے خور شوے وی او د پاسه به پرے د فسق فجور تیرے راخورے وی چه بنه ئے به تورا و په تیاره کښے کړی وی۔

**تور و مخونو والا او سپینو مخونو والا کوم خلق دی؟** د دے خلقو په تعین (مقرر تیا) کښے د تفسیر د عالمانو ډیر قولونه دی حضرت ابن عباس فرمائی چه د اهل سنتو مخونه به سپین وی او د بدعتیانو مخونه به تور وی حضرت عطاءؒ فرمائی چه د مهاجرینو او انصارو مخونه به سپین وی

او دَ بنی قریظه او بنی نضیر مخونه به تور وی (قرطبی)

امام ترمذیؒ دَ حضرت ابوامامهؓ نه یو حدیث نقل کړے دے چه دَ دے نه مراد خوارج دی - یعنے تور مخونه به دَ خوارجو وی او سپین مخونه به دَ هغه خلقو وی چا لره چه دوی قتل کړی۔ "فقال ابوامامة کلاب النار شر قتلی تحت ادیم السماء وخیر قتلی من قتلوه ثم قرء، یَوْمَ تَبْیَضُّ وُجُوْهٌ وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ"؛ دَ ابوامامه نه چه کله تپوس او شه چه تا دا حدیث دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه آوریدلے دے نو ده په جواب کښے په شمار سره او وے چه که دَ حضورؐ نه ما اوۀ پیرے دا حدیث نه وے آوریدلے نو ما به دا نه وَه بیان کړے - (ترمذی)

حضرت عکرمهؓ فرمائی چه تور مخونه به دَ اهل کتابو دَ هغه خلقو وی چه دَ حضور صلے الله علیه وسلم دَ راتلو نه اول ئے دَ دوئ تصدیق کوَ لو. لیکن کله چه دوئ راغلو نو په ځائے دَ دے چه دَ دوی تائید اومدد ئے کړے وے اُلٹا دروغژن کول ئے شروع کړه - (تفسیر قرطبی)

دَ دے ذکر شوو اقوالو نه علاوه نور هم ډیر اقوال دی لیکن په دے ټولو کښے دَ یو بل سره هیڅ ټکره نیشته - دَ ټولو مطلب یو دے - امام قرطبی په خپل تفسیر کښے دَ آیات؛ "یَوْمَ تَبْیَضُّ وُجُوْهٌ وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ"؛ متعلق فرمائی چه دَ مخلصو مومنانو مخونه به سپین وی - لیکن دَ دوی نه علاوه دَ هغو ټولو مخونه به تور وی چا چه په دین کښے تغیر او تبدیل کړے وی خواه که دوی مرتد او کافر شوی وی او که نفاق ئے په خپلو زړونو کښے پټ ساتلے وی دَ دے ټولو سره به دغه معامله اوُ کړے شی (تفسیر قرطبی)

**یو ضروری فائده** الله تعالیٰ په "یَوْمَ تَبْیَضُّ وُجُوْهٌ وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ"؛ کښے سپینوالے په توروالی وړُمبے کړو - لیکن "فَاَمَّا الَّذِیْنَ اسْوَدَّتْ وُجُوْهُهُمْ" کښے ئے تور والے په سپینوالی وړُمبے کړو - حال دا دے چه دَ ترتیب تقاضا دا وه چه سپینوالے ئے دلته وړاندے کړے وے دَ دے ترتیب دَ اُلټه کولو نه دا سے معلومیږی چه الله تعالیٰ خپل دَ پیدا

کولو مقصد طرف ته اشاره کړې ده. دغه مقصد په خپل مخلوق باندې رحمت کول دي. نه چې عذاب. په دې وجه دَ ټولو نه اوّل الله تعالیٰ دَ سپینو مخو بیان اوکړو چې دَ الله دَ رحمت او ثواب مستحق دي دَ دینه پس کې دَ تورمخو ذکر اوکړو چې دَ عذاب لائق دي. دَ دې نه پس الله تعالیٰ دَ ایات په اخر کښې: فَفِي رَحْمَةِ اللهِ: سره دَ خپل لوئے رحمت ذکر اوکړو په مینځ کښې کې دَ تورمخو، چې په دې کښې ئې دَ خپل بے حسابه رحمت طرف ته اشاره کړې ده چې مخلوق یعنی بنی ادم الله تعالیٰ دَ دې دَ پاره نه دې پیدا کړی چې عذاب ورلوره ورکړی او دَ خپل عذاب ښکاره کولو نښه ئې جوړه کړی، بلکه دَ دې دَ پاره ئې پیدا کړی دی چې ځما دَ بے حسابه رحمت نه فائده واخلي.

دوېمه فائده داده چې دَ سپینو مخو په باره کښې ارشاد دے چې دوی همیشه دَ الله تعالیٰ په رحمت کښې به وي. حضرت ابن عباس رضی فرمائی چې دَ رحمت نه مراد دلته کښې جنّت دے. دلته هم په ظاهره سره دَ جنت نه په رحمت سره په تعبیر کولو کښې داحکمت دے. چې بنی ادم خواه څومره پرهیزګار او عبادت ګوټکے ولے نه وي جنّت ته به محض دَ الله تعالیٰ په رحمت سره ځي. ځکه چې عبادت کول هم دَ انسان خپل ذاتی کمال نه دے بلکه دَ دے قدرت او طاقت هم دَ الله دَ طرف نه ورکړے دی. نو په دے وجه په عبادت سره جنّت ته داخلیدل ضروری نه دی. بلکه جنت ته به داخلیدل دَ الله تعالیٰ په رحمت سره وي. (تفسیر کبیر)

درېیمه فائده داده چې الله تعالیٰ دَ: فَفِي رَحْمَةِ اللهِ: نه پس: هُمْ فِيهَا خٰلِدُونَ: اوفرمایل دائے او خوده چې مؤمنان دَ الله تعالیٰ په کوم رحمت کښې وي، دغه به دَ دوی دَ پاره عارضی نه وي. بلکه دَ همیشه همیشه دَ پاره به وي. دَ دوی نه به چرته دا نعمت ختمولے یا کمولے نه شی. دَ دے په مقابله کښې ئې دَ تورمخو دَ پاره دا خبره ښکاره نه کړه چې دوی به په دغه حال کښې همیشه وي.

:فَذُوقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُونَ: | بنی ادم سزا خاص دَ خپلو کړنو نو موجي

کښې ئے اشاره او فرمایله چه دَ نن داعذاب ځما دَ طرف نه دے. بلکه دا تاسو په خپله ګټلے دے او دَ هغې عملونو بدله ده کوم چه تاسو په دنیا کښې کړې دی - ځکه چه په حقیقت کښې دَ جنت نعمتونه او دَ دوزخ عذابونه زمونږ ه دَ عملونو بدل شوی شکلونه دی - او په دے خبره دَ پو هولو دَپاره ئے په اخر کښې داځما او فرمایل: وَمَا اللّٰهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِينَ؛ يعنى الله تعالىٰ په خپلو بندګانو باندے دَ ظلم کولو هیڅ اراده نه لری - عذاب او ثواب هرڅهٔ چه دی عینِ انصاف او دَ رحمت او حکمت مقتضا ده -

---

كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ

تاسوئے غوره په ټولو امتونو کښې چه را او لیږلے شو په عالم کښې حکم کوئے دَ ښو کارونو

وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ؕ وَلَوْ اٰمَنَ

او منع کوئے دَ بدو کارونو نه او ایمان راوړئ په الله تعالیٰ باندے - او که ایمان راوړے

اَهْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ ؕ مِنْهُمُ الْمُؤْمِنُوْنَ

اهل کتابو نو وابه دَ دوی دَپاره غوره وه - څهٔ دَ دوی نه مؤمنان دی

وَاَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿١١٠﴾

او اکثر په دوی کښې نافرمانه دی -

**دَ ایاتونو تړون** په تیر و ایاتونو کښې مسلمانانو تهٔ دَ ثابت قدم اوسیدو په ایمان باندے او دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر دَ خاص اهتمام او خیال ساتلو هدایت او خودلے وه - په دے ایات کښې ئے دَ دے خبرے زیات تاکید داسے کړے دے چه اُمتِ محمدی (علیٰ صاحبها الصلوٰة والسلام) لره چه الله پاک په ټولو امتونو غوره وَالے

ورکړې دے دَ دے لویه وجه هم دا صفتونه دی -

## لنډ تفسير

(اے دَ محمد صلے الله عليه وسلم امته) تاسو خلق (دَ ټولو مذهبونو دَ خلقونه) یو ښه جماعت یئ چه دغه جماعت دَ (عامو) خلقو دَ (نفع دَ صدا یت رسولو دَ پاره ظاهر کړے شوے دے) او نفع رسول چه دَ دے امت دَ ښهٔ والی او غوره والی وجه ده دَ دے صورت دا سے دے چه) تاسو خلق (دَ شریعت په مقتضا سره په ډیر اهتمام باندے) دَ نیکو کارونو خو ونه کوئے او دَ بد و نه منع کول کوئے (او په خپله هم) په الله تعالیٰ باندے ایمان راوړے ئے (یعنے په ایمان قائم او سئ، دلته په الله تعالیٰ باندے په ایمان کښے هغه ټولے عقیدے او عملونه داخل دی کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ طرفه نازل شوی دی) او که اهل کتاب (هم کوم چه ستاسو نه مخالفت کوی ستاسو په شان) ایمان ئے راوړے نو دَ دوی دَ پاره به زیاته غوره وه (او چه دوی به هم دَ اهل حقو په دے غوره جماعت کښے داخل شوی وُو، لیکن افسوس چه دوی ټول مسلمانان نه شو بلکه) په دوی کښے بعضے خو مسلمانان شو (کوموچه په نبی کریم صلے الله علیه وسلم باندے ایمان راوړو او په اسلام کښے داخل شو) او زیاته حصه په دوی کښے کافران دی (چه په خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم باندے ئے ایمان رانه وړو او دَ دوی په غوره امت کښے شامل نه شو)

## معلومات او مسئلے

**دامت محمدیؐ په امتونو کښے دغوره والی یو څو وجهے**

قرآن کریم دَ امت محمدیؐ په نورو امتونو دَ غوره والی څو وجهِ په ډیرو آیاتونو کښے بیان کړی دی دَ دے سلسلے دَ ټولو نه اهم آیات په سورت بقره کښے تیر شوے دے: وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا الاٰیة ؛ هلته دَ دے آیات تفسیر او په امتونو کښے دَ غوره والی لویه وجه دَ دے امت معتدل مزاجی

اوبیا ذکر ونه په صراحت کښې دَ دے امت دَ اعتدال تفصیل په پاره ع۲ ص
کښې بیان شویدے۔
په دے آیات کښې دَامت محمدؐی دَ نورو امتونو نه دَ غوره والی وجه دا بیان شوے ده چه دا امّت دَ الله مخلوق ته دَ نفع رسولو دَ پاره پیدا کړے شوے دے۔ او دَ دۀ دَ ټولو نه لویه نفع داده چه دَ الله پاک دَ مخلوق رُوحانی او اخلاقی اصلاح فکر دَ دے امت منصبی فریضه ده۔ او دَ تیرو ټولو امتونو نه زیات دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر مکمل والے دَ دے امت په ذریعه اوشه۔ اګرچه امر بالمعروف او نهی عن المنکر فریضه په تیرو امتونو باندے لازم وه۔ چه تفصیل ئے په صحیح احادیثو کښې ذکر دے۔ مګر اول خو په تیرو ډیرو امتونو کښې دَ جهاد حکم نه وُه په دے وجه دَ دوی امر بالمعروف صرف په ژبه او په زړه سره کیدے شه۔ په امت محمدی کښې ئے دریمه درجه دَ لاس او په قوت سره دَ امر بالمعروف هم ده چه په دے کښې دَ جهاد ټول اقسام هم شامل دی۔ او دَ حکومت په زور دَ اسلامی قوانینو نافذکول هم دَ دے جزء دے۔ دَ دے نه علاوه په تیرو امتونو کښې چه څنګه دَ دین نور ے ئنبے دَ عام غفلت په وجه ورکے شوے وے دغه شان دَ امر بالمعروف فریضه هم بالکل ختمه شوے وه۔ او دَ امّتِ محمدؐی په باره کښې دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ اپیشین ګوئی ده چه: "په دے امت کښې به ترقیامته پورے داسے یوجماعت قائم وی چه دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر په فریضه اَدا کولو به قائم اوسی۔
دریم امتیازی صفت ئے دَ دے امّت: تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ: بیان کړے دے دلته داسوال پیدا کیږی چه په الله باندے ایمان خو دَ تیرو ټولو پیغمبرانو او دَ دوی دَ امتونو مشترک صفت دے نو بیا دائے دَ دوی امتیازی وجه په کومه بنا مقرر کړه۔
جواب ښکاره دے چه اصل ایمان خو په ټولو کښې مشترک دے مګر دَ کمالِ ایمان درجے مختلف دی۔ په دوی کښې امت محمدؐیه دَ چه کومه درجه

حاصله ده داده تیر وامتو نو په مقابله کښې یو خاص امتیاز لري -
او د آیات په آخر کښې چه ئې د اهل کتاب متعلق کوم او فرمایل چه په دوی کښې څه مسلمانان دي - د دوی نه مراد هغه خلق دي کوم چه په نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندے ایمان راوړے وه - لکه حضرت عبد الله ابن سلام وغیره شو -

لَنْ يَّضُرُّوْكُمْ اِلَّآ اَذًى ۭ وَاِنْ يُّقَاتِلُوْكُمْ يُوَلُّوْكُمُ

دوی هیڅ نه شي درانه ولے ستاسو مکر آزار ورله په ژبه سره او که ستاسو سره جنګ کوي نو

الْاَدْبَارَ ۣ ثُمَّ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿١١١﴾

شا کوي به - بیا به د دوی مدد نه شي کولے -

**د آیاتو نوټرون** په تیرو آیاتو نو کښې د اهل کتاب و د مسلمانانو سره د دشمنئ او دوی ته د دینی ضرر رسولو تدبیرو نه کول مذکور وو - په دے آیات کښې د مسلمانانو د پاره د دنیوی ضرر د تدبیرو نه کولو ذکر دے -

## لنډ تفسیر

دغه (اهل کتاب) به تاسو ته هر ګز ضررا و نه رسولے شي مګر لږ سپک شانتے آزار (یعنے په ژبه سره بد بے ردے ویل زړه خفه کول) او که دوی (د دینه زیات همت او کړی او) ستاسو سره جنګ کوي نو تاسو ته به شا کړي او به تختي بیا (د دینه زیاته به داوی چه) د هیڅ طرف نه به د دوی مدد هم او نه کړے شي -

## معلومات او مسئلے

دا د قرآن پیشین ګوئي داسے پوره شوه چه اهل کتاب د نبوت په زمانه کښې

په یوه موقع هم په صحابه کرامو چه کړے مضمون خاص مخاطب وو غالب نه
وو راغلي - او خاص بیا یهود چه د دوی قبیلے په خصوصیت سره په دے
ځائے کښے ذکر دی چه دوی به د اصحابو په مینځ کښے جدائي هم غورزه وله
د دوی انجام دا شو چه دغه خلق ذلیل او خوار شو په بعضو جز یه
او لګیده بعضے قتل شو بعضے جلا وطن شو په را تلونکی ایاتو کښے د دے مضمون تکمله ده.

ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اَيْنَمَا ثُقِفُوْٓا اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ

غورزه ولے شوے دے په دوی باندے ذلت کوم ځائے چه اولیدے شی مګر په لاس وراچولو د

اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَضُرِبَتْ

الله سره او په لاس وراچولو د خلقو سره او او ګرځیدلی دوی غُصّه د الله پاک او لازم کړے شو

عَلَيْهِمُ الْمَسْكَنَةُ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّھُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ

په دوی باندے حاجتمندی - دا په دے وجه چه دوی انکار کړے دے د الله

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ الْاَنْۢبِيَاۗءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۭ ذٰلِكَ بِمَا

پاک د ایاتونو نه او قتل کړی ئے دی پیغمبرانو لره په ناحقه سره دا په دے وجه چه

عَصَوْا وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ﴿١١٢﴾

نافرماني او کړه دوی او د حد نه اوړوا ته -

## لنډ تفسیر

چاپېر شوے دے په دوی باندے ذلت کوم ځائے چه هم دوی بیاموندے
شي مګر هاں (په دوه ذریعو سره دوی د ذلت نه خلاصیدے شی)
یو د داسے ذریعے په سبب چه د الله د طرف نه ده او بل د داسے ذریعے په سبب

چه د بني اسرائیلو د طرف نه دوه (د الله د طرفه نه ذریعه داده چه څوک کتابي غیرمسلم د الله تعالیٰ په عبادت کښې په خپله طریقه سره داسې مشغول او مصروف وي چه د مسلمانانو سره په جنګ جګړه نه وي نو دغه به په جهاد کښې نه شي قتلولې اګرچه د دوئ دا کافرانه عبادت به د دوئ په اخرت هیڅ په کار نه راځي او دغه شان نابالغ کتابي وړوکي یا ښځه ده چه دوی هم د الله په امن کښې دي د اسلامي شریعت په بنا سره دوی هم په جهاد کښې نه شي قتلولې - او د بني اسرائیلو د طرف نه ذریعه معاهده او صلح ده - کومه چه د مسلمانانو سره اوشي - ځکه چه په اسلامي شریعت کښې چه کچا سره څهٔ معاهده د صلح اوشي هغه هم په امن دې د هغه قتل جائز نه دې) او مستحق شو (دا خلق) د الله تعالیٰ د غضب ادا وغورزه ولې شو په دوی باندې ذلت (چه د دوی په طبیعتونو کښې هم مستقل مزاجي پاتې نه شوه دا رنګه جزیه او خراج مسلمانانو ته ورکول هم په ذلت او مسکنت کښې داخل دي دا ذلت او غضب) پرې ځکه اوشو چه (دا خلق) منکر کیدل د الله تعالیٰ د احکامونه او قتل کول ئې پیغمبرانو لره (دا سې چه دغه قتل په خپله کړ دوی په نزد هم ناحق وه) او دا ذلت او غضب پرې ځکه اوشه چه دوی حکم اونه مانه او د فرمانبردارئ د دائرې نه وتل -

## معلومات او مسئلې

**په یهودو باندې د ذلت او غضب مطلب، په موجوده اسرائیلي حکومت شبه او د هغې جواب.**

دا بحث د سورت بقره په ایات ٦١ کښې په تفصیل سره تیر شوې دې چه په هغې کښې هیڅ استثناء نیشتې د ایات اٰل عمران د: اِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللّٰهِ وَحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ: د استثناء تحقیق هلته تیر شوې دې - دا بحث هلته اوګوره - دومره خبره مکرر دلته بیا د یادولو قابله ده چه د کشاف د تفسیر مطابق چه استثناء متصله مقرر شي نو د ایات معنی به دا شي چه په یهودو به ذلت او خواري همیشه وي مګر په دوه صورتونو کښې دوی د دې ذلت او خوارئ نه بچ کیدې شي یو د الله عهد

مثلاً نابالغ بچي يا ښځه د الله په حکم سره د قتل وغيره نه په امن دي - دوؤيم
بِحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ: يعنې د خلقو سره د صلح د معاهدې په بنا باندې د دوی
ذلت او خواری به ښکاره نه وی - دلته د قرآن الفاظ: بِحَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ:
دی چه مؤمن او کافر ټولو لره شامل دی - په دې کښې دا صورت هم داخل دې
چه دا خلق د مسلمانانو سره د صلح معاهده او کړی بې فکره شی - او د دې
احتمال هم دې چه د نورو غير مسلمو طاقتونو سره د صلح معاهده او کړی
محفوظ شی - لکه چه د اسرائيلو د موجوده حکومت صورت دې - چه هر يو
د عقل خاوند په دې پوهه دې چه د اسرائيلو حکومت په حقيقت کښې د
يورپ والو شريکه چاؤنړئ ده - د دوی چه هرڅهٔ قوّت په نظر راځی دا
ټول د نورو په خپو ولاړ دی - که امريکه، برطانيه، روس وغيره نن د
دوی نه خپل لاس ونه اوچت کړی نو دوی يوه ورځ هم خپل وجود قائم او نه ساتلې شی والله اعلم

لَيْسُوْا سَوَآءً ؕ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اُمَّةٌ قَآئِمَةٌ يَّتْلُوْنَ

دوی ټول برابر نه دی - په اهل کتاب کښې يوه فريقه ده په نيغه لاره باندې لولی

اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ ﴿١١٣﴾ يُؤْمِنُوْنَ

آيا تونه د الله د شپې په وخت کښې او دوی سجدې کوی - ايمان راوړی

بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ

په الله باندې او د قيامت په ورځې او حکم کوی د ښې خبرې او منع کوی

عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُسَارِعُوْنَ فِى الْخَيْرٰتِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ مِنَ

د ناکاره کارونو نه - او منډې وهی په نيکو کارونو کښې - او دغه خلق دی

الصّٰلِحِيْنَ ﴿١١٤﴾ وَمَا يَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ

نيک بخت او څهٔ چه کوی دغه خلق نيک کار هرګز به ئې ناقدري او نه شی - او الله

عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ﴿١١٥﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ

خبردے په پرهیزګارانو۔ هغه خلق چه کافر شو هرګز به پکار رانه شی دوی لره

اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ وَاُولٰٓئِكَ

د دوی مالونه او نه اولاد د الله په مخ کښے هیڅ او دغه خلق اوسیدونکی

اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿١١٦﴾ مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ

دی په اور د دوزخ کښے دوی به پدے اور کښے همیشه اوسی۔ څهٔ چه خرچ کوی دوی

فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ

په دے ژوند د دُنیا کښے د دے مثال په شان د یو هوا دے چه په دے کښے وی یخنی اورسی

حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ؕ وَمَا ظَلَمَهُمُ

فصل د یو قوم ته چه دوی په ځان ظلم کړے وی بیا هغه هلاک (تباه) کړی۔ او الله په دوی

اللّٰهُ وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿١١٧﴾

ظلم او نه کړهٔ لیکن دوی په خپل ځان ظلم اوکړو۔

**د ایاتونو تړون** بره د اهلِ کتابو متعلق بیان شوے وُه چه په دوی کښے څهٔ خلق مسلمانان هم دی او زیات کافر دی۔ د دے مضمون زیات تفصیل په دے ایاتونو کښے دے:-

## لنډ تفسیر

دا (اهل کتاب) ټول برابر نه دی (بلکه) په دے اهلِ کتابو کښے یو جماعت هغه هم دے کوم چه (په دینِ حق) قائم دی (او) د الله ایاتونه (یعنی قرآن) د شپے په وختونو کښے لولی او دوی مونځ هم کوی (او) په الله او په ورځے

دَ قیامت (پوره پوره) ایمان لری او (پوره پوره) نیک کارونه کوی او کوی او د بد کارونو نه منع کوی او د نیک کارونو ته منډې وهی او دا خلق (د الله په نزد) په نیکو خلقو کښې (شماره کړے شی) او دا خلق چه کوم نیک کار کوی د هغې (د ثواب) نه به محرومه نه کړے شی او الله تعالیٰ تقوی دار ولره خه پیژنی (او دا خلق تقوی دار دی نو د وعدے مطابق د جزا لائق دی) بے شکه کوم خلق چه کافر شو هرګز به پکار را نه شی که د دوی مال او نه اولاد د الله تعالیٰ (د عذاب) په مقابله کښې یوه ذره هم او دغه خلق دوزخ والا دی (او) دوی به همیشه همیشه په دے کښې اوسی (چرته به ترې خلاصے نه وی) هغه (کافران) چه خرچ کوی په دے ژوند د دنیا کښې د دے حالت (په بر باد او ضائع کیدو کښې) د دے حالت په مثل دے چه یوه هوا وی په دے کښې تیزه یخنی (یعنی یخنی) وی (او) هغه اولګی د داسے خلقو په فصل چا چه (په بد دینئ سره) خپل نقصان کړے وی پس هغه (هوا) دغه (فصل) لره بر باد کړی (دغه شان د دے خلقو خرچ کول په آخرت کښې ټول ضائع دی) او (په دے ضائع کولو کښې) الله تعالیٰ په دوی (هیڅ) ظلم نه کړے لیکن دوی په خپله (د کفر په کولو سره چه د قبلولو نه منع کونکے دے) خپلو ځانو نو ته نقصان رساوه (که دوی کفر نه کولے نو د دوی ټولے نفقے به نه ضائع کیدے)۔

---

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ

اے ایماندارو مه جوړه وئ رازدار چا لره د خپلو نه سوا دوی

لَا يَأْلُوْنَكُمْ خَبَالًاؕ وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْۚ قَدْ بَدَتِ

کمی نه کوی ستاسو په خرابئ کښے - دوی خوشحالوی خوموره چه تاسو په تکلیف کښے يئ - ښکاره کیدئ

الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْۚۖ وَمَا تُخْفِیْ صُدُوْرُهُمْ

دشمنی د دوی د ژبو نه او څه چه پټ دی د دوی په زړونو کښے هغه دے ډ

أَكْبَرُ ۚ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْآيَاتِ ۖ إِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۱۱۸﴾

ډېر زيات دي - مونږه خو دلي دي تاسو ته پتې که په تاسو کښې عقل وي

هَا أَنْتُمْ أُولَاءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ وَتُؤْمِنُونَ

واورئ تاسو خلق د دوي دوستان يئ او دوي ستاسو دوستان نه دي او تاسو

بِالْكِتَابِ كُلِّهِ ۚ وَإِذَا لَقُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا ۚ وَإِذَا خَلَوْا

ټول كتاب بونه منئ - او كله چه ستاسو سره ملاويږي نو وائي مونږ مسلمانان يو - او كله چه

عَضُّوا عَلَيْكُمُ الْأَنَامِلَ مِنَ الْغَيْظِ ۚ قُلْ مُوتُوا بِغَيْظِكُمْ ۗ

ځانله كيږي نو چيچي په تاسو باندې ګوتې د غصې نه - ته اووايه چه مړه شئ تاسو په خپله غصه

إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿۱۱۹﴾ إِنْ تَمْسَسْكُمْ

كښې - الله ته ښې معلومې دي د زړه خبرې - كه تاسو ته اورسي څه

حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَفْرَحُوا بِهَا ۖ

خېګړه نو بده لږي په دوي - او كه تاسو ته اورسي څه بدي نو خوشحاليږي په دې سره -

وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ

او كه تاسو صبر اوكړئ او ځان اوساتئ نو هيڅ به وران نه شي ستاسو د دوي

شَيْئًا ۗ إِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿۱۲۰﴾ ع ۱۲ ۱۱ ۳

په فريب سره - بې شكه څه چه دوي كوي ټول د الله په وس كښې دي -

## لنډ تفسير

اے ايمانداره د خپلو (خلقو) نه سوا (د بدمذهب والو سره) د هيڅ چا سره

(د محبت په سلوک کښې) خاص د ارمه جوړه وئ (ځکه چه) دغه خلق ستاسو
سره په فساد کولو کښې هيڅ موقع د لاسه نه غورزه وی را و په زړهٔ سره هم)
ستاسو د نقصان (دنيوی او دينی) آرزو لری (زړونه ئې ستاسو په باره کښې
دومره د بغض نه ډک دی چه) واقعی (دغه) بغض (بعض وخت) د دوی د خولے
نه (بے اختياره په خبرو او ترو کښې) ښکاره کيږی او څومره چه د دوی په
زړونو کښې دے هغه ډير زيات دے (چنانچه) مونږ (د دوی د دشمنئ) نښې
(نښانے) ستاسو په وړاندے ښکاره کړے که تاسو عقل لرئ (نو په دے يقينی
نښو سره ئې او پيژنئ) هان (پوهه شئ) تاسو داسے يئ چه د دے خلقو سره
(سلوک د) محبت ساتئ او دا خلق ستاسو سره هم کړ محبت نه ساتی (نه په زړه
سره نه په سلوک سره) حال دا دے چه تاسو ټول (آسمانی) کتابونو ايمان او لرئ (په
دے کښې د دوی کتابونه هم شامل دی۔ او دوی ستاسو په کتاب يعنے په قرآن
ايمان نه لری مګر دوی سره ستاسو د دے ايمان نه هم ستاسو سره محبت نه
ساتی او تاسو سره د دوی د نشتوالی د ايمان هم د دوی سره محبت ساتئ)
او (تاسو د دوی په دے ظاهری دعوے د ايمان شبه مه کوئ چه دوی هم
زمونږ په کتاب ايمان لری ځکه چه) دا خلق کله چه ستاسو سره ملاويږی (نو
صرف تاسو ته د ځان خودو د پاره په منافقانه طور سره) نو وائی چه مونږ ايمان
راوړے دے او کله چه (ستاسو نه) جدا شی نو په تاسو خپلے ګوتے چيچی د غصے نه
او د غضب نه۔ دا کنايه ده د ډيرے غصے نه) ته (دوی ته) او وايه چه تاسو مړه شئ
په خپله غصه کښې (مراد دا دے چه که تاسو مړهٔ هم شئ خو ستاسو مقصد به
پوره نه شی) بے شکه خدائے تعالیٰ ښه پيژنی د زړونو خبرے (په دے و چه
د دے خلقو په زړونو کښې چه کوم رنج او غبار او دشمنی ستاسو د طرفه نه ډکه
شوے ده يعنے زړونه ئې ترے ډک دی هغه ئې هو له ښکاره کړه او د دوی حال
دا دے چه) که چرے تاسو ته څهٔ ښهٔ حالت راپيښ شی (مثلاً د يو بل سره په اتفاق
يئ، په نورو خلقو درته غلبه حاصله شی) نو د دوی د پاره د رنج او غم سبب وی
(چه سبب ئې حد درجه حسد دے) او که تاسو ته څهٔ ناخوښه حالت راورانده
شی نو دوی (چير) خوشحاليږی (چه په دے سره د دوی کم نصيبی ثابته ده،

پس هر کله چه د دوی دا حالت دے نو دوی د دے خبرے کله قابل دی چه د دوی سره دوستی یا د دوستئ سلوک او کړے شی۔ د دوی د دے ذکر شوی حالا تو د اور یدو نه پس په زړونو کښے د دے خیال پیدا کیدل څهٔ لرے خبره نه وه چه دا خلق مسلمانانو ته په ضرور د رسولو کښے څه کمے نه کوی نو په دے وجه په راتلونکی آیات کښے مسلمانانو ته د تسلئ د پاره او فرمایل) او که تاسو ثابت قدمئ او تقوٰی سره اوسئ نو د دے خلقو ته بیړ و نه به تاسو ته یوه ذره هم ضرر او نه د رسولے شی (تاسو د دوی نه بے فکره اوسئ نو په دُنیا کښے به دوی ته دا ناکامی نصیب شی او په الخرت کښے به د دوزخ عذاب وی ځکه چه) بے شکه الله تعالیٰ د دوی په عملونو (علمی) احاطه لری (د یو عمل زمونږ نه پټ نه دے نو په دے وجه هلته د سزا نه د بچ کیدو د پاره د څهٔ حیلے حوالے هیڅ گنجائش نشته دے)

# مَعلومَاتُ اوَمَسَئلے

د دے آیات شان نزول دا دے چه د مدینے په اطراف کښے کوم یهودیان آباد وُو د دوی سره د آوس او د خزرج د خلقو د پخوا زمانے نه دوستی را روانه وه۔ جُدا جُدا هم د دے قبیلو د خلقو به د دے خلقو سره دوستانه تعلقات وُو۔ او د قبیلو په حیثیت سره هم دوی او یهود د یو بل ملګری او حلیف (ملګوی) وُو۔ نو کله چه د آوس او خزرج قبیلے مسلمانے شوے نو د دے نه پس به هم دوی د یهودو سره خپل پخوانی تعلقات پالل۔ او د دوی خلق به د خپلو یهودی دوستانو سره هم په دغے محبّت او خلوص سره مِلاویدل۔ لیکن د یهودیانو چه د خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم سره او د دوی د راوړی دین سره کومه دشمنی وه۔ په دے وجه دوی د چا دا سے سړی سره د خلوص محبت سا تلو ته تیار نه وُو چا چه دا دعوت قبول کړے او مسلمان شوے وی۔ دوی په ظاهر کښے د انصار و سره خو هغه تعلقات ساتل کوم چه د وړاندے نه راروان وُو۔ لیکن په زړهٔ کښے اوس دوی د هغو دشمنان شوی وُو۔ او د دے ظاهری دوستئ نه به ئے ناجائز فائده اغسته

هغه ختبه په دې کوشش کښې وُو چه په څهٔ شان سره د مسلمانانو په جماعت کښې فتنه او فساد راپورته کړي - او د دوي راز معلوم کړي د دوي دشمنانو ته ئې اورسوي - الله تعالیٰ دلته د دوي د دې منافقې د روِش نه مسلمانانو ته د محتاط اوسیدو هدايت کوي چه د دوي نه په احتياط کښې اوسئ دوي منافقان دي ستاسو د زړهٔ و نو رازونه معلومول ستاسو دشمنانو ته ئې رسوي - نو يو ډير اهَم او ضروري ضابطه بيانوي:- چه

: يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا بِطَانَةً مِّن دُونِكُمْ : يعنې اے ايماندارو د خپلو يعنې مسلمانانو نه علاوه بل چالوه جوړ او راز دار دوست مه جوړوئ- د : بِطَانَة : معنی ده : ولی : دوست : رازدار : او پټه رازلرونکے : د کپړے د ننه استر کوم چه د بدن سره پيوست وی هغهٔ ته هم : بطانه : وائي واد بطن نه مشتق دے چه د ظهر خلاف د دے استعمال په هرشی کښے کيږي - د پاسه طرفته : ظهر او دننه طرف ته : بطن : وائي - او د کپړے د پاسه حصے ته : ظهاره : او دننه او لاندے حصے ته کومه چه د جسم سره پيوست وی لکه استر وغيره ته : بطانه : وائي - لکه څنګه چه مونږه په خپله ژبه کښے وايو چه هغهٔ خو د دهٔ جامه يعنې اغوستن او لاندے ستونے دے - يعنې ډير ئې خوږښ دے - دغه شان د : بطانة الثوب : نه په طور د استعارے : ولي : دوست : او معتمد چه د زړهٔ د خبرو رازدار وی د دهٔ د پاره د : بطانه : لفظ استعمالولے شي - د عربي لغت مشهور کتاب : لسان العرب : کښے د بطانه معنی داسے شوے ده : چه بطانه هغے دوست ته ويلے شي چه د زړهٔ او رازدار دوست وی او د دهٔ په معاملو کښے دخل کونکے وی چه په خپلو معاملاتو کښے تر دے دے مشوره اخلی.

اصفهاني په مفردات القرآن کښے او قرطبي په خپل تفسير کښے هم دا معنیٰ بيان کړے ده چه مطلب ئې دا شه چه "بطانه" هغه سړی ته ويلے شي چالره چه رازدار، ولي، او دوست گڼړي - او دهٔ لره په خپلو معاملو کښے اعتماد کونکے او مشوره کونکے جوړه کړي -

نو په دے آيات کښے مسلمانانو ته حکم ورکړے شوے دے چه د خپلو مسلمانانو نه سوا هيڅ چالوه داسے د اعتماد او مشورے قابل مه جوړوئ چه دهٔ ته خپل

او دَخپل ملّت او حکومت راز ونه ښکاره کوئ - اسلام دَخپل عالمګیر سوری دَ لاندے چه کوم ځائے مسلمانانو ته دَغیرمسلمو سره دَحسن ردئ، خیرخواهئ، نفع رسوَلو او رواداری غیرمعمولی هدایات فرمایلی دی - او نه صرف زبانی هدایات بلکه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم په تولو معاملو کښے دے لره عملی رواج ورکړے دے هلته ئے دَحکمت مطابق دَمسلمانانو دَخپل تنظیم او دَدوی دَخاصو نښو دَحفاظت دَپاره دا احکام هم نافذ کړی دی - چه دَ اسلامی قانون دَباغیانو او منکرانو سره تعلقات دَیو خاص حد نه دَزیاتولو اجازت مسلمانانو ته نه شی ورکیدے حُکه چه دَدے نه افرادو او ملّت دواړو دَپاره خطرے ښکاره دی - او دا دا سے ښکاره، معقول، او مناسب او ضروری انتظام دے چه په دے سره دَافرادو او ملّت دواړو حفاظت کیدے شی - کوم غیرمسلم چه دَاسلامی حکومت اوسیدونکی وی یا دَمسلمانانو سره ئے څهٔ معاهده کړے وی دَ حقوی متعلق دَنبی کریم صلے الله علیه وسلم تعلیمات او دَدوی دَحفاظت دَپاره انتهائی تاکید اَت دَاسلامی قانون جزء دی - دَنبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے :-

مَنْ اٰذٰی ذِمِّیًا فَاَنَا خَصْمُهٗ وَ مَنْ کُنْتُ خَصْمُهٗ خَصَمْتُهٗ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ - (عن ابن مسعودؓ)

"چا چه یو ذمّی لره آزار کړو نو دَقیامت په ورځ دَ هغهٔ دَطرفه به زهٔ دعویدار جوړیږم او په کومه مقدمه کښے چه زهٔ دعوه داریم نو زهٔ به غالب یم."

په بل حدیث کښے فرمائی :-

مَنَعَنِیْ رَبِّیْ اَنْ اَظْلِمَ مُعَاهِدًا وَّلَا غَیْرَهٗ ، (عن علیؓ)

"زهٔ خپل رب منع کړے یم چه زهٔ په چا معاهد یا بل چا ظلم او کړم."

په یو بل حدیث کښے فرمائی :-

اَلَا مَنْ ظَلَمَ مُعَاهِدًا اَوِانْتَقَصَهٗ اَوْکَلَّفَهٗ فَوْقَ طَاقَتِهٖ اَوْ اَخَذَ مِنْهُ شَیْئًا بِغَیْرِ طِیْبِ نَفْسٍ مِّنْهُ فَاَنَا حَجِیْجُهٗ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ -

"خبردار شوک چه په غیرمسلم معاهد ظلم اوکړی یائے په حق کښے کمی اوکړی یا پرے دَ طاقت نه زیات بوجه واچوی یا دَدهٔ دَرضا نه بغیر ترے څهٔ شے واخلی نو دَقیامت

په ورځ به زه د ده وکیل یمه"۔

لیکن د دے تهولو مراعاتو سره سره ئے د مسلمانانو د خپل جماعت او ملت د حفاظت د پاره دا هدایات هم فرمائلی دی چه د اسلام او مسلمانانو دشمنانو لره خپل د زړه دوستان او راز داران او اعتماد کونکی مه جوړوئ۔

ابن ابی حاتم نقل کړے دے چه فاروق اعظم حضرت عمر بن الخطاب رضی الله تعالیٰ عنه ته او ویلے شو چه دلته یو غیر مسلم هلک دے چه ډیر ښه کاتب دے که هغه خپل میر منشی (رهید کلرک) جوړ کړئ نو ډیره غوره به وی۔ په دے باندے فاروق اعظمؓ اوفرمائیل :-

| قَدْ اِتَّخَذْتُ اِذًا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ۔ | "یعنی که زه دا سے اوکړم نو مسلمانان به پاتے کړم او د بل دین خلقو لره به خپل |
|---|---|

راز دار جوړ کړم او دا د قرآن د نص نه خلاف ده"۔

امام قرطبیؒ چه د پنځمے صدئ مشهور عالم او مفسر دے په ډیر افسوس او درد سره په مسلمانانو کښے د دے تعلیم د خلاف ورزئ او د دے د بدو نتیجو بیان داسے فرمائی :-

| وَقَدْ اِنْقَلَبَتِ الْاَحْوَالُ فِیْ هٰذِهِ الْاَزْمَانِ بِاتِّخَاذِ اَهْلِ الْکِتٰبِ کَتَبَةً وَّاُمَنَآءَ وَتَسَوَّدُوْا بِذٰلِكَ عِنْدَ جَهَلَةِ الْاَغْنِيَآءِ مِنَ الْوُلَاةِ وَالْاُمَرَآءِ۔ | "یعنی په دے زمانه کښے حالات داسے بدل شو چه یهودو او نصاراؤ لره رازداران او امینان جوړ کړے شو او په دے ذریعے سره هغوئ جاهلانو غنیا نو او امیرانو مسلط شو"۔ |
|---|---|

ننن هم په یو داسے حکومت کښے چه هغه په یو خاص نظریه سره قائم شوے وی۔ هلته هم په دے نوے زمانه کښے داسے سړے چه دغه نظریه نه قبلوی مشیر او معتمد نه شی جوړ ولے۔

په روس او چین کښے چا داسے سړی لره چه په کمیونزم باندے ایمان نه لری په ذمواره عهده باندے نه شی مقرر کولے۔ او دے د حکومت راز دار او مشیر نه شی جوړ ولے۔ د اسلامی حکومتونو د زوال قصے وا ورئ نو د زوال د نورو اسبابو سره ډیر به داسے هم ملاؤ شی چه مسلمانانو د خپلو

کاروبو رازدارا ومعتمد غیرمسلم جوړکړی وُه - دَعثمانی سلطنت په زوال کښے هم دَدے خبرے پوره دخل وُه -

په ذکرشوی آیات کښے دَدے حکم په دابیان کړے شوے ده: لَا یَاْلُوْنَکُمْ خَبَالًا الآیة: یعنے داخلق تاسوته په تکلیف او فساد رسولو کښے هیڅ کمے نه کوی. او تاسوته دَ درد رسید وآرزو لری - بعضے خو دَدوی دَ ژبو نه ښکاره کیږی او کومے خبرے چه دوی په خپلو زړونو کښے پټے ساتلی دی هغه ډیرے زیاتے دی - مونږ تاسوته ټینے ښکاره بیان کړی دی - که چرے تاسو دَ عقل نه کار اخستونکی یئے -

مطلب دادے چه مسلمانان خبره وَلے شی چه دوی دے دَ خپلو اسلامی رونړو نه سوا بل څوک رازدارا ومشیر نه جوړه وی - ځکه چه یهود یان وی او که نصارا، منافقین وی او که مشرکان یوه ډله هم ستاسو حقیقی خیر خواه نه شی کیدے - بلکه همیشه داخلق په دے کوشش کښے وی چه ستاسو بے وقوفه جوړکړی نقصان درته اورسوی او په دینی اودنیوی خرابو کښے تاسو اخته کړی - دَدوی آرزو داده چه تاسو په تکلیف کښے یئ - او په څه نه څه تدبیر سره تاسوته دینی یا دنیوی ضرر اورسی - کومه دشمنی یا ضورچه دَدوی په زړه و نو کښے دے هغه ډیر لوئے دے - لیکن ډیر کرته دَ دشمنی او غضب او غُصّے په وجه ډاګ په ډاګه هم داسے خبرے کوی چه دَ دوی دغه لویه دشمنی ترے په ډاګه کیږی دَ دشمنئ او حسد په وجه دَدوی ژبه په قابو کښے نه وی - پس دَ هوښیارسړی کار دا نه دے چه داسے دشمنان رازدار جوړکړی - خدائے پاک دَدوست دشمن ښیے او دَ دوستئ حکمونه خودلی دی په چا کښے چه عقل وی هغه به دَدے نه کار اخلی -

وَدُّوْا مَا عَنِتُّمْ: دا فقره دَ کافر ذهن پوره ترجمانی کوی په دے کښے یو ډیر لوئے او جوړ تعلیم دَدے خبرے راغے چه یو غیرمسلم په هیڅ حال کښے هم دَمسلمانانو حقیقی دوست او خیرخواه نه شی جوړیدے -

دَ دینه پس ئے اوفرمایل: هَآ اَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ الآیه: یعنے تاسو داسے یئ چه دَدوی سره دوستی او محبت ساتئ او دوی ستاسو سره یوه ذره

محبت نه ساتی ، او تاسو تول کتابو نه منئ ، او دوی چه کله ستا سو سره ملاویږي نو وائي چه مونږه مسلمانان يو او کله چه ځانله کیږي نو خپلې گوتې د غصې نه په تاسو باندې چیچي ، او وایه چه تاسو مړه شئ د غصې نه بې شکه الله تعالیٰ د زړه و نو خبر ولره ښه پیژني - یعنې دا څومره بې ځایه خبره ده چه تاسو د دوی سره د دوستئ سلوک کوئ او دوی ستاسو دوستان نه دي بلکه دوی ستاسو نه یلې په یکوي - او عجیبه خبره خو دا ده چه تاسو تول اسماني کتابو منئ خواه هغه د هر قوم چه وي او په هر زمانه کښې چه په هر یو پیغمبر نازل شوي وي - او د دې په خلاف دا خلق ستاسو کتاب او پیغمبر نه مني بلکه په خپلو کتابو نو هم د دوی صحیح ایمان نیشته - په دې لحاظ سره په کار وه چه دوی ستاسو سره تدرې محبت کولے او تاسو د دوی نه سخت نفرت او بیزاری کولے - مگر دلته معامله بالکل په عکس باندې ده چه تاسو ورسره محبت کوئ او دوی نفرت او دشمني -

د دې کافرانو ذهنیت زیاتې وضاحت دا دې چه : اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ:
یعنې د دې خلقو حال دا دې چه که چرې تاسو ته څۀ ښۀ حالت وړاندې راشي نو په دې سره دوی ته دردرسي - او که پتاسو څۀ بد حالت راشي نو دوی په دې سره خوشحالیږي -

بیا د منافقانو د مکرو فریب او د مخالفینو خلقو د دعنا او مخالفت د نتیجو نه د محفوظ پاتے کیدو آسانه او په اسانئ سره حاصلیدو نکے نسخه ئې دا بیان کړه چه : وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْئًا إِنَّ اللَّهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ؛ که چرې تاسو صبر او تقوی اختیار کړئ نو د دوی چالونه تاسو ته یوه ذره نقصان هم نشي رسولے -

د مسلمانانو د فتح او کامیابئ او په ټولو مشکلاتو کښې د آسانئ راز په صبر او تقوی دوه صفتونو کښې دې

قرآن کریم مسلمانانو ته د هر قسم مصیبتونو او پریشانو نه د محفوظ پاتے کیدو د پاره د صبر او تقوی صرف په دې آیات کښې نه

بلکه په نورو آیاتونو کښې هم د یو اثر کونکي علاج په حیثیت سره بیان کړے دے - د دې رکوع نه پس په دویمه رکوع کښې دي : بَلَىٰ إِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا

وَيَأْتُوكُم مِّن فَوْرِهِمْ هَٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُم بِخَمْسَةِ آلَافٍ مِّنَ الْمَلَائِكَةِ مُسَوِّمِينَ: په دے کښے دَغیبي امداد وعده هم په دَغه دوه شرطونو یعنی صبر او تقوٰی باندے موقوفه کړے شوے ده - په سورتِ یوسف کښے فرمائي: إِنَّهُ مَن يَتَّقِ وَيَصْبِرْ: په دے کښے ئے هم کامیابي او فلاح په صبر او تقوٰی پورے تړلے ده - دَ دے سورت په ختمیدو دَ صبر تلقین په دے الفاظو سره کَوَلے شي: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ: په دے کښے ئے هم فلاح او کامیابي په صبر او تقوٰی پورے پیوست کړے ده -

دَ صبر او تقوٰی په یو لند شان عنوان کښے ئے دَ ټولو دَ هر اړخ انفرادي وي او که اجتماعي - عوامي وي او که فوجي نظم و نسق یو جامع او کامیابه ضابطه ثابته کړے شوه -

دَ حضرت خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلّم ارشاد گرامي دے:-

| | |
|---|---|
| عَن ابي ذر قال قال رسول الله صلے الله علیه وسلم اِنّی لا علم اٰیةً لو اَخذ الناس بِها لکفتهم وَمَن یتق الله یجعل لهٔ مخرجًا الاٰیة - (رواه احمد) | نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمایلي دي چه زهٔ یو داسے آیات پیژنم چه که خلق په دے عمل اختیار کړي نو دَ دوي دَ دین او دنیا دَ پاره هغه کافي دے هغه آیات[1] دا دے ومن یتق الله یجعل لهٔ مخرجًا |

وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ

او کله چه سحر راوُوَتے تهٔ دَ کور خپلهٔ چه کینول دے مسلمانان په مورچو

لِلْقِتَالِ ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٢١﴾ إِذْ هَمَّت طَّائِفَتَانِ

دَ جنګ کښے - او الله تعالیٰ هر څهٔ اوري پیژنی - هر کله چه قصد اوکړهٔ دوه ډلو

مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا وَاللَّهُ وَلِيُّهُمَا ۗ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

ستاسو نه چه نامردي اوکړي او الله مددګار وُهٔ دَ دوي - او په کار ده چه په الله تکیه اوکړي

[1] یعنی کوم سړے چه دَ الله تعالیٰ نه ویریږي الله تعالیٰ به دَ هغهٔ دَ پاره لار راوباسي ۱۲

الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّ اَنْتُمْ

مسلمانان	او مدد کړے دے ستاسو الله دَ بدر په جنګ کښے او تاسو

اَذِلَّةٌ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

کمزوری وئے - پس اویریږئ دَ الله نه ځکه چه تاسو احسان اومنئ۔

**دَ آیاتو نوټرون** په تیرو آیاتو کښے بیان شوے وُه - چه که مسلمانان په صبر او تقوٰی باندے قائم پاتے شی نو هیڅ یو طاقت به دوی ته ضرر او نه رسولے شی - او دا دَ اُحد په غزا کښے چه کوم عارضی شکست او تکلیف مسلمانانو ته اورسید - هغه په دے دوه وُو څیزونو کښے دَ بعضے حضراتو دَ طرف نه دَ کوتاهئ په بنا باندے وَه - په دے ذکو شوی آیات کښے دَ دے اُحد دَ غزا واقعه بیان شوے ده او دَ بدر په غزا کښے دَ فتح۔

## لنډ تفسير

او (هغه وخت هم دَ یادَ ولو قابل دے) هرکله چه تهٔ دَ سحر په وخت کښے (دَ جنګ دَ تاریخ نه مخکښے) دَ خپل کور نه (په دے غرض سره) اووتے (چه) مسلمانانو له (دَ کفارو سره) دَ جنګ کولو دَ پاره په (مناسبو) ځایونو باندے کینول (ربیا دَ دے تجویز مطابق دے تول په هغې مقاماتو باندے کینول) او الله تعالیٰ (دَ دغه وخت خبرے) ټول هرڅه اوریدونکے او دَ دغه وخت حالاتو) پیژندونکے ټول (دَ دے سره دا قصه هم او شوه چه) ستاسو (مسلمانانو) نه دوه ډلو (چه هغه بنی سلمه او بنی حارثه دی) په زړهٔ کښے خیال اوکړهٔ چه بے همته شی (او دَ عبد الله بن اُبی منافق په تشان په خپل کور کښے کینی) او الله تعالیٰ دَ دے دواړو ډلو مددګار وُه (نو دوی ئے بے همته کیدو ته چرته پریښے خو دل نو الله تعالیٰ دوی لره په دے خیال دَ عمل کولو نه محفوظ اوساتل) او (مومنانو دَ آئنده دَ پاره دے ډلو او ټولو ته نصیحت کوٗ وچه هرکله تاسو مسلمانان یئ نو) پس مسلمانانو لره په الله تعالیٰ

بانندے بهروسه کول په کار دی (او داسے بے همتی چرته نه ده پکار) او دا خبره حقه ده چه حق تعالیٰ تاسو لوه په رغزا اُحُد کښے فتح درکړه حال دا دے چه تاسو رمحض) بے سرو سامانه وئے (ځکه چه ستاسو په لښکر کښے ۳۱۳ ... کفارو په مقابله کمه وه هغوی یو زر کسان وُو او مسلمانان درے سوه دیارلس وُو او وَسلے وغیره هم ډیرے کمے وے) پس (چونکه دا فتحمندی د تقویٰ په وجه وه چه ثابت قدمی او صبر په کښے هم داخل دی-نو په تاسو لازمه ده چه په راتلونکی وخت کښے هم) د الله تعالیٰ نه یره کوئے (دے ته تقویٰ ویلے شي) د دے د پاره چه (په دے نعمت د فتح) شکر گذار شئ (ځکه چه شکر گذاری صرف په ژبه پورے خاص نه ده بلکه پوره شکر دا دے چه ژبه او زړه دواړه هم مشغول وی او د عبادت او طاعت هم پابندی وی او بیا خاص چه د دے طاعت په دے نعمت کښے دخل هم ثابت شي) -

## معلومات او مسئلے

**دَاُحد دَغزا پس منظر**

دَ ذکر شوی آیات دَ تفسیر نه اول دا ضروری ده چه دَ احد دَغزا دَ واقعا تو هر یو اړخ او خودلے شي- او واضحه شي -

په رمضان المبارک سن ۲ هجری کښے دَ بدر په مقام باندے دَ قریشو دَ فوج او دَ مسلمانانو مجاهدینو په مینځ کښے جنګ اوشو- چه دَ مکے دَ کفارو نه په کښے اویا نامور سړی مړه کړے شو او دومره ترے گرفتار شو په دے تباه کونکی او ذلیله شکست سره چه په حقیقت کښے د الله تعالیٰ د عذاب او لنړ حصه وه د قریشو د بدل اغستو جذبه پراوچته شوه کوم سرداران چه مړه وُو د هغوی خپلوانو ته لوی عربو ته غیرت ورولاندے کړو پیغو رونئے ورکړه او دا معاهده ئے او کړه چه ترڅو پورے مونږ د مسلمانانو نه د دے بدل وانه اخلو په آرام به کینه نو -او د مکے خلقو ته ئے اپیل اوکړو چه د دوی تجارتی قافلے چه کوم مال د شام نه را وړے دے هغه د دے په دے مهم باندے خرچ کړے شي - چه د محمد صلے الله

عليه وسلم او دَ دهٔ دَ ملګرو نه دَ خپلو مړو بدل پرے واخلو - تو لو دا خبره منظوره کړه - او په ۳ سنه هجري کښے دَ قريشو سره څه يو نور قبائل هم په مدينه منوره باندے دَ حملے کولو په غرض سره راووانه - تو دے پو رے چه بنځے ورسره هم راغلے - دَ دے دَ پاره چه په موقع باندے سړو ته غيرت ورباندے کوی او دَ پښا کيد و نه ئے منع کوی - کوم وخت چه دا دَرے ۳۰۰۰ زره لښکر په پوره وَسلے سره دَ مدينے نه درے څلور ميله بېرته دَ اُحد غرهٔ په خوا کښے خيمے او وهلے ډيره شو - نو نبی کريم صلے الله عليه وسلم دَ مسلمانانو نه مشوره واغستله - چه دَ دوی رائے مبارکه داوه چه دَ مدينے دَ دننه به دَ دشمن مقابله څيره په اسانئ سره اوکړے شی - دا اوّله موقع وه چه دَ رئيس المنافقين عبد الله ابن اُبیّ (چه په ظاهره په مسلمانانو کښے شامل وُه) نه هم مشوره واغستے شوه چه دَ حضور صلے الله عليه وسلم دَ رائے موافق وَه - مګر بعضے جوشيله مسلمانانو کوموته چه په بدر کښے شرکت نه وُه نصيب شوے او دَ شهادت شوق ئے ارامه کوَلُ هغوی زور لګولے وُه چه مونږ له باهر وتل او مقابله کول په کار دی چه دشمن په مونږ دَ بے زړهٔ توب او کمزورئ ګمان او نه کړی - دَ ډيرو خلقو رائے دے طرف ته شوه -

په دے وخت کښے دوی مکان ته دَ ننه تشريف يوړ وا و زغره ئے واغوسته باهر راغلو نو دغه وخت دَ بعضے خلقو خيال شو چه مونږه حضورؐ لره دَ دوی دَ رائے نه خلاف دَ مدينے نه باهر په جنګ کولو مجبوره کړو - دا غلطه اوشوه - نو په دے وجه عرض ئے اوکړو چه يا رسول اللهؐ که ستاسو رَضا نه وی نو بس هم دلته تشريف اولرئ - حضورؐ اوفرمايل چه يو پيغمبر لره دا لايق نه دی چه کله هغه زغره واغوندی او وسله واچوی او بيا ئے بغير دَ جنګ کولو نه دَ بدن نه کوزه کړی - په دے جمله کښے دَ نبی او غير نبی فرق واضحه کيږی - چه دَ نبی دَ ذات نه څرته دَ کمزورئ اظهار نه شی کيد ے او په دے کښے دَ امت دَ پاره هم يو لوئے سبق دے -

کله چه دوی دَ مدينے نه باهر تشريف يوړو نو تقريبًا ۱۰۰۰ زرتنه سړی دَ دوی سره وُو - ليکن منافق عبد الله بن اُبی تقريبًا دَ درے ۳۰۰ سوه کسانو سره دا او وے

اُوا پس شو چه هر کله څه مشوره او نه منلے شوه او دَ نورو په مشوره عمل اُوشو نو موږ ته دَ جنګید وضرورت نیشته ځکه چه موږ وَلے خا مخا ځان په هلاکت کښے واچوؤ- دَ دۀ په ملګرو کښے خوزیات ترمنافقان وُو مګر بعضے مسلمانان هم دَ دۀ په فریب کښے راغله او دَ دۀ سره شو-

اٰخر دوئ ټول دَ اُووه سوه سپا یانو سره میدان ته اورسیدل- دوی په خپله دَ فوجی قاعدے مطابق صفونه برابر کړه- او صفونه ئے داسے جوړ کړه چه دَ اُحد غرئے شاته راوستو- او نورا نتظامات ئے داسے اوکړه چه حضرت مصعبؓ بن عمیر له ئے جنډه ورکړه- حضرت زبیرؓ بن العوام ئے دَ رسالے افسر مقرر کړو، حضرت حمزهؓ ته ئے دَ هغه فوج مشری ورکړه چه زغرے ئے نه وے اَغوستے- دَ شاه دَ طرف نه احتمال وَه چه دشمن په دے طرف راشی په دے وجه ئے دَ پنځوسو غشو ویشتو نکو دسته مقرر کړه- او حکم ئے ورکړو چه دوی به دَ شاه طرف په ډیرکئ باندے دَ حفاظت کار کوی- دَ جنګ که نکو دَ فتح او شکست سره به دوی څۀ کار نه ساتی او دَ خپل ځائے نه به نه خوځیږی- عبد اللهؓ ابن جُبیر دَ دے غشی ویشتو نکو افسر مقرر کړے شو- قریشو ته په بدر کښے تجربه شوے وه په دے وجه هغوی هم په ترتیب سره صفونه برابر کړۀ-

| دَ نبی علیه السلام جنګی ترتیب دَ غیرو په نظر کښے |

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا صفونه برابرول او دَ فوجی قاعدو په لحاظ سره نظم او ضبط چه اولیده شی نو دا حقیقت تر دے واضحه کیږی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره دَ دے چه دَ امّت کامل رهبرا و مقدّس نبی دے یو بے مثله اوعظیم سپه سالار هم دے- دوی چه په کوم انداز سره مورچے قائم کړے او دَ جنګ طریقے ئے قائم کړے دَ دغے وخت دنیا دَ دے نه ناآشنا وه- او نن هم چه جنګی فنونو دَ یو مستقل سائنس حیثیت اختیار کړے دے هغوی هم دَ دوی فوجی قاعدے او نظم ضبط ستائی- دے حقیقت ته چه او کتل نو یو مسیحی مؤرخ داسے اووے:-

"دَ خپلو مخالفینو برخلاف هغوئ یواځے همّت او شجاعت لادَ محمد (صلی الله علیه وسلم)

په فن د جنګ کښې نوے لارے ځراو ویستے - د مکے والو د پرلپسے او بے دریغه جنګونو
په مقابله کښې ئے د ډیرے دوراندیشئ او سخت قسم نظم و ضبط نه کار واخستو"
دا الفاظ د شلمې صدئ د یو مؤرخ "تهام انډر" دی چه دهٔ په لائف آف
محمد کښې بیان کړی دی -

## د جنګ شروع

د دے نه پس جنګ شروع شو په اوّل کښې د مسلمانانو
تول درونده دهٔ تر دے چه په مخالف فوج کښې وارخطائ
راغله او په تیخته شو - مسلمانانو دا اوکتل چه مونږ فتح اوکړه نو د غنیمت
د مال په راټولولو شو - او بل خوا کوم غشی ویشتونکی چه نبی کریم صلی الله علیه
وسلم شا طرفته د حفاظت د پاره کینولی وو هغوی چه کله اولیدل چه دشمن
اوتختیدو - نو هغوی هم خپل ځائے پاتے کړو د غره لمنې ته راکوز شو
حضرت عبد الله ابن جُبیرؓ دوی ته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم تاکیدی
حکم وریاد کړو او دوی ئے منع کړل - لیکن د یو څو تنو نه سوا نورو
اووے چه د حضورؐ حکم منل خو د دغے وخته پورے وُو - اوس مونږ لره
د نورو سره یو ځائے کیدل په کار دی - په دغه وخت خالد بن ولید چه لا تر
اوسه مسلمان نه وُو او دغه وخت د کفارو د لښکر د رسالے افسر وُو - د
موقعے نه فائده واخسته او د غرهٔ نه چاپیره شو د شا د طرف نه ئے حمله
اوکړه - عبد الله ابن جبیرؓ او د دهٔ لږ ملګرو ئے مقابله اوکړه لیکن دوی ئے
منع نه کړے شو او دا سیلاب یکدم په مسلمانانو راغے - بل طرفته چه کوم
دشمنان تختیدلی وُو هغوی هم واپس شو او حمله ئے اوکړه او په یو دم
د جنګ رُخ (رخ) بدل شو - او مسلمانان په دے غیر یقینی حالاتو ایښکیدو و
سره داسے ګډوډ شو چه ډیر کسان د میدان نه اووتل خو بیا هم یو
څو اصحابؓ تر اوسه پورے په میدان کښې ثابت قدم ولاړ وُو چه په دے
کښې دا افواه خوره شوه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم شهید شو - دے
خبر په اصحابو کښې پاتے هوش او حواس هم ختم کړو او کوم صحابهؓ چه په میدان
کښې پاتے وُو هغوی هم وارخطا او بے همته شو - د نبی کریم صلی الله علیه وسلم
نه ګیر چاپیره صرف لس دولس جان نثاره پاتے شوی وُو او دوی په خپله هم زخمی

شوی دی- دَ بالکل شکست خوړلو نه پس په عین وخت صحابهٔ ته معلومه شوه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم صحیح سلامت دے نو دَ هر طرف نه بیا دَ هغوی خوا ته راجمع شو او دوی له ئے روغ جوړ غرهٔ طرفته بوتلو- دَ ئے شکست نه پس مسلمانان ډیر بے انتها پریشانه شو- او دا عارضی شکست دَ یو څو اسبابو په وجه وه- چه په هر یو سبب باندے قرآن مجید خهٔ په واضح او ښکاره الفاظو سره تبصره اوکړه او دَ آئینده دَپاره ئے دَ احتیاط کولو تلقین او فرمایه-

دَ دے واقعے په تفصیل کښے څهٔ داسے واقعات دی چه ډیر لوئے سبق ترے اغستلے کیدے شی- او دَ ټولو مسلمانانو دَپاره په کښے دَ وعظ او نصیحت ملغلرے پرتے دی-

**دَ احد دَ واقعے نه یو څو سبقونه**

(۱) اوله خبره دا ده چه اول معلومه شوے ده چه کفارو دَ قریشو په دے جنګ کښے دَخان سره ښځے هم راوستے وے- دَ دے دَپاره چه دوی سړی دَ په شا کیدو نه منع کوی- نبی کریم صلی الله علیه وسلم اولیدل چه دَ ابی سفیان دَ ښځے هندے په مشرئ کښے دَ کفارو ښځے اشعار وائی او په سړو کښے جوش راپورته کوی جنګ ته ئے تیزه وی ہے

اِنْ تُقْبِلُوْا نُعَانِقْ ۞ وَنَفْرُشُ النَّمَارِقْ
اَوْتُدْبِرُوْا نُفَارِقْ ۞ فِرَاقَ وَامِقْ

"مطلب دا چه که په مقابله کښے ثابت قدم پاتے شوے او فتح تاسو اوکړه نو غاړه غړئ به شو درسره او تاسو ته به نرمے بسترے خورے کړو- لیکن که تاسو شا کړه- نو مونږ به تاسو بالکل پاتے کړو"

او دَ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم په ژبه مبارکه دا دَ دعا الفاظ جاری وو۔

| | |
|---|---|
| اَللّٰهُمَّ بِكَ اَصُوْلُ وَفِيْكَ اُقَاتِلُ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ | "اے الله په تا سره قوت حاصلوؤ او ستا په نوم حمله کوؤ او خاص ستا دَ دین دَپاره جنګ کوؤ خاص الله کافی دے او هغه لوئے کارساز دے" |

دَ دے دعا یو یو لفظ خاص دَ الله تعالیٰ سره دَ تعلق تاکید کوی او دَ مسلمانانو

تول کار ونه او عملونه تردے چه جنګ او قتال هم د نورو قومونو د جنګ او قتال تمثال ذکوی او فرق ئے بنکاره کوی۔
(۲) دویم شے د غور قابل دا دے چه په دے غزا کښے بعضے صحابهؓ و و د شجاعت او بهادرئ او ځان قربانولو هغه نقشے پاتے کړے چه په تاریخ کښے ئے مثال نه شي موندے۔ حضرت ابودجانهؓ خپل بدن حضور صلے الله علیه وسلم ته ډال کړے وُه چه هر راتلونکے غشے به ئے په خپله سینه باندے خوړو۔ او حضرت طلحهؓ هم خپل بدن غلبیل کړے وُه لیکن د حضورؐ ملګرتیا ئے نه وه پاتے کړے۔ د حضرت انس بن مالکؓ تره حضرت انس بن النضرؓ د جنګ بدر ته غیرحاضر پاتے شوے وُو په دے وجه به هغهٔ افسوس کاؤه او آرزو به ئے کوله چه د نبي کریم صلے الله علیه وسلم په ملګرتیا کښے که موقع په لاس راغله نو د خپل زړهٔ آرمان به پوره کړم۔
نو چه د جنګ احد واقعه راپیښه شوه نو انس بن النضر شریک شو په کښے۔ او څهٔ وخت چه مسلمانان خواره واره شو او د کافرانو د قریشو سیلاب چپے و هلے نو دهٔ خپله توره راواغسته او ورمخکښے شو۔ په دے کښے د دهٔ د حضرت سعدؓ سره ملاقات او شو سعدؓ هم په دغے خوریدونکو خلقو کښے روان وُه دهٔ ورته چغه کړه چه اے سعدؓ چرته ځے؟ په ما خو د اُحد په دے لمنه کښے د جنّت خوشبو لګی ۔ دائے اووے او وروړاندے شو او د سخت جنګ نه پس ئے خپل روح پید اکونکی ته اُوسپارهٔ۔(ابن کثیر)
حضرت جابر فرمائي چه کله مسلمانان خواره واره شو۔ دغه وخت د نبي کریم صلے الله علیه وسلم سره صرف یولسؓ تنه پاتے وُو چه په دوی کښے حضرت طلحهؓ هم وُه۔ د قریشو د کفارو سیلاب چپے وَهلے۔ نبي کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمایل څوک به د دوی خبر راوړی؟ حضرت طلحهؓ اووے چه زهٔ یا رسول الله۔ یو بل انصاری صحابیؓ اووے چه زهٔ حاضر یم" انصاری ته حضورؐ د تلو حکم ورکړو۔ هغه د جنګ کولو نه پس شهید شو۔ بیا یوه بله چپه راغله بیا حضورؐ هم هغه تپوس اوکړهٔ او حضرت طلحهؓ ورلره هم هغه جواب ورکړو او بے قراره وه دائے غوښته چه حضورؐ راته د ورتلو حکم اوکړے۔ اوزهٔ وروړاندے شوے۔ حضورؐ

یو بل انصاری صحابیؓ ورا ولیږه - او په هغه پیړه به ئې حضرت طلحهؓ ته اجازت نه ورکولو بل صحابیؓ ته به ئې اجازت ورکاوه او هغه به شهید کیده و -

په جنګ بدر کښې سره دا دے چه مسلمانان ډیر کم وو فتح ئې اوکړه او په اُحد کښې د بدر په نسبت ډیر وو بیا هم شکست ئې اوخوړ - په دے کښې هم د مسلمانانو دپاره عبرت دے چه مسلمانان به چرته هم د سامان په ډیر والی پسے نه ځی بلکه فتح به همیشه د الله تعالیٰ د جانب نه ګنړی او په دے پوره به خپل تعلق مضبوطوی -

د جنګ یرموک په موقع باندے چه کله د جنګ د محاذ نه حضرت عمرؓ ته د ذیات فوجی امداد دپاره اولیکلے شو او د خپل کموالی شکایت ئې اوکړه نو حضرت عمرؓ ورته په جواب کښے اولیکل :-

| | |
|---|---|
| قَدْ جَآءَنِیْ کِتَابُکُمْ تَسْتَمِدُّوْنَنِیْ وَاِنِّیْ اَدُلُّکُمْ عَلٰی مَنْ هُوَ اَعَزُّ نَصْرًا وَاَحْصَنُ جُنْدًا اَللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فَاسْتَنْصِرُوْهُ فَاِنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ نُصِرَ فِیْ یَوْمِ بَدْرٍ فِیْ اَقَلَّ مِنْ عِدَّتِکُمْ فَاِذَا جَآءَکُمْ کِتَابِیْ هٰذَا فَقَاتِلُوْهُمْ وَلَا تُرَاجِعُوْنِیْ (بحواله مسند احمد) | "ما ته ستاسو خط راغے چه تاسو په کښے د زیات فوج طلب کړے دے لیکن زه تاسو ته د یو داسے ذات پته درکوم چه د مدد په لحاظ سره د ټولو نه زیات غالب او د فوج په لحاظ سره زیات محفوظ دے هغه د الله رب العٰلمین ذات دے - نو تاسو د هغه نه مدد طلب کړئ محمد صلی الله علیه وسلم لره ئې سره د کم والی نه په بدر کښے فتح ورکړے وه او مدد ئې ورسره کړے وه - کله |

چه ځما دا خط تاسو ته دراورسی نو په هغوی حمله اوکړئ او په دے باره کښے ما ته رجوع مه کوئ"

د دے واقعے راوی بیان کوی چه کله مونږ ته دا خط ملاؤ شو مونږ د الله نوم واغستو او د کفارو په ډیر لښکر مو په یو وار حمله اوکړه او هغوی لره مو شکست ورکړو - حضرت فاروق اعظمؓ ته معلومه وه چه د مسلمانانو فتح او شکست په کموالی او ډیر والی نه ده بلکه د الله په توکل او د هغهٔ په مدد باندے موقوفه ده - لکه چه قرآن کریم د حُنین د غزا په باره کښے

دے حقیقت لره په وضاحت سره بیان کړے دے۔ ارشاد دے:۔

| | |
|---|---|
| يَوْمَ حُنَيْنٍ إِذْ أَعْجَبَتْكُمْ كَثْرَتُكُمْ فَلَمْ تُغْنِ عَنْكُمْ شَيْئًا۔ | "یعنے دَحُنین غزا یاده کړئ کله چه تاسو په خپل ډیروالی بانده ناز کاوه نو دے ډیروالی تاسو ته هیڅ فائده اُونه رَسَوَلے شوه" |

اوس دَ ایاتونو په تفسیر غور اوکړئ:۔

:اِذْغَدَوْتَ مِنْ اَهْلِكَ :الایة: یعنے کله چه دَسحر په وخت کښے تهٔ دَ خپل کور نه راووَتے دَجنګ دَپاره دے په مختلفو مورچو مسلمانان کینول۔

دَ واقعو په نقل کولو کښے دَقرآن مجید یو خاص معجزانه انداز دے۔ چه په عام طور سره یوه واقعه په هرځ برخه او تفصیل سره نه بیانوی لیکن په کومو واقعواو برخو کښے چه خاص هدایات وی هغه بیانوی۔ په دے ذکر شوی ایات کښے چه دَ واقعے دَکومو ځایونو برخو وضاحت دے۔ مثلاً دَ کوره دَ وَتو وخت څهٔ وَه دائے په لفظ دَ؛ غَدَوْتَ،سره بیان کړو۔ او دَ حدیثو دَروایاتو نه ثابته ده چه داسحر اُووم تاریخ دَشوال سـ۳ـنهٔ وَه۔ وَدے نه پس ئے دا اوخوده چه دَدے سفر اِبتداء دَکوم ځائے نه اوشوه؛ دَ: مِنْ اَهْلِكَ: په لفظ سره اشاره اوشوه چه حضورؐ دغه وخت په خپلاهل وعیال کښے وَه دوی ئے هلته پاتے کړهٔ او راووَ تلو تردے۔ حالانکه داحمله په مدینه کید ونکے وه۔ دَحالاتو په دے برخو کښے داهدایت دے چه کله دَالله حکم راشي۔ نو په هغے باندے په عمل کولو کښے دےاَهل وعیال دَلارے خنډ وخار نه شي جوړه ولے۔ وَدے نه پس دَکوره وتل محاذ دَجنګ ته رسیدل پاتے شو او دَجنګ دَمحاذاوّ لنے کارئے دا بیان کړو چه:

:تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِيْنَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ: یعنے تا مسلمانان دَجنګ دَپاره په مناسبو ځایونو باندے کینول۔

---

بیائے داایات داسے ختم کړو چه ؛ وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ: یعنے الله تعالیٰ لوئے اوریدونکے او لوئے پوهیدونکے دے۔ دَسمیع علیم صفتونه ئے را یاد کړه دے طرفته ئے اشاره اوکړه چه دغه وخت مخالفواو موافقو

دوا ړو په خپل خپل ځائی و ئیل اوُره وُل دا قول د الله تعالیٰ په علم کښې راغلو او په دې موقع چه هرڅه موافقوا ومخالفوته وربیژ شو په دې کښې یو شی هم د هغهٔ نه پټ شوی نه دی - او دغه شان د دې جنګ انجام هم د هغه نه پټ نه دی -

د دې نه پس دویم ایات دی: اِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ اَنْ تَفْشَلَا الخ:
یعنې هر کله چه پتا سو کښې دوه ډلو داخیال او کړ ه چه بې همته شی په دغه حال کښې چه الله د دوا ړو مدد ګار و ه - د دې دواړو ډلو نه مراد د اوس قبیلې بنی حارثه او د خزرج قبیلې بنی سلمه دی - دې دواړو ډلو د عبد الله بن ابی مثال او لید و په خپل ځان کښې ئې کمزوری او بې همتی محسوسه کړه لیکن د الله فضل ئې مدد او کړ ه او دا وسوسه ئې زیاته نه شوه - او دا خیال هم چه په دوی کښې پید ا شو دا د خپل ګوالی د سرو او ګوالی د سامان په بنا با ندې پید ا شوی وُه د ایمان د کمزورئ په بنا نه وُه پید ا شوی - د غز اګا نو تاریخ لیکونکی مشهور امام او مؤرخ ابن هشام دا واضحه کړې ده - او د: وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا: جمله په خپله د دوی د کامل ایمان شها دت کوی - په دې وجه به د دې دواړو قبیلو بعضې بزرګا نو فرمایل چه که پد دې ایات کښې په موبږه څهٔ زور نه هم د ه لیکن د: وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا: ذیری هم د موبږ د پاره دی -

د دې ایات په اخر کښې فرمائی چه:مسلما نا نو لوره په الله پاک با ندې اعتماد ساتل په کار دی! په دې کښې دا خبره واضحه شوه چه د سړو په چیړ والی او ساز و سامان با ندې مسلما نا نو لوره اعتماد ( بهروسه) کول نه دی په کار - بلکه په قدر د طاقت د مادی سامان جمع کولو نه پس بهروسه صرف د الله تعالیٰ په ذات با ندې پکار ده - بنو سلمه او بنو حارثه ته چه کومه د کمزورئ او کم همتئ وسوسه پید اشوی وه هغه هم د دې مادی ( ظاهری ساز و سامان) کمزورئ په بنا با ندې وه په دې وجه د دې وسوسې علاج ئې توکّل او خوده چه توکّل او بهروسه د دې وسوسو د پاره شفا ورکونکې نسخه ده -

توکل د انسان په صفتونو کښې یو لوئے صفت دے تحقیق کونکو صوفیانو د دے په حقیقت باندے په تفصیل سره بحثونه کړی دی - د لته دومره قدر دے پوهیدل په کار دی چه د توکل معنیٰ دا نه ده چه د هرقسم ظاهری اسبابو نه بالکلیه تعلق ختم کړی او صرف په الله اعتماد (بهروسه) او کړی - بلکه توکل دا دے چه ټول ظاهری اسباب د خپل قدرت او طاقت مطابق جمع کړی او اختیار کړی او بیائے نتیجه الله ته اوسپاری - او په دے ظاهری اسبابو باندے فخر او ناز نه کوی - بلکه بهروسه ئے صرف په الله وی - د نبی کریم صلے الله علیه وسلم خوبیونه او اخلاق زمونږ د کوږا ندے دی - په خپله په دے جهاد کښے د مسلمانانو لښکر لوره منظم کول د جنګ د پاره - د خپل قدرت مطابق وسله او نور د جنګ سامان تیاره ول د جنګ محاذ ته ځان رسول او د وخت او مقام مطابق د جنګ نقشه تیاره ول - مختلف مور چے جوړه ول او صحابه کرام په هغې کښینول او مقررکول وغیره دا ټول ظاهری انتظامونه وُو چه زمونږ سردار نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خپلو لاسونو مبارکو باندے او کړل او دائے او خودَه چه دا ظاهری اسباب هم د الله تعالیٰ نعمت دے د دے د انتظام نه کولو نوم توکل نه دے دلته په مؤمن او غیرمؤمن کښے فرق صرف دومره دے چه مؤمن ټول سامانونه او ظاهری طاقتونه د خپل قدرت مطابق د جمع کولو نه پس بهروسه او توکل صرف په الله باندے کوی او غیرمؤمن ته دا روحانیت حاصل نه وی د دهٔ بهروسه صرف په خپلو ظاهری (مادی) اسبابو باندے وی - او دا فرق همیشه په ټولو اسلامی غزاګانو کښے ښکاره شوے او لیدلے شوے دے.

د دے نه پس هغې غزا طرف ته خیال او فکر راګرځولے شی په کومه کښے چه مسلمانانو د کامل توکل اظهار کړے وُه او الله تعالیٰ دوی لره فتح او کامیابی په کامله طریقه سره ورکړے وه - ارشاد دے : وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ ؛ یعنے هغه وخت یاد کړئ کله چه الله تعالیٰ په بدر کښے ستاسو مدد کړے وُو- هرکله چه تاسو په شمار کښے هم د دے سوو دیارلس وئ او هغهٔ هم بے سروسامانه -

| | |
|---|---|
| بدر د مدینې منورې نه د اتیا میلو په فاصله جنوب مغرب طرف ته د یو پیاؤ او منډهئ نوم دے. | د بدر اهمیت او د دے محل وقوع |

دغه وخت دے ځائے ته ځکه اهمیت حاصل وُه چه دلته اُوبه ډیرے وے او د عربو په شکلنو میدانو نو کښې دا یو لوئے شے دے. د توحید او شرک په مینځ کښې دلته د ټولو نه اولنۍ جنګ د جُمعے په ورځ په اوولسم د رمضان مبارک سنه ۲ھ. مطابق ۱۱ مارچ سنه ۶۲۴ء کښې شوے وُه. دا غزا خو په ظاهره یو مقامي جنګ معلومیږي. لیکن حقیقت دا دے چه دے د دنیا په تاریخ کښې یو لوئے انقلاب (بدلون) پیدا کړو. په دے وجه د قرآن په ژبه کښې ورته "یوم الفرقان" (یعنې د حق او باطل فرق کوُنکے) ویلے شوے دے. فرنګی تاریخ لیکونکو هم د دے اهمیت اقرار کړے دے.

د امریکے پروفیسر "هتي" په خپل کتاب "هستري اف دی عربین" کښې وائي:

"دا د اسلام د ټولو نه اوله ښکاره فتح وه"

وَأَنتُمْ أَذِلَّةٌ: یعنې تاسو دغه وخت په شمار کښې لږ او په سامان کمزوری وئ. مسلمانان په شمار کښې په قوي روایتونو سره درے سوه دیارلس وُو په دے فوج کښې اسونه صرف دوه وُو. او اوُښان اویا وُو. چه خلق به پرے په وار وار سوریدل.

په اخري آیات کښې فرمائي: فَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ: یعنې د الله نه یره یږئ د دے د پاره چه تاسو شکر گذار جوړ شئ.

قرآن کریم ځائے په ځائے د منافقانو د مکر و فریب او سختو مخالفتونو د بدو نتیجو نه د محفوظ پاتے کیدو د پاره د تقوٰی او صبر علاج خودلے دے. په دے دوه وُو څیز ونو کښې د ټول تنظیمي جد وجهد او د ښکاره فتح راز پټ دے لکه چه مخکښې د دے بیان شوے دے. او دلته ئې د صبر او تقوٰی په ځائے صرف په تقوٰی باندے بس والے اوکړو. ځکه چه په حقیقت کښې تقوٰی داسے جامع صفت دے چه صبر هم په دے کښې شامل دے.

---

اِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ اَنْ يُّمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ
هر کله چه او وے تا مسلمانانو ته چه اے بوره نه دی تاسو لره کمک د دې پاره چه راولیږی رب ستاسو
اٰلَافٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُنْزَلِيْنَ (١٢٤) بَلٰٓى اِنْ تَصْبِرُوْا وَ
درے زره فرښتے د اسمان نه را کوزیدونکے دی - البته که تاسو صبر او کړو او
تَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ
ځان مو او ساتهٔ او دوی راشی په تاسو باندے یو دم نو مدد به او لیږی رب ستاسو
بِخَمْسَةِ اٰلَافٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ (١٢٥) وَمَا جَعَلَهُ
الربع
پنځه زره فرښتے په نشا ندارو اسو نو باندے - او دا خو الله ستاسو
اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ ۚ وَمَا
د پاره خوشحالی کړهٔ او د دے د پاره چه تسکین او شی ستاسو زړونو په دے - او مدد
النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ (١٢٦) لِيَقْطَعَ
صرف د الله د طرف نه دے چه زبردست دے حکمت والا - د دے د پاره چه هلاک کړی
طَرَفًا مِّنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنْقَلِبُوْا خَآئِبِيْنَ (١٢٧)
بعضے کافران لره یا دوی لره ذلیله کړی - نو بیا به شی دوی محرومه
لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ اَوْ يَتُوْبَ عَلَيْهِمْ اَوْ يُعَذِّبَهُمْ
ستا هیڅ اختیار نیشته یا به دوی ته توبه ورکړی الله تعالیٰ یا به ئے عذاب کړی
فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ (١٢٨) وَلِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ۚ
چه دوی په ناحقه دی - او خاص د الله مال دے هر څه چه په اسمانونو کښے دی او څه چه په زمکه کښے

يَغْفِرُ لِمَن يَشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَآءُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (۱۲۹) ع ۱۳ ۹

بخي چالره چه اوغواړي او عذاب ورکوي چالره چه اوغواړي او الله بخښونکے والا مهربان دے

**د آیاتو نو ترون**

په تیرو آیاتو نو کښے د احد د غزا په میئ کښے په بدر کښے د الله تعالیٰ د طرفه د غیبي امداد ذکر وه - او س ورا ندے د دغے امداد څه تفصیل د فرښتو د لیږلو د حکمت بیان دے - یعنے چه د فرښتو په لیږلو کښے څه حکمت وه د دے خبرے وضاحت دے -

# لنډ تفسير

دَ اِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ: نه تر: وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ: پورے - (په بدر کښے د الله تعالیٰ دا امداد هغه وخت شوے وه) کله چه تا رائے محمد صلے الله علیه وسلم مسلمانانو ته دا سے وے چه اے تا سو لره (د زړه کلکولو د پاره) په دا کار پوره نه وي چه ستا سو رب ستا سو امداد او کړي په درے زره فرښتو سره (چه د دے کار د پاره د آسمان نه) راکوزے کړے شي (د د دے معلومیږي چه د لوئے درجے فرښتے به وے ورنه کومے فرښتے چه د وړا ندے نه په زمکه موجودے وے د هغوی نه هم دا کار اغستے کیدے شو (روح، بیا د بره استفهام (سوال) جواب په خپله دا سے فرمائي) هاں، د لے نه (پوره به وي، د دینه پس په دے امداد کښے د نور زیاتي وعده دا سے فرمائي چه د مقابلے په وخت کښے) که ثابت قدم پاتے شوئ او په تقویٰ ولاړ وئ (یعنے د حکم منلو نه خلاف مو یو کار او نه کړ ئ) او دغه خلق په تا سو په یو وار حمله اوکړي (په کوم کښے چه بیا عاوهٔ د چا مخلوق نه مدد رسیدل ګران شي) نو ستا سو رب به ستا سو امداد او فرمائي په پنځه زره فرښتو سره چه په یو خاص شکل سره به جوړے شوے وي (لکه په عامو جنګونو کښے چه د خپل خپل فوج د پیژندو د پاره یو خاص وردئ وي وړاندے اوس د دے امداد د حکمت بیان دے او الله دا امداد د فرښتو په دے وجه ستا سو ه او کړه چه ستا سو د پاره (د غلبے او فتح) زیرے وي او ستا سو زړونه په دے باندے په قرار شي او فتح (او غلبه) خو صرف د الله د طرف نه ده چه زبردست

دے (چه هسے هم غلبه ورکولے شی لیکن) حکیم (هم) دے (نوکله چه حکمت او مصلحت په دے کښے وی چه د اسبابو په ذریعه دے غلبه ورکړے شی نو هم دغسے اسباب پیدا کوی - دا خو د ملائکو د امداد د حکمت بیان وُه - اوس وړاندے د دغے حکمت بیان دے چه دا فتح او غلبه تاسو لره وَلے درکړے شوه نو په دے وجه ئے ارشاد او فرمایه چه) د دے د پاره چه په کفارو کښے یو ټولے هلاک کړی (نو د کافرانو اوڅیا سرداران مړه کړے شو) یا دوی (کښے بعضو) لره ذلیل او خوار کړی بیا به دوی ناکامه واپس شی (یعنی په دے دواړو کښے به د یوے نه یوه خبره خامخا اوشی، او کړ دواړه اوشی نو زیات غوره ده نو دا دواړه خبرے اوشوے چه اوڅیا سرداران ئے مړهٔ کړے شو او اوڅیا قید شو ذلیله شو - او پاتے په ذلت او خوارئ سره اوتختیده)-

# معلومات او مسئلے

## د فرشتو د امداد لیږلو حکمت او اصل مقصد او د ملائکو په شمار کښے تختلف شمار بیا نولو حکمت

د لته د انسان د طبیعت مطابق یو داسوال دے چه الله تعالیٰ خو خپلو فرشتو له دومره طاقت ورکړے دے چه پوره ښهر په پاسته کولے شی لکه د لوط ؑ د قوم ذمکه چه یواځے جبرائیل امین پاستو کړے وه - نو بیا د فرشتو لښکر لیږلو ته کوم ضرورت وُه ؟

او دا رنګ دا چه کله فرښتے میدان ته راغلی وے نو بیا خو به کاروه چه یو کافر هم بچ نه وے پاتے شوے - نو د دے جواب خو په خپله قرآن کریم په دے ایات: وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰی: کښے ورکړے دے چه د فرښتو د لیږلو میدان جنګ فتح کول مقصود نه وه - بلکه د جهاد کونکو مسلمانانو تسلّی او د زړه مضبوطیا او د فتح زیرے ورکول ترے مقصود وه: لکه چه د دے ایات د الفاظو: اِلَّا بُشْرٰی: او: لِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُکُمْ: نه واضحه ده - او د دے نه زیات واضحه د سورت انفال په دے واقعه کښے راغلی الفاظ دی: فَثَبِّتُوا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا: چه په دے کښے فرښتو ته خطاب دے چه د دوی په ذمه دا کار دے چه د مسلمانانو زړونه مضبوط کړی او پریشانه کیدو ته ئے پاتے نه کړی

دَ دے زړهٔ مضبوطولو مختلف صورتونه کیدے شی یو دا هم دے چه په خپل تصرّف سره دَ دوی زړونه مضبوط کړی لکه چه دَ صوفیا نو مشائخو دا کار دے چه دَ خپلو مریدانو زړونه په تصرّف سره مضبوطوی -

او دا هم کیدے شی چه مسلمانانو ته په مختلفو طریقو سره دا ښکاره کړی چه دَ الله تعالیٰ فرښتے دَ دوی دَ مدد دَ پاره ولاړے دی - کله ئے مخے ته ښکاره شی کله په آواز سره، کله په بلے طریقے سره لکه چه په میدان دَ بدر کښے دا ټولے طریقے استعمال شوے وے - په آیات: فَاضْرِبُوْا فَوْقَ الْاَعْنَاقِ؛ کښے یو تفسیر دا دے چه دا خطاب فرښتو ته دے - او په بعضے روایاتو دَ حدیث کښے دی چه فرښتے به کله په یو مشرک دَ حملے اراده او کړه نو دَ هغهٔ سَر به دَ ځانه دَ بدن نه جُدا شو لکه چه روایت دے دَ سهل بن حنیف نه په روایت دَ حاکم او په تصحیح دَ بیهقی) او بعضے صحابه کرامو دَ جبرئیل امین آواز هم آوریدلے دے چه: اَقْدِمْ حیزوم؛ ئے فرمایل - او بعضو په خپله ملائکے هم لیدلی دی (رواه مسلم) دا ټول لیدل کتل دَ دے زنځیر کړیادی چه دَ الله تعالیٰ ملائکو مسلمانانو ته دَ خپل مدد دَ یقین ورکولو دَ پاره څرګند کار ونه داسے هم کړی وی چه ګویا دوی هم په جنګ کښے شریکے دی - او په اصل کښے دَ دوی کار مسلمانانو لره تسلّی ورکول او دَ دوی زړونه مضبوطول وُو - دَ فرښتو په ذریعه میدانِ جنګ فتح کول مقصود نه وُه - دَ دے یو ښکاره دلیل دا هم دے چه په دے دنیا کښے دَ جنګ او جهاد فرض په مسلمانانو وراچولی شوی دی - او په دے سره دوی ته فضیلتونه او درجے حاصلیږی - که الله تعالیٰ داسے کولے چه دَ فرښتو په ذریعه ئے ملکونه فتح کولے. نو په دنیا کښے به دَ کُفر او کافرانو هم نه وُه پاتے شوے - دَ حکومت او باد شاهئ دَ کافرانو به هډو څهٔ سوال نه پیدا کیدهٔ - مګر دَ قدرت په دے کارخانه کښے دَ الله تعالیٰ مَنْشَاء دا نه ده - دلته خو کفر او ایمان، عبادت او ګناه، اطاعت او نافرمانی یو ځائے چلیږی - دَ دوی دَ صفائی دَ پاره دَ قیامت ورځ ده -

پاتے شوه دا معامله چه دَ بدر په جهاد کښے دَ الله دَ ملائکو دَ مدد دَ پاره

چه کومے وعدے راغلی دی په دے کښے د سورت انفال په آیات کښے د یوزر وعدہ ده او د آل عمران په دے ذکر شوی آیات کښے اول د درے زرو بیا د پنځه ووزرو وعده ده - په دے کښے څۀ حکمت دے؟ - خبره داده چه د سورت انفال په دغه ځائے کښے ذکر دی چه کله په میدان د بدر کښے مسلمانانو د مخالف شمار یوزر او لیدۀ او د دوی شمار درے سوه دیارلس وه نو د الله تعالیٰ په دربار کښے ئے فریاد او کړو نو د دوی سره د زرو فرښتو د لیږلو وعده او شوه چه د دشمن د لښکر هومره به زه فرښتے درولیږم د آیات الفاظ دا دی -

اِذْ تَسْتَغِيْثُوْنَ رَبَّكُمْ فَاسْتَجَابَ لَكُمْ اَنِّيْ مُمِدُّكُمْ بِاَلْفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُرْدِفِيْنَ ۝

او د دے آیات نه پس ئے هم د ملائکو د مدد لیږلو دغه مقصد ظاهر کړو چه د مسلمانانو زړونه په جمع شی او د فتح زیرے ورته او شی نو د دینه پس د آیات الفاظ دا دی: وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى وَ لِتَطْمَئِنَّ بِهٖ قُلُوْبُكُمْ -

او د سورت آل عمران په دے ذکر شوی آیات کښے د درے زره فرښتو وعده شاید په دے بنا شوے وه - چه د بدر په میدان کښے مسلمانانو ته خبر ملاؤ شو چه کرز بن جابر محاربی د خپلے قبیلے د لښکر سره د مکے د مشرکانو مدد له راروان دے (لکه دا سے په روح کښے دی) دلته د دشمن شمار د مسلمانانو نه وړومبے هم درے چنده وه نو مسلمانان په دے خبره پریشان شانتے شو نو د درے زره فرښتو وعده ورسره او شوه چه معامله اُلټه شی او د مسلمانانو شمار د کافرانو نه درے چنده شی -

بیائے د دے آیات په آخر کښے دغه شمار په یو خوشرطو نو سره زیات کړو پنځه زره ئے کړو - هغه شرطونه دوه وو - یو دا چه که مسلمانان د صبرا و تقوٰی په اوچت مقام باندے ولاړ پاتے شی - دویم دا چه که دشمن په دوی په یو وار په جمع حمله اوکړی - لیکن په دے دوه وو شرطونو کښے دویم شرط چه په جمع حمله وه واقع نه شو - نو په دے وجه د پنځه ووزرو که شمار لیږلو وعده هم پاتے نه شوه - بیا په دے کښے د تفسیر او تاریخ د امامانو خبرے مختلف دی - چه اګر چه د وعدے دا شرط واقع نه شو خو بیا هم دا وعده د پنځه ووزرو په صورت کښے پوره شوه او که صرف د دریو زرو په صورت کښے

دا مختلف خبرې په روح المعاني کښې ذکر دي -

آيات: لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ: ‌ د دې ځائے نه بيا د اُحد اصل قصې طرف ته راګرځي په منځ کښې په لنډو الفاظو سره د بدر د قصې ذکر راغلے وه - او سبب د نزول د دې آيات داد ے چه په دے غزا د اُحد کښې د حضور اقدس صلے الله عليه وسلم غاښونه مبارک کوم چه د مخ دوه لاندے او دوه باندے غاښونو ته وائي نو د وارو څخه (څلور غاښونه دي دوه بنۍ طرف ته پورته او بل باندے او دوه کينډ طرفته پورته ندے او بل باندے په دوی کښې د بنۍ طرف لاندينے غاښ مبارک شهيد شو او مخ مبارک ئے زخمي شو نو د دوی په ژبه مبارکه دا الفاظ راغلل چه: داسې قوم به څه خير بيا موومي چا چه د خپل نبي سره داسې اوکړه حالانکه دغه نبي دوی لره خدائے طرفته رابلي: دغه وخت دا آيات نازل شو -

په بخاري کښې يو قِصّه بله هم نقل شوې ده چه دوی بعضې کفارو ته ښيرې ( ) هم کړے وے - په دے باندے دا آيات نازل شو - چه په دے کښې نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته د صبر او تحمّل تعليم ورکړے شوے دے -

(د بيان القرآن نه په لنډو الفاظو کښې)

# لنډ تفسير

د: لَيْسَ لَكَ مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ: نه تر: غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ: پورې راے محمد صلے الله عليه وسلم) تا سو لره (چا په کافرانو کيد او مسلمانانو کيد وکښې په خپله) هيڅ دخل نشته (خواه د عِلم دخل وي او يا د قدرت بلکه دا ټول د خدائے پاک په عِلم او په قبضه کښې دي تا لوه صبر په کار دے) تر دے چه خدائے پاک په دوی باندے (په رحمت سره) متوجه شي (يعني دوی ته د اسلام توفيق ورکړي نو په دغه وخت کښې به صبر په خوشحالو سره بدل شي) او يا دوی لره (خاص په دنيا کښې) څه سزا ورکړي (نو دغه وخت به صبر د زړه په سکون سره بدل شي، او د دنيا سزا څه بے ځايه هم نه ده) ځکه چه دوی ظلم هم ډير زيات کړے وے (مراد د دے نه شرک او کفر دے لکه چه فرمائي: اِنَّ الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيْمٌ: دا وا ندے د دے مضمون تاکيد دے)

او خاص د الله ملکیت دے هر څهٔ چه په اسمانونو کښے او هر څهٔ چه په زمکه کښے دی - هغه چه چا لره غواړی او به ئے بخښی (یعنے اسلام به ئے نصیب کړی چه په دے سره به د دهٔ بخانه او شی) او چا لره چه غواړی عذاب به ورکړی (یعنے اسلام به ئے نصیب نه شی او په دے وجه به په همیشه عذاب کښے وی) او الله تعالیٰ ډیر لوئے بخانه کوونکے (او) لوئے رحمت کوونکے دے (نو په بخانه کښے خو ئے هیڅ تعجب نیشتے ځکه چه رحمت د هغهٔ وړومبی دے - نو په دے وجه ئے د عذاب ورکولو وجه بره بیان کړه؛ فَاِنَّهُمْ ظٰلِمُوْنَ؛)

---

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَاْكُلُوا الرِّبٰٓوا اَضْعَافًا مُّضٰعَفَةً

اے ایماندارو! مه خورئ سود دوچند په دو چند -

وَّاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿١٣٠﴾ وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْٓ

او ویریږئ د الله نه چه ستاسو خیکره وی - او ځان ساتئ د هغه اور نه

اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿١٣١﴾

چه تیار شوے دے د کافرانو دپاره -

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو سود مه خورئ (یعنے مه اخلئ د اصل نه) څو حصے زیاتے (کړے)، او د الله تعالیٰ نه او ویریږئ اُمید دے چه تاسو کامیاب شئ (یعنے جنت به مو نصیب شی او د دوزخ نه به بچ شئ) او د هغے اور نه ځان او ساتئ کوم چه (په اصل کښے) د کافرانو دپاره تیار کړے شوے دے (او د اور نه د بچ کیدو صورت دا دے - چه د سود وغیره حرامو کارو نو نه ځان او ساتئ)

## معلومات او مسئلې

په دې ایات کښې د سود خوړلو د حراموالی او منعې بیان سره د: اَضۡعَافًا مُّضٰعَفَةً: ذکر د حراموالی قید نه دے۔ بلکه د سود د ناکاروالی د ښکاره کولو د پاره دے۔ ځکه چه په بل ایات کښې مُطلق د ربو د حراموالی بیان په سختئ او تاکید سره راغلے دے۔ چه تفصیل ئې په سورت بقره کښې تیر شوے دے۔ او د: اَضۡعَافًا مُّضٰعَفَةً: په ذکر کښې دے طرف ته هم اشاره کیدے شی چه د چا چه سود خوړل عادت شی نو خواه که دے د اصطلاحی سود مرکب نه یعنې د سود د سود معاملې نه پرهیز هم او کړی۔ خو د سود نه حاصل شوے کټه کله چه دے دوباره په سود چلوی نو څامخا اضعاف مضاعف جوړیږی۔ اګرچه د سود خورو په اصطلاح کښې دے ته سود مرکب یعنې سُود د رسُود نه وائی۔ د دے حاصل دا دے چه هر یو سود اخر کار اضعاف مضاعف کیږی۔

---

وَاَطِیۡعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوۡلَ لَعَلَّکُمۡ تُرۡحَمُوۡنَ ﴿۱۳۲﴾ وَ

او حکم منئ د الله او د رسول چه په تاسو رحم او شی او

سَارِعُوۡۤا اِلٰی مَغۡفِرَةٍ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ وَجَنَّةٍ عَرۡضُهَا

منډه وهئ بخښنې طرف ته د خپل رب او د جنت طرف ته چه پلنوالے ئې

السَّمٰوٰتُ وَالۡاَرۡضُ اُعِدَّتۡ لِلۡمُتَّقِیۡنَ ﴿۱۳۳﴾

د اسمان او د زمکې هومره دے تیار شویدے د پرهیزګارانو د پاره۔

## لنډ تفسیر

او په خوشحالئ سره خبره او منئ د الله او (د هغه) د رسول (صلی الله علیه وسلم)

امید دے چه تاسو رحم اوشی (یعنے په قیامت کښے) او منډے وهئ طرف دَبخښے ته چه ستاسو دَپروردګار دَطرف نه (نصیب) دے او (منډے وهئ) طرف دَجنت ته (مطلب دا دے چه دا سے نیک کار اختیار کړئ چه په هغے سره پروردګار تاسو اوبخی او تاسو ته جنت درکړی او هغه جنت دا سے دے) چه لوئے والے ئے دا سے (لکه) دے لکه ټول اسمانونه او زمکه (او دَدینه دَزیات نفی نیشتے لکه چه په واقع کښے دَدینه هم زیات تو الے ثابت دے او) هغه تیار کړے شوے دے دَخدائے نه دَیریدونکو دَپاره۔

# معلومات او مسئلے

په ذکر شوی ایات کښے دوه مسئلے زیاتے اهمے دی۔ اوّل دَ اوّلنی ایات مضمون چه په دے کښے دَ الله تعالیٰ دَحکم (متلو) سره دَرسول دَحکم منلو هم حکم شوے دے۔ په دے کښے دا خبره دَغور قابله ده۔ چه کله دَرسول اطاعت بعینه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَرالیږلی شوی کتاب "قرآن" دَ اطاعت (حکم منلو) نوم دی۔ نو بیا دَ دے ځائے نه دَبیا نولو ضرورت څهٔ دے۔ او که په دے دواړو کښے څهٔ فرق وی نو هغه فرق څهٔ دے؟

دویمه خبره چه همیشه دَیاد ساتلو او په خپل عملی ژوند کښے دَ دے دَ قبلے جوړه ولو قابله ده۔ هغه هغه صفتونه او نښے نښانے دی چه الله تع دَخپلو مقبولو او پرهیزګارو بندګانو دَپاره په دے ایاتونو کښے خودلی دی۔ چه دَ الله او دَرسول اطاعت (حکم منل) محض په زبانی جمع خرچ سره نه کیږی بلکه دَ حکم منونکو څهٔ صفتونه او حالات وی۔ چه په هغوی سره دوی پیژندے کیږی۔

**دَرسول اطاعت دَ الله تعالیٰ نه دَ جُدا بیانولو حکمت** اوّله مسئله: ئے په اولنی لنډو ایات کښے دا سے بیان کړه: اَطِيعُوا اللهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ " یعنی دَ الله او دَ رسول اطاعت کوئ چه په تاسو رحم اوشی۔ په دے کښے ئے دَ الله تعالیٰ دَ رحمت دَپاره لکه څنګه چه دَ الله تعالیٰ حکم منل ضروری او لازم کړی دی دغه شان ئے دَ رسول الله صلے الله علیه وسلم حکم منل هم

لازم او ضروری کړی دی۔ او دا بیا صرف په دے آیات کښے نه په ټول قرآن کښے بار بار دَدے تکرار په دا سے شان سره دے چه کوم ځائے دَ الله تعالیٰ دَ حکم منلو حکم دے هلته دَ رسولؐ دَ حکم منلو ذکو هم ځان له شوے دے دَ قرآنِ کریم دا پَرلَپسے او مسلسل ارشادات یو انسان لره دَ اسلام او ایمان بنیادی اصولو طرف ته مخ کوی ، چه دَ ایمان اوّلنے جزء دَ خدائے تعالیٰ دَ وجود دَ هغهٔ دَ یَوْ والی او دَ هغهٔ دَ حکم منلو اقرار کول دی۔ نو دویم جزء ئے دَ رسول تصدیق او دَ هغهٔ حکم منل دی۔

او س دلته دَ غور کولو دا خبره ده چه دَ قرآن کریم دَ ارشاداتو نه دا هم ثابته ده چه "رسولِ کریم" صلے الله علیه وسلم چه څهٔ فرمائی هغه ټول دَ خدائے په اذن باندے وی دَ خپل طرف نه هیڅ هم نه وی۔ لکه چه ارشاد دے : وَمَا يَنۡطِقُ عَنِ الۡهَوٰى اِنۡ هُوَ اِلَّا وَحۡىٌ يُّوۡحٰى : یعنے رسولِ کریم صلے الله علیه وسلم چه څهٔ وائی هغه دَ خپل خواهش نه نه وائی بلکه هغهٔ ټول دَ الله دَ طرف نه وحیٔ وی۔ نو مطلب ئے دا شه چه دَ رسولؐ حکم منل بعینهٖ دَ خدائے پاک حکم منل دی۔ دَ دے نه جُدا اتهٔ شپے نوے دَ سورت نسآء په آیات بدٔ کښے په خپله قرآن کریم هم په دے الفاظو کښے دے لره په ډاګه کړے ده :

مَنۡ يُّطِعِ الرَّسُوۡلَ فَقَدۡ اَطَاعَ اللّٰهَ۔ | "چا چه دَ رسول تابعداری اوکړه نو دَهٔ دَ الله تابعداری اوکړه۔"

نو اوس سوال دا پیدا کیږی چه خبره دا سے ده نو بیا دَ دے دوا ړو اطاعتونو په جُدا جُدا بیانولو کښے څهٔ فائده ده؟ او خاص بیا سره دَ دومره اهتمام سره چه په ټول قرآن کریم کښے په ځَنَه دَ دوا ړو اطاعتونو په یو یو ځائے حکم ورکولے شی۔

په دے کښے دا راز دے چه الله تعالیٰ دَ دُنیا دَ هدایت دَ پاره یو کتاب رالیږلے دے ، او یو رسولؐ۔ دَ رسولؐ په ذمه ئے دا کار وَمقرر کړی دِی۔ اول دا چه دَ قرآن حکیم آیاتونه په ټیک صورت او هم په دغه لب و لهجه کښے خلقو ته اورسوی په کوم صورت او لب و لهجه چه دے نازل شوے دے۔

دویم دا چه دے خلق دَ ظاهرې او باطنې پلیتو نه پاک کړی۔

دریم دا چه دَ دے کتاب دَ مضامینو امت ته تعلیم ورکړی ۔ او دَ دے کتاب مقصد ورته بیان کړی۔ دا رنګې دا چه دے دَ کتاب دَ بیان سره دَ حکمت تعلیم ورکړی۔ دا مضمون دَ قرآن کریم په ډیرو آیاتونو کښے تقریبًا په یو عنوان سره راغلے دے: یَتۡلُوۡا عَلَیۡهِمۡ اٰیٰتِهٖ وَیُزَکِّیۡهِمۡ وَیُعَلِّمُهُمُ الۡکِتٰبَ وَالۡحِکۡمَةَ۔

نو معلومه شوه چه دَ رسول په منصبی فرائضو کښے صرف یوازے دا خبره داخله نه ده چه دے قرآن حکیم خلقو ته اورسوی بلکه دَ دهٔ تعلیم او وضاحت کول هم دَ رسول ذمه واری ده ۔ او دا هم ښکاره خبره ده چه دَ رسولِ کریم صلے الله علیه وسلم مخاطب دَ عرب فصیحان او بلیغان خلق وُو۔ هغوی ته دَ قرآن دَ تعلیم دا معنیٰ نه شی کیدے چه محض دَ قرآن دَ الفاظو لغوی معنیٰ دوی ته او خودے شی۔ ځکه چه هغو ټولو ته دَ ځانه دا معنیٰ ورتله۔ بلکه دَ دوی دَ تعلیم او وضاحت مقصد صرف دا وَه او دا کیدے شی چه قرآن کریم یو حکم په مجملو یا مبهمو الفاظو کښے بیان کړے دے۔ دَ دے تشریح او تفصیل نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ هغے وحی په ذریعه سره خلقو ته اورسوی کومه چه دَ قرآن په الفاظو کښے نه ده راغلے۔ بلکه الله تعالیٰ دَ دوی په زړهٔ مبارک کښے اچولے ده ۔ دَ کوم طرف ته چه دَ قرآن آیات: اِنۡ هُوَ اِلَّا وَحۡیٌ یُّوۡحٰی: کښے اشاره شوے ده۔ مثلًا په قرآن کریم کښے په بے شماره ځایونو کښے صرف: اَقِیۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّکٰوةَ: فرمایلو باندے اکتفاء کړے ده ۔ کوم ځائے چه دَ مانځهٔ په معامله کښے دَ قیام رکوع او سجدے ذکر هم راغلے دے خو هغه هم بالکل مبهم دے دَ طریقو ذکر ئے نیشتے۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته جبرئیل امین په خپله راغلے دے او دَ الله تعالیٰ په حکم ئے ورته هغه ټول ارکان او کارونه څهٔ په تفصیل سره په خپله اوکړل اَو اُوئے خودل ورته۔ او دوی هم په دغه طریقه په وَینا او په کولو سره (یعنی په قول او عمل سره) اُمت ته اورسول۔

دَ زکوٰة مختلف نصابونه او په هر نصاب باندے دَ زکوٰة مقدار مقرر کول

بیا داخبره چه په کومو مالونو باندې زکوٰة شته او په کومو نیشته - او په مقدارونو دَ نصاب کښې څومره حصه معاف ده - دا ټول تفصیلونه نبی کریم صلی الله علیه وسلم بیان کړی دی او دَ دې خطونه ئې اولیکل ډیرو صحابه کرامو ته ئې اوسپارل - یا لکه مثلاً قرآن حکیم حکم اوکړو چه :

لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ :- | "یعنی دَ یو بل مالونه په خپل مینځ کښې په ناحقه او باطله طریقه سره مه خورئ"

او س دَ دې دا تفصیل چه په رواجی معاملو کښې بیع شراء، یعنی اغستلو خرڅولو او اجاره کښې کوم صورتونه ناحق او دَ بې انصافئ یا عوامو ته دَ ضرر رسولو په وجه باطل دی - دا نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ خدائې په اذن سره امت ته خودلی دی - دغه شان دَ ټولو شرعی احکامو هم دغه حال دے -

نو دا ټول تفصیلونه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ خپلو فرضو دَ اداکولو دَ پاره دَ الله تعالیٰ په وحئ سره اُمت ته رَسولی دی - چونکه دا تفصیلونه په قرآن شریف کښې نه دی ذکر شوی - په دې وجه دا کیدے شوه چه څوک یو ناپوهه په دې دوکا (غلط) شی - چه دا تفصیلی احکام دَ خدائے تعالیٰ په را لیږلو احکامو کښې نیشته - نو دَ خدائے په اطاعت کښې په دې عمل کول ضروری نه دی - په دې وجه الله تعالیٰ په ټول قرآن کریم کښې بار بار دَ خپل حکم منلو سره سره دَ رسول حکم لازمی کړی دی - چه دا هم په حقیقت کښې دَ الله تعالیٰ حکم منل دی - مګر دَ ظاهری صورت او دَ تفصیلی بیان په اعتبار سره دَ دینه څهٔ مختلف هم دے - په دې وجه ئې په بار بار تاکید کولو سره اوخودَله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم تاسو ته څهٔ حکم اوکړی دغه هم دَ الله تعالیٰ اِطاعت کنړئی او منئ ئې - خواه که په قرآن کریم کښې په وضاحت سره موجود وی او که نه وی - دا مسئله چونکه ډیره ضروری مسئله وه - او دَ یو ناپوهه یَ دې باندې دَ دوکه (غلط) کیدو نه علاوه دَ اسلام دَ دشمنانو دَ پاره په اسلامی اُصولو کښې دَ ګډ برخوره ولو او دَ مسلمانانو دَ صحیح لارے نه دَ غلطولو هم یوموقع په لاس ورتله - په دې وجه قرآن کریم دے مضمون لره

صرف په لفظ د اطاعتِ رسول سره نه، بلکه په مختلفو عنوانا نو سره ئے اُمت محمدی (په صاحب دَدوی دے درود او سلام وی) ته اوخودله - مثلاً دَدوی په فرائضو کښے ئے دَ تعلیم دَکتاب سره دَ تعلیم دَحکمت زیاتوالے هم اوکړه دے طرف ته ئے په دے سره اشاره اوکړه چه دَکتاب نه علاوه نور څۀ هم دَدوی په تعلیما تو کښے داخل دی او دَ هغے تابعداری هم په مسلمانانو باندے واجب ده کوم چه په لفظ دَحکمت سره ئے ترے تعبیر کړے دے - چرته ئے ارشاد فرمائیلے دے چه: لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ اِلَيْهِمْ ؛ یعنے دَ رسولؐ دَ رالیږلو مقصد دا دے چه خلقو ته په دوی دَ نازل شوو آیاتو نو مطلبو نه او مقصدو نه او شرحے بیان کړی۔

اوچرته ارشاد دے چه: مَا اٰتٰکُمُ الرَّسُوْلُ فَخُذُوْهُ وَمَا نَهٰکُمْ عَنْهُ فَانْتَهُوْا؛ " یعنے چه رسول تاسو ته څۀ درکوی هغه اخلئ او دَ کوم نه چه تاسو منع کوی دَ هغے نه منع شئ " دا ټول انتظام دَدے خبرے دَپاره شوے دے چه صبا څوک داسے او نه وائی چه مونږ خو صرف دَ هغے احکامو پابند یو کوم چه په قرآن کښے راغلی دی او کوم احکام چه په قرآن کښے ملاؤ نه شی په هغے مونږه ریږولی نه یو - نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته غالباً چه دا خبره ښکاره شوے وه چه په څۀ زمانه کښے به داسے خلق پیدا شی چه دَ رسولؐ دَ تعلیما تو او تشریحاتو نه دَځان خلاصولو دَپاره به دا دعویٰ اوکړی چه مونږ لره دَ الله کتاب پوره دے - په دے وجه په یو حدیث کښے څۀ په وضاحت سره ئے دَ دے ذکر او فرمایلو کوم لره چه ترمذی، ابوداود، ابن ماجه، بیهیقی، او امام احمد رحمة الله علیهم په خپلو خپلو کتابو نو کښے په دے الفاظو سره نقل کړے دے:

لَا اُلْفِيَنَّ اَحَدَكُمْ مُتَّكِاً عَلٰى اَرِيْكَتِهٖ يَاْتِيْهِ الْاَمْرُ مِنْ اَمْرِيْ مِمَّا اَمَرْتُ بِهٖ اَوْ نَهَيْتُ عَنْهُ فَيَقُوْلُ لَا اَدْرِيْ مَا وَجَدْنَا فِيْ كِتَابِ اللهِ اتَّبَعْنَاهُ -

" یعنی داسے دے او نه شی چه زۀ پتاسو کښے څوک داسے بیا مومم چه دۀ په خپل مسند تکیه لګولے ناست وی بیا څه او ماچه دَکوم شی حکم کړے وی یا م دَڅۀ شی نه منع کړے وی دَهغے په باره کښے دے او وائی چه مونږه

دا نه پېژنو زموږ نه د پاره خو د الله کتاب پوره دے څه چې په هغے کښې موږ د هغے تا بعداری کوؤ۔"

لنډه دا چې د الله تعالیٰ د اطاعت سره ځائے په ځائے د رسول د اطاعت بار بار ارشاد او بیا په مختلفو عنوانا تو سره د رسول د خودلو شوو احکامو د منلو هدایات دا ټولے خبرے د دے خطرے په وجه دی چې هسے نه چرته څوک د رسول صلے الله علیه وسلم په احادیثو کښے بیان کړے شوے تفصیلا تو لره د قرآن نه ځا نله او د خدائے تعالیٰ د اطاعت نه جُدا او نه گڼړی اِنکار ترے او نه کړی۔ ځکه چې په حقیقت کښے جُدا نه دی ؎

گفتۂ او گفتۂ الله بود گرچه از حلقوم عبدالله بود

"یعنے د هغه خبره د الله خبره وی اگر چې د مرئی د عبد الله نه وی۔"

په دویم ایات کښے ئے د مغفرت او جنت طرف ته د ځغلیدو او جلدئ حکم ورکړے دے۔ د الله او د رسولؐ د اطاعت نه پس ئے دا دویم حکم او کړه۔ دلته د مغفرت نه مراد اسباب د مغفرت (بخښنے) دی یعنے هغه نیک عملونه چې د الله تعالیٰ د مغفرت سببونه جوړیږی۔ د صحابو او تابعینو نه د دے مختلف تفسیرونه نقل شوی دی۔ لیکن مضمون د ټولو یو دے۔ حضرت علی کرم الله وجهه د دے تفسیر په "ادا کولو د فرضو" سره کړے دے۔ حضرت ابن عباسؓ په "اسلام" سره۔ ابوالعالیهؒ په "هجرت" سره، انس بن مالکؓ په "تکبیر اولیٰ" سره۔ سعید بن جبیرؓ په "ادا کولو د طاعت" سره۔ ضحاکؒ په "جهاد" سره۔ عکرمهؒ په "توبه" سره کړے دے۔ د دے ټولو قولونو حاصل دا دے چې د مغفرت نه مراد هغه ټول نیک عملونه دی چې د الله تعالیٰ د مغفرت وجه او سبب جوړیگی۔

په دے مقام دوه خبرے د غور قابلے دی۔ اوّله خبره دا ده چې په دے ایات کښے د مغفرت او جنّت طرف ته د وړاندے کیدو او تیزیدو حکم ورکولے شی۔ حال دا دے چې په بل ایات کښے ئے: لَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَکُمْ عَلٰی بَعْضٍ؛ فرمائلی دی د نورو فضیلتونو حاصلولو د آرزو کولو نه ئے هم منع کړے ده۔

دَ دے جواب دا دے چه فضائل په دوه قسمه دی- یو هغه فضائل دی
چه دَ هغې حاصلول دَ انسان دَ وَس او طاقت نه باهر وی چه دیته غیراختیاری
فضائل وائی لکه دَ چا سپین رنګ یا خائست یا دَ یو لوئې خاندان نه کیدل وغیره
دویم هغه فضائل دی چه انسان ئې په خپل محنت او کوشش سره حاصلولے شی
دیته اختیاری فضائل وائی- په غیر اختیاری فضیلتونو کښې دَ نورو فضیلتونو
دَ حاصلولو بلکه دَ آرزو کولو نه ئې په دے وجه منع کړے شوے ده چه دَ غه
الله تعالیٰ دَ خپل حکمت مطابق په مخلوق کښې تقسیم کړی دی- دَ هیچا دَ کوشش
په دے کښې څۀ دخل نیشته- نو په دے وجه هغه فضیلتونه چه په کوشش
او آرزو سره دَ سړَه حاصلیدے نه شی- نو سوا دَ بغض او حسد نه په نور
هیڅ شے دۀ ته حاصل نه شی او نۀ په ورته څۀ فائدہ اورسی- مثلاً یو سړے
تور دے او دے دَ سپینوالی آرزو کوی نو څۀ نتیجه به ترے اوځی- البته
کوم چه اختیاری فضیلتونه دی په دے کښې دَ وړاندے کیدو او مقابلے
حکم ورکړے شوے دے- او دا صرف په یو آیات کښې نه بلکه په ډیرو آیاتونو
کښې راغلے دے- په یو ځائې کښې ارشاد دے: فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ: په بل ځائې
کښې ارشاد دے: وَفِيْ ذٰلِكَ فَلْيَتَنَافَسِ الْمُتَنَافِسُوْنَ:

یو بزرګ فرمائیلی دی چه که په یو انسان کښې څۀ پیدائشی او طبعی کوتاهی
(کمی) وی چه دَ دے لرے کول دَ دۀ دَ وَس نه باهر وی نو دۀ لره په کار دی
چه په دے خپلے کوتاهئ (کمی) باندے صبر کوُنکے او سی خپل کار دے کوی او دَ
نورو کمال ته دے نۀ کوری- ځکه چه که دے په خپل کمی باندے افسوس
او دَ نورو په کمال باندے حسد کول شروع کړی نو بیا به دے دَ خپل
هغې کار نه چه دے ئې کولے شی اوځی- او بالکل به خراب شی-

دویم شے چه دلته کښې دَ غور کولو قابل دے هغه دا دے چه الله تعالیٰ
مغفرت په جنّت باندے وړاندے کړے دے- په دے کښې کیدے شی چه
دے کار طرفته اشاره وی چه دَ جنّت حاصلول دَ الله دَ مغفرت نه بغیر
ممکن نه دی- ځکه چه انسان که ټول عمر هم نیکئ کوی او دَ ګناهونو نه ځان
ساتی بیا هم دَ دۀ ټول عملونه دَ جنّت بدل نه شی کیدے- جنّت ته بوتلو کے

صرف یو شے دے او هغه د الله تعالیٰ مغفرت دے او د هغهٔ فضل دے۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی:

سَدِّدُوْا وَقَارِبُوْا وَاَبْشِرُوْا فَاِنَّهٗ لَنْ یُّدْخِلَ اَحَدًا الْجَنَّةَ عَمَلُهٗ قَالُوْا وَلَا اَنْتَ یَارَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَلَا اَنَا اِلَّا اَنْ یَّتَغَمَّدَنِیَ اللّٰهُ بِرَحْمَتِهٖ۔
(ترغیب و ترهیب بحواله بخاری و مسلم)

"راستی او حق اختیار کړئ، درمیانه لار اختیار کړئ او (د الله د فضل) زیری حاصل کړئ د یو سړی عمل دے جنت ته نه شی رسولے، خلقو تپوس او کړو، او ستا عمل هم یارسول الله، او ئے فرمایل څما عمل هم ما جنّت ته نه شی رسولے مګر داچه الله تعالیٰ ما په خپل رحمت کښے پټ کړی"

حاصل دا دے چه زمونږ عملونه د جنت قیمت نه دے۔ لیکن د الله عادت دا دے چه الله تعالیٰ په خپل فضل سره دے بنده لره او نمائی کوم چه نیک عمل کوی۔ بلکه چا ته چه د نیکو عملونو توفیق اوشی نوهغه نښه ده چه الله د ده نه راضی دے۔ نو په دے وجه د نیکو عملونو پیدا کولو کښے چرته هم کوتاهی نه دی کول په کار۔ معلومه شوه چه جنّت ته د داخلید و اصلی باعث او سبب د الله تعالیٰ مغفرت دے۔ نو ځکه ئے د مغفرت د اهمیت په وجه مطلق مغفرت او نه فرمایه بلکه: مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّکُمْ: ئے او فرمایل۔ د رَبّ والی په صفت بیا نولو کښے د زیاتے مزے خوند مهربانئ او احسان ښکاره کول مقصود دی۔

دویم شے د کوم طرف ته چه د منډے وهلو حکم ورکړے شوے دے هغه جنّت دے۔ او د جنّت په باره کښے ئے فرمایلی دی چه د دے پلنوالے دومره دے لکه څومره چه ټول آسمانونه او زمکه دی۔ د انسان په دماغو کښے د آسمان او د زمکے د اَرَت والی نه بل لوئے اَرَت والے نه شی راتلے۔ په دے وجه ئے د پوهه کولو د پاره د جنت د پلنوالی تشبیه د دے سره ورکړه نو کو یا کښے او ئے خوده چه جنت څیر اَرَت دے د دے په اَرَت والی کښے ټول زمکه او آسمانونه ځائیدے شی۔ نو هر کله چه پلنوالی ئے دا حال دے نو د اوږدوالی د حال نه الله خبر دے چه څومره به وی۔ دا معنیٰ حَلَه

هر کله چه عرض د طول مقابل واغستے شي - لیکن که عرض د ثمن یعنی قیمت په معنیٰ واغستے شي - نو مطلب به دا وي چه جنت څهٔ معمولي شے نه دے - د دے قیمت ټول آسمانونه او زمکه دي - نو په دے وجه د داسے قیمتي شي طرف ته وړاندے والے او تلوار کوئ -

په تفسیر کبیر کښے دي :-

قَالَ اَبُوْمُسْلِمٍ اِنَّ الْعَرْضَ هُنَا مَا يُعْرَضُ مِنَ الثَّمَنِ فِي مُقَابَلَةِ الْمَبِيْعِ اَيْ ثَمَنُهَا لَوْ بِيْعَتْ كَثَمَنِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَ الْمُرَادُ بِذٰلِكَ عَظَمُ مِقْدَارِهَا وَجَلَالَةُ خَطَرِهَا وَ اَنَّهٗ لَا يُسَاوِيْهَا شَيْءٌ وَاِنْ عَظُمَ -

" ابومسلم وائي چه د عرض نه مراد په آیت کښے هغه شے دے چه د مبیع په مقابله کښے په طور د قیمت پیش کولے شي مطلب دا دے چه که فرض کړه د جنت قیمت او لګولے شي نو ټول آسمانونه او زمکه او کائنات به ئے قیمت وي - مقصود د دے نه د جنت د لوئي او لوئے مرتبے بیان دے "

د جنت دویم صفت ئے او خوده چه : اُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِيْنَ : یعنے جنت د پرهیزګارانو د پاره تیار کړے شوے دے - د دے نه دا هم معلومه شوه چه جنت پیدا کړے شوے دے - د قرآن او حدیثو د واضحو اشارو نه معلومیږي چه جنت په اووم آسمان د پاسه دے دغه شان چه اووم آسمان د دے زمکه ده -

اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ فِي السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ وَالْكٰظِمِيْنَ

څوک چه خرچ کوي په خوشحالۍ (فراخۍ) کښے او تکلیف (تنګۍ) کښے او زغمي

الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳۴﴾

غصه او معاف کوي خلقو لره - او الله خوښوي نیکي کوونکو لره -

وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ

او هغه خلق چه کله اوکړي بنکاره ګناه - یا ناکاره کار اوکړي په ځان ځان ظلم کښے

ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ ۗ وَمَنْ يَّغْفِرُ

نو یاد کړی الله لره او بښنه اوغواړی د خپلو گناهو . او څوک دے گنا ه

الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۗ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَ

بښونکے سوا د الله نه - او نه ټینګیږی په خپلو کړو باندے او

هُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ

دوی پوهیږی - د دوی جزا ده بښنه د دوی

رَّبِّهِمْ وَجَنّٰتٌ تَجْرِىْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

د رب نه او باغونه چه لاندے ترے نهر و نه بهیږی همیشه به وی

فِيْهَا ۗ وَنِعْمَ اَجْرُ الْعٰمِلِيْنَ ﴿۱۳۶﴾ قَدْ خَلَتْ مِنْ

دغه خلق په دغے باغونو کښے - او ښهٔ ښهٔ مزدوری ده د کارکونکو - تیر شوید ی ستا سو نه

قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ فَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ

وړاندے واقعات پس او گرځئ په زمکه کښے او اوګورئ چه څنګه شو

كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۳۷﴾ هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ

انجام د دروغژ ن کونکو - دا بیان دے د خلقو د پاره

وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۸﴾

او هدایت او نصیحت دے پرهیز ګارو لره -

## لنډ تفسير

دا سے خلق (دی) چه خرچ کوی (د په نیکو کارونو کښے، په هر حال کښے) په فراخئ کښے

(هم) او په تنګۍ کښې (هم) او غصه قابو کونکي او د خلقو د کوتاهو نه در
ګذر کونکي او الله تعالیٰ داسې نیکي کونکو لره (چه دا خو یو نه په کښې وي په کامله
وجه سره) خوښوي او (یو دې ذکر شوي په اعتبار سره د دویمې درجې
مسلمانان) داسې خلق (دي) چه کله څۀ داسې کارا وکړي چه په هغې کښې (په
نورو باندې) زیاتې وي یا (څۀ ګناه او کړي خاص) د خپل ځان نقصان کوي
نو (فوراً) الله تعالیٰ (لوئي او عذاب) لره یاد وي بیا د خپلو ګناهونو معافي غواړي
(یعني په هغه طریقه سره کومه چه د معافئ د پاره مقرره ده چه که په چائے زیاتې
کړې وي نو د حقدار نه به هم معافي غواړي۔ او که خپل ګناه ئې کړې وي نو
بیا د دې حاجت نیشته۔ او د الله تعالیٰ نه معافي غوښتل په دواړو صورتونو
کښې ده) او (واقعي) د الله تعالیٰ نه سوا بل څوک دې چه ګناهونه بخښلې شي
(زیاتې شوي حقدارانو معاف کول نو دغه خلق خو د دې اختیار نه لري چه د
عذاب نه ئې هم بچ کړي۔ او حقیقي بخښش د دې نوم دے) او دغه خلق په
خپل کار (بد) باندې اصرار (او ضد) نه کوي او دوي (دے خبره لره)
پیژني هم (چه فلانے کار مونږ د ګناه کړې دے، او دا چه توبه ضروري
ده، او دا چه خدائے تعالیٰ بخونکے دے، مطلب دا دے چه خپل عملونه هم
برابروي او عقیده ئې هم ټهیک ساتي) د دې خلقو جزاء بخښش دے
د دوي د رب د طرف نه او (د جنت) داسې باغونه دي چه د هغې (د
ونو او مکانونو) د لاندې نه نهرونه بهیږي دوي به په هغې کښې
همیشه همیشه اوسیدونکي وي (او د دې مغفرت او د جنت د حاصلولو
دا یا نو په شروع کښې حکم وه، په مینځ کښې ئې طریقه او خوده، په ختمیدو
باندې ئې د دې وعده او فرمایله) او (دا) څه یو څۀ حق، د خدمت
دې د دې کار کونکو (دغه کار استغفار او ټهیک عقیده ده او د
استغفار نتیجه د راتلونکي اطاعت پابندي ده چه د اصرار او ضد نشت
والے په دې دلالت کوي) په تحقیق سره ستاسو نه وړاندې (په زمانو کښې)
د مختلفو طریقو (دالاخلق) تیر شوي دي (په دوي کښې مسلمانان هم وو
او کافران هم او په دوي کښې اختلاف مقابلے او جنګونه هم شوي دي،

لیکن اخر کار کفار هلاک شوی دی۔ تو که تا سو دغه نبیو نبیا نو لیدل غواړئ
نو تا سو په ځمکه باندې اوګرځئ او اوګورئ چه اخرې انجام د دروغ
جنو کونکو (یعنې کفارو) څنګه شو (یعنې هلاک او برباد شو)، نو د دوی د
هلاکت نښې نښانې د دغې وخته پورې هم باقي پاتې وې چې په نورو ایاتونو کښې
ئې فرمایلي دی: فَتِلْكَ بُيُوتُهُمْ خَاوِيَةً الخ؛ فَتِلْكَ مَسَاكِنُهُمْ لَمْ تُسْكَنْ الخ؛ وَإِنَّهُمَا
لَبِإِمَامٍ مُّبِينٍ الخ:) دا (ذکر شوی مضمون) بیان پوره دی د ټولو خلقو
د پاره (چه که په دې غور او فکر اوکړی نو عبرت حاصلولې شی) او هدایت او
نصیحت دې خاص د خدائې نه د یریدونکو د پاره (یعنې هدایت او نصیحت
هم دا خلق حاصلوی، هدایت دا دې چه د دې موافق عمل اوکړی):۔

# معلومات او مسئلې

په دې ایاتونو کښې الله تعالیٰ د متقیانو مؤمنانو خاص صفتونه او نښې
خودلې دی چه ډیرې فائدې ورپورې تړلې دی۔ مثلاً دا چه قرآن حکیم ځائې
په ځائې د نیکو بندګانو نسره ناسته پاسته او د دوی د تعلیم نه د فائدې
پورته کولو تاکید فرمایلې دې۔ چرته ئې، صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ: فرمایلی
دی د دین نیغه او صحیح لار ئې د دې مقبولو بندګانو نه د ازده کولو طرف ته
اشاره کړې ده، چرته ئې، كُوْنُوْا مَعَ الصّٰدِقِيْنَ: فرمایلی دی، د دوی د مجلس
او ملګرتیا فائدې ئې خودلې دی۔ او په دنیا کښې په هر یو ټولی کښې د ښه
او بد خلق وی د بنو خلقو په جامه کښې بدان هم د دوی ځائې نیسی نو په
دې وجه ضرورت د دې خبرې وُه چه د مقبولو بندګانو خاص نښې او صفتونه
اوښائې چه خلق د غلطو راهنماګانو او بد و پیشوایانو نه ځان اوساتی۔ او
د رښتونو خلقو نښې او پیژندګنې د هغوی تابعداری اوکړی۔ د متقیانو مؤمنانو
د نیښو او صفتونو بیانولو نه پس ئې د هغوی همیشه کامیابی او د جنت اعلیٰ مقامات
او خودلی نیکو خلقو ته خوشخبری او په بده لار د تلونکو د پاره ئې د نصیحت
او ترغیب لار پرانستله۔ د دې ایاتونو په اخر کښې په: هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ
وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ: کښې دې طرف ته اشاره ده۔

دَمقبولو بندګانو کوم صفتو نه او نښې چه ولته ذکر شوی دی - په دې کښې په اولنو آیاتو کښې دَ هغې صفتو نو بیان دے چه دَ هغې تعلق دَ انسانی حقونو او دَ شریک ژوند تیره و لوسره دے - او په وُروستنو آیاتو کښې دَ هغې صفتو نو بیان دے چه دَ هغې تعلق دَ الله تعالیٰ دَ عبادت او اطاعت سره دے - چه دے ته په نورو لفظو کښې حقوق العباد او حقوق الله وائی -

په دے بره ذکر شوو آیاتو کښې ئے انسانی حقونه اوّل او دَ الله تعالیٰ حقونه وروستو بیانولو کښې دے طرفته اشاره اوکړه چه اګرکه په اصل کښې دَ الله حقونه په نورو ټولو حقونو باندے وړُمبی دی - لیکن په دواړو کښې یو خاص فرق دادے چه الله تعالیٰ کوم خپل حقونه په بندګانو باندے لازم کړی دی په هغې پورے نه خو دَ خدائے تعالیٰ څه خپله فائده پیوست ده او نه ئے ورته څهٔ حاجت شته او نهٔ داچه دَ دے په نهٔ کولو سره دَ الله تعالیٰ څهٔ نقصان کیږی - دَ هغهٔ ذات دَ دے هرڅهٔ نه بے حاجته دے - دَ هغهٔ په عبادت سره فائده په خپله دَ عبادت کوُنکی ده - بیا هغهٔ دَ رحیمانو رحیم او دَ کریمانو کریم هم دے - چه دَ هغهٔ په حقونو کښې دَ لویو نه لویه کوتاهی کوُنکے او غلطی کوُنکے انسان څهٔ وخت چه هم په خپلو کړو خپیما نه شی او الله طرف ته را اوګرځی او توبه اُوباسی نو دَ دربار دَ رحم وکرم نه دَ دهٔ ټول ګناهونه په یودم کښې معاف کیدے شی - په خلاف دَ بندګانو دَ حقونو نه چه انسان هغې ته محتاج دے دَ کوم سړی چه دَ چا په ذمه حقونه لازم دی که هغه ئے ادا نهٔ کړی نو دَ دهٔ نقصان هم دے او خپل نقصان چا ته معاف کول دَ انسان دَ پاره آسان هم نه دی - نو په دے وجه دَ بندګانو حقونو ته یو خاص اهمیت حاصل دے -

دَ دے نه علاوه دَ دُنیا دَ نِظام (یعنے انتظام) ټیک والے او دَ انسانی معاشرے برابر والے او روغوالے دَ یو بل دَ حقونو په اداکولو سره دے - په دے کښې په لږ شان کمی کولو سره دَ جنګ جګړو او فسادونو لارے پرانستے کیږی - او که څهٔ خوُیونه پیدا کړے شی نو دشمنان هم دوستان کیدے شی - دَ سوونو کالو نو جنګ جګړے په صلح او روغوالی سره بدلیدے شی -

په دے وجه ئے دا صفتونه اونیٔے وړاندے ذکر کړے - چه تعلق ئے دَ انسانی حقوقو سره دے - په دے صفتونو کښے ئے دَ ټولو نه اوّلنے صفت دا خودَلے دے :-

اَلَّذِیْنَ یُنْفِقُوْنَ فِی السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ : یعنے هغه خلق دی چه دَ الله په لاره کښۓ خپل مال خرچ کولو دا سے عادت دی او دا سے پرے مَیِّن دی چه که فراخی وی پرے اوکه تنګی وی پرے هو دوی په هرحال کښے دَ خپل طاقت موافق خرچ کوی - دَ ډیر نه ډیر خرچ کوی او دَ لږ نه لږ خرچ کوی - په دے کښے یو طرف ته دا خودَلے دہ چه فقیر سړے دے هم ځان دَ الله په لاره کښے دَ خرچ کولو نه بالکل فارغ نه ګنړی - او دَ الله په لاره کښے دے دَ خرچ کولو دَ سعادت نه محرومه نه وی - ځکه دَ زرو روپو نه دَ یوے روپئ دَ خرچ کولو چه کوم اجر دے هغه دَ زرو پیسو نه دَ یوے پیسے په خرچ کولو کښے هم دے (دَ الله تعالیٰ په نزد) - او په عملی طور سره لکه څنګه چه دَ زرو روپو مالک ته یوه روپئ دَ الله په لاره خرچ کول ګران نه دی دغه شان دَ زرو پیسو مالک ته یوه پیسه خرچ کول هم څه ګرانه نهٔ ده -

دویم طرف ته دا خودنه په کښے هم ده چه دَ تنګئ په حالت کښے هم په قدر دَ حیثیت په خرچ کولو سره دَ خرچ کولو مبارک خوئی نه او عادت نه نهٔ نا اَشنا کیږی او شاید چه الله پاک په ورته دَ دے په برکت سره فراغت او فراخی هم نصیب کړی -

دریم اَهَم شے په دے کښے دا دے چه کوم سړے دَ دے عادت شی چه هغه خپل مال په نورمخلوق خرچ کوی او هغوی ته فائده رسوی دَ غریبانو او فقیرانو امداد کوی - ظاهره ده چه هغه دَ نورو حقونه په زور هم نه اخلی او دَ چا دَ رضا نه بغیر دَ چا څهٔ شے هم نه اخلی - په دے وجه دَ دے اوّلنی صفت حاصل دا شه چه متقیان مؤمنان او دَ الله تعالیٰ مقبول بندګان نورو خلقو ته دَ نفع رسولو په فکر کښے وی خواه که په دوی تنګی وی او که فراخی - حضرت عائشه رضی الله عنها یو وخت صرف دَ انګور یوه دانه په خیرات کښے ورکړه، ځکه چه دغه وخت دَ هغے سره دَ دے نه سوا نور هیڅ نه وو - دَ بعضے عالمانو نه نقل دے چه یو وخت هغوی صرف یو پیاز صدقه کړے دے - نبی کریم

صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی :

اِتَّقُوا النَّارَ وَ لَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ وَرُدُّوا السَّائِلَ وَ لَوْ بِظِلْفٍ شَاةٍ -

" یعنے دَ جهنم دَ اور نه ځان بچ کړئ اګر که دَ خرما په یوه ټکړه سره وی - او سوال کونکے خالی لاس مه رخصتوئ اګر که هیڅ نه وی نو دَ بیزے سوه پوره ده "

په تفسیر کبیر کښے امام رازیؒ دا حدیث نقل کړے دے چه یوه ورځ نبی کریم صلے الله علیه وسلم خلقو ته دَ صدقے ورکولو ترغیب ورکړه نو دَ چا سره چه سره سپین وُو هغوی هغه په صدقه کښے ورکړه یو سړی دَ خرما پهونه راوړه چه ځما سره نور هیڅ نیشته نو هغه ئے صدقه کړه یو بل سړے راغے اُوئے وے یا رسول الله ځما سره هیڅ شے دَ صدقه کولو دَ پاره نیشته البته زهٔ په خپل قوم کښے عزتمند ګنړلے شم زهٔ خپل عزت خیرات کوم - چه که آئینده ما ته څوک هر څو مره بدے رَدے او وائی زهٔ به پرے خفه نه شم -

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ تعلیما تو او په دے دَ اصحابوؓ دَ عمل کولو دا خبره هم په ډاګه شوه چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کول صرف دَ مالدارانو او غنیا نو کار نه دے - غریب او فقیر هم دا صفت حاصلولے شی - چه دَ خپل قدرت او طاقت په مطابق دَ الله تعالیٰ په لاره کښے څهٔ خرچ کړی او دا عظیم صفت حاصل کړی -

دَ الله په لاره کښے دا ضروری نه ده چه صرف مال خرچ کړے شی

دلته دا خبره هم دَ غور قابله ده چه قرآن کریم په دے ځائے کښے دَ يُنْفِقُوْنَ ذکر او کړهٔ چه دا خلق په تنګئ او فراخئ په هر حال کښے دَ الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کوی خو دائے مُتَعَیّنه نهٔ کړه چه څهٔ شے خرچ کوی - دَ دے لفظ دَ عاموالی نه دا معلومه شوه چه په دے کښے صرف مال او دولت نه دے داخل بلکه هر دَ خرچ کولو قابل شے په کښے داخل دے - مثلاً یو سړے خپل وخت خپل محنت دَ الله په لاره کښے خرچ کړی نو دا هم دَ انفاق په صفت سره بللے شی - کوم یو حدیث چه اوس بره دَ تفسیر کبیر په حواله سره تیر شو هغه په دے باندے ګواه دے -

**د تنګئ او فراخئ په ذکر کښې يو بل حکمت**

دا هم دے چه دا هغه حالتونه دی چه عادةً په کښې انسان خدائے پاک لره هيره وی- چه مال دولت ئے زيات شی نو په عيش عشرت کښې اخته شی خدائے هير کړی - او کله چه پورے تنګی او مصيبت راشی نو د دے په فکر کښې ډير کړتَه د خدائے نه غافله شی - په دے آيات کښې ئے دے طرف ته اشاره اوکړه چه د الله مقبول بندګان هغه دی چه نه په عيش کښې خدائے هيره وی او نه په مصيبت او تکليف کښې - د ظفر شاه دهلوی دا شعر په دے معنیٰ پورے څنګ بنکلے سمون خوری ؎

ظفر آدمی اس کو نه جانیۓ گا خواه ہو کتنا ہی صاحب فہم و ذکا

جسے عیش میں یاد خدا نہ رہی جسے طیش میں خوف خدا نہ رہا

(”يعنے ظفره هغه کس د سړيتوب خاوند نه دے خواه که ډير زيرک او هوښيار وی- چه درته په عيش کښې خدائے ياد نه وی او په قهر غصه کښې د خدائے نه نه يريږی“)

د دينه پس ئے د دوی يو خاص صفت او علامت دا اوخوده چه که د دوی د يو داسے سړی سره سابقه پريوځی چه دوی ته تکليف او ضرر اورسوی نو دوی د غصے په وجه بے قابو کيږی نه- او د غصے په وجه د دوی نه بَدْ لَه نه اَخلی- او بيا يوائے دا نه چه بدله ترے نه اَخلی- بلکه په زړه سره ئے معاف کوی او بيا په دے هم نه بَس کوی چاچه ورته تکليف رسولے وی د هغهٔ سره د احسان معامله کوی - په دے يو صفت کښې کو يا درے صفتونه شامل دی- خپله غصه قابو کول، تکليف ورکونکی ته معافی کول، بيا ورسره د احسان سلوک کول - دا درے څيزونه ئے په دے آيات کښې بيان کړيدی :-

وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ۝ :

يعنے هغه خلق چه خپله غصه قابو کوی او د خلقو قصور معاف کوی او الله تعالیٰ احسان کونکو لره خوښوی -

امام بيهقیؒ د دے آيات په تفسير کښې د حضرت علی ابن حسين الله د دے دواړو نه راضی شی- يو عجيبه واقعه نقل کړے ده چه يو ورځ دوی ته او دس کولو چه د هغې د لاسو نه ناڅاپه د اُوبو لوښے (د پاره اوبه اچوے) ارتاؤ شه او د حضرت

علي ابن حسين رض دَ پاسه راپریوت ټولے کپړے ئے لوندے شوے - نو غصه ورله راغله دَ وینځے سره یره شوه نو دے فورًا دا آیات اولوستو: وَالْكَاظِمِيْنَ الْغَيْظَ وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ: دَ دے دَاوریدو سره دَ نبوّت دَ خاندان دَ دے بزرګ ټول غصه سړه شوه او بالکل چپ شو - دَ دینه پس وینځے دَ آیات دویمه جمله: وَالْعَافِيْنَ عَنِ النَّاسِ: اولوستو نو ده او فرمایل چه ما د زه تهٔ معاف کړے - وینځه هوښیاره وه دَ دینه پس ئے دریمه جمله اولوستله: وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ: چه په دے کښے دَ احسان او ښهٔ سلوک خودَنه ده - حضرت علي بن حسين رض چه دا واوریده او ئے فرمایل چه زهٔ ما ته آزاده کړے - (روح المعانی بحواله بیهقی)

دَ خلقو خطا ګانے او غلطیانے معاف کول په انسانی اخلاقو کښے ډیره لویه درجه لری او دَ آخرت ثواب ئے ډیر لوئے دے - په حدیث کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے چه" دَ قیامت په ورځ به دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه آواز اوشی چه دَ چا چه په الله تعالیٰ باندے څهٔ حق وی هغه دے اودریږی - نو دغه وخت به هغه خلق او دریږی چا چه دَ خلقو زور ظلم په دنیا کښے معاف کړے وی"

په یو حدیث کښے ارشاد دے:-

| | |
|---|---|
| مَنْ سَرَّهٗ اَنْ يُّشْرَفَ لَهُ الْبُنْيَانُ وَتُرْفَعَ لَهُ الدَّرَجٰتُ فَلْيَعْفُ عَنْ مَّنْ ظَلَمَهٗ وَيُعْطِ مَنْ حَرَمَهٗ وَيَصِلْ مَنْ قَطَعَهٗ - | "کوم سړے چه داغواړی چه دهٔ محلونه په جنت کښے اوچت شی او درجے ئے بلندے شی ده لره په کار دی چه چا په ده ظلم کړے وی هغه معاف کړی او چا چه دهٔ |

لره چه ته څهٔ نه وی ورکړی هغه ته بخشش او هِبَه ئے ورکړی او چا چه دَ دهٔ سره تعلقات پاتے کړی وی دے دے دَ هغهٔ سره دَ ملاویدو نه پرهیز نه کوی"

قرآن کریم په بل ځائے کښے دَ دینه زیات په وضاحت سره دَ بدُو کُونکو سره دَ احسان کُونکو لوئے اخلاق ښودلی دی او دائے وئیلی دی چه دَ دے په ذریعه سره دشمن هم دوست جوړیدے شی - ارشاد فرمائی :-

اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ فَاِذَا | "یعنے دَ بدئ دفع په نیکئ او احسان سره

اَلَّذِیْ بَیْنَكَ وَبَیْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِیٌّ حَمِیْمٌ ۝ ۔

کوئ نو دَچا سره چه دشمني وي هغهٔ به ستا سو مخلص دوست جوړ شي“

الله تعالیٰ دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ اخلاقو تربیت هم په داسے اَعلیٰ طریقه سره کړے دے چه دا هدایت ئے ورته فرمایلے وُه:

صِلْ مَنْ قَطَعَكَ وَاعْفُ عَمَّنْ ظَلَمَكَ وَاَحْسِنْ اِلٰی مَنْ اَسَآءَ اِلَیْكَ ۔

” یعنے کوم سړے چه دِرسره تعلقات قطع کړي ته وِرسره جوړه وه ، څوک چه دِر باندے ظلم کوي معاف کوه ئے ، او څوک چه درسره بَدْ کوي ته پرے احسان کوه “

دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم خولوئے شان دے دَ دوئي دَ تعلیما تو په برکت سره دا اخلاق او صفتو نه دَ دوئي په ټنا و ما نو کښے هم الله تعالیٰ پیدا کړي وُو۔ کوم چه دَ اسلامي معاشرے لویه نښه ده ۔ دَ صحابهؓ وو او تا بعینوُ او دَ تیرو مشرانو دَ امّت تاریخ دَ داسے واقعا تو نه ډک دے ۔

دَ امام اعظم ابو حنیفهؒ یوه واقعه ده چه یو سړي په ډک بازار کښے دَ امام اعظم صاحبؒ په حق کښے گستاخي اوکړه او بد ے ردے ئے ورته اووے ۔ حضرت امام اعظم صاحبؒ غصه قابو کړه او دهٔ ته ئے هیڅ او نه وے ۔ چه کور ته راغلو نو په یوه مجمه کښے ئے ډیرے روپئ اشرفۍ کیخو دے او دَ دغه سړي کور ته ئے تشریف یوړو ۔ په دروازه کښے ئے ورته آواز اوکړو دا سړے باهر راغے نو دغه دَ روپو اشرفو مجمه ئے ورته وَړ وړاندے کړه او ئے فرمایل چه تا نن په ما ډیر احسان کړے دے تا ما لره خپلے نیکئ را کړے زهٔ دَ دے احسان په بدله کښے تا ته دا تحفه پیش کوم ۔ دَ امام صاحبؒ دَ دے معاملے نه دَ هغهٔ په زړهٔ دومره اثر اوشه چه دَ آئینده دَ پاره ئے دَ دے بد خوئ نه دَ همیشه دَ پاره توبه اوکړه ۔ دَ امام صاحبؒ نه ئے معافي اوغوخته ۔ او دَ امام صاحبؒ په شاگردانو کښے شامل شو او یو لوئے عالم ترے جوړ شو ۔

تر دے ځائے پورے دَ هغے صفتو نو بیان وُو چه دَ انساني حقوقو نو سره پیوست وُو ۔ دَ دے نه پس دَ هغے صفتو نو بیان دے چه دَ الله تعالیٰ دَ حقوقو نو سره پیوست دي ۔ نو دَ دے بیان ئے داسے اوفرمایه چه دا خلق دَ الله تعالیٰ نا فرماني نه کوي

او چه کله ترے د انسانی فطرت په وجه څه ګناه اوشی نو فوراً الله تعالیٰ طرف ته راګرځی توبه او باسی او ائنده د دغے ګناه د نه کولو پخه اراده اوکړی - ارشاد فرمائی:-

وَالَّذِيْنَ اِذَا فَعَلُوْا فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ۝ په دے کښے یو هدایت خو دا اوشه چه په ګناهو نو کښے اخته کیدل د الله تعالیٰ د یادوا او د ذکر نه د غفلت په سبب سره وی - نو په دے وجه هر کله چه یو ګناه د چا نه اوشی نو د الله تعالیٰ یاد فوراً تازه کول په کار دی - او د الله تعالیٰ په ذکر کښے مشغولیدل په کار دی -

دویم په کښے دا هدایت دے چه د ګناهونو نه د معافی د پاره دا د وه خبرے ضروری دی یو په تیرو ګناهونو باندے خپیمانی او د هغے معافی غوختل او د بچانے دعا کول دویم د ائنده د پاره هغے ته د نه نزدے کیدو پوخ قصد کول - الله تعالیٰ دے زمونږ د ټولو د قرآن کریم خو دلی شوی غوره اخلاق نصیب کړی او مونږ لره دے په دے د عمل کولو توفیق راکړی امین -

وَلَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ

او سستی مه کوئ او غم مه کوئ او تاسو به غالب یئ که تاسو

مُّؤْمِنِيْنَ ۝١٣٩ اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ

ایمان لرئ - که تاسو ته زخم او رسید نو هغوی ته هم زخم رسیدلے

قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ۭ وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَ

دے دغه شان - او دا ورځے په وار وار بدلوو مونږه په خلقو کښے - او د

لِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ۭ

دے د پاره چه معلوم کړی الله په چا کښے چه ایمان دے - او کړی په تاسو کښے ګواهان -

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۰﴾ وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ

او الله محبت نه کوی د ظلم کوونکو سره - او په دے وجه چه پاک کړی الله مؤمنانو

اٰمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۱﴾ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ

لره او ورک کړی کافرانو لره - آیا ستاسو خیال دے چه

تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا

داخل به شئ جنت ته اوترا وسه پورے معلوم کړی نه دی الله کوم چه جنګ کوونکی دی

مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۲﴾ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ

په تاسو کښے او معلوم کړی نه دی ثابت قدم پاتے کیدونکی - او تاسو آرزو کوله د مرګ

الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَلْقَوْهُ ۠ فَقَدْ رَاَيْتُمُوْهُ وَ

مخکښے د دے سره د ملاقات کولو نه - پس اوس تاسو اولیدو دے

اَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۱۴۳﴾ ع ۱۴

لره د سترګو د ورانده -

## د آیاتو توتړون

په دے آیاتو کښے بیا د احد د قصے متعلق مسلمانانو لره د تسلئ ورکولو مضمون دے - چه د همیشه نه د الله تعالیٰ دا طریقه راروانه ده چه آخر کار کفار ناکامه او نامراده وی اګرچه تاسو په دے وخت کښے د خپلے بے انتظامئ په وجه مغلوب شوئ لیکن که د خپل ایمان د تقاضا په مطابق ثابت قدم او په تقوی قائم پاتے شوئ نو په آخر کښے به دا کفار مغلوب او ناکامه شی - او تاسو به غالب شئ په دوی باندے -

# لنډ تفسير

او تاسو که داوخت مغلوب شوئ نو څۀ اوشو؟ همت مۀ بائلئ او غم مه کوئ او اخر تاسو به غالب شئ که تاسو پوره مؤمنان شوئ (يعنې په مقتضا دَ ايمان ثابت پاتې شوئ) که تاسو ته زخم (صدمه) اورسي (لکه چه په اُحد کښې اورسيده) نو رخۀ دَ کبراويد وخبره نه ده ځکه چه په دے کښې څو حکمتونه دي يو داچه) دغه قوم ته هم (کوم چه ستاسو په مقابله کښې وُو يعنې کفار) داسې زخم (صدمه) رسيدلے ده (لکه چه په تير بدر کښې دوي دا صدمه برداشت کړے ده) او (زمونږ دا معمول دے چه) دَ دغو لوه (يعنې دَ غالب او مغلوب کيدو زمانے لوه) دَ خلقو په مينځ کښې ادل بدل کوُو (يعنې کله مُو يو قوم غالب او بل مغلوب کړے دے او کله موعکس کړے دے، نو دَ دے معمول مطابق تير کال هغوي مغلوب شوي وُو او س تاسو شوئے. يو حکمت دا شو) او (دويم حکمت دا دے) دَ دے دَ پاره چه الله تعالیٰ ايمانداروله (په ډاګه سره) معلوم کړي (ځکه چه دَ مُصيبت په وخت کښې دَ مخلص او نيک امتحان کيدے شي) او (دريم حکمت دا دے ) چه په تاسو کښې بعضو لره شهيدان جوړ ول وُو (پاتې حکمتونه وړاندې راځي په مينځ کښې دَ جملې معترضې په طور سره فرمائي) او الله تعالیٰ ظلم (کفر او شرک) کوُنکو سره محبّت نه ساتي (ليس دَ دے شك دے نه شي کولے چه شايد دَ دوي سره ئے محبّت وُه ځکه ئے غالب کړۀ داسې نه ده) او (څلورم حکمت دا دے) دَ دے دَ پاره چه (دَ ګناهونو نه خيري) نه ايماندارو لره صاف کړي (ځکه چه په مصيبت سره دَ اخلاقو او عملو نو صفائي کيدے شي) او (پنځم حکمت دا دے چه) ورک کړي کافرانو لره (دا ځکه چه په غالب راتلو سره به دَ دوي همت زيات شي او دوباره به مقابلے ته راوړاندے شي او هلاک به شي. دويم داچه په مسلمانانو باندے دَ ظلم کولو په وجه سره به دوي دَ الله تعالیٰ په قهر کښې اخته شي او هلاک به شي) هاں اووا ورئ! اے تاسو خيال کوئ چه جنت ته به (په خصوصيّت سره) داخل کړے شئ حال دا دے

چه لا تراوسه الله تعالیٰ ر په ظاهري طور سره) دغې خلقو لره لیدلي نه وي چا چه په تاسو کښې (ربنه) جهاد کړې وي او کوم چه په جهاد کښې ثابت قدم پاتې کیدونکي وي او تاسو خو (دَشهید کیدو) دَ مرګ (لویه) آرزو کوله دَ مرګ مخامخ راتلو نه مخکښې پس (دَ آرزو مطابق مو رسامان دَ) دې لوه په ښکاره سترګو سره او لیدهٔ (ربیا چه مو دغه او لید و نو وَلې په تیخته شوئې او هغه آرزو کانې مو چرته هیرې شوې) -

# معلومات او مسئلې

دَ اُحد دَ غزا واقعه په دې سورت کښې په خپل پوره تفصیل سره بیان کړې شوې ده - چه په دې کښې دا خبره معلومه شوې ده چه په دې جهاد کښې دَ مسلمانانو دَ بعضې کوتاهو په وجه دَ ابتدائي فتح نه پس شکست او خوړو - اوویا صحابه کرام شهیدان شو - نبي کریم صلے الله علیه وسلم زخمي شو - مګر دَ دې ټولو خبرو نه پس الله تعالیٰ بیا دَ جنګ پانړه بدله کړه او دشمن وُرو ستو شو -

دَ دې عارضي ماتې درې سببونه وُو - اول دا چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم چه کوم حکم غشو ویشتونکو ته ورکړې وُه دوی دَ بعضې سببونو په وجه په دې قائم پاتې نه شو - ځکه چه په دې باره کښې اختلاف راغې او شو - چا وې چه مونږ لره دلته قائم پاتې کیدل په کار دي - او ډیرو وې چه اوس دلته زمونږ پاتې کیدو ته هیڅ ضرورت نیشته تلل په کار دي او دَ ټولو سره په غنیمت راغونډولو کښې شریک کیدل په کار دي - نو اولنی سبب ئې په خپل منځ کښې جګړه وه - دویم سبب دا او شه - چه هرکله دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ قتل خبر مشهور شو نو دَ مسلمانانو په زړه و نو کښې کمزوري پیدا شوه چه نتیجه ئې دَ بې زړه توب او بې همتۍ په صورت کښې ښکاره شوه

دریم سبب چه دَ دې دواړو سببونو نه زیات اهم وُه دا دې چه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ حکم په منلو کښې اختلاف پیدا شه - دا درې غلطۍ دَ مسلمانانو نه او شوې چه دَ دې په سبب مسلمانانو عارضي ماتې او خوړه -

داعارضي ماتې اګرچه اخرکار په فتح کولو کښې بدل شوے وه - لیکن مسلمانان مجاهدین د زخمونو د لاسه چُور چُور وُو - د دوی د لويو لويو بهادرانو لاشونه د دوی په مخ کښې پراته وُو - نبی کریم صلی الله علیه وسلم لره هم بد بختانو زخمی کړے وُه - د سختو اونا اُمیده یو اَنبار وُه - او د خپلو دغو غلطو ورته هم سخته صدمه وَه - اوس دلته دوه څیزونه پیدا شوی وُو - یو د تیر و خبرو غم اورنج او دویم شے د کوم چه خطره وه هغه داچه مسلمانانو د آئنده د پاره چرته کمزوری نه شي - او د دُنیا د قومونو د امامت کوم فرض چه په دوی غوره زه وَلی شوید ی په دے کښې کمزوری رانه شي - په دے وجه د دے دواړو سُورونه بند ولو د پاره قرآن کریم دا سے ارشاد اوفرمایه ؛

: لَا تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ؛ یعنی تاسو د آئنده د پاره کمزوری او سُستی په ځان کښې مه راولئ - او غم او فکر مه کوئ په تیره باندے او په اخر کښې به تاسو غالب ئی په دے شرط سره که تاسو په ایمان او یقین باندے قائم ولاړ وئے او د الله تعالی په وعدو موکامل یقین ساته د رسول د اطاعت سره مو د جهاد فی سبیل الله نه قدم نه وروستو کولو -

مطلب داوه چه تیرے خبرے او لغزشونه چه څهٔ شوید ی په هغے باندے په غم او فکر کولو کښې خپل وخت او طاقت خرچ کولو په ځائے په راتلونکی وخت کښې د خپل کار برابر کولو فکر کوئے - او خپل راتلونکے وخت کامیاب کوئے ایمان او یقین او د رسول حکم منل د راتلونکی وخت د کامیابئ ضمانت دے دا د لاسونه مَه غوره زه وئے - اخرکار به تاسو کامیاب او غالب یئ -

د قرآن دے اُدا زمات زړونه پیوند کړل او په مړاوُه بدنونو کښې ئے تازه روح واچولو - فکر اوکړئ چه الله تعالی د دے حضراتو په څهٔ شان سره پالنه او اصلاح اوفرمائله - او د همیشه د پاره ئے مسلمانانو لره یو ضابطه او اصُول ورکړه چه په تیرو خبرو باندے د غم او فکر کولو کښې د وخت تیره وَلو په ځائے د آئنده د پاره خپل طاقت او قوت او شان شوکت راجمع کول به کار دی - بیائے د دے سره سره داهم او خوده چه د غلبے او لوئیے حاصلولو د پاره صرف یو شے اَصل دے یعنی ایمان او د هغهٔ تقاضے پوره کول - د ایمان په

تقاضو کښې هغه تیار دې حم داخلې دی کوم چه دَجنګ په سلسله کښې کولې شي یعنې دَخپل فوجي قوت محکم کول دجنګ دَسامان تیاره ول اوظاهري اسباب په قدر دَطاقت او قدرت برابره ول او ځان باوسله کول، دَاحُد دَغزا ټول واقعات دَ اوّل نه تر اخره پورې دَدې ټولو خبرو ګواه دی -

دَدې ایات نه پس په بل اندازسره دَمسلمانانو دَتسلّۍ دَپاره ارشاد دې چه که په دې جنګ کښې تاسو ته زخم اورسید ه یا درته تکلیف اورسید نو دغه شان حادثې مقابل فریق ته هم رابېخې شوې دی - که په احد کښې ستاسو اویا کسان شهیدان او ډیر زخمیان شو، نو یو کال وړاندې دَ هغوی اویا کسان مُردار شو جهنم ته اورسیده او ډیر زخمیان شوی دی - او په خپله په دې جنګ کښې هم په اول کښې دَدوی ډیر کسان قتل شوی او زخمي شوی دی - فرمائي:

اِنْ يَّمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ؕ وَتِلْكَ الْاَيَّامُ نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ: یعنې که تاسو ته زخم اورسید و نو دوی ته هم داسې زخم رسیدلې دې او مونږ دې ورځو له بار بار بدلوو او بدلوو چه په دې کښې ډیرې حکمتونه پټ دی -

په دې ایات کښې یو اهم ضابطې او اصولو طرف ته ئې رهنمائي او فرمائیله هغه دا چه دَالله تعالیٰ عادت په دې دنیا کښې دا دې چه هغه دَدرد او تکلیف او آرام، سختۍ او نرمۍ، تکلیف او راحت ورځې په خلقو کښې اړه وی را اړه وی که په څۀ وجه سره یو باطل قوت ته عارضي فتح او کامیابي حاصله شي نو په حق والا د تولی لره په دې سره خفه کیدل نه دی په کار - او دا نه دی ګڼل په کار چه اوس به دَهمیشه دَپاره زمونږ شکست وی - بلکه دَدې شکست او ماتې دَاسبابو پته دې اولږه وی او دَهغې متعلق دې خپل ضروری تیارې اوکړی - نو په حق باندې قائم ټولې به اخر کار فتح بیا موي - او کامیابي به ئې نصیب شي -

وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ

او محمدؐ خو یو رسول دې - تیر شوی دی دَدۀ نه وړاندې ډیر رسولان

اَفَا۟ئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ ؕ وَمَنْ يَّنْقَلِبْ

اے پس که دے مړشي یا قتل کړے شي نو تاسو به واپس کیږئ په پوندوپاندے- او څوک چه واپس

عَلٰى عَقِبَيْهِ فَلَنْ يَّضُرَّ اللّٰهَ شَيْـًٔا ؕ وَسَيَجْزِى اللّٰهُ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۴﴾

شه په پوندو پاندے نو هغه به ورانه نکړي د الله څه شے - او الله به ثواب ورکړي شکر کندارو لره-

وَمَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تَمُوْتَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ؕ

او څوک نه شي مړکیدے بغیر د حکم د الله نه لیکلے شوے دے یو وخت مقرر-

وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ

او څوک چه غواړي بدله د دنیا وربه کړو ورلره موږ د دے دنیانه- او څوک چه غواړي بدله

الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ وَسَنَجْزِى الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۵﴾

د آخرت نو وربه کړو ده لره د دے نه - او موږ به ثواب ورکړو احسان منو نکو لره-

# لنډ تفسير

او محمد (صلے الله علیه وسلم) خو یو رسول دے (خدا ئے خو نه دے چه قتل یا مړک ورلره ممکن نه دے) د دوی نه وړاندے ډیر رسولان تیر شوي دي (د غه شان به دوی هم یو ورځ تیر شي) پس که دوی انتقال او شي یا دوی شهید شي نو اے تاسو خلق به د جهاد یا اسلام نه) په شا واپس کیږئ (لکه چه په دے واقعه کښے بعضے خلق مسلمانان د مید ان د جنګ نه تختید لي وو او منافقانو ورته د مرتد کید و ترغیب ورکولو) او کوم سړے چه د جهاد یا اسلام نه) په شا واپس شي نو د خدائے تعالیٰ هیڅ نقصان نه شي کولے (بلکه خپل هر څهٔ به تاوان کړي) او خدائے تعالیٰ به ډیر ذر (نیک) عوض ورکړي حق پیژندونکو خلقو ته (کوم چه په داسے موقعو د الله تعالیٰ انعامونو لره یاد وي د هغهٔ په اطاعت قائم او ثابت قدم او سي.

او کوم شے چه په قیامت کښې ملاویږي هغهٔ ډیر زر دے لرے نه دے ځکه چه قیامت روزانه نزدے کیږي) او (دا رنګ د چا په مرګ سره دومره یریدل هم فضول دي ځکه چه اول خو) چا لره مرګ را تلل ممکن نه دي (که طبعًا وي او که عقلًا) بغیر د حکم د الله نه (نو بیا چه مرګ په حکم د خدائے سره دے نو په دے راضي کیدل ضروري دي، دویم دا چه د چا مرګ چه راځي هم نو) په دے طور سره چه د دهٔ میعاد مقرر لیکلے شوے وے او په هغې مقرر وخت راځي چه وړاندهٔ والے او روستو والے په هغې کښې نه شي کیدے نو بیا ارمان او افسوس کول محض بے کاره دي ځکه چه مرګ خو خامخا په مقرر وخت باندے وي د وخت نه وړاندے هرګز نه شي کیدے) او (بیا د دے یرے په وجه د تختید واخر نتیجه څهٔ ده، صرف دا چه په دنیا کښې به نور یو څو ورځے ژوندے پاتے شي پس د دا سے تد بیرو اثر وا ورئ چه) کوم سړے چه (په خپلو عملو نو او تد بیرونو کښې) د دنیا نتیجه غواړي نو مونږ دهٔ ته د دنیا حصّه (په دے شرط چه زمونږ رضا وي) ورکوو (او په آخرت کښې به د دهٔ د پاره څهٔ حصّه نه وي) او کوم سړے چه (په خپلو عملونو او تد بیرونو سره) د آخرت نتیجه غواړي (مثلًا په جهاد کښې په دے وجه ثابت قدم پاتے شي چه دا تدبیر دے د آخرت د ثواب) نو مونږ دهٔ لره د آخرت (حصّه) ورکوو او ډیر زر به (نیکه) بدله ورکړو (دا سے) حق پیژندونکو ته (کوم چه په خپلو عملونو د آخرت نعمتونه غواړي)-

## معلومات او مسئلے

دا آیاتو نه هم د اُحد د غزا د واقعاتو متعلق دي- ځکه چه د اُحد دا واقعات په څو وجهو سره ډیرا هم دي- نو هم دا وجه ده چه قرآن کریم د سورت آلِ عمران د څلورو پنځهٔ ورکوع ګانو پورے د اُحد د غزا فتح او ماتے او په دے دواړو کښې چه کوم قدرتي هدایتونه پټ وُو د هغے ئے پرلیسے بیان کړے دے-

په ذکر شوُو آیاتونو کښې په اول آیات کښې د بعضے صحابه کرامو" به

یو لغزش بانده د زور رتی په انداز کښې یو داسې اصولی مسئلې طرفته خوځنه کړې ده چه څوک ورته سوچ او فکر او کړي نو هغه ته دا پته لګيد ے شي. چه په دے عارضی ماتې کښې او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په زخمی کید و کښې او د حضورؐ د وفات په خبر خوريد و کښې او په دے بانده د بعضې صحابه وُو په همت باندی کښې دا راز هم وُه چه مسلمانان په دے اصُولی مسئله بانده په عملی طور سره پاخهٔ شي. هغه اُصولی مسئله داده چه د اسلام په اصولو کښې دے خبرے ته ډيرا همیّت ورکړے شو ید ے. چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم عظمت او محبت د ایمان جُز مقرر کړے شوے دے په دے کښې معمولی شان کمزوري هم د کفر برابر ده. خو د لته دا خبره هم ډيره اهمه وُه چه هسې نه مسلمانان په هغې مرض اخته نه شي په کوم کښې چه نصارا او عيسايان اخته شوي وُو. چه د حضرت عيسیٰ علیه السلام عظمت او محبّت ئې د هغه د عبادت کولو درجې ته رسولے وُه. او د خدائے تعالیٰ سره ئې په خدائی کښې شريک کړے ګڼلے وُو.

د اُحد په غزا کښې چه د عارضی ماتې په وخت کښې هر کله چا دا خبر مشهوره کړه چه نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفات شو نو دغه وخت چه په صحابه کرامؓ څهٔ تيرشوا او تيريدل ئې په کار وُو. د دے لږه او معمولی شان اندازهٔ کول هم د هر سړي د پاره آسان نه دی. د دے لږه ډيره اندازه هغه څوک کولے شي چاته چه د اصحابؓ په هغوی د ځان قربانولو او د هغوی سره د عشق او مينې څهٔ اندازه معلومه وی. چا ته چه دا پوره په پوره معلومه وی. چه دا هغه حضرات دی چا چه د نبی کريم صلی الله علیه وسلم په محبّت کښې خپل مال او خپل اولاد او خپل ځانونه او هر څهٔ قربان کول د دنيا د ټولو نه لو یه نيک بختی ګنړله او په عملی طور سره ئې د دے ثبوت ورکړے دے.

د نبی کريم صلی الله علیه وسلم د دے عاشقانو په غوږونو کښې چه کله دا خبر پرے وتے وی نو د دوی د هوش او حواسو حال به څهٔ وُو، او خاص کر چه بيا د جنګ ميدان ګرم دے، او د فتح نه پس د ماتې خوړو نظاره د سترګو په وړاندے ده. د مسلمانانو ځپې خوئيدلی دی. په داسې حالت

کښې چه دا ټول کوششونه او محنتونه او ټول امیدونه دَ هغوئ دَ ذات په وجه وُو- هغه هم دَ دوینه رخصتیږی - دَ دے طبعی نتیجه داوه چه دَ صحابه کرامو یوه لویه ډله ، زړهٔ ماتے شوه او دَ جنګ دَ میدان نه په ډډه کیدهٔ شوه - دا دَ جهاد دَ میدان نه په ډډه کیدل اګرچه دَ وقتی اوسوسری زړهٔ ماتی نتیجه وه خدائے مهٔ کړه دَ اسلام نه دَ واپس کیدو وسوسه قد رے په کښې هم نه وه- لیکن الله تعالیٰ دَ خپل رسول صلے الله علیه وسلم دَ صحابهٔ وُو نه یو داسے پاکباز فرشته خوئے جماعت جوړه ول غواړی چه دَ دُنیا دَ پاره یو عملی نمونه جوړه شی په دے وجه ئے دَ دوی معمولی لغزش هم سخت اُوګرځا وَه - ؎

نزدیکان را بیش بود حیرانی

"یعنے دَ مقربینو حیرانی قد رے هم لوئے لغزش شما ریږی ی" نو په دے وجه ئے دوی ته په میدِ اُحد جنګ بریخودو باندے داسے خطاب اوفرمایه لکه چه په اسلام بریخودو باندے کولے شی - او دَ سختے زور نے سره ئے په دغه بنیادی مسئله باندے هم خبردار کړل چه دین او عبادت دَ الله دَ پاره دے او جهاد هم دَ هغهٔ دَ پاره دے کوم چه همیشه ژوندے او قائم دے که فرض کړه دا خبر صحیح هم وی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم وفات شو نو بهرحال داسے خو به یوه ورځ کیږی هم نو په دے خبره باندے بے همته کیدل او دَ دین کار پریخودل دَ دے حضراتو دَ شان سره لائق نه دهٔ - په دے وجه ئے ارشاد اوفرمایه :

وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ" الاٰیۃ : یعنے محمد (صلے الله علیه وسلم) خو یو رسول دے (خدائے خو نه دے) دَ دوئ نه وړاندے هم ډیر رسولان تیر شوی دی که دوئ وفات شی یا دوئ شهید کړے شی نو تاسو خلق به بیرته په شا کانو واپس کیږئ او څوک چه په شا واپس شی دے دَ الله تعالیٰ هیڅ نه شی وَرانولے او الله تعالیٰ به ثواب ورکړی شکر کن اړو لوه -

په دے کښې ئے خبردارے ورکړهٔ - چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم به دَ یوے نه یوه ورځ دَ دے دنیا نه رخصتیږی -دَ دوئ نه پس به بیا هم مسلمانانو لوه په دین باندے ثابت قدم پاتے کیدل وی - دَ دے نه دا هم معلومه شوه

چه د ورته عارضي ماتې خوړه په وخت کښې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم زخمي کېدل او د وفات کېدو د خبرې مشهورېدو کښې دا قدرتي راز وو- چه د دوی نه پس کوم حالات په اصحابو رض باندې راتلل وو- هغه حالات د دوی په دنياوي ژوند کښې ظاهر کړې شو- د دې د پاره چه په دوی کښې کوم لغزش وی چه د هغې اصلاح په خپله د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په ژبه مبارکه سره اوشي- او په راتلونکي وخت کښې چه کله دا واقعه د وفات په رشتيا سره راشي نو چه د رسول ؐ دا عاشقان پرې د دومره نه بې ځايه نه کيږي- نو هم دغسې اوشوه- د دوی د وفات په وخت کښې چه کله د لويو لويو صحابه کرامو رض هوش او حواس په ځايې نه وو نو حضرت صديق اکبر رضي الله عنه د قرآن په دا سې قسم آيا تو باندې دوی لره پوهه کړل او د دوی رض حواس په ځائې شو-

د دې نه پس په بل آيات کښې هم د حادثو او مصيبتونو په وخت کښې د ثابت قدم پاتې کېدو د تعليم ورکولو د پاره ئې دا ارشاد وفرمايه چه د هر انسان مرګ د الله تعالیٰ په نزد ليکلې شوې دې- د دې تاريخ ورځ او وخت مقرر دې نه د دغې نه وړاندې د چا مرګ راتلې شي او نه تړې وروستو ژوندې پاتې کېدې شي- نو چه خبره داسې ده نو بيا د چا په مرګ باندې دومره سرګردانه کېدل هيڅ معنیٰ نه لري-

په آخر کښې ئې په دې خبره باندې خبردارې ورکړو چه د دې حادثې په ظاهري اسبابو کښې يو سبب دا هم وو چه کوم حضراتو لره نبي کريم صلی الله عليه وسلم شا طرفته په غرۀ باندې د حفاظت د پاره کينولي وو- د اوّلې فتح په وخت کښې چه عامو مسلمانانو لره دوی په غنيمت جمع کولو باندې مشغول اوليدل نو په دوی کښې هم د يو شو حضراتو دا خيال شو چه اوس فتح اوشوه دلته د پاتې کېدو ضرورت پاتې نه شو نو اوس په کار دی چه موږ هم په مال د غنيمت جمع کولو کښې حصه واخلو دوی د خپل ځائې نه او خوزيدل- په دې وجه فرمائي :

وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا وَسَنَجْزِي الشّٰكِرِيْنَ ﴿﴾: يعنې کوم سړې چه د خپل عمل په دنيا کښې بدله غواړي موږ دۀ لره په دنيا کښې څۀ حِصه ورکوو او څوک چه د آخرت ثواب غواړي نو دۀ ته د آخرت ثواب

ملا ویړی او موندی په ډیر زر شکوکی او ولړه بدله ورکړو۔
په دې کښې ئې اشاره او فرمایله چه دَ غنیمت دَ مال جمع کولو په فکر کښې دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په مقرر کړی کار یاتې کولو کښې دَ دوی نه غلطی اوشوه۔ یاد ساتی چه په حقیقت کښې دَ غنیمت مال جمع کول داسې دُنیا طلبی نه وه چه په شریعت کښې بده وه۔ بلکه دَ غنیمت مال جمع کول او محفوظ کول ئې او بیائې په خپل مَصرف کښې لګول دا هم دَ جهاد یو حصه وه۔ او عبادت دې۔ او دَ دې اصحابو په دې کښې شریك کیدل صرف دَ دُنیوی طمع په وجه سره نه وُو۔ ځکه چه په شرعی طور سره که دَ وی دَ دې مال په جمع کولو کښې شریك شوی هم نه وې بیا به دوی ته په مال غنیمت کښې هغه حصه ملاویده کومه چه ورته او س ملاؤ شوه۔ په دې وجه دا نه شی ویلې چه دې حضرا تو دَ دنیا دَ طمع په وجه خپل ځائې پریخوده۔ لیکن لکه څنګه چه دَ اوّل ایات په تفسیر کښې خودَلې شوې ده چه دَ لویو لویو شان لغزش هم لوئې ګڼړلې شی۔ دَ دوی معمولی جرم ډیر لوئې جرم اوګرځوی او په زوره ئې سره ورته خطاب کولې شی نو دغه خبره دلته هم ده چه دَ غنیمت دَ مال په جمع کولو کښې څهٔ نه څهٔ دَ دنیوی نفع تعلق ضرور وو او دَ دې تعلق طبعی اثر په زړونو باندې کیدل هم لرې خبره نه وه۔ دَ صحابه کرامؓ اخلاقو لره دَ اوُچت نه اوُچت مقام ته دَ رسَولو دَ پاره ئې دَ دوی دا عمل هم دنیوی عمل او ګرځولو دَ دې دَ پاره چه دَ دنیاوی طمع معمولی شان ګرد هم دَ دوی زړونو ته لاړ نه شی۔

وَكَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِيٍّ قٰتَلَ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا وَهَنُوْا

او ډیر نبیان دی چه دَ دوی (په ملګرتیا) سره جنګیدلی دی ډیر خدائی خلق بیا نه دی سست شوی په

لِمَآ اَصَابَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَمَا ضَعُفُوْا وَمَا اسْتَكَانُوْا ؕ وَ

تکلیف رسید وسره دَ الله په لاره کښې۔ او نه کمزوری شوی دی او نه ستړی شوی دی۔ او

اللّٰهُ يُحِبُّ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۶﴾ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا

الله تعالیٰ محبت کوی دَ صبر کوُنکو سره۔ او هیڅ ئې او نه ویل مګر دا ئې او وئیل چه

رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَاِسْرَافَنَا فِیْٓ اَمْرِنَا وَثَبِّتْ اَقْدَامَنَا

اے ربه زمونږه اوبخښه زمونږ ګناه او زمونږ نه چه کوم زیاتے شوی په کار زمونږ کښے او ثابت او لګوه قدمونه

وَانْصُرْنَا عَلَی الْقَوْمِ الْکٰفِرِیْنَ ﴿۱۴۷﴾ فَاٰتٰىهُمُ اللّٰهُ ثَوَابَ

زمونږه او مدد او کړے زمونږه په قوم د کافرانو- بیا ورکړو الله دوی لره ثواب د

ع ۱۵ ۵ ۶ الدُّنْیَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْاٰخِرَةِ ؕ وَاللّٰهُ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۱۴۸﴾

دُنیا او ښهٔ ثواب د آخرت - او الله محبت کوی د نیک کارکو نکو سره -

## د آیاتو نوتړون

په تیرو آیاتو نو کښے د اُحد په غزا کښے د بعضو کوتا هو کولو په وجه مسلمانانو ته خبردارے او ملامت کولے وو - په دے آیاتو نو کښے هم د تیرو اُمتو نو ځنے حالاتو او واقعاتو ته د اشارے کولو سره د دغے واقعاتو تکمله اوکړے شوه - چه هغوی څنګه په میدانِ جنګ کښے ثابت قدم او مستقل پاتے شویدی تاسو لره هم داسے کول په کار دی -

## د بعضے ټکو تشریح

رِبِّیُّوْنَ: په زیر د را - او شد د با سره د زیر او پیښ د یا - ربّ طرفته منسوب دے - لکه: رَبَّانِیْ: چه معنی ئے ده رب والا - (خدائی خلق) دلته د را زیر خلافِ قیاس استعمال شوے دے (روح) بعضے حضراتو د: رِبِّیُّوْنَ: معنی ډیرے ډلے (تولګی) کړے ده- د دوی په نزد با ندے دا د: رِبَّةٌ: جمع ده معنیٰ ئے ټولے (ډله) ده چه دے ته یعنی جماعت طرفته منسوب دے - د: رِبِّیُّوْنَ: (خدائی خلق) نه مراد دلته کوم خلق دی؟ د حضرت عبد الله بن عباسؓ او حسنِ بصریؒ نه نقل دے چه د دے نه مراد فقهاء او علماء دی (روح المعانی)

اِسْتَکَانُوْا: د: اِسْتِکَانَةٌ: نه جوړ دے معنیٰ ئے ده ستړی کیدل او د بے وسئ په وجه د کاره لاس ویستل او بس کول (ریضا دی)

وَهَنُوْا: د: وَهْنٌ: نه جوړ دے چه معنیٰ ئے ده ضعیف والے او کمزوری.

---

# لنډ تفسير

او ډير نبيان تير شوي دي چه ددوي سره ډيرو ډيرو خدائي خلقو (د کفارو سره) جنګونه کړي دي نه دوي همت بائيللے دے د دے مصيبتونو په وجه سره کوم چه په دوي باندے د الله په لاره کښے واقع شو يدي او نه د دوي (د بدن يا ذهن) زور کم شو يدے او نه دوي (د دشمن په وړاندے) سټرې شو يدي او چه دوي ته ئے د عاجزئ او خوشامندے خبرے کړے دي) او د الله تعالیٰ د داسے مستقل مزاجو سره محبت دے (او په کارونو کښے به د دوي نه څه لغزش کيده چه) د دوي د ژبو هم نسوا د دينه نوره څه نه دي وتلي چه دوي (د الله تعالیٰ په دربار کښے) عرض او کړو چه اے زمونږ پروردګاره زمونږ ګناهونو لره او زمونږ په کارونو کښے زياتي کولو لره او بښے او مونږ لره (د کفارو په مقابله کښے) ثابت قدم او لرے او مونږ لره په کافرانو باندے غالب کړے نو (د دے ثابت قدمئ او دعا په برکت سره) دوي لره الله تعالیٰ د دنيا بدله هم ورکړه (يعني فتح او نصرت) او د اخرت ئے هم ښکلے بدله ورکړه (يعني رضا او جنت) او د الله تعالیٰ د داسے نيکو کارو سره محبت دے۔

# معلومات او مسئلے

په دے ذکر شوو آيا تو نو کښے د تيرو انبياؤ عليهم السلام سره په جهاد کښے د شريک شوو خدائي خلقو په جنګ کښے د ثابت قدمئ او د مصيبتونو او سختونه د نه يريدو او د نه کمزوري کيدو بيان کولو نه پس ئے د دوي د يو بل عظيم الشان صفت بيان هم په داسے شان بيان فرمائيلے دے چه دوي به د خپلے دے بے مثاله قربانئ سره هم د الله تعالیٰ په دربار کښے څلور دعاګانے کولے۔

اوّل دا چه زمونږ تير ګناهونه معاف کړے۔

دوئيم دا چه په دے موجوده جهاد کښے چه زمونږ نه کومے کوتاهئ شوي وي دا معاف کړے۔

دريم دا چه مونږ په ثابت قدمئ باندے قائم او ساتے۔

څلورم دا چه مونږ په دشمنانو باندے غالب کړے۔

په دے دعاګانو کښے د مسلمانانو د پاره یو څو اهم هدایات دی:

په خپل څۀ نیک عمل باندے ناز کول نۀ دی پکار بلکه په هرحال کښے د الله تعالیٰ د مغفرت او په نیک عمل باندے د قائم پاتے کیدو دُعا کول پکار دی

اول دا چه د حق پیژندونکو مؤمن دا کار دے چه دوی هر څو مره لوئے نیک کار او څو مره جد وجهد د الله تعالیٰ په لاره کښے کوی دوئ ته دا حق نیشتے چه په خپل عمل باندے ناز او فخر او کړی ځکه چه په حقیقت کښے د دوئ دا عمل هم د الله تعالیٰ د فضل او کرم نتیجه ده - د الله تعالیٰ د فضل او کرم نه بغیر هیڅ نیک عمل خو د سره کیدے نۀ شی- په حدیث شریف کښے دی:

فَوَاللّٰهِ لَوْ لَا اللّٰهُ مَا اهْتَدَیْنَا وَلَا تَصَدَّقْنَا وَلَا صَلَّیْنَا

"یعنی که د الله تعالیٰ فضل و کرم نۀ وے نو مونږ ته به نه د نیغے لارے هدایت ملاؤ شوے وے او نۀ به مونږ نه زکوٰة او مونځ ادا شوے وے"

د دینه علاوه چه کوم نیک عمل انسان کوی هغه که هر څو مره ټهیک او برابر وَلے او نۀ کړی لیکن د بادشاهانو د بادشاه د لوئے شان مطابق کول ئے د دۀ په طاقت کښے نه دی په دے وجه د هغۀ په حق ادا کولو کښے د کوتاهئ کیدو نه خلاصے نیشتے- نو د دۀ د پاره ضروری ده چه د عمل کولو په وخت کښے هم استغفار کوی او بخنا نه غواړی-

دارنګې دا تسلّی هم هیڅ ته حاصله نۀ ده چه کوم نیک عمل دے اوس دا وخت کوی وړاندے به هم دۀ ته د دے توفیق حاصل وی - په دے وجه په موجوده عمل کښے په کمی باندے ندامت (پښیمانی) او د ائنده د پاره په دے باندے د قائم پاتے کیدو دُعا کول د مؤمن د پاره خپل فرض ګڼړل په کار دی-

په ذکر شوو دُعاګانو کښے د ټولو نه اوّل د خپلو تیرو ګناهونو د معافئ درخواست کولو کښے دے طرف ته اشاره ده چه په دنیا کښے انسان ته کوم غم او تکلیف یا د دُشمن په مقابله کښے د ماتے خوړو حالات راپیښیږی دغه اکثر د دۀ د تیرو ګناهونو اثر وی چه علاج ئے استغفار او توبه ده- مولانا رومیؒ فرمائی ؎

غم چو بینی زود استغفار کن    غم بامر خالق آمد کار کن

"یعنے غم د خالق په امر سره راځی تا لوه استغفار کول او خپل کار جاری ساتل په کار دی"

په آخرې آیات کښې دَ خدائې خلقو په دنیا او په آخرت کښې دَ غوره بدلے ورکولو ذکر دے چه په دنیا کښې به هم الله تعالیٰ دوی آخر کار په دشمنانو باندے غالب او په خپل مقصد کښې کامیاب او فرمائی او بیا دَ آخرت بدله خو اصل بدله او دَ همیشه راحت دے چه چرته به ورله فَنا نه وی. دے طرفته دَ اشارے کولو دَ پاره ئے دَ آخرت دَ ثواب سره لفظ دَ حُسن زیات کړو: وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ بئے او فرمائیل۔

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنْ تُطِيْعُوا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَرُدُّوْكُمْ

اے ایماندارو که تاسو خبره او منئ دَ کافرانو نو دوی به تا سو او کرځوی

عَلٰٓى اَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۱۴۹﴾ بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ

په اُلټه پوندو باندے بیا به پریوځئ تاسو په نقصان کښے۔ بلکه الله ستا سو مددګار دے

وَهُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ ﴿۱۵۰﴾

او دَ هغهٔ مدد دَ ټولو نه غوره دے۔

# لنډ تفسیر

**دَ آیاتو نوټرون** دَ اُحد په غزا کښې دَ مسلمانانو په عارضی ماتے خوړلو او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ وفات په اَفواه خوریدو باندے چه کله منافقانو دَ جنګ پایَره بدله او لیده نو دَ شرارت کولو موقع ورته په لاس ورا غله مسلمانانو ته ئے خبرے شروع کړے چه هر کله اوس دوی پاتے نه شو نو مونږ خپل زوړ دین وَلے نه اختیاره وُو- چه په دے سره به دا ټولے جګړے ختم شی- په دے سره دَ منافقانو خیانت او دَ مسلمانانو بد خواهی او دشمنی ظاهره ده په دے وجه په ذکر شوی آیات کښے مسلمانانو ته هدایت شوے دے چه دَ دے دشمنانو خبرو ته دے غوږ بروته نه نږدې او دوی دے په خپله څه مشوره کښے نه شریکوی او نه دے دَ دوی مشوره منی نو کله څنګه چه په تیرو آیاتو کښے دَ خدائې خلقو

دَتابعدارئ کولو هدایت وَه - په دے کښے دَمنافقانو او دَ اسلام دَمخالفینو
په مشوره دَعمل نه کولو او دَدوی نه دَځان ساتلو هدایت دے - دَتفسیر نچوړ دادے:

اے ایماندارو که تاسو خبره اومنئ دَکافرانو نو دوی به تاسو لوه (دَکفر طرف ته)
اُلټه اوکرځوی (مطلب دادے چه دَدے خلقو اصل مقصد مسلمانانو لوه دَدین
نه واپس کول او بدګمانه کول دی چه دَدے اظهار کله په ډاګه هم کوی او کله ئے
واضح نه وائی خو اندازه داسے جوړه وی چه دوررو دَدوی دَذړونو نه دَاسلام
عَظمت او محبت کم شی) بیا به تاسو (دَهر قسم نه) ناکامه شئ (لنډه دا چه دوی
ستاسو دوستان هرګز نه دی اګر که دَدوستئ اظهار کوی) بلکه الله پاک ستاسو
دوست دے او هغه دَټولو نه غوره مددګونکے دے (په دے وجه مسلمانانو
لوه په کار دی چه صرف په الله اعتماد کوی دَهغه په مدد دِ باندے تکیه کوی مخالفین
که تاسو ته دَفتح او مدد څه تدبیرونه هم خائی نو دَالله او دَرسول دَاحکامونو خلاف په هغے عمل مه کوئ)

سَنُلْقِیْ فِیْ قُلُوْبِ الَّذِیْنَ کَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَآ اَشْرَکُوْا بِاللّٰهِ

او س به اوغورزوؤ موږ په زړونو دَکافرانو کښے هیبت په دے وجه چه دوی شریک جوړ کوئ

مَا لَمْ یُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا ۚ وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ؕ وَبِئْسَ مَثْوَی

الله لوه هغه چه هیڅ دلیل په دے نه دے نازل شوے او دَدوی ځائے دوزخ دے او هغه بد ځائے دے دَ

الظّٰلِمِیْنَ ﴿۱۵۱﴾ وَلَقَدْ صَدَقَکُمُ اللّٰهُ وَعْدَهٗۤ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ

ظالمانو دَپاره - او الله رښتونے کړه ستاسو سره وعده خپله کله چه تاسو قتل کول هغوی لوه

بِاِذْنِهٖ ۚ حَتّٰۤی اِذَا فَشِلْتُمْ وَتَنَازَعْتُمْ فِی الْاَمْرِ وَعَصَیْتُمْ

دَهغهٔ په حکم سره تر دے چه تاسو نامردی اوکړه او په کار کښے موجګړه جوړه کړه او نافرمانی مو اوکړه

مِّنْۢ بَعْدِ مَآ اَرٰىکُمْ مَّا تُحِبُّوْنَ ؕ مِنْکُمْ مَّنْ یُّرِیْدُ الدُّنْیَا

پس دَهغے چه تاسو ته ئے اوخودلو ستاسو دَخوشحالئ شے - په تاسو کښے ځاغو څتد دُنیا

وَمِنكُم مَّن يُرِيدُ الْآخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۖ

او ځینې په تاسو کښې غواړي آخرت - بیا ئې تاسو را واړه ولئ د هغې نه چه تاسو لره د آزمائي

وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ ۗ وَاللَّهُ ذُو فَضْلٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ ﴿١٥٢﴾

او هغه تاسو معاف کړئ - او د الله فضل دے په مؤمنانو باندے -

**د آیاتونو ترون** په تیرو آیات کښې د دے خبرے ذکر وه چه الله تعالیٰ ناصر او مددګار د دے - په دے آیاتونو کښې د الله تعالیٰ د نصرت او مددګارئ د ځنو واقعاتو ذکر دے -

# لنډ تفسیر

مونږ به اوس اچوؤ رعب (هیبت) د کافرانو په زړونو کښې په سبب د د ے چه دوي الله لره شریک پیدا ګړے شے جو ړ کړے دے چه د هغې (په شریک جوړیدو) د الله تعالیٰ د طرف نه څهٔ دلیل نه دے نازل شوے - (نه په لفظونو کښې بنکاره او نه په معنیٰ کښې یعنی دا سے دلیل چه په شریعت کښې معتبر وي - په دے کښې ټول عقلي او قطعي دلیلونه داخل شو - مطلب دا دے چه دا سے خو هیڅ جاهل د خپل ځان نه دلیل پیش کوي لیکن د منلو قابل دلیل د دوي سره نیشته) او د دوي ځائے جهنم دے او هغه ناکاره ځائے دے د ظالمانو د پاره (په دے آیات کښې چه په کفارو باندے د رُعب او هیبت اچولو کومه وعده ده - دا دا سے بنکاره شوه چه اوّل خو سره د دے چه ماتے مسلمانانو خوړه لے وه د عربو مشرکان بغیر د څهٔ ظاهري سبب نه مکے طرف ته واپس شو (بیضاوي) بیا چه ئے کله څهٔ لار او وهله نو په خپله دے بے وقوفئ باندے ئے افسوس او کړو چه دا مونږ څهٔ اوکړهٔ مسلمانان بے دمه شوي وُو نو مونږ لره نه وُو پکار چه راتلو او بیا ئے مدینے ته د دوباره تلو اراده شان اوکړه خو الله پاک د دوي په زړونو باندے دا سے رُعب واچولو چه مدینے طرفته د واپس راتلو همت ئے اونه شو -

او یو کلي وال په لاره راتلو هغهٔ ته ئے اووے چه مونږه به تالهٔ دومره مال

درکړو ته مدینے ته لاړ شه مسلمانان اویره وه چه هغوی واپس راروان دی دلته دا ټوله واقعه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د وحئ په ذریعه اوخودے شوه نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم په دوی پسے د تعاقب کولو د پاره د حمراءالاسد مقامه پورے اورسید و خو دوی تختید لی وُو - دا آیات د دے واقعے متعلق نازل شو -

په دا تلونکو آیاتونو کښے د اُحد په غزا کښے د مسلمانانو د عارضی ماتے خوړو د اسبابو بیان دے فرمائی ) او یقیناً الله تعالیٰ ستا سو سره خپله وعده (د نصرت) رښتونے کړه کوم وخت چه تاسو (په اول د جنګ کښے) دے کفارو لره په حکم د خدائے سره قتل کول را دا ستا سو غلبه روزو زیاتیده) تر دے چه تاسو په خپله (په رائے خپله کښے) کمزوری شوئے (دغه شان چه کوم تجویز نبی کریم صلے الله علیه وسلم د شا طرف په مورچه باندے د څو سپایانو او یو افسر د کینولو فرمائیلے وُه په دے کښے بعضو ته غلط فهمی اوشوه چه مسلمانانو فتح اوکړه او س دلته د کینا ستو ضرورت ختم شو نو موږ لره هم اوس د دشمن په مقابله کښے شریک کیدل په کار دی) او یو تر بله مو (د نبی کریم صلے الله علیه وسلم) په حکم کښے اختلاف اوکړو ( چه بعضے په دغه ځائے باندے د پاتے کید و په حکم قائم پاتے شو لیکن بعضے نور و بل تجویز پیش کړو انکارا و ملامت په دے دویم تجویز باندے دے چه) او تاسو (د نبی کریم صلے الله علیه وسلم) په وینا الا ندے نګی پس د هغے نه چه تاسو ته ستا سو د زړه غو ښتونکے خبره (په سترګو سره) اوخودے شوه (یعنے د مسلمانانو غلبه در ته اوخودے شوه او دغه وخت ستا سو دا حالت وُه چه) په تاسو کښے بعضے هغه وُو چه دنیا (راغستل) ئے غوختل (یعنے په کفارو پسے ورپسے کیدل او د غنیمت مال ئے جمع کول غوختل) او بعضے په تاسو کښے هغه وُو چه (صرف) آخرت ئے غوختو (نو اوس چونکه د بعضو د رائے د کمزورئ او د نبی کریم صلے الله علیه د حکم نه خلاف بل تجویز پیش کول او د حضور په حکم باندے د نه تلو او د دنیا طلب کولو په وجه سره الله تعالیٰ د آئنده د پاره خپل مدد بند کړو) او بیائے ستا سو نه په کفارو باندے (غالب) را تلل واپس واغستل (سوه د دے چه دا عارضی ماتے خوړل ستا سو د کار نتیجه وه لیکن بیاهم د الله د طرفه دا کار د سزا په طور نه بلکه د دے مصلحت په وجه اوشو ) چه

خدائے تعالیٰ ستاسو آزمائښت (دَ ایمان) اوکړي (نو په دے وخت کښے دَ منافقانو نفاق ښکاره شو او دَ مخلصینو قدر زیات شو) او یقین اوکړئ چه الله تعالیٰ تاسو معاف کړئ دا اوس به په آخرت کښے په دے ستاسو نیول نه وی) او الله تعالیٰ لوئے فضل والا دے په (حال دَ) مسلمانانو باندے -

# مَعلومَاتْ اَو مَسْئلے

**دَ الله تعالیٰ په نزد دَ صحابه کرامو اوچت مقام او ورسره رعایتونه**

دا ظاهره خبره ده چه دَ اُحُد په غزا کښے دَ بعضو اصحابوؓ نه دَ رائے غلطی شوے وه چه په تیرو چیرو ایاتونو کښے ئے خبرداره اودَ آئنده دَ پاره دَ خپل حال دَ اصلاح کولو دَ صلاتونو سلسله راروانه ده لیکن سره دَ دے زور نواوخبردارو بیا هم دَ صحابه کرامو سره دَ الله جل شانهٔ مهربانۍ دَ کتو قابلے دی - اول خو ئے : لِيَبْتَلِيَكُمْ : اوفرمایل دائے ښکاره کړه چه دَ دے عارضی ماتے خوبدکوم صورت چه راپیښ شوے دے دا په طور دَ سزا نه دے بلکه دَ آزمائښت دَ پاره دے بیا ئے په صافو لفظونو کښے دَ دے خطا دَ معافۍ اعلان اوکړه : وَلَقَدْ عَفَا عَنكُمْ : -

**دَ بعضے صحابه کرامو دَ دنیا طلبۍ مطلب**

په ذکر شوی ایات کښے ارشاد شوے دے چه دغه وخت صحابه کرامؓ دوه ډلے شوی وُو بعضو دنیا غوښته بعضے صرف دَ آخرت طلبگار وُو-

دلته دا خبره دَ غور قابله ده چه دَ کومو حضراتو متعلق دَ دنیا دَ طلب کولو ذکر دے داد دوی دَ کوم عمل په بنا باندے دے - ښکاره خبره ده چه دَ غنیمت دَ مال جمع کولو ارادے کولو ته ئے دَ دُنیا طلب وئیلے دے - نو اوس فکر اوکړئ چه که دغه صاحبان په خپلو مورچو کښے ناست وے او د غنیمت دَ مال په جمع کولو کښے نه وے شریک شوی نو ولے دَ غنیمت په مال کښے به دَ دوی حصه څهٔ کمه شوے وه، او چه شریک شوی ؤ نو زیاته حصه به ورته ملاویده - په قرآن او حدیث کښے چه دَ غنیمت دَ مال کوم قانون دے او کوم سړے چه په دے قانون پوهه وی دَ هغهٔ په دے کښے هیڅ شك شبهه نه شی کیدے چه دَ غنیمت په مال کښے چه کومه حصه دوی ته ملاویدی په دے کښے په هیڅ حال کښے څهٔ فرق اوکمے زیاتے نه شی راتلے - دَ غنیمت دَ مال دَ جمع کولو په

صورت کښې به هم د دوی هغه حصه وي کومه چه په خپل ځائے په مورچه کښې د پاتے کيدو په صورت کښې وي۔

نو اوس ښکاره خبره ده چه د دوی دا عمل خالص دنيا طلب کول خو نه شي کيدے بلکه د جهاد کونکو سره په کار کښې شريک کيدل دي۔ البته په طبعي طور سره دغه وخت د غنيمت د مال خيال په زړه کښې راتلل هم څه لوے خبره نه ده۔ ليکن الله تعالیٰ د خپل رسول ﷺ د ملګرو زړونه هم د دينه پاک ساتل غواړي۔ چه د مال تصرف په کښې ورلے راځي۔ په دے وجه دے تصرف د مال ته ئے دنيا طلب کول اووے او د ناخوښئ اظهار ئے پرے اوکړو۔ والله اعلم۔

إِذْ تُصْعِدُونَ وَلَا تَلْوُونَ عَلَىٰ أَحَدٍ وَالرَّسُولُ يَدْعُوكُمْ

تاسو په مخه ختلئ او په وروستو موچا ته نه کتلو او رسول ﷺ تاسو بللئ د

فِي أُخْرَاكُمْ فَأَثَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ لِكَيْلَا تَحْزَنُوا عَلَىٰ مَا فَاتَكُمْ

وروستو ستاسو نه بيا اورسيد تاسو ته غم په بدل د غم کښې د پاره د دے چه تاسو غم اونه کړئ

وَلَا مَا أَصَابَكُمْ ۗ وَاللَّهُ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿١٥٣﴾ ثُمَّ أَنْزَلَ

په هغې چه د لاسو نه اووځي او په هغې چه څه در پيښ شي۔ او الله خبر دے ستاسو د کار نه۔ بيا ئے نازل کړو په

عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِ الْغَمِّ أَمَنَةً نُعَاسًا يَغْشَىٰ طَائِفَةً مِنْكُمْ ۖ

تاسو د تنګئ نه پس امن چه پر کالی وه چه راګيرو کول (ربتيا کول) دغه پرکالی بعضو لره ستاسو نه

وَطَائِفَةٌ قَدْ أَهَمَّتْهُمْ أَنْفُسُهُمْ يَظُنُّونَ بِاللَّهِ غَيْرَ الْحَقِّ

او څنو خيال کاوه د خپلو ځانونو چه په الله ئے ګمانونه کول د درو غو

ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ۖ يَقُولُونَ هَلْ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ مِنْ شَيْءٍ ۗ قُلْ

ګمان د جاهلانو۔ وئيل به ئے اے زموږ په لاسو کښې څه کار شته؟ ته اووايه

إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ ط يُخْفُونَ فِي أَنْفُسِهِمْ

چه ټول کار د الله په لاس کښې دے - دوی په خپلو زړونو کښې پټوی

مَّا لَا يُبْدُونَ لَكَ ط يَقُولُونَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْأَمْرِ

هغه چه تاته ئے نه ښکاره کوی - وائی دوی که څه کار وے په لاس زمونږ

شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ط قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ لَبَرَزَ

نو مونږ به نه وو قتل شوی دلته کښې - ته اووایه که تاسو وے په خپلو کورونو کښې نو

الَّذِينَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ إِلَىٰ مَضَاجِعِهِمْ ج وَلِيَبْتَلِيَ اللَّهُ

خامخا به باهر شوی وے هغه چه مقرر شوے وو پرے مرګ په خپل ځایو - او الله تعالیٰ آزمائیش کولو

مَا فِي صُدُورِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِي قُلُوبِكُمْ ط وَاللَّهُ عَلِيمٌ

هغه چه ستاسو په زړونو کښې دی او صاف کول وو د هغے چه په زړونو ستاسو کښې دی - او الله پېژنی

بِذَاتِ الصُّدُورِ (۱۵۴) إِنَّ الَّذِينَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى

د زړونو راز - کوم خلق چه ستاسو نه په شا شو په کومه ورځ چه اوجنګیدل

الْجَمْعَانِ لا إِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّيْطَانُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوا ج

دوه فوجونه پس دوی لره او غولول شیطان د دوی د ګناه په شامت سره

وَلَقَدْ عَفَا اللَّهُ عَنْهُمْ ط إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ حَلِيمٌ (۱۵۵) ع ۱۶

او دوی لره بخلی دی الله - الله بخونکے دے او تحمل (زغم) کوونکے دے -

**د آیاتونو تړون**

دا آیاتونه هم د اُحد د غزا د ذکر شوے واقعے سره تعلق لری۔ په اول آیات کښې په دے واقعه یا ندے د

صحابه کرامو رض د غم او خفګان ذکر دے - او په ورپسے بل اوګډ آیات کښے د دے غم د لرے کید و بیان دے - په دریم آیات کښے بیا بیا د دے خبرے اظهار دے چه په دے واقعه کښے چه کوم صورت د ماتے خوړو مخے ته راغلے دے دا هم څه سزا نه ده - بلکه د مخلصو مؤمنانو او منافقانو په مینځ کښے د فرق راوستو د پاره یو آزمائیښت وه - او بیا پۀ لیسے د صحابه کرامو رض د لغزش د معاف کولو اعلان دے -

# لنډ تفسیر

او هغه وخت یاد کړئ هر کله چه تاسو رپه تیخته سره ځنګل ته) بره ختلئ روان وئ او چا ته مو په شا کتل هم نه او رسول (صلے الله علیه وسلم) په تاسو پسے د روستو نه تاسو ته آواز و نه کول (چه دے خوا راشئ دے خوا راشئ مګر تاسو د سره آورید هم نه) پس الله تعالیٰ د دے په بدله کښے غم درکړو په سبب (ستاسو) د غم ورکولو (نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته) د دے د پاره چه (د دے په سبب او مصیبت سره په تاسو کښے پو خوالے پیدا شی چه د دے په وجه بیا) تاسو غم او نه کړئ په هغه شی چه ستاسو د لاسو نه اوځی او نه په دے چه پتا سو څه مصیبت پریوځی او الله تعالیٰ ټول خبر لری ستاسو د ټولو کارونو رپه دے وجه چه تاسو څه کار کوئ الله تعالیٰ د هغے مناسب سزا تجویز کوی - او س وړاندے د غم لرے کید و بیان دے) بیا الله تعالیٰ د دے غم نه پس په تاسو باندے آرام (او راحت) را اولیږه یعنے پرکالی (هر کله چه کفار د میدان نه واپس شو نو دغه وخت د غیبو نه په مسلمانانو باندے پرکالی غالبه شوه چه په دے سره د ټولو غم غلط شو) چه ستاسو نه په یوه ډله (یعنے مسلمانانو) باندے خوب د خواب غلبه کیده او یوه ډله هغه وه (یعنی د منافقانو) چه د دوی د خپل ځان سره فکر وه (چه کورے د دے ځائے نه به پچ شو) دغے خلقو په الله تعالیٰ باندے خلاف واقع (غلط) ګمان کا وه چه محض د حماقت (بے وقوفئ) خیال وه (دغه خیال وړاندے د دوی د قول نه او د دوی بے وقوفی او جهالت د دوی د جواب نه معلومیږی د دوی وینا داوه چه) دوی داسے وے چه ائے زمونږه څۀ اختیار

هم چلیږی (مطلب دا چه زموږ راے هیڅ وانه اوړیده چه موږه دجنګ نه ځکښی ورکړے وه او څاځائے تول په مصیبت کښے اونخلولو) ته ورته اووایه چه اختیار خو تول خاص د الله تعالیٰ چلیږی (مطلب دادے چه که ستاسو په رائے باندے عمل هم شوے وے خو بیا به هم د الله پاک قضا غالبه وه او کوم څه چه ستاسو راپیښېدونکی دی دا به خامخا راپیوتل. نو د دوی د وینا او د جواب ئے وړاندے مطلب په تفصیل سره راروان دے) د غه خلق په خپلو زړونو کښے داسے خبره پټه ساتی چه ستاپه مخکښے ئے (په ډاګه) نه شی ښکاره کولے (ځکه چه په ظاهر کښے د دوی د دے وینا چه اے زموږ د اختیار څه شے دے، دا مطلب کنولے شی چه د الله تعالیٰ د تقدیر په وړاندے د بنده تدبیر نه چلیږی، چه دا عین د ایمان خبره ده. او د الله تعالیٰ د طرف نه چه کوم باریک جواب ورکړے شو په دے کښے د دے معنیٰ تصدیق هم دے چه واقعی اختیار د الله غالب دے. مګر په حقیقت کښے د دوی مطلب د دے وینا نه دا نه وه بلکه دوی دا خبره په دے معنیٰ سره) وائی چه که زموږ څه اختیار چلیدے (یعنی زموږ په رائے عمل شوے وے) نو موږ (کښے چه کوم خلق دلته قتل شو هغوی) به قتل شوی نه وے (چه د دے مطلب دادے چه تقدیر هیڅ شے نه دے ځکه وړاندے ئے د دوی دا وینا داسے دروغژن کړه چه) ته ورته اووایه چه که تاسو خلق په خپلو کورونو کښے هم پاتے شوی وے بیا هم چه د کومو خلقو پاره قتلیدل مقرر شوی وو دغه خلق به دغے ځایونو طرف ته (د راتلو د پاره) راوتلی وے کوم ځائے چه دوی (قتل شوی) پریوتی دی (غرض دادے چه دا ظاهری تدبیر څه مره چه اوشو دے په هیڅ حال نه شو پاتے کیدے) او (د دے فائدے او نفع ډیرے لوئے وے ځکه چه) څه چه اوشو ځکه اوشو چه الله پاک ستاسو د باطن خبره (یعنی د ایمان) آزمائش اوکړی (ځکه چه د دے مصیبت په وخت کښے د منافقانو نفاق ښکاره شو او د مؤمنانو ایمان نور زیات کلک او حق شه) او ځکه چه ستاسو د زړونو خبره (یعنی د دے ایمان) لره (د شکونو او وسوسو) صاف کړی ځکه چه په مصیبت کښے د مؤمن توجه د غیر الله نه را او ګرځی صرف الله تعالیٰ طرف ته او لګی چه په دے سره ایمان ته صفائی او قوت رسی) او الله تعالیٰ تولو د باطن خبرو لره ښه پیژنی (هغه ته د آزمائش حاجت نیشته مګر د دے د پاره چه

په عدالتي طريقه سره دَ مجرم جرم په ډاګه شي دَ دے دَ پاره دا سے کار ونه واقع کوي) يقيناً په تاسو کښے چه کومو خلقو (دَ مسلمانانو) شا کړې وه په کومه ورځ چه دغه دواړه ډلے (دَ مسلمانانو او کفارو) يو بل ته مخامخ شوے (يعني دَ اُحد په ورځ دَدے وجه) دَ دے نه سوا بله هيڅ نه وه شوے چه دوی لره شيطان اوخوځول دَ دوی دَ بعضو (تيرو) عملونو په سبب سره (يعني دَ دوی نه څهٔ خطا او قصور دا سے شوے وُه چه دَ شيطان دَ دوی نه دَ نور ګناه هم طمع پيدا شوه او اتفاق دا سے اوشو چه هغه طمع ئے هم پوره شوه) او يقين او کړئ چه الله تعالیٰ هغه معاف کړه واقعي الله تعالیٰ لوئے معاف کونکے او لوئے حلم (صبر) والا دے (چه دَ خطا واقع کيدو په وخت کښے هم ئے هيڅ سزا در نه کړه) -

## معلومات او مسئلے

په ذکر شوو اٰياتونو کښے په اوّلنی اٰيات کښے دَ څهٔ صحابه کرامو ميدان جنګ پريخودل او په خپله دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم په اٰواز بانديے نه راتلل او په دے دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم غم ژن کيدل او دَ دے غم په بدل کښے اٰخر کار دَ صحابوؓ غم ژن کيدل ذکر دی - او دَ احاديثو په روايتونو کښے دی چه حضرت کعب بن مالكؓ دوئ ته آواز او کړهٔ نو دوی راجمع شو -

دَ دے توجيه او تطبيق صاحب دَ روح المعاني دا سے کړے دے چه اول رسول الله صلے الله عليه وسلم آواز او کړه نو دا صحابه نه وُه اَوريدَلے او ډير لوے تلی وُو نو دغه وخت حضرت کعب بن مالكؓ چغه او وېسته نو هغهٔ ټولو واَوريده او جمع شو -

په بيان القرآن کښے حضرت حکيم الامتؒ فرمائيلی دی چه اصل وجه دَ ډيرے واخبره وُه چه نبی کريم صلے الله عليه وسلم شهيد شو - دَ دوئ په اٰواز کښے دَ دے خبرے څو څهٔ ترديد وُه نه - او که آواز رسيدلے هم وی خو دوی پيژندلے نه وُه - بيا چه کله حضرت کعب بن مالكؓ چغه او وېسته نو په دے چغه کښے دَ دے خبر ترديد او دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم دَ ژوندی والی ذکر وُه - چه دا ئے واوريده نو دَ ټولو تسلّی اوشوه او ټول جمع شو - باقی پاتے شوه دا خبره چه نو بيا په دے باندے

دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه زورنه او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم غم وَلےاوشه ؟ دَ دے وجه دا کیدے شی چه که مستقل مزاج پاتےشوی وے نو اَواز به ئے پیژندلے وَه -

**دَ اُحد مصیبتونه سزا نه ده بلکه آزمائش وه او کوم لغزش چه دَ بعضے صحابه کرامؓ نه شوےوَه هغه معاف شوے دے**

:وَ لِیَبْتَلِیَ اللّٰهُ مَا فِیْ صُدُوْرِکُمْ الآیة - نه معلومه شوه چه دَ اُحد په غزا کښے کوم مصیبتونه او تکلیفونه صحابه کرامؓ ته پیښ شوی وُو. دا دَ سزا په طور سره نه وُو بلکه په طور دَ ازمائش سره وُو - دَ دے امتحان په ذریعه په مخلصومؤمنانو او منافقانو کښے فرق را وستل او ښکاره کول وُو- او دَ : اَثَابَکُمْ غَمًّا : دَ الفاظونه چه دَ دوی سزا ورکول معلومیږی دَ تطبیق (سمون) دا دے چه صورت خو دَ سزا وَه خو دا سزا تربیتی اصلاح وه لکه یو پلار چه خپل ځوئ لره استاذ خپل شاګرد لره سزا ورکوی. نو په عرف کښے دے ته سزا هم ویلے شی مګر په حقیقت کښے دا دَ تربیت او اصلاح یو صورت وی - دَ حاکمانه سزا نه مختلف وی -

**دَ اُحد په واقعه کښے په مسلمانانو دَ مصیبتونو اسباب څه وُو؟**

په ذکرشوے جمله : لِیَبْتَلِیَکُمْ : کښے دَ آیات دَ آخره پورے چه کوم ارشاد دے دَ دے نه خو دا معلومیږی چه دَ مصیبتونو دَ واقع کیدلو سبب خو دَ الله تعالیٰ دغه حکمتونه وُو. لیکن په راتلونکی آیات اِنَّمَا اسْتَزَلَّهُمُ الشَّیْطٰنُ بِبَعْضِ مَا کَسَبُوْا: سره دا معلومیږی چه دَ دے صاحبانوؓ ورا ندینے لغزش دَ دے شیطانی اثر سبب دے.

جواب دا دے چه ظاهری سبب ئے خو هم دغه لغزش شو چه دَ دے په وجه سره دَ شیطان دَ دوی نه دَ بل ګناه اوتا فرمانئ کولو هم طمع اوشوه او اتفاقاً دَ دهٔ دغه طمع هم پوره شوه. لیکن په دے لغزش او به دے پسے په راتلونکو نتیجو کښے دا تکوینی حکمتونه (یعنے په وجود کښے راتلونکی حکمتونه) پټ وُو کوم چه ئے په : لِیَبْتَلِیَکُمْ : سره بیان کړل- په روح المعانی کښے دَ زجاج نه نقل شوے دے چه شیطان دوی ته بعضے هغه ګناهونه وریاد کړل دَ کوموچه دَ ځان سره دَ الله تعالیٰ مخ ته وړل او دَ الله تعالیٰ سره ملاویدل دوی ته خهٔ معلوم نه شو- په دے وجه دَ جهاد نه واپس شو دے دَ پاره چه دوی اول خپل حالت برابر کړی او بیا په ښهٔ حالت کښے جهاد دَ کړی او شهیدان شی دَ الله تعالیٰ سره ملاوُ شی -

يوګناه دَ بل ګناه هم سبب کيږي

دَ ذکر شوې آيات نه معلومه شوه چه يوګناه بل ګناه لره راکاږي - لکه يوه نيکي چه بله نيکي راکاږي - يعنې په نيکو او بد وعملو نو کښې دَ رابنکودو ماده ده - کله چه انسان يو نيک کار کوي نو په تجربه سره معلومه شوې ده چه دَ ته نورې نيکۍ هم آسانيږي او په زړه کښې ئې دَ نيکو عملونو مينه زياتيږي - دغه شان چه انسان څه ګناه اوکړي نو دغه ګناه دَ دَ دَپاره دَ نورو ګناهونو لاره هواره وي او په زړه کښې ئې دَ ګناه مينه زياتيږي - په دې وجه بعضې بزرګان فرمائي :

| | |
|---|---|
| اِنَّ مِنْ جَزَآءِ الْحَسَنَةِ الْحَسَنَةَ بَعْدَهَا وَاِنَّ مِنْ جَزَآءِ السَّيِّئَةِ السَّيِّئَةُ بَعْدَهَا - | " يعنې دَ نيک کار يو نقد جزاء هغه بله نيکي ده چه دَ ته دَ هغې توفيق کيږي - او دَ بد عملونو سزا هغه دويم ګناه دې دَ کوم دَپاره چه دَ اوّلنۍ ګناه لار هواره کړې ده " |

حضرت حکيم الامتؒ په مسائل السلوک کښې فرمائيلي دي چه دَ حديث دَ وضاحت په مطابق دَ ګناه نه په زړه کښې يوه توره تياره پيدا شي او کله چه په زړه کښې تياره راشي نو شيطان پرې قابو بيا مومي -

دَ الله تعالیٰ په نزد دَ صحابه کرامو اوچت مقام او دَ دوی په خطا کانو باندې دَ عفوې دَ ورکړې دَ بحث الم معا مسله

دَ اُحد په واقعه کښې چه کوم لغزش نه او خطا ګانې دَ بعضې اصحابو کرامو نه صادرې شوې وې دغه په خپل ذات کښې ډيرې لوئې او سختې وې - په کومه مورچه باندې چه پنځوس تنو اصحابو کرامو ته حکم دَ کيناستو ورکړې شوې وه چه په مونږ هر څه حال چه تيريږي خو تاسو به دَ دې ځائې نه نه خوزيږئ - دَ هغوی ډير شمار دَ دغې ځائې نه او خوزيدو - اګر چه دَ خوزيدو سبب دَ دوی دغه اجتهادي غلطي سهي چه اوس فتح شوې ده او دَ دې حکم پوره کولو وخت اوس پاتې نه شو او راکوز يدل او دَ تولو مسلمانانو سره شريک کيدل په کار دي - ليکن په حقيقت کښې دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم دَ واضح حکم او هدايا تو نه خلاف وو - دَ دې قصورا و خطا په نتيجه کښې دَ ميدانِ جنګ نه دَ تښتې غلطي ترې شوي وي ، خواه په دې کښې هم دَ څه تاويل سهارا اغستې شوې وي لکه چه دَ زجاج نه بره نقل شوې دي - بيا دا دَ ميدانِ جنګ نه تښته په داسې حالت

کښې اوشو ه چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ دوی سره دے او دَ شا نه دوی ته آواز ونه
ورکوی دا ټولے خبرے بے شکه چه په خپل ځائے ډیر سخت جرم وُه - او په صحابه
کرامو رضی چه دَ مخالفينو دَ طرف څومره الزامات لګيـدلے شي دا دَ هغوی ټولونه دَ ډیرو
سختوکنا هونو حيثيت لری -

ليکن غور اوکړئ چه الله تعالیٰ دَ دے ټولو خطا ګانو او لغزشونو نه پس هم
دَ دے حضراتو سره څۀ معامله او فرمايله - دغه په ذکرشوی آيات کښې څۀ په دا کم
سره راغله چه اول خوئے ظاهرًا انعام دَ پرکالئ ورا وليږ ه دَ دوی تکليفا ستړی والے
او پريشانئ ئے لرے کړه - بيائے دا او خودل چه کوم مصيبت او غم مسلمانانو ته دغه وخت
رسيدلے دے دغه سزا او عذاب نه دے بلکه په دے کښې دَ دوی دَ تربيت کولو څۀ
حکمتونه پټ دی - بيائے په صافو لفظونو کښې دَ معافئ اعلان اوفرمايه دا ټولے خبرے
يو وار مخکښې راغلے دی - ولته ئے بيا دَ دے دوباره ذکر اوفرمايه - دَ دے تکرار يو
حکمت دا هم دے چه اول وار خوئے په خپله دَ صحابه کرامو دَ تسلّی دَ پاره ارشاد
اوفرمايه او په دے ځائے کښې دَ منافقانو دَ دے قول ردکول هم مقصود دے
کوم چه دوی مسلمانانو ته وے چه تا سو زمونږ په رائے عمل اونه کړو په دے
وجه دَ مصيبتونو او تکليفونو سره مخامخ شوئے -

په هرحال په دے ټولو آياتونو کښې دا خبره څۀ په وضاحت سره مخے ته راغله
چه دَ الله تعالیٰ په دربار کښې دَ خپل رسول صلے الله عليه وسلم دَ ملګرو سره دَ مينے
محبت هغه مقام حاصل دے چه سره دَ دومره لويو خطا ګانو او لغزشونو کولو بيا
هم دَ دوی سره دَ عفوے دَرګذر نۀ بلکه دَ لطف وکرم معامله ئے اوفرمائيله -
دا معامله خو صرف دَ الله تعالیٰ او قرآنی آياتونو بيان کړے شوے ده - دغه شان
يو معامله دَ حضرت حاطب ابن ابی بلتعهؓ دَ حضورؐ په مخ کښې پيش شوه - دۀ دَ مکے مشرکانو
ته دَ مسلمانانو دَ حالاتو متعلق يو خط ليکلے وُه - هرکله چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم
ته دَ وحي په ذريعه دا حقيقت ښکاره شو او خط اونيولے شو نو صحابه کرامؓ حاطب
ابن ابي بلتعه ته سخت په غصه کښې شو - فاروق اعظمؓ عرض اوکړه چه ما ته اجازت
راکړئ چه دَ دے څټ اووهم - ليکن نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته معلومه وَه
چه دے منافق نه دے مخلص مؤمن دے ليکن دا دَ دۀ نه غلطي شوے ده په دے

وجه ئے دے معاف کړو - او اوئے فرمایل چه دا دَ اهلِ بدرو نه دے او شاید چه الله تعالیٰ ټولو حاضرینو دَ بدر ته دَ بښنے او معافئ حکم کړے وی (دا روایت دَ احادیثو په ټولو معتبرو کتابونو کښے دے) -

**دَ صحابه کرامو متعلق دَ عامو مسلمانانو دَ پاره یو سبق**

دَ دینه دَ اهلِ سنّت والجماعت دَ دے عقیدے او عمل تصدیق کیږی چه صحابه کرام رضوان الله علیهم اجمعین اګر چه دَ ګناهونو نه معصوم نه دی - دَ دوینه لوئے ګناهونه هم کیدے شی او شوی هم دی لیکن سره دَ دے دَ امت دَ پاره دا جائز نه دی چه دوی ته څهٔ بدئ یا عیب نسبت او کړی - هر کله چه الله تعالیٰ او دَ هغه رسول صلے الله علیه وسلم دَ هغوی دومره لوئے لغزشونه او خطاګانے معاف کړی دی او دَ دوی سره ئے دَ لُطف و کرم معامله فرمائیلے ده او دوی ته ئے دَ "رضی الله عنهم او رضوا عنه" مقام ورکړے دے نو دَ چا حق څهٔ دے چه په دوی کښے دَ چا په بدئ سره ذکر او کړی -

دا وجه ده چه دَ حضرت عبد الله ابن عمرؓ په مخکښے یو وارے چا دَ حضرت عثمان غنیؓ او دَ بعضے صحابه کرامو دَ احد دَ غزا دَ دے واقعے ذکر او کړو او طعن ئے پرے او کړو چه دوی میدان پریخودے وو او تختید لی وو - نو په دے باندے حضرت عبد الله بن عمرؓ او فرمائیل چه دَ کوم شی دَ معافئ اعلان الله تعالیٰ کړے دے په دے باندے دَ طعن کولو چا ته څهٔ حق حاصل دے (صحیح بخاری)

په دے وجه دَ اهلِ سنّت والجماعت دَ عقید و کتابونو ټول په دے باندے متفق دی چه دَ ټولو صحابه کرامو تعظیم کول او په دوی باندے دَ طعن او اعتراض نه ځان ساتل واجب دی، په عقاید نسفیه کښے دی؛

وَيَكُفُّ عَنْ ذِكْرِ الصَّحَابَةِ إِلَّا بِخَيْرٍ -

"یعنے واجب دی چه دَ صحابو دَ ذکر بغیر دَ خیر او نیکئ نه نهٔ کوی"

او په شرح مسامره ابن همام کښے دی -

اِعْتِقَادُ اَهْلِ السُّنَّةِ تَزْكِيَةُ جَمِيْعِ الصَّحَابَةِ وَالثَّنَاءُ عَلَيْهِمْ -

"یعنے دَ اهلِ سنّت والجماعت عقیده داده چه ټولو صحابه کرامو لره دے عادلان او ثقات ګڼړی دَ دوی ذکر دے په ثنا صفت سره کوی"

---

په شرح مواقف کښې دی :

يَجِبُ تَعْظِيْمُ الصَّحَابَةِ كُلِّهِمْ وَالْكَفُّ عَنِ الْقَدْحِ فِيْهِمْ -

" يعنې د ټولو صحابو رضی الله عنهم تعظيم واجب دے او په دوی باندے د طعن او اعتراض نه ځان ساتل واجب دی "

حافظ ابن تيميه رحمه الله په عقيده واسطيه کښې فرمائی چه :

د اهلِ سنّت والجماعت عقيده داده چه د صحابه کرامو په مينځ کښې چه کوم اختلافات او جنګونه شويدی په دے کښې دے په چا باندے الزام او اعتراض نه ځان ساتی - وجه داده چه په تاريخ کښې کوم روايات د دوی د عيبونو متعلق راغلی دی په دے کښې ډيرد روغ او غلط دی کوم چه دشمنانو جوړ کړی دی. او بعضے په کښې هغه دی چه کے زياتے ئے په کښې کړے دے د خپل اصل نه ئے خلاف کړی دی - او کومه خبره چه صحيح هم ده نو صحابه کرامؓ په دے کښې د اجتهادی رائے په بنا باندے معذور دی - او فرض کړه کوم ځائے کښې چه دوی معذور هم نه وی نو د الله تعالیٰ قانون داد ے چه : اِنَّ الْحَسَنَاتِ يُذْهِبْنَ السَّيِّئَاتِ : يعنې نيک عملونه د بد و عملونو هم کفاره کيږی - او دا ښکاره خبره ده چه د صحابه کرامو د نيکو عملونو برابر د بل چا عملونه نشی کيدے - او د الله تعالیٰ د عفوے کوم چه څومره دوی مستحق دی بل نشی کيدے - په دے وجه چا ته داحق نيشته چه دوی لره په عملونو د دوی باندے د دوی مؤاخذه او کړی او په دوی کښې په چا باندے طعن او اعتراض او کړی - او دوی ته په بد و ويلو باندے خپله ژبه او سپړی (عقيده واسطيه ملخصًا)

---

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقَالُوْا

اے ايمان دارو! تاسو مه کيږئ د هغوی په شان چه کافران شويدی او وائی

لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِي الْاَرْضِ اَوْ كَانُوْا غُزًّى لَّوْ كَانُوْا

خپلو رونړو ته هرکله چه هغوی سفر ته اوځی په ملک کښې يا وی په جهاد کښې که و ے

عِنۡدَنَا مَا مَاتُوۡا وَمَا قُتِلُوۡا ۚ لِيَجۡعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسۡرَةً

زموږ سره نو نه به مړه کیدے او نه به قتل کیدے. دپاره د دے چه واچوی الله د دے گمان نه افسوس

فِىۡ قُلُوۡبِهِمۡ ؕ وَاللّٰهُ يُحۡىٖ وَيُمِيۡتُ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ

په زړونو د دوی کښے او الله ژوندی کوی او مړه کوی - او الله ستا سو تول کارونه

بَصِيۡرٌ ﴿۱۵۶﴾ وَلَئِنۡ قُتِلۡتُمۡ فِىۡ سَبِيۡلِ اللّٰهِ اَوۡ مُتُّمۡ لَمَغۡفِرَةٌ

وینی - او که تاسو قتل کړے شوئے په لارے د الله کښے یا مړه شوئے نو بخنه د

مِّنَ اللّٰهِ وَرَحۡمَةٌ خَيۡرٌ مِّمَّا يَجۡمَعُوۡنَ ﴿۱۵۷﴾ وَلَئِنۡ مُّتُّمۡ

الله تعالیٰ او مهربانی د هغهٔ غوره دی د هغهٔ شی نه چه دوی ئے جمع کوی - او که تاسو مړهٔ شوئے

اَوۡ قُتِلۡتُمۡ لَاِلَى اللّٰهِ تُحۡشَرُوۡنَ ﴿۱۵۸﴾

او یا قتل شوئے نو خامخا به د الله په مخکښے راجمع کړے شئ تاسو ټول -

**د اَیاتونو تړون** په تیر وا ایاتونو کښے د منافقانو دا قول بیان شوے وُه چه: لَوۡ كَانَ لَنَا مِنَ الۡاَمۡرِ شَىۡءٌ مَّا قُتِلۡنَا هٰهُنَا: یعنی که زموږ څهٔ اختیار وے او زموږ رائے منلے شوے وے نو موږ به دلته نه وو قتل شوی - چه دائے وړاندے راتلونکی؟ هم نقل کړی دی - د دا سے خبرو د اورېدو نه دا احتمال وُه چه د مخلصو مؤمنانو په زړونو کښے څهٔ شکونه او شبهے پیدا نه شی - په دے وجه ئے په ذکر شوو بره نو ایاتونو کښے مسلمانانو لره د دا سے خبرو کولو نه او د دا سے حالاتو نه د ځان ساتلو او د مرګ او ژوند راتلل صرف د تقدیر تابع ګڼړلو خود نے او کړے -

# لنډ تفسیر

اے ایمان دارو تاسو د هغے خلقو په شان مه کیږئ کوم چه (په حقیقت کښے) کافر دی (اګر که په ظاهره د اسلام دعوے کوی) او دوائی خپلو (هم نسبو یا هم مشربو) رونړو

په نسبت کله چه دوی خلق په زمکه کښې سفر کوی (او هلته اتفاقاً مړه شی) یا دغه خلق
چه ته غازیان جوړیږی (او په تقدیر سره په دے کښې قتل شی نو دغه منافقان وائی) چه
که دا خلق زمونږ سره وے (په سفر او غزا کښې نه تلے) نو نه به مړه کیده او نه به قتل
کیده (دا خبره د دوی په زړه اوټ به څکه وائی) د دے د پاره چه الله تعالیٰ دا خبره
د دوی د زړه د پاره سبب د افسوس کړی (یعنی د دے قسم خبرو نتیجه د افسوس
نه سوا هیڅ نیشته) او مړه کول او ژوندی کول خو خاص الله تعالیٰ کوی (که په سفر
کښې وی او که په کور کښې په جنګ کښې وی او که په امن کښې) او الله تعالیٰ هر څه چه
تاسو کوئی تول وینی (نو پس که تاسو هم داسے خبرے کوئے یا په داسے خیالاتو
کښې اخته کیږئی نو دغه د الله تعالیٰ نه پټے نه دی) او که تاسو خلق د الله په لار کښې
قتل کړے شئ یا که (د الله په لار کښې) مړهٔ شئ (نو دا څهٔ تاوان نه دے سراسر
نفع او نفع ده څکه چه) خامخا د الله تعالیٰ سره د هغهٔ مغفرت او رحمت (د دنیا)
د هغې څیزونو نه (به چیرو درجو) غوره دے کوم لوره چه دا خلق جمع کوی (او
د دے په حرص کښې ژوند غوره ګڼړی او) کچرے تاسو (هم دغسے) مړهٔ شئ یا قتل
کړے شئ (بیا به هم) خامخا د الله خواته جمع کړے شئ (پس اول خو قضا نو ریکی
نه بل د الله خواته د تلو نه په هیڅ حال کښې بچ کیده نیشته او د دین په لاره کښې
مړهٔ کیدل یا قتل کیدل سبب د مغفرت او رحمت دے نو بیا خو د هسے مرګ نه د دین
په لاره کښې روح ورکول غوره دی - نو داسے خبرے په دنیا کښې سبب د افسوس او په اخرت کښې د دوزخ سبب دے
چه څنګه تاسو اوساتئ -

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ ۚ وَلَوْ كُنْتَ فَظًّا غَلِيْظَ

پس څهٔ د الله په رحمت سره ته دوی ته نرم زړے ملاؤ شوے او کچرے ته تند خویه وے سخت

الْقَلْبِ لَانْفَضُّوْا مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاسْتَغْفِرْ

زړے وے نو خواره شوی به وو د خواستا نه - بس ته دوی لره معافی کړه او د دوی د پاره

لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِي الْاَمْرِ ۚ فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ

بخښنه غواړه او د دوی سره په کار کښې مشوره کوه - پس چه قصد دې اوکړه د دغه کار نو بیا توکل کوه

عَلَى اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَوَكِّلِيْنَ ﴿۱۵۹﴾

په الله باندې- الله محبت کوی دَ توکل کوونکو سره-

**دا آیاتونو تړون**

دَ اُحد په غزا کښې چه دَ بعضې مسلمانانو دَ لغزش او میدان پریښودو په وجه کومه صدمه او غم نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته رسیدلے وُه- اګرچه نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ خپلو لویو اخلاقو عفوِ کرم په بنا سره دوی ته هیڅ ملامت نه وُه کړے-او دَ سختئ هیڅ معامله ئې ورسره نۀ وه کړے لیکن الله تعالیٰ ته دَ خپل رسول دَ ملګرو زړۀ ساتنه او دَ دوی په زړو نو کښې چه دَ دے غلطئ په وجه کومه صدمه او خپیمانی وه دَ دے تړلو ونیځل منظور شو نو په دے آیات کښې ئې دوئ ته نور زیات دَ لطف و کرم هدایت او دَ صحابه کرامو سره دَ مشورے کولو حکم اوکړه-

# لنډ تفسیر

پس دَ هغې (چه دَ صحابه کرامو نه دا سے لغزش اوشو چه په هغې باندے تا ته دَ ملامت کولو او مؤاخذے کولو حق وُه) دَ خدائے دَ رحمت په وجه (کوم چه په تا باندے دے) ته دَ دوی سره نرم شوے او که ته (خدائے مه کړه تند خو یه سخت مزاجه وے نو دا (عاجزان) به ستا دَ خوانه تړول خواره شوی وُو ربیا به دوی ته دا فیضونه او برکتو نه دَ کومه نه نصیب شوی وُو) پس (هر کله چه تا په رویه کښې دا سے نرمی اوفرمائیله نو دَ دوی نه چه کومه غلطی ستا دَ حکم په منلو کښې شوے وه دغه په زړۀ سره هم) دوی ته معاف کړه (او دَ دوی نه چه کومه غلا ی دَ الله تعالیٰ په حکم کښې په کوتاهئ کولو سره شوے وه دَ هغې دَ پاره) تاسُو دَ دوی دَ پاره بخښنه غواړئ (اګرچه الله تعالیٰ په خپله دَ دوی دَ معافئ او مغفرت اعلان دَ مخکښې نه کړے وُه لیکن ستاسُو دَ بخانے دُعا به نوره زیاته دَ دوی دَ پاره فائده منه او تسلی وی) او دَ دوی سره په خاصو خاصو خبرو کښې (په زړه طریقه سره) مشوره کوه (دَ دے دَ پاره

چه په دے خصوصي نرمئ او مهربانۍ سره ذَ دوی ذَ زړه و نو نه غم او ونيځلے شي
بيا (ذَ مشورے آغستو نه پس) هر کله چه تاسو (ذَ يو جانب) رائے پخه کړه
(خواه که ذَ دے مشورے موافق وي او که مخالف) نو په خدائے تعالیٰ باندے
اعتماد (کوَلو سره دغه کار) کوئے بے شکه الله تعالیٰ ذَ داسے اعتماد کونکو
سره محبت کوي -

## معلومات او مسئلے

| |
|---|
| ذَ مرشد او مربي خاص صفتو نه |

صحابه کرام ذَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم داسے عاشقان وُو چه دوئ لره ئے ذَ خپلو ځانونو او مالونو نه زيات خوږ گڼړلو - ذَ دوئ نه چه په کله ذَ دوئ ذَ حکم خلاف يو لغزش او شه نو يو طرف ته دا يره وه چه که داحضرات په خپل دے لغزش باندے خبردارشي نو ذَ دے صدمے به ذَ حد نه دومره سَوا شي چه زړهٔ او دماغ به ئے کارپريدي - يا به ذَ رحمت نه مايوسه شي - ذَ دے علاج ئے په تير آيات کښے داو خودلو چه: أَصَابَكُمْ غَمًّا بِغَمٍّ: ذَ لغزش سزا درته په دنيا کښے درکړے شوه ذَ آخرت کا تبے باق شوه -

دويم طرف ته نبي کريم صلے الله عليه وسلم ذَ دے لغزش او غلطئ په وجه زخمي شو چه په دے سره ورته جسماني تکليف هم اورَسيد او روحاني تکليف خو ذَ وړاندے نه وُه - نو ذَ دے جسماني او روحاني تکليف رسيد وَ وجهے نه دا احتمال وَو - چه ذَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم په زړهٔ مبارک کښے ذَ اصحابو په باره کښے خَږوالے پيدا شي چه دوي ته ذَ هدايتاو تلقين په لاره کښے بند يزجوړ شي نو په دے وجه نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته دا تعليم ورکول وُو - چه تهٔ ذَ دوي خطا کانے معاف کړه او دوي ته درکَند را او فرمايه او ذَ آئنده ذَ پاره ورسره هم ذَ لطف او مهربانئ معامله جاري سا ته -

دامضمون الله تعالیٰ په يو عجيبه او نيکلي انداز سره داسے اوفرمايه چه ذَ دے په ضمن کښے يو څو اهم فائدے هم راغلے -

يوه دا چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته ئے ذَ دے څيزونو حکم په داسے انداز سره ورکړے دے چه ذَ دوئ ذَ ثنا صفت او لوئے شان اظهار په کښے هم دے - چه دا

صفتونه په دوی کښې د وړاندې نه موجود دي - او دوېم د دې نه اول ئې د: فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللَّهِ: لفظ زیاتي کړه دائې هم او خودله چه دا د کمال صفتونه ستا په ذات کښې فطرتي په رحمت سره دي- دچا ذاتي کمال نه دې - بیائې د رحمت لفظ د نکرې په صورت سره راوړو د رحمت لوئې والي او فراخۍ طرف ته ئې اشاره او کړه دائې هم واضحه کړه چه دا رحمت صرف په صحابه کرامو باندې نه دې بلکه په خپله په نبي کريم صلی الله عليه وسلم باندې هم دې چه دوی لوه ئې داسې کمالي صفتونه ورکړه -

د دینه پس ئې یو دریمه اهمه فائده په وروستنو جملو سره ظاهره کړه - چه دا نرم خوئي او خوش اخلاقي او د عفوې درګذر او لطف او مهربانۍ صفتونه که په تاسو کښې نه وې نو د خلقو د اصلاح کوم کار چه تاسو ته سپارلے شوے دې دا به د منشاء مطابق نه وه پوره شوے - خلق به ستاسو نه د خپلې اصلاح کولو په ځائې ستاسو نه خواره واره شوي وو - او تختيدلي به وو -

او د دې قولو خبرونه يو اهمه فائده دا حاصله شوه - چه د ارشاد اصلاح او تبليغ طريقې د دې نه معلومې شوې - چه کوم سړې د رُشد و هدايت او الله طرف ته د دعوت (بلنې) او د خلقو د اصلاح د کار کولو اراده او کړي د هغهٔ د پاره ضروري ده چه دا صفتونه په خپل ځان کښې پيدا کړي - ځکه چه هر کله د الله تعالیٰ د خوږ رسول سختي برداشت کول نه شي کولے نو بيا د بل چا مجال څهٔ دې چه په سختۍ او بد خوئي سره به د الله مخلوق خپل ځان ته راجمع کړے شي - او د دوی د اصلاح فريضه به پوره کړے شي -

په دې آيات کښې الله تعالیٰ ارشاد او فرمايه چه که ته تند خويه سخت طبيعته وې نو خلق به ستا د خوا نه خواره شوي وو - د دینه معلومه شوه چه مُرشد او مُربّي او مُبلغ لوه تُند خوئي سخت کلامي زَجَر او د دهٔ کار لوه ضائع کونکے شے دې -

د دینه پس ئې ارشاد او فرمايه: فَاعْفُ عَنْهُمْ: يعنې د دوی نه چه کومه خطا شوې ده د غې لوه تهٔ معاف کړه - د دینه معلومه شوه چه د اصلاح کونکي د پاره دا هم ضروري ده چه د عوامونه کومې خطا کانې کيږي د هغوی نه بدله نهٔ اخلي بلکه د عفوې درګذر نه کار اخلي - که څوک ئې بد وائي نو چه دې ورته غصه کيږي نه - که څوک ورته ضرر رسوي نو چه د هغوی سره د نرمۍ معامله کوي -

دَدینه پس ئے ارشاد اوفرمایه: وَاسْتَغْفِرْ لَهُمْ: یعنې ته دَدوی دَ پاره دَالله تعالیٰ نه هم مغفرت غواړه۔ په دے کښې دا هدایت دے چه صرف دا نهٔ چه په خپله دَدوی په ضرر رسولو او آزار باندې صبر کوه بلکه په زړهٔ سره هم دَدوی خیر خواهي مه پاتې کوه۔ او چونکه دَ ټولو نه لویه خیرخواهي دَدوی دَ اٰخرت ټیک کول دی نو په دے وجه دَالله تعالیٰ دَعذاب دَ بچ کیدو نه دوی لره دَ بچانے دُعا کلانے غواړه۔

دَدینه پس ارشاد دے: وَشَاوِرْهُمْ فِي الْأَمْرِ: یعنې دَ پخوانۍ طریقې په شان په خپلو فیصلو او کارونو کښې دَدے حضرا توسره مشوره هم کوه چه دَدوی پوره تسلّی کیږی۔ په دے کښې ئے دے طرف ته خودنه او کړه چه کومه خیر خواهي دَ دوی سره په زړهٔ کښې ده په عمل سره هم دَهغې اظهار کوه او په خپلو مشورو سره دوی مشرفی کوه۔

په دے پوره اٰیات کښې ئے دَ اصلاح کوونکی او مبلّغ دَپاره یو څو صفتونه لرل ضروری کړه۔ اوّل دَسخت کلامۍ او بد خُلقۍ نه ځان ساتل، دَوَیم که دے خلقو نه څهٔ غلطی یا دَدهٔ متعلق څهٔ دَ آزار څه خبره اوشی نو په بدله اخستو پسې نه ورپسې کیدل بلکه دَعفوے درگذر معامله کول، دَرَیم دا چه دَدوی دَخطا کانو او لغزشونو په وجه دَدوی خیر خواهي نه پاتې کول۔ دَدوی دَپاره دُعا او استغفار هم کول او په ظاهري معاملو کښې دَدوی سره ښهٔ سلوک کول۔

په دے ذکرشوی اٰیات کښې ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دَصحابه کرامو سره دَمشورے کولو حکم او بیا دَمشورے نه پس دَ کار دَ طریقې هدایت شوے دے۔ دَمشورے په باره کښې قرآن حکیم دوه ځایه واضح حکم کړے دے یو په دے ذکرشوی اٰیات کښې دوَیم دَ سورت شورٰی په اٰیات کښې چه په هغې کښې ئے دَرشتو نو مسلمانانو په صفتونو بیا نو لو کښې یو صفت دا بیان کړے دے چه : وَأَمْرُهُمْ شُورَىٰ بَيْنَهُمْ: یعنې او دَدوی هر کار په خپل مینځ کښې په مشوره سره وی۔ او په بعضې ځائے کښې ئے په ضمنی طور سره دَمشورے هدایت فرمایلے دے لکه دَرضاعت په احکامو کښې ئے ارشاد فرمایلے دے: عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ: یعنې بچے دَ تی نه پریکول دَمور او پلار دواړه په رضامندۍ او مشوره سره پکار دی۔ دَمشورے متعلق یو څو اهم مسئلے دَغور قابلے دی:-

اوله مسئله: دَ لفظ دَ اَمر او دَ شورٰی معنیٰ - دویمه مسئله: دَ مشورے شرعی حیثیت - دریمه مسئله: دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ صحابه کرامؓ نه دَ مشورے اَغستو درجه - څلورمه مسئله: په اسلامی حکومت کښے دَ مشورے درجه - پنځمه مسئله: چه په مشوره کښے اختلاف رائے وی نو دَ فیصلے صورت - شپږمه مسئله: په هر کار کښے دَ مکمل تدبیر کولو نه پس په الله تعالیٰ باندے توکل -

**اَوّلـه مسـئـله**
**دَ لفظ دَ امر او شورٰی تحقیق**

دَ اَمر دَ لفظ اطلاق په عربۍ ژبه کښے دَ څو معنو دَ پاره کیږی - یو په عامه معنیٰ کښے راځی - چه هر یو اُوچت کار او وَیٔنا لره شامل دے - دویمه معنیٰ ئے په حکم او حکومت سره کیدے شی - چه په دے معنیٰ سره په قرآن کښے لفظ دَ اُولی الامر راغلے دے - دریم اطلاق ئے دَ الله تعالیٰ دَ یو خاص صفت دَ پاره دے چه ذکر ئے دَ قرآن شریف په ډیرو آیاتو کښے دے - لکه: اَلَا لَهُ الْخَلْقُ وَالْاَمْرُ ؛ اِلَیْهِ یُرْجَعُ الْاَمْرُ کُلُّهٗ ؛ اِنَّ الْاَمْرَ کُلَّهٗ لِلّٰهِ ؛ اَمْرُهٗ اِلَی اللّٰهِ ؛ او دَ تحقیق کوونکو په نزد په: قُلِ الرُّوْحُ مِنْ اَمْرِ رَبِّیْ ؛ کښے هم دغه اَمر مراد دے - اوس دَ قرآن په ارشاد؛ وَشَاوِرْهُمْ فِی الْاَمْرِ ؛ او: اَمْرُهُمْ شُوْرٰی بَیْنَهُمْ ؛ کښے دَ دواړو معنو احتمال دے - او که دا او ویلے شی چه اوّله معنیٰ مراد ده او دویمه معنیٰ هم په دے کښے شامله ده نو دا هم څۀ لرے خبره نه ده ځکه چه دَ حکم او حکومت معاملے ټولے خاص اهمیّت لری - په دے وجه دَ اَمر معنیٰ په دے آیات کښے دَ هر هغه کار دَ پاره ده چه خاص اهمیت لری خواه دَ حکومت متعلق وی یا دَ معاملو سره - او دَ لفظ دَ شورٰی، مشوره، مشاورت معنیٰ ده دَ غور کولو په قابله معامله کښے دَ خلقو رائے حاصلول په دے وجه دَ: شَاوِرْهُمْ فِی الْاَمْرِ ؛ معنیٰ دا شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وَسلم ته حکم ورکړے شو چه تۀ په داسے معاملو کښے چه دَ غور قابلے وی چه دَ حکومت سره متعلق معاملے په کښے هم شاملے دی دَ صحابه کرامؓ سره مشوره کوه - یعنے دَ دے صاحبانو رائے په کښے معلوموه -

دغه شان دَ سورتِ شورٰی دَ آیات: وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰی بَیْنَهُمْ ؛ معنیٰ دا شوه چه په هر هغه معامله کښے چه دَ غور قابله وی او اهمیت په کښے وی خواه دَ حکم او حکومت سره متعلق وی یا دَ نورو معاملو سره په دے کښے دَ رشتو مسلمانانو

همیشه داعادت دے چه دَ یو بل سره په مشوره با ندے کار کوی -

دویمه مسئله دَمشورے شرعی حیثیت | په دے باره کښے دَ قرآن کریم ارشادات کوم چه ذکر شو او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَارشادا تو نه معلومیږی - چه په هغه داسے معامله کښے چه په هغې کښے مختلفې رائے کیدے شی خواه دَ حکم او حکومت سره تعلق لری یا دَ بلے معاملے سره په هغې کښے دَ یو بل نه مشوره اغستل دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او صحابه کرامو سُنّت او په دُنیا او آخرت کښے دَ برکتونو باعث ده - په قرآن او حدیث سره دَ دے تائید راغلے دے - او دَ کومو معاملو تعلق چه دَ عوامو سره دے لکه دَ حکومت معاملے په دے کښے مشوره اَغستل واجب دی (ابن کثیر)

بیهقی په شعب الایمان کښے دَ حضرت عبد الله ابن عمرؓ نه روایت کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلے دی - کوم سړے چه دَ یو کار اراده او کړی او دَ یو بل سره دَ مشورے کولو نه پس ئے دَ هغې کار دَ کولو یا دَ نه کولو فیصله او کړی نو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ ده ته دَ صحیح او فائده من صورت طرف ته هدایت ملا ویږی -

او په یو حدیث کښے دی چه کله ستاسو حاکمان په تاسو کښے غوره خلق وی او ستاسو مالداران سخیان وی ، او ستاسو معاملے دَ یو بل سره په مشوره باندے سرته رسولے شی نو ستاسو دَ پاره په زمکه دَ پاسه اوسیدل غوره دی - او کله چه ستاسو حاکمان په تاسو کښے دَ ټولو نه ناکاره خلق وی او ستاسو مالداران بخیلان وی او ستاسو معاملے ښځو ته سپارلے شوے وی نو دَ زمکے دَ ننه دَفن کیدل ستاسو دَ پاره دَ ژوندی اوسیدو نه به غوره وی -

مطلب دا دے چه کله په تاسو هَوَس پرستی غالبه شی چه دَ ښځې بد او نفع ضرور نه قطع نظر کوئے یعنے دَ دے خیال نه ساتئ صرف دَ ښځې دَ خوشحالولو دَ پاره خپلے معاملے دوی ته او سپارئ نو دَ دغه وخت دَ ژوند نه تاسو له مرګ غوره دے - ورنه په مشوره کښے دَ ښځې نه هم رائے اَغستل منع نه دی دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او دَ صحابه کرامو دَ عمل نه ثابت دی او دَ قرآن کریم دَ سورت بقره په دغے آیات کښے کوم چه اوس وړاندے تیر شوے دے

په دے کښے ارشاد دے: عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ: یعنے د بچی د تی نه پریکول دے د مور و پلار دواړو په مشوره سره وی - په دے کښے چونکه د معاملے تعلق د ښځے سره دے په دے وجه ئے په خاص طور سره د ښځے د مشورے پابند کړے دے۔

په یو حدیث کښے د نبی کریم صلے اللہ علیه وسلم ارشاد دے: چه

اَلْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ اِذَا اسْتُشِيْرَ فَلْيُشِرْ بِمَا هُوَ صَانِعٌ لِنَفْسِهٖ۔ "یعنے د کوم سړی نه چه مشوره اوغوښتے شی دے امین دے په ده لازمه ده چه په دے معامله کښے کوم کار د دے د خپل ځان د پاره تجویز کوی هغه رائے دے بل لره ورکړی د دینه خلاف کول خیانت دے" (دا حدیث طبرانی په معجم اوسط کښے په سند حسن سره د حضرت علیؓ نه روایت کړے دے (مظهری))

البته په دے خبره ځان پوهه کول ضروری دی چه مشوره صرف په هغه څیزونو کښے سنت ده د کومو په باره کښے چه په قرآن او حدیث کښے واضح او قطعی حکم موجود نه وی - ورنه کوم ځائے کښے چه واضح او قطعی حکم موجود وی په هغے کښے د چا سره د مشورے کولو ضرورت نیشته بلکه جائز هم نه ده - مثلاً یو سړے په دے کښے مشوره کوی چه مونځ اوکړم او که نه - ذکوٰة ورکړم او که نه - حج اوکړم که نه - دا د مشورے څیزونه نه دی - په شرعی طور سره قطعی فرض دی - البته په دے کښے مشوره کولے شی چه حج له په دے کال کښے لاړ شم که په راتلونکی کښے - او دا اُو بو په جهاز کښے لاړ شم که په هوائی کښے - او د وچے په لار لاړ شم که په بله دغه شان د زکوٰة په معامله کښے دا سے مشوره کولے شی چه دے لره په کوم ځائے کښے او په کومو خلقو باندے خرچ کړے شی - ځکه چه دا ټولے خبرے شرعًا اختیاری دی -

په یو حدیث کښے په خپله د نبی کریم صلے اللہ علیه وسلم نه د دے تشریح نقل ده - حضرت علی کرم اللہ وجهه فرمائی چه ما نبی کریم صلے اللہ علیه وسلم ته عرض اوکړه چه ستاسو نه پس که مونږ ته څهٔ دا سے معامله راپیخه شی چه د هغے حکم په واضح سره په قرآن کښے نه وی نازل شوے او ستاسو نه هم مونږ د دے په باره کښے څهٔ ارشاد نه وی آورید لے - نو مونږ به څهٔ کوو؟ نبی کریم صلے اللہ علیه وسلم ارشاد اوفرمایه چه د دا سے کار د پاره په خپلو کښے عبادت گذار فقهاء جمع کړے او د هغوی په مشوره د دغه کار فیصله اوکړئ - د چا په یو اځے رائے باندے فیصله مه کوئے -

دَ دے حدیث شریف نه یوه خو دا خبره معلومه شوه چه مشوره صرف په دُنیوِی معاملاتو کښے نه ده - بلکه په کومو شرعی احکامو کښے چه دَ قرآن او حدیث ښکاره نصوص نهٔ وی په هغے حکمو نو کښے هم مشوره کول سنّت دی - او دویمه دا هم معلومه شوه چه مشوره دَ داسے خلقو نه اخِستل په کار دی چه په موجوده خلقو کښے په پوهه او عبادت گذارئ کښے مشهور وی - (اخرجه الخطیب - کذا فی الروح)

دارنګے خطیب بغدادیؒ دَ حضرت ابو هریرهؓ په یو حدیث کښے دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد هم نقل کړے دے :-

اِسۡتَرۡشِدُوا الۡعَاقِلَ وَلَا تَعۡصُوۡهُ فَتَنۡدِمُوۡا -

" یعنے دَ عقلمند سړی نه مشوره اخله او دَ هغے خلاف مه کوه ورنه پښیما نه به شے "

دَ دے دواړو حدیثو نو دَ یو ځائے کولو نه دا خبره معلومه شوه چه دَ مجلسِ شوری په ارکانو کښے دوه صفتونه ضروری دی - یو دا چه عقلمندا و هوښیار وی - دویم دا چه عبادت گذار وی او که مسئله شرعی وی نو بیا ورلره فقیه والے هم ضروری دے او لازم دے -

دریم مسئله: دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ صحابه کرامو دَ مشورے اخستو درجه - په آیات کښے ئے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا حکم ورکړے دے چه دَ صحابه کرامو نه دے مشوره اخلی - په دے کښے دا اشکال دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ الله تعالیٰ رسول او صاحب دَ وحیٔ دے - دوی ته دَ چا دَ مشورے څهٔ حاجت دے دوی ته خو هرڅه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ وحیٔ په ذریعه معلومید ے شی - په دے وجه بعضے عالمانو دَ مشورے دا حکم په دے باندے محمول کړے دے - چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته نهٔ دَ مشورے ضرورت وه - او نهٔ په دے مشوره دَ هغوی دَ څهٔ کار دارمدار وهٔ - صرف دَ صحابه کرامو دَ عزت او زړهٔ ساتنے دَ پاره دوی ته دَ مشورے حکم ورکړے شوے وه - لیکن امام ابو بکر جصاصؒ فرمائی - چه دا صحیح نه ده - ځکه چه که دا معلومه شی چه زمونږ په مشوره څهٔ عمل نهٔ شی کید ے او نهٔ ده مشورے په څه کار باندے اثر پریوځی - نو په داسے مشوره کښے عزت او زړهٔ ساتنه هم نهٔ شی پاتے کیدے بلکه حقیقت دَ خبرے دا دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته په عامو کارو نو کښے خو نیغ په نیغه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ وحیٔ په ذریعه دَ کار یو اړخ مُتعیّن کولے شی - لیکن دَ

حکمت او رحمت په مقتضا سره ئے بعضے کارونه د نبی کریم صلے الله علیه راۓ او فکر ته پاتے کړی وی - په دا سے کارونو کښے د مشورے ضرورت وی - او په دے قسم کارونو کښے دوی ته د مشورے حکم ورکړے شوے دے - د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مشورو د مجلسونو تاریخ هم دا خبره ښائی -

نبی کریم صلے الله علیه وسلم د بدر په غزا کښے د صحابه کرامو نه مشوره واغسته نو صحابه کرامو عرض اوکړو چه که تاسو مونږ ته دریاب ته د وردانګلو حکم اوکړئ نو مونږ په ورڅ ټوپ کړو - او که تاسو مونږ ته د برک الغماد په شان یو لرے مقام ته د تللو حکم اوکړئ نو مونږ به ستا سو سره یو - مونږ د موسیٰ علیه السلام د ملګرو په شان نه دا سے اونه وایو - چه ته او ستا رب د کفارو سره مقابله اوکړئ - بلکه مونږ به دا عرض اوکړو چه تاسو تشریف یوسئ مونږ به ستاسو سره ستاسو نه وړاندے وروستو ښئ او کینړ طرف ته د دشمن مقابله کوو -

دغه شان د اُحُد په جهاد کښے ئے په دے باره کښے مشوره اوکړه - چه اے د مدینے په ښهر کښے د ننه پاتے شو خپله دفاع اوکړو - او که د ښهر نه باهر اوځو - د عام صحابه وه رائے د باهر وتلو وه نو دوی هم دے لره قبوله کړه - د خندق په غزا کښے په یو خاصه معاهده باندے د صلح کولو معامله راوړاندے شوه - نو سعد بن معاذ او سعد بن عبادة دا معاهده مناسب اونه ګنړله اختلاف ئے اوکړو نو حضور هم د دے دواړو رائے قبوله کړه - په حدیبیه کښے ئے په یوه معامله کښے مشوره واغسته نو د صدیق اکبر په رائے باندے ئے فیصله اوفرمایله - د افک په واقعه کښے ئے د صحابه کرامو نه مشوره واغسته - دا ټول هغه معاملے وے چه د دے غوره اړخ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د وحیٔ په ذریعه نه وه خودلے شوے -

لهٰذا دا چه نبوت او رسالت او صاحب وحیٔ کیدل څه د مشورے سره منافی نه دی - او دا سے هم نه ده چه دا مشوره دے محض نمائشی زړه ساتنے د پاره وی هو دے اثر دے په معاملو باندے نه وی - بلکه ډیرے پیرے که د مشورو ورکوونکی رائے به د دوی د رائے نه خلاف هم وه خو هغه ئے قبوله کړے ده - بلکه په بعضے کارونو کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د معاملے غوره اړخ نه خودلو او په مشوره سره په کارکولو کښے دا حکمت او مصلحت هم دے چه د ائنده د پاره

امت ته دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم يو عملي سنّت جاري پاتے شي - چه هرکله هغوی
ته دَ مشورے کولو نه خلاصے نيشتے نو دا سے بل څوک دے چه هغه به دعوٰی اوکړي
چه ما ته دَ مشورے کولو حاجت نيشتے - په دے وجه په نبي کريم صلے الله عليه وسلم
او صحابه کرامؓ کښے په دا سے مسئلو کښے دَ مشورے طريقه هميشه جاري پاتے شوے
ده په کومو کښے چه شرعي نَص (دليل) نه وُه - او دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه
پس په صحابه کرامو کښے هم دا جاري پاتے شوه - بلکه د روستو خو دَ دا سے شرعي
احکامو دَ معلومولو دَ پاره په کومو کښے چه دَ قرآن او حديث ښکاره فيصله نه
وه هم مشوره معمول پاتے شوے ده - يعنے په مشوره سره ئے ورلره حکمونه
معلوم کړی دی - ځکه چه دَ حضرت علي کرم الله وجهه دَ سوال په جواب کښے نبي
کريم صلے الله عليه وسلم هم دغه طريقه کارخودلے وُه -

خلوڅمه مسئله: په اسلامي حکومت کښے دَ مشورے درجه څه ده؟ لکه چه بره ذکر شو يدی په قرآن کريم کښے دوه ځايه دَ مشورے ښکاره حکم راغلے دے - يو په دے ذکر شوی ايات کښے او دويم دَ سورتِ شورٰی په ايات کښے - چه په
هغے کښے ئے دَ رشتينو مسلمانانو په صفتونو بيانولو کښے يو صفت داُهم بيان کړے دے چه
: وَاَمْرُهُمْ شُوْرٰی بَيْنَهُمْ : يعنے او دَ دوی کار دَ يو بل سره په مشوره بانندے وی
په دے دواړو ځايونو کښے دَ مشورے سره لفظ دَ اَمر ذکر دے - او دَ اَمر دَ
لفظ تحقيق په تفصيل سره بره بيان شوے دے چه هر مهتم بالشان قول
او فعل ته هم ويلے شي - او دَ حکم او حکومت دَ پاره هم استعماليږي - دَ اَمر که
اوّل معنیٰ مراد واخلے او که دويمه ، دَ حکومت په معاملو کښے مشوره اغستل په
هر صورت دَ دے ايا تونو نه ضروری معلوميږی - چه حکم او حکومت ترے مراد شي
نو بيا خو ظاهر خبره ده - او که عامه معنیٰ ترے مراد شي نو بيا هم دَ حکم او حکومت
معاملے اهمے وی او دَ مشورے قابلے وی - په دے وجه دَ اسلامي امير دا فرض دی
چه دَ حکومت په اَهمو معاملو کښے دَ هو ښيارانو او پوهانو نه مشوره اخلی - دَ قرآن
کريم دا ذکر شوی ايا تونه او دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم او خلفائے راشدينو
بر ليسے په دے بانندے عمل کول دَ دے ښکاره سَنَد دے -

په دے دواړو ايا تو کښے لکه څنګه چه دَ حکومت په معاملو کښے دَ مشورے

ضرورت په ځاکړشه - دغه شان ده نه د اسلامی طرز حکومت او آئین څخهٔ بنیادی اُصول هم مخې ته راغلل چه اسلامی حکومت یو شورائی حکومت دے - چه په دے کښې د امیر انتخاب په مشوره سره کیدے شی - خاندانی میراث نه دے نو خو د اسلامی تعلیماتو په برکت سره ټولے دنیا د دے اصولو اهمیت منلے دے شخصی حکومتونه هم په خوځ بنه یا په ناخوه بنه خو دے طرفته رارون دی - لیکن د نن نه څوار لس۱۴۰۰ سوه کاله وړمبی زمانے طرف ته او کتے شی نو د دے زمانے د دریو لویو په ځالے د دوه لویو حکومت وه - یو د کسرای بل د قیصر او د دواړو د حکومت آئین په شخصی او وراثتی بادشاهت باندے مشتمل وه - چه په دے کښے به یو واحد سړی په لاکونو کروړونو انسانانو باندے په خپل قابلیت او صلاحیت نه - بلکه د وراثت د ظالمانه اصولو په بنا باندے حکومت کولو - او انسانانو ته به د دیا لتو ځانورانو درجه ورکول هم بادشاهی انعام کنړلے کیده - د دے نظریئے حکومت د دنیا په ډیره حصه باندے مسلط وه - صرف په یونان کښے د جمهوریت یو څوځیْ اونا تمام نقشونه موند ے شو خو هغهٔ هم دومره ناقص او بے کاره وو - چه د یو حکومت بنیاد کیخودل په هغے باندے گران وو - په دے وجه د یونان د دے جمهوریت په اُصولو باندے هیڅ ته هم یو محکم حکومت جوړ نه شو - بلکه دغه اصول د آرسطو د فلسفے یو شاخ قدرے پاتے شو - د دے په خلاف اسلام په حکومت کښے د وراثت غیر فطری اُصول باطل کړهٔ د حکومت د امیر مقرر کول او معزول کول ئے د جمهور په لاس کښے ورکړهٔ - چه دغه اختیار به دوی د خپلو نما ئندهٔ گانو هوښیارانو او پوهانو په ذریعه استعمالولے شی - د بادشاه پرستئ په چقړو کښے نخښتے دُنیا د اسلامی تعلیماتو په ذریعه د دے عادلانه او فطری نظام سره آشنا شوه - او هم دغه د جمهوریت روح دے -

لیکن دا د موجوده طرز جمهوریتونه د بادشاهئ د ظلم وستم نه د ځان خلاصولو په وجه راپیدا شو - نو دا هم داسے بے څربه راغلل چه عوام ئے دومره آزاد او بے پرواه کړل چه دوی ئے د حکومت او آئین داسے آزاد مالکان جوړ کړل چه د دوی د زړونو او دماغونو نه د زمکے او آسمان او ټول مخلوق پیدا کونکی خدائے او

دَدهٔ دَ اصلي ملکيت او حکومت خيال قدرے هم اُووت - او س دَ دوی دا جمهوريّت دَ خدائے تعالیٰ په دوی باندے اچولے شوے پابند ئے هم په زړهٔ باندے بار او دَ انصاف نه خلاف گنړی -

اسلامی آئين چه څنګه دَ خدائے مخلوق لره دَ کسریٰ او قيصر او نورو شخصی حکومتونو او بادشاهانو دَ زور ظلم نه خلاص کړل دغه شان ئے دَ خدائے نا آشنا مغربی جمهوريتونو ته دَ خدائے پيژندوالو دَ خدائے دَ تابعدارئ لاره اوخوده - او دائے ورته اوخودل چه دَ ملک حاکمان وی او که عوام دَ خدائے تعالیٰ دَ رالیږلی شوی قانون ټول پابند دی - دَ دوی دَ عوامو او دَ عوامی اسمبلئ اختيارات، قانون جوړه ول، معزول کول او مقرر کول دَ خدائے تعالیٰ دَ مقرر کړه حدونو د ننه دی - په دوی لازم دی چه دَ اَمير په انتخاب کښے او بيا دَ عهدو او منصبونو په تقسيم کښے دَ يو طرف ته دَ قابليت او صلاحيّت پوره رعايت کوی - نو بل طرف ته دے دَ دوی ديند ارئ او امانتدارئ ته هم پوره خيال کوی - خپل امير دے داسے سړے منتخب کوی چه په علم تقوٰی ديند ارئ، امانتد ارئ، صلاحيّت او سياسی تجربه کښے دَ ټولو نه غوره وی - او بيا دا منتخب شوے امير به هم آزاد او دَ خپل اختيار نه وی - بلکه دَ اهل الرّائے دَ وائے دَ خاوندانو نه په دَ مشورے اغستو پابند وی - دَ قرآن شريف ذکر شوے آيات او دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم او دَ خلفائے راشدينو کارروائی په دے بانلّه عادل ګواهان دی - دَ حضرت عمرؓ ارشاد دے :

| | |
|---|---|
| لَاخِلَافَةَ اِلَّا عَنْ مَّشْوَرَةٍ | "يعنے دَ شورائيت نه بغير خلافت نيشته " |

(کنزل العمال بحواله ابن ابی شيبة )

شورائيت او مشورے ته په اسلامی حکومت کښے آساسی او بنيادی حيثيت حاصل دے - تردے چه که دَ حکومت امير دَ مشورے نه آزاد شي، يا دَ داسے خلقو نه مشوره اخلی چه دَ شريعت په بنا باندے دَ مشورے اهل نه وی نو بيا دَ دغے امير معزول کول ضروری دی -

| | |
|---|---|
| ذَكَرَ ابْنُ عَطِيَّةَ اَنَّ الشُّوْرٰى مِنْ قَوَاعِدِ الشَّرِيْعَةِ وَالدِّيْنِ فَعَزْلُهٗ وَاجِبٌ هٰذَا مَالَاخِلَافَ فِيْهِ- | "ابن عطيه فرمائيلی دی چه شورائيت دَ شريعت دَ قاعدو او بنيادی اُصولونه دے - کوم اميرٌ دَ عالمانو او ديندارانو نه مشوره نه اخلیٔ |

( البحر المحيط لابي حيان ) | دَ هغهٔ معزول کول واجب دي۔ او دا يو داسې مسئله ده چه دَچا اختلاف په کښې نيشته ؛

دَمشورې دَ ضروري کيدو نه چه اسلامي حکومت او دَ دې او سيدونکو ته کوم برکتونه او فائدې حاصليږي دَ دې اندازه دَ دې نه اولګيسوئ چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ مشورې نه په رحمت سره تعبير فرمايلې دې۔ ابن عدی او بيهقي دَ ابن عباس رضي الله عنه نه روايت کړې دې چه کله دا آيات نازل شو نو نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد او فرمايه چه الله او دَ هغهٔ رسول ته دَ دې مشورې حاجت نيشته۔ ليکن الله تعالیٰ دې لره ځما دَ اُمّت دَ پاره يو رحمت جوړ کړې دې ( بيان القرآن )

مطلب دا دې چه که الله تعالیٰ غوښتې نو خپل رسول ته به ئې هر يو کار په ذريعه دَ وحې خوده۔ په يو کار کښې به ئې هم مشورې ته ضرورت نه پريښو دو ليکن دَ امت مصلحت په دې کښې وه۔ چه دَ دوی په ذريعه دَ مشورې سُنّت جاری کړی۔ په دې وجه ئې ځينې کارونه داسې پريښوده چه وحې په کښې نازله نه شوه په دې کښې ئې دوی ته دَ مشورې اخستلو هدايت اوفرمايه۔

پنځمه مسئله: په مشوره کښې چه اختلاف رائې وی نو دَ فيصلے به څهٔ صورت وی؟ په دې مسئله کښې چه اختلاف رائې راشي نو آيا دَ نن صبا پارليماني اُصولو په شان به دَ اکثريت په فيصله نافذ کولو باندې امير مجبور وی يا دهٔ ته به اختيار وی چه اکثريت وی او که اقليت کوم طرف ته چه دليلونه مضبوط وی او دَ حکومت فائده او مصلحت په کښې زيات په نظر راځي دغه به اختيار وی ؟ دَ قرآن او حديث او دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم او صحابه وو دَ کارونو نه دا خبره نه ثابتيږي چه دَ اختلاف رائې په صورت کښې به امير دَ اکثريت په رائې باندې دَ فيصلے کولو پابند وی او مجبور وی۔ بلکه دَ قرآن کريم دَ بعضې اشارو او دَ احاديثو او صحابوو دَ عمل نه دا خبره ښکاره او واضح ده۔ چه دَ اختلاف رائې په صورت کښې امير ته چه کوم اړخ غوره او قوی معلوم شي هغهٔ اختياره وَلے شي خواه دَ اکثريت مطابق وی يا دَ اقليت۔ البته امير دَ خپل اطمينان حاصلولو دَ پاره لکه څنګه چه په نورو دليلونو باندې نظر کوی دغه شان چه اکثريت په يو شي باندې متفق شي دا هم بعضې

وخت کړ دهٔ دَ پاره دَ اطمینان باعث جوړے دے شي -

په ذکو شوی آیات با ندے چه غور اوشي په دے کښے رسولِ کریم صلے الله علیه وسلم ته دَ مشورے دَ حکم ورکولو نه پس فرمائي: فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللهِ؛ یعنے دَ مشورے کولو نه پس چه دے کوم اړخ ته قصد اوکړهٔ نو بیا په الله توکل کوه - په دے کښے ئے دَ عَزَمْتَ: په لفظ کښے دَ عَزْم یعنے حکم نافذ کولو پخه اراده کول صرف نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته منسوب کړه - عَزَمْتُمْ ئے اونه وے چه په قصد او حکم نافذ کولو کښے تورے دَ صحابوؓ شرکت معلوم شوے وے - دَ دے اشارے نه ثابته شوه چه دَ مشورے اخستو نه پس حکم نافذ کول او عزم صرف دَ امیر معتبر دے - حضرت عمرؓ بن الخطاب به بعضے وخت چه دَ لا ئلو په لحاظ سره ورقه دَ عبد الله بن عباسؓ رائے زیاته مضبوطه ښکاره شوه نو دَ هغهٔ په رائے به ئے فیصله نافذ کوله - حال دا دے چه په مجلس کښے به اکثر داسے صحابه موجود وُو چه دَ ابنِ عباسؓ نه په عمر او علم او شمار کښے زیات وُو - نبی کریم صلے الله علیه وسلم ډیرے ډیرے دَ شیخینو حضراتو صدیق اکبرؓ او فاروقِ اعظمؓ رائے دَ جمهور و صحابوؓ په مقابله کښے ترجیح ورکړے ده - تردے پورے چه دا به گنړلے شوه چه دا ذکر شوے آیات صرف دَ دے دوه صاحبانوؓ نه دَ مشورے اخستو دَ پاره نازل شوے دے - حاکم په مستدرک کښے په خپل سند سره دَ حضرت ابن عباسؓ نه روایت کړے دے چه:

| | |
|---|---|
| عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍؓ فِیْ قَوْلِهٖ تَعَالٰی وَشَاوِرْهُمْ فِی الْاَمْرِ قَالَ اَبُوْبَکْرٍؓ وَعُمَرُؓ - (ابن کثیر) | "ابن عباسؓ فرمائي چه په دے آیات کښے دَ شَاوِرْهُمْ دَ ضمیر نه مراد حضرات شیخینؓ دي" |

دَ کلبی روایت دَ دینه نور هم زیات واضح دے:

| | |
|---|---|
| عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍؓ قَالَ نَزَلَتْ فِیْ اَبِیْ بَکْرٍؓ وَعُمَرَؓ وَکَانَا حَوَارِیَّیْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّی اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَوَزِیْرَیْهِ وَاَبَوَیِ الْمُسْلِمِیْنَ - (ابن کثیر) | "ابنِ عباسؓ فرمائي چه دا آیات دَ حضرت ابوبکرؓ او عمرؓ نه دَ مشورے دَ اخستلو دَ پاره نازل شوے دے دا دواړه حضرات دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم خاص صحابیان او وزیران وُو او دَ مسلمانانو دَ پلار په شان) پالونکی وُو" |

نبی کریم صلی الله علیه وسلم یوه ورځ شیخینو حضراتو ته اوفرمائیل:

لَوِ اجْتَمَعْتُمْ فِيْ مَشْوَرَةٍ مَا خَالَفْتُكُمَا - (ابن کثیر بحواله مسند احمد)

"هر کله چه تاسو دواړه په یوه رائے باندے متفق شئ نو زهٔ ستاسو دواړو خلاف نه کوم."

## یو اشکال او د هغے جواب

دلته دا اشکال پیدا کیږی چه دا خو د جمهوریت خلاف دے او د شخصی حکومت طرز دے او په دے سره جمهوریت ته د نقصان رسیدو یره ده -

جواب ئے دا دے چه اسلامی آئین د دے رعایت اول کړے دے ځکه چه عوامو ته ئے دا اختیار نه دے ورکړے چه چالره غواړی هغه خپل امیر جوړ کړی بلکه په دوی ئے لازمی کړے ده چه د علم او عمل او د کار د صلاحیت او د خدائے نه د یرے او دیانتدارئ امانتدارئ په لحاظ سره چه کوم سړے د ټولو نه غوره او کنړی صرف هغهٔ دے امیر منتخب کړی - نو پس کوم سړے چه د دے اعلیٰ صفتونو په بنا سره منتخب شوے وی - په دهٔ باندے دا سے پابندئ لګول کومے چه په بد دیانتو فاسقانو او فاجرانو باندے لګولے شی د عقل او انصاف قتلول، او د کار کونکو همت ماتول او د ملک او ملت په کار کښے بندیز غورځول او خنډ ان را پیدا کول دی -

**شپږمه مسئله:** په هر کار کښے د مکمل تدبیر کولو نه پس په الله تعالیٰ باندے توکل کول -

دلته دا خبره د غور قابله ده چه د حکومت د نظام او په نورو ټولو کارونو کښے د تدبیر او مشورے د احکامو نه پس ئے دا خود نه کړے ده - چه د ټولو تدبیرونو کولو نه پس بیا هم کله چه د کار کولو اراده او کړے نو په خپله رائے او عقل او تدبیرونو به تکیه نه کوئے بلکه تکیه به صرف په الله کوئے ځکه چه دا ټول تدبیرونه د الله تعالیٰ په قبضهٔ قدرت کښے دی - انسان څهٔ دے او د دهٔ رائے او تدبیر به څهٔ وی - هر انسان په خپل عمر کښے په زرګونو واقعاتو کښے خپله دا رسوائی وینی - چه بغیر د الله تعالیٰ د رضا نه یو تدبیر هم نشی کار کولے مولانا رومیؒ څهٔ خهٔ فرمائیلی دی ؎

خویش را دیدیم ورسوائی خویش ... امتحان ما مکن اے شاه بیش

(ترجمه: مونږ خپله کمزوري او رسوائي ليدلې ده - نور زيات په امتحان کښې مونږه مه اچوې)

دَ: فَاِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ: جُملې نه دا خبره هم په ډاګه شوه چه توکل دَ اسبابو او تدبير پاتې کولو نوم نه دے بلکه دَ نزدے اسبابو پاتې کول او توکل کول دَ پيغمبرانو دَ سنتو نه او دَ قرآن دَ تعليم نه خلاف کول دی - البته لوے اسبابو او بے کاره فکرونو کښې اخته کيدل يا صرف اسبابو او تدبير له خاص اشر کول نکې کتل او دَ مسبب الاسباب او دَ کارونو تدبير جوړه ونکی الله تعالیٰ نه غافله او بے پروا پاتې کيدل بے شکه چه دَ توکل نه خلاف خبره ده - دَ اسبابو او تدبير کولو سره په الله تعالیٰ توکل کول په کار دی -

اِنْ يَّنْصُرْكُمُ اللّٰهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۚ وَاِنْ يَّخْذُلْكُمْ فَمَنْ

که الله ستاسو مدد او کړی نو څوک به په تاسو باندې غالب نشي - او که ستاسو مدد او نه کړي نو بيا داسے

ذَا الَّذِيْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْ بَعْدِهٖ ؕ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۶۰﴾

څوک دے چه ستاسو مدد او کړے شي دَ هغۀ نه پس - او خاص په الله باندې بهروسه په کار ده مسلمانانو لره -

وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ ؕ وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ

او دَ نبي کار نه دے چه پټ کړی - او څوک چه پټ کړي هغه به را وړی خپل پټ کړے شے په ورځ دَ قيامت کښې -

ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿۱۶۱﴾ اَفَمَنِ

بيا به پوره بيامومی هر څوک خپله کړې کټلې وی - او په دوی به ظلم نه وی - ايا پس هغه سړے

اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْۢ بَآءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ؕ

چه تابع دے دَ رضا دَ الله برابر يدے شي دَ هغۀ چا چه او ګټله غصه دَ الله او دَ دۀ ځائے دوزخ دے -

وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۶۲﴾ هُمْ دَرَجٰتٌ عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌ ۢ

او ډېر بد ځائے دَ او رسيد - دَ خلقو مختلف درجې دی دَ الله په نزد - او الله وينی

بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٦٣﴾ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ

څه چه دوی کوی - الله احسان اوکړه په ایماندارو باندے چه اولیږه

فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ

په دوی کښے رسول د دوی نه لولی په دوی ایاتو نه د هغهٔ او پاکوی دوی لره (یعنی

وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۚ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ

د شرک وغیره نه) او ښائی دوی ته کتاب او د کار خبرے - او دوی خو د وړاندے نه په ښکاره ګمراهئ

مُّبِيْنٍ ﴿١٦٤﴾ اَوَلَمَّآ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا ۙ

کښے وو - اے څهٔ وخت چه اورسید تاسو ته یو تکلیف چه تاسو رسولے وه د دے نه دوچند -

قُلْتُمْ اَنّٰى هٰذَا ۖ قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ ۖ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ

نو وائي چه دا د کوم طرفه راغے - ته اووایه چه دا تکلیف تاسو ته اورسید ستاسو د طرفه - بے شکه الله په هر څهٔ

شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٦٥﴾ وَمَآ اَصَابَكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ فَبِاِذْنِ

باندے قادر دے - او څهٔ چه تاسو ته اورسیدل په هغه ورځ چه مخامخ شو دوه فوجونه پس د الله په

اللّٰهِ وَلِيَعْلَمَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٦٦﴾ وَلِيَعْلَمَ الَّذِيْنَ نَافَقُوْا ۚ

حکم سره او په دے وجه چه معلوم کړی ایماندارو لره - او د دے د پاره چه معلوم کړی هغو لره چه منافقان وو -

وَقِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَوِ ادْفَعُوْا ۖ قَالُوْا

او او ویلے شو دوی ته چه راشئ جنګ اوکړئ د الله په لاره کښے یا دفع کړئ دشمن لره - اووئے وے

لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّا اتَّبَعْنٰكُمْ ۖ هُمْ لِلْكُفْرِ يَوْمَئِذٍ اَقْرَبُ

که موږ ته معلوم وے جنګ نو خامخا به ستاسو سره وو دغه خلق په دے ورځ کفر ته نزدے دی

مِنْهُمْ لِلْاِيْمَانِ ۚ يَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ مَّا لَيْسَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۗ

په نسبت د ایمان - وائي په خولو سره هغه چه نیشته په زړونو د دوی کښې -

وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا يَكْتُمُوْنَ ﴿١٦٧﴾ ۚ اَلَّذِيْنَ قَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ

او الله ښه پوهه دی په هغه څه چه دوی پټوی - هغه خلق دی چه وائي خپلو رونړو ته

وَقَعَدُوْا لَوْ اَطَاعُوْنَا مَا قُتِلُوْا ۗ قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ اَنْفُسِكُمُ

او په خپله ناست وی که دوی زمونږ خبره منلې نو نه به مړه کیدل - ته او وایه پس منع کړئ د ځان خپله

الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١٦٨﴾ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ

مرګ لره که تاسو رښتونی یئ - او نه مه ګنړه دغو خلقو لره

قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ۗ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ

چه مړه شوی دی د الله په لاره کښې مړه - بلکه دوی ژوندی دی د خپل رب سره

يُرْزَقُوْنَ ﴿١٦٩﴾ ۙ فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۙ وَ

خوړلی شی - خوشحالیږی په هغې باندے چه ورکړې دوی لره الله تعالی د خپل فضل نه - او

يَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ ۙ

او زیرے اخلی د هغو د طرفه چه لا ترا اوسه نه دی رسیدلی دوی ته د دوی نه روستو -

اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿١٧٠﴾ ۘ يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ وقف لازم

په دے وجه چه نه څه یره شته په دوی او نه څه غم - زیرے اخلی په نعمت د الله سره

مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٧١﴾ ۚ ع ١٧ ١٧ ٨

او په فضل سره - او په دے خبره سره چه الله نه ضائع کوی مزدوری د ایماندارو -

## دَ اياتونو ترون

دَ احد په واقعه کښې په عارضي ماتې او دَ مسلمانانو په پريشانۍ باندې دَ صحابه کرامو دَ تسلۍ دَ پاره نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته دَ خوګاروئ حکم شوې وُه - چه په دې سوره دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم دَ خفګان خطره خولرې شوه - ليکن دې حضراتو ته په دې واقعه کښې په خپلې ماتې خوږه و باندې افسوس هم وه - په دې وجه په ذکر شوو دولس ١٢ اياتونو کښې په اولنۍ ايات کښې دَ دوی دَ ماتې خوږوا افسوس دَ زړه نه (وُ باسی دارنګې دَ بدر په ورځ په مال دَ غنيمت کښې يو چادرورک شو نو بعضې ړنابو هوَيا منافقانو) خلقو اووې چه شايد نبي کريم صلی الله عليه وسلم به اغستې وی - او داکار (حقيقةً يا صورةً خيانت دې دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم شان مبارک دَ دَ نه پاک او بالاتر دې - په دې وجه په دويم دريم او څلورم ايات کښې ئې دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم لوئې شان او عظيم صفت دَ امانت دارئ او دَ دې خيال غلطي بيان کړه په پنځم ايات کښې ئې دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم وجود مبارک يو لوئې نعمت او دَ دوی راتلل ئې دَ انسانيت دَ پاره يو عظيم رحمت او لوئې احسان واضحه کړې لو -

چونکه په مسلمانانو دا شکست يو ډير سخت بوجه او بار وه چه سره دَ دې چه مومن مسلمانان يو نو دا مصيبت په مونږ باندې وَلې او دَ کوم طرف نه راغې په دې وجه صحابه کرامو ته تعجب او افسوس وه - او دارنګې منافقانو به ووې چه که داخلق په کورونو کښې ناست وې نو نه به وُو هلاک شوی او دَ دې شهيدانو مرګ ئې بدنصيبي او محرومي ګنړله - په دې وجه ئې په شپږم اُووم او اتم ايات کښې په بَل عنوان سره دَ دې عارضي مصيبت او تکليف وجه او حکمت ښکاره کړه او دَ دې په ترس کښې دَ منافقانو ترديد هم او شو -

او په نهم ايات کښې ئې دَ دې غلطې عقيدې رد او کړو چه په کورونو کښې کيناستل دَ هلاکت نه نجات دې - او په لسم يولسم او دولسم ايات کښې ئې دَ شهيدانو دَ اعلیٰ درجې کاميابۍ او حقيقي ژوند او دَ هميشه نعمتونو او خوشحالو ثابت والې بيان او فرمايه چه هغوی حقيقي ژوند او خوشحالۍ بيا مونده -

---

# لنډ تفسير

که الله تعالى ستاسو ملګرتيا او کړي نو ستاسو نه بيا هيڅوک کټه نه شي کولے او که ستاسو سره ملګرتيا اُونه کړي نو دَ دهٔ نه پس بيا څوک دے چه ستاسو ملګرتيا او کړي (او تاسو غالب کړي) او صرف په الله تعالى باندے ايماندارو لوه اعتماد ساتل په کار دي. او دَ نبي شان دا نه دے چه هغه (نعوذ بالله) خيانت او کړي حال دا دے چه د خيانت کوونکي به په قيامت کښے رُسوائي او شرمندګي وي ځکه چه) کوم سړے خيانت او کړي دغه سړے به دَ خپل خيانت کړے شے دَ قيامت په ورځ (دَ حشر په ميدان کښے حاضر کړي (چه ټول خلق پرے خبر شي او ټولو په وړاندے ئے شرم او رسوائي اوشي) بيا ( دَ ميدان دَ قيامت نه پس) هرسړي ته (دَ دے خيانت کوونکو) دَ دهٔ دَ کړو ( په دوزخ کښے) پوره عوض ملاؤ شي او په دوي به بالکل ظلم نه وي (چه کوندے دَ جرم نه زياتي سزا به ورته ملاؤ شي. غرض دا دے چه خيانت کوونکي په غضب شوي او دَ دوزخ مستحق شو او انبياء عليهم السلام به دَ الله دَ رضا لټولو په وجه په قيامت کښے سر بلند وي نو پس دا دواړه کارونه نه شي جمع کيدے لکه چه وړاندے ارشاد دے) پس دا سے سړے چه دَ رضا دَ حق تابع وي (لکه نبي) اے دغه به دَ دا سے سړي په مثل شي چه دَ الله دَ غضب مستحق وي او ځائے ئے دوزخ وي (لکه خيانت کړ) او دغه دَ وړتلو نا کاره ځائے دے (هرګز به دواړه برابر نه وي بلکه) دا چه ذکر شو (يعنے تابعدارانِ دَ رضا دَ حق او په غضب شوي) په درجو کښے به مختلف وي دَ الله تعالى په نزد (چه تابعدار محبوب او جنتي دے او په غضب شوے دوزخي دے) او الله تعالى ښهٔ وينی د دوي عملونه (نو په دے وجه به دَ هر يو سره دَ هغهٔ مناسب معامله او فرمائي) په حقيقت کښے الله تعالى په مسلمانانو باندے (لوئے) احسان او کړه چه په دوي کښے ئے دَ دوي دَ جنس نه يو داسے (عظيم الشان) پيغمبر لوه اوليږه چه هغه دے خلقو ته دَ الله تعالى اياتونه (او احکام) لولي آوروي او (دَ ظاهري او باطني پليتونه) دے خلقولوه پاکوي او دوي ته کتاب (الٰهي) او دَ پوهے خبرے اِزده کوي او په يقين سره دا خلق (ستا دَ راتلو نه) وړاندے په ښکاره غلطئ (يعني شرک او کفر) کښے (اَخته) وُو او کله چه (په اُحد کښے) تاسو دا شکست او خوړ چه دَ هغے

د دوچند تاسو (په بدر کښې) کته کړې وه (ځکه چه په اُحد کښې اویا مسلمانان شهیدان شو او په بدر کښې اویا کافران قید شوی او اویا قتل شوی وُو) نو ایا په دا سې وخت کښې تاسو (په طور د اعتراض نه سهی په طور د تعجب) داسې وائې چه (سره د دې چه مونږ مسلمانان یُو) دا (شکست) د کوم طرف نه اوشو (یعنې ولې اوشو) ته ئې درته اُووایه چه دا شکست ستاسو د طرفه اوشو (که د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ارشاد نه خلاف مُونه وې کړې نو شکست به مونه وُه خوړلې ځکه چه د دې قید سره د فتح وعده شوې وه) بې شکه الله تعالیٰ ته په هر شی باندې پوره قدرت دې (هر کله چه تاسو د خپل طاقت مطابق حکم اومانه نو تاسو ئې غالب کړې او کله چه تاسو خلاف اوکړه په خپل طاقت سره نو تاسو ئې مغلوب کړې) او کوم مصیبت چه پېتاسو پړیوت په کومه ورځ چه دوه ډلې د مسلمانو او کفارو یو بل ته (د جنګ د پاره) مخامخ شوې (یعنې د اُحد په ورځ) پس (دغه مصیبت) د خدائې په حکم سره راغې (ځکه چه څو چنده حکمتونه وُو په کښې چه بیان ئې بره شوې دې) او (په دې کښې یو حکمت دا دې) د دې د پاره چه الله تعالیٰ مؤمنانو لره هم او وینی (ځکه چه د مصیبت په وخت کښې اخلاص او غیر اخلاص ښکاره کیږی لکه چه دا سې تیر شوی هم دی) او هغهٔ خلقو لره هم اووینی چا چه د نفاق کار اوکړو او دوی ته (د جنګ شروع کید و په وخت کښې هر کله چه درې سوه کسانو د مسلمانانو سره ملګرتیا پریخوده لکه چه وړاندې تیر شوی دی) داسې اوویلې شو چه (د جنګ میدان ته راشئ (بیا که همت در کښې وی نو) د الله په لاره کښې جنګ اوکړئ یا (که همت در په کښې نه وی نو شمار زیات کړئ) د دشمنانو دفع اوکړئ (ځکه چه کنړه اُو وینی نو په دوی به رُعب راشی او شاید چه په دې سره واپس شی) دوی او وې چه که مونږ لیدې چه دا د طریقې جنګ دې نو خامخا به ستاسو سره شوی وُو (لیکن دا څهٔ جنګ دې چه دغه خلق ستاسو نه درې څلور چنده زیات دی او بیا په دې د پاسه د دوی سره سامان هم زیات دې نو په داسې حالت کښې جنګ کول ځان هلاکت ته غورزه ول دی جنګ نه دې) ته نه شی ویلې الله تعالیٰ په دې باندې فرمائې چه) دامنافقان په دغه ورځ (هر کله چه داسې اُوچ جواب ئې ورکړې وُه) کفر ته (په ښکاره هم) ډیر نزدې شو په نسبت سره د هغې حال نه چه دوی (مخکښې په ظاهره سره) ایمان

ته (څهٔ قدر) نژدے دُو (ځکه اول چه اکوکه دوی په زړهٔ سره مؤمنان نه وو مګر دَ
مسلمانانو په وړاندے به ئے دَموافقت خبرے جوړه وَلے خو په دے ورځ پرے دا سے
سپین ستوګے راغے چه ښکاره په ښکاره ئے دَمخالفت خبرے دَخولے نه اُووتے - په دے
وجه چه ئے اول ایمان ته څهٔ ظاهری نژدے والے وُه هغه کفر ته په نژدے والی بانده
بدل شو او دا نژدے والے دَهغے نژدے والی نه زیات ځکه دے چه دَموافقت
دغه وړاندینۍ خبرے دَدوی دَزړهٔ نه نهٔ وے نو په دے وجه زوردارے نه وے
او دا دَمخالفت خبرے دَزړهٔ نه وَے - په دے وجه ئے دَدینا هم زوردارہ وه) دا خلق
په خپلے خولے سره داسے خبرے کوی چه په زړونو کښے ئے نیشتے (یعنے په زړهٔ کښے ئے
دادی چه دَ دے مسلمانانو سره چرته هم ملګرتیا او نه کړی اګوکه دَ طریقے جنګ وَلے
نه وی) او الله تعالیٰ څهٔ پیژنی څهٔ چه دوی په خپل زړهٔ کښے ساتی (په دے وجه دَدے
خبرے غلطوالے الله تعالیٰ ته معلوم دے) دوی داسے خلق دی چه (په خپله خو په
جهاد کښے شریك نه شو او) دَخپلو (هم نسبو) روڼړو په نسبت (کوم چه قتل شو
په کورونو کښے) ناست خبرے جوړه وی چه که زمونږ خبره ئے منلے (یعنے زمونږ په
منع کولو سره نه تلے) نو (بے فائدے) به نه وُو قتل شوی تهٔ ورته او وایه چه څهٔ
ده نو تاسو دَخپل ځان نه مرګ واړه وئے که تاسو (په دے خیال کښے) رشتونی ئے
(چه دَمید ان په تلو کښے هلاکت وی ځکه چه دَ قتل نه بچ کیدل خو دَمرګ نه دَ بچ
کیدو دَ پاره په کار دی نو کله چه په مقرره وخت باندے په کور کښے په ناستے سره
هم مرګ راځی نو قتل هم دَمقرره وخت نه نهٔ شی بچ کیدے) او (اے مخاطبه) کوم
خلق چه دَ الله تعالیٰ په لاره کښے (یعنے دَ دین دَ پاره) قتل کړے شی دی لره (دَ نورو
مړو په شان) مه ګنړه مړه بلکه دغه خلق (په یو ښکلی ژوند سره) ژوندی دی (او
خپل رب ته نژدے (یعنی مقبول دی) دوی ته رزق هم ملاویږی (او) خوشحاله
دی په هغه شی سره کوم چه دوی ته الله تعالیٰ په خپل فضل (او کرم) سره ورکړے
دے (مثلاً دَ نزدیکت درجے وغیره - یعنے ظاهری رزق ورته هم ملاویږی او معنوی
یعنے خوشحالی هم) او (څه رنګ چه دوی په خپل حال خوشحاله دی دغه شان)
کوم خلق (چه اوس په دنیا کښے ژوندی دی او) دوی ته نه دی رسیدلی (بلکه)
دَ دوی نه روستو پاتے دی دَهغوی هم په دے حالت باندے (دغه شهیدان) خوشحالیږ

چه (که دوی هم شهیدان شی نو زمونږ په شان) به په دوی هم هیڅ یره واقع کیږي ونه به وی او نه به دوی (په هیڅ قسم) غمژن وی (غرض دا دے چه دوی ته دوه خوشحالئ حاصلے دی یوه دځان متعلق دویمه دخپلو تعلقدارانو متعلق دپاره ئے ذدے دواړو خوشحالو سبب دا او خودۀ چه) دوی (په خپل حالت باندے هم) خوشحالیږی په وجه د نعمت او فضل د الله تعالیٰ (کوم چه دوی او لیده چه) الله تعالیٰ د ایماندارو (دعمل) اجر نه ضائع کوی (نو کوم خلق چه د دوی تعلق داران وروستو پاتے دی او په نیکو کارونو جهاد وغیره کښے لګیا دی دوی ته به هم دا سے انعامونه ملاؤ شی) -

## مَعْلُوْمَاتْ اَوْ مَسْئَلے

دغنیمت په مال کښے غلا لوئے ګناه دے دیو نبی نه د دا سے ګناه احتمال هم نیشتے

ایة: مَا کَانَ لِنَبِیٍّ اَنْ یَّغُلَّ: دا دیو خاص واقعے په باره کښے راغلے دے - ددے په ترڅ کښے د غلول یعنے دغنیمت دمال دغلا مسئله هم راغله -

د ترمذی د روایت مطابق واقعه دا ده چه د بدر په جهاد کښے په مالِ غنیمت کښے یو څادر ورک شو - بعضے خلقو اووے چه شاید نبی کریم صلے الله علیه وسلم به اغستے وی - دا سے خبره کونکی که منافقان وُو نو بیا خو څۀ لوے خبره نه ده او ممکنه ده چه څوک نا پوهه مسلمانان وی نو دهغوی به دا ګمان وُه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دا سے اختیار شته - په دے باندے دا ایات نازل شو - چه غلول ته ئے لوئے ګناه اووے او د قیامت په ورځ ئے ددے سخته سزا ذکر کړه - او دا چه دیو نبی متعلق دا ګمان کول چه دۀ به دا ګناه کړے وی دا ډیر عبث تور پورے کول دی - ځکه چه پیغمبران د هر ګناه نه پاک دی -

لفظ د "غلول" مطلق دخیانت په معنیٰ کښے هم استعمالیږی - او خاص کر په مال دغنیمت کښے دخیانت د پاره هم - او په مال دغنیمت کښے غلا او خیانت کول دعام غلاګانو او خیانتونو نه زیات سخت دے - ځکه چه دغنیمت په مال کښے د ټول اسلامی لښکر حق دے نو چا چه په دے کښے غلا اوکړه دۀ د سوُونو زرګونو خلقو نه غلا اوکړه - که څۀ وخت بیا دے دا حق واپس کول هم اوغواړی نو ډیره ګرانه ده چه ټولو ته

دَ دوی حق ورا ورسوی یائے پرے معاف کړی - په خلاف دَ نورو غلاګانو نه چه مالک ئے معلوم وی نوځهٔ وخت چه الله پاک ورلوه توفیق ورکړی دَ توبے نو چه دَ هغهٔ حق ادا کړی یائے پرے معاف کړی نو بری کیدے شی - هم دا وجه ده چه په یوه غزا کښے یو سړی دَ وړیٔ غټهٔ حِصّه پټه کړه دَ څان سره ئے کیخوده - دَ غنیمت دَمال دَ تقسیمید و نه پس دهٔ ته خیال راغے نو دغه وړیٔ ئے دَ نبی کریم صلے الله علیه و سلم په خدمت کښے حاضره کړه - دوی سره دَ دے چه رحمت للعٰلمین وُه او په اُمّت باندے دَمور و پلار نه زیات شفقت کونکے وُه دائے ورته اُووے او دغه ئے واپس کړو چه اوس به دا زهٔ په څهٔ شان سره په ټول لښکر کښے تقسیم کوم اوس به تهٔ دا دَ قیامت په ورځ حاضره وے -

نو په دے وجه دَ "غلول" سزا هم دَ عامو غلاګانو نه سخته ده - چه دَ حشر په میدان کښے چه ټول مخلوق جمع وی دَ ټولو په وړاندے به دے دا سے رُسوا کولے شی چه کوم مال دهٔ غلا کړے وی هغه به دَ دهٔ په اُوګو باندے بار وی - په صحیحینو کښے په روایت دَ ابو هریرهؓ ذکر دی چه نبی کریم صلے الله علیه و سلم فرمائیلی دی چه اوګورئ داسے نه شئ چه په قیامت کښے چالره داسے اووینم چه دَ هغه په اُوګو باندے یو اُوښ باروی (او دا اعلان کیږی چه دهٔ دَ غنیمت دَمال نه دا اوښ پټ کړے وُه) دغه سړے که څما نه دَ شفاعت طلب کوی نوځهٔ به ورلوه صاف جواب ورکړم چه ما تاسو ته دَ الله حکم رسولے وُه - اوس زهٔ هیڅ نه شم کولے -

الله دے مونږ اُوساتی دا دَ حشر دَ میدان رسوائی به داسے وی - چه په بعضے روایاتو کښے داسے دی چه دَ چا سره دا معامله وی هغه به اُرزو کوی چه ماجهنّم ته اولیږئ چه دَ دے رسوائی نه بچ شم -

| هم دا حال دَ چا تو نو، مدرسو، خانقاه ګانو او دَ اوقافو دَ مالونو دے، چه په دے کښے دَ زرګونو | دو قف مالونو او سرکاری خزانونه غلا کول دَ غلول په حکم کښے دی |
| --- | --- |

لاکونو مسلمانانو چنده وی - که معاف کول ئے غواړی نو دَ چا چا نه به ئے معاف کوی دغه شان دَ حکومت دَ سرکاری خزانے (بیت المال) حکم دے څکه چه په دے کښے دَ ټول ملک دَ اوسیدونکو حق دے څوک چه ترے غلا اوکړی هغهٔ دَ ټولو نه غلا اوکړه - لیکن چونکه دا مالونه عام طور رسوه داسے وی چه دَ دے څوک سړے مالک نه وی - نګرانی کونکے

ئے اکثر بے پرواهی کوی. نو په دے وجه په کښے دَغلا موقع ډیرے وی - په دے وجه نن صبا په دنیا کښے دَ ټولو نه زیاته غلا او خیانت په دے مالونو کښے کیږی او خلق دَدے دَ بد انجام اودَ لوئے گناه نه غافل دی - چه دَدے جُرم سزا دَ جهنم دَعذاب نه علاوه دَحشر دَمیدان رسوائی هم ده - او دَنبی کریم صلی الله علیه وسلم دَشفاعت نه محرومی هم (الله دے تورے مونږ لره پناه راکړی - امین)

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ الآیة: دَدے مضمون یو ایات تقریبًا په دے الفاظو سره په سورتِ بقره کښے تیر شوے دے چه تفصیل او تشریح ئے هلته پوره شوے ده - هلته ئے اوکوره - دلته په دے ایات کښے یو لفظ زیات دے

دَنبی کریم صلی الله علیه وسلم وجود مبارک په ټول انسانیت باندے دَ ټولو نه لوئے احسان دے

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ: یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم لره ئے دُنیا ته راولیږه نو دا الله تعالیٰ په مؤمنانو ډیر لوئے احسان کړے دے -

دَدے په باره کښے خو اوّل دا خبره دَ غور قابله ده - چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ قرآن دَ تصریح مطابق رحمة للعالمین دے - او دَ ټول مخلوق دَپاره دَ دوی وجود لوئے نعمت او لوئے احسان دے - دلته ئے صرف دَمسلمانانو دَپاره فرمائیل دا سے دی لکه څنګه چه ئے قرآن کریم لره: هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ: فرمائیلے دے - او دَ قرآن کریم دَ ټول عالم دَپاره هدایت کیدل دَ نورو ایاتونو نه ثابت دی - لکن په بعض ځایونو کښے ئے دا دَمتقیانو سره خاص کړے دے - دَدے وجه په دواړو ځایونو کښے په شریکه سره یوه ده - چه اګرچه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وجود مبارک دَ ټول مخلوق او هرمؤمن کافر دَپاره لوئے نعمت او لوئے احسان دے دغه شان قرآن کریم دَ ټول انسانیت دَپاره صحیفه دَهدایت ده لیکن چونکه دَدے نعمت او هدایت نفع صرف مؤمنانو او متقیانو حاصله کړه په دے وجه ئے په څهٔ ځایونو کښے دَ دوی سره خاص کړے بیان کړه -

دَویمه خبره دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَمؤمنانو دَپاره یا دَ ټول عالم دَپاره لوئے نعمت او لوئے احسان کیدلو تشریح او وضاحت دے -

دا خبره دا سے ده چه که دَ نن وخت انسان روحانیت هیره وئکے او دَمادیت (یعنے ظاهری ډَوَل ډال) پرستار (یعنی تابعداری کوونکے) نه وے نو دَدے مضمون

تشریح او وضاحت ته بیا ضرورت نه وه۔ د عقل نه کار اخستونکے هر یو انسان
به د دے لوئے احسان د حقیقت نه په خپله خبر وه۔ مګر کیږی داسے چه د
نن وخت انسان د دُنیا په جانورانو کښے د تولو نه د زیات هوښیار جانور نه سوا
بَل هیڅ نه دے پاتے شوے۔ دے احسان او انعام صرف هغه شی ته وائی
چه د ده د ګیډے او نفسانی خواهشاتو سامان تیاره وی۔ د ده د وجود د
اصل حقیقت نه چه د ده رُوح دے د ده د خپلے والی او خرابئ نه دے سرا سر
غافله شوے دے۔ په دے وجه د دے تشریح ته ضرورت دے۔ چه انسان
ته اوّل دا او خودے شی چه د ده حقیقت صرف د څو هډوکو او غوښے او
څرمنے مجموعه نه ده۔ بلکه د انسان حقیقت (یعنی اصلیت) هغه روح دے
چه د ده د بدن سره پیوست دے۔ تر څو پورے چه دا روح د ده په بدن
کښے وی تر هغه وخته پورے انسان انسان دے، د ده د انسانیت حقونه
قائم دی۔ خواه دے هر څومره کمزورے ضعیف او مرګ ته نژدے ولے نه وی
د چا دا مجال نیشته چه د ده په جائداد او مال باندے قبضه اوکړی یا دے
د خپلو حقونو نه محرومه کړی۔ لیکن څهٔ وخت چه دا روح د ده د بدن نه
جُدا شو، نو خواه که دے هر څومره قوی او پهلوان وی او د ده اندامونه
تول په خپل اصلی شکل کښے وی۔ دے انسان پاتے نه شو د ده خپل هیڅ حق په خپل
جائداد او مال کښے باقی پاتے نه شو۔

پیغمبران علیهم السلام دنیا ته د دے د پاره راغلی دی چه دوی د انسان د
روح صحیح پالنه اوکړی د انسان حقیقی انسان جوړ کړی د دے د پاره چه
د ده د بدن نه کوم عملونه او کارونه کیږی هغه د انسانیت (سړیتوب) د پاره
فائده مند ثابت وی۔ دے د درندګانو او ځرخ جانورانو په شان نور مخلوق
ته ضرر او تکلیف نه رسوی۔ او چه خپله هم په خپل انجام باندے ځان پوهه کړی
ځان له د اخرت د همیشه ژوند د پاره سامان تیار کړی۔ زمونږ نبی کریم صلی الله علیه
وسلم ته چه د انبیاؤ په تولو کښے د امامت او سردارئ مرتبه حاصله ده د انسان
نه په صحیح انسان جوړولو کښے د دوی شان د تولو انبیاؤ علیهم السلام نه ډیر
اوچت دے۔ دوی په خپل د مکے په ژوند کښے صرف دغه د سړی جوړولو کار اوکړو۔

اودَ انسانانو یوه داسې معاشره ئې تیاره کړه چه مقام ئې دَ فرښتو دَ صفونو نه وړاندې دې - او زمکې او اسمان دَ دې نه ځکښې داسې انسان نه وه لیدلې - په دوی کښې هر یو دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ژوندئ معجزه په نظر راځي - او دَ وروستو دپاره هم دوئ چه کوم تعلیمات او دې تعلیماتو لره دَ رواج کولو کوم طریقې چه پریخودې دی په دې باندې پوره عمل کونکې هم دغه مقام مونده شي کوم چه صحابه کرامو موندلې دے - دا تعلیمات دَ ټول عالم دَ پاره دی په دې وجه دَ دوئ وجود مبارک دَ ټول مخلوق دَ پاره یو لوئې احسان دے. اګرچه دَ دې نه پوره فائده مؤمنانو اغستې ده -

**دَ اُحد په واقعه کښې مسلمانانو ته عارضي ماتې او دَ قتل او زخم مصیبتونو رابنځید و بعضې سببونو او حکمتونه**

اَوَلَمَّآ اَصَابَتۡكُمۡ :الآیة: په تیرو ایاتونو کښې څوځایه دَ دې مضمون ذکر راغلې دے دلته ئې بیا په زیات وضاحت سره بیان کړیدے. ځکه چه مسلمانانو ته دَ دې واقعې ډیر سخت غم او پریشانی وه - تر دې چه دَ بعضې حضراتو په ژبه باندې دا هم راغله: اَنّٰى هٰذَا: چه دا مصیبت په مونږ دَ کومه راپریوت؟ په داسې حال کښې چه مونږ دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره په جهاد کښې شریک یو.

په ذکر شوی ایات کښې ئې اوّل دا خبره ورياده کړه چه څومره مصیبت په تاسو نن پریوتې دے تاسو دَ دې دوچند په خپل مخالف باندې دَ دې نه وړاندې دَ بدر په غزا کښې غورزه وَلې وَه - ځکه چه دَ اُحد په غزا کښې اویا تنه مسلمانان شهیدان شوی وُو - او دَ بدر په غزا کښې دَ مشرکانو اویا تنه سرداران دَ مشرکانو قتل شوی وُو - اَوْ اَویا ګرفتار شوی وُو دَ مسلمانانو په لاس کښې وَرَغلي وُو - دَ دې خبرې دَ وریادولو نه یو خو دا مقصد دے چه دا مسلمانان خپل دا موجوده تکلیف او پریشانی　　هیره کړي - چه دَ کوم سره ی دوچنده کتنه شوې وی که یو وارې نیم بایئد او یا شکست او خوری نو په دې زیات غم او تعجب　　نه دی کول په کار -

دویم اصل مقصد دَ ایات په اخري جمله یعنې: قُلۡ هُوَ مِنۡ عِنۡدِ اَنۡفُسِكُمۡ کښې ښودلې دے چه دا تکلیف او مصیبت په حقیقت کښې دَ دشمن دَ ډیر والی او طاقت په وجه

سره نه دے بلکه ستاسو د بعضو کمزورو په سبب سره دے چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په حکم منلو کښې ستاسو نه کوتاهی (کمے) اوشو۔

د دینه پس په بل ایات: فَبِاِذْنِ اللّٰهِ: کښې دے طرف ته اشاره اوشوه چه دا هرڅهٔ چه اُوشو د الله تعالیٰ په اذن او رضا سره اُوشو۔ چه په دے کښې ډیر حکمتونه پټ دی۔ چه په دے حکمتونو کښې د بعضو بیان وړاندے شوے دے او یو حکمت په کښې دا هم دے چه الله تعالیٰ مُخلِص مؤمنان هم اوکوری۔ او منافقانو له هم۔ یعنی د مؤمنانو اخلاص او د منافقانو منافقت دا سے ښکاره شی چه هر یو لیدونکے اووینی۔ دلته د الله تعالیٰ د لیدو نه مراد دا دے چه په دنیا کښې کوم صورت د لیدو چه معلوم دے په دے صورت باندے اولیدے شی ورنه الله تعالیٰ خو هر وخت هر یو شے وینی۔ نو د دے حکمت پته دا سے اولګیده چه د دے سختے په وخت کښې منافقان جُدا لاړه اودریدل او مخلصان مؤمنان په جنګ کښې ثابت قدم پاتے شو۔

او یوه وجه د تسلیٔ دا هم ده چه کوم مسلمانان په دے جنګ کښې شهیدان شویدی دوی لره الله تعالیٰ هغه انعامات ورکړیدی چه نورو لره دے ته پښتیدل په کار دی۔ په دے مناسبت سره ئې د دے نه پس وروستو ایات: وَلَاتَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ قُتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا: کښې د شهیدانو خاص فضیلتونه بیان کړی دی۔

د الله په لاره کښې د شهید کیدونکو خاص فضیلتونه او درجے۔

په دے ایات کښې د شهیدانو د خاص فضیلتونو بیان دے۔ او په صحیح احادیثو کښې د دے ډیر لوئے تفصیل راغلے دے۔ امام قرطبیؒ فرمائیلی دی چه د شهیدانو هم درجے او حالات مختلف وی۔ په دے وجه د احادیثو په روایتونو کښې چه کوم مختلف صورتونه راغلی دی هغه د مختلفو حالاتو په اعتبار سره دی۔

دلته د شهیدانو اولنے فضیلت (غوره والے) خو دا بیان شوے دے چه هغهٔ مړهٔ نه دی بلکه د همیشه ژوندي ماکان شوی دی۔ دلته دا خبره د غور قابله ده چه په ظاهره کښې د دوی مړهٔ کیدل او په قبر کښې ښخیدل خو لیدلے شی۔ نو بیا د قرآن په ډیرو ایاتونو کښې دوی ته مړهٔ نه ویئل

او مُرَهٔ نه کتنو لوکوم هدایات چه راغلي دي دَ دې څهٔ مطلب دے؟ که دا سے اوویلے شي چه برزخي ژوند ترے مراد دے نو دا خو هرسړي مؤمن او کافر ته حاصل دے چه دَ مرګ نه پس دَ دهٔ روح ژوندے وي. او دَ قبر دَ سوال جواب نه پس دَ مؤمن صالح دَ پاره دَ راحت سامان او دَ کافر فاجر دَ پاره دَ قبر عذاب دَ قرآن او حدیث نه ثابت دے - نو چه دا برزخي ژوند هر کله دَ ټولو دَ پاره یو شان دے نو دَ شهیدانو خصوصیت په کښې څهٔ شو؟

جواب دا دے چه دَ قرآن کریم دے آیات او اخبره او خوده چه شهیدانو ته دَ الله دَ طرف نه دَ جنت رزق ملاو ویږي، او رزق ژوندي سړي ته ملاویږي دَ دینه معلومه شوه چه دَ دے دُنیا نه دَ تلو سره دَ شهید دَ پاره دَ جنت رزق جاري کیږي، او یو خاص قسم ژوند دَ دوي وخت نه دهٔ ته ملاویږي چه دَ عامو مړو نه یو اوچت حیثیت لري (قرطبي) -

اوس پاتے شوه دا خبره چه دَ دغه اُوچت حیثیت څهٔ دے؟ او دغه ژوند څهٔ رنګ دے؟ دَ دے په حقیقت سِوا دَ کائناتو دَ خالق نه نهٔ بل څوک پوهیدے شي او نهٔ ئے پوهه کید و ته ضرورت شته - البته ډیر کرته دَ دوي دَ دے خاص ژوند اثر په دے دُنیا کښې هم دَ دوي په بدنونو باندے ظاهریږي - چه زمکه دوي نه خوري دوي صحیح سلامت پاتے وي (قرطبي) چه ډیر واقعات ئے لیدلي شوي دي -

دَ شهیدانو اوّلنۍ فضیلت په دے آیات کښې دَ دوي اوچت همیشه ژوندون دے

دویم دا چه دوي ته دَ الله تعالیٰ دَ طرفه رزق ملاویږي - دریم فضیلت ئے په: فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ؛ کښې دا بیان کړے شو چه دوي به همیشه خوشحاله اوسي په هغهٔ نعمتونو کښې کوم چه دوي ته الله تعالیٰ ورکړي دي - څلورم فضیلت دا دے: وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ؛ یعنې دوي چه خپل کوم تعلق داران په دنیا کښې پریخي دي وُو - دَ هغوي په باره کښې به هم دوي ته دا خوشحالي وي چه دوي به دنیا کښې اوسي نیک عملونه او جهاد به کوي نو دوي ته به هم دلته په را تلو سره دا نعمتونه او لوئے درجے ملاویږي -

اوسَتَّي وائي چه دَ شهید څوک خپلوان دوست مړکیږي نو شهید ته دَ اوّل نه دَ دے خبر ورکولے شي چه فلانے سړے اوس ستا سو خوا ته راروان دے -

دے په دے سره دا سے خوشحالیږی لکه څنګه چه په دنیا کښے د یو لرے پروت دوست په راتلو او د هغهٔ سره په ملاقات خوشحالیږی۔

د دے آیات شانِ نزول کوم چه ابوداؤد په صحیح سند سره د حضرت ابنِ عباس نه روایت کړے دے هغه دا دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم صحابه کرامو ته اوفرمائیل چه هر کله د اُحد په واقعه کښے ستاسو ورونړه شهید ان شو نو الله تعالیٰ د دوی روحونه د شنو مرغو په جسم کښے واچول آزاد ئے کړه دوی د جنت د نهرونو او باغونو د میوو نه خپل رزق حاصلوی او بیا هغه قندیلونو ته راځی کوم چه د دوی د پاره د عرشِ رحمٰن لاندے زوړند دی هر کله چه دوی خپل دا آرام او عیش د اوږونه او لیده و خواوی دے چه زمونږ هغه خپلوان چه په دنیا کښے زمونږ په مرګ باندے خفه او غمجن دی شوک به ئے زمونږ د حالاتو نه خبر کړی چه دوی په مونږ پسے غم نه کوی۔ او دوی هم په جهاد کښے کوشش کوی۔ الله تعالیٰ اوفرمائیل چه زهٔ به ستا سو دا خبر هغوی ته اورسوم۔ نو په دے باندے دا آیات نازل شو۔

(قرطبی)

مع عند المتقدمین

اَلَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ ۛ

هغه خلقو چه حکم اُومانهٔ د الله او د رسول ۶ پس د هغے چه رسیدلے وهٔ دوی ته زخم۔

لِلَّذِیْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا اَجْرٌ عَظِیْمٌ ﴿۱۷۲﴾ اَلَّذِیْنَ قَالَ

کوم چه په دوی کښے نیکان دی او پرهیزګار دوی لره لوئے ثواب دے۔ کوموته چه اُووئے خلقو

لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ

چه د مکے خلقو جمع کړے دے سامان ستاسو د مقابلے د پاره پس تاسو د دوی نه اویریږئ

فَزَادَهُمْ اِیْمَانًا ۖ وَّقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِیْلُ ﴿۱۷۳﴾

نو ډیر زیات شو د دوی ایمان۔ او اُوئے وئے چه پوره دے مونږ لره الله او ښهٔ کارساز دے۔

فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ
بیا واپس شو مسلمانان د الله د احسان او فضل سره هیڅ اونه رسیده دوی ته څه ابی
وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۷۴﴾ اِنَّمَا
او تابع شو د الله د رضا - او د الله فضل لوئ دے - داچه دے
ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ ۪ فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَ
پس دا شیطان دے چه ویروی د خپلو دوستانو نه - پس تاسو د دوی نه مه یریږئ او
خَافُوْنِ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷۵﴾
ځما نه او یریږئ که تاسو ایمان لوئ -

# لنډ تفسیر

کوم خلقو چه د الله او رسول د وینا لوره (کله چه دوی په کفار و پسے د تلو د پاره اوبللے شو) قبوله کړه پس د هغے نه چه دوی ته (او س تازه) زخم (په جنګ کښے) رسیدلے وه په دے خلقو کښے چه کوم نیکان او متقیان دی (او په واقع کښے تول دا سے دی) د دوی د پاره (په آخرت کښے) لوئے ثواب دے دا دا سے (مخلصان) خلق دی چه (بعض خلقو (یعنے عبد القیس والو کوم چه) دوی ته (لاعلم) اووے چه هغے خلقو (یعنے مکے والو) ستاسو (د مقابلے) د پاره (لوئے) سامان جمع کړے دے پس تاسو لوره د دوی نه یره کول په کار دی نو دے (خبر) د دوی (جوش د) ایمان نور زیات کړه او (په ډیرے حوصلے سره ئے دا) اووے (خبره ئے ختم کړه) چه مونږ لوره الله تعالیٰ (د مشکلاتو د پاره) پوره دے او هغه تر هر یو کارشیا ډیر غوره دی (دے کارسپارلو تر توکل وائی) پس دا خلق د خدائے په نعمت او فضل سره (یعنے د ثواب او د تجارت د نفعے سره) ډکه جولۍ واپس شو چه دوی ته هیڅ ناخوښی را پیښه نه شوه او دغه خلق (په دے واقعه کښے) د رضا د حق

تابع پاتے شو (نو په دے وجه په دُنيوي نعمتونو سره سرفرازشو) او الله تعالیٰ لوئے فضل والا دے (مسلمانانو!) دَ دينه زياته خبره (تا بانده يره) خبره نيشتے چه دا خبرو رکونکے (فعلاً) شيطان دے چه دَ خپلو (هم مذهبه) دوستانو نه (تاسو لره) ويره ورکوي نو اورے پس تاسو دَ دوينه چرته مه يريږئ او صرف زما نه يره کوئے که تاسو ايمان دار يئ.

## مَعْلُوْمَاتْ اَوْ مَسْئَلے

### دَ اياتونو ترون او شانِ نزول

برَه دَ اُحد دَ قصے ذکر وُه - په دے ذکر شوُو اياتونو کښے دَ دے غزا سره تعلق لرونکے دَ يو بلے غزا ذکر دے چه دَ "حمرآء الاسد" دَ غزا په نوم سره مشهوره ده - حمرآء الاسد دَ مدينے منورے نه په آته ميله کښے لرے دَ يو مقام نوم دے -

دَ دے غزا واقعه دا ده چه کله دَ مکے کافران دَ اُحد دَ ميدان نه واپس شو نو چه څۀ منځ لاره لاړۀ نو په لاره کښے ورلره په دے خبره افسوس ورانغے چه مونږ سره دَ غالب کيدو نه بيا هم خامخا واپس شو؟ مونږ لره په کار وه چه ټول پرے په جمع وَرغلي وے او مسلمانانان مو ټول ختم کړي وے - او دے خيال پرے دومره اثر اوکړه چه مدينے منورے ته ئے بيا دَ واپس کيدو اراده اوشوه - ليکن الله تعالیٰ دَ دوی په زړونو باندے رُعب واچولو او نيغ مکے مکرمے ته واپس شو. ليکن بعضے مسافرو ته کوم چه مدينے منورے ته روان وُو - دا ئے ورته او وے چه تاسو لاړشئ نو په څوړ سره دَ مسلمانانو په زړۀ کښے زمونږ رُعب واچوئے چه مونږ بيا واپس راروان دی - بني کريم صلے الله عليه وسلم ته دَ وحئ په ذريعه دا خبره معلومه شوه - نو په دے وجه دَ حمرآء الاسد پورے په دوی پسے لاړۀ (ابن جرير کذا في الروح)

په تفسير قرطبي کښے دی چه دَ اُحد په دويمه ورځ بني کريم صلے الله عليه وسلم په خپلو صحابه ؓ ينو کښے اعلان اوکړه چه مونږ لره په مشرکانو پسے تعاقب کول په کار دی ليکن په دے کښے به صرف هغه خلق تلے شي کوم چه پرُونَ په جنګ کښے

زموبږ سره ؤو - په دے اعلان باندے دوؤ سوه مجاهدین پوره تیار شو.
او په صحیح بخاری کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم اعلان اوکړه چه څوک دے چه د مشرکینو په تعاقب کښے به لاړ شی نو اویا حضرات پا سیدل په دوی کښے داسے خلق هم ؤو چه په تیر پرونی جنګ کښے سخت زخمی شوی ؤو د نورو خلقو په سهارے به تلل - دا حضرات د نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره په مشرکانو پسے اووتل - حمراء الاسد مقام ته چه اورسیدل نو هلته ورسره نُعَیم بن مسعود ملاؤ شو - هغهٔ ورلره خبر ورکړه چه ابو سفیان د خپل ځان سره نور لښکر جمع کړی او بیا را روان دے په مدینه حمله کوی او صد یئے والاختموی - زخمیا نو او کمزورو صحابه کرامو د اخبره چه دوی لره یره ؤنکے وه واؤریده نو تهولو په یوه خوله اووے چه موبږ دے نه پیژنو حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَکِیْلُ ؛ یعنی الله موبږ لره پوره دے او هغه غوره مددګار دے -
دے طرفته خو په مسلمانانو د رُعب اچولو د پاره مشرکانو دوی ته داخبر را اولیږه او په مسلمانانو د دے هیڅ اثرا ونه شو - بل طرف ته مَعْبَد خزاعی د خزاعه قبیلے یو سړے د مدینے نه مکے طرف ته تلوَ دے اګرچه مسلمان نه وهٔ خو د مسلمانانو خیرخواه وهٔ - د دهٔ قبیله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره حلیف وه (یعنے معاهده ئے ورسره کړے وه) نو چه د مدینے نه په لار ے راتلو او ابو سفیان ئے اولیده چه د واپس کیدو سوچونه ئے کول - نو دهٔ ابو سفیان ته اووئیل چه تاسو په دو که کښے یئ چه مسلمانان کمزوری شوی دی د هغوی خو یو لوئے لښکر اوس ما په حمراء الاسد کښے پاتے کړو - چه څهٔ په سازوسامان پوره په تاسو پسے راوتلی دی - په ابو سفیان باندے د دے خبرے نه رُعب او غورزیدو -
دا واقعه په تیرو دریو آیاتونو کښے بیان شوے ده - په اولنی آیات کښے ارشاد دے چه سره د دے چه دوی په اُحد کښے زخمونه او خوارهٔ او سختئ برے تیرے شوے خو بیا هم چه دوی ته الله او د هغهٔ رسول د دویم ځل د طرف ته راوبلل نو دوی د هغے د پاره هم تیار شو - په دے ځائے کښے یوه خبره

دا د غور کولو قابله ده چه دلته د کومو مسلمانانو صفت بیانولے شی د دوی دوه صفتونه بیانیږی - یو دا دے چه: مِنْ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ : یعنے د الله او د هغهٔ د رسول صلے الله علیه وسلم په بلنه باندے تیاریدونکی هغهٔ خلق دی چا ته چه په اُحد کښے زخم رسیدلے وُه - او د دوی اوڅیا بهادران شهیدان شوی وُو - او دوی په خپله هم د زخمونو نه چور چور وُو - لیکن کله چه دوی دوباره را اُوبللے شو نو فوراً د جهاد د پاره تیار شو -

دویم صفت ئے په: لِلَّذِیْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا : کښے بیان شوے دے چه دا خلق د عملی کوشش او د ځان قربانولو د لویو لویو کارنامو سره سره د احسان او تقوی صفتونه هم لری او دا ټول صفتونه د دوی د لوئے اجر سببونه دی -

په دے ایات کښے په لفظ د : مِنْهُمْ : باندے دا شك نه دی کول په کار چه په دوی ټولو کښے د احسان او تقوی صفتونه نیشته بلکه په بعضو کښے دی ځکه چه دلته حرف د : مِنْ : د تبعیض د پاره نه دے بلکه بیانی دے چه په خپله د دے ایات اوّلنی لفظونه: اَلَّذِیْنَ اسْتَجَابُوْا : پورے کواهان دی - ځکه چه دا حکم منل او فرمانبرداری بغیر د احسان او تقوی نه نو کیدے نه شی - په دے وجه اکثرو تفسیر لیکونکو دلته : مِنْ : بیانیه اَخِستے دے - چه حاصل ئے دا شو چه دا ټول خلق چه احسان او تقوی ئے لرله د دوی د پاره لوئے اجر دے -

د ځهٔ کار د پاره صرف کوشش او ځان قربانول پوره نه دی تر څو پورے چه اخلاص ور سره نه وی

البته د دے خاص عنوان نه یو اهم فائده دا حاصله شوه - چه یو کار هر څومره نیك وَلے نه وی او د دے کار د پاره یو سړے هر څومره ځان وَلے قربان نه کړی خو د الله په نزد به دَ ته اَجرٌ هله ملاویږی چه د دے سره احسان او تقوی هم وی یعنے چه دغه کار صرف د الله د پاره وی - محض د ځان قربانولو او بهادرئ کار و نه خو په کفارو کښے هم پیدا دی -

د رسول ﷺ حکم په حقیقت کښے د خدائے حکم دے

په دے واقعه کښے په مشرکانو پسے د تللو حکم نبی صلے الله علیه وسلم ورکړے وُه - د قرآن کریم په یو ایات کښے ذکر نیشته - لیکن په دے ایات کښے هر کله چه د دے خلقو د حکم منلو

مدح فرمائی نو د دې حکم نسبت کے الله او رسول دواړو ته او کړه: اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ: کے او فرمائیل- چه د دې په ښکاره د ول سره دا خبره ثابته کړه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم کوم حکم ورکوی هغه د الله تعالیٰ حکم هم وی. اګر چه د الله تعالیٰ په کتاب کښې ذکر نه وی-

کوم بې دینه چه د حدیثونه انکار کوی او د رسول حیثیت صرف د یو قاصد ښائی-(معاذالله) د هغۀ د پوهید و د پاره دا جُمله هم پوره ده- چه د رسول حکم لره الله تعالیٰ خپل حکم مقرر کړو- چه د دې نه دا هم ښکاره شوه چه رسول په خپله هم د څۀ مصلحت په وجه سره څۀ حکمونه ورکولے شی- او د دے حکمو نو هم هغه درجه وی کومه چه د الله د طرف نه د ورکړو شوو حکمونو وی-

د احسان تعریف | د احسان تعریف په حدیث جبرئیلؑ کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم داسے فرمائیلے دے-

اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ- | "یعنے ته د خپل رب عبادت داسے کوه چه ګویا ته الله وینے او که داسے حالت خپل نه شے جوړ ولے نو کم نه کم داسے خو کوه چه هغهٔ تا وینی"

د تقوٰی تعریف | د تقوٰی تعریف په ګنړو تعبیرونو سره شوے دے- لیکن د ټولو نه زیات جامع تعریف کے هغه دے کوم چه حضرت اُبَیُّ بن کعب رضی الله عنه د حضرت عمر رضی الله عنه د سوال کولو په جواب کښې فرمائیلے دے- حضرت عمرؓ ترې تپوس کړے وَه- چه تقوٰی څۀ شے دے؟ حضرت اُبَیُّ بن کعب اُو فرمائیل چه امیر المؤمنین! تاسو چرته په داسے لاره باندے هم تیر شوی یئ چه د اَزغونه ډکه وی، حضرت عمرؓ او فرمائیل، خو واره تیر شوے یم، حضرت اُبَیُّ بن کعبؓ او فرمائیل په داسے موقع به تاسو څۀ کول، حضرت عمرؓ او فرمائیل چه جامے به مې را ټولے کړے او ډیر په احتیاط به تیریدم، حضرت اُبَیُّ بن کعبؓ او فرمائیل چه بس تقوٰی هم د دے نوم دے - دا دنیا د اَزغو ډک یو میدان دے د ګناهونو د ځنګونو ډکه پرته ده نو په دے دنیا کښې داسے تیریدل او ژوند تیره وَل پکار دی چه د ګناهونو د اَزغو سره او نه نخلی- د دے نوم تقوٰی دے چه د ټولو نه زیاته قیمتی سرمایه ده- حضرت ابو درداء رضی الله تعالیٰ عنه به اکثر دا شعر

لوستو سے

يَقُوْلُ الْمَرْءُ فَائِدَتِيْ وَمَالِيْ وَتَقْوَى اللهِ اَفْضَلُ مَا اسْتَفَادَا

(یعنې خلق په خپلو دُنیوي فائدو او مالونو پسې ورپسې دي - حال دا دے چه تقوىٰ د تعالونه غوره سرمایه ده)۔

په دویم آیات کښې کې دے جهاد ته د وړاندے کید ونکو صحابه وو زیات صفت او تعریف په دے شان سره کړے دے چه:

اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا

یعنې دا هغه حضرات دي چه کله دغه خلقو اُووے چه ستا سو خلاف دشمنانو لوئے سامان جمع کړے دے د دوی نه اُویریګئ او د جنګ اراده مه کوئے نو دے خبرو د دوی د ایمان جوش نور زیات کړو - وجه دا ده چه د الله او د هغهٔ د رسول حکم منل چه کله دے حضراتو قبول کړی وُو - نو د اول ورځے نه دوی په دے خبره پوهه شوی وُو چه موږ چه دا په کومه لار سفر شروع کړے دے دا د خطرونه ډک دے قدم په قدم به موږ ته مشکلات په وړاندے راځي زموږ لارے به بندے کولے شي او زموږ د دے انقلابي تحریک ختمولو د پاره به بیا و بیا کوششونه کولے شي - نو په دے وجه چه دے حضراتو به هر کله دا قسم مشکلات لیدل - نو د ایمان قوت برګئ د اول نه زیاتید و - او د اول نه به ئې زیاته قرباني ښکاره کوله -

دا ښکاره خبره ده چه د دے حضراتو ایمان د اسلام راوړو د اول ورځے سره مکمل وُه - نو په دے وجه په دے دواړو آیاتونو کښې د ایمان د زیاتي نه د ایمان د صفتونو او د فائدو زیاتوالے مراد دے - او د الله او د هغهٔ د رسول په بلنه باندے د تیارید ونکو صحابه کرامو ؓ دے حالت لوه ئې هم په دے ځائے کښې په خصوصیت سره بیان کړو چه د دے جهاد په سفر کښې په تول لاره باندے دا جُمله د دوی د ژبے وظیفه وه ؛ حَسْبُنَا اللهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ : د دے جملے معنیٰ دا ده چه الله تعالیٰ زموږ د پاره کافي دے او هغهٔ غوره کارساز دے -

د لته دا خبره په خاص طور سره د غور قابله ده چه د نبي کریم صلے الله علیه وسلم او د دوی د صحابه کرامو ؓ زیات په دُنیا کښې د هیچا توکل په الله تعالیٰ باندے نه شي کیدے

لیکن دَدوی دَ توکّل صورت دا نه وُه چه ظاهري اسباب به ئې پاتې کول او وئیل به ئې چه مونږ لره الله تعالیٰ کافي دے هغهٔ به په ناستې ناستې مونږ لره غلبه راکړي. داسې نهٔ. بلکه هغوی صحابو ولړه جمع کړه دَ زخمیانو په زړونو کښې ئې نوے روح واچولو دَجهاد دَپاره ئې تیار کړهٔ او اوُ وَتلُ څومره اسباب او ذریعې چه دَدوی په اختیار کښې وے هغه ئې ټولے تیارے او استعمال کړے او پس دَ هغې ئې وے چه مونږ لره الله کافي دے. دا هغه صحیح توکّل دے دَکوم تعلیم چه ئې په قرآن شریف کښې ورکړے دے. او نبي کریم صلے الله علیه وسلم پرے عمل اوکړه په خپله هم او په نورو هم. ظاهري دنیوی اسباب هم دَ خدائے تعالیٰ انعام دے دَدے پاتې کول هم دَ الله تعالیٰ ناشکري ده. اسباب پاتې کول او توکّل کول دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم سنّت نه دی. که څوک مجذوب یا مغلوب الحال وی نو هغه معذور گنړلے شي ورنه صحیح خبره دا ده چه : ـ

برتوکّل زانوئے اُشتر به بند

"یعنے دَاوښ ګونډے او تړه نو بیائې دَخدائې په اسره پریږده او سیاره"

نبي کریم صلے الله علیه وسلم په خپله په یو واقعه کښې دَ دے ایات : حَسۡبُنَا اللّٰهُ وَ نِعۡمَ الۡوَکِیۡلُ : په باره کښې په واضح طور سره ارشاد فرمائیلے دے:۔

عوف بن مالک رضی فرمائي چه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښې دَدوه سړو مقدّمه راغله دوئ ورلره فیصله اوفرمایله، دا فیصله چه دَکوم سړي خلاف وه هغهٔ فیصله بنهٔ په آرام سره واوریده او داسې ئې اووے لاړ شه چه : حَسۡبِیَ اللّٰهُ وَ نِعۡمَ الۡوَکِیۡلُ : نبي کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل دغه سړے ما لره واپس راولئ، او اُوئې فرمائیل : ـ

اِنَّ اللّٰهَ یَلُوۡمُ عَلَی الۡعَجۡزِ وَلٰکِنۡ عَلَیۡکَ بِالۡکَیۡسِ فَاِذَا غَلَبَکَ اَمۡرٌ فَقُلۡ حَسۡبِیَ اللّٰهُ وَ نِعۡمَ الۡوَکِیۡلُ ۔

"یعنے ځان بے لاسو خپو کولو او کیناستل الله تعالیٰ نه خوښوی بلکه تا لره په کار دی چه ټولے ذریعے اختیار کړے او چه بیا هم عاجزه شے نو دغه وخت وایه چه: حَسۡبِیَ اللّٰهُ وَ نِعۡمَ الۡوَکِیۡلُ "

په دریم ایات کښې ئې دَ دے صحابو حضراتو جهاد کول او دَ حَسۡبُنَا اللّٰهُ وئیلو دَ فائدو میوو او برکتونو بیان دے. فرمائي :

فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ لَّمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ وَّاتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ" يعنې داخلق د الله په انعام او فضل سره واپس شو چه دوی ته هیڅ ناخوښه واقعه وانه پيښه نه شوه - او داخلق د الله د رضا تابع شو"

الله تعالىٰ دے حضرات ته دوه نعمتونه ورکړه - اول نعمت دا چه د کافرانو په زړونو کښې ئې د دوی رُعب او هيبت واچولو او هغوی اوتختيدل چه د دے په وجه دوی د جنګ نه محفوظ پاتې شو د دے نه الله پاک د نعمت په لفظ سره تعبير اوفرمايو او دويم نعمت پرے الله تعالىٰ دا اوفرمايه چه دوی ته د حمراء الاسد په بازار کښې د تجارت موقع ملاؤ شوه او ډيره فائده ئې اوکړه - د دېته ئې په لفظ د فضل سره تعبير اوفرمايه -

- دريم نعمت چه د دے دواړو نعمتونو نه لوئې نعمت دے هغه دا الله د رضا حاصلول دی کوم چه په دے جهاد کښې دوی ته په خاص انداز کښې حاصل شوه -

د : حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ : چه کوم فائدے او برکتونه قرآن کريم بيان کړه دا هغه د صحابه وُ سره خاص نه وُو - بلکه کوم يوسړے چه هم د ايمانى جذبے سره د دے وظيفه ساتى هغه به دا برکات حاصلوى -

مشائخو او علماؤ د حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْل لوستو په فائدو کښې ليکلی دی چه څوک دا آيات زرپيرے د ايمان د جذبے سره او هغه په خشوع سره اُولولی او دُعا او غواړی نو الله پاک ئې نه رَدُوی - د غمونو فکرونو او مصيبتونو په وخت کښې د دے لوستل تجربه وی - يعنې تجربے ته رسيدلی دی -

په څلورم آيات کښې ئې ارشاد فرمائيلی دے چه د مسلمانانو د مرعوبه کولو د پاره د مشرکانو د واپس راتلو خبر ورکونکے په اصل کښې شيطان دے - چه تاسولره د خپلو همذهبه کفارونه يَرَوُل غواړی - نو ګويا په اصل عبارت کښې د يُخَوِّفُ يو مفعول محذوف دے - يعنې يُخَوِّفُكُمْ او دويم مفعول اَوْلِيَآءَهٗ ذکر دے -

بيائې ارشاد او فرمايه چه مسلمانانو لره د داسې خبرونو نه هرګز يريدل نه دی په کار، البته ځما نه يريدل ورلره ضروری دی، يعنې ځما د حکم نه په خلاف کولو سره هر يو مؤمن لره يريدل ضروری دی - چه د الله تعالىٰ مدد ورسره وی نو هيڅ نقصان ورته نه شی رسيدے -

دَ خوفِ خُدَا نښهٔ مراد دے | په دے ایات کښے الله تعالیٰ په مسلمانانو باندے فرض کړے ده- چه دوی دے دَ الله تعالیٰ نه یرېږی' او په بل ایات کښے ئے دَ دے خلقو مَدَح فرمائیلے ده کوم چه دَ الله تعالیٰ نه یرېږی: یَخَافُوْنَ رَبَّهُمْ مِّنْ فَوْقِهِمْ: لیکن بعضِ مشرانو فرمائیلی دی چه دَ خدائے نه یَره دَ جِل او اوښکو تویَولو نوم نه دے بلکه دَ الله نه یَرید ونکے هغه دے چه هر هغه شے پاتے کړی په کوم چه دَ الله دَ طرف نه دَ عذاب یره وی -

ابوعلی دقاق رح فرمائی چه ابوبکر بن فواکؒ ناجوړه وُه - زهٔ دَ هغهٔ تپوس له لاړم چه زهٔ ئے او لیدم نو په سترګو کښے ئے اوښکے راغلے، ما ورته او وے چه یَرېږه مهٔ الله تعالیٰ به تا له شفا درکړی او جوړ به شے، هغهٔ او وے چه وَ لے ستا دا خیال شو چه زهٔ دَ مرګ دَ یَرے نه ژاړم، خبره دا نه ده بلکه څما سره دَ مرګ نه دَ ورستی ژوند یَره ده چه هسے نه هلته عذاب نه وی (قرطبی)

وَلَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ

او په غم کښے دِ وانهٔ چوی تا لره هغهٔ خلق چه منډے وَهی کفر طرف ته　دوی به هرګز

يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْــًٔا ۗ يُرِيْدُ اللّٰهُ اَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي

وران نه کړی دَ الله پاک هیڅ شے - الله غواړی چه دوی لره فائده ورنه کړی په

الْاٰخِرَةِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿١٧٦﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا

اخرت کښے - او دوی لره عذاب دے لوئے -　چا چه واخستو کفر　لره

الْكُفْرَ بِالْاِيْمَانِ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْــًٔا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ

دَ ایمان په بدل له دوی نه شی وُرانه وَلے دَ الله پاک هیڅ شے- او دوی لره عذاب دے

اَلِيْمٌ ﴿١٧٧﴾ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَنَّمَا نُمْلِيْ لَهُمْ

دردناک -　او دا دِ نهٔ ګنړی کافران چه مونږ کوم مهلت ورکوؤ دوی ته　نو دا

خَيْرٌ لِّاَنْفُسِهِمْ ۭ اِنَّمَا نُمْلِىْ لَهُمْ لِيَزْدَادُوْٓا اِثْمًا ۚ

د دوی په حق کښې کوند ښه دے - مونږ مهلت ورکوو دوی ته چه ترقی اوکړی دوی په ګناه کښې

وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۱۷۸﴾

او د دوی د پاره عذاب دے رسوا کوونکے -

**د آیاتو نوټوون**

په تیرو آیاتو کښې د منافقانو د بے وفائۍ او بد خواهۍ ذکر وو - په دے ذکر شوو آیاتو کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته تسلّی ده، چه ته د دے کفارو په کارونو باندے خفه او زړه ماتے کیږه مه - دوی هیڅ نقصان نه شی رسولے - په آخر آیات کښې د دے خیال جواب دے چه به ظاهره خو په دنیا کښې دا کفار ښه پته ماړه په نظر راځی نو په دوی به قهر او غضب څنګه کیږلے شی؟ -

# لنډ تفسیر

او ستا د پاره دے هغه خلق د غم سبب جوړ نه شی کوم چه په تلوارے سره په کفر (د الاخبرو) کښې وړاندے وځی (لکه منافقانو چه لږه شان د مسلمانانو د ل کمزورے او لیده نو ښکاره په ښکاره ئے د کفر خبرے کول شروع کړے - لکه چه په ذکر شوو واقعاتو کښې معلومه شوے ده) یقیناً دغه خلق (د دین د) الله تعالیٰ ته یو ذره هم ضرر نه شی رسولے (په دے وجه تا له په دے هیڅ غم نه دے په کار چه د دوی په دے حرکتونو سره به د الله دین ته څهٔ ضرر اورسی، او که ستا سو سره په خپله دا غم وی چه دا کافران بد نصیبه ولے جهنم طرف ته ځی نو هم تاسو غم مه کوئ ځکه چه الله تعالیٰ ته (په تکوینی یعنے پیدائشی طور سره) دا منظوره ده چه په آخرت کښې دوی ته څهٔ حصه ورنه کړی (نو په دے وجه د دوی نه د مسلمانېدو فقط امید لرل صحیح نه دی او غم هغه ځائے کښې وی چرته چه امید وی) او (د دوی د پاره صرف د آخرت د نعمتونو نه محرومی نه ده بلکه) دے خلقو له به لویه سزا هم وی (او لکه څنګه چه دا خلق دین د اسلام ته څهٔ نقصان نه شی رسولے دغه شان) یقیناً څومره خلق چه ایمان

(لره پاتې کړو دَ هغۀ) په ځائې کفر لره اختيار کړې دې (خواه منافق دى يا ښکاره کافر، او خواه دَ نړدې وى او که دَ لرې) دا خلق (هم) دَ الله تعالىٰ (دين ته) يوه ذره نقصان هم نۀ شى رسولې. او دوى لره (هم دَاولنو په شان) به دردناکه سزا وى او کوم خلق چه کفر کوى دوى دې هم دا ګومان نۀ کوى چه مونږ دوى ته (دَ عذاب نه) مهلت ورکول (څۀ) دَ دوى دَ پاره غوره (او فائده مند) دى (هم ګز داسې نه ده بلکه) مونږ دوى ته په دې وجه مهلت ورکړې دې (چه دَ زيات عمر په وجه سره) چه دَ دوى په جُرم کښې نوره ترقى اوشى (چه په يو وار پوره سزا اوځکى) او په دنيا کښې که سزا او نه خورى نو څۀ خبره ده په آخرت کښې خو) به دوى لره دَ بې عزتۍ سزا وى۔

## معلومات او مسئلې

دَ کفارو دَ دُنيا عيش او عشرت هم په حقيقت کښې دَ عذاب تکميل دې

دلته دې څوک دا شبه نۀ کوى چه کافرانو لره الله تعالىٰ مهلت او ډير عمر او دَ آرام او راحت سامان په دې وجه ورکړې دې چه دوى په خپل جُرم کښې نور زيات شى، نو بيا خو کفار بې قصوره شو۔ ځکه چه مقصود دَ آيات دا دې چه دَ کفارو په دې څو ورځې مهلت او عيش عشرت سره دې مسلمانان پريشانه کيږى نۀ۔ ځکه چه سره دَ کفر او ګناهونو نه دَ دوى دَ دُنيا دا قوّت او طاقت او دَ دُنيا سامان هم دَ دوى دَ عذاب يو صورت دې۔ چه نن ئې دوى ته هيڅ احساس نۀ کيږى او کله چه دوى دَ دنيا نه لاړ شى نو دوى به پوهه شى چه دا دَ دُنيا دَ راحت سامان کوم چه دوى په ګناهونو کښې خرچ کړو په حقيقت کښې دَ دوزخ سکروټې وې۔ لکه چه په ډيرو آيا تونو کښې په خپله الله تعالىٰ فرمائيلى دى: إِنَّمَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيُعَذِّبَهُم بِهَا : يعنى دَ کفارو مال او دَ عيش عشرت سامان دَ دوى دَ پاره څۀ دَ فخر کولو شے نۀ دې۔ دا خو دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه دَ عذاب يو حصّه ده چه دَ دوى دَ آخرت دَ عذاب زيا تولو سبب دې۔

مَا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ

نۀ دې الله چه پريدى مسلمانانو لره په هغې حالت په کوم چه تاسو يئې تر څو پورې

يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ

چه جدا نه کړي ناپاک د پاک نه - او الله داسې نه دے چه خبر کړي تاسو لره

عَلَى الْغَيْبِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن رُّسُلِهِ مَن يَشَاءُ ۖ

په غيبو باندې او ليکن الله تعالیٰ چانړ کوي په خپلو رسولانو کښې چالره چه اوغواړي

فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۚ وَإِن تُؤْمِنُوا وَتَتَّقُوا فَلَكُمْ

پس تاسو يقين راوړئ په الله او د هغهٔ په رسولانو او که تاسو به يقين پاتې شوئ او به پرهيزګارئ نو تاسو

أَجْرٌ عَظِيمٌ (۱۷۹)

لره لوئ ثواب دے -

## د اياتونو تړون

په تيرا ايات کښې د دے شبهې جواب و ؤه چه کله کفار د الله تعالیٰ په نزد مبغوض او مردود دی نو په دنيا کښې دوی ته مالونه جائيداد دونه او د عيش عشرت سامان ولے حاصل دے، په دے ذکر شوی ايات کښې د دے په مقابله کښې د دے شبهې لرے کول دی چه مؤمنان مسلمانان هر کله د الله تعالیٰ مقبول بندګان دی، په دوی باندے تکليفونه او مصيبتونه ولے راځي چه دوی مقبول دی نو پکار وه چه راحتونه او د راحت سامان ورته ملاويدے -

## لنډ تفسير

الله تعالیٰ مسلمانان په دے حالت باندے ساتل نهٔ غواړي په کوم چه تاسو اوس يئ رچه په کفر او ايمان حق او باطل او مؤمن او منافق کښې د الله تعالیٰ په ورکړو شوو دنيوی انعاماتو کښې څهٔ امتياز او فرق نيشته، بلکه په مسلمانانو باندے سختئ او مصيبتونه نازليدل تر هغه وخته پورے ضروری دی) ترڅو پورے چه ناپاک (يعنی منافق) لره د پاک (يعنی مؤمن مخلص) نه جدا نه کړے شي راو دا جدا والے او ښکاره والے په مصيبتونو او مشکلاتو راتلو سره په پوره شان سره کيدے شي،

اوکه دچا په زړه کښې دا خیال پیدا اوي چه د مؤمن اوکافر او حق او باطل کښې د فرق دلوستو د پاره داولې ضروري ده چه په حادثو او مصیبتونو کښې ئې په غور زه ولوسره فرق داولی الله تعالیٰ په ذریعه د وحئ سره هم د دے اعلان کولے شي چه فلانے مخلص مؤمن دے او فلانے منافق، او فلانے شے حلال دے او فلانے حرام نو د دے جواب دا دے چه) الله تعالیٰ (په مقتضاء د حکمت) په داسے غیبي کارونو تاسو لوره (بے د واسطے د ازمائش (او امتحان نه) خبره ول نه غواړي لیکن حان چالره چه (دغه شان خبره ول) په خپله اوغواړي او (داسے حضرات) دغه د الله تعالیٰ پیغمبران دي دوی لره (بے د واسطے د حوادثو نه هم د غیبو په خبرونو د خبره ولو د پاره د خپلو بندګانو نه) منتخب کوي (او تاسو پیغمبران نه ئې نو په دے وجه د داسے کارونو تاسو ته خبر نه شي درکید ے، البته داسے حالات پیدا کوي چه په هغې سره د مخلص او منافق فرق خود به خود واضح شي- اوکله چه دا ثابته شوه چه په دنیا کښې په کافرانو عذاب نه نازلیدل بلکه عیش عشرت ورته ملاویدل او په مسلمانانو باندے بعض مصیبتونه او سختئ نازلیدل عین تقاضا د حکمت ده، دا خبرے د چا د مقبول او مردود کید و دلیل نه شي کیدے) پس اوس تاسو (د ایمان د غوره والی اود کفر په ناغوره والی کښې هیڅ شُبُهَ مَکوئے بلکه) په الله او د هغهٔ په رسولانو باندے ایمان راوړئ او کہ تاسو ایمان راوړئ او (د کفر او ګناهونو نه) پرهیز اُوَ کړئ نو بیا به تاسو ته لوئے اجر ملاؤ شي -

# معلومات او مسئلے

**په مؤمن او منافق کښې فرق د وحئ په ځائے په عملي طور کولو کښې حکمت**

په دے آیات کښې دا ارشاد دے چه په مؤمن مخلص او منافق کښې د فرق د پاره الله تعالیٰ داسے حادثے او مشکلات پیدا کوي په کوموسره چه په عملي طور سره د منافقانو نفاق ښکاره شي، او دا فرق داسے هم کید ے شو چه په ذریعه د وحئ ئے د منافقانو نومونه خودلي وے مګر د حکمت په تقاضا سره ئے داسے او نه کړه، د الله تعالیٰ د کارونو پوره حکمتونه خو هغهٔ ته معلوم وي، دلته یو حکمت دا هم کید ے شي چه که مسلمانانو ته په ذریعه د وحئ او خودے شي-

چه فلانے منافق دے نو مسلمانانو ته به دَدهٔ سره دَ تعلقاتو ختمولو پاره څهٔ واضح دلیل نه وَه چه دغه منافقانو هم منلے، بلکه دوی به وئے چه تاسو غلطه وایئ موږ خو رشتونی او پاخهٔ مسلمانان یُو۔

په خلاف دَ دے نه چه په عملی طور سره ئے فرق اوشه چه دَ ازمایښت او مصیبت په وخت کښے منافقان او تختید ل او په عملی طور سره ئے نفاق ښکاره شو، او س دَ دوی خوله دیته نه جوړیږی چه دَ مخلص مؤمن کید و دَعوه اوکړی۔

او چه په دے شان سره ئے نفاق ښکاره شو نو دَ دے یوه دا فائده هم اوشوه چه دَ مسلمانانو دَ دوی سره ظاهری خلط هم قطع شو۔ کهٔ داسے نه وے نو دَ زړهٔ دَ اختلاف سره به ئے ورسره ظاهری خلط لاره نو هغهٔ به هم مُضر وَه۔

| دَغیبو په کارونو چه څوک خبر کړے شی نو دا عِلم غیب نه دے | |
|---|---|

دَ دے ایات نه معلومه شوه چه الله تعالیٰ دَغیبو په کارونو دَ وحیٔ په ذریعه خبر هر چا ته نه ورکوی البته خپل پیغمبران منتخب کړی هغوی ته ورکوی۔ نو په دے سره دا شُبه نه وی کول په کار چه بیا خو انبیاء هم په علمِ غیب کښے شریک او عالِم غیب شو۔ ځکه هغه علمِ غیب کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ ذات سره خاص دے هیڅ یو مخلوق لره په دے کښے شریکول شرک دے۔ دا په دوه څیزونو سره مشروط دے۔ یو دا چه هغه علم ذاتی وی دَ بل چا ورکړے شوے نه وی۔ دویم چه په ټولو کائناتو په ماضی او راتلونکی باندے احاطه کونکے وی چه دَ یو ذرّے علم ترے هم پټ نه وی۔ الله تعالیٰ چه په خپله په ذریعه دَ وحیٔ سره خپلو پیغمبرانو ته کوم دَغیبو کارونه ښائی هغه حقیقةً علمِ غیب نه وی، بلکه دَغیبو خبرونه دی چه پیغمبرانو ته ورکړی شوی دی۔ کوم چه په خپله قرآن کریم څو ځایه په دَ اَنْبَآءُ الْغَیْبِ: په لفظ سره ترے تعبیر فرمائیلے دے: مِنْ اَنْبَآءِ الْغَیْبِ نُوْحِیْهَا اِلَیْكَ: (یعنے دا دَغیبو خبرونه دی چه مونږ ئے تاته په وحیٔ سره رالیږو)۔

وَلَا یَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ یَبْخَلُوْنَ بِمَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ

او خیال دِ نه کوی هغه خلق چه بخل کوی په هغه شی چه الله دوی لره ورکړے دے دَ خپل

فَضْلِهٖ هُوَ خَيْرًا لَّهُمْ ۭ بَلْ هُوَ شَرٌّ لَّهُمْ ۭ سَيُطَوَّقُوْنَ مَا

فضل نه چه دا بخل غوره دے دَ دوی په حق کښے بلکه دا ډیر بد دے دَ دوی په حق کښے دَ طوقونو به شان به

بَخِلُوْا بِهٖ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ وَلِلّٰهِ مِيْرَاثُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ

داچولے شی په غاړه دَ دوی کښے هغه څه چه بخل ئے پرے کړے وه په ورځ دَ قیامت - او الله وارث دے دَ آسمانونو او زمکے -

ع ۱۸ ۹ ۹ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرٌ ﴿۱۸۰﴾ لَقَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِيْنَ

او څه چه تاسو کوئے الله ئے پیژنی - بے شکه الله واورید د دوی خبره چا چه اووے چه

وقف لازم قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ فَقِيْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِيَاۗءُ ۘ سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا

الله فقیر دے او مونږ مالدار یو - او س به اولیکو مونږ د دوی خبره

وَقَتْلَهُمُ الْاَنْۢبِيَاۗءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ

او دَ قوم چه قتل کړے دی دوی پیغمبران په ناحقه او مونږ به اووایو چه اوڅکئ عذاب دَ بل

الْحَرِيْقِ ﴿۱۸۱﴾ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ

شوی اور - دا بدله دَ هغے ده چه تاسو پخپلو لاسو مخکښے اولیږل او الله ظلم نه کوی

بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۱۸۲﴾ اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ

په بندګانو - هغه خلق چه وائی چه الله مونږ ته وئیلی دی چه

اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ۭ

یقین به نه کوو په یو رسول ترڅو چه را نه وړی مونږ ته قربانی چه اوخوری هغے لره اور -

قُلْ قَدْ جَاۗءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِيْ

ته او وایه پتا سو کښے راغلے ځو مره پیغبران ځما نه مخکښے په نښو راوړو سره او په دے هم

قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۸۳﴾ فَاِنْ

څه چه تاسو اُووے بیا څه وجه ده چه تاسو ولې قتل کړه که تاسو رشتو نی یئ - بیا که

كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْ

دوی تا دروغژن کړی نو څکه چه ستا نه مخکې دروغژن کړیدی ډیر رسولان چه راغلی وو

بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿۱۸۴﴾ كُلُّ نَفْسٍ

لښې او صحيفې او کتاب روښانه - هر یو نفس څکونکے

ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ؕ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ

د مرګ دے - او تاسو ته به پوره بدلے ملاؤ شی په ورځ د قیامت -

فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ؕ وَمَا

بیا چه څوک لرے کړے شو د اور نه او داخل کړے شو جنت ته نو دغه کامیاب شه - او نه دے

الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿۱۸۵﴾ لَتُبْلَوُنَّ فِيْٓ اَمْوَالِكُمْ

ژوند د دنیا مګر پانګه د دوکے ده - خامخا به ستاسو ازمائیښت کیږی په مالونو

وَاَنْفُسِكُمْ قف وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ

کښے او په نفسونو کښے - او خامخا به واورئ تاسو د ډیرا ندینو اهل کتابو

مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَذًى كَثِيْرًا ؕ وَاِنْ

نه او د مشرکانو نه بدے خبرے ډیر ے - او که

تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْاُمُوْرِ ﴿۱۸۶﴾

تاسو صبر او کړئ او پرهیزګاری او کړئ نو دا د همت کار دے -

**دَ آیاتونو ترون**

دَ سورت آلِ عمران په شروع کښې دَ یهودیانو دَ بدو خویونو او شرارتونو ذکر وُه دَ دے ځائے نه بیا هغې طرف ته واپسي اوشوه - دا ذکر شوی آیاتونه ټول په دا قسم مضامینو باندے مشتمل دی، په منځ کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلّم ته تسلّی او دَ مسلمانانو دَ پاره دَ نصیحتونو ذکر دے -

## لنډ تفسیر

او هرګز دے خیال نه کوی دا سے خلق کوم چه (په ضروری موقعو کښې) دا سے شے (خرچ کولو کښې بخل کوی کوم چه الله تعالیٰ دوی ته په خپل فضل سره ورکړے دے چه دا خبره به دَ دوی دَ پاره څهٔ ښهٔ وی (هرګز نه ده) بلکه دا خبره دَ دوی دَ پاره ډیره بده ده (ځکه چه دَ دے انجام به دا وی چه) دغه خلق به دَ قیامت په ورځ طوق په غاړه کړی دَ دے (مال) نه (تیار جوړ شوی) به کوم کښې چه دوی بخل کړے وُه او (بخل کول هسے هم ناپوهی ده چه) په آخر کښې (هر کله چه ټول مړهٔ شی) ټول آسمانونه او زمکه (او څهٔ کائنات چه دَ دوی په منځ کښې دی ټول) به دَ الله په ملکیت کښې پاتے شی (لیکن دغه وخت چه دا هر څهٔ دَ الله تعالیٰ شی تاسو ته به ئے هیڅ ثواب نه ملاویږی، ځکه چه تاسو په خپل اختیار سره به نه وی ورکړے او هرکله چه په آخر کښې دا ټول هر څه الله ته پاتے کیده ونکی دی. نو دَ عقل خبره دا ده چه اوس ئے په خپل اختیار سره ورکړئ چه دَ ثواب لائق شئ) او الله تعالیٰ ستاسو دَ ټولو کارونو پوره خبر لری (نو په دے وجه چه څهٔ خرچ کوئ نو په اخلاص سره ئے دَ الله دَ پاره خرچ کوئ)

بے شکه الله واؤریده دَ دغے (بے شرمو) خلقو خبرے لره کوم چه (په مسخره سره) داسے اووے چه (نعوذ بالله) الله تعالیٰ غریب دے او مونږ مالداریو (او صرف په دے اؤریدو صبر نه شی کولے بلکه) مونږ به دَ دوی دے وَیْنا لره (دَ دوی په عملنامه کښې) لیکو او (دغه شان) دَ هغے انبیاؤ (علیهم السلامو) لره ناحق قتل کول هم (به دَ دوی په عملنامه کښې او لیکلے شی) او مونږ به (په دوی باندے دَ سزا جاری کولو په وخت کښې دوی ته دَ یادګیرنے په جوړ سره) او وایو چه (واخلئ) او څکئ دَ اور عذاب

(او دوی ته به د روحانی درد د رسولو د پاره هغه وخت داهم او ویلے شی چه) دا (عذاب) د هغې (کافرانه) عملونو په وجه سره دے کوم چه تاسو په خپلو لاسو گټلی دے او دا خبره خو ثابته ده چه الله تعالیٰ په بندگانو باندے ظلم کونکے نه دے۔

دغه (یهود) داسے خلق دی چه (بالکل سُوْلُوَلِی دروغ) وائی چه الله تعالیٰ مونږ ته (په واسطه د تیرو پیغمبرانو)، حکم کړے وه چه مونږ به په یو (دعوه کونکی د) پیغمبر (ئی) باندے عقیده (د دهٔ په پیغمبرئ) نه راوړو تر څو پورے چه مونږ ته معجزه (خاصه) د نذرونیاز د خدائے پاک بنکاره نه کړی چه دغے لوه (آسمانی) اُور او خوری (د تیرو پیغمبرانو دا معجزه وه چه یو جانداریا بے جانه شے به ئے د الله په نوم اُوویستو په یو میدان کښے یا غر باندے به ئے کیخودو، د غیبو نه به یو اُور را ښکاره شو او هغه شے به ئے او سیزه لو داد صدقو د قبلیدو نښه وه۔ مطلب دا دے چه تاسُو دا خاص معجزه نهٔ وه څو د لے پرے وجه مونږ په تا ایمان نه راوړو) الله پاک د دے جواب ورکوی چه) ته ورته اووایه چه په یقین سره د تیرو پیغمبرانو څمانه اوّل د یرو نبیلو : (معجزے وغیره) راوړی دی، او په خپله دا معجزه هم کومه چه تاسو وائی پس تاسو دوی لوه وَلے قتل کول که تاسو په دے کار کښے (رښتونی یئ) پس که دا (کفار) خلق تا لره دروغژن کړی نو (غم مه کوه ځکه چه) د یرو پیغمبرانو لره چه ستا نه دړاندے تیر شوی دی دروغژن کړی شوی دی چه معجزے ئے راوړے وے او (وړے وړے) صحیفے ئے راوړے وے او روښانه کتاب ئے راوړے وهٔ (نو هر کله چه د کفارو دا عادت دے چه پیغمبران دروغژن کوی نو بیا تاسو وَلے غم کوئے)۔

(په تاسو کښے) هر یو نفس (جاندار) د مرګ مزه څکونکے دے او (د مرګ نه پس) پوره بدله به تاسو ته ستاسو (د ښو بدو) د قیامت په ورځ ملاویږی (که په دنیا کښے کافرانو ته څهٔ سزا ملاؤ نهٔ شی نو په دے سره دروغژن کونکو له خوشحالی او تصدیق کونکو لره غم نه دے په کار، او س وړاندے د دے بدلے تفصیل دے) نو کوم سړے چه د دوزخ نه اوساتلے شو او جنّت ته داخل کړے شو

پس دے پوره کامیاب شو دغه شان څوک چه د جنّت نه بیرته کړے شو او دوزخ ته او لیږلے شو دے پوره نا کامه شو) او د دُنیا ژوند هیڅ نه دے صرف د دا سے شے دے لکه) د دوکے سَودا ده (چه ظاهری ډول ښالی او وینی نو اغستو نکے پرے ورځی بیا چه ئے اصلیّت ښکاره شی نو افسوس کوی، دغه شان د دنیا په ظاهری ښه ق پروق د دوکه کیدل او آخرت هیره ول نه دی په کار)

(او س څهٔ دی؛) خامخا وړا ندے (روړا ندے) به تور آزمائیلے شئ (د) خپلو مالونو (په نقصان) کښے او (د) خپلو ځانو نو (په نقصان) کښے او خامخا وړا ندے به تورے وا ورئ ډیرے خبرے د زړهٔ د آزار د دغے خلقو نه (هم) کوموته چه ستاسو نه وړاندے (آسمانی) کتابونه ورکړی شوی دی (یعنے د اهلِ کتابو نه) او د هغے خلقو نه (هم) کوم چه مشرکان دی او که (په دے موقعو) صبرا و کړئ او (د خلافِ شرعه خبرو نه) ځان او سا تئ نو (ستاسو د پاره به ښهٔ وی ځکه چه دا (صبر او تقویٰ) د تاکیدی احکامو نه دی۔

## مَعلُومَات اَو مَسئَلے

په ذکر شوؤ او ؤو ویو آیا تونو کښے په اول آیات کښے د بُخل بَد والے او په دے باندے د زوره نے ذکر دے۔

| | |
|---|---|
| د بخل تعریفا او په دے باندے د سزا تفصیــــــل۔ | د بُخل شرعی معنی داده چه کوم شے د الله تعالیٰ په لاره کښے خرچ کول په چا واجب وی او هغه خرچ |

نه کړی۔ په دے وجه بخل حرام دے۔ او په دے باندے د دوزخ د سختے سزا وعید دے۔ او په کوم موقعو چه خرچ کول واجب نه وی بلکه مستحب وی، هغه په دے حرام بخل کښے داخل نه دے۔ البته د عامے معنیٰ په اعتبار سره دے ته هم بُخل وئیلے شی دا قسم بخل حرام نه دے مګر ښهٔ هم نه دے۔

د بُخل په معنیٰ کښے یو بل لفظ هم په احادیثو کښے راغلے دے یعنی " شُحّ " د دے تعریف دا دے چه د دهٔ په ذمه کوم خرچ کول واجب وی هغهٔ نه ادا کوی او د دینه علاوه نورهم د مال زیا تولو په حرص کښے لګیا وی۔ دا د بخل نه نور هم زیات جرم دے په دے وجه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرما ئیلی دی۔

| | |
|---|---|
| لَا يَجْتَمِعُ شُحٌّ وَاِيْمَانٌ فِيْ قَلْبِ رَجُلٍ مُسْلِمٍ اَبَدًا - (رواه النسائي عن ابي هريرة رض) | "یعنی شح او ایمان د یو مسلمان سړي په زړه کښې نه شي جمع کیدے" (قرطبي) |

د بخل کومه سزا چه په دے ایات کښې ذکر شوے ده چه د قیامت په ورځ د کوم شي په ورکولو کښې ئے بخل کړے وي د هغې شي نه به طوق جوړ کړے شي او د دهٔ مرئ ته به واچولے شي - د دے تفسیر نبي کریم صلی الله علیه وسلم داسے فرمائیلے دے :-

حضرت ابو هریره رض فرمائي چه:

نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه کوم سړي له الله تعالیٰ څهٔ مال ورکړو بیا دهٔ د هغې زکوٰة ادا نهٔ کړو نو د قیامت په ورځ به دغه مال یو سخت زهري مار شي د دهٔ د مرئ نه به تاؤ کړے شي او د دهٔ د خُکې به اونیسی او وائي به چه زهٔ ستا مال یم ستا خزانه یم، بیا حضور صلی الله علیه وسلم دا ایات اولوستو" (نسائي) (از تفسیر قرطبي)

په دویم ایات کښې د یهودو په یو سخته بے ادبئ د خبرداري او سزا ذکر دے چه واقعه ئے دا ده چه کله نبي کریم صلی الله علیه وسلم د زکوٰة او صدقو حکمونه د قرآن نه بیان کړه نو یهودو دا خبرے شروع کړے چه الله تعالیٰ فقیر او محتاج شو او مونږ مالدار یو نو ځکه ته زمونږ نه غواړے (نعوذ بالله) ظاهره خبره ده چه د دے بے هوده وینا مطابق به د دوي عقیده نه وه مګر د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دروغژن کولو د پاره به ئے داسے وئیلي وي چه که د قرآن دا ایات صحیح وي نو د دینه دا لازمیږي چه الله دے فقیر او محتاج وي. دا بے کاره او باطل دلیل د جواب ورکولو قابل نه وهٔ ځکه چه د صدقو حکم د الله تعالیٰ د خپلې فائدے د پاره نه دے بلکه د مالدارو د دیني او دُنیوي نفع د پاره دے - خو دیته ئے الله تعالیٰ له قرض ورکول ځکه اووے چه لکه څنګه د قرض اداکول د هر شریف سړي د پاره ضروري او یقیني وي ، دغه شان کومه صدقه چه انسان ورکوي د هغې جزا الله تعالیٰ په ځان داسے لازموي لکه څنګه چه د قرض ورکول وي- کوم سړي چه الله تعالیٰ له د کائنات خالق او مالک ګڼړي هغهٔ له

په دې الفاظو سره دغه شُبه نه شي کیدې کومه چه د بې ادبه یهودیانو په دې وینا کښې ده. په دې وجه قرآن کریم د دې شبهې جواب د سره ورنه کړو صرف د دوی د دې بې ادبۍ او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د دروغژن کولو او په ده پورې د تهمتونو لو د بې شماره سختو جرمونو په سزا کښې ئې دا اوفرمائیل چه مونږ د دوی دا بې ادبه کلمې لیکو چه د قیامت په ورځ باندې په دوی حُجّت تمام شي عذاب ورکړې شي، ورنه الله تعالیٰ ته د لیکلو ضرورت نشته.

بیائې د یهودو د دې بې ادبۍ ذکر کولو سره د دوی یو بل جرُم دا هم ذکر کړو چه دا هغه خلق دي چه دوی صرف پیغمبران دروغژن کړي نه دي او نه ئې پورې یوائې مسخرې کړې دي، بلکه قتل کړي ئې هم دي نو که دا سې خلق یو نبي دروغژن کړي یا پورې مسخرې اوکړي نو دا څهٔ د تعجُّب خبره نه ده. دوی په تیر وخت کښې هم داسې کړي دي.

**په کفر او ګناه سره په زړهٔ باندې راضي کیدل هم دغسې لوئې ګناه ده**

دلته دا خبره د لید و قابله ده چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او د قرآن مخاطب د مدینې یهود دي. او د انبیاؤ د قتل واقعه د دوی نه ډیره وړاندې د حضرت یحییٰ او زکریا علیهما السلام د زمانې ده. نو په دې آیات کښې ئې د انبیاؤ د قتل جرم نسبت دوی ته څنګه اوکړه؟ وجه دا ده چه د مدینې یهود د خپلو نیکه ویهودیانو په دې کار باندې راضي او خوشحاله وُو، نو په دې وجه دوی هم د قاتلانو په حکم کښې شمار شو.

امام قرطبیؒ په خپل تفسیر کښې فرمائیلي دي چه دا ډیره اهمه مسئله ده چه په کفر راضي کیدل هم په کفر او ګناه کښې داخل دي. د نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو ارشاد د دې زیات وضاحت کوي. دوی فرمائیلي دي چه هر کله په زمکه څهٔ ګناه کیدې شي نو کوم سړې چه هلته موجود وي لیکن د دې ګناه مخالفت کوي او دې ګناه لره بد ګڼړي نو دې داسې دې چه ګویا دلته موجود نه دې، یعني په دې ګناه کښې دې شریک نه دې. او کوم سړې اګرچه د ګناه په دغه ځائې (مجلس) کښې موجود نه وي، لیکن په دې کار باندې راضي وي، هغه اګر چه غائب وي خو په ګناه کښې به شریک ګڼړلې شي. ختم شو.

دَ دے ایات په آخر او په دریم ایات کښے ئے دَ دے بے ادبو سزا داا وخوده چه دوی به په دوزخ کښے واچوی اُو به ویئلے شی ورته چه اوس په اور کښے دَ سوزیدو مَزَهٔ اوڅکئ چه هم ستاسو دَ عمل نتیجه ده، دَ الله تعالیٰ دَ طرفه هیڅ ظلم نیشته -

په څلورم ایات کښے ئے دَ دغے یهودو یو دروغ او بهتان ذکر کړو - او هغهٔ دا چه دوی دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ دروغژن کولو دَ پاره دا حیله (بهانه) وړاندے کړه - چه دَ تیرو پیغمبرانو علیهم السلام و په زمانه کښے دا طریقه وَه چه دَ صدقو مال به ئے په یو میدان یا غر ایخودو، او دَ آسمان نه به اُور راتلو دغه به ئے سیزلو، دا دَ صدقو دَ قبلید ونښنه وه - نبی کریم صلے الله علیه وسلم او دَ دوئی اُمّت ته الله تعالیٰ دا خاص غوره والے ورکړے وَه چه دَ صدقو مال دَ آسمانی اُور خوړلو په ځائے مسلمانانو فقیرانو او محتاجانو ته ورکولے شی، نو چونکه دَ تیرو پیغمبرانو دَ طریقے نه دا طریقه بَدَله وَه، په دے وجه مشرکانو بهانه جوړه کړه چه که ته نبی وے نو تا ته به هم دا معجزه درکړے شوے وَه چه آسمانی اور به صدقے خوړے - او دَ دینه زیاته دا زړه وَرتیائے او کړه چه په الله تعالیٰ باندے ئے دا بهتان اُو تاړه چه هغهٔ زموږ نه دا وعده اغستے ده چه موږ به په هغهٔ سړی ایمان نه راوړو چه دا دَ آسمانی اور راتلو او دَ صدقے خوړو معجزه موږ ته ښکاره نه کړی

چونکه دَ یهودو دا دَعْوَه بالکل بے دلیله او باطله وه، چه الله دَ دوی نه دا وعده اغستے ده، دَ دے دَ جواب ورکولو خو دَ سړو نه ضرورت نه وَه - نو دوئی لره ئے په دے ځیله مثلے وَیَنا باندے دَ مغلوب کولو دَ پاره دا اُو فرمائیل چه که تاسو په دے خبره کښے رشتونی یئ چه الله تعالیٰ ستاسو نه دا سے وَعده اغستے ده، نو بیا کوم تیرو پیغمبرانو چه ستاسو دَ وَینا مطابق دا معجزه هم خودلے وه چه آسمانی اور دَ صدقے مال خوړلے وَه - نو بکار وه چه تاسو پرے ایمان راوړے وے نو تاسو خو هغوی لره هم دروغژن کړهٔ او قتل موهم کړهٔ -

دلته دا شُبه نه دی کول په کار چه که دَ یهودو دا مطالبه بالکل غلط وه خو که نبی کریم صلے الله علیه وسلم په لاسو دا معجزه ښکاره شوے وے نو شاید ایمان به ئے راوړے وَه - ځکه چه دَ الله تعالیٰ په علم کښے وه چه دا خلق محض په عناد سره

داخبرے کوی، کہ دَ دوی دَ وینا مطابق ورته وامعجزه هم او خودے شی، خو بیا هم ایمان نهٔ راوړی۔

په پنځم آیات کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلّم ته تسلّی ورکړے شوے ده چه دَ دوی په دروغژن کولو باندے مه غمژن کیږه ځکه چه دا معامله دَ ټولو پیغمبرانو سره شوے ده۔ یعنے پخوانے رواج او دستور دے۔

**دَ آخرت فکر دَ ټولو غمونو علاج او شبهاتو جواب دے**

په شپږم آیات کښے ئے دا حقیقت واضحه کړے دے چه که چرته په یو ځائے کښے کافران غلبه هم اوکړی او دَ دُنیا عیش و عشرت ورته پوره په پوره ملاؤ شی، او مسلمانانو ته دَ دے په عکس سره څهٔ مصیبتونه او مشکلات او دَ دنیا دَ اسبابو تنګی راپیښه شی نو دا نهٔ دَ تعجب خبره ده نهٔ دَ غمژن کیدو، ځکه چه دَ دے حقیقت نه یو مذهب او مشرب والا او هم یو فلسفی انکار نهٔ شی کولے، چه دَ دنیا غم او راحت خوږ یو څو ورځو دی یو جاندار هم دَ مرګ نه نهٔ شی بچ کیدے او دَ دُنیا راحت او مصیبت اکثر په دنیا کښے دَ حالاتو په بدلیدو سره ختمیږی۔ او که فرض کړه په دنیا کښے بدل نهٔ شی نو په مرګ سره خو دَ ټولو خاتمه یقینی ده۔ دَ هوښیار کار دا نه دے چه دَ دے څو ورځو دَ راحت او غم په فکر کښے پریوځی۔ بلکه دَ مرګ نه دَ روستو ژوند فکر په کار دے چه هلته به څهٔ کیږی؟ ؎

دورانِ بقا چو باد صحرا بگذشت　　تلخی و خوشی و زشت و زیبا بگذشت

(یعنے دَ دُنیا دَ ژوند تراخه او خواګه بنهٔ او بد دَ بادِ پشان تیرید ونکی دی)

په دے وجه په دے آیات کښے دا اوخودے شو چه هر یو جاندار به دَ مرګ مزه او څکی او بیا به په آخرت کښے دَ خپل عمل جزاء او سزاء بیا مومی چه سخته به هم وی او اوګده هم۔ نو هوښیار لره فکر دَ دے کول په کار دی۔ نو په دے بنا سره کامیاب هغه صرف سړے دے چا ته چه دَ دوزخ نه خلاصے ملاؤ شی او جنت ته داخل شی خواه دَ اوّل سرنه لکه دَ صالحانو او عبادت ګذارو سره چه به کیږی۔ یا دَ څهٔ سزا تیره ولو نه پس، لکه چه دَ ګناه ګارانو مسلمانانو سره چه به کیږی۔ لیکن مسلمانان به ټول آخر کار دَ جهنم نه خلاصے مومی او دَ همیشه همیشه دَ پاره به دَ جنّت دَ راحتونو او نعمتونو مالکان کیږی (یاالله زمونږ ئے نصیب کړے آمین)۔

په خلاف دَ کفارو چه دَدوی همیشه ټکانړ جهنم دے، دوی که دَ دنیا په دے څو ورځے راحت باندے مغروره وی نو دا سراسر دوکه ده - په دے وجه ئے دَ ایات په اخر کښے اوفرمائیل چه دَ دُنیا ژوند دَ دوکے سامان دے، ځکه چه په عام طور سره دَ دے دُنیا خوند وَنه دَ اخرت دَ سختو او تکلیفو نو ذریعه وی او دَ دُنیا تکلیفونه چیرې کرته دَ اخرت ذخیره وی -

| اولنی ایات په یو خاصه واقعه کښے نازل شوے دے چه دَ هغے ذکر په اجمالی طور سره په ذکوشوی دوېم ایات کښے راغلے | اهل حقوته دَ اهل باطلو نه آزار رسیدل یو قدرتی کار دے او دَ هغه علاج صبر او تقوای دے |
| --- | --- |

دے - تفصیل ئے دا دے چه په قرآن کریم کښے هرکله ایات دَ : مَنْ ذَا الَّذِیْ یُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا : نازل شو - چه په دے کښے ئے په یو زړه ته پریوتونکی انداز سره صدقاو خیرات الله تعالیٰ لره په قرض ورکولو سره ترے تعبیر کړے دے - او دے طرف ته ئے په کښے اشاره کړے ده چه هرڅه چه دلته ورکړے دَ هغے بدله به په اخرت کښے دا سے یقینی ملاویږی لکه څنګه رنګه چه دَ چا قرضه ادا کولے شی -

یو عنادګر یهودی دا واورېدل نو دا الفاظ ئے اووے : اِنَّ اللّٰهَ فَقِیْرٌ وَّ نَحْنُ اَغْنِیَآءُ : حضرت صدیق اکبرؓ لره په دے بے ادبئ باندے غصه ورغله او یو ه څپیړه ئے دَ یهودی مخ لره ورخلاصه کړه - یهودی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته شکایت اوکړه نو په دے باندے دا ایات نازل شو : لَتُبْلَوُنَّ فِیْۤ اَمْوَالِكُمْ وَ اَنْفُسِكُمْ : الایة : چه په دے کښے مسلمانانو ته خودَ لے شوے ده چه دَ دین دَ پاره دَجان او مال دَ قربانونه او دَ کفارو مشرکانو او اهل کتابو دَ بدګویو او ازارونو تیریدل ئے مَهٔ - دا تول دَ هغهٔ ازمائیش دے او دَ بنده دَپاره په کښے غوره والے دے - چه دَ صبر نه کار واخلی او دَ خپل اصل مقصد تقوای په مکمل کولو کښے لګیا وی - دَ هغوی دَ جواب کولو په فکر کښے نه پریوځی -

وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِیْثَاقَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَیِّنُنَّهٗ

او کله چه الله پاک وعده واخسته دَ اهل کتابو نه چه دے لره به بیان کړئ

لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ وَ

خلقو ته او نه به ئې پټوئ - بیا او غورزه وله دوی دغه وعده خپلې شا ته او

اشْتَرَوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ﴿۱۸۷﴾ لَا

واخستو په دے سره لږ شان قیمت - پس څهٔ نا کاره دے کوم شے چه دوی اخلی - تهٔ

تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا وَّيُحِبُّوْنَ

گمان مه کوه چه کوم خلق خوشحالږی په خپلو کړو باندے او خپل صفت

اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ

غواړی بغیر د کولو نه پس گمان مه کوه په دوی باندے

بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸۸﴾

چه خلاص شو د عذاب نه - او د دوی د پاره عذاب دردناک دے -

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ

او د الله د پاره دے حکومت د آسمانونو او د زمکے - او الله تعالیٰ په هر

۱۹ ع ۹ ۱۰ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۸۹﴾ ع

شی باندے قادر دے -

**د آیاتونو تړون** لکه چه په تیرو وآیاتونو کښې د یهودو د بدو خصلتونو او بدو کارو بیان وُه، په دے ذکو شوی اولنی آیات کښې هم د دوی د یو داسے بد عمل ذکر دے، او هغه دے د لوظ او قول نه خلاف ورزی کول، ځکه چه د اهل کتاب نه الله تعالیٰ دا وعده اخستے وه چه د الله تعالیٰ کوم احکام چه په تورات کښې راغلی دی دوی به د دے عام اشاعت کوی.

یعنے خلقو ته به ئے ښائی، او یو حکم به هم دَخپل نفسانی غرض دَپاره پټوئے نه - اهلِ کتابو دا وعده (لوظ) مات کړهٔ، حکمونه ئے پټ کړهٔ، او بیا ئے دا زیره وَرتیا اوکړه چه په دے ئے دَخوشحالئ اظهار اوکړه، او خپل دا کار ئے دَ تعریف قابل مقرر کړو - چه دا مونږ ښهٔ اوکړه -

# لنډ تفسیر

(دا حالت هم دَ یادَ ولو قابل دے) هرکله چه الله تعالیٰ (په تیرو کتابونو کښے) دَ اهلِ کتابو نه دا عهد (لوظ) واغستو (یعنې دوی ته ئے حکم اوکړه او دوی قبول کړو) چه دَ دے کتاب (تهول مضامین) عامو خلقو ته ضرور بیا نوئے او دَدے (یو مضمون) لره (دَ دنیوی غرض دَپاره) پټ مه ساتئ پس دغے خلقو دے (عهد) لره خپلے شا ته اوغورزاوه (یعنې عمل ئے پرے اونه کړه) او دَ دے په بدله کښے ئے (دَدنیا) بے کاره بدله واغسته پس ناکاره شے دے کوم چه دغه خلق اخلی (ځکه چه دَدے انجام دَ دوزخ سزا ده) -

(اے مخاطبه) کوم خلق چه داسے دی چه پخپل (بد) عمل خوشحالیږی او کوم (نیک) کار چه دوی نه وی کړے په هغے خپل صفت کیدل غواړی پس په داسے خلقو باندے چرته هم داخیال مکوه چه دوی به (په دنیا کښے) دَخاص طور دَعذاب نه بچاؤ (او په حفاظت) کښے اوسی (هرګز نه ده بلکه په دنیا کښے به ورلره هم څهٔ سزا وی) او (په اخرت کښے هم) دوی لره به دَرَدْ ناکه سزا وی -

او دَ الله تعالیٰ دَپاره (خاص) دے حکومت دَ اسمانونو او دَ زمکے او الله تعالیٰ په هر شی باندے پوره قدرت لری -

# معلومات او مسئلے

دَدین علم پټول حرام دی او په ناکړی عمل باندے خپل صفت غوښتل بد او ناکاره دی

په ذکر شوو درے واړو ایاتونو کښے دَ اهلِ کتابو دَ عالمانو دوه جرمونه

او دَ هغوی دَ سزا بیان دے - او دا چه دوی ته حکم داوه چه دَ الله تعالیٰ

په کتاب کښې کوم احکام چه راغلی دی دا ټول به دَخلقو په مخکښې بے دَکمی زیاتی نه بیانوئے او یو حکم به نه پټوئے، مګر دوی دَخپلو دنیوی غرضونو او نفسانی طمعو په خاطر دَ دے عهد (لوظ) پروا ونه کړه، او ډیر احکام ئے دَخلقونه پټ کړه -

دویمه دا چه دوی به نیک عمل دَسره کولو نه او غوختل به ئے چه بغیر دَعمل کولو نه دَ دوی صفتونه کولے شی -

دَ تورات دَحکمونو دَ پټولو واقعه خو په صحیح بخاری کښې په روایت دَحضرت عبد الله بن عباسؓ نقل ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ یهودو نه دَیو خبرے تپوس اوکړه چه اے دا خبره په تورات کښې شته، نو دے خلقو پټه کړه او کومه چه په تورات کښې وه دَهغې خلاف ئے بیان کړه، او په خپل دے بد عمل خوشحالیدل چه واپس راغلو نو اوئے وے چه موږ بنهٔ دوکه ورکړه - په دے باندے دا آیات نازل شو چه دے خلقو ته پکښې دَعذاب وعده وه -

او دویمه معامله په نا کړی عمل باندے دَ تعریف او مدح خواهشمند دی دا ده چه دَ منافقو یهودو یو طرز عمل دا هم وه - چه کله به دَ څهٔ جهاد وخت راتلو نو بهانے به ئے کولے په کور کښې به کیناستل، او دغه شان به ئے دَجهاد دَ تکلیف نه په بچ کید و باندے خوشحالی کولے، او هرکله چه به نبی کریم صلے الله علیه وسلم واپس راغلو نو دَ دوی په وړاندے به ئے دَدروغو قسمونه خوړل عذر به ئے بیانولو او دَدے طلبګار به وُو چه دَ دوی دَ دے عمل تعریف اوکړے شی (رواه البخاری)

قرآن کریم په دے دواړو خیزونو باندے دَ دوی بد والے بیان کړو نو دَ دینه معلومه شوه چه علم دینی او دَخدائے او دَرسولؐ حکمونه پټول حرام دی - لیکن دا حرامولے دَ دغه شان پټولو دے کوم چه دَ یهودو عمل وُه چه دَ خپلو دنیوی غرضونو دَپاره به ئے دَ خدائے حکمونه پټول او په دے به ئے دَخلقو نه مال وصول کولو - او که دَ څهٔ دینی او شرعی مصلحت په وجه څهٔ حکم عوامو ته نه ښکاره کوی نو هغهٔ په دے کښې داخل نه دے - لکه چه امام بخاریؒ په یو جُدا باب کښې دا مسئله دَ احادیثو په حواله سره بیان کړے ده - چه بعضے دَ څهٔ حکم په ښکاره کولو سره به عوامو کښې غلط فهمی او په فتنه کښې دَ اخته کید و یره وی - نو که دَ دے خطرے په وجه څهٔ حکم پټ اوساتلے شی نو خیر دے -

او دَ خپل نیک عمل کولو نه پس هم په دے باندے خپل ثنا صفت غوښتل خو دَ عمل کولو یا وجود هم په شریعت کښے بد دی، او دَ نهٔ کولو په صورت کښے خو ډیر زیات بد دی۔ او په طبعی طور سره دا خواهش لرل چه زهٔ هم فلانے نیک کار او کړم او نیک نامه شم، دا په دے کښے نه دے داخل۔ خوشحله چه دَ دے دَ پاره څهٔ اهتمام او کوشش نه کوی (بیان القرآن)

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَ

بے شکه دَ آسمان او دَ زمکے جوړه ول دَ شپے او ورځے تلل او

النَّهَارِ لَاٰيٰتٍ لِّأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿١٩٠﴾ الَّذِينَ يَذْكُرُونَ

راتلل په دے کښے دی دَ عقلمندو دَ پاره - هغه چه یاد وی الله

اللّٰهَ قِيٰمًا وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَيَتَفَكَّرُوْنَ فِي

لره په ولاړے په ناستے او په ملاَ ستے او فکر کوی په

خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ ج رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ج

پیدائښت دَ آسمانونو او زمکے کښے - وائی اے زمونږ ربه تا دا عبث نه دی جوړ کړی

سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿١٩١﴾ رَبَّنَا إِنَّكَ مَنْ

تهٔ پاک یے دَ ټولو عیبونو نه پس مونږ اوساتے دَ عذاب کد دوزخ نه - اے زمونږ ربه چا لره

تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ أَخْزَيْتَهٗ ط وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ

چه تا په دوزخ کښے داخل کړو پس هغهٔ لره دے رسوا کړو - او نیشته څوک دَ ګناهګارو دَ پاره

أَنْصَارٍ ﴿١٩٢﴾ رَبَّنَا إِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْإِيْمَانِ

مددګار - اے زمونږ ربه مونږ واوریده یو آواز کوونکی لره چه آواز کوی ایمان دَ پاره چه

أَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ۖ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ

چه ایمان راوړئ په خپل رب باندې پس مونږ ایمان راوړو - اے ربه زمونږ او س اوبخے گناه زمونږ او

كَفِّرْ عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾ رَبَّنَا

لرے کړے زمونږ نه بدئ زمونږ او مرګ راکړے مونږ لره د نیکو خلقو سره - اے ربه زمونږ

وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ

او راکړے مونږ لره کوم وعده چه کړے ده تا زمونږ سره د رسُولانو په واسطه او مه رُسوا کوے مونږ په

الْقِيٰمَةِ ۭ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾

ورځ د قیامت - بے شکه ته د وعدے نه خلاف نه کوے -

**د آیاتونو تړون** چونکه د پورته آیاتونو نه د خدائے یو والے معلوم شو نو په راتلونکی آیات کښے په توحید باندے دلیل راوړی او د دے سره په مکمل توحید باندے د عمل کونکو فضیلت بیانوی چه اشارةً په کښے نورو ته هم ترغیب دے د توحید په اقتضاء باندے د عمل کولو. بیره چه د کفارو د آزار د رسولو کوم مضمون وه د راتلونکی آیات د دے سره هم مناسبت دے - دغه شان چه مشرکانو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه په عناد سره درخواست اوکړه چه د صفا غر د سرو زرو کړه - په دے باندے دا آیات نازل شو، چه د حق دلیلو نه خو نور هم ډیر دی، په هغے کښے فکر و لے نه کوی او د دے خلقو دا درخواست د حق د تحقیق د پاره نه وه بلکه د عِنا د د پاره وه نو که درخواست ئے پوره شوے هم وے خو دوی ایمان نه راوړو -

## لنډ تفسیر

بے شکه د آسمانو او د زمکے په جوړه دلو کښے او په یو بل پسے د شپے او ورځے په تلو راتلو کښے دلیلونه (د توحید موجود) دی د (سلیم) عقل لرونکو د (دلیل

نیولوکې) پاره چه حالت ئې داوې (کوم چه وړاندې راځي او دا حالت د دوی د عاقل کید علامه هم ده ځکه چه د عقل تقاضا د ضرر دفع کول او د نفع حاصلول دی او په دې باندې د دې حالت دا مجموعه دلالت کوی، هغه حالت داوې) چه دغه خلق (په هر حال کښې په ژړه سره هم او په څه سره هم) د الله تعالی یاد کوی په ولاړې هم په ناستې هم په ملاستې هم، او د اسمانو او د زمکې په پیدا کید و کښې (د خپل عقل په قوت سره) غور کوی (او د غور کولو چه کومه نتیجه وی یعنې د ایمان پیدا کیدل یا نوی کیدل او قوی کیدل د ایمان دې لره په دې شان سره ظاهره وی) چه اې زمونږ پروردګاره تا دې (مخلوق) لره بې فائدې او بې وجهِ نه دې پیدا کړې (بلکه په دې کښې ډیرې حکمتونه ایخودی دی، چه په دوی کښې یو لوئې حکمت داوې چه په دې مخلوق سره د لوئې خالق په وجود باندې دلیل اونیولې شي) مونږ تا لره (د بې مطلبه پیدا کولو نه) پاک ګڼړو (په دې وجه مونږ دلیل اونیوه او ستا د یووالی قائل شو) پس مونږ لره (د موحد او مؤمن کیدو په وجه) د عذاب د دوزخ نه اوساته (ځکه چه شوعا د دې دا مقتضیٰ ده (یعنې غواصتې دې) اګرچه د څه ښیبنې په وجه دا اقتضا کمزورې شي او څهٔ لږ ډیر عذاب پرې ورکړې شي. یو عرض (درخواست) د دې خلقو داوه او دوی د دې ایمان د مضمون په مناسبت سره نور درخواستونه هم کوی چه وړاندې راځي) اې زمونږ پروردګاره (مونږ په دې وجه د دوزخ د عذاب نه پناه غواړو وچه) بې شکه ته چه چالره (په طور د اصل جزاء) په دوزخ کښې داخل کړې دې واقعی چه رسوا کړې شو (مراد د دینه کافر دې) او د داسې بې انصافو (د چا چه اصل جزاء دوزخ تجویز کړې شي) هیڅوک مدد کونکې نیشته. راوستا وعده دهٔ د ایماندارو سره د نهٔ رسوا کولو هم او د مدد کولو هم پس د ایمان راوړو په وجه زمونږ درخواست داوې چه د کفر دا اصلی جزاء نه موږ کړې او د ایمان اصل مقتضا یعنې د دوزخ نه خلاصې پرې راکړې)

اې زمونږ پروردګاره مونږه (ځکه چه ستا په تجویز کړو خیزونو باندې دلیل اونیوه په عقل سره دغه شان مونږه) یو رحق طرف ته) بلونکی واله لره (مراد د دینه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دې په واسطه سره یا بې د واسطې)

دا اوریدلو چه د ایمان راوړو د پاره اعلان کوی چه (اے خلقو) تاسو په خپل پروردګار (په ذات او صفاتو) ایمان راوړئ پس مونږ (په دے نقلی دلیل سره دلیل اونیوه او هم) ایمان راوړو (په دے درخواست کښے د ایمان بالله سره ایمان بالرسول هم داغے ضمنًا، پس د ایمان دواړه جزونه یعنے د الله تعالیٰ د یووالی عقیده او د رسالت عقیده کامل شو)

اے زمونږ پروردګاره بیا (د دے نه پس زمونږ دا درخواست دے چه) زمونږ (لوئے) ګناهونه هم معاف کړے او زمونږ (ورے) بدئے زمونږ نه (معاف کړے) لرے کړے او (زمونږ انجام هم چه په څه زمونږ مدار دے برابر کړے داسے چه) مونږ لره د نیکو خلقو سره (شامل لرونکے) مرګ را کړے (یعنے خاتمه زمونږ په نیکه کړے)۔

اے پروردګاره او (لکه څرنګه چه مونږ د څخ څیزونو نه د محفوظ کیدو درخواست اوکړو کوم چه مونږ ته ضرر رسوی لکه دوزخ او رسوائی او ګناهونه او بدئے، دغه شان مونږ د خپلے نفعے او فائدے د پاره دُعا کوو چه) مونږ ته هغه شے (یعنے ثواب او جنت) هم را کړے د کوم چه زمونږ سره د خپلو پیغمبرانو په معرفت تا وعده فرمائیلے ده (چه مؤمنانو او نیکانو ته به لوئے اجر ملاویږی) او (دا ثواب او جنت مونږ ته په داسے شان سره را کړے چه د ثواب ملاویدو نه اول هم) مونږ لره د قیامت په ورځ مه رسوا کوئے (لکه چه بعضو لره اول سزا وی بیا به جنت ته ځی مطلب دادے چه د اول سر نه مونږ په جنت کښے داخل کړے، او) یقینًا ته د وعدے نه خلاف نه کوے (لیکن زمونږ سره دا یره ده چه د کومو خلقو د پاره وعده ده یعنے د مؤمنانو او نیکانو د پاره خدائے دِ نه کا چه دا صفتونه په مونږ کښے موجود نه شی په کوم چه وعده ده۔ په دے وجه مونږ تا ته دا درخواست کوو چه مونږ لره د خپلے وعدے څیزونه را کړے یعنی مونږ د غسے کړے او د غسے موا ولرے چه د وعدے ځائے را پکښے او شی)۔

# معلومات او مسئلے

**د آیات شانِ نزول** د دے آیات د شان نزول متعلق ابنِ حبان په خپل

صحیح کښې او محدث ابن عساکر په خپل تاریخ کښې نقل کړې دے، چه عطاء بن ابی رباح ؒ د حضرت عائشې ؓ خواته تشریف راوړو- او داوئے وے چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په حالاتو کښې چه کوم د ټولو نه زیات عجیبه شے تاسو لیدلے وی هغه ما ته اوبنائی، نو په دے باندے حضرت عائشې ؓ اوفرمائیل، د هغوی د کوم یو شان نه پوښتنه کوے؟ د هغوی خو هر یو شان یو عجیبه شے وه، البته یو عجیبه واقعه درته اووایم، هغه داده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم یوه شپه ما سره تشریف فرما وو- او په بسترته کښې ما سره ونښه شو- بیائے او فرمائیل چه اجازت راکړه چه زهٔ د خپل پروردګار عبادت اوکړم- د بسترې نه پورته شو او دس ئے او فرمایه، بیا د مانځهٔ د پاره اودریدو، او په قیام کښې ئے دومره اوجړل چه د دوئ اوښکے په سینه مبارک باندے اوبهیدے، بیائے رکوع او فرمائیله او په دے کښې ئے هم اوجړل، بیائے سجده اوکړه او په سجده کښې ئے هم دومره اوجړل بیائے سر اوچت کړه او په مځکه ئے جړل- تر دے چه سحر شو، حضرت بلال ؓ راغلو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ئے د مانځه خبر ورکړو- بلال ؓ فرمائی چه ما عرض اوکړه چه حضور ؐ دومره جړل ولے کوئے؟ الله تعالی خو ستاسو وړاندے وروستو ګناهونه معاف کړیدی، دوئ او فرمائیل چه ولے زهٔ شکر گذار بنده دے جوړ نه شم؟ او په دے شکریه کښې دے جړا زاری ولے نه کوم هر کله چه الله تعالی په ما باندے نن شپه دا آیات مبارک نازل کړے دے. اِنَّ فِیْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الآیة: د دینه پس دوئ ؐ او فرمائیل چه لویه تباهی ده هغه سړی لره چاچه دا آیاتونه اولوستل او په دے کښې ئے غور اونه کړو-

نو په دے وجه په دے آیات کښې د غور او فکر کولو په سلسله کښې په دے لاندینو مسئلو باندے غور کول پکار دی-

| خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ نه څهٔ مراد دے؟ | اوّل دا چه: خلق: مصدر دے چه معنیٰ ئے ده ایجاد او نوے شے پیدا کول- معنیٰ دا شوه چه د آسمان |
|---|---|

او زمکے په پیدا کولو کښې د الله تعالیٰ لوئے نښے دی په دے وجه په دے کښې هغه ټول مخلوقات او د الله تعالیٰ مصنوعات (جوړ شوی) هم داخلیږی

کوم چه په آسمانونو او زمکه کښې دی - بیا په دے مخلوقاتو کښې قسمونه دی چه د هر یو خاصیتونه او اندازے جُدا جُدا دی، او هر یو مخلوق د خپل خالق پوره پته ورکوی، بیا که نور زیات غور وکړے شی نو داخبره فکرته راځی چه په اَلسَّمٰوٰتِ کښې ټول پورته والے یعنی بُلند ځے داخلے دی او په اَلْاَرْضِ کښې ټولے لاندے ځے داخلے دی - پس لکه څنګه رنګې چه الله تعالیٰ د ټولو پورتنو خالق دے دغه شان د ټولو لاندینیو هم خالق دے -

**د شپے او ورځے د اختلاف مختلف صورتونه**

دویم داچه د اختلافِ لیل ونهار نه څه مراد دے؟ لفظ د اختلاف دلته د عربی د هغے محاورے نه راغستے شوے دے، چه: اِخْتَلَفَ فُلَانٌ فُلَانًا؛ یعنے فلانے سړے د فلانی نه پس راغے - نو پس د اِخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ معنیٰ داشوه چه شپه ځی او ورځ راځی او ورځ ځی نو شپه راځی -

د اختلاف دویمه معنیٰ داهم کیدے شی چه د اختلاف نه زیاتوالے او کموالے مراد واغستے شی په یخنئ کښے شپه اوږده وی او ورځ لنډه وی او په ګرمئ کښے د دے په عکس سره وی - دغه شان په شپه ورځ کښے تفاوت د ملکونو په تفاوت سره هم وی، مثلاً کوم ملکونه چه قطبِ شمالی ته نزدے دی په دوی کښې ورځ زیاته اوږده وی په نسبت د هغه ښهرونو کوم چه د قطبِ شمالی نه لرے دی - او په دے کارونو کښے هر یو د الله تعالیٰ په کامل قدرت باندے روښانه دلیل دے (چه فکورته اوشی)

**د لفظ د ایات تحقیق**

دریم امر دادے چه د لفظ د "ایات" څه معنی ده؟ "ایات" د "ایة" جمع ده او دا لفظ په څو معنوسره ویلے شی - ایات: معجزو ته هم ویلے شی - او د قرآن مجید په ایاتونو هم د دے اطلاق کیږی - او دریمه معنیٰ ئے دلیل او نښه هم ده - دلته تړے هم داردریمه معنیٰ مراد ده یعنی په دے کارونو کښې د الله تعالیٰ لوئے نښے او د قدرت دلیلونه دی -

څلورمه خبره د اولوالالباب د معنی سره تعلق لری - الباب: د لُبّ جمع ده چه معنی ئے ده مغز او د هر شی مغز د هغه خلاصه یعنے ښکونړ وی او د دینه د دغه شی خاصیت او فائدے معلومیږی - په دے وجه ئے د انسان عقل ته لُبّ ویلے دے

ځکه چه د انسان عقل دده خاص جوهر دے - د اولوا الالباب معنیٰ ده د عقل خاوندان -

| |
|---|
| دعقل خاوندان صرف هغه خلق دی کوم چه په الله تعالیٰ ایمان راوړی او په هر حال کښے د هغهٔ ذکر کوی |

اوس دلته دا مسئله د غور کولو ده چه د عقل د خاوندانو نه کوم خلق مراد دی، ځکه چه ټوله دنیا د عقل مندئ دعوه کوی یو بے وقوفه هم خپل ځان ته د بے عقله منلو ته تیار نه دے - په دے وجه قرآن کریم د عقل د خاوندانو یو څو داسے نښے خودلے وی چه هم دا په حقیقت کښے د عقل صحیح معیار دے - اول نښه ئے په الله تعالیٰ ایمان دے - تاسو فکر او کړئ کوم شے چه محسوس وی د دے علم په غوږونو، سترګو، ژبه، پوزه وغیره سره حاصلیدے شی - چه دا خو بے عقله ځناورهم کولے شی - او د عقل کار دا دے چه په نښو او قرینو او دلائلو سره یو داسے نتیجے ته اورسی چه محسوسه نه وی، او په کومے سره چه د اسبابو د سلسلے اخری کړئ بیا موندلے شی -

دا اصول په نظر کښے د ساتلو سره د دنیا په کاتنا توجه ژور نظر واچولے شی نو آسمان او زمکه او په دوی کښے ځائے شوی ټول مخلوقات او د دوی د وړو او لویو څیزونو یو محکم او حیرانونکے نظام عقل ته د یو داسے هستئ پته ورکوی چه د علم حکمت، او قوت وقدرت په اعتبار سره د ټولو نه چیرلوے او اوچت وی او چه دا ټول څیزونه ئے په خاص حکمت سره جوړ کړی وی، او د چا په اراده او رضا سره چه دا ټول نظام چلیږی - او دغه هستی ښکاره خبره ده چه خاص د الله جل شانهٗ کیدے شی لکه د چا عارف وینا ده - ؎

هر گیاهی که از زمین روید        وحدهٗ لاشریک لهٗ گوید

(هر گیاه چه د زمکے نه را ټوکیږی د الله تعالیٰ د بے شرکته یو والی ګواهی ورکوی)

د انسان ارادے او تدبیرونه هر ځائے او هروخت فیل شوے لیدے شی نو دهٔ ته د دے نظام چلوونکے نه شی وئیلے - په دے وجه د آسمان او زمکے په پیدائش او په دے کښے د پیدا کیدونکو مخلوقاتو په پیدائش د غور او فکر کولو نتیجه د عقل په نزد د الله تعالیٰ پیژندل او د هغه حکم منل او د هغه یاد ول دی - څوک چه د دینه غافل دے هغهٔ ته عقلمند وئیل لائق نه وی - په دے

دجه قرآن کریم دَ عقل دَخاوند انو دا لښنه اوخوده : اَلَّذِیْنَ یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ قِیَامًا وَّ قُعُوْدًا وَّعَلٰی جُنُوْبِهِمْ : یعنې دَعقل خاوندان هغه دی چه الله تعالیٰ یادوی په ولاړې په ناستې په ملاستې، مراد دا دې چه په هرحالت او هروخت دَ الله تعالیٰ په یادکښې مشغول وی۔

دَدینه معلومه شوه چه دَ نَنْ دنیا چه کوم شے دَعقل او پوهې معیار ګنړلے دے دا محض یو دوکا ده۔ چا مال دولت جمع کول عقلمندي ګنړلے ده، چا دَ مشینا نو حصې پُرزے جوړه ول عقلمندی ګنړلے ده، دغیره۔ لیکن دَ سلیم عقل خبره دغه ده کومه چه دَ الله تعالیٰ پیغمبرانو او رسولانو راوړے ده چه دَعلم او حکمت په ذریعه دَ اسبابو په سلسله کښې دَ ادنیٰ نه اعلیٰ طرفته ترقی کولو سره درمیانی مرحلے نظرانداز ے کولے۔ دَخامو موادو نه مشینا نو ته او دَمشینا نو نه دَ بجلۍ او براس قوّت ته خوتا سو سائنس اورَسولے، دَعقل کار دا دے چه یو قدم نور وړاندے شئ چه تاسو ته دا معلومه شي چه اصل کار نه دَ اوبو، اوسپنې، تانبې یا خاورے دے، نه دَ مشین، نه دَدے په ذریعه دَ پیدا شوی براس۔ بلکه دا کار دَ هغۀ دے چا چه اُور اُوبه او هَوا پیدا کړه چه دَ دوی په ذریعه دا بجلۍ او براس ستا سولاس ته راغلل ؎

کار زلفِ تُست مشک افشانی اَمّا عاشقان مصلحت را تہمتے برآہوئے چین بستہ اند

(یعنې بوئي دَمشکو خوره ول ستا دَ زلفو کار دے، خو عاشقانو دَ مصلحت دپاره تُهمت دَ چینۍ په هوسۍ پورې تړلے دے)

دَ دے امیانه یعنې جتا نه مثال دا دے او ګنړۍ چه دَ ځنګل یو او سید و نکے جاهل انسان هرکله چه یو ریلوے سټیشن ته اورَسي او دا او وینې چه دَ کا ډی یو ډیره لویه سوارلی دَ یوے سرے جنډے په لید لوسره او دریږي او دَ شنې په لید لوسره روانیږي۔ نو که هغه دا اووائي چه دا سرے او شنے جنډے څومره طاقت لری چه دومره طاقتور شے روانوی او اُودروی۔ نو دَ علم او عقل خاوندان به ورته کم عقل اووائي۔ او دا به ورته اوخاندي چه طاقت په دے جنډو کښې نه دے بلکه طاقت دَ هغې سړی سره دے کوم چه په دے انجن کښې ناست دے دَ دے جنډو په لید لو دَ اُودرو دَ لو او چلولو کار کوی۔ لیکن دَ چا عقل چه دَ دۀ نه

زیات وی هغه به اووائی چه ډرائیور کښې هم کوم مره طاقت نیشتے داطاقت ټول د انجن د حصو او پرزو دے، لیکن یو فلاسفر یا سائنسدان به دۀ ته هم بې وقوفه اووائی چه په د انجن په حصو او پرزو کښې څۀ دی-اصل طاقت د دغې براس او بخار دے چه په انجن کښې د اوبو او اور په ذریعه پیدا کړے شوے دے - لیکن حکمت او فلسفه اوس د دینه وړاندے قدم نه شی اغستے - انبیاء علیهم السلام فرمائی چه لکه څنګه چنډو یا ډرائیور یا د انجن حصو او پرزو ته طاقت ویئل او د طاقت مالکان ئې ګنړل د جاهل غلطی وه دغه شان براس او بخار لره د طاقت مالک ګنړل ستا د فلسفې او حکمت غلطی ده - یو قدم نور وړاندے شه چه تا ته د دے جاڅۀ شوی مزی سَر په لاس راشی او د اسبابو د سلسلې اخری کړئی ته تۀ اورسے، چه په اصل کښې د دے ټولو طاقتونو مالک هغه دے چاچه اُور او اُوبه پیدا کړه او دا براس ترے جوړ شه -

په دے تفصیل سره به تا سو ته معلومه شوے وی چه عقل مند صرف هغه چاته ویئلے شی څوک چه الله تعالیٰ او پیژنی او هر وخت په هر حالت کښې ئې یادوی - په دے وجه د اولی الالباب صفت قرآن کریم دا اوخوده: اَلَّذِیْنَ یَذْکُرُوْنَ اللّٰهَ قِیَامًا وَّ قُعُوْدًا وَّعَلٰی جُنُوْبِهِمْ :

په دے وجه فقهاؤ حضراتو لیکلی دی چه که څوک د مرګ نه وړاندے داوصیت اوکړی چه زما مال دے عاقلانو ته ورکړے شی- نو چاته به ورکولے شی؟ د دے په جواب کښې فقهائے کرامو اولیکل چه دا سے عالمان زاهدان به د دے مال مستحق وی چه د دُنیا طلبئ او غیرضروری مادی وسیلو نه لرے اوسی ځکه چه په صحیح معنو کښې دغه عاقلان دی - (در مختار-کتاب الوصیة)

په دے ځائے کښې دا خبره هم د غور قابله ده چه په شریعت کښې د ذکو نه علاوه د بل یو عبادت د ډیر والی حکم نۀ دے شوے- لیکن د ذکر متعلق ارشاد دے: وَاذْکُرُوا اللّٰهَ ذِکْرًا کَثِیْرًا ؛ وجه ئې داده چه د ذکر نه سوا د نورو ټولو عبادتونو د پاره څۀ شرطونه او قاعدے وی چه د هغې نه بغیر هغه عبادت نۀ شی ادا کیدے- په خلاف د ذکر نه چه دے لره بندهٔ په ولاړه، ناستے، ملا ستے

په او دا سې کښې وي او که بې او دسه په هم خالت کښې او درو خت کښې کولے شي. په دے ایات کښې شاید دے حکمت طرف ته اشاره ده.

په ذکر شوي ایات کښې ئې دَ عقلمند و دويمه نښه داخودلې ده چه دوی دَ اسمان او زمکې په پيدائيښت کښې فکر کوي: يَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ،

دلته غور كول په دے خبره كښې دي چه دَ فكر (تفكّر) نه څۀ مراد دے؟ او دَ دے درجه څۀ ده؟

دَ فكر او تفكّر لفظي معنیٰ دَ غور كولو او دَ يوشي حقيقت ته دَ رسيد وكوشش كول دي. دَ دے ايات نه معلومه شوه چه لكه څنګه چه دَ الله تعالیٰ ذكر عبادت دے دغه شان فكر هم يو عبادت دے. فرق دا دے چه ذكر دَ الله تعالیٰ جلّ شانه دَ ذات او صفتونو په كار دے، او فكر او تفكّر دَ دۀ په مخلوقاتو كښې مقصود دے ځكه چه دَ الله تعالیٰ جلّ شانه دَ ذات او صفتونو حقيقت ته رسيدل دَ عقل نه بالاتر دي په دے كښې دَ غور او فكر او تفكر كولو نتيجه بغير دَ حيرانئ نه نوره هيڅ نيشته، عارف رومیؒ فرمائي ؎

دور بينانِ بارګاه اَلَسْت غير ازين پے نبرده اند که هست

(يعنے دَ الله تعالیٰ په ذات او صفاتو كښې فكر كونكي بزرګان صرف دومره قدر دے معلوموي چه دَ الله تعالیٰ ذات شته نور اخو په هيڅ نۀ وي خبر)

بلكه بعضے وخت دَ الله جلّ شانهٗ په ذات او صفتونو كښې زيات غور او فكر كول دَ انسان ناقص عقل لره دَ ګمراه كيدو سبب جوړيګي. په دے وجه دَ لويو بزرګانو او عارفانو وا وصيت دے چه: تَفَكَّرُوْا فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ وَلَا تَتَفَكَّرُوْا فِي اللّٰهِ: يعنے دَ الله تعالیٰ په پيدا كړو نښو نښانو كښې غور او فكر كوئے، ليكن په خپله دَ الله تعالیٰ په ذات او صفاتو كښې غور او فكر مه كوئے ځكه چه دغے ته تاسو نۀ شئ رسيدے. دَ غر په دنړا كښې هر شے ليدے شي ليكن په خپله نمرته كتل سترګے خړه وي. دَ ذات او صفتونو په مسئله كښې خو لويو لويو ماهرانو فلاسفرانو او دَ جهانو ترسيل ګونكو دَ معرفت خاوندانو اٰخر كار هم دا نصيحت كړے دے چه ؎

نه هر جائے مركب توان تاختن كه جاها سپر بايد انداختن

(يعنے هر ځائے خپل زور آزمائيل نۀ دي په كار چه بيا هر ځائے ماتے خوري نو څۀ فائده؟)

البته د غور او فکر کولو ځائے د الله تعالیٰ جلّ شانهٗ معلومات دی چه په دے کښے په صحیح غور او فکر کولو سره د الله تعالیٰ معرفت حاصلیږی- دومره لوئے او پلن آسمان او په دے کښے نمر سپوږمئ او ستوری چه په دوی کښے څهٔ په ځائے ولاړ (ثوابت) دی او څه دوره و حرکت کوُنکی نو د دے علم خالق تر دے - او دا ټول نظام په ډیر مضبوط او نهایت محکم قانون سره په خپل خپل ځائے چلیږی یو سکنډ اخوا دیخوا کیږی نه، او نه ئے د دے مشینری یو پُرزه سولیږی او نه ماتیږی، او نه ئے چرته یو ورکشاپ لیږلو ته ضرورت راځی- او نه چرته دا مشینری د ټلئ روغن غواړی- د زرګونو کلونو نه هم دغسے پرلپسے دا محکم نظام په خپلو مقرره وختونو سره چلیږی - او هم دغه شان د ځمکے ټوله کُرّه، د دے دریابونه او غرونه او په دواړو کښے قسم قسم مخلوقات، اُونے ځناور او د ځمکے په ویخ کښے پټ معدنیات، او د ځمکے آسمان په مینځ کښے چلیدونکے هوا، او په دے کښے پیدا کیدونکے او وریدونکے بجلئ او باران او د دے مخصوص نظام، دا ټول د سوچ کوُنکی او پوهیدونکی د پاره نښے دی او د داسے هستئ پته ورلره ورکوی چه په علم حکمت قوت او قدرت کښے د ټولو نه بالا تر دے، او د دے خبرو نوم معرفت دے - نو دا غور او فکر د الله تعالیٰ د پیژندو سبب دے او په دے وجه ډیر لوئے عبادت دے - په دے وجه حضرت حسن بصریؒ فرمائی: تَفَکُّرُ سَاعَةٍ خَیْرٌ مِّنْ قِیَامِ لَیْلَةٍ؛ (ابن کثیر) یعنی یوه ګړئ د الله تعالیٰ په نښو نښانو کښے فکر کول د ټولے شپے د عبادت نه غوره او ډیر د فائدے شے دے -

او حضرت عمر بن عبد العزیزؒ دے غور او فکر لره غوره عبادت فرمائیلے دے (ابن کثیر)

حسن بن عامرؒ فرمائی چه ما د ډیرو اصحابوؓ نه آوریدلی دی ټولو دا به فرمائیل چه د ایمان نور او رڼا تفکّر دے -

حضرت ابو سلیمان دارانیؒ فرمائی چه زهٔ د کوره او ځم نو په کوم شی چه ځما نظر پریوځی زهٔ په ښکاره سترګو سره وینم چه په دے کښے ځما د پاره د الله تعالیٰ یو نعمت دے، او د دے په وجود کښے ځما د عبرت حاصلولو سامان

موجود دے (ابن کثیر) دے مضمون لره بعضے عارفان داسے فرمائی ے

هر گیاہے کہ از زمین روید وحدہٗ لاشریک لہٗ گوید ۔ (ترجمے تیرہ شوے ده)

دَحضرت سفیان بن عیینہؒ ارشاد دے "چه غور او فکر یو نور دے چه ستا په زړهٔ کښے داخلیږی"۔

حضرت وهب بن منبهؒ فرمائی چه هرکله یو سړے په کثرت سره غور او فکر کوی نو په حقیقت برپوهه شی، او څوک چه پوهه شی دهٔ ته په صحیح علم حاصل شی او چا ته چه صحیح علم حاصل شه دے به ضرور عمَل هم کوی (ابن کثیر)

حضرت عبد الله بن عمرؓ فرمائی چه یو بزرگ دَیو عابد زاهد په ځائے باندے راغے چه وغه عابد په داسے ځائے کښے ناست وهٔ چه دَدهٔ نه یو طرف ته مقبره وه او بل طرف ته ئے دَکورو نو چیرانونه وُو- دے راغلی بزرگ ورته اُووے چه دَدُنیا دوه خزانے ستا دَوړاندے دی، یوه دَبنی آدمو خزانه چه مقبره ورته وائی، دویمه دَمال دولت خزانه چه دَ فضلا تو او گندگئ په صورت کښے ده- دا دواړه خزانے دَعبرت دَپاره پوره دی -(ابن کثیر)

حضرت عبد الله بن عمرؓ به دَخپل زړهٔ دَجوړه ولو او دَحفاظت دَپاره دَبنهو نه باهر یوے ویرانے ته اُووتلو- او هلته چه به اُورسید نو اُو به ئے وے: اَیْنَ اَهْلُکِ؛ یعنے ستا اوسیدُونکی چرته لاړه؟ بیا به ئے پخپله ځانله جواب ورکړو: كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ اِلَّا وَجْهَهٗ؛ یعنے دَالله تعالیٰ دَ ذات نه سِوا نور هر شے هلاکیدونکے دے (ابن کثیر) او په دے شان به ئے دَتفکّر په ذریعه دَاخرت یاد پخپل زړهٔ کښے راوستل -

حضرت بشر حافیؒ فرمائی چه که خلقو دَالله تعالیٰ په لوئے کښے فکر کولے نو دَهغهٔ نافرمانی به ئے نه شوه کولے -

او حضرت عیسیٰ علیه السلام فرمائیلی دی "اے کمزوری بدن والا بنی آدَمه! تهٔ چه هرځائے ئے دَخدائے نه یَریږه، او په دنیا کښے دَیو میلمه په شان ژوند کوه، او جماتونه خپل کور جوړ کړه او خپلو سترگو لره دَخدائے دَیَرے نه دَ ژړا سره او خپل بدن لره دَصبر سره، او خپل زړهٔ لره دَ فکر سره عادت جوړ کړه، او دَصبا دَرزق فکر مهٔ کوه -

په ذکر شوی آیات کښې ئې دے فکر او تفکر لره د عقلمند بنی آدم اعلیٰ صفت ګرزه ولے دے - او لکه څنګه چه د الله تعالیٰ په مخلوقات کښې په غور او فکر کولو سره د الله تعالیٰ معرفت رپیژندن او د دُنیا د بے وفائي صحیح علم حاصلول غوره عبادت او د ایمان نور دے. دغه شان د الله تعالیٰ نښو ته کتل او په استعمال کښې ئې راوستل او د مخلوقات په ظاهري ډول چال ورپسے کیدل او د دے په ذریعه د حقیقي مالک معرفت نه حاصلول سختته ناپوهي او د ماشومانو پشان حرکت کول دی - مولانا جامی فرمائي ؎

همه اندر زمن ترا زین است که تو طفلی وخانه رنګین است

(د دنیا دا ټول هرڅه ستا د یاده مخکه دی - چه ته ماشوم ئې او د دنیا کور رنګین دے)

او دا مضمون حضرت مجذوبؒ داسے بیان کړے دے ؎

کچھ بھی مجنون جو بصیرت تجھے حاصل ہو جائے تو نے لیلیٰ جسے سمجھا ہے وہ محمل ہو جائے

(مجنونه که څه لږ د یو بصیرت تا ته حاصل شی نو کوم شے چه ته ئې لیلیٰ ګڼې دا به صبا د لرګو بوډۍ)

بعضے حاکمانو فرمائیلی دی چه کوم سړے د دُنیا دے کائنا تو ته د عبرت په نظر سره نه ګوری نو څومره چه دے د دینه غافل وی دومره به د ده د زړه نه بصیرت لرے کیږی - نن چه د سائنس ترقي څومره څومره د خدائے تعالیٰ د کمال کاریګرئې رازونه ښکاره کوی نو دومره خلق د خدائے د پیژندو او په حقیقت باندے د ځان پوهه کولو نه ړاندہ کیږی - په قول د اکبر مرحوم

بھول کر بیٹھا ہے یورپ آسمانی باپ کو بس خدا سمجھا ہے اس نے برق کو اور بھاپ کو

(یعنی یورپ والو آسمانی طاقت هیر کړے دے، پس بجلۍ او بړاس ئې طاقت ګڼلے دے)

قرآن کریم د داسے بے بصیرته تعلیمیافته جاهلانو متعلق ارشاد فرمائیلے دے - وَكَأَيِّنْ مِّنْ اٰيَةٍ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ يَمُرُّوْنَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُوْنَ o: یعنی په آسمانونو او زمکه کښې څومره نښے نښانې دی چه دا خلق ترے مخ نه اړه وی. د دوی حقیقت او کاریګرئې او د دوی جوړه وُنکی خالق طرف ته فکر نه کوی -

نچوړ د خبرے دا دے چه د الله تعالیٰ مخلوقاتو او کاریګرو ته کتل او په دوی کښې غور او فکر کول یو اعلیٰ عبادت دے د دوی نه څه عبرت نه حاصلول سختته ناپوهي ده -

دَ ذکر شوی ایات په اخری جمله کښې ئې دَ دے غور او فکر نتیجه خو دَ لے ده -
رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا : یعنے دَ الله تعالیٰ په ډیرا وبے شماره مخلوقات کښې دَ
نتیجې ته خامخا رسی چه دا ټول څیزونه الله تعالیٰ فضول او بے کاره نه دی پیدا
کړی - بلکه دَ دوی په پیدا کولو کښې په زرګونو حکمتونه دی - دا ټول ئې دَ
انسان دَ خدمت دَ پاره او انسان ئې دَ دوی نه دَ کار اغستو دَ پاره پیدا کړے دے
او انسان لره ئې په دوی کښې دَ غور او فکر کولو بلنه ورکړے ده ، چه دا ټول
کائنات خو دَ دهٔ دَ فائدے دَ پاره جوړ شوی او پیدا شوی دی - او انسان
دَ خدائے تعالیٰ دَ حکم منلو او عبادت دَ پاره پیدا شوے دے - هم دا دَ دهٔ
دَ ژوند مقصد دے - او بیا دغه غور او فکر کونکی دے حقیقت ته او رسی چه
دَ دنیا دا کائنات فضول او بے کاره نه دی پیدا شوی بلکه دا دَ کائناتو دَ
خالق دَ لوئے قدرت او حکمت روښانه دلیلونه دی -
اوس وروسته الله دَ دغې خلقو دَ یو شو درخواستونو او دُعا ګانو ذکر دے کړے
چه دوی دَ خپل ربّ دَ پیژندو نه پس دَ هغهٔ په دربار کښې پیش کړیدی -
اولنی درخواست دا دے چه ؛ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ؛ یعنی مونږ دَ جهنم دَ عذاب
نه بچ کړے -
دویم درخواست دا دے چه مونږ دَ اٰخرت دَ رسوائي نه بچ کړے ، ځکه چه چا
لره تا جهنم ته داخل کړو هغه دَ ټول جهان په وړاندے رسوا شو - بعضے
عالمانو لیکلی دی چه په میدانِ حشر کښې به رسوائي یو داسے عذاب وی چه
بنی اٰدم به دا خواهش او کړی چه کاش دوی دے جهنم ته او غورزه وَلے شوے خو
چه دَ دے بدکارو شهرت ئې دَ محشر دَ خلقو په وړاندے نه وے -
دریم درخواست دا دے چه مونږ ستا دَ طرف نه راغلی اعلان یعنی دَ محمّد
صلی الله علیه وسلم اٰواز لره واؤریده ، او په دے مو ایمان راؤړو نو ته زمونږ
لوئے ګناهونه معاف کړے او زمونږ په عیبونو او بدو باندے پرده واچوے
او مونږ لره دَ نیکو خلقو سره مرګ را کړے - یعنی دَ نیکانو په ټولی کښې مونږ
شامل کړے -
دا درے درخواستونه خو دَ عذاب او تکلیف او ضرر نه دَ بچ کید و دَ پاره دی -

ورانده څلورم درخواست د فائدو او نفعو حاصلولو متعلق دے چه پیغمبرانو علیهم السلامو په ذریعه کومه وعده تا د جنت د نعمتونو فرمائیلے ده هغه مونږ لره داسے راکړے چه په قیامت کښے رسوائی هم نه وی- یعنی چه اول بدنامی او مؤاخذه وی او بیا معافی وی داسے نهٔ بلکه د اول سر نه راته معافی اوکړے، ته وعده خلافی نه کوے، مګر د دے عرضو او درخواستونو مقصد دا دے چه مونږ د دے قابل کړے چه د دے وعدے حاصلولو لائق شو، او بیا په دے قائم پاتے شو- یعنی خاتمه مو په ایمان او په نیک عمل باندے اوشی -

فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّیْ لَآ اُضِیْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْکُمْ

بیا قبوله کړه د دوی دعا د دوی رب چه زهٔ نهٔ ضائع کوم محنت د محنت کونکی ستاسو نه

مِّنْ ذَکَرٍ اَوْ اُنْثٰی ۚ بَعْضُکُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِیْنَ هَاجَرُوْا

سړے وی او که ښځه - تاسو یو بل کښے یئ - بیا هغه خلق چه هجرت ئے اوکړو

وَاُخْرِجُوْا مِنْ دِیَارِهِمْ وَاُوْذُوْا فِیْ سَبِیْلِیْ وَقٰتَلُوْا وَ

او اوویستلے شو د خپلو کورونو نه- او ازار کړے شو ځما په لاره کښے او او جنګیدل او

قُتِلُوْا لَاُکَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَیِّاٰتِهِمْ وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ

قتل کړے شو خامخا به لرے کړمه د دوی نه بدئ د دوی او داخل به کړم دوی لره باغونو ته

تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ

چه بهیږی به لاندے ترے نهرونه - دا بدله ده د الله د طرف نه- او د الله

عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴿۱۹۵﴾ لَا یَغُرَّنَّکَ تَقَلُّبُ الَّذِیْنَ

سره ده غوره بدله - تاسو دے دوکه نه کړی ګرځیدل

كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ﴿۱۹۶﴾ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ قف ثُمَّ مَاْوٰىهُمْ

دکافرانو په ښهرونو کښې - دا فائده ده لږه شان - بیا د دوی ځائے

جَهَنَّمُ ط وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۹۷﴾ لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا

دوزخ دے - او ډیر بد ځائے دے - لیکن کوم خلق چه یریږی

رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ

د خپل رب نه د دوی د پاره باغونه دی چه بهیږی لاندے د هغې نه نهرونه همیشه بوی

فِيْهَا نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ط وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ﴿۱۹۸﴾

په دے کښې میلمستیا ده د الله د طرف نه - او څه چه د الله سره دی پس غوره دی د نیک بختو د پاره -

وَاِنَّ مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ

او په اهل کتابو کښې بعضے هغه دی چه ایمان راوړی په الله او څه چه نازل شوی دی

اِلَيْكُمْ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ لَا يَشْتَرُوْنَ

تاسو ته او څه چه نازل شوی دی دوی ته عاجزی کوی د الله په وړاندے نه اخلی

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ط اُولٰٓئِكَ لَهُمْ اَجْرُهُمْ

د الله په ایاتونو قیمت لږ - هغه دی چه د دوی د پاره مزدوری ده

عِنْدَ رَبِّهِمْ ط اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹۹﴾

د دوی د رب په نزد - بے شکه الله ژر حساب اخستونکے دے -

**د ایاتونو ترون** | په تیرو ایاتونو کښې د صالحانو مؤمنانو د خوږو دعاګانو ذکر وه - په ذکر شوی اول ایات کښې د دغې دعاګانو

دَ قبولیت ذکر دے او دَ دوی دَ نیکو عملو نو دَ لوئے اجر بیان دے - په دویم او دریم ایاتو کښے دا هدایت دے چه دَ کفارو په ظاهری عیش و عشرت مال او دولت او په دنیا کښے په ګرځید و راګرځید و دے مسلمانان نهٔ دوکه کیږی - ځکه چه دا دَ یو څو ورځو دی او بیا ئے همیشه عذاب دے -

په څلورم ایات کښے بیا دَ تقوٰی دارو مسلمانانو دَ پاره دَ جنت دَ لازوال نعمتونو وعده ده - په پنځم ایات کښے په خصوصیت سره دَ دغے مسلمانانو دَ لوئے اجر ذکر دے - کوم چه اول اهلِ کتاب وُو او بیا مسلمانان شو -

## لنډ تفسیر

پس قبول کړے دَ دوی دعاګانے لره دَ دوی رب په دے وجه سره (چه ځما جاری عادت دے چه) زهٔ دَ چا سړی (نیک) کار کوم چه پتا سو کښے کار کوی نکے وی نهٔ عبث کوم (دا سے چه بد لرځ ورنه کړے شی) (خواه هغه کار کونکے) سړے وی او که ښځه (دَ دواړو دَ پاره یو قانون دے ځکه چه) تاسو (دواړه) په خپل مینځ کښے دَ یو بل جزء یئ (په دے وجه حکم هم دَ دواړو یو شان دے پس هرکله چه دوی ایمان قبول کړه نیک عمل ئے او کړه او په دے نیک عمل چه کوم ثواب میلا ویږی دَ هغے دَ پاره ئے درخواست او کړه نو ما دَ دوی درخواست او دُعا دَ خپل جاری عادت په مطابق منظور کړه' او هرکله چه مونږ په ایمان بالله واسے فائدے ورکوؤ) نو کوم خلقو چه (دَ ایمان سره نور سخت عملونه هم او کړه لکه هجرت یعنی) وطن ئے پاتے کړو او (دغه هم په خند اخوشحالئ، دَ سیل صفا دَ پاره نه بلکه داسے چه) دَ خپلو کورونو نه (ئے په تنګولو) او وییستلے شو او دَ دُ نه علاوه قسم قسم) تکلیفونه ورکړے شو (او دا خبرے یعنی هجرت او دَ وطن نه ویستل او مختلف قسم آزارونه تول) ځما په لاره کښے (یعنی ځما دَ دین په سبب دوی ته دا پیغ شو او دا ټول دوی برداشت کړه) او (دَ دینه سوا دوی دا کار او کړه چه) جهاد ئے (هم) او کړه او (ډیر په دوی کښے) شهیدان (هم) شو (او دَ آخره پورے دَ جهاد نه واپس نه شو نو په واسے محنتی کارونو با ندے به فائدے او نعمتونه ولے نه ملاو شی) ځامخا به دَ دے خلقو ټول خطاګانے (کوم چه ځما دَ حقو نو متعلق تو ے شوی دی)

به معاف کړم او ځاځاینه به ورکړم (دجنت) داسې باغونو ته داخل کړم چه د ځملونو لاندې به ئې نهرونه بهیدی دا بدله به ميلاو یږي د الله د طرف نه او د الله سره ریعنې دهغه په قبضه د قدرت کښې) ښهٔ بدله ده ( په ذکر شوؤ ایاتونو کښې د مسلمانانو د تکلیفونو بیان او د دوی نیک انجام ذکر کړو. اوس وړاندې د کافرانو د عیش او آرام او د دوی د بد انجام ذکر کوي چه د مسلمانانو تسلی اوشي او د بدعملو خلقو اصلاح او د توبې توفیق اوشي)

لَا يَغُرَّنَّكَ: (اې طالبه د حق) تا لوه دې ونه کړي د کافرانو د کسبِ معاش یا د سیلونو د پاره) ګرځیدل راګرځیدل په غلطئ کښې وانه اچوي دا یو څو ورځې بهار دې رڅکه چه د مرګ سره به د دوی نوم نښنه هم پاتې نه شي او) بیا د دوی ځکانړ (د هیشه د پاره) به دوزخ وي او دغه ډیر بد آرام ځائې دې لیکن (په دوی کښې هم) کوم خلق چه د خدائې نه یریږي (او مسلمانان او فرمانبردارشي) د دوی د پاره جنتي باغونه دي چه (د ځملونو) لاندې به ئې نهرونه بهیږي دوی به په دې (باغونو) کښې همیشه همیشه اوسي، دا به میلمستیا وي د الله د طرف نه او کوم څیزونه چه د خدائې سره دي (د کومو چه اوس ذکر او شه یعنې جنتي باغونه او نهرونه وغیره) دا د نیکو بندګانو د پاره په څو درجو غوره وي (د کفارو د دې څو ورځو عیشونو او خوشحالونه)

د دعاګانو د ذکر شوؤ ایاتونو نه اوّل د اهلِ کتابو د بد وخصلتونو او د دوی د عذاب او د بَدْ انجام لپسې ذکر وړاندې دې - وړاندې د هغې خلقو بیان دې کوم چه په اهلِ کتابو کښې مسلمانان او صالحان شو - په دې وجه د قرآن د عام عادت مطابق د بدعملو د بد وعملونو نه پس د نیکانو صفت دې)

وَإِنَّ مِنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ: او په یقین سره بعضې خلق په اهلِ کتابو کښې داسې هم شته چه په الله عقیده لري او د دې کتاب سره هم (عقیده لري) چه تاسو ته لیږلې شوې دې (یعنې قرآن) او د هغې کتاب سره هم (عقیده لري) چه دوی ته لیږلې شوې دې (یعنې تورات او انجیل - او د خدائې سره عقیده لري نو) په دې طور سره چه د الله تعالیٰ نه یریږي (په دې وجه په دې عقیده کښې د حدودو نه تجاوز نه کوي چه په الله د اولاد تهمت او لګوي یا په احکامو

کښې دَ ځانه جوړ کړی او دَ تورات او انجیل سره چه کومه عقیده لری نو په دې شان سره چه) دَ الله تعالیٰ دَ آیا تونو په مقابله کښې (دَ دنیا) کم حقیقته معاوضه نه اخلی دې خلقو ته به دَ دوی نیک عوض ملاؤشی دَ دوی دَ پروردګار سره راو په دې کښې به څۀ وخت هم او نه لګی ځکه چه) بې شکه الله تعالیٰ به ډیر زر حساب (کتاب) اوکړی (او دَ حساب کتاب کولو سره به دَ ټولو ورکول اغستل بے باق کړی - یعنے ختم به کړی)-

## مَعْلُومَاتْ اَوْ مَسْئلے

په هجرت او شهادت سره ټول ګناهونه معاف کیږی، لیکن دَ قرض وغیره حقوق العبادو دَ معافئ وعده نیشتے

لَنُکَفِّرَنَّ عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ : دَ لنډه تفسیرلاندې دا قید لګولے شوے دے چه دَ الله په حقوقو کښې چه کومے کوتاهئ اوګناه شوے وی

هغه به معاف شی- دَ دے وجه داده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم په حدیث کښې دَ قرض استثنیٰ بیان کړے ده- دَ دے دَ معافئ طریقه داده، چه په خپله یا دَ دۀ وارث دغه حقو نه ادا کړی یائے معاف کړی- او که په چا بانـدے الله تعالیٰ خاص فضل اوکړی او دَ حق خاوندان دَ دۀ نه راضی کړی او معاف ئے کړی نو دا بله خبره ده- او دَ بعضو سره به داسے هم اوشی -

---

يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا وَصَابِرُوْا وَرَابِطُوْا

اے ایماندارو صبر کوئ او په مقابله کښے مضبوط اوسئ او ډیو ستادسئ

وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۲۰۰﴾ ۲۰ ع ۱۱ ۱۱

او یره کوئ دَ الله نه چه تاسو خپل مراد بیا موميّ -

دَ آیاتونو تړون

دا دَ سورت آلِ عمران آخری آیات دے چه مسلمانانو ته په یو څو اهمو وصیتونو باندے مشتمل دے، ګویا دَ پوره سورة

خلاصه یعنې نچوړ دے۔

## لنډ تفسیر

اے ایمانداروں (په تکلیفونو) په خپله صبر کوئ او (هرکله چه د کفارو سره مقابله وی نو) په مقابله کښې صبر کوئ او (چه احتمال د جنګ وی نو) د مقابلے دپاره تیار اوسئ او (په هرحال کښې) د الله تعالیٰ نه ډیره کوئ (چه د شرعی حدونه اوُنه اوُړئ) د دے دپاره چه تاسو پوره کامیاب شئ (په اخرت کښې لازمی او خامخا او بعضے وخت په دنیا کښې هم)۔

## معلومات او مسئلے

په دے ایات کښې مسلمانانو ته د درے څیزونو وصیت شوے دے۔ صبر، مصابره او مرابطه او څلورم شے تقویٰ ده چه د دے درے واړو سره لازمه ده۔

د: صبر: لفظی معنیٰ بنده وَل او تړل دی۔ او د قرآن او سنّت په اصطلاح کښې نفس لره په هغه څیزونو باندے چه نفس ئې نه غواړی برقرار ساتلو ته صبر وائی۔ او د دے درے قسمونه دی:

اوّل، صبر په طاعاتو: یعنی د کومو کارونو چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول صلے الله علیه وسلم حکم کړے دے د دے پابندی کول اګرکه په نفس باندے هرڅومره ګرانه وی۔

دوېم، صبر د ګناه نه: یعنی د کومو څیزونو نه چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول صلے الله علیه وسلم منع فرمائیلے ده۔ دغه که نفس ته هرڅومره خوښ او خوندناک وی خو نفس د دے نه منع کول۔

دریم، صبر په مصیبتونو: یعنی په مصیبت او تکلیف باندے صبر کول، د حد نه زیات نهٔ پریشانه کیدل، او توله تکلیف او راحت د الله تعالیٰ د طرف نه ګنړل، نفس بے قابو کیدلو ته نهٔ پریښودل۔

مصابرت: د ا لفظ د صبر نه اغستے شوے دے د دے معنیٰ ده که د دُشمن

په مقابله کښې ثابت قدم پاتې کيدل۔

مرابطه: دا لفظ د ربط نه جوړ دے۔ چه اصل معنی ئې ده تړل۔ او په دے ځه سره د: رباط: او: مرابطه: معنی ده اسونه تړل او د جنګ د پاره ئې تیاره ول۔ په قرآن شریف کښې په دے معنیٰ سره راغلے دے: وَمِنْ رِّبَاطِ الْخَيْلِ: د قرآن او حدیث په اصطلاح کښې دا لفظ د دوه ؤ معنو د پاره استعمال شوے دے:

اول د اسلامي سرحد ونو حفاظت چه د دے د پاره د جنګي اسونو او جنګي سامانونو سره او وسله تیار اوسیدل لازمي دي۔ د دے د پاره چه دشمن د اسلامي سرحد طرف ته د مخ کولو جرأت اُونه کړي۔

دويم د امامتي د مانځه د اسے پابندي چه د یو مانځه نه پس د دويم مانځه په انتظار کښې اوسیدل۔ دا دواړه ځیزونه په اسلام کښې ډیر مقبول عبادتونه دي چه فضائل ئې بے شماره دي۔ خو یو څو تړے دلته لیکلے شي:

رباط یعنې د اسلامي سرحد د حفاظت انتظام۔

د اسلامي سرحد ونو د حفاظت د پاره د جنګ د تیارۍ سره هلته قیام کولو ته رباط او مرابطه وئیلې شي۔ د دے دوه صورتونه دي، یو دا چه د څه جنګ خطره نه وي، سرحد په امن او محفوظ وي۔ محض د ائینده حفاظت په طور سره د دے نګراني کول دي۔ په داسے حالت کښې خو دا هم جائز دي چه بنده هلته د خپل اهل وعیال سره اوسي۔ او په کوګرو نده سره خپله ګذاره کوي۔ په دے حالت کښې که د ده اصل نیت د سرحد حفاظت وي نو هلته اوسیدل او کسب معاش د دے تابع دي۔ نو دے سړي ته به هم د رباط في سبیل الله ثواب میلاویږي، خواه که چرته هم جنګ اونه کړي لیکن د چا چه اصل نیت د سرحد حفاظت نه وي بلکه خپله ګذاره ئې مقصود وي او اتفاقي طور په کښې د سرحد حفاظت ته هم نوبت اورسي نو دا سړے به مرابط في سبیل الله نه وي۔

دويم صورت دا دے چه په سرحد د دشمن د حملے خطره وي۔ نو په داسے حالت کښې ښځوا و بچو لره هلته ساتل ټهیک نه دي صرف هغه خلق به اُوسي

به او سی چه د دشمن مقابله کولے شی (قرطبی)

په دے دواړو صورتونو کښے د رباط فضیلتونه بے شماره دی - په صحیح بخاری کښے د حضرت سهل بن سعد ساعدیؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه: د الله په لاره کښے یوه ورځ رباط د ټولے دُنیا او ما فیها نه غوره دے؛ او په صحیح مسلم کښے په روایت د سلمان ذکر دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه: یوه شپه ورځ رباط د یوے میاشتے د پرلپسے روژو او د ټولے شپے د عبادت نه غوره دے او که دے په دے حال کښے مړ شی نو د دهٔ دا د رباط ثواب به روزانه د همیشه د پاره جاری وی او د الله تعالیٰ د طرف نه به دهٔ ته رزق جاری وی او دے به د شیطان نه په امن او محفوظ وی۔

او ابو داؤد په روایت د فضالہ بن عبید نقل کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه: د هر یو مړکید و نکی عمل د دهٔ د مرګ سره ختم شی، بغیر د مرابط نه چه د دهٔ عمل د قیامته پورے په مخه زیاتیږی او په قبر کښے د سوال جواب اغستو نکو نه په امن او محفوظ وی؛ .

د دے روایتونو نه معلومه شوه چه د رباط عمل د هرے صدقے جاریه نه زیات او غوره دے، ځکه چه د صدقے جاریے ثواب خو تر هغه وخته پورے جاری وی ترڅو چه د دهٔ د صدقه شوی مکان، زمکے، یا کتابو نه چه دهٔ تصنیف کړی وی یائے وقف کړی وی یا نورو داسے څیزونو نه خلق فائدہ اخلی، هر کله چه دا فائده اغستل بند شی نو ثواب هم بند شی - لیکن د مرابط فی سبیل الله ثواب تر قیامته پورے بند یدونکے نه وی - وجه دا ده چه ټول مسلمانان هله نیک عملونه کولے شی او نیکو ته فارغ وی چه دوی د دشمن د حملو نه محفوظ وی - نو د یو مرابط عمل د ټولو مسلمانانو د نیکو عملونو سبب جوړیږی - د دے وجه نه تر قیامته پورے د دهٔ د رباط د عمل ثواب به هم جاری وی - او د دینه علاوه دهٔ چه څومره نیک کارونه په دنیا کښے کول د دے ثواب به هم بغیر د دهٔ د کولو نه اوس جاری وی - لکه چه په ابن ماجه کښے په صحیح سند سره د ابو هریرهؓ نه نقل دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

مَنْ مَاتَ مُرَابِطًا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ أُجْرِيَ عَلَيْهِ أَجْرُ عَمَلِهِ الصَّالِحِ الَّذِيْ كَانَ يَعْمَلُهُ وَأُجْرِيَ عَلَيْهِ رِزْقُهُ وَأَمِنَ مِنَ الْفَتَّانِ وَبَعَثَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اٰمِنًا مِّنَ الْفَزَعِ -

(از تفسیر قرطبی)

"کوم سړے چه په حالت دَرباط کښې مړ شي نو دهٔ چه کوم نیک عمل په دنیا کښې کاوه دَدغې ټولو عملونو ثواب به برابر جاري وي او دَدهٔ رزق به هم جاري وي او دَ شیطان نه دیادَ قبردَ سوال جواب نه) به محفوظ وي، او دَ قیامت په ورځ به الله تعالیٰ دهٔ لره داسې مطمئن پورته کړي چه دَ قیامت هیڅ یَره ترهَه به پرې نه وي"

په دے روایت کښې چه کوم فضیلت ته ذکر دی په دے کښې شرط دا دے چه په حالت دَرباط کښې دَ دهٔ مرګ راشي مګر دَ بعضې نورو روایتونو نه معلومیږي چه که دے ژوندے هم خپل اهل وعیال ته واپس شي خو دا ثواب به بیا هم جاري وي۔

دَ حضرت ابي بن کعبؓ نه روایت دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه: دَ مسلمانانو دَ کمزورسرحد حفاظت په اخلاص سره یوه ورځ، دَ رمضان نه علاوه په نورو روژو کښې دَ کولو ثواب دَ سل کاله مسلسل روژو او دَ شپې دَ عبادت نه غوره دے، او په رمضان کښې یوه ورځ رباط غوره او اعلیٰ دے دَ زرو کلونو دَ روژو او شپې عبادتونو نه (په دے لفظ کښې راوي دَ څهٔ تردد اظهار کړے دے) بیائے او فرمائیل او که الله تعالیٰ دے صحیح سالم خپل اهل وعیال ته واپس کړو نو دَ زرو کالو پورے به دَ دهٔ څهٔ ګناه نه شي لیکلے۔ او نیکئ به ئے لیکلے شي او دَ دهٔ دَ رباط دَ عمل اجر به دَ قیامته پورے جاري وي (قرطبی)

دَ جماعت دَ مانځهٔ پابندي دَ یو مانځهٔ نه دَ بل مانځهٔ په انتظار کښې کیناستل هم رباط في سبیل الله دے

دَ ابو سلمه بن عبد الرحمانؓ نه روایت دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه زهٔ تاسو ته هغهٔ شے بنائم په کوم چه الله تعالیٰ ګناهونه معاف کوي او ستاسو درجې پرے اوچتوي هغه څیز ونه دادي: اودس په مکمل طور سره کول سره دَ دے چه دَ یخنیٔ یا دَ څهٔ زخم دَرد وغیره په سبب سره اللهٔ دَ اودس اینخل ګران وي، او جمات طرف ته ډیر تلل، او دَ یو مانځهٔ نه پس دَ بل مانځهٔ انتظار کول، بیائے او فرمائیل: ذٰلِکُمُ الرِّبَاطُ: (یعنې دا رباط في سبیل الله دے) -

امام قرطبی دے لره دَ نقل کولو نه پس فرمائیلی دی چه دَ دے حدیث په بناسره امید دے چه کوم سړے دَ یو مانځه نه پس دَ بل مانځه انتظار په پابندئ سره کوی دهٔ لره به هم الله تعالیٰ هغه لوئے ثواب ورکړی کوم چه دَ رِباط فی سبیل الله دَ پاره په احادیثو کښے ذکر دے۔

**فائده**:- په دے آیات کښے اول خو مسلمانانو ته دَ صَبر حکم ورکړے شوے دے چه په هر وخت او په هر حال او په هر ځائے کښے کیدے شی۔ او دَ دے تفصیل بره بیان شوے دے۔ دویم حکم دَ مصابره دے چه دَ کفارو سره دَ مقابلے او جنګ په وخت کښے وی۔ دریم حکم دَ مرابطه دے، چه دَ کفارو سره دَ مقابلے دَ احتمال او خطرے په وخت کښے وی۔ او دَ ټولو نه په آخر کښے دَ تقوٰی حکم دے چه دَ دے ټولو کارونو روح او دَ عملونو دَ قبولتیا دارومدار دے پرے۔ دا ټوله مجموعه تقریبًا په ټولو شرعی احکامو باندے حاوی ده۔ الله تعالیٰ دے مونږ ټولو لره په دے احکامو باندے دَ عمل کولو کامل او پوره توفیق راکړی۔

وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ اَوَّلُهٗ وَاٰخِرُهٗ

# سورت آلِ عمران ختم شو

# سُوْرَةُ النِّسَآءِ

سُوْرَةُ النِّسَآءِ مَدَنِيَّةٌ وَّهِيَ مِائَةٌ وَّسَبْعٌ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّاَرْبَعَةٌ وَّعِشْرُوْنَ رُكُوْعًا

سورة نسآء په مدینه کښې نازل شوې ده او په دې کښې یو سل او اوویا آیاتونه دي او څلیر ویشت رکوع گانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ○

شروع کوم د الله په نوم سره چه بے حده مهربان نهایت رحم والا دے

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ

اے خلقو! ویره کوئ د خپل رب نه چا چه پیدا کړه تاسو لره د یو نفس نه

وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا

او هغه پیدا کړه د هغه جوړا (یعنی بی بی) او خوارهٔ ئے کړه د دے دواړو نه سړی ډیر

وَّنِسَآءً ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ؕ

او ښځې - او ویره کوئ د الله نه د چا په واسطه چه سوال کوئ په خپل مینځ کښې او خبردار اوسئ د خپلوانو

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ① وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ

بے شکه الله په تاسو باندے نګهبان دے - او ورکوئ یتیمانو ته د دوی مالونه

وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ ۪ وَلَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَهُمْ

او مه بدلوئ خراب مال په ښهٔ مال سره - او مه خورئ د دوی مالونه

اِلٰٓى اَمْوَالِكُمْ ؕ اِنَّهٗ كَانَ حُوْبًا كَبِيْرًا ۝۲

دَ خپلو مالونو سره - دا دے ډیر لوئے وبال -

**دَ آیاتو نوا او سورت تړون**

دَ سورت آل عمران آخری آیات په تقوٰی ختم شوی دی، او دا سورت هم دَ دغے تقوٰی دَ حکم نه شروع کیږی، په تیر سورت کښے دَ بعضے غزاګانو، او دَ مخالفینو سره دَ سلوک کولو او په غزاګانو کښے دَ غنیمت دَ مال په لاس راتلو کښے او په دے مال کښے دَ خیانت کولو بندوالے او دَ بعضے نورو کارونو ذکر وُه - دَ دے سورت په شروع کښے دَ خپلوانو سره دَ سلوک کولو یعنے دَ بندګانو دَ حقونو متعلق احکام دی - مثلاً دَ یتیمانو حقونه دَ رشته دارو، کونډو، وغیره حقونه - لیکن حقونه څۀ داسے دی چه دَ قانون په ضابطو کښے راځی او دَ هغے اداکول دَ قانون په زور کولے شی، لکه عام معاملے اَغستل خرڅول دَ اِجارے مزدورئی په ذریعه پیدا شوی حقونه، چه دَ یو بل په مینځ کښے په معاهده او صلح سره مقرر کولے شی - که یو فریق دَ مقرر شوُو حقونو په ادا کولو کښے کوتاهی او کړی نو دَ حکومت په زور ترے اغستے شی - لیکن اولاد، مور و پلار، خاوند ښځه، یتیمانان بچی، او نور رشته داران او دَ دوی په مینځ کښے حقونه چه په یو بل باندے عائد کیږی، دَ دوی دَ ادا کولو وار صدار، په ادب احترام، زړۀ ساتلو، همدردئی، او دَ زړۀ په خیرخواهئ باندے دے - او دا داسے څیز و نه دی چه په څۀ تول کښے وزن کولے هم نه شی، او دَ معاهد و په ذریعه ئے هم پوره تعین ګران دے - په دے وجه دَ دے دَ ادا کولو دَ پاره بغیر دَ خدائے دَ یرے نه او دَ آخرت دَ یرے نه بله ذریعه نیشتے چه دَ دینه تعبیر په تقوٰی سره کولے شی - او په حقیقت کښے دَ تقوٰی دا طاقت دَ حکومت او قانون دَ طاقت نه ډیر زیات دے - په دے وجه ئے دا سورت په امر دَ تقوٰی سره شروع کړه او ارشاد اُوشو:

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ: یعنی اے خلقو دَ خپل رب دَ مخالفت نه اویریږئ او شاید دا وجه ده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به دا آیات دَ نکاح په خطبه کښے لوستلو - دَ نکاح په خطبه کښے دَ دے لوستل سنت دی.

په دے کښے دا خبره هم د کتو قابله ده چه خطاب ئے په: يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ: سره فرما ئیلے دے - چه ټول بنی آدم په کښے شامل دی سړی دی او که ښځے، او د قرآن د نزول د وخت وی یا راتلونکی د قیامته پورے پیدا کیدونکی - بیا ئے د حکم د: اِتَّقُوْا: سره د الله تعالیٰ په غوره او پاکو نومونو کښے لفظ د: رَبّ: اختیار کړو - چه د تقوی د حکم علت او حکمت طرف ته ئے په کښے اشاره اوفرمائیله - چه کوم ذات چه ستا سو پرورش او پالنه کوی او د چا د ربوبیت د شان نښے نښانے چه انسان د خپل ژوند په هر څه کړئ او وخت کښے په ځان کښے سره وینی نو د ده مخالفت او سرکشی به څومره خطرناکه وی -

د دے سره ئے د رب تعالیٰ د یو خاص شان ذکر اوفرمایه چه ده په خپل حکمت او رحمت سره تاسو ټول پیدا کړئ - بیا د پیدا کولو او موجود کولو مختلف صورتونه کیدے شو - خو په دوی کښے ئے یو خاص صورت اختیار کړو چه ټول بنی آدم ئے د یو انسان یعنی حضرت آدم علیه السلام نه پیدا کړه ټول ئے د رورولئ او برادرئ په یو مضبوط مزی کښے اوتړل - د خدائے او د آخرت د یرے نه علاوه د دے رورولئ د رشتے هم دا تقاضا ده - چه د یو بل سره د همدردئ او خیرخواهئ حقونه پوره ادا کړے شی - او په انسانانو کښے د پورته خکته، نسلی، رنګ، ژبے غوره والی د شرافت معیار جوړ نه کړے شی. په دے وجه ئے اوفرمائیل :

اَلَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً : یعنی د خپل هغه پروردګار نه اویریږئ چا چه تاسو ټول د یو ذات آدمؑ نه داسے پیدا کړئ چه اول ئے د هغهٔ بی بی حضرت حوا پیدا کړه - بیا ئے د دے جوړے په ذریعه ډیر سړی او ښځے پیدا کړه -

غرض دا دے چه دا پوره آیات د هغے احکامو تمهید دے چه وړاندے په دے سورت کښے راځی - په دے تمهید کښے ئے یو طرف ته د رب العلمین حقونه څخ ته کړه او د دے د مخالفت نه ئے منع اوکړه، دویم طرف ته ئے ټولو بنی آدمو ته دا اوخوده چه تاسو د یو پلار اولاد یئ، په دوی کښے ئے په دے سره د محبت او د یو بل سره د همدردئ او خیرخواهئ جذبات راپیدا کړه، چه د خپلوانو

یتیمانو او ښځې خاوند په منځ کښې د حقونو اداکول په زړه سره اوشی۔

د دینه پس ئې بیا د: اِتَّقُوا اللّٰهَ: دوباره اعلان اوکړه او دا اعلان ئې په یو خاص عنوان سره اوفرمایه: وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِیْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ: یعنې د الله تعالیٰ نه اویریږئ د چا په نوم چه تاسو د نورو نه خپل حقونه طلب کوئ او د چا قسمونه چه نورو له ورکوئ خپل کارونه او مطلبونه پرې پوره کوئ په آخر کښې ئې اوفرمائیل: وَالْاَرْحَامَ: یعنې د خپلولۍ تعلقات خواه د پلار د طرف نه وی او که د مور د طرف نه، د دے په حفاظت او اداکولو کښې د کوتاهۍ کولو نه ځان اوساتئ۔

په دویم آیات کښې ئې د یتیم بچو د حقونو تاکید او د دوی د مالونو د حفاظت احکام دی۔ لنډ تفسیر د دے دواړو آیاتونو دا دے:

## لنډ تفسیر

اے خلقو! د خپل پروردگار (د مخالفت نه) اویریږئ چا چه تاسو د یو جاندار (یعنې آدم علیه السلام) نه پیدا کړے (ځکه چه د ټولو بنی آدمو اصل هم دے دے) او د دے جاندار نه د دهٔ جوړه (یعنې د دهٔ بی بی حواء لره) ئې پیدا کړه او (بیا) ئې د دے دواړو نه ډیر سړی او ښځې (په دنیا کښې) خواره کړه او (تاسو ته بیا بیا په تاکید سره وئیلے شی چه) تاسو د خدائے تعالیٰ نه اویریږئ د چا په نوم چه د یو بل نه (د خپلو حقونو) مطالبے کوئے (چه د دغې مطالبے حاصل دا دے چه تا سو ورته وایئ د خدائے نه اویریږه ځما حق راکړه پس هرکله چه نورو ته د خدائے د مخالفت یره ورانده کوئے نو معلومه شوه چه تاسو د حقهٔ نه یریدل ضرور بیجنئ نو تاسو هم اویریږئ) او (راقل خو د الله تعالیٰ د ټولو حکمونو د مخالفت نه ځان ساتل او یریدل ضروری دی، لیکن په دے مقام باندے یو حکم په خصوصیت سره ذکر کولے شی چه) د خپلولۍ (د حقوقو د ضائع کولو) نه هم اویریږئ په یقین سره الله تعالیٰ ستاسو د ټولو (د حالاتو خبر لری (که مخالفت اوکړئ نو د سزا لائق به شئ) او د کومو بچو چه پلار مړ شی د دوئ (ملکیتی) مال دوی ته رسوئ (یعنې د دوی په خرچ کښې ئې لګوئ) او (تر څو

چه ستاسو په قبضه کښې وي) تاسو (د دوي په مال کښې د شامل کولو د پاره د دوي) په ځای سره ناکاره شے مه بدلوئ (یعنی دا سے مکوئ چه د هغوئ د مال نه ښه شے واخلئ او ناکاره شے پکښې ملاؤ کړئ) او د دوي مال مه خورئ د خپلو مالونو د موجودګئ سره (البته هرکله چه ستاسو سره څه نه وي نو په قدر د حق د خدمت ترے د خپلے ګذارے د پاره اغستے شئ لکه چه وړاندے به راشي (وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا) دا سے کار کول (چه ناکاره شے د هغوي په مال کښې شاملول یا بے ضرورته د دوي د مال نه نفع اَغستل) لوئے ګناه دے (چه د دے د عذاب وعده وړاندے به راشي (اِنَّ الَّذِيْنَ يَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى الخ) -

# مَعلُومَاتُ اَوْمَسَئلے

دا اوّلنے حکم دے چه د تمهید نه پس ئے ارشاد فرمائیلے دے او د خپلوئ د تولو تعلقاتو په ساتنه باندے حاوی او شامل دے -

**د صله رحمئ معنی او د دے فضیلتونه** لفظ د اَرحام د رَحِم جمع ده، رَحِم بچې دانئ ته وائی په کوم کښې چه د پیدا کید ونه اول د مور په کیډه کښې بچے اوسی چونکه د خپلوئ ذریعه دا رَحِم دے - په دے وجه د دے قسم تعلقاتو لره ساتنے ته "صلۂ رحمی" او د دے خپلوئ په بنیاد باندے چه کوم تعلقات پیدا شوی وی د دے تعلقاتو نۀ ساتلو او بے اتفاقئ کولو ته "قطع رحمی" وائی -

په احادیثو کښې په صله رحمئ دیر زور ورکړے شوے دے ارشاد نبوی دے:

| | |
|---|---|
| مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُّبْسَطَ لَهٗ فِيْ رِزْقِهٖ وَيُنْسَأَ لَهٗ فِيْ اَثَرِهٖ فَلْيَصِلْ رَحِمَهٗ - (مشکوٰة ص ۴۱۹) | "یعنی د چا چه دا خبره خوښه وی چه د ده په رزق کښې فراخی پیدا شی او عمر ئے اوګد شی نو ده لره په کار دی چه صله رحمی ساتی" |

د دے حدیث نه د صلۂ رحمئ دوه اهم فائدے معلومے شوے چه د آخرت ثواب خو ئے دے دے، په دنیا کښې هم د صلۂ رحمئ دا فائده ده، چه د رزق تنګی به ترے لرے شی او په عمر کښې به ئے برکت راشي -

عبدالله بن سلام رض فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم هرکله مدینے منورے ته تشریف راوړو او زۀ حاضر شوم نو د دوئ هغه مبارک کلمات چه د تولو نه

اول ځما په غوږ دا خبره ولګیده - دوی او فرمائیل :

| | |
|---|---|
| يَآ اَيُّهَا النَّاسُ اَفْشُوا السَّلاَمَ وَاَطْعِمُوا الطَّعَامَ وَصِلُوا الْاَرْحَامَ وَصَلُّوْا بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلاَمٍ - (مشکوٰة ص ۱۰۸) | "اے خلقو! یو بل ته چیر سلام کوئ د الله د رضا کولو د پاره خلقو ته خوراک ورکوئ صلہ رحمي ساتئ او په داسے وخت کښے مونځ ته ودرېږئ کله چه عام خلق خوب کوي یا د ساتي په دے کارونو د عمل کولو په وجه به |

تاسو په حفاظت او سلامتۍ سره بغیر د څه بندیزه جنت ته اورسئ "

په یو بل حدیث کښے ذکر دے چه د مؤمنانو مور حضرت میمونه رضی الله عنها خپله یوه وینځه آزاده کړے وه، هر کله چه د دے ذکر ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته اوکړو نو دوی ورته او فرمائیل :

| | |
|---|---|
| لَوْ اَعْطَيْتِهَا اَخْوَالَكِ كَانَ اَعْظَمَ لِاَجْرِكِ - (مشکوٰة ص ۱۷۱) | "که تا خپل ماما له ورکړے وے نو زیات ثواب به دے شوے وه" |

په اسلام کښے د غلام وینځے د آزادولو ډیر ترغیب دے او د دے د ثواب په کارونو کښے د تولو نه لوئے او غوره ثواب مقرر کړے دے - لیکن سره د دے د صله رحمی ثواب او مرتبه د دے نه په هر حال اوچته ده -

په دے مضمون سره یو بل روایت دے حضور فرمائي :

| | |
|---|---|
| اَلصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِيْنِ صَدَقَةٌ وَهِيَ عَلٰى ذِي الرَّحِمِ ثِنْتَانِ صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ - (مشکوٰة ص ۱۷۱) | "یعنې د یو محتاج مسکین ته ورکول صرف صدقه ده او د خپل نزدے خپلوانو ته ورکول په دوه کارونو باندے مشتمله ده، یوه صدقه او بله صله رحمی" |

صرف د مصرف په بدلولو سره ثواب دو چنده ملاؤ شو -

د دے په مقابله کښے چه د قطع رحمی په حق کښے کوم د عذاب سخته وعدے د احادیثو په روایتونو کښے ذکر دي د دے اندازه د دوه احادیثو نه په ښه شان سره کیدے شي - د حضور ارشاد دے :

| | |
|---|---|
| (۱) لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعُ (رِحْمٍ) - (مشکوٰة ص ۴۱۹) | "کوم سړے چه د خپلوانو د حقونو ساتنه نه کوي هغه به جنت ته لاړ نه شي" |

| | |
|---|---|
| (۲) لَا تَنْزِلُ الرَّحْمَةُ عَلٰى قَوْمٍ فِيْهِ قَاطِعُ رَحِمٍ - (مشکوٰة ص ۴۲۰) | "په هغه قوم د الله رحمت نه نازلیږی په کوم کښې چه قطع رحمی کوونکے موجود وی" |

په اخر کښې بيا په زړه ورو کښې د حقونو د ادا کولو د جذبے پيدا کولو د پاره فرمائی :

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ۝ : يعنی الله تعالیٰ په تاسو نګران دے چه ستاسو د زړونو وارادو نه خبر دے - که هسے په رسمی طور سره د شرم د وجې نه په بے زړه توب سره څهٔ کار او شی لیکن د زړهٔ جذبه او د خدمت قربانی پکښې نه وی نو هغه د قبليدو قابل نه دے - د دے نه د الله تعالیٰ نه د يرے وجه هم معلومه شوه چه هغه هميشه په مونږ باندے نګران دے - د قرآن کريم دا عامه قاعده ده - چه قانون محض د دُنيا د حکومتونو د قانون په شان نهٔ بيانوی بلکه د تربيت او شفقت په انداز کښې ئے بيانوی - د قانون د بيان سره سره د ذهنونو او د زړونو تربيت هم کوی -

**د يتيمانانو حقونه او د دوی د مالونو حفاظت**

په اولنی ايات کښې مطلق د خپلوانو حفاظت او د دے د حقونو د ادا کولو تاکيد په عام انداز کښے د بيانولو نه پس په دويم ايات کښې د يتيمانو د مالونو د حفاظت حکم او په دے کښې د څهٔ قسم خوړد بُرد کولو نه د منع بيان دے - ځکه چه د يتيم بچی ساتونکے او ولی عام طور سره د دهٔ څوک رشته دار وی په دے وجه د دے تعلق هم د خپلولئ د حق ادا کولو سره دے -

په اول جمله کښې ارشاد دے : وَاٰتُوا الْيَتٰمٰۤى اَمْوَالَهُمْ : د دے ترجمه داده چه د يتيمانو مال دوی ته رسوئے - د يتيم لفظی معنیٰ "يواځے او يوتن" ده - په دے وجه کومه ملغلره چه په سيپئ کښې يواځے يوه وی هغے ته "دُرِّ يتيم" وائی - د شرع په اصطلاح کښے هغه بچی ته يتيم وائی چه پلار ئے مړشوے وی - او په څارو و کښې يتيم هغهٔ ته و ئيلے شی چه مور ئے مړه وی - (قاموس) د بالغ کيدو نه پس په شرعی اصطلاح کښې دهٔ ته يتيم نهٔ شی وئيلے لکه چه په حديث شريف کښې ئے وضاحت دے : لَا يُتْمَ بَعْدَ اِحْتِلَامٍ : يعنی د بلوغت نه پس يتيمی باقی

نهٔ پاتې کیږی (مشکوٰة شریف، ص ۲۸۴)

دَ یتیم بچو په ملکیت کښې که څهٔ مال وی، چه دوی ته چا بخلې وی یا ئې په څهٔ میراث کښې رسیدلې وی، نو دَ یتیم سره دَ دهٔ دَ مال حفاظت هم دَ هغې سړی په ذمه دے چه دَ یتیم وَلی دے - خواه دا وَلی ورلره مړ پلار مقرر کړے وی یا ورلره حکومت څوک ولی مقرر کړے وی - په ولی باندے لازمه ده چه دَ یتیم ضروری خرچونه به دَ دهٔ دَ مال نه پوره کوی - لیکن مال به ورله دَ بالغ کیدو نه اول په قبضه کښې نه ورکوی، ځکه چه دے نا پوهه بچے وی هسے نه چه برباد ئې کړی - نو دَ ایات په دے جُمله کښې چه ئې کوم ارشاد فرمائیلے دے چه دَ یتیمانو مال دوی ته رسوئې - دَ دے وضاحت مخ ته په پنځم آیات کښې راځی - چه په هغې کښې ئې خودلے ده' چه دَ دوی مال دوی ته هغه وخت ورکوئ هر کله چه او وینئ چه دوی بالغان شو - او په دوی کښې دَ خپلے نفع او نقصان او ښهٔ بد تمیز پیدا شی -

نو په دے وجه په دے آیات کښې دَ یتیمانو مال دوی ته دَ رسولو مطلب دا شو چه دَ دوی دَ مالونو حفاظت کوئ چه په خپل وخت دا مال دوی ته اُو رَسَولے شی - دَ دے نه علاوه په دے جُمله کښې دے طرف ته هم اشاره ده چه دَ یتیم دَ وَلیٔ ذمواری صرف دومره نه ده چه دَ یتیم مال پخپله نهٔ خوری او نهٔ ئې ضائع کوی - بلکه دَ دهٔ دا هم فرض دی چه دَ دے حفاظت دا سے کوی چه دَ بالغ کیدو نه پس دَ دهٔ ته ملاؤ شی -

په دویمه جمله کښې ارشاد دے: وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيثَ بِالطَّيِّبِ؛ یعنې ښهٔ شے په ناکاره شی سره مه بدلوئ - بعضے خلقو به داسے کول چه دَ یتیم دَ مال شمار خو به ئې محفوظ سا ته مګر په دے کښې چه به کوم ښهٔ شے په نظر را تلو هغهٔ به ئې پخپله اَغستو او دَ دے په ځائې به ئې خپل خراب شے ایخودو - دَ ښے بیزے په ځائې خواره او ناجوړه بیزه دَ هغهٔ په بیزو کښې شاملوله - یا دَ کره پیسو په ځائې به ئې کوټه پیسے دَ هغهٔ په پیسو کښې ایخو دے - دا هم چونکه دَ یتیم په مال کښې خیانت دے - او دا هم ممکنه ده چه څوک به دا حیلے جوړه ولے چه ما خو دَ یتیم مال اَغِستے نه دے خو بدل کړے مې دے - په دے وجه قرآن کریم

به چې اګر سره دَ دے منع اوفرمائیله - په دے ممانعت کښے لکه څنګه چه داخله ده چه په خپل خراب شی بښهٔ شے واخلی دغه شان داهم پکښے داخله ده چه دَ یو بل سره سره داسے معامله اوکړی دَ بتادِلے چه په هغے کښے دَ یو یتیم بچی نقصان وی -

په دریمه جمله کښے ئے ارشاد اوفرمایه : وَلَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَهُمْ اِلٰٓى اَمْوَالِكُمْ :

یعنی دَ یتیمانو مال په خپل مال کښے دَ خوړلو دَپاره مه شریکوئے - ښکاره خبره ده چه دَ دے مقصد دَ یتیم مال په ناجائز طور باندے دَ خوړلو ممانعت دے خواه په خپل مال کښے شریک کړی او ئے خوری، یا ئے جُدا کیدی او ئے خوری - لیکن په عام طور سره کیږی داسے چه دَ یتیم مال په خپل مال کښے شریک کړی بیا ئے هم خوری او په یتیم هم خوره وی - په دے وجه دَ ځان نه حساب نه کولو په وجه سره یو دیندار او دَ شریعت پابند سړے هم دوکه کیدے شی چه په دے کښے څهٔ ګناه نیشته - په دے وجه ئے په خاص طور سره په خپل مال کښے دَ شریک خوړه لو حرمت بیان کړه - او په دے ئے خبردار ے ورکړو چه یا خو به دَ یتیم مال بالکل جُدا ګدے او جُدا به یئے خرچ کوئے چه دَ څهٔ زیاتی یره په کښے پاتے نه شی یا به ئے یو ځائے ساتئ خو داسے حساب به کوئے چه ستاسو دا پوخ یقین وی چه دَ یتیم مال ستاسو په خپل ذاتی خرچ کښے رانهٔ شی - دَ دے تشریح دَ سورت بقره په اوویشتمه رکوع کښے تیره شوے ده، وَاللّٰهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ :

په دے بیان کښے ئے دے طرفته هم اشاره اوفرمائیله چه دَ یتیم په مال کښے خورد بُرد کولو ئے عام طور سره هغه خلق وی دَ چا سره چه خپل مال هم وی نو په دے عنوان سره ئے دوی ته عار (شرم) ورکړه ئے کړه چه خپل مال در سره شته او دَ یتیم مال خورئ دا خو مره دَ شرم خبره ده -

په آیات کښے دَ یتیم دَ مال خوړلو دَ ممانعت ذکر دے څکه چه دَ مال دَ ټولو نه لوئیه اهمه فائده خوړل دی، لیکن په محاوره کښے دَ مال هر قسم تصرف کولو ته خوړل وائی، خواه استعمال ئے کړی او که او ئے خوری - قرآن کریم هم دَ دے محاورے په وجه : لَا تَاْكُلُوْٓا : اوفرمایه - په دے کښے هر ناجائز تصرف کول داخل دی - نو په دے وجه دَ یتیم مال په هر ناجائزه طریقه خرچ کول حرام دی -

دا ایات په اخرې جمله کښې ئې ارشاد او فرمایه: اِنَّهٗ کَانَ حُوْبًا کَبِیْرًا؛ د حُوب لفظ په قول د ابن عباس رضه سره د حبشي ژبې لفظ دے، د دے معنیٰ ده لوئے ګناه په عربۍ ژبه کښې هم دا لفظ د دے معنیٰ د پاره وئیلے شي. معنیٰ ئې دا شوه چه د یتیم په مال کښې هر قسم ناجائز تصرف خواه د حفاظت د کمۍ په وجه وي یا د خراب شي د بدلولو په وجه سره وي، یا د خپل مال سره ئې د شریک خوړلو په وجه وي په هرحال سره دا تول لوئے ګناه دے، او د یتیم د مال خوړلو سخته وعده د عذاب د دے رکوع په اخر کښې راځي۔

---

وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِی الْیَتٰمٰی فَانْکِحُوْا مَا طَابَ

او که یرېږئ چه انصاف به او نه کړے شئ د یتیمانو جینکو په حق کښې نو نکاح کوئ کومې چه نورې

لَکُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰی وَ ثُلٰثَ وَرُبٰعَ ۚ فَاِنْ خِفْتُمْ

ښځې ستاسو خوښې شي دوه دوه، درے درے، څلور څلور، بیا که یرېږئ چه په

اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَکَتْ اَیْمَانُکُمْ

دوي کښې به انصاف او نه کړے شئ نو یو نکاح کوئ یا وینځه چه ستاسو خپل مال دے۔

ذٰلِکَ اَدْنٰۤی اَلَّا تَعُوْلُوْا ﴿۳﴾

په دے کښې امید دے چه یو طرف ته به کاږه نه شئ۔

## لنډ تفسیر

**دا ایاتونو تړون** په تیرو ایات کښې د یتیمانانو د حق ضائع کولو ممانعت وه چه او لیاؤ لره د دوی مال خرڅ بوږد کول حرام دی۔ په دے ایات کښې هم په بل عنوان سره د دے حکم دوباره بیان دے۔ چه د کومو

خلقو په ساتنه کښې یتیمانې جینکۍ وی، دَ دوی سره به په دے خیال نکاح نه کوئے
چه دوی ستا سو دَ اختیار دی څو مره مهر چه ستا سو خوښی وی ورکوے به ورلره
او کوم مالونه چه دَ دوی په قبضه کښې دی هغۀ به هم ستا سو په قبضه کښې راشی دَ
دے طمع او لالچ په وجه به دَ دوی سره نکاح نه کوئے۔
غرض دا دے چه دَ قرآن کریم دے آیات دا خبره په ډاګه ښکاره کړه چه
دَ یتیم دَمال قبضه کولو دَ پاره هره حیله او بهانه جائز نه ده۔ او دا او لیاؤ
فرض دی چه ښځۀ په ایمانداریٔ سره دَ دوی دَ حقونو حفاظت کوی نو
اوږے فرمائیل:
او که یتا سو کښې دَ دے خبرے احتمال (رهم) وَه (او یقین وَه) چه تا سو به
دَ یتیمانو جینکو په باره کښې (دَ مهر په نسبت کښې) انصاف او نه کړے شئ نو دَ دوی
سره نکاح مکوئے بلکه) نورو (حلالو) ښځو سره کوے چه تاسو ته دَ خپل ځۀ
مصلحت په اعتبار سره) غوره وی نکاح کوئے (ځکه چه دوی مجبوره نه دی، په
آزادیٔ سره خپله رضا ښکاره کولے شی، او دا نکاح به پَدے قید سره وی چه
څوک دَ یوے ښځے نه زیاتے کول غواړی نو په دے صورتونو کښې دے یو صورت
وی، یو صورت دا دے چه یو یو سړے) دے دَ دوه دوه ښځو سره (نکاح اوکړی)
او (بل صورت دا دے چه یو یو سړے) دے دَ دریو دریو ښځو سره (نکاح اوکړی)
او (دریم صورت دا دے چه یو یو سړے) دے دَ څلورو څلورو ښځو سره (نکاح
اوکړی) پس که تاسو ته (غالب) احتمال وَه دَ دے چه (دَ څو بیبیانو په کولو سره)
عدل به او نه کړے شئ (بلکه دَ یوے بی بی واجب حقونه به ضائع شی) نو بیا په یوه بی بی
باندے بس کوئے (او که دَ یوے حقونه هم نه شئ ادا کولے نو) کومه وینځه (دَ شرعی
قاعدے مطابق) چه ستاسو په ملک کښې وی هغۀ بس ده په دے ذکر شوی کار کښې
(یعنی دَ یوے بی بی په نکاح کښې یا صرف په وینځه باندے په بس کولو کښې) دَ زیاتی او
بے انصافی) نه کیدو توقع ډیره نزدے ده (ځکه چه په یو صورت کښې خو دَ دوی څه
مقرر تعداد نیشته چه برابری کول په کښې لازم شی او په دویم صورت کښې ئے دَ بی بی دَ حقونو
نه حقونه هم کم دی، مثلاً مهر ئے نیشته، دَ کور والی حقونه ئے نیشته نو الله لِله
نوره هم کمه ده)۔

# معلومات او مسئلې

**دَ یتیمانو جینکو دَ حقوقو ضائع کولو بند بیز**

دَ جاهلیت په زمانه کښې چه دَ کومو خلقو په ولایت کښې به یتیمانې جینکۍ وے، نو کومے چه په شکل صورت کښې به ښې وے یا به دَ دوی په ملکیت کښې څۀ مال جائداد وه- نو و لیانو به ئے داسے کول چه یا به ئے ورسره پخپله نکاح کولوا و یا به ئے دَ خپل اولاد سره دَ دوی نکاح کولوا و په خپله رضا به ئے ورلوه دَ کم نه کم مهر مقرر کولو، او په خپل جوړ به ئے ورسره سلوک کولو، ځکه چه هم دے به ئے ولی او نګران وَه پلار به ئے نه وَه چه دَ حقوقو پوره نګرانی به ئے ورلوه کولے- او په خپله نګرانئ کښې ئے دَ دے په مناسب او غوره ځائے کښې نکاح کړے وے-

په صحیح بخاری کښې دَ حضرت عائشےؓ نه روایت دے چه دَ رسالتؐ په زمانه کښې یوه داسے واقعه راپیښه شوه چه دَ یوسړی په ولایت کښې یوه یتیمه جینئ وه- او دَ دۀ یو باغ وَه چه په هغۀ کښې ورسره داجینئ هم شریکه وه- دے سړی دَ دے یتیمے جینئ سره په خپله نکاح اوکړه، او په ځائے دَ دے چه دَ خپل طرفه ئے ورلره مهر ورکړے وے دَ دے دَ باغ هغه حصّه ئے هم پخپله قبضه کښې واغسته، په دے باندے دا آیات نازل شو: وَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تُقْسِطُوْا فِي الْيَتٰمٰى فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ: یعنې که ستاسو سره دا یره وی چه که دَ یتیمانو جینکو سره پخپله نکاح اوکړئ نو انصاف به او نه کړے شئ بلکه دَ دوی حق به ضائع شی، نو ستاسو دَ پاره نورے ښځے ډیرے دی په دوی کښې چه کومے ستاسو دَ پاره حلالے او ستاسو خوښے وی دَ هغوی سره نکاح اوکړئ-

**دَ نابالغے دَ نکاح مسئله**

په دے آیات کښې دَ یتمٰی نه مراد یتیمانے جینکۍ دی او دَ شرع په اصطلاح کښې یتیم هغه هلک او جینئ ته وئیلے شی چه لا بالغ شوی نه وی- نو په دے وجه دَ دے آیات نه دا هم ثابته شوه چه دَ یتیمے جینئ ولی ته دا اختیار هم دے چه دَ بلوغ نه اول په ورکوتوالی کښې دَ دے نکاح اوکړی البته چه دَ جینئ مصلحت او دَ آئنده دَ پاره دَ دے خیرخیګړه په کښې په نظر کښې اوساتلے شی- داسے نه چه لکه په ډیرو خاندانو کښې دا رواج دے

چه د لوئے جینئ نکاح د ورو کی هلک سره کوی نه د عمر څخه لحاظ ساتی او نۀ د هلک حالاتو او عادتو نو ته ګوری خو هم دغه سے نکاح ورلوه کوی -

او هغه بالغے جینکئ چه پلار ئے مړ وی اګر چه دوی بالغے او د خپل اختیار وی لیکن جینکئ د شرم او حیا په وجه با ندے که بالغ هم وی خو د خپل نکاح په معامله کښے پخپله څۀ نه شی ویئلے - وارثان او اولیان چه ور سره څۀ کوی دوی ئے قبلوی - نو په دے وجه د دوی په وارثانو دا هم لازمه ده چه د دوی د حقونو ضائع کولو نه ځان ساتی -

په هرحال په دے آیات کښے د یتیمانو جینکو د حقونو ساتلو حکم ذکر دے لیکن د عامو حکومتونو د قانون په شان ئے د دے د نافذ کولو ذمواری په حکومت د اچولو په ځائے پخپله عوامو ته ئے د خدائے تعالیٰ د ډیرے حواله ورکړه حکم ئے او کړه چه که تا سو ته په دوی کښے د بے انصافئ کولو خطره وی نو بیا د یتیمانو جینکو سره د واده خیال پرېږدئ - نورے ښځے ستاسو د پاره ډیرے دی د دوی سره نکاح کوئے -

د دے سره د حکومت د ځواکو هم دا فرض دی چه د دے ساتنلو نګرانی کوی - کوم ځائے چه حقونه ضائع کیږی نو د قانون په زور دے دغه حقونه ادا کوی -

| په قرآن کښے د ښځو ډیر والے او د اسلام نه په مخکښے قومونو کښے د دے رواج | د یوسړی د پاره ډیرے بیبیانے ساتل د اسلام نه وړاندے هم تقریبًا د دُنیا |
|---|---|

په ټولو مذهبونو کښے جائز ګنړلے شو - د عرب، هندوستان، ایران، مصر، بابل وغیره ملکونو کښے په هر قوم کښے د ښځو د ډیر والی رسم جاری وه - او د دے فطری ضرورتونو نه نن هم څوک انکار نه شی کوَلے - په حاضر دور کښے یورپ د خپلو مخوانو تیرو مشرانو نه خلاف د ډیرو ښځو ساتلو لره د نا جائز کولو کوشش او کړه، نو نتیجه ئے د بے نکاح لونړو ساتلو په صورت کښے را اوُوته - خو آخر بیا فطری قانون غالب شو او اوس هلته هوښیاران او حکیمان پخپله د دے رواج کولو په حق کښے دی - مسټر ډیون پورټ چه یو مشهور عیسائی فاضل دے د ډیرو ښځو ساتلو په حمایت کښے د انجیل د ډیرو آیاتونو نقل کولو نه پس لیکی؛

"په دے ایا تونو کښے دا موندے شی چه د ښځو ډیر والے صرف غوره شوے نه دے بلکه الله تعالیٰ په دے کښے خاص برکت ایښودے دے"۔

دغه شان پادری نکسن او جان ملټن او ایزک ټیلر په زوردارو الفاظو کښے د دے مرسته کړے ده، دغه شان د ویدک تعلیم بے حسابه ښځے جائزے ګنړی او د لسو لسو، دیارلس دیارلسو، او ویشتو او ویشتو ښځو په یو ځے د جمع کولو اجازت ترے معلومیږی۔

کوشش کوم چه په هندوانو کښے د تعظیم قابل وَلِی ګنړلے شی۔ د دوئ په سوونو بیبیانے وے۔ کوم سړے چه مذهب او پاکی امنی او حیا داری قائم ساتل غواړی او د زناکارئ لارے بندول غواړی د دوئ د پاره بل علاج نیشتے بغیر د ډیرو ښځو د اجازت ورکولو نه۔ په دے کښے د زناکارئ بند والے راځی۔ او د سړو په نسبت چه په کومو علاقو کښے ښځے ډیرے وی د دے هم علاج دے۔ که د دے اجازت ورَ نه کړے شی نو دا نه یوالو او پیشه ورو کسبی ښځو ډیر والے به جوړ شی۔ هم دا وجه ده چه په کومو قومونو کښے د زیاتو ښځو اجازت نیشتے په دوی کښے زنا ډیره ده۔ یورپی قومونو ته او ګورئ چه د دوی په ملکونو کښے په زیاتو ښځو پابندی ده لیکن د دوستانے په طور چه څومره ښځے سړی زنا کوی د دے پوره اجازت دے دا څومره د تماشے خبره ده چه نکاح منع دے او زنا جائز ده۔

غرض دا دے چه د اسلام نه وړاندے د ډیرو ښځو رسم بغیر د څه حد نه جاری وَه۔ د ملکونو او مذهبونو د تاریخ نه څومره معلومیږی یو مذهب او یو قانون هم په دے څهٔ حَدْ نه وَه لږه وَلے۔ نه یهود و نصارا وُو، نه هندوانو اریا وُو، او نهٔ پارسیانو۔

د اسلام په اوّله زمانه کښے هم دا رسم بغیر د څهٔ حد نه جاری وَه۔ لیکن د دے غیر محدود ډیر والی د ښځو نتیجه دا وه۔ چه خلقو به په اوّل اول کښے د حرص نه خو ډیرے ښځے او کړے، لیکن بیا به ئے د دوی حقونه نه شو ادا کولے او دے ښځو به د دوی په نکاح کښے د یو قیدی په شان ژوند تیراوَه۔

او بیا کوم ښځے چه به د یو سړی په نکاح کښے وے په دوی کښے د انصاف او برابری خو چرته نوم نښه نه وه۔ د چا سره چه به ئے زړهٔ لګیده هغه به ئے پالَلَه،

او د چا نه چه به ئے ځ وا و خته بیا به ئے د هغې د حق هیڅ پرواه نهٔ کوله -

اسلام په څو ودو والی د ښځو ضروری پابندی اولګوله او د انصاف او برابرۍ قانون ئے جاری کړهٔ

قرآن د عامے معاشرے دا عظیم ظلم بند کړو په څو ودو والی د ښځو ئے پابندی اولګوله - او د څلورو نه زیاتے ښځے ئے په نکاح کښے جمع کول حرام کړل، او کومے ښځے چه په یو وخت کښے په نکاح کښے وی په دوی کښے د برابرۍ د حقونو ئے نهایت تاکیدی حکم اوکړهٔ او د دے په خلاف کولو ئے د سختے سزا وَعدے واورولے -

په ذکر شوی آیات کښے ئے ارشاد اوفرمایه: فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ : یعنے کومے حلالے ښځے چه ستاسو خوښے وی د دوی سره نکاح کولے شئ، دوه دوه، درے درے، څلور څلور -

په آیات کښے د مَا طَاب: لفظ راغلے دے - حسن بصریؒ، ابن جبیرؒ او ابن مالکؒ د مَا طَاب: تفسیر په: مَا حَلَّ: سره بیان کړے دے - یعنی کومے ښځے چه ستاسو د پاره حلالے دی -

او بعضے حضراتو د: مَا طَاب: د لفظی معنی په اعتبار سره د: پسندیدهٔ: یعنے خوښے، سره ترجمه کړے ده - مګر په دے دواړو کښے څهٔ تضاد نیشته دا تړے مراد کیدے شی چه کومے ښځے په طبعی طور سره ستاسو خوښے وی او ستاسو د پاره شرعًا هم حلالے وی -

په دے آیات کښے ئے یو طرف ته د اجازت ورکړو چه د یوے نه زیاتے دوه درے، څلور ښځے په نکاح کښے جمع کولے شئ - دویم طرف ته د څلورو شمار ته چه اورسید و خو دا پابندی ئے هم اوغورزه وله چه د څلورو نه زیاتے ښځے په یو وخت په نکاح کښے نهٔ شئ جمع کولے -

د نبی کریم صلے الله علیه وسلم بیان دا قرآنی تخصیص او پابندی نوره هم زیاته واضحه کړه - د دے آیات د نازلیدو نه پس یو سړے غیلان بن اسلمه ثقفیؓ مسلمان شو - دغه وخت د دهٔ په نکاح کښے لس ښځے وے - او هغوی هم مسلمانانے شوے - نبی کریم صلے الله علیه وسلم د قرآن د حکم مطابق دهٔ ته حکم اوکړهٔ - چه په دے لسو کښے څلور غوره کړه - باقیو له طلاق ورکړه

آزادے کړه - غیلان بن اسلمه ثقفیؓ د حکم مطابق څلور پاتے کړے باقی ئے جدا کړے د څان نه (مشکوٰة شریف ص۲۷۴ - په حواله د ترمذی او ابن ماجه) په مسند احمدؒ کښے د دے روایت په تکمله کښے یو بل واقعه هم ذکر کړه - چه د دے ذکر کول به د فائدے نه خالی نه وی - څکه چه د دے تعلق هم د ښځو د حقونو سره دے - او هغه داده چه:

غیلان بن اسلمهؓ د شرعی حکم مطابق څلور ښځے ساتلے وے، لیکن د فاروق اعظمؓ د خلافت په زمانه کښے دهٔ هغو لره هم طلاق ورکړه او خپل ټول مال او سامان ئے په خپلو څامنو تقسیم کړو- فاروق اعظمؓ ته د دے خبر ملاؤ شو نو دے ئے حاضر کړو او ئے فرمائیل ورته چه تا دے ښځو لره د خپل میراث نه د محروم کولو د پاره دا حرکت کړے چه دا سراسر ظلم وے په دے وجه فورًا د دوی د طلاقونه رجوع او کړه او خپل مال د څامنو نه واپس واخله- کهٔ تا دا سے او نهٔ کړل نو یاد ساته چه تا لره به سخته سزا ورکړے شی -

قیس بن الحارث اسدیؓ فرمائی چه زهٔ کله مسلمان شوم نو څما په نکاح کښے اتهٔ ښځے وے- ما ئے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ذکرا وکړهٔ نو دوی ما ته او فرمائیل چه په دوی کښے څلور پاتے کړه باقیو لره طلاق ورکړه (ابوداؤد ص ۳۰۴)

او په مسند امام شافعیؒ کښے د نوفل بن معاویه دیلمیؓ واقعه نقل ده چه دے کله مسلمان شو نو د دهٔ په نکاح کښے پنځه ښځے وے نبی کریم صلی الله علیه وسلم دهٔ ته هم د یوے ښځے د طلاقولو حکم ورکړه - دا واقعه په مشکوٰة شریف ص۲۷۴ کښے هم د شرح السنة نه نقل کړے دهٔ -

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو د دے عمل نه د قرآن د آیات مراد بالکل واضح شو چه د څلورونه زیاتو ښځو لره په نکاح کښے جمع کول حرام دی-

د رحمة للعٰلمین صلی الله علیه وسلم د پاره د ښځو دیر والے- د حضور اقدس صلی الله علیه وسلم ذات مبارک ټول رحمت او برکت دے- د دوی د رالیږلو د ... ټولو نه ... ... د قرآن تبلیغ د احکامو بیانول او نفسو ...

پاکول وُو- دوئ دَاسلام تعلیمات قولًا او فعلًا (یعنې په وئیلو او کولو سره) په دنیا کښې خواره کړه- یعنې خو دل به ئې هم او په خپله به ئې کول هم- او بیا خو دَانسان دَژوند یو حصه داسې نیشتې چه دَنبیؐ دَخودَ نه ضرورت په کښې نه وی- دَامامنځ دَما ښځه نه واخله دَ ښځو سره دَتعلقاتو دَال او لاد پرورش اودَلویو بولو تشو بولو او دَا او داسې پورې په باره کښې دَ دوی دَ وَینا او دَعمل کولو دَخودَ نو نه دَحدیث کتابونه ډک دی، په کور کښې دننه ئې څه کار اوکړه، دَ ښځو سره ئې خلط ملط څنګه اوساته، او کورته چه به ښځې را تلې او تپوسونه به ئې کول هغوی لره ئې څهٔ څهٔ جوابونه ورکړه- دغه شان په سوؤ نو معاملې دی چه دَ پاکو بیبیانوؓ په ذریعه امّت ته خودَلے شوی دی دَدینی تعلیم او تبلیغ دَ ضرورت په وړاندې دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَپاره دَ ښځو ډیر والے یو ضروری امر وُه - صرف دَحضرت عائشۀ نه دَا کاهو مسئلو، اخلاقو او آدابو او دَسیرتِ نبویؐ متعلق دوه زره دوه سوه لس احادیث روایت شوید ی - چه دَاحادیثو په کتابونو کښې موندے شی دَحضرت اُمّ سلمۀ دَروایتونو شمار درې سوه اته اویا ته رسیدَلے دے- حافظ ابنِ قیّم په اعلام الموقعین (صلے ج ۱) کښې لیکلی دی- چه کهٔ دَحضرت اُمّ سلمه رضی الله عنها فتوې جمع کړې شی کو مے چه دوئی دَنبی کریم صلے الله علیه وسلم دَوفات نه پس ورکړی دی نو یوه رساله به توې جوړه شی -

دَحضرت عائشې رضی الله عنها روایتونه، عقل، پوهه او فتوې کومے چه ترتیب کړې شوی دی هغهٔ دَبیان محتاجه نه دی- دَ دې دَشاګردانو شمار دوه سوه ته رَسیدَلے دے- دَنبی کریم صلے الله علیه وسلم دَوفات نه پس پر لپسې تر اته څلوېښتو کالو پورې دے علم دین خورکړې دے-

دا خو دَمثال په طور دَ دوه وُو پاکو بیبیانوؓ حال او لیکلے شو- دَ نورو پاکو بیبیانوؓ روایتونه هم په مجموعی طور سره په ډیر شمار کښې موجود دی- ښکاره خبره ده چه دَ دې دومره تعلیم او تبلیغ نفع صرف دَپاکو بیبیانوؓ په ذریعه امت ته رسیدَلے ده -

دَپیغمبرانو دَاسلام اوچت مقصد وندا او دَ ټول مخلوق دَانفرادی او اجتماعی

کورنۍ او ملکي خیگړه فکرونه د دُنیا شهوت پرست انسان څهٔ پیژندے شي. دے خو هم څهٔ پخپل ځان قیاس کوي - په دے نتیجه کښے د خصوصه د یورپ بے دینو مستشرقینو د خپلے بے ایمانۍ په وجه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ښځو ډیروالے خالص جنسي او نفساني خواهش مقرر کړے دے - که د حضور صلی الله علیه وسلم په سیرت باندے یوسرسري نظر هم واچولے شي نو یو هوښیار او انصاف دار مزاج لرونکے به چرته هم د دوی د ښځو ډیروالے په دے محمل نه کړي -

د دوی معصوم (پاک) ژوند د مکے د قریشو په وړاندے داسے تیر شو چه د پنځویشتو کالو په عمر کښے یوه ښځه د اولاد مور کونډه (چه دوه خاوندان ئے فوت شوي وُو) په نکاح واغسته او پنځویشت کاله ئے د هغے سره گذاره او کړه او هغه هم داسے چه میاشت میاشت به ئے کور پریخودو په غار حراء کښے به په عبادت مشغول وُه. نور نکاحونه چه ئے هر څو مره شوي دي نو د پنځوستو کالو د عمر نه پس ئے شوي دي - دا پنځوس کاله ژوند او د ځوانۍ زمانه ئے د مکے د خلقو د نظر وړاندے وه - چرته هم یو دشمن ته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په طرف د څهٔ داسے شي د نسبت کولو موقع نه ده ملاؤ شوے چه د دوی په تقوٰی او پاکۍ کښے څهٔ شك پیدا کړے شي - د دوی دشمنانو په دوی - د سلم شاعر، مجنون، دروغژن، د ځان نه جوړه وُنکي الزامات بے دریغه لگولي دي لیکن د دوی په پاک ژوند ئے د څهٔ داسے حرف لگولو زړه ورتیا نه ده کړے چه تعلق ئے د جنسي او نفساني خواهشاتو د بے لارے کیدو سره وي -

په دے حالاتو کښے دا خبره د غور کولو طلب کوُنکے نه ده؟ څهٔ چه د ځوانۍ پنځوس کاله ئے په داسے زهد او تقوٰی او د دُنیا د خوندونو نه په ځنګ تیر شو نو بیا هغه کومه داسے خبره وه چه په آخر عمر کښے ئے دوی په ډیرو نکاحونو کولو باندے مجبوره کړه - که په زړهٔ کښے لږ شان انصاف هم وي نو د دے ډیرو نکاحونو وجه د دے نه سوا بله نه شي خودے د کومے چه بره ذکر شوے دے - او د دے ډیروالي د ښځو حقیقت هم واؤرئ چه څنګه را پیدا شو،

د پنځویشتو کالو د عمر نه واخله تر پنځوستو کالو د عمر شریف پورے صرف یوازے حضرت خدیجهؓ د دوی بي بي پاتے شوے ده - د دے د وفات نه پس حضرت سودهؓ

او حضرت عائشهؓ د دوی په نکاح کښې راغلې - حضرت سودهؓ خو د دوی کور ته تشریف
راوړو او حضرت عائشهؓ د ورکوټوالي په وجه د پلار په کور کښې پاتې شوه - بیا یو
څو کاله پس په سنه ۲ هـ کښې په مدینه منوره کښې د حضرت عائشېؓ واده اوشو.
دغه وخت د حضور ﷺ عمر څلور پنځوس ۵۴ کاله شوې وو - او دوه ۲ بیبیانې ئې په دې
عمر کښې جمع شوې - د دې وخت نه د ډیروالي د ښځو معامله شروع شوه - د
دینه یو کال پس د حضرت حفصېؓ سره نکاح اوشو بیا څو میاشتې پس د حضرت
زینبؓ بنت خزیمه سره نکاح اوشو - او دا ئې صرف اتلس ۱۸ میاشتې د دوی
په نکاح کښې پاتې شوه او بیا وفات شوه - د یو قول مطابق درې میاشتې د دوی
په نکاح کښې ژوندئ پاتې شوې وه - بیا په سنه ۴ هـ کښې د حضرت اُمّ سلمهؓ
سره نکاح اوشو - بیا په سنه ۵ هـ کښې د حضرت زینبؓ بنت جحش سره نکاح
اوشو - دا وخت د حضور ﷺ عمر اته پنځوس ۵۸ کاله شوې وو - او په دومره لوئ عمر
کښې ئې صرف څلور بیبیانې جمع شوې - حال دا دې امّت ته چه کوم وخت د څلورو
بیبیانو اجازت شوې وو دغه وخت خو دوی کم نه کم څلور نکاحونه خو کولې
شو - لیکن دوئ داسې اونه کړه - د دینه پس په سنه ۶ هـ کښې د حضرت جویریهؓ
سره او په سنه ۷ هـ کښې د حضرت اُمّ حبیبهؓ سره، او بیا په سنه ۷ هـ کښې د حضرت
صفیهؓ سره بیا هم په دې کال کښې د حضرت میمونهؓ سره نکاح اوشو -

**لنډه** دا چه د څلور پنځوستو کالو د عمر پورې دوی صرف د یوې بی بی سره
گذاره اوکړه یعنې پنځویشت کاله ئې د حضرت خدیجېؓ سره او څلور پنځه کاله ئې د
حضرت سودېؓ سره تیر کړه - بیا د اته پنځوس ۵۸ کاله په عمر کښې ئې څلور بیبیانې
جمع شوې - او باقي پاکې بیبیانې د دوه درې کالو په عمر کښې د نبوت حرم ته راغلې -

او دا خبره په خاص طور سره د ذکر قابله ده چه په دې ټولو بیبیانو کښې
صرف یوه بی بی داسې وه چه په جینئ والي کښې ور سره نکاح اوشو، یعنې د مومنانو مور
حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها - د دې نه علاوه باقي ټولې پاکې بیبیانې
کونډې وې - چه په دوی کښې د بعضو دوه دوه خاوندان وړاندې تیر شوي
وو - او بیا دا شمار هم په آخر عمر کښې راغې جمع شو -

صحابه حضراتوؓ سره دا ښځو ټولو په دوی ځانونه قربانولو - که دوی

غو ښتے نو ټولے بيبيانے به ئے جينکۍ جمع کړے وے بلکه دَ هرے يوے يوے دو ه دوه مياشتو نه پس ورته دَ بدلولو موقع هم وه - ليکن دوی دا سے اونه کړه -

دا رنګ دا خبره هم دَ ذکر قابله ده چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ الله تعالیٰ برحق نبي دے - او نبي دَ هوا او هوس ملګرے نه وی - هرڅۀ چه کوی دَ الله تعم په اجازت سره کوی - نو دَ نبي منلو نه پس هر اعتراض ختميږی - او که يو سړے دے نبي نه مني او دا الزام اولګوی چه دوی محض دَ شهوت پرستئ په وجه سره دَ خپل ځان دَ پاره ډيرے ښځے جائز کړے وے - نو دۀ ته به دا سے او وئيلے شی چه که خبره دا سے وے نو دوی به بيا دَ ځان دَ پاره دَ ډيروالی دَ ښځو په معامله کښے دَ هيڅ پابندئ اعلان وَلے فرمايه چه ذکر ئے دَ قرآن شريف په آيات: لَا يَحِلُّ لَكَ النِّسَآءُ مِنۢ بَعْدُ ؛ کښے موجود دے - دَ خپل ځان په حق کښے دَ دے پابندئ اعلان دَ دے خبرے ښکاره دليل دے چه دوی هرڅۀ چه کړی دی دَ خپل رب په اجازت سره ئے کړی دی -

دَ ښځو دَ ډيروالی په وجه سره چه کومے تعليمی او تبليغی فائدے اُمّت ته حاصلے شوے او کوم احکام چه اُمّت ته اورسيدل دَ دے جزئيات په دومره ډير شمار کښے دی - چه شمار ئے ګران دے - دَ احاديثو کتابونه په دے ګوا ه دی - البته بعضے نورو فائدو طرف ته دلته موږ اشاره کوو -

دَ حضرت اُم سلمهؓ خاوند حضرت ابو سلمهؓ دَ وفات نه پس دوی دَ دےؓ سره نکاح کړے وه - دے دَ خپل زوړ خاوند دَ بچو سره دَ حضورؐ کور ته تشريف راوړو، دَ دےؓ دَ بچو حضورؐ پرورش او کړه - او په خپل عمل سره ئے دا اوخوده چه په څومره مينه او محبت سره ئے دَ پرکتو پالنه اوکړه او اُمّت ته ئے اوخوده - دَ دوی په بيبيانو کښے صرف دا يوه بي بي داسے ده چه دَ بچو سره راغله - که يوه بي بي هم داسے نه وے نو دَ عمل په لحاظ سره به دَ پرکتو دَ پرورش خانه خالی پاتے شوے وه - او اُمّت ته به په دَے سلسله کښے هيڅ هدايت نه وۀ ملاؤ شوے - دَ دے ځوئے حضرت عمر بن ابی سلمهؓ فرمائی چه ما دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم په غيږه مبارکه کښے پرورش موندلے دے يوه پيره ما دَ دوی سره خوراک خوړ، په پياله کښے به م هرځائے ته لاس اچولو دوی راته او فرمائيل: سَمِّ اللّٰهَ وَكُلْ بِيَمِيْنِكَ وَكُلْ مِمَّا يَلِيْكَ ؛ (دَ الله نوم

اَخْله او خوره، په بنځې لاس سره خوره او د خپلې مخې نه خوره) (بخاری مسلم بحواله مشکوٰة ص۳۲۳)

حضرت جویریه رضی الله عنها په یو جهاد کښې په قید یا نوکښې راغله - د نورو قید یا نو په شان واهم تقسیم شوه او د ثابت بن قیس رض یا د ده د تره د ځوئی په حصه کښې اورسیده لیکن دے د خپل مالک سره دا سے معامله اوکړه چه دومره دومره مالی به تالره درکړم ما آزاده کړه - دا معامله ئے اوکړه او د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شوه او د مال امداد ئے ترے اوغوختو - حضور ورته او وے د دینه غوره خبره درته او نه کړم؛ هغه داچه زه به ستا د طرف نه مال ادا کړم او ستا سره به نکاح اوکړم - هغې په خوشحالئ سره منظوره کړه - نو دوی د هغې د طرف نه مال ادا کړو او نکاح ئے ورسره اوکړو - د دے د قوم په سوؤنو سړی د اصحابو رض په ملکیت کښې راغلی وو ځکه چه دوی ټول قید یا ن شوی وو - هرکله چه صحابه رض وو ته پته اولګیده چه حضرت جویریه رض حضور رض په نکاح واغسته نو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د احترام په وجه ټولو خپل خپل غلامان ونیځ آزاد کړو - سبحان الله، د صحابه کرامو رض د ادب څومره شان وو، د دے جذبے په بنا چه داخلق اوس د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سخرا نه شوه - دوی لوه په اوس څنګه غلامان ساتو، ټول ئے آزاد کړل - حضرت عائشه رضی الله تعالیٰ عنها د دے واقع متعلق فرمائی:

فَلَقَدْ اَعْتَقَ بِتَزْوِيجِهِ اِيَّا هَا مِائَةَ اَهْلِ بَيْتٍ مِنْ بَنِي الْمُصْطَلَقِ فَمَا اَعْلَمُ اِمْرَاَةً اَعْظَمَ بَرَكَةً عَلٰى قَوْمِهَا مِنْهَا -

"د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د جویریه رض سره په نکاح کولو سره د بنی المصطلق سل کورنئ آزادے شوے - ما یو ه بنځه داسے نه ده لیدلے چه د جویریه رض نه زیاته د خپل قوم د پاره لویه برکت والا ثابته شوے وی"

---

حضرت اُمّ حبیبه رضی الله تعالیٰ عنها د خپل خاوند سره، په اول د اسلام کښې په مکه کښې اسلام قبول کړے وه - او بیا دواړو ښځې خاوند هجرت اوکړه حبشے ته د قافلے سره - هلته د د ے خاوند نصرانی شو او څو ورځې پس مړ شو - نبی کریم صلی الله علیه وسلم د نجاشی په واسطے سره دے ته د نکاح پیغام اولیګه چه هغه دے قبول کړو - او هلته په حبشه کښې نجاشی د نبی کریم صلی الله علیه سره د دے نکاح اوکړه -

دلچسپه خبره داده چه حضرت اُمّ حبیبهؓ دَ ابوسفیانؓ لور وه - او حضرت ابو سفیانؓ دغه وخت دَ هغه ډَلے مشر وُه - چا چه دَ اسلام دشمنی خپل دَ ټولو نه لوئے مقصد مقرر کړے وُه - او دهٔ مسلمانانو ته او پیغمبر خدا صلے الله علیه وسلم ته دَ ضرر ورکولو او دَ فنا کولو دَ پاره یوه موقعه هم دَ لاس نه نهٔ پاتے کوله - هر کله چه دهٔ ته دَ دے نکاح خبرا ورسیده نو بے اختیاره ئے دَ ژبے نه دا الفاظ اُووتل: هُوَ الْفَحْلُ لَا يُجْدَعُ اَنْفُهٗ : (یعنی محمد صلے الله علیه وسلم جوان مرد دے دَ هغه پوزه نه شی پرے کیدے) مطلب دا دے چه هغه اوکړے پوزے وا لا عزتمند دے هغه ذلیل کول آسان نه دی ، دیخوا خو مونږ هغهٔ لره دَ ذلیل کولو تیارئے کوُو ، او اخوا ئمُا لوُر دَ هغه په نکاح کښے ورا غله -

غرض دا دے چه دے نکاح دَ یو نفسیاتی جنګ اثرا وکړهٔ - او دَ اسلام په مقابله کښے دَ کفر دَ قیادت کوُنکی حوصلے ئے کمزورے کړے - دَ دے نکاح په وجه چه کومه سیاسی فائده اسلام او مسلمانانو ته اُورَسیده - دَ هغے دَ اهمیّت او ضرورت نه انکار نه شی کولے ، او په یقین سره ویلے شی چه دَ خدائے پاک دے پوهه او تدبیر کوُنکی پیغمبر صلے الله علیه وسلم به خامخا دا فائدهٔ په نظر کښے ساتلے وی -

دا یو څو خبرے او لیکلے شوے - دَ دے نه علاوه چه څوک په سیرت باندے پوهیږی هغوی ته په دغه کښے نورے ډیر حکمتونه دَ حضورؐ دَ بیبیانوؓ په ډیر والی کښے ملاویدے شی - په دے سلسله کښے دَ حکیم الامّت قدس سرهٔ رساله "کثرتِ ازواج لصاحب المعراج" لیدل او کتل هم فائده مند دی -

دا تفصیل مونږ دَ بے دینو مستشرقینو دَ خورکړی دَ دوکے او فریب دَ جال دَ پریکولو دَ پاره لیکلے دے - ځکه چه دَ دوی دَ ټګئ په دے دام کښے ډیر هغه تعلیمیافته او ناپوهه مسلمانان هم نخلی چه دَ سیرتِ نبوی او تاریخ اسلام نه ناخبره دی - او دَ اسلامیا تو علم ئے دَ مستشرقینو دَ کتابونو نه حاصل کړے دے -

**که په ډیرو بیبیانو کښے په برابری او انصاف باندے قادر نه وی نو په یوه بی بی دے صبر کوی**

دَ څلورو بیبیانو پورے ئے اجازت ورکړو په اخر کښے ئے او فرمائیل : فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ : یعنی که ستاسو سره دا ویره وی چه عدل به او نه کړے شئ نو په یوه بی بی باندے بس کوئ یا چه

کومه ویځه د شرعي اصولو په مطابق ستاسو په مِلک کښې وي په هغې گذاره کوئ۔

د دینه معلومه شوه چه د یو نه زیات نکاحونه کول په هغې صورت کښې جائز او مناسب دي هرکله چه د شریعت په مطابق په ټولو بیبیانو کښې برابري کولې شي او د ټولو د حقونو لحاظ ساتلې شي، کهٔ چرې په دې ئې قدرت نه وي نو صرف یوه بي بي دې ساتي۔ د جاهلیت په زمانه کښې دا ظلم عام وه چه د یو یو سړي به څو څو بیبیانې وې چه بیان ئې د دې آیات په ضمن کښې اول تیر شوے دے۔ او د بیبیانو د حقونو او برابرئ او عدل به ئې مطلق خیال نه ساته۔ چا ته چه به ئې زیات میلان او شوق وهٔ به ئې په هر حیثیت سره پالله او خوشحاله ساتله او د نورو د حقونو به ئې هیڅ خیال نه ساتلو۔ قرآن کریم صاف صاف اوفرمائیل چه که عدل نه شئ کولې نو صرف یوه بي بي ساتئ یا په وینځه گذاره کوئ د لته دا خبره د ذکر کولو قابله ده چه کومه وینځه چه ذکر ئې په قرآن شریف کښې او په دې آیات کښې دې د دې خاص شرطونه وي۔ چه نن صبا دغه شرطونه نیشته۔ نو په دې وجه په دې زمانه کښې چا ته شرعي وینځه وئیل او بې نکاح ئې ساتل حرام دي، د دې د تفصیل اوس دا مقام نه دے۔

حاصل دا دے چه اګرچه قرآن کریم د څلورو ښځو پورې په نکاح کښې د ساتلو اجازت ورکړے دے او په دغې حد کښې دننه چه هرڅو نکاحونه اوشي هغه به صحیح او جائز وي۔ لیکن د ډیرو بیبیانو د ساتلو په صورت کښې په دوی کښې عدل او برابري قائم ساتل واجب دي۔ او د دې خلاف کول عظیم ګناه دے۔ نو هرکله چه د یو نه د زیاتو نکاحونو کولو اراده اوکړې نو اول د خپلو حالاتو جائزه واخله۔ چه د ټولو حقونه به په عدل او مساوات سره پوره کولې شې او که نه۔ نو که دا احتمال غالب وي چه عدل او مساوات به قائم اونهٔ ساتلې شې نو د یو نه زیات نکاحونه کول خپل ځان په عظیم ګناه کښې اخته کول دي۔ نو ځان ترې ساتل پکار دي او په یوه بي بي صبر کول په کار دي۔

لنډه دا ده چه که چا د څلورو نه د زیاتو ښځو سره په یو وخت یعنې په یو ایجاب قبول سره نکاح اوکړه نو دغه نکاح به د ټولو سره باطل وي۔ ځکه چه د څلورو نه د زیاتو سره د نکاح هیچا ته اجازت نیشته او چه په څلورو کښې د ننه

وی نو او به شی - لیکن چه په بیبیانو کښے عدل او برابری قائمه نه ساتی نو سخت گناه ګار به وی - او دَ کومے چه حق و هلے کیږی هغه دَ قاضی په عدالت کښے دعوه کولے شی او خپل حق حاصلولے شی -

نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ټولو بیبیانو کښے دَ برابرئ او انصاف کولو سخت تاکید فرمائیلے دے او دَ دے په خلاف کولو ئے دَ سخت عذاب وعدے فرمائیلی دی - او پخپله ئے دَ خپل عمل په ذریعه هم واضحه کړے ده - بلکه نبی کریم صلے الله علیه وسلم به په هغهٔ معاملو کښے هم برابرے ساتلو په کومو کښے چه برابرے لازم نه دے -

په یو حدیث کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد مبارک دے چه دَ کوم سړی په نکاح کښے دوه ښځے وی او دَ دوی په حقونو کښے دے برابری او انصاف نه کوی نو دے به په قیامت کښے داسے پورته کړے شی چه دَ دهٔ یوه دَه ډهٔ به فالج وهلے او چه شوے وی (مشکوٰة ص۲۷۹)

البته دا برابرے په هغے کارونو کښے ضروری دے کوم چه دَ انسان په اختیار کښے وی، مثلاً په نفقه کښے برابری، په شپه کښے برابری، پاتے شو هغه کار چه دَ انسان په اختیار کښے نه وی، مثلاً دَ زړهٔ میلان ئے یوے طرف ته زیات شی - نو په دے غیر اختیاری معامله کښے په دهٔ څهٔ مؤاخذه نیشته - په دے شرط چه دَ دے میلان اثر په اختیاری معاملو پورے نه اوځی - نبی کریم صلے الله علیه وسلم پخپله هم په اختیاری معاملو کښے سره دَ پوره برابری دَ قائم ساتلو نه دَ الله تعالیٰ په دربار کښے عرض او کړه :

| | |
|---|---|
| اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِیْ فِیْمَا اَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِیْ فِیْمَا تَمْلِكُ وَ لَا اَمْلِكُ - | "یا الله دا زما تقسیم دے دَ برابرئ په هغې څیزونو کښے چه زما په اختیار کښے دی او س هغه شے چه ستا په قبضه کښے دے |

زما په اختیار کښے نه دے په هغے باندے ما لره مهٔ نیسے"

نښکاره خبره ده چه په کوم کار باندے یو رسول معصوم هم قادر نه دے په هغے باندے بل څوک څنګه قادریدے شی، په دے وجه دَ قرآن شریف په بل آیات کښے ئے دَ دے غیر اختیاری معاملے ذکر په دے شان سره کړے دے :

وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ۔ «د ښځو په مینځ کښې تاسو پوره برابري هرګز نه شئ کولے»

په دے کښې ئے دا اوخوده چه د زړه میلان او محبت یو غیر اختیاري معامله ده، په دے کښې برابري کول د انسان د طاقت نه بهر ده - لیکن وړاندے د دے غیر اختیاري معاملے د اصلاح د پاره فرمائي: فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ: یعنے که د یو ے بي بي سره ذیات محبت وي نو په دے کښې خو تاسو معذور یئ - لیکن د بلے بي بي نه بے پروائي او هغے ته هډو نه مخ کول په دے صورت کښې هم جائزه نه ده - د دے آیات په جمله: فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً: کښې چه د کوم انصاف او برابرئ بیان دے، دا هغه اختیاري کارونه دي د عدل چه په دے کښې عدل نه کول عظیم ګناه دے - او کوم سړي ته چه په دے ګناه کښې د اخته کیدو خطره وي د هٔ ته دا هدایت شوے دے چه د یو نه زیات نکاح دے نه کوي۔

## یوه شبه او د هغې جواب

د دے بره تفصیل او تشریح کوم چه ذکر ئے اوشو د دے په نظر انداز کولو سره بعضے خلق د سورة نسآء د ذکر شوي آیات او د دے آیات د میلاو ملو سره په یو عجیبه غلطئ کښې اخته شو - هغه دا چه د سورة نسآء په آیات کښې خو دا حکم ورکړے شو چه که د انصاف او برابرۍ د قائم نه ساتلو یره وي نو بیا په یو نکاح باندے بس کوئے۔ او په دے دویم آیات کښې ئے په قطعي طور سره دا واضحه کړه چه انصاف او برابرے خو د سړ نه کیدے نه شي نو نتیجه ئے دا شوه چه د یو نه زیات نکاحونه مطلقًا جائز پاتے نه شو - دوي لره سوچ کول په کار دي چه که د الله تعالیٰ جلّ شانهٗ مقصود د دے دواړو آیاتونو نه د یو نه زیات نکاحونه بند ول وے - نو بیا دے تفصیل بیانولو ته ضرورت څهٔ وهٔ - چه: فَانْكِحُوْا مَا طَابَ لَكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ مَثْنٰى وَثُلٰثَ وَرُبٰعَ: (یعني نکاح کوئے کومے چه ستاسو خوښے شي ښځے دوه دوه، درے درے، څلور څلور) او بیا د دے ارشاد څهٔ معنیٰ ده چه: فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا (یعني که تاسو ته د بے انصافئ خطره وي) ځکه چه په دے صورت کښې خو بے انصافي یقیني ده۔

نو بيا دَ خطرے کيدو خوصو وخه معنى باقى نه پاتے کيږى۔

او بيا دَ نبى کريم صلے الله عليه وسلم او صحابه کراموؤ عملى او قولى بيان او پړليسه په دے باندے عمل کول هم په دے کواهان دى چه دَ يو نه زيات نکاحونه په يو وخت کښے هم په اسلام کښې بند کړے شوى - خبره هم دغه ده کومه چه پوره بيان شوے ده - چه دَ سورت نساء په اول ايات کښے په اختيارى کارونو کښے دَ انصاف او برابرى کولو ذکر کړے - او په دوهم ايات کښے په محبت او دَ زړه په ميلان کښے په برابرئ باندے دَ قدرت نه راتلو بيان دے - نو په دے وجه په دواړو ايا تو کښے نه څهٔ تعارض (ټکراؤ) شته او نه په دے ايا تو کښے مطلق دَ ښځو دَ ډيروالى دَ ممانعت څه دليل شته۔

دَ ايات په ختميه وئے ارشاد او فرمايه: ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَلَّا تَعُوْلُوْا؛ په دے ايات کښے دوه کلمے دى يوه کلمه دَ: اَدْنٰى: دا لفظ دَ دُنُوٌّ نه مشتق دے چه دَ قريب (يعنى نزدے) په معنىٰ کښے دے - او دوهم لفظ: لَا تَعُوْلُوْا: عَالَ يَعُوْلُ عَالَ يَمِيْلُ، په معنى دے - چه معنىٰ ئے ميلان دے - او دلته دَ ناجائز ميلان او ظلم او زياتى په معنىٰ کښے استعمال شوے دے۔

مطلب دا دے چه په دے ايات کښے چه څهٔ تاسو ته خودلے شوى دى (يعنى دَ عدل نه کولو په صورت کښے په يوه بى بى اکتفاء کول يا په وينځه باندے گذاره کول) دا داسے شے دے چه دَ دے په اختياره دَ لوا و په دے په عمل کولو سره تاسو دَ ظلم نه بچ کيدے شئ - او دَ زياتى او ظلم کولو موقع به ختم شى۔

دلته يوه شبه دا ده چه هر کله يوه بى بى وى نو دَ ظلم به بالکل موقع نه وى نو بيا په لفظ دَ: اَدْنٰى: زيا تولو سره ئے دا ولے او فرمائيل چه په دے عمل کولو دے خبرے ته نزدے دى چه تاسو ظلم او نه کړئ - بلکه داسے فرمائيل په کار وُو چه تاسو به بالکل دَ دے ظلم نه بچ شئ۔

دَ دے جواب دا دے - چه په لفظ دَ اَدْنٰى: زيا تولو سره ئے دے طرف ته اشاره او فرمائيله چه چونکه ډير خلق په يوه بى بى هم ډير ظلمونه او زياتى کوى په دے وجه دَ ظلم دَ لارے بنده دَ لو دَ پاره صرف دا يوه نه ده چه تاسو دَ يو نه زيات نکاح مه کوئ، هان دا ضرورى ده چه په دے صورت کښے

به د ظلم خطره کمه شي او تاسو به عدل ته نژدې شئ ۔ او د ظلم او زياتي نه به مکمله خلاصي هغه وخت وي چه کله د يو بي بي حقونه پوره ادا کړې شي او د دې سره د نيک سلوک معامله او شي د کمزورو نه ئې ورکړن ر او شي او د دې په کوبه والي با ندې صبر او شي (خو افسوس چه نن صبا اکثر خلق په دې قرآني تعليما تو هيڅ عمل نه کوي او اکثره به بے تعليمه کورنو کښې دا ظلم ډير زيات دے)

وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحْلَةً ؕ فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ

ورکوئ ښځوته مهرونه د دوي په خوشحالئ سره ۔ بيا که هغوي د دے نه څه شے پريدي

شَیْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِیْٓـًٔا مَّرِیْٓـًٔا ④

تاسو ته پخپله خوشئ سره نو خورئ دغه مزه دار خوشګوار ۔

**د ايا تو نو تړون**

په تيرا ايات کښې د ډير والي د ښځو په وجه چه په ښځو کوم ظلم کيد و د هغے لرے کول وُو ۔ په دے ايات کښے د ښځو د يو خاص حق ذکر دے ۔ او په دے کښے چه کوم ظلم او زياتے کيده د هغے لرے کول دي ۔ او دا حق مهر دے

# لنډ تفسير

تاسو خلق بيبيانو ته د هغوي مهر په خوشحالئ د زړه سره ورکوئ ۔ البته که دغه بيبيانے د زړه په خوشحالئ سره څه پاتے کړي تاسو ته د دغے مهر نه څه حصه (او دا حکم د ټول مهر هم دے) نو ر په دے حالت کښے) تاسو دغے لره خورئ (استعمالوئے) مزه دار خوشګوار ئې ګنړئے ۔

# معلومات او مسئلے

د مهر متعلق به په عربو کښے څو قسمه ظلم کيده :

يو دا چه مهر کوم چه د جينئ حق دے دا به ئې نهٔ ورکولو ۔ بلکه د جينئ اولياؤ

به د خاوند نه وصول کاوه - چه سراسر ظلم وه - د دے د دفع کولو د پاره قرآن کریم ارشاد فرمائیل: وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ : یعنے ښځو ته د دوی مهر ورکړئ د دے مخاطب خاوندان هم دی چه د دوی خپلو بیبیانو ته مهر پخپله ورکړی او نورچاته دے نهٔ ورکوی - او د جینکو اولیاء هم دی چه که د جینکو مهر دوی وصول کړی نو دا دے خاص جینکو ته ورکوی - د دوی د اجازت نه بغیر دے پخپل تصرف کښے نه راولی -

دویم ظلم دا هم وه چه هرکله چه که به چا مهر ورکاوه هم - نو ډیر په تریو تندی بے زړهٔ او لکه چه یو تاوان ئې ډوک ادا کوی داسے به ئے ورکاوه - د دے ظلم د لرے کولو د پاره ئے په آیات کښے لفظ د نِحْلَةً اُوفرمایه - ځکه چه نِحْلَة په لغت کښے هغه ورکولو ته وائی چه په خوشحالئ د زړهٔ سره ورکولے شی -

غرض دا دے چه په دے آیات کښے ئے دا تعلیم اوفرمایه چه د ښځو مهر یو واجب حق دے - د دے ورکول ضروری دی - او لکه څنګه چه د نورو واجبو حقونو اداکول د زړهٔ په خوشحالئ سره ضروری دی دغه شان مهر هم کنړل په کار دی -

دریم ظلم به د مهر په باره کښے دا کیده چه ډیرو خاوندانو به دا کنړل چه ښځه خو د دهٔ نه مجبوره ده مخالفت کولے شی - نو د باؤ نه به ئے پرے کول او مهر به ئے پرے معاف کولو - چه په حقیقت کښے په دے سره معافی کیدهٔ نه - لیکن دوی به دا کنړله چه بس مهر معاف شو -

د دے ظلم د بنده ولو د پاره په ذکر شوی آیات کښے ئے ارشاد اوفرمایه : فَاِنْ طِبْنَ لَكُمْ عَنْ شَیْءٍ مِّنْهُ نَفْسًا فَكُلُوْهُ هَنِیْٓـًٔا مَّرِیْٓـًٔا : یعنے دغه ښځے که د زړهٔ په خوشحالئ سره د خپل مهر څهٔ حصّه تاسو لره درکړی نو تاسو دغه خوړے شئ ستاسو د پاره به مبارکه وی -

مطلب دا دے چه د جبر او زور او دباؤ په ذریعه معافی حاصلول هیڅ شے نهٔ دے - په داسے کولو سره هیڅ نه معافی کیږی - لیکن که هغه بالکل پخپل اختیار او رضامندئ سره څهٔ حصّه د مهر معافی کړی - یا د اغستلو نه پس ئے بیا تاسو واپس کړی نو دغه ستاسو د پاره جائز او ټهیک دے -

دا ذکر شوی ظلمونه دَجاهلیت په زمانه کښې ډیر زیات وُو، چه دَدے بندیز قرآن شریف په دے ذکر شوی ایات کښے اوفرمایه - افسوس دے چه دَجاهلیّت دَزمانے دا خبرے په مسلمانانو کښے اوس هم موجودے دی - په مختلفو قبیلو او علاقو کښے دَدے ظلمونو نه څهٔ نه څهٔ ظلم ضرور موندے شی دَدے ټولو نه ځان ساتل لازم دی -

راو بیا خاصکر دَپښتون قوم په اَنْ پړ وا وجاهلو کورنو کښے خو دَدے جاهلیت حد تمام دے دوی خو دَ ښځو نه بالکل بے زبانه څاروی جوړ کړی دی دوی ته مقرر کړے مهر ورکول خو لویه خبره ده ولته خو ښځے دَ انسانی حقوقو نه هم محرومے کړے شوی دی دَ دوی په نزد دَ ښځو نهٔ څهٔ خپل اختیار، حقونه شته او نهٔ دوی انسانانے دی - اکثر په ځینے کورنو کښے خو دَیو دے او لیږ دادهٔ شوے ښځے په مهر درے څلور نورے ښځے دے کور ته رارادهٔ کولے شی - او دغه مهر کوم چه پرے دَدے ښځے نکاح شوے وی دا دَ دے حق نهٔ شی کنړلے بلکه دا دَکور یو مشترک جائداد وی چه اصل مالکان ئے سخر او خوانبے وی - افسوس صد افسوس الله تعالیٰ دِ مونږ پوهه کړی) -

په ایات شریف کښے چه کوم قید دَ"طیب نفس" لګولے شوے دے - چه که په خوشحالۍ سره ستاسو بیبیانے دَمهر څهٔ حصّه تاسو ته در کړی یائے ستا سونه اونهٔ غواړی نو تاسو دغه خوړے شئ - په دے کښے یو ډیر لوئے راز دے - خبره داده چه دَشریعت دا اُصول دی چه دَچا یوه ذره شان مال هم بَل لره حلال نه دے - ترڅو چه دَ"طیب نفس" په اجازت سره نه وی - په طور دَ قاعدے کُلیئے حضور صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی :

اَلَا لَا تَظْلِمُوْا اَلَا لَا يَحِلُّ مَالُ امْرِءٍ اِلَّا بِطِيْبِ نَفْسٍ مِّنْهُ -
(مشکوٰة شریف ص۲۵۵)

"خبردار ظلم مه کوئے" او په ښهٔ شان سره پوهه شئ چه دَچا مال (دَ بل سړی دَ پاره) حلال نه دے ترڅو چه دَدهٔ دَ نفس په خوشحالۍ سره حاصل نهٔ شی"

---

دا یو عظیم اصول دی - او دَدے لاندے ډیر جُزئیات راځی -

په دے حاضر وخت کښے چونکه ښځے دا کثری چه مهر نه میلاؤ ویږی - نو که غواړم ئے او معاف کوئے ئے نه نو خفګان او ورانه ترے جوړیګی - په دے و جه

زړهٔ ئې نه غواړی خومعاف ئې کړی - دَ دے معافۍ هیڅ اعتبار نیشته، حکیم الامت قدس سرهٔ به فرمائیل چه په صحیح معنیٰ کښې دَ طیب نفس دَ معافۍ پته په هغه صورت کښې لګیدے شی - چه دَ مهر رقم بنځې ته حواله کړے شی او دَ دینه پس ئې هغه په خوشحالۍ سره بغیر دَ څهٔ دَ باؤ نه ورکړی - او داسے طیب نفس دَ خویاندو او بیبیانو په معامله دَ میراث کښې هم کنټرول په کار دی - اکثر داسے کیږی چه دَ مور یا پلار په وفات کیدو باندے هلک یا هلکان قبضه اوکړی او جینکو لره حصّه نه ورکوی - او که چرته څوک په کښے ځان دینداره ګنړی نو په خویاندو باندے ئې معاف کړی - او هغوی خود اګنړی چه ماته خو هسے هم په هیڅ حال ملاویدونکے نه ده خپله حِصّه نو په دے وجه دَ خپلے مرضۍ خلاف ئې معاف کوی او بیا دَ پلار په وفات کیدو باندے دَ بنځې حصّه هم نه شی ورکولے او میړے مورته خو دَ سره څهٔ نه ورکوی - دا ټول دَ حقوقو په زور اغستل دی - که څوک ئې په طیب نفس سره معاف کړی نو بیا معاف کیدے شی چه دَ دے نښه به ره تیره شوے ده (خو دلته دا خبره هم دَ غور کولو قابله ده چه دَ خویاندو او بنځو نه خو ئې دوی په معاف کولو سره خپلوی او وائی چه دا اوس معاف شو - خو عجیبه خبره دا ده چه یو رور خو چرته هم خپله حصه دَ میراث بل رور ته نه بخښی بلکه یو بل پرے دَ جنګ او خور ئې معاف کوی - خو دَ دے اصل وجه دا ده چه خور ته حصه نه ملاویږی نو دَ هغے بدلا ر نیشته - ورنه دے دے ورلره ورکړی چه دَ هغے دا یقین راشی چه ځما حصه ما ته ملاویږی لکه دَ رور پیشان چه بیا ئې دا معاف کړی - خو هغه غریبه څهٔ اوکړی لکه دَ رور پیشان په زور ئې اغستے نه شی ځکه چه رواج نه دے او په خوښه ئې څوک ورکوی نه نو چه معاف کوی ئې نهٔ نو څهٔ اوکړی) -

ځما اُستاد حکیم الامت قدس سرهٔ دا هم فرمائیلی دی چه په دے سلسله کښے دَ طیب نفس ذکر دے، دَ طیب قلب نه دے - نو په دے وجه دَ چا دَ مال دَ حلالیدو دَ پاره دَ هغهٔ دَ زړهٔ خوشی پوره نه ده - کوم خلق چه رشوت یا سود ورکوی په دے کښې چیرے ظاهری نفع ګنړی نو په عقلی طور سره دَ امن ئې په حساب سره په رشوت او سود کښې مال لګوی - لیکن دا خوشی معتبره نه ده - که دَ نفس نه تپوس اوشی نو نفس قطعًا په دے خرچ راضی نه وی - په دے وجه ئې طیب نفس لره فیصله کونکے مقرر کړه -

دَجمات مدرسے یا دَ بل ضرورت دَ پاره که چنده کولے شی نو په هغې کښې هم دَ ورکونکی دَ طیب نفس خیال ساتل پکار دی - دَ زور ولیٔ، مشر، سردار یا وفد دَ دباؤ لاندے که څوک چنده ورکړی او طیب نفس په کښې نه وی نو دغه چنده په کار کښې لګول حلال نه دی بلکه دغه واپس کول په کار دی -

په آیات کښې چه کوم لفظ دَ صَدُقٰت: راغلے دے - صَدُقَةٌ (په فتحه دَ صاد او په ضمه دَ دال) جمع ده - صَدُقَة او صُدَاق دَ ښځو مهر ته ویلے شی - مُلا علی قاری په مرقاة شرح دَ مشکوة کښې لیکی: وَسُمِّیَ بِهٖ لِاَنَّهٗ یَظْهَرُ بِهٖ صِدْقُ مَیْلِ الرَّجُلِ اِلَی الْمَرْءَةِ: یعنی مهر ته صُدَاق او صَدُقه په دے وجه وائی چه دَ "صدق" په دے ماده کښې دَ "رشتیا" معنیٰ ده - او په مهر سره هم چونکه دَ خاوند دَ خپلے ښځے طرفته رشتونے میلان ښکاره کیږی - په دے وجه په دے مناسبت سره مهر ته "صُدَاق" وائی -

او: هَنِیْٓئًا مَّرِیْٓئًا: دواړه دَ فعیل په وزن دَ صفت الفاظ دی - هَنِیْٓئًا (مِنْ هَنَاۃً وَهَنُوْءٌ وَهَنِئَ) په لغت کښې هغه شی ته وائی چه دَ څهٔ مشقّت او تکلیف نه بغیر حاصل شی هرکله چه دَ خوراک په صفت کښې واقع شی نو دَ دے معنیٰ دَ خوشګوار طعام کیدے شی - یعنی هغه طعام چه دَ څه مشقت نه بغیر په حلق کښې خکته شی او په اسانیٔ سره هضم شی دَ بدن جزء جوړ شی -

مَرِیْٓئًا: (مِنْ مِرَأَ الطَّعَامِ فَهُوَ مَرِیْءٌ اَیْ هَنِیْٓءٌ) لفظ هم په ذکر شوے معنیٰ کښې استعمالیږی (قاموس)

غرض دا دے چه دواړه لفظونه یوه معنیٰ لری په دے وجه سره حضرت تهانویؒ دَ دواړو لفظونو ترجمه په "خوشګوار" الفاظو سره کړیده - او شیخ عبدالقادرؒ دَ "رچتا پچتا" په الفاظو سره دَ دے لفظونو ترجمه کړے ده - (یعنی دَ اردو تفسیر دمتن لاندے ترجمه دَ شاه عبدالقادرؒ ده "رچتا پچتا" - او دَ لنډ تفسیر دَ اردو ترجمه تهانویؒ صاحب ده "خوشګوار" - او په پښتو کښې ئے موږ معنیٰ په "مزیدار خوشګوار" سره ادا کړه)

وَلَا تُؤْتُوا السُّفَهَآءَ اَمْوَالَكُمُ الَّتِیْ جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ قِیٰمًا

او مهٔ ورکوئ ناپوهو ته خپل هغه مالونه کوم لره چه جوړ کړے دے الله ستاسو ګذران سبب

وَّارْزُقُوْهُمْ فِيْهَا وَاكْسُوْهُمْ وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝۵

او دوی ته په دے کښې خوره ورکوئ او اغوندوئ۔ او دا یئ دوی ته خبره د وغه (دَ عقل) ۔

وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰٓى اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ

او آزمائش کوئ دَ یتیمانو تر دے چه اورسی عمر دَ نکاح ته۔ بیا که او وینئ په دوی کښې

رُشْدًا فَادْفَعُوْٓا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ ۚ وَلَا تَاْكُلُوْهَآ اِسْرَافًا

هوښیاری نو حواله کړئ دوی ته مالو نه دَ دوی۔ او مه خورئ دَ یتیمانو مال دَ ضرورت نه زیات

وَّبِدَارًا اَنْ يَّكْبَرُوْا ۭ وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ

او دَ حاجت نه وړاندے چه لوئے نه شی۔ او څوک چه غنی (بے حاجته) وی نو ځان دِ دَ یتیم دَ مال نه ساتی ۔

وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَاْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ۭ فَاِذَا دَفَعْتُمْ

او څوک چه محتاج وی نو خوری دے موافق دَ دستور۔ بیا چه کله حواله کړئ دوی ته

اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ۝۶

مالونه دَ دوی نو ګواهان نیسئ په دے باندے۔ او الله پوره دے حساب کونکے ۔

**دَ آیاتو نو تړون** په تیرو آیاتو نو کښے دَ یتیمانو دَ مال دوی ته دَ سپارلو او دَ ښځو دَ مهرونو دوی ته دَ ادا کولو حکم وه۔ چه کَ دے نه په ظاهر دا فائده راوته۔ چه دَ یتیمانو او دَ ښځو مال په هر حال دوی ته حواله کول په کار دی اګر که دوی په معاملو نه پوهیږی۔ او دَ مال په حفاظت هم قادر نه وی۔ دَ دے غلط فهمئ دَ لرے کولو دَ پاره په دے آیاتو نو کښے فرمائی چه کم عقلو ته مالونه مَهٔ سپارئ او دَ دوی جانچ پړتال کوئ۔ هر کله چه دَ مالونو دَ حفاظت او دَ دے دَ لګـولو دَ ځایونو پوهه او عقل په دوی کښے تاسو ته وی معلوم کړے نو تر هغے ورله مالونه مَه ورکوئ ۔

# لنډ تفسیر

راوکه یتیم بالغ شي چه مقتضیٰ دَدے مال سپارل دي ورته لکه چه وړاندے راځي لیکن کم عقل وي نو) تاسو (دے) کم عقلو ته خپل (یعنې دَدوی) هغه مال مه ورکوئ کوم چه خدائے تعالیٰ (دَداسے کار دَپاره پیدا کړے دے چه دے لره ئے) ستاسو (ټولو دَپاره ژوندکه دَژوند جوړ کړے دے (مطلب دا دے چه مال دَقدر شے دے دا اوس مه ورکوئ چه بے قدري به ئے اوکړي والوزه وي به ئے) او په دے مالونو کښے دوی ته خوراک ورکوئ اوجامه ورکوئ او دوی ته غوره خبره کوئ (یعنې دوی ته تسلي ورکوئ چه مال ستا دے ستا دَخیرخواهۍ دَپاره اوس لا ستا لاس ته نه شي درتلے، چه لږ هوښیار شے نو بیا به تاله درکړے شي) او (هر کله چه دَمال سپارلو دَپاره هوښیاري لیدل ضروري دي نو) تاسو یتیمانو لره (دَبالغ کیدو نه وړاندے دَهوښیارۍ او پوهے په خبرو کښے) آزمایئ (ځکه چه دَبالغ کیدو وخت خو دَمال سپارلو وخت دے نو آزمائش پرے دَوړاندے نه پکار دے مثلاً څه لږه چیره سودا وغیره پرے راغواړئ اوګورئ ورته چه دَسودا اسلف سلیقه ورسره شته یا نه - یا ورلره څه شے دَخرڅولو دَپاره ورکوئ اوګورئ چه څنګه ئے خرڅوي) تردے پورے چه (دوی لره وازمایئ چه کله دوی (عمر دَ) نکاح ته اورسي (یعنې بالغ شي ځکه چه دَ نکاح پوره قابلیت په بلوغ سره وي) بیا (پس دَبلوغ او آزمائیش نه) که په دوی کښے یو قسم تمیز اووینئ (یعنې حفاظت او سا تنه دَمال او انتظام) نو دَدوی مالونه دوی ته حواله کړئ راوکه لا ترا اوسه په دوی کښے سلیقه او تمیز نه وي راغلے نو لږے ورځے نور ورته صبر کوئ) او دا مالونه (دَیتیمانو) دَضرورت نه زیات او په دے خیال سره چه دوی به بالغ شي (بیا به دوی ته حواله کول وي) زر زر مه اَلوزه وئ او مه ئے خورئ او (که دا سے ئے برباد وئ نه بلکه لږ ئے خورئ نو دَ هغے حکم دا دے چه) کوم سړے (دَدے مال نه) بے حاجته وي (یعنې دَده سره دَخپلے ګذارے مال شته اګرچه صاحب دَ نصاب نه دے) نو دے دِے خپل ځان بالکل (دَ لږ خوراک نه هم) ساتي، او کوم سړے چه حاجت مند وي نو هغه په مناسب مقدار سره (یعنې چه ضروري حاجتونه ئے پورے رفع کیږي)

خوری دے (استعمالوی دے) بیا چه کله رپس دَ وجود دَشرطونو یعنی بلوغ او پوهے ذکر شوے نه) دَ دوی مالونه دوی ته حواله کوئے نو رغوره دچم دَ دوی (مالونه دوی له په ورکولو باندے گواهان هم اونیسئ (شاید چه څه وخت څۀ اختلاف راشی نو گواهان به په کار شی) او (رهیسے خو) الله تعالیٰ حساب اغستونکے پوره دے (که خیانت مونه وی کړے نو که گواهان نه وی هم خیر دے ځکه چه اصل حساب دَ چا سره چه ئے تعلق دے هغه ئے صفائی پیژنی، او که خیانت شوے دی نو دَ گواهانو موجودوالے هم نفع نه ورکوی۔ ځکه دَ چا سره چه به حساب کول وی هغه ته دَ هر څۀ پته ده۔ گواهان صرف دَ ظاهری انتظام دَ پاره په کار دی)

# معلومات او مسئلے

**مال دَ ژوند سرمایه ده او دَ دے حفاظت پکار دے**

په دے ایاتونو کښے ئے یو طرف ته دَ مال اهمیّت او په انسانی ژوند کښے ئے دَ دے لوئے دخل بیان کړو، زړونو ته ئے دَ دے دَ حفاظت دعوت ورکړه۔ بل طرف ته ئے دَ مال دَ حفاظت متعلق دَ یو عام کوتاهئ اصلاح او فرمایله۔ هغه دا چه بعضے خلق دَ طبعی محبت او مینے دَ غلبے په وجه بے تجربے او نابالغو بچو او ناپوهه ښځو ته خپل مالونه حواله کوی چه لازمی نتیجه ئے دَ مال بربادی او ډیره زر تنگدستی او غربت وی۔

**ښځو، بچو او کم عقلو ته مالونه مه سپارئ**

دَ قرآن مفسّر حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما بیان فرمائی چه دَ قرآن مجید په دے ایات کښے دا هدایت دے، چه خپل پوره مال کم عقلو بچوا و ښځو ته په سپارلو سره ځانونه مه محتاجه او مفلسان کوئے۔ بلکه الله تعالیٰ تاسو لوه منتظمان او نگرانان جوړ کړی دی نو مال پخپل حفاظت کښے سا تئ په قدر دَ ضرورت سره دَ دوی په خوراک او اغوستن باندے خرچ کوئ۔ او که دوی دَ مال پخپله قبضه کښے اغستلو مطالبه هم او کړی نو معقوله خبره ورته کوئے او پوهه کوئے ئے۔ چه زړه ئے هم نا آزاریگی او مال هم نه ضائع کیږی۔ مثلاً داسے ورته وایئ چه دا هر څۀ ستاسو دَ پاره دی۔

چه لږه پوهه ستا سوا وشي بيا به ور کړے شي -

د حضرت عبد الله بن عباسؓ د دے تفسير مفهوم په هغې ټولو ښځو، بچو، او کم عقلو نا تجربه کارو لره شامل دے چا ته چه د مال په سپارلو باندے په مال کښې د نقصان خطره وي، خواه خپل بچي وي او که يتيمان وي، او خواه د امال د دے بچو او يتيمانو خپل وي يا ئې د سرپرستو وي - دا تفسير د ابو موسیٰ اشعريؓ نه هم نقل دے - او د تفسير امام حافظ طبريؒ هم دا اختيار کړے دے -

اګر چه د وړاندے ورو ستو آيا تو نو نه د دے حکم خاص والے د يتيمانو بچو سره معلوميږي يعنې چه دا حکم دے په يتيمانو پورے خاص وي - ليکن د الفاظو عام والے ښکاره ښکارئ دے - چه په دے کښې يتيم او غير يتيم ټول بچي داخل دي او شايد چه دلته کښې: اَمْوَالَكُمْ: د مخاطب په صيغه فرمائيلو کښې دا حکمت وي چه خپلو مالونو لره هم دا حکم شامل دے - او د يتيمانو مالونو لره هم - ترڅو پورے چه په دوي کښې هوښيارتيا را نه شي - نو د دوي د ذمه وارئ په وجه چه د دوي په تصرف کښې دي نو ګويا د دوي مالونه دي - او د دے نه په وړاندے آيات : وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ کښې او فرمائيل په دے سره ئې اصل حقيقت هم واضحه کړے دے چه د يتيمانو مال به دوي لره ورکول وي ځکه چه د دوي مال دے - نو د دينه پس څه مغالطه باقي نه پاتے کيږي -

د مال حفاظت ضروري کار دے، او د دے ضائع کول ګناه دے - د خپل مال په حفاظت کښې که څوک قتل شي نو شهيد دے - لکه د خپل ځان د حفاظت په کولو کښې چه د قتل کيد و د شهادت اجر وعده شوے ده - نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي:

| | |
|---|---|
| مَنْ قُتِلَ دُوْنَ مَالِهٖ فَهُوَ شَهِيْدٌ - (بخاري ص۳۳۲ جلد۱، مسلم ص۸۱ جلد۱) | "د خپل مال په حفاظت کولو کښې چه کوم سړے قتل شي نو دے شهيد دے (يعنې د ثواب په اعتبار سره په شهيدانو کښې شمار دے)" |

دارنګ ئې ارشاد فرمائيلے دے:

| | |
|---|---|
| نِعِمَّا بِالْمَالِ الصَّالِحِ لِلرَّجُلِ | "د نيک سړي د پاره د ده ښه او پاکيزه ماله |

الصّالح - (مشکوٰة ص۳۲۶) | دَ ژوند غوره سامان دے"

دارنګ ئے ارشاد فرما ئیلی دے۔

لَا بَأْسَ بِالْغِنٰى لِمَنِ اتَّقَى اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ (مشکوٰة ص۴۹۱) | "دَ کوم سړی چه دَ الله نه یریږی دَ دهٔ په مالدارئ کښے دَ دهٔ دین ته هیڅ نقصان نیشته"

په اخری دوه حدیثونو کښے دا خبره اوخودے شوه چه دَ نیک او پرهیز ګاره سړی مال دَ دهٔ دَپاره نقصانی نه دے۔ ځکه چه داسے سړے دَ الله تعالیٰ نه یریږی نو خپل مال به په ګناه کښے دَ خرچ کولو نه ساتی۔ دَ ډیرو اولیاؤ او صوفیانو نه چه دَ مال بَدْ والے نقل شوے دے نو هغه دَ داسے خلقو په باره کښے دے چه خپل کتلے مال په ګناهونو کښے خرچ کوی ځانله دَ اخرت عذاب ډیره وی۔ او چونکه انسان طبعی طور سره دَ مال دار کید و نه پس دَ اسراف او نورو ګناهونو نه دَ ځان ساتلو فکر پاتے کړی۔ په دے وجه دَ مال نه لرے او سیدل غوره ګڼړلے شوی دی۔ په قدر دَ ضرورت سره ئے لږ ګټل او دَ الله نوم اغستل، او دَ ډیر مال دَحساب کتاب نه ځان بچ کول، دا دَ پخوانو بزرګانو طریقه وه۔ په موجوده دَوَر کښے په خلقو کښے دَ دین او ایمان زیات اهمیّت نیشتے۔ دینوی ساز و سامان طرفته زیات ځیر کوُنکی دی، او په معمولی شان تکلیف لا ځکو ئے چه دَ ظاهری فیشن په خلاف ورزئ باندے هم دین پریخودو ته تیار ئیګی۔ په دے وجه دَ داسے خلقو دَپاره حلال مال ګټل او دَ هغے دَ محفوظ کولو زیات اهمیّت دے۔ دَ داسے قسم خلقو دَپاره نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

كَادَ الْفَقْرُ اَنْ يَّكُوْنَ كُفْرًا۔ (مشکوٰة ص۴۲۹) | "یعنی تنګسن انسان لره بعضے وخت کافر جوړه دَ لے شی"

حضرت سفیان ثوریؒ دَ دے په تشریح کښے فرمائی: كَانَ الْمَالُ فِيْمَا مَضٰى يُكْرَهُ، فَاَمَّا الْيَوْمَ فَهُوَ تُرْسُ الْمُؤْمِنِ۔ "یعنی په تیره زمانه کښے مال ساتل بدٔ نه ګڼړلے کیدل لیکن نن دا مال دَ مؤمن ډال دے"

دارنګ دوئ فرمائی: مَنْ كَانَ فِيْ يَدِهٖ مِنْ هٰذِهٖ شَيْئًا فَلْيُصْلِحْهُ فَاِنَّهٗ زَمَانٌ اِنِ احْتَاجَ كَانَ اَوَّلُ مَنْ يَّبْذُلُ دِيْنَهٗ: "یعنی دَ چا سره چه دَ روپواشرفو

څهٔ موجودوی هغهٔ لره پکار دی چه دغه مال په مناسب طریقه سره
په کاروا ولی، ځکه چه دا هغه زمانه ده چه که څهٔ حاجت را پېښ شی نو انسان به
دَ ټولونه وړاندے دَ خپل حاجت پوره کولو دَ پاره خپل دین خرڅ کړی - مطلب دا
دے چه دَ حاجت پوره کید و اهمیّت په دین دَ چلید و نه زیات شوے دے (مشکوٰة ص۱۰۹۴)

آزمائیلو حکم دَ نابالغو دَ پوهے او صلاحیت — په اولنی ایات کښے چه هرکله دا معلومه شوه چه په معاملاتو کښے ترڅو پورے دَ نابالغو
هوښیاری ثابته نه شی تر هغے پورے دی ته مالونه سپارلٔ نه دی په کار
په دے وجه ئے په دویم ایات کښے دَ بچو دَ تعلیم او تربیت انتظام او بیا پرے
دَ امتحان کولو او دَ دوی دَ صلاحیّت معلومولو احکام او خودل فرمائی:
وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰى إِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ: "یعنے دَ بالغ کید و نه اول اول وړے
وړے معمولی معاملے دَ اَغستلو خرڅولو دوی ته سپارئ او دَ دوی امتحان اخلئ
ترد ے چه دوی دَ نکاح قابل یعنی بالغ شی"- نو اوس په خاص طور سره دَ دے
اندازه او لګوئ چه دوی پخپلو معاملو کښے هوښیار شوی دی او که نه دی
هرکله چه پکښے هوښیاریتیا بیا موئ نو بیا دَ دوی مالونه دوی ته او سپارئ-
لنډ: دا چه دَ بچو دَ خاص طبیعت او چه دوی کښے دَ عقل او هوش راتلو په اعتبار
سره ئے دَ دوی درے درجے کړے - یوه دَ بلوغ نه اول، دوئیمه دَ بلوغ نه پس، دریمه
دَ هوښیاریتیا نه پس، دَ بلوغ نه اول دَ بچو او لیاؤ ته دا حکم دے چه دَ دوی
دَ تعلیم او تربیت کوشش دے کوی- په معاملو کښے دَ دوی دَ هوښیار ولو دَ پاره
دے وړے وړے معاملے دَ اَغستلو خرڅولو دَ دوی په لاس سره کوی- په ایات
کښے: وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى: دا مطلب دے - دَ دے نه امام ابوحنیفهؒ صاحب دا مسئله
را ویستلے ده چه نابالغ بچے کومے معاملے دَ اغستلو خرڅولو دَ خپلو او لیاؤ په اجازت
سره کوی هغه صحیح او نافذے دی-

دویم حکم دا دے چه هرکله دے بالغ او دَ نکاح قابل شی نو اوس دَ معاملاتو
او د تجربے په اعتبار سره دَ دوی دَ حالاتو جائزه اخلئ، که معلومه شوه چه د ے
پخپله نفع او نقصان پوهه شوے دے - او معاملے په ټهیک طریقه سره کوی
نو دَ دوی مالونه دوی ته او سپارئ-

دَبلوغ عُمر | په دے ایات کښے چه کوم ځائے دَ بلوغ حکم فرمائیلے شوے دے هلته قرآن کریم په دے باره کښے چه دَ ځمې بالغ کیدل په کوم عمر کښے کنړلے شی : فَإِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ : ئے اوفرمایه دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه اصل بلوغ دَخځهٔ عمر سره تړلے شوے نه دے ۔ بلکه دَ دے مدار په هغې نښنو دے کومے چه بالغانو ته وړاندے راځي ۔ دَ دے ښښو په اعتبار سره کوم وخت چه دے دَ نکاح قابل شی بالغ به کنړلے شی اګرکه عمر ئے دیارلس څوارلس کاله وی ۔ البته که په یو ځمې کښے دَ بالغ والی نښے ښکاره نه شی نو دَ عمر په اعتبار سره به دے بالغ مقرر کولے شی ۔ چه په دے کښے دَ فقهاؤ اختلاف دے ۔ بعضے دَ هلک دَ پاره اتلس کاله او دَ جینۍ دَ پاره اوولس کاله مقرر کوی ۔ او بعضے دَ دواړو دَ پاره پنځلس کاله ۔ دَ امام اعظم ابوحنیفهؒ په مذهب کښے فتوی په دے قول باندے ده ۔ چه هلک او جینۍ دواړه چه پنځلس کالو عمر ته اورسی ۔ نو شرعًا به بالغ کنړلے شی ۔ که دَ بلوغ نښے په کښے ښکاره شی او که نه ۔

هوښیارتیا به څنګه معلومیږی ۔ دَ اٰنَسْتُم مِّنْهُمْ رُشْدًا تشریح | دَ قرآن حکم دادے چه کله تاسو په دوی کښے هوښیارتیا معلومه کړئ نو هغه وخت دَ دوی مالونه دوی ته اوسپارئ ۔ دَ دے هوښیارتیا میعاد څهٔ دے ؟ قرآن مجید دَ دے اخری میعاد څهٔ وضاحت نه دے کړے، په دے وجه بعضے فقهاء دے طرف ته لاړهٔ ۔ چه تر څو پورے پوره هوښیارتیا په کښے معلومه نه کړے شی ۔ تر هغې وخته پورے دے دَ دوی مالونه دوی ته نهٔ شی سپارلے ۔ بلکه هم دغسے دے دَ وَلِي په حفاظت کښے وی، خواه که تول عمر په دے حالت کښے تیرشی ۔

او دَ امام اَعظم ابوحنیفهؒ تحقیق دادے چه دلته دَ نِشْتُوَالی دَ هوښیارتیا نه مراد هغه دے کوم چه دَ ورکوالی دَ اثر نه وی او دَ بالغ کیدو نه تر لسو کالو وروستو پورے دَ ورکوالی اثر ختم شی ۔ په دے وجه پنځلس کاله عمر دَ بلوغ او لس کاله دَ هوښیارتیا ټول پنځویشت کلو نه شو ۔ نو چه پنځویشت کالو ته اُورسی نو دهٔ ته به پوهه او هوښیارتیا ضرور حاصله شی ۔ دَ کوم په حاصلولو کښے چه ورکوالے او کم عمری حائله وه ۔ او قرآن کریم لفظ دَ رُشْدٍ : نکره راوړے دے طرف ته ئے هم اشاره کړے ده، چه مکمله پوهه او هوښیارتیا شرط نه ده ۔

څهٔ قدر دے هوښیار تیا هم وړے د پاره پوره ده - چه د دوی مالونه دوی ته ورکړے شی - په دے وجه د بنځوبیشتو کالو پورے په انتظار وکړې نو که پوره هوښیارتیا پکښے راهم نغلړ غبیا به هم د دوی مال دوی لره ورکړے شی - یا تے شوه مکمل هوښیاری او عقلمندی نو دا خو په بعضے خلقو کښے تول عمر هم نه راځی دوی همیشه ساده سوده وی - نو د دے په وجه سره به دوی د خپلو مالونه نه شی محروم کولے - البته که یوسړے څیړ پاګل او لیونے وی نو بیا د دهٔ حکم جُدا دے ، چه دے به همیشه د نابالغو بچو په حکم کښے وی - او د دوی مالونه بیچرته هم دوی ته نه شی حواله کولے - ترڅو چه د دهٔ لیونتوب لرے شوے نه وی - اګر چه تول عمرئے په دے لیونتوب کښے تیر شی -

| د یتیمانو د مال بے ځایه خرچ کولو ممانعت | لکه څنګه چه معلومه شوے ده - په دے ایات کښے ئے د دے خبرے خو دنه کړے ده - چه د یتیمانو مال |
|---|---|

دوی ته ترهغې وخته پورے مه حواله کوئ تر څو چه په دوی کښے څهٔ قدر پوهه او تجربه راننهٔ شی - او د دے د پاره خو ښکاره خبره ده چه نو ربه د څهٔ وخته پورے انتظار کولے شی -

نو په دے حالت کښے د دے خبرے امکان وه چه د یتیم اولیاء به د یتیم په مال کښے څهٔ داسے زیاتے اوکړی چه د یتیم نقصان به وی په کښے - په دے وجه ئے په راتلونکی ایات کښے اوفرمائیل :

وَلَا تَأْكُلُوهَا إِسْرَافًا وَبِدَارًا أَنْ يَكْبَرُوا : یعنے د دوی مالونه د ضرورت نه زیات په دے خیال سره مه خرچ کوئ چه دوی به بالغان شی نو بیا به دوی لره ورکول غواړی نو د دے بڅے نه ئے زر زر مه خوری - په دے ایات کښے ئے د یتیم ولی د دوه خبرو نه منع کړه - یو د دوی په مال د اسراف یعنے بے ځایه خرچ کولو نه - دویم د دے خبرے نه چه د دوی مال د ضرورت پخید ونه اول زر زر خرچ کول - په دے خیال سره چه بیا خو به دوی لوئے شی دا مال به دوی ته حواله شی ځما اختیار به ختم شی -

| د یتیم ولی د دهٔ د مال نه د ضرورت د پاره څهٔ اخستے شی | په اخر ایات کښے ئے د دے ضابطه بیان کړه - چه کوم سړے د یتیم بچی په پالنه او د دهٔ د مال په حفاظت کښے |
|---|---|

خپل وخت او محنت خرچ کوی نو اے دهٔ ته دا حق شته چه د یتیم د مال نه د خپل خدمت

حق څه اغستې شي؛ نو اوئې فرمائيل:

وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ: يعنې څوک چه حاجتمند نه وي خپل ضرورت دَبل طرف نه پوره کولې شي نو دهٔ لره پکار دي چه دَ يتيم دَمال نه دَ خپل خدمت حق نهٔ اخلي - ځکه چه داخدمت دَ دهٔ په ذمه فرض دے دَ دے معاوضه اغستل دهٔ لره جائز نه دي - بيا ئې اوفرمائيل:

وَمَنْ كَانَ فَقِيرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوفِ: يعنې دَ کوم يتيم ولي چه فقير او محتاج وي او بله څهٔ ذريعه دَمعاش ئې نه وي نو دے دَ يتيم دَمال نه په يو مناسب مقدار سره خوړے شي چه ضروري حاجتونه ئې پوره کيدے شي -

**دَمال سپارلو په وخت کښې ګواهان جوړه وَل**

په آخر کښې ئې ارشاد او فرمايه: فَإِذَا دَفَعْتُمْ إِلَيْهِمْ أَمْوَالَهُمْ فَأَشْهِدُوا عَلَيْهِمْ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا: يعنې چه هر کله دَ آزمايښ نه پس يتيمانو ته دَ دوي مالونه سپارئ نو څوک معتبر او نيک خلق پرے ګواهان کړئ - دَ دے دَ پاره چه که په راتلونکې کښې څهٔ جګړه جوړه شي - او ياد سانئ چه دَ الله تعالیٰ په حساب کښې هر شے دے -

**دَاوقافو اونورو مُلکی او مِلّی خدمتونو معاوضه**

دَ دے آيات نه يو فقهي ضابطه او اصول معلوم شو چه کوم خلق دَ اوقافو نګرانان دي، يا دَ جماتونو او مدرسو منتظمان دي - يا دَ مسلمان حکومتونو دَ ادارو ذمواردي يا دغه شان دَ نورو مُلکي يا مِلّي خدمتونو چه پوره کول ئې فرض کفايه وي - په دے باندے مامور وي - دَ دے صاحبانو دَ پاره هم بنهٔ او غوره داده چه که دَ دوي سره خپله څهٔ ګزاره وي چه دَ خپلو بچو ضروري خرڅونه پوره کولے شي - نو دَ دے ادارونه او دَ حکومت دَ بيت المال نه دے هيڅ نهٔ اخلي - ليکن که خپله ګزاره ئې نه کيږي او دَ کار کسب کولو په وخت کښې په دے کارونو کښې مشغوله وي - نو په قدر دَ ضرورت دَ دے ادارو نه مال اغستې شي - ليکن په قدر دَ ضرورت لفظ ته به ګوري - ډير خلق دَ ضابطے په طور دَ کاغذي خانه پرئ دَ پاره خپله ماهانه څه حصه مقرره کوي - ليکن په مختلفو طريقو سره دَ دينه ډير زيات په بے احتياطئ سره پخپل ځان او بال بچو باندے خرڅ کوي - دَ دے بے احتياطئ ځنې بيو دے بغير دَ خدائې دَ يره نه نور هيڅ نيشتے چه دے طرفته دَ آيات په آخري ټکړه کښې: وَكَفَىٰ بِاللَّهِ حَسِيبًا: ئې اوفرمائيل دَ تعلو عامو

او خوا صو توجه ئې دے طرفته را او کوو څوله چه د کومو خلقو سره د الله تعالیٰ د حساب
فکر وی هغه د نا جائزو مال اغستو نه بچ کیدے شی (الله دے مونږ له ده توفیق را کړی)

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ۖ وَ

د سړو د پاره هم حصه ده په هغې کښې چه پاتے کړی د مرګ نه پس مور او پلار او خپلوان - او

لِلنِّسَآءِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ مِمَّا

د ښځو د پاره هم حصه ده په هغې کښې چه پاتے کړی د مرګ نه پس مور او پلار او خپلوان لږ ه

قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ ۚ نَصِيبًا مَّفْرُوْضًا ۝٧ وَاِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ

وی او که ډیره - حصه ده مقرر کړے شوے - او هر کله چه حاضر شی د تقسیم په وخت

اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ فَارْزُقُوْهُمْ مِّنْهُ

کښې خپلوان او یتیمان او محتاجان نو دوی ته هم څه څیز اک ورکوئ د دے نه

وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا ۝٨ وَلْيَخْشَ الَّذِيْنَ

او وایئ دوی ته خبره روغه (د عقل) - او پکار ده چه او ویریږی هغه خلق چه

لَوْ تَرَكُوْا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعٰفًا خَافُوْا عَلَيْهِمْ ۖ

که پریدی د ځان نه وروستو اولاد ضعیفان نو د دوی خیال د ساتی یعنی چه زمونږ نه پس به د دے حال

فَلْيَتَّقُوا اللّٰهَ وَلْيَقُوْلُوْا قَوْلًا سَدِيْدًا ۝٩ اِنَّ الَّذِيْنَ

د دوی وی، نو پکار ده چه او ویریږی د الله نه او دوائی دے خبره برابره - کوم خلق چه

يَاْكُلُوْنَ اَمْوَالَ الْيَتٰمٰى ظُلْمًا اِنَّمَا يَاْكُلُوْنَ فِيْ

خوری مال د یتیمانو په ناحقه سره دغه خلق اچوی په

ع ۱۰ ۱۲ بُطُوْنِهِمْ نَارًا ۭ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيْرًا ﴿۱۰﴾

خپلو گیډو کښې اور لره - او ژر به داخل شي دوی اور ته -

## دَ آیاتونو ترون

په سورتِ نسآء کښې دَ اوّل نه دَ عامو انسانانو دَ حقونو او خاص دَ کورنۍ ژوند متعلق دَ حقونو بیان روان دے دَ دے نه په وړاندې آیات کښې دَ یتیمانو دَ حقونو بیان وُه - په دے ذکر شوو څلورو آیاتونو کښې هم دَ ښځو او یتیمانو دَ خاصو حقونو چه تعلق ئې دَ میراث سره دے بیان دے -

په اوّل آیات کښې ئې دَ جاهلیّت هغه رسم باطل کړو چه په دغه زمانه کښې به دَ ښځو دَ میراث حق نه منلے کیده - دے آیات دوی لره دَ خپلې شرعي حصے حقدار کړے - دَ دوی په حق کښې دَ کمی کولو او دَ نقصان رسولو سخته منع ئې اوکړه - بیا چونکه ذکر دَ میراث دَ حقدارو وُه - او په داسے موقع باندے دَ تقسیم په وخت کښې غیرحقدار یتیمان فقیران ښځې هم حاضریږي - نو په دویم آیات کښې ئې دَ دوی سره دَ ښهٔ سلوک او مراعاتو حکم اوکړه - لیکن دا حکم دَ وجوب دَ پاره نه دے بلکه مستحب دے -

دَ دینه پس په دریم او څلورم آیاتونو کښې هم دَ یتیمانو دَ احکامو په باره کښې دَ دے مضمون تاکید دے -

# لنډ تفسیر

دَ سړو دَ پاره هم (خواه واړهٔ وی او که لوئے) حصّه (مقرره) ده په هغه شي کښې کوم لره چه (دَ دے سړو) مور او پلار او (یا نور) ډیر نزدے خپلوان (دَ خپل مرګ په وخت کښې) پاتے کړی او (دغه شان) دَ ښځو دَ پاره هم (خواه وړے وی او که لوئے) حصّه (مقرره) ده په هغه شي کښې کوم لره چه (دَ دے ښځو) مور او پلار او (یا نور) ډیر نزدے خپلوان (دَ خپل مرګ په وخت) پاتے کړی خواه دغه (پاتے کړے شے) کم وی یا ډیر وی (دَ قول نه په میلاویګی) حصّه هم داسے چه په) قطعي طور سره مقرر ده (او کله چه وارثان ترکه تقسیموی دغه وخت (داخلق) موجود وی (یعنې دَ لوړے)

رشته دار (چه په میراث کښې ئې حق نه وی) او یتیمان او غریبان خلق (په دے توقع سره چه شاید مونږ ته به پکښې هم څه میلا وشی، رشته دار به ګمان د حقدارئ سره او نور خلق په اُمید د خیر خیرات سره) نو هغوی ته هم په دے (ترکه) کښې (د بالغانو او حاضرو د حقے نه) خوره وخے او ورکوئے او د دوی سره ښے (او نرمے) خبرے کوئے (دغه خبره د رشته دارو سره دا سے کوئے چه دوی پوهه کوئے چه په شریعت کښې ستاسو حصه په دے کښې نیشتے مونږ معذوره یو- او نورو ته داسے چه څهٔ ورلوه ورکړئے نو احسان پرے مه ز باطوئے) او (د یتیمانو په باره کښې) داسے خلقو لره یره پکار ده چه که د خپل ځان نه پس واړهٔ واړهٔ بچی پاتے کړی (مړهٔ شی) نو د دے (بچو) به د دوی سره فکر وی (چه هسے نه څوک ئے ازار نه کړی، نو هم دغسے د نورو د بچو د پاره هم خیال سا تل پکار دی چه دوی لوهٔ ډوُلے مونږ ازار کړو) پس (د دے خبرے د سوچ کولو سره) دے خلقو لوه پکار دی چه (د یتیمانو په معامله کښې) د خدائے تعالیٰ (د حکم د مخالفت) نه او یرېګی (یعنی ازار او ضرر دے نه ورسوی) او (قولاً هم دوی ته) د مو قع خبره کوئ (په دے کښې د تسلیٰ او دلجوئی خبره هم راغله، او د تعلیم او ادب خبره په کښې هم راغله، غرض د دوی د مال او جان دواړو اصلاح کوئ) بے شکه کوم خلق چه د یتیمانو مال بے د استحقاق نه خوری نور هیڅ نه دی په خپله ګیډه کښې (د دوزخ) د اور (سکروټے) اچوی (یعنی د دے خوراک انجام دا دے) او (دا انجام ډیر لرے نه دے ځکه چه) ډیر زر (به د دوزخ) بل کړی اور کښې داخل شی (هلته به دا انجام اووینی) -

# مَعْلُومَاتْ اَوْمَسْئَلے

**د مورو پلار او نورو خپلوانو په مالونو کښې د میراث حق**

د اسلام نه اول په عربو کښې د کمزوری قسم د یتیم بچی او ښځو همیشه بد حال تیر شوے دے او ظلم او زیاتے پرے کیدو- اول خو به چا د دوی حق نه منلو- او کچرته منلے به هم شو نو د سړو نه د دوی وصولول او د دے محفوظ سا تل د چا په قدرت کښې نهٔ و-

اسلام د ټولو نه اول دوی لره حقونه ورکړهٔ، بیائے د دے حقونو د حفاظت مکمل انتظام او کړو- د وراثت په قانون کښې هم عامو قومونو د دنیا د معاشرے دا دواړه کمزوری

جز د نه دَ خپل فطری او واجبی حقو نو نه محروم کړی وُو ۔

عربو خو اصول دا جوړ کړی وُو چه دَ میراث مستحق صرف هغه دے کوم چه په اس سوریږے شی او دَ دشمن مقابله کولے شی او دَ غنیمت مال جمع کولے شی (روح المعانی ص ۲۱۰ ج ۴)

بنکاره خبره ده چه دا دوا ړه قسمونه ضعیف ښځے او بچی په دے اصولو کښے نه راتلل۔ نو په دے وجه دَ دوی دَ اصولو په بِنا صرف ځوان بالغ هلک دَ میراث حقدارُ وُه ۔ جینئ خو به مطلق وارثه نه شوه گنړلے، که بالغه به وه او که نابالغه ۔ او هلک هم چه بالغ به نه وُه، نو دَ میراث حقدار به نه وُه ۔

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په مبارک وخت کښے یو واقعه داسے پیښه شوه چه اوس بن ثابت رض وفات شو، دوه جینکئ یو نابالغ هلک او یوه ښځه ئے وارثان پاتے شو - لیکن دَ عربو دَ زوړ دستور مطابق دَ ده دوه دَ تره ځامن راغله اودَ مرحوم په ټول مال ئے قبضه اوکړه ۔ او اولاد او ښځے له ئے ورله هیڅ شے هم ورنه کړه - ځکه چه دَ دوی په نزد ښځه خو مطلق محرومه وه دَ میراث نه کلویه به وَه او که وړه ۔ نو ښځه او دواړه لونړه خوئے دغسے محروم مے شوے ۔ او پاتے شو هلک نو هغه دَ وړوکوالی په وجه محروم کړے شو۔ نو په دے وجه ټول مال ئے دَ تره دوه ځامنو قبضه کړو ۔

دَ اوس بن ثابت رض ښځے دا هم غوختل چه دا دَ تره ځامن چه ټول مال ئے قبضه کړو نو دا دوه جینکئ دے هم په نکاح واخلی چه دَ دوی دَ فکرونه خو بے غمه شم - لیکن هغو دا جینکئ قبولے نه کړے - نو دَ اوس بن ثابت رض دَ غه کونډه نبی کریم صلے الله علیه وسلم لوه راغله او خپل حال ئے ورته بیان کړو - تر دغه وخته پورے په قرآن شریف کښے دَ میراث آیات نه وُه نازل شوے - نو په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم په جواب ورکولو کښے صبر اوکړه ځکه چه دَ دوئی دا یقین وُه چه دَ وحیِ الٰهی په ذریعه به دَ دے ظالمانه قانون دَ بدلولو حکم خامخا راشی - نو دغه وخت دا آیات شریف نازل شو ۔

لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ تر نَصِيبًا مَّفْرُوضًا پورے ۔ او دَ دینه پس نور دَ میراث آیاتونه نازل شو - چه دَ حِصّو تفصیلات په کښے دی ۔ او دَ دے سورت په دویم رکوع کښے

دَ دے تفصیلات دی - نبی کریم صلے اللہ علیہ وسلم دَ قرآن دَ حکم مطابق دَ ټول
ترکے اتمہ حِصّه دغے کونډے لوه ورکړه - او باقی ټول مال ئے دَ مرحوم په څوئی اولونړو
کښے داسے تقسیم کړو چه نیم ئے هلک له ورکړه او نیم ئے په دوا ړو جینکو برابر تقسیم کړو
او دَ ترهٔ ځامن ئے چونکه دَ اولاد په نسبت زیات نزدے نه وُو نو هغوی تہ ئے محروم
شو (روح المعانی)

| | |
|---|---|
| دَ میراث دَ مستحق کید و ضابطه | دے ایات دَ وراثت دَ یوڅو احکامو په ضمن کښے دَ وراثت دَ قانون ضابطه بیان کړه - |

:مِمَّا تَرَکَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ: دے دوه لفظونو دَ میراث دوه بنیادی
اصول او ښودل - یوه رِشته دَ وِلادت ربیدا کیدو) چه دَ اولاد او مور و پلار
په منځ کښے ده - او کومه چه په لفظ دَ : وَالِدٰنِ: سره بیان شوه - دویم عامه
رشته داری چه په لفظ دَ اَقْرَبُوْنَ: سره بیان شوه - او صحیح داده چه په لفظ دَ
"اَقْرَبُوْنَ": کښے هر قسم خپلوی او رشته داری راځی - خواه که دَ غه رشته دَ یو بل
نه دَ پیدا کیدو وی لکه چه اولاد او مور و پلار کښے ده - یا بل شان وی - لکه عام خپلوئ
او خاندانی رشتے، یا هغه رشتے چه دَ نکاح په تعلق سره پیدا شوی وی - لفظ دَ
"اَقْرَبُون" دے ټولو لوه راګیره وُنکے دے - لیکن مور و پلار لره ئے دَ وجه دَ دوی دَ زیات
اهمیت نه جدا بیان کړه - بیا دے لفظ دا هم او ښوده - چه مطلق رشته داری دَ
وراثت دَ پاره پوره نه ده - بلکه په رشته کښے اَقْرَبْ (زیات نزدے) والے شرط دے
ځکه چه که زیات نزدے والے معیاری شرط مقرر نه کړے شی - نو دَ هر یو مړ کیدو ونکی
وراثت به دَ دُنیا په پوره آبادئ تقسیمول ضروری شی - ځکه چه ټول دَ یو مور
پلار آدم او حواء علیهما السلام نه پیدا شوی دی - او دَ نزدے زمانے څهٔ نه څهٔ رشته
خو به ټولو کښے موجود ده - او دا عملاً کید ے هم نه شی او که څوک ئے کوشش کوی
او دا انتظام او کړی چه حصه ئے تقسیموُم نو چا چا ته به ئے رسوی او څومره څمونهٔ
به ترے جوړه وی - او دغه به بیا دَ چا څهٔ پکار راشی - نو په دے وجه ضروری شوه چه
کله دَ وراثت دارمدار په رشته داری باندے شو نو اصول داسے په کار شو چه که دَ
نزدے او لرے مختلف رشته داران جمع وی نو نزدے لره به په لرے ترجیح ورکوی
چه نزدے رشته داروی نو لرے ته به حصه نه ملاویږی - البته که څهٔ رشته دار

داسې دي چه په یو وخت سره تول اقرب وي. اګر چه وجهٔ دَ اقربیت په دوی کښې مختلفې وي نو بیا به دا تول دَ وراثت حقدار وي، لکه چه دَ اولاد سره مور و پلار یا ښځه وغیره، نو دا تول اقرب دي، اګر چه وجهٔ دَ اقربیت په کښې مختلفې وي.

دار نلئ یوه بله خبره دے لفظ دَ «اقربون» دا او خوده چه لکه څنګه چه سړی دَ میراث حقدار ګڼړلے شي دغه شان ښځې او بچي هم دَدے حق نه نه شي محرومه کولے ځکه چه رشته دَ اولاد وي، یا دَ مور و پلار، یا بل قسم رشته وي په هره یوه کښې دَ رشته دارئ حیثیت په هلک او جینئ کښې یو شان دے. لکه څنګه چه هلک دَ مور و پلار نه پیدا شوے دے دغه شان جینئ هم دَ دوی نه پیدا شوے ده. نو چه دَ میراث حق په رشته باندے شو نو واړهٔ بچي یا جینئ ترے څنګه محرومه کولے شي.

بیا دَ قرآن شریف اسلوب ته او ګورئ چه: لِلرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ: په جمع سره په لنډو الفاظو کښې هم دَ دوی دَ حق بیان کیدے شو. خو داسے ئې او نه کړه. بلکه دَ سړو دَ حق چرئے په کوم تفصیل سره بیان کړے دے، هم په دغه تفصیل او تشریح سره ئې دَ ښځو حق جُدا بیان کړو. چه دَ دواړو دَ حقو نو جدا والے او اهمیت ښکاره شي.

دار نلئ دَ دے لفظ دَ «اَقْرَبُوْنَ»: نه یوه خبره دا هم معلومه شوه چه دَ میراث دَ مال تقسیم دَ ضرورت په مِعْیار سره نه دے بلکه دَ قرابت (خپلولئ) په معیار سره دے. په دے وجه دا ضروري نه ده چه په رشته دار وکښې څوک زیات غریب او حاجت مند وي دے به زیات حقدار ګڼړلے شي. بلکه څوک چه سړی ته په رشته کښې زیات نزدے وي هغه به په نسبت دَ لرے باندے زیات مستحق وي. اګر چه ضرورت او حاجت دَ لرے رشته دار زیات وي. که دَ نزدے والي ضابطه پاتے کړے شي ضرورت او حاجت معیار مقرر کړے شي. نو دَ دے بیا هیڅ ضابطه نه شي جوړیدے. او نه دَ یو محکم قانون شکل اختیاره وَلے شي. ځکه چه دَ اقربیت نه علاوه بل معیار به لامحاله وقتي او اجتهادي وي. ځکه چه فقر او حاجت څهٔ دائمي شے نه دے نو دغه شان حالات هم بدلیږي او درجے هم. او په دے صورت کښې به بیا دَ مستحق کیدو دیر دعویدار را پیدا شي او فیصله به پکښې بیا ګرانه وي.

**دَ یتیم نمسیٖ دَ میراث مسئله**

که په دے قرآنی اصولو باندے ځان پوهه کړے شی نو دَ یتیم نمسی دَ میراث مسئله چه نن صباپه وجه یوه دَجګړے مسئله جوړه شوے ده هغه به په قطعی طورسره حل شی - چه اګرچه یتیم نمسے دَ ځوئی په نسبت زیات حاجتمند وی - لیکن دَ: اقربون: دَ قانون په وجه دے دَ میراث حقدار نه شی کیدے - ځکه چه دے دَ ځوئی په موجودګئ کښے اقرب نه دے - البته دَده دَ ضرورت پوره کولو دَپاره نور انتظامات شوی دی په کومو کښے چه یوه غه شان انتظام په راتلونکی ایات کښے راځی -

په دے مسئله کښے دَ مغربی تعلیم دَدے نوُو تعلیمیافته وُو نه علاوه بل چا اختلاف نه دے کړے، ټول اُمّت تر ننه پورے دَ قرآن او حدیثو نه هم دغه معلومه کړے ده چه دَ ځوئی په موجودګئ کښے نمسی ته میراث نه ملاویږی خواه که دَده پلار موجود وی او که مړ وی -

**دَ مړشوی په میراث (ملکیت) کښے چه څهٔ وی ټول په تقسیم کښے داخل دی**

په دے ایات کښے ئے، مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ: او فرمائیل دَ یو بل جاهلانه رسم اصلاح ئے اوفرمائیله - هغه دا چه په بعضے قومونو کښے دَ بعضے قسم مال دَ بعضے خاص وارثانو دَپاره مخصوص کولے شو مثلاً اَس او توره وغیره وَسله دا صرف دَ ځوانانو سړو حق وُه - نور وارثان به ترے محروم کولے شو - دَ قرآن دے هدایت دا او خودله چه دَ مړی په ملکیت کښے چه هر څهٔ شے وی، خواه لوئے وی او که وړوکے په هر شی کښے دَ وارثانو حق دے - یو وارث له یو خاص شے بغیر دَ تقسیم نه ځانله ایخودل جائز نه دی -

**دَ میراث مقرر حصے دَ الله دَ طرف نه مقرر شوی دی**

په اخری ایات کښے چه ئے او فرمائیل، نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا: په دے سره ئے دا خبره هم ښکاره کړه چه دَ مختلفو وارثانو کومے مختلفے حصے چه قرآن مقرر کړی دی دا دَ خدائے دَ طرف نه مقرر شوے حصے دی په دے کښے چا له په خپل قیاس او رائے سره کمے زیاتے یا دَ ردو بدل کولو هیڅ حق نیشته -

**میراث یو جبری ملک دے په دے کښے دَ مالکوالی رضامندی شرط نه ده**

او دَدے لفظ: مَفْرُوْضًا: نه یوه بله مسئله دا هم معلومه شوه چه دَ میراث په ذریعه سره کوم ملکیت وارثانو ته منتقل کیږی دا جبری (یعنے دَ زور) ملکیت دے - نه په دے کښے دَ

وارث قبلول شوط دی، او نهٔ په دے باندے دَدهٔ راضي کیدل - بلکه که دے په ژبه سره په ځا اکره دا هم او وائی چه زهٔ خپله حصّه نهٔ اَخلم - بیا هم دے شرعًا دَخپلې حصې مالک دے - دا بل خبره ده چه دے ئے مالک جوړشی او دَ شرعی قاعدے مطابق ئے چا دویم تن ته اُوبخی یائے خرڅه کړی یائے په چا تقسیم کړی -

**دَمیراث نه دَ محرومو رشته دارانو زړهٔ ساتل او تسلی ضروری ده**

دَ مړی په رشته دارانو کښے به څهٔ داسے خلق هم وی چا ته چه دَ شرعی ضابطے لاندے په میراث کښے حصّه نهٔ میلاویږی - لیکن دا ښکاره خبره ده چه دَ فرائضو دَ تفصیلاتو علم هر چا ته نهٔ وی - په عام طور سره هر یو رشته دار دا خواهش لری چه دهٔ ته هم په میراث کښے حصّه ملاؤ شی - په دے وجه هرهغه رشته دار چه دَ شرعی ضابطے لاندے دَمیراث نه محرومه شی - دَمیراث دَ تقسیم په وخت کښے دَ دوی زړه خفه کیږی - او خاص چه بیا دَمیراث دَ تقسیم په وخت کښے دوی موجود هم وی، او چه بیا خاص طور سره په دوی کښے یتیمان او مسکینان او حاجتمند هم وی - په داسے وخت کښے چه نور رشته داران خپله خپله حصّه وړی - او دوی ورله په روی گوری، نو دَ دوی دَ افسوس او غم ځنځی انداره صرف هغه خوک کولے شی په چا چه داسے حال تیر شوے وی -

اوس دَ قرآنی نظام ښهٔ والی ته اوګورئ چه یو طرفته پخپله دَ قرآن خود لے عادلانه ضابطه داده چه دَ اَقرَبُ په مقابله کښے اَبعَدُ (لرے) محروم دے - دویم طرفته دَ اَبعَد زړه خفه کول هم نه غواړی، نو په دے وجه ئے په یو مستقل آیات کښے دا هدایت او فرمایه:

وَاِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ تر قَوْلًا مَّعْرُوْفًا : یعنے کوم دَ لرے رشته داران او یتیمان مسکینان په میراث کښے چه دَ حصے اغستو نه محروم کیږی - که دوی دَمیراث دَ تقسیم په وخت کښے موجود وی نو دَمیراث موندونکو اخلاقی فرض دی چه دَ دے مال نه پخپل اختیار سره څهٔ حصّه دوی له هم ورکړی چه دا دَ دوی دَ پاره یو قسم صدقه او ثواب دے - او په داسے وخت کښے چه هر کله یو مال بغیر دَ څهٔ محنت او کوشش نه محض دَ الله تعالیٰ دَ دین په وجه دوی ته مِلاویږی نو دَ الله په لاره کښے دَ صدقاتو او خیراتو مینه دَ خدا نه هم دَ دوی په زړهٔ کښے را تلل په کار دی - لکه چه دَ دے یو مثال په بل آیات کښے ذکر دے : كُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَاٰتُوْا حَقَّهٗ يَوْمَ حَصَادِهٖ : یعنے دَ خپل باغ میوه خورئ

هر کله چه دغه میوه پښېده شي او په کومه ورځ چه میوه شوکوئ نو حق ترې اوباسئ فقیرانو او مسکینانو لره ئے ورکوئ (دا ایات په سورت انعام کښې راځي)

لندیز دا دی چه د میراث د تقسیم په وخت کښې که د لرې رشته داران یتیمان مسکینان وغیره جمع شي چه خپله حصه ئے د شرعي ضابطے په طور سره په کښې نه وي - نو د دوي په جمع کید و تاسو مه خفه کیږئ بلکه کوم مال چه خدائے تعالیٰ تاسو ته بے محنته درکړو په دے کښې په طور د شکرانے سره دوي ته هم څه ورکړئ - او دا غنیمت گڼړئ چه د خرچ یوه ځیره ښه موقع درته میلاویږي - په دے ورکړو سره به د دوي د زړونو خفگان لرے شي - په دے کښې د مړي د میراث نه محروم شوي هم راځي - د دوي ترونو او ترورانو لره په کار دي چه د خپلے خپلے حصے نه په خوشحالئ دوي لره څه ورکړي -

د ایات په آخر کښې ئے او فرمائیل: وَقُوْلُوْا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوْفًا : که داخلق دغه شان په دے لږ و ورکړو وباندے هم راضي نه وي بلکه د نورو سره برابر حصه غواړي نو د دوي دا مطالبه د شرع د قانون نه خلاف او غیر منصفانه ده - په دے وجه د دوي د دے مطالبے د پوره کولو خوځه گنجائش نیشته - لیکن بیا هم دوي ته څه داسے خبره مکوئ چه زړهٔ ئے پرے ماتیږي او ازاریږي - بلکه په معقول طور سره دے دوي پوهه کړے شي چه د شرعي قاعدے په بنا ستاسو په میراث کښې څه حصه نیشته - مونږ چه در لره څه درکوو دا محض احسان دے - او دا خبره هم معلومول په کار دي چه دے خلقو لره څه ورکوي د غه دے د شریک مال نه ورکوي - بلکه بالغ وارثان کوم چه حاضر وي هغوي به د خپلے حصے نه ورکوي - د نابالغو او غائبو د حصو نه ورکول جائز نه دي -

د میراث د تقسیم په وخت کښې د خدائے نه یره کول پکار دي: په دریم ایات کښې عامو مسلمانانو ته عام خطاب دے چه د دے خبرے دے پوره پوره اهتمام کوي چه د مړي تَرکه د دهٔ اولاد ته پوره پوره میلاؤ شي - او د هرے داسے طریقے نه دے ځان ساتي په کومه کښې چه د اولاد په حصه باندے خراب اثر غورزیږي - د دے په عموالی کښې دا هم داخله ده چه کله تاسو یو مسلمان په څهٔ داسے وصیت کولو یا تصرف کولو وویني چه کوم سره چه د دهٔ اولاد یا نور و وارثانو ته د نقصان رسید ویره وي نو په تاسو لازم ده چه دهٔ لره د داسے وصیت یا د داسے تصرف نه منع کړئ - لکه څنګه چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه لره د خپل ټول مال یا نیم مال د صدقه کولو نه منع کړو

او مرض دَ دریمې حصې مال صدقه کولو اجازت ئې ورته اوکړه (مشکوٰة باب الوصایا ص۲۶۵)
ځکه چه پوره مال یا نیم مال ئې صدقه کولے نو دَ وارثانو حصې ختمیدے یا کمیدے -
دارنګه دَ دے په عامواِلی کښې داهم داخل دی - چه دَ یتیمانو په اولیاؤ باندے
دَ دوی دَ مال حفاظت او بیا په بالغ کیدو ئې دوی ته پوره پوره دَ ورکولو اهتمام لازم دے -
په دے کښې دے معمولی شان کمی هم نه کوی - او دَ نورو دَ یتیمانو بچو دَ حالا تو دے
دَ خپلو بچوا و دَ خپل محبت سره موازنه کوی کوری دے - او که دے غواړی چه دَ دهٔ
نه پس دے دَ دهٔ دَ اولاد سره خلق ښهٔ سلوک اوکړی چه دے نه پریشانه کیږی،
او نه دے پرے ظلم څوک کوی - نو دهٔ لوه پکار دی چه دَ نورو دَ اولاد یتیمانو سره
دے هم دغه معامله کوی، کومه چه دے دَ خپل اولاد په حق کښې غواړی -

| دَ یتیم مال په ظلم سره خوړل په ګیډه کښې سکروټے اچول دی | په څلورم ایات کښې دَ یتیمانو مال په ناجائزه سره دَ خوړونکو دَ پاره دَ سخت عذاب وعده ده - چه کوم |
|---|---|

سړے په ناجائز طور سره دَ یتیم مال خوری دے خپله ګیډه دَ جهنم دَ اور نه ډکوی -
دے ایات دَ یتیم مال دَ جهنم اور مقرر کړے دے - ډیرو مفسرینو دا په تشبیه
او کنایه باندے حمل کړے دے - یعنی دَ یتیمانو مال په ناحقه خوړل داسے دی لکه
څوک چه خپلے ګیډے ته اور اچوی - ځکه چه انجام ئې په آخرت کښې هم دغه شان کیږی
لیکن دَ تحقیق کونکو قول دا دے چه په دا ایات کښې څهٔ مجاز او کنایه نیشته - بلکه کوم
مال چه دَ یتیم په ناجائزه طریقه سره او خوړے شی هم هغهٔ په حقیقت کښې اور دے
اګر چه دا وخت دَ دے شکل دَ اور نه معلومیږی - لکه یو سړے چه مارچس ته
اور وائی چه دا اور دے یا سنکیا ته قاتل او وائی - نو دا خو ښکاره خبره ده چه مارچس
په لاس کښې دَ اغستو سره لاس نه سیزی - او دَ سنکیا په لاس کښې دَ اغستو یا خولے کښې
دَ ایخودو سره څوک نه مری - البته دَ لږو مرۂ لو نه پس به معلومه شی چه چا مارچس
ته اور وئیلے وهٔ هغه صحیح وه - دغه شان دَ حلق نه په لاندے تیریدو سره به معلومه
شی چه سنکیا ته دَ زهر وئیلے وړونکے رښتونے وهٔ - دَ قرآن کریم دَ عامو اطلاقونو نه هم دَ دے
تائید کیږی چه انسان کوم عمل نیک یا بد کوی دا عمل دَ جنت وُنے ګلونه او میوے دی
یا دَ جهنم سکروټے دی - اګر چه شکل ئې دلته بل شان دے مګر په قیامت کښې به
بچپلو شکلونو باندے ښکاره شی - دَ قرآن کریم ارشاد دے: وَ وَجَدُوْا مَا عَمِلُوْا حَاضِرًا:

"یعنې د قیامت په ورځ به دے خپل عمل پخپله مخ کښې موجود بیا مومي". یعنې کوم عذاب او ثواب چه دوئ ته په نظر راشي، دغه به په حقیقت کښې د دوئ خپل عمل وي۔

په بعضې روایتونو کښې دي چه د یتیم مال په ناحقه خوړونکي به د قیامت په ورځ په داسې حالت کښې پورته کړے شي چه د خیټې د دننه نه به د دوئ د اُور لمبې په خوله پوزه او غوږونو او سترګو راوځي۔

او نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه یو قوم به د قیامت په ورځ داسې راپورته کړے شي چه د خولو نه به ئې د اور لمبې راخیژي۔ صحابه کرامو عرض اوکړه چه یا رسول الله دا به کوم خلق وي؟ دوئ اوفرمائیل چه د لے تاسو قرآن نه دے لوستلے: اَلَّذِیْنَ یَاْکُلُوْنَ اَمْوَالَ الْیَتٰمٰی ظُلْمًا الآیة: (ابن کثیر ص۴۵۶ : ج ۱)

د دے آیات د مضمون نچوړ دا شو چه د یتیم کوم مال چه په ناحقه اوخوړے شي دغه به په حقیقت کښې د جهنم اور وي۔ اګر که دا وخت اُور نه ښکاري۔ په دے وجه نبي کریم صلی الله علیه وسلم په دے معامله کښې د سخت احتیاط کولو د پاره واضح هدایات ورکړي دي، حضرت ابو هریره رضی الله عنه فرمائي چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے:

اُحَرِّجُ مَالَ الضَّعِیْفَیْنِ الْمَرْأَةَ وَالْیَتِیْمَ ۔ (ابن کثیر ص۴۵۶ : ج ۱)

"زۀ تاسو ته په خاص طور سره د دوه ضعیفانو د مال نه د بچ کیدو خبردارے درکوم یوه ښځه او بل یتیم"

د سورت نسآء په اول رکوع کښې د اول نه تر آخره پورے په عام طور سره د یتیمانو احکام دي، د یتیمانو د مالونو حفاظت کول، او د دوئ مالونه خپل مال نه جوړه ول۔ دوئ له د میراث په شریک مال کښې د حصے ورکولو حکم ئې فرمائیلے دے۔ او د لوئیدو د ډیرے نه د دوئ مال زر زر ختمول، د یتیمانو جینکو سره په دے غرض نکاح کول چه مهر به ورله کم کړم، یا به ئې په مال قبضه اوکړم وغیره د دے ټولو کارونو منع ئې فرمائیلې ده۔

په آخر کښې ئې د یتیم مال په ناحقه خوړو ته کیډے ته اُور اچول اووے۔ دلته ئې خوړل وئیلي دي لیکن د یتیم مال په ناحقه په هر شان چه استعمال شي خوړل وي او که استعمالول ټول حرام او د عذاب باعث دے۔ ځکه چه په محاوره کښې د چا مال په ناحقه خوړل هر رنګه استعمال له شامل دے۔

هر کله چه یو سړے وفات شی نو د ده د مال د هرے هرے حصے او هر لوئے وړوکی شی سره د هر وارث حق پیوست شی. د ده نابالغ بچی یتیمانان شی. د دے بچو سره عام طور په هر یو کور کښے ظلم او زیاتے کیږی او هغه سړے چه د دے بچو د پلار د وفات نه پس چه په مال باندے قبضه اوکړی خواه د دے بچو تره وی او که مشر رور وی او یا مور وی یا بل ولی یا وصی وی اکثر په دے مال کښے هغه قسم تصرف کوی د کوم چه په دے رکوع کښے منع شوے ده - اول خو تر ډیرو کلونو پورے مال نه تقسیموی، د دے بچو په روټی جامه څه لږ ډیر خرچ کوی، او بیا په بدعتو نو رسمونو او فضولیاتو کښے د دے شریک مال نه خرچ کوی، او بچپله ځان له هم خرچ کوی، او په سرکاری کاغذاتو کښے ئے هم نوم بدل کړی د خپلو بچو په نوم ئے کړی - دا هغه خبرے دی چه خدائے خبر که چرته یو کور ترے هم خالی وی -

مدرسو او یتیم خانو ته چه کومه چنده د یتیمانو په نوم راځی دا هم په یتیمانو باندے نه خرچ کول په یو صورت کښے د یتیمانو مال هضم کول دی -

**مسئله:** د مړی د بدن کپړے هم په ترکه کښے شاملے دی - دغه د تقسیمولو نه بغیر هم دغسے خیرات کولے شی، او په بعضے علاقو کښے د مړی د استعمال د تانبے پیتلو وغیره لوخی د مال د تقسیم نه بغیر هم دغسے فقیرانو ته ورکولے شی - حال دا دے چه په دے ټولو کښے د نابالغو او غیر حاضرو وارثانو هم حق دے - اول دے مال تقسیم شی او د مړی اولاد ښځے مور و پلار، خویندے او کوم کوم وارثانو ته چه شرعًا حصه رسی هغوی ته دے ورکړی - د دے نه پس بچپله خوښئ سره کوم سړے چه غواړی د خپلے خپلے حصے نه په مړی پسے خیرات کړی - خو دا صرف بالغان کولے شی - د نابالغ اجازت هم په شریعت کښے معتبر نه دے - او کوم وارث چه غیر حاضر وی د هغهٔ په حصه کښے هم د هغهٔ د اجازت نه بغیر تصرف جائز نه دے -

**مسئله:** د مړی مقبرے ته د وړو په وخت کښے چه کوم څادر په جنازه د پاسه اچولے شی، دغه په کفن کښے شامل نه دے - دغه د مړی په مال اخستل جائز نه دی ځکه چه دغه مال شریک دے - په بعضے علاقو کښے د مړی د کفن د کپړے نه امام لره د مصلی د پاره کپړه تیاره وی او بیا دغه مصلی (جانماز) امام لره ورکولے شی - دا خرچ هم د کفن د ضرورت نه زیاتی دے نو د مړی په مال ئے اخستل جائز نه دی -

**مسئله:** په بعضې ځایونو کښې دَمړی دَغسل دَ پاره نوی لوښي اغستے شي- او بیا دغه لوښي ما تولے شي- اول خو دَ نوؤ لوښو دَ اغستو ضرورت نیشته ځکه چه پکور کښې چه کوم لوښي موجود وی په هغې هم غسل ورکیدے شي- او کر دَ اغستو ضرورت ئے پیښ شي نو بیا ئے ماتول جائز نه دی:- اول په دے وجه چه دا خو مال ضائع کول دی او دویم دا چه په دے کښې دَ یتیما نو او غائبو وارثا نو حق دے-

**مسئله:** دَ ترکے دَ تقسیم نه اول په دے کښې دَ میلمنو میلمستیا کول او صدقه او خیرات کول هیڅ جائز نه دی- په دے قسم خیر و خیرات سره مړی ته هیڅ ثواب نه رسی او بیا دَ دا سے خیرات ثواب کنړل خو ډیر سخت گناه دے- ځکه چه دَ مړی دَ مرګ نه پس اوس دا ټول مال دَ ټولو وارثا نو مشترک حق دے، او په دوی کښې یتیمانان هم وی- دَ دے شریک مال نه خیرات کول دا سے دی لکه چه دَ چا نه غلا او کړی او په مړی پسے ئے خیرات کړی- اول تقسیم دَ مال دے- دَ هغې نه پس که وارثان پخپلو حصو کښې پخپله مرضئ سره دَ مړی په حق کښې خیر خیرات کوی نو دوی له ره اختیار دے- خو دَ یتیم او غائب مال به نه لږه وی-

دَ تقسیم نه اول هم دَ وارثا نو په اجازت باندے دَ شریکې ترکے نه خیرات کول جائز نه دی، ځکه چه په دوی کښې ځنې یتیمان وی نو دَ هغوا جازت معتبر نه دے او کوم چه بالغان وی په هغوی کښې هم کیدے شي ځنې دا سے وی چه دَ زړه نه به ئے نه وی، او دَ لحاظ ملا ذے په وجه اجازت ورکوی- یا په دے وجه چه یره خلق به را باندے بَدْ وائی دَ دغې بد وئیلو دَ شرم دَ وجې نه اجازت ورکړی او زړه ئے نه غواړی- ځکه چه په شریعت کښې صرف هغه مال حلال دے چه په طیب نفس سره ورکړی- لکه چه دَ دے تفصیل مخکښې تیر شوے دے-

دلته مونږ دَ یو بزرګ واقعه نقل کوؤ چه دا مسئله به پرے زیاته واضحه شي- دے بزرګ دَ یو مسلمان دَ بیمار پُرسئ دَ پاره تشریف یوړو- لږ ساعت دَ مریض سره ناست وُو- چه په دے کښې دَ هغه روح لاړو- په دے موقع چه کومه چریوه بلیده وه دوی هغه فورًا مړه کړه او دَ خپل جیب نه ئے پیسے ورکړے تیل ئے را اوغوختل او ډیوه ئے اوکړه- خلقو ترے دَ دے پټوس اوکړه نو اوئے فرمایل چه ترڅو پورے دا سړے ژوندے وو- دا ډیوه دَ دهٔ ملکیت وه او دَ دے استعمال دهٔ له ره

جائز وه - او س دے د دے دُنیا نه رخصت شو - نو د رڼه په صحیح شی کښے د وارثانو حق
راغے - په دے وجه د ټولو وارثانو د اجازت نه بغیر مونږ دا ډیوه نه شو استعمالولے او
هغه ټول دلته موجود نه دی - نو په دے وجه م ئے خپلو پیسو باندے تیل راوغوختل
او ډیوه م ترے اوکړه -

---

يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ ۗ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ۚ

حکم کوی تاسو ته الله ستاسو د اولاد په حق کښے - چه د سړی یوه حصه ده د دوه ښځو برابر -

فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۚ وَاِنْ

بیا که صرف ښځے وی د دوه ؤ نه زیاتے نو ځغوی لره به دریو کښے دوه (⅔) دی د هغه مال نه چه ئے

كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ؕ وَلِاَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ

پاتے کړے دے - او که یوه ښځه وی نو د هغے نیم مال دے - او د مړی د مور و پلار هر یو د پاره د دوی

مِّنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ اِنْ كَانَ لَهٗ وَلَدٌ ۚ فَاِنْ لَّمْ

نه شپږمه (⅙) حصه ده د هغے مال نه چه مړی پاتے کړو که د مړی اولاد وی - او که اولاد ئے

يَكُنْ لَّهٗ وَلَدٌ وَّوَرِثَهٗٓ اَبَوٰهُ فَلِاُمِّهِ الثُّلُثُ ۚ فَاِنْ كَانَ

نه وی او وارثان ئے مور او پلار وی نو د مور ئے بیا دریمه (⅓) حصه ده - که د مړی ورونړه

لَهٗٓ اِخْوَةٌ فَلِاُمِّهِ السُّدُسُ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصِيْ بِهَآ

وُو نو د مور ئے شپږمه (⅙) حصه ده پس د وصیت د مړی نه او یا د اداکولو

اَوْ دَيْنٍ ؕ اٰبَآؤُكُمْ وَاَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ

د قرض نه - ستاسو پلار او اولاد تاسو ته نه ده معلومه چه کوم به نفع او رسوی

لَکُمْ نَفْعًا ۚ فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ⑪

تاسو ته زیاته - حصه مقرر کړے شوے ده د الله نه - بے شکه الله خبردار دے حکمت والا

## د آیاتونو ربط

په تیره رکوع: لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الخ کښے د میراث د حقدارانو اجمالاً ذکر وه - په دے رکوع کښے د دغے حقدارانو د میراث د بعضے قسمونو ذکر دے - او د دوی د مختلفو حالاتو په اعتبار سره د دوی حصے بیان شوی دی - د دے سلسلے څۀ تفصیل د سورت په آخر کښے راځي - او د دے نه پاتے حصو تفصیل په احادیثو کښے شوے دے - فقهاؤ دا ټول تفصیلات راجمع کړي دي او یو مستقل فن د "فرائض" په شکل کښے ئے ترے تیار کړے دے -

په دے ذکرشوی آیات کښے د اولاد او د مور و پلار حصے بیان شوی دی او د دے سره د میراث څۀ نورے مسئلے هم ذکر دی -

## لنډ تفسیر

الله تعالیٰ تاسو ته حکم کوی ستاسو د اولاد (د میراث) په باره کښے (چه دغه د اُم) د هلک حصه د دوه جینکو برابره (یعنے که یو هلک او یوه جینۍ وی او که هلکان او جینکۍ گډ وی نو د دوی د حصو به د یو بل په مابین نسبت دا وی چه هر هلک ته به دوچند او هرے جینۍ ته یو چند میلا ویږی) او که (په اولاد کښے) صرف جینکۍ وی د دوه وُو نه چه زیاتے وی نو دے جینکو ته به د ټول مال نه دوه ثُلُثه (۲/۳) میلا ویږی د دغے مال نه کوم چه دے مړی پریخودے دے (او که دوه جینکۍ وی نو بیا هم ورته دوه ثُلثه (۲/۳) میلا ویدل خو بشکاره خبره ده - ځکه چه که په دوی کښے د دے یو جینۍ په ځائے هلک وے نو بیا هم د دے جینۍ حصه اگر چه د هلک نه کمه ده خو دریمے (۱/۳) حصے نه نه شی کمیدے نو بس چه دویمه هم جینۍ ده نو د هغے حصه هم د دریمے نه شی کمیدے - او دوا ړه جینکۍ په یو حالت کښے دی - نو د دے هم دریمه شوه نو چه د دواړو حصے یو ځائے شوے نو دوه ثُلثه (۲/۳) شو - البته په دریو جینکو کښے دا شک وه چه شاید درے واړو ته به دریمه میلا وُشی نو ټول جائداد به د دوی شی په دے وجه ئے او فرمائیل چه اگر که جینکۍ د دوه وُو نه زیاتے وی خو د دوه ثلثو (۲/۳) نه به

نه زیاتیګی) او که یوه جینۍ وی نو دے ته به (دَ ټولے ترکے نه) نیمه ملاویږی (او په اول صورت کښے یو پاتے ثُلث یعنے دریمه حصّه او په دویم صورت کښے پاتے نیمه حصّه دَ نورو خاصو خاصو خپلوانو حق دے - او که نوروا سے هیڅوک نه وی نو دغه به هم بیا دوی ته واپس شی - لکه چه تفصیل ئے دَ فقے په کتابونو کښے دے) او مورو پلار ته په میراث ملاویدو کښے درے صورتونه دی - په یو صورت کښے دوی ته یعنے په دواړو کښے دَ هر یو دَ پاره دَ مړی په ترکه کښے شپږمه حصه (مقرره) ده - او که دَ مړی څهٔ اولاد وی (خواه نارینه وی یا ښځے او خواه یو وی یا زیات وی - او پاتے میراث به اولاد او نورو خاصو خاصو وارثانو ته مِلاؤ شی - او که بیا هم څهٔ پاتے شی نو بیا به ټول لوره ورکولے شی) او که دَ دے مړی څه اولاد نه وی او (صرف) دَ دهٔ مورو پلار دَ دهٔ وارثان وی (دا دویم صورت دے او "صرف" ئے حُکم او دے چه رور خور ئے هم نه وی لکه چه وړاندے راځی) نو په دے صورت کښے) دَ دهٔ دَ مور دریمه حصّه ده (او باقی دوه حصّے ئے دَ پلار دی او چونکه دا خبره په فرض صورت کښے ښکاره وه په دے وجه ئے وضاحت او نه شو) او که دَ مړی دَ یو نه زیات خویا ندے رونړه (دَ هر قسم چه) وی (خواه په پلار مور دواړو کښے شریک وی چه عینی ورته وائی خواه صرف دَ پلار نه وی چه علاتی ورته وائی - غرض هر قسم چه وی او دَ یو نه زیات وی او اولاد ئے نه وی او مور و پلار ئے وی او دا دریم صورت دے) نو په دے صورت کښے) دَ دهٔ مور ته به شپږمه حصّه ملاویږی (او باقی به دَ پلار وی، دا ټولے حصّے) دَ وصیّت (قدر رمال) ویستلو نه پس چه مړے دَ دے وصیّت او کړی یا قرض (که وی نو دَ دے دَ ویستو نه هم پس (به تقسیمیږی) ستاسو پلار او اولاد هر څوک چه دی تاسو (دَ دوی متعلق) په پوره طور سره دا نه شئ معلومولے چه په دوی کښے کوم یو سړے تاسو ته (دنیوی یا اخروی) نفع رسولو کښے (په اعتبار دَ توقع سره) زیات نږدے دے (یعنے که ستاسو رائے ته ئے دا خبره پاتے کړے وے نو تاسو دَ میراث دَ تقسیم مدار به نفع رسولو سره ایخوده او دَ دے هیڅ یقینی طریقه دَ هیچا سره نیشته نو تقسیم به صحیح نه کیده په دے وجه الله پاک دَ خپل طرفنه حصّے مقرر کړے چه دَ مصلحت علم ئے دَ هغه سره دے ستاسو په ذهن کښے نه راځی) دا حکم دَ الله دَ طرف نه مقرر کړے شوے وے (او دا کار) په یقین (سره منلے شوے دے) چه الله تعالیٰ لوئے علم

ذَالله او حکمت والا دے ( پس دَ کومو کسانو نو چه ئے په دے کښې رعایت کړے دے په خپل علم سره حصه معتبر دی، په دے وجه ستا سو دَ رائے پابندے ئے پاتے نه کړو )

## معلومات او مسئلے

**په میراث باندے وړمبی حقونه**

دَ شریعت دا اصول دی چه دَ مړی دَ مال نه اول دَ شریعت مطابق دَ دهٔ کفن دفن خرچونه پوره کړی داسے چه فضول خرچی په کښې هم نه وی او کنجوسی هم نه وی - دَ دینه پس به دَ دهٔ قرضے ادا کړے شی- او که قرضے ئے دومره وی چه دَ دهٔ ټول مال په کښې ختمیږی یا پرے زیاتے وی نو نه به ئے میراث خور ته څهٔ میلاویږی او نهٔ به وصیت پوره کولے شی- او که دَ قرضو نه پس مال پاتے شو یا قرضے بالکل نه وے- نو که دهٔ څهٔ وصیت کړے وی او هغه وصیت دَ ګناه نه وی - نو اوس چه کوم مال موجود دے دَ هغے په دریمه حصه کښې به دغه وصیت پوره کولے شی- که یو سړے دَ خپل ټول مال وصیت اُو کړی خو بیا به هم په دریمه حصه کښې نافذ وی - دَ دریمے حصے دَ مال نه زیات وصیت کول مناسب هم نه دی او دَ وارثانو دَ محرومه کولو په نیت سره وصیت کول ګناه هم دے-

دَ قرض اداء کولو نه پس به په دریمه حصه کښې وصیت پوره کړی او په وارثانو به تقسیم کړے شی چه تفصیلات ئے دَ میراث په کتابونو کښې موجود دی - که وصیت ئے نه وی کړے نو دَ قرض اداکولو نه پس به ټول مال په وارثانو تقسیم کړے شی -

**دَ اولاد حصه**

لکه چه په تیره رکوع کښې تیر شوی دی چه دَ میراث تقسیم به دَ اَقْرَبْ فَالْاَقْرَبْ په اصولو باندے وی - دَ مړی اولاد او مور و پلار چونکه ډیر نزدے دی نو په دے وجه به دوی ته په هر حال کښې میراث میلاویږی- دا دواړه رشتے دَ انسان دَ ټولو نه نزدے او بے واسطے رشتے دی - نورے رشتے په واسطه سره دی- په قرآن شریف کښې اول دَ دوی حصے بیان شوی دی- او دَ اولاد دَ حصو نه ئے شروع کړے ده لکه چه ارشاد دے :

يُوْصِيْكُمُ اللّٰهُ فِيْٓ اَوْلَادِكُمْ الخ : دا یو داسے قاعده کلیه ده چه هلکان او جینکۍ دواړه ئے دَ میراث حقدار جوړ کړه او دَ هر یو حصه ئے هم مقرر کړه او دا اصول

معلوم شو چه که دَ مړي په اولاد کښې هلکان او جينکۍ دواړه وي نو دَ دوي په حصه کښې چه کوم مال راشي دا سے به تقسيمېږي چه هر يو هلک ته به دَ جينۍ په مقابله کښې دوچنده ملا ويږي مثلاً دَ يو سړي يو ځوئي او دوه لونړه وي نو مال به څلور حصے شي $\frac{2}{4}$ هلک ته او $\frac{1}{4}$ به هرے يوے جينۍ ته ورکړے شي -

**جينکو ته دَ حصے ورکولو اهميّت**

قرآن مجيد جينکو ته دَ حصے ورکولو دومره اهتمام کړے دے چه دَ جينکو حصه ئے اصل مقرر کړے دے او دَ دوي په اعتبار سره ئے دَ هلکانو حصه خودَلے ده - او دَ: لِلْاُنْثَيَيْنِ مِثْلُ حَظِّ الذَّكَرِ: (دوه جينکو ته دَ يو هلک دَ حصے په قدر) دَ فرمائيلو په ځائے ئے: لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ: (هلک ته به دَ دوه جينکو دَ حصے په قدر) په الفاظو سره ئے تعبير فرمائيلے دے ـــ کوم خلق چه خويندو ته حصه نهٔ ورکوي - او هغوي ئے په دے وجه معاف کوي چه يره ميلا ويکي خو هسے هم نه نو دَ رونړو سره پرے ذړهٔ وَلے بده وُم - دا سے معافي په شريعت کښې معافي نه ده - دَ دوي حق دَ رونړو په ذمه واجب پاتے کيږي او دا سے خلق سخت ګناه ګار دي - په دوي کښې بعضے جينکۍ نابالغے هم وي دوي لره حصه نه ورکول دوچند ګناه دے - يو دَ شرعي وارث حصه لا ندے کول او دويم دَ يتيم دَ مال دَ خوړو -

دَ دينه پس په زيات وضاحت سره دَ جينکو حصه دا سے بيانوي:-

: فَاِنْ كُنَّ نِسَآءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ؛ يعنے که نارينه اولاد ئے وي او صرف جينکۍ وي او دَ يوے نه زياتے وي نو دوي ته به دَ مړي دَ مال نه دوه ثلثه ($\frac{2}{3}$) ميلا ويږي چه دغه ټولے جينکۍ ئے په برابر حصه سره حقدارے دي او باقي دريمه حصه به نورو وارثانو ته مِلاؤ شي - مثلاً دَ مړي مور، پلار، ښځه ياخاوند وغيره دَ ميراث حقدارانو ته به مِيلاؤ شي - دوه جينکۍ او دَ دوه وُو نه زياتے ټولے به په دغه دوه ثلثه ($\frac{2}{3}$) کښې شريکے وي -

دَ دوه وُو نه دَ زياتو حکم خو په قرآن شريف کښې په دے آيات کښې ښهٔ په ډاګه سره ذکر دے، لکه چه دَ: فَوْقَ اثْنَتَيْنِ: الفاظ په دے باندے دلالت کوي- او که جينکۍ دوه وي نو دَ هغو هم دا حکم دے کوم چه دَ دوه وُو نه دَ زياتو حکم دَے دَدے ثبوت په حديث شريف کښې ذکر دے:

عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدُ اللهِ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ
حَتّٰى جِئْنَا بِمَرْءَةٍ مِّنَ الْاَنْصَارِ فِى الْاَسْوَاقِ فَجَاءَتِ الْمَرْءَةُ بِابْنَتَيْنِ لَهَا
فَقَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَاتَانِ بِنْتَا ثَابِتِ ابْنِ قَيْسٍ قُتِلَ مَعَكَ يَوْمَ اُحُدٍ
وَقَدِ اسْتَفَاءَ عَمُّهُمَا مَالَهُمَا وَمِيْرَاثَهُمَا كُلَّهٗ وَلَمْ يَدَعْ مَالًا اِلَّا اَخَذَهٗ
فَمَا تَرٰى يَا رَسُوْلَ اللهِ فَوَاللهِ لَا تُنْكَحَانِ اَبَدًا اِلَّا وَلَهُمَا مَالٌ فَقَالَ
رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِى اللهُ فِىْ ذٰلِكَ وَقَالَ نَزَلَتْ
سُوْرَةُ النِّسَاءِ "يُوْصِيْكُمُ اللهُ فِىْ اَوْلَادِكُمْ" الاية: فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى
اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُدْعُوْا اِلَىَّ الْمَرْءَةَ وَصَاحِبَهَا. فَقَالَ لِعَمِّهِمَا اَعْطِهِمَا الثُّلُثَيْنِ
وَاَعْطِ اُمَّهُمَا الثُّمُنَ وَمَا بَقِىَ فَلَكَ (ابوداؤد كتاب الفرائض ويمعناه فى الترمذى
ابواب الفرائض)

(ترجمه: دَجابر رضى الله عنه نه روايت دے دے فرمائى چه يو وار مونږه دَ
نبى كريم صلى الله عليه وسلم سره باهر او وتو په دے كښے مونږه په اسواف
كښے په يوه انصارى ښځه باندے راغلو هغې ښځې خپلے دوه لونړه را وستے
او او ئے وے چه اے دَ الله رسوله دا دواړه جينكئ دَ ثابت بن قيس رضى الله عنه (چه
خاخاوند وه) لونړه دى. كوم چه ستاسو سره دَ احُد په غزا كښے
شهيد شوے دے. دَ دے جينكو تره دَ دوى په ټول مال او ټول ميراث
باندے پخپله قبضه كړے ده او دوى ته ئے هيڅ شے نه دے پاتے كړے
په دے معامله كښے تاسو څه فرمايئ. په خدائے قسم دے كه دَ دے جينكو
مال نه وى نو هيڅ څوك به هم دَ دوى سره نكاح كولو ته تيار نه شى
نبى كريم صلى الله عليه وسلم چه دا او اوريده نو او ئے فرمائيل چه الله تعالیٰ
به ستاسو په حق كښے فيصله او كړى. حضرت جابر رضى الله عنه فرمائى چه بيا هغه كله سورت
نساء نازل شو (يُوْصِيْكُمُ اللهُ فِىْ اَوْلَادِكُمْ الخ) نو نبى كريم صلى الله عليه
وسلم او فرمائيل چه هغه ښځه او ليورئے (دَ جينكو هغه تره چه دَ دوى په
ټول مال ئے قبضه كړے وه) را او غواړئ. نو حضور دَ دغه جينكو تره
ته او فرمائيل چه دَ ټول مال دوه ثلثه (⅔) جينكو لره وركړه او مور لوئے اتمه
او كوم چه پاتے شى هغه ستا شو)

په دې حديث کښې چه دَکومې مسئلې ذکر دې په دې کښې حضورؐ دوه وُو جينکو لره هم دوه ثلثه (۲/۳) حصه ورکړه لکه څنګه چه په قرآن کښې په ذکر شوې آيات کښې دَدوه وُو نه دَزياتو حکم وه -

دَدې نه پس ئې ارشاد اوفرمايه: وَاِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ: يعنې که دَمړی په اولاد کښې صرف يوه جينۍ وه او نارينه اولاد ئې بالکل نه وُه - نو دا جينۍ به دَخپل مَړُ پلار (يا مور) په مال کښې نيمه حصه (يعنې دَټول مال نيمه) اخلی - او باقی نيمه به دَ نورو وارثانو وی -

**دَمور او پلار حصه**

دَدې نه پس الله تعالیٰ جلّ شانه دَمړی دَمور و پلار حصې اوخودلې - او درې حالتونه ئې ورلره ذکر کړه -

اول حالت دا چه مور و پلار ئې دواړه ژوندی وی او اولاد ئې هم وی خواه که يو هلک يا يوه جينۍ وَلې نه وی - په دې صورت کښې دَمور او پلار شپږمه شپږمه حصه ده - او نور به ئې اولاد، بنځه يا خاوند اخلی، او په بعضې حالاتو کښې چه دَتقسيم نه څۀ بچ پاتې شی نو هغه هم پلار ته دَسی دَخپلې مقرره شپږمې حصې نه علاوه دَفرائضو په اصطلاح کښې دې ته "استحقاق تعصيب" وائی -

دويم حالت ئې دا اوخوده چه دَمړی اولاد او خويندې رونړه نه وی او مور و پلار ئې موجود وی نو په دې صورت کښې به دَمړی په پاتې مال کښې دريمه (۱/۳) دَمور وی او نور پاتې دوه حصې به دَ پلار وی - دا دَ هغې صورت حکم دې چه دَمړی بنځه يا خاوند هم نه وی - او که خاوند يا بنځه ئې موجود وُو نو اول به ترې دَدوی حصه جدا کوی او په پاتې کښې به ۱/۳ مور اخلی او ۲/۳ پلار -

دريم حالت دا دې چه دَمړی اولاد نه وی ليکن خويندې رونړه ئې موجود وی چه تعداد ئې دوه وی خواه دواړه رونړه وی يا دواړه خويندې وی يا دَ دوه وُو نه زيات وی - نو په دې صورت کښې به مور ته شپږمه حصه ملاويږی او که نور څوک وارثان ئې نه وُو نو پاتې ۵/۶ به پلار ته ملاو شی دَخويندو ورونړو په موجودګۍ کښې دَمور حصه کمه شوه خو البته خويندو ورونړو ته څۀ نه ميلاويږی ځکه چه پلار د په نسبت دَ ورور خور زيات نږدې دې - څۀ چه پاتې شی هغۀ به دَ پلار وی په دې صورت کښې دَمور حصه دَ ۱/۳ نه ۱/۶ شوه - دَ فرائضو په اصطلاح کښې دې ته

"عجب نقصان" وائي۔ او دا خو يا ندے د دونړه دَ کوموبه وجه چه دَ مور و پلار حصّه کمه کيږی (کميږی) خواه حقيقي وی خواه پلار شريک وی يا مورشريک وی، په هرصورت کښے چه وی خو دَ مور حصّه کميږی په دے شرط چه دَ يَو نه زيات وی۔

دَ مقرره حصو دَ بيانولو نه پس ئے اوفرمائيل: اٰبَآؤُكُمْ وَاَبْنَآؤُكُمْ لَا تَدْرُوْنَ اَيُّهُمْ اَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا فَرِيْضَةً مِّنَ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا: يعنے دَ اولاد او مور و پلار دا حصے الله تعالىٰ پخپله طورسره مقرر کړی دی، او الله تعالىٰ ته هر څۀ معلوم دی، او هغه حکيم هم دے کوم حصے چه ئے مقرر کړيدی، په دے کښے لوئے حکمتونه دی۔ که ستاسو په رائے باندے ئے دَ ميراث تقسيم ايخے وے نو تاسو به دا سے تقسيم کاوُه چه دَ چا نه مو دَ زياتے نفعے اُميد وے هغوته به موُ ورکاوه۔ ليکن دا خبره چه نفع رسان به څوک وی؟ او دَ چا نه زياته نفع به دَ چا نه رسی؟ دَ دے يقيني علم حاصلول ستاسو دَ پاره ګران وُو، نو په دے وجه ئے دَ نفع رسانۍ په ځائے اقربيت لره مدار دَ حکم جوړ کړه۔

دَ قرآن حکيم دے آيات دا خبره او خوره چه دَ ميراث کوم حصے الله تعالىٰ مقرر کړيدی دا دَ هغه فيصله شوے حکم دے په دے کښے چا ته دَ خپلے رائے ورکولو يا کمی زياتی کولو څۀ حق نيشته۔ او تاسو لره څۀ په زړۀ سره دَ دے قبلول په کار دی۔ ستاسو دَ خالق او مالک دا حکم په حکمت او مصلحت باندے مبنی دے ستاسو دَ نفعے يو اړخ هم دَ هغۀ دَ احاطے دَ علم نه باهر نه دے۔ او کوم حکم چه هغه کوی دَ څۀ مصلحت نه خالی نه وی۔ تاسو ته دَ خپلے نفع او نقصان پوره علم نيشته که دَ تقسيم دَ ميراث مسئله ئے ستاسو رائے ته پاتے کړے وے نو تاسو به خامخا خپله ناپوهئ په وجه صحيح فيصله نه وه کړے شوے۔ نو الله تعالىٰ دا فرض پخپله ذمه واخستل چه دَ مال په تقسيم کښے عدل او انصاف پوره پوره قائم شی او دَ مړی سرمايه په منصفانه طريقه سره دَ مختلفو مستحقينو په لاس لو کښے ګرځيدلو شی او کړی او فائده ئے پريدو ته اورسی۔

وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ اَزْوَاجُكُمْ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ

او ستاسو دے نيم مال کوم چه پاتے کړی ستاسو ښځے که نه وی دَ دوی اولاد

فَإِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْ بَعْدِ

او که د دوی اولاد وی نو ستاسو د پاره څلورمه ده د هغې نه چه پاتې کړی پس د

وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۚ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ

وصیت نه چه اوئې کړی یا پس د قرض نه - او د ښځو د پاره څلورمه حصه مال ئې د هغې نه

إِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ

چه تاسو پاتې کړی که نه وی ستاسو اولاد او که ستاسو اولاد وی نو د وی لره

الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِّنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ

اتمه حصه مال ئې د هغې نه چه تاسو پاتې کړی پس د وصیت نه چه تاسو ئې اوکړی یا پس د قرض نه -

# لنډ تفسير

**د آیاتو نوټرون** تر او سه پورې د میراث د هغې مستحقینو د حصو بیان وُه - د کوموچه د مړی سره د نسب او پیدائش رشته وه په دې ذکرشوې آیات کښې د بعضې نورو مستحقینو ذکر دې - او د مړی سره د د وی رشته د نسب نه ده - بلکه د ښځې خاوند ده - چه بیان ئې دا دې :

او تاسو ته به نیمه ملاویګی د هغې ترکې نه چه ستاسو بیبیانې ئې پاتې کړی که د دوی څۀ اولاد نه وُو - (نۀ نارینه او نۀ ښځه او نه لګۀ او نه ډیر) او که د دې بیبیا نو څۀ اولاد وی (خواه ستاسو نه یا د وړاندینی خاوند نه) نو په دې صورت کښې) تاسو ته د د وی د ترکې نه څلورمه میلا ویګی (لیکن په هر یو صورت کښې د امیراث) د وصیت (قدرې مال) ویستلو نه پس چه هغۀ د دې وصیت اوکړی یا قرض (که چرې وی نو د دې د ویستلو) نه پس (به ملاویګی) او بیبیا نو ته به څلورمه ملا ویګی د هغې ترکې نه چه تاسو ئې پاتې کړې (خواه دغه ښځه یوه وی او که ډیرې وی نو دوی به په دغه څلورمه کښې برابر حصه لغلی

که ستاسو څهٔ اولاد نه وي (نهٔ نارینه نهٔ زنانه نهٔ یو نهٔ ډیر) او که ستاسو څهٔ اولاد وي (نو په دې صورت کښې په) دوی ته (خواه که ښځه یوه وي او که ډیرې) ستاسو په ترکه کښې اتمه حصه ملاویږي (دا هم دوه صورتونه دي او په دواړو صورتونو کښې به باقي ترکه نورو وارثانو ته ملاویږي، لیکن دا میراث) د وصیت (د قدرې مال) ویستلو نه پس چه تاسو د دې وصیت کړے وِه یا قرض (که چرې وي نو د دې د ویستلو نه پس (به ملاویږي)

# معلومات او مسئلے

**دخاوند او ښځې حصه** په دې بره کو ښو کښې د خاوند او ښځې حصے مقرر شوے او اول ئے د خاوند حصه او خوده، شاید چه د دې دپاره نه ئے کو لو وجه دا وي چه د دهٔ اهمیت ښکاره کول مقصود دے۔ ځکه چه د ښځې د وفات نه پس خاوند د بل کور سړے شي۔ که د پلار په کور ښځه مړه شي او د دې مال حلته وي نو بیا د دغې مال نه خاوند له د حصے ورکولو نه ډډه کولے شي۔ نو ځکو یا د دے زیاتي بندولو د پاره ئے د خاوند د حصے اول بیان اوکړه۔ او تفصیل د دے دا دے چه که دغې مړے شوے څهٔ اولاد نه وي پاتے کړے، نو خاوند ته به پس د قرض او وصیت پوره کولو نه د دے مړے ښځې په مال کښې نیمه حصه ملاویږي او باقي نیمه به ئے د نورو وارثانو وي لکه مور پلار خور رور به د قاعدے مطابق په کښې خپله خپله حصه اخلي۔

او که د دے مړے ښځې اولاد پاتے کړے وي خواه یو وي او که ډیر، حلک وي او که جینۍ، د دے خاوند نه ئے وي او که د بل نه ئے وي نو په دے صورت کښې به دے موجوده خاوند ته د دے مړے ښځې په مال کښې د قرض او وصیت پوره کولو نه پس به باقي مال کښې څلورمه حصه ملاویږي۔ او باقي درے حصے به نورو وارثانو ته ملاویږي۔ دا د خاوند د حصے تفصیل وه۔

او که خاوند مړ شو او دهٔ څهٔ اولاد نه وِه پاتے کړے نو د قرض او وصیت پوره کولو نه پس به ښځې ته د دے مړه خاوند په مال کښې څلورمه حصه ملاویږي۔ او که دهٔ څهٔ اولاد پاتے کړے وِه خواه د دے ښځې نه وي او که د بلے نه نو په دے صورت کښې به

پس د اداء کولو د قرض او وصیت پوره کولو نه اتمه حصه ملاویږي - او که بنځې د یوې نه زیاتې وې نو ټولې به دغې ذکر شوي تفصیل مطابق د دغې یوې بنځې په حصه کښې شریکې وي - او ټولې به دغه یوه اتمه یا څلورمه حصه په خپل مینځ کښې برابر برابر تقسیموي (داسې نه چه کوندې هره یوه به څلورمه یا اتمه حصه اخلي) او په دې دواړو حالتونو کښې چه د خاوند یا بنځې د خپلې حصې اغستو نه پس څه پاتې شي هغه به د مړي په نورو وارثانو تقسیمولے شي -

**مسئله:-** خو دا کتل پکار دي چه د بنځې مهر ئې ورکړے دے او که نه دے - که د بنځې مهر ئې نه وُه اداء کړے نو د نورو قرضو پشان به اول د دغې ترکے نه د مهر قرضه ادا کړے شي، د دے نه پس به نوره پاتې ترکه تقسیمولے شي - او د مهر اغستو نه پس به بنځه خپله د میراث حصه هم اخلي - او که د مړي مال دومره وي چه د مهر ادا کولو نه پس هیڅ نه پاتې کیږي نو هم به د نورو قرضو په شان ټول مال د مهر په قرضه کښې بنځې لره ورکړے شي - بل یو وارث ته هیڅ هم نه ملاویږي -

---

وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً اَوِ امْرَاَةٌ وَّلَهٗٓ اَخٌ اَوْ

او که وي هغه سړے چه میراث ترې پاتې شي پلار ځوئ هیڅ ئې نه وي یا بنځه داسې وي او د دې مړي یو ورور

اُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَاِنْ كَانُوْٓا اَكْثَرَ

یا خور وي نو په دواړو کښې د هر یو شپږمه حصه ده - او که زیات وي د دے

مِنْ ذٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِي الثُّلُثِ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ

نه نو ټول شریک دي په دریمه کښې پس د وصیت نه

يُّوْصٰى بِهَآ اَوْ دَيْنٍ ۙ غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ؕ

چه شوے وي یا قرض، هغه کله چه د نورو نقصان ئې نه وي کړے، دا حکم دے د الله،

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۲﴾

او الله دے په هر څه پوهه بُرد بار ه -

# لنډ تفسير

**دَ ایاتونو تړون** دَ نسب او ښځے خاوند والی نه چه کوم رشتے پیدا کیږی دَ هغے دَ مختصر حقوقو بیانولو نه پس اوس کوم داسے مړی دَ ترکے حکم بیانولے شی دَ کوم نه چه اولاد یا مور و پلار پاتے نه شی -

او که هغه مړے چه میراث ئے نورو ته ملاویږی خواه دغه مړے سړے وی او که ښځه دا سے وی چه نه ئے اُصول وی (یعنے پلار نیکه) او نه ئے فروع وی (یعنے اولاد او دَ اولاد بچی) او دَ دهٔ (مړی) یو ورور یا یوه خور (اخیانی) وی نو په دے دواړو کښے به هر یو ته شپږمه حِصّه ملاویږی، او که دوی دَ دے نه (یعنی دَ یو نه) زیات وُور مثلاً دوه یا دَ دے نه زیات) نو دوی ټول به په دریمه حصه کښے (یو شان برابر برابر شریک وی (او په دوی کښے دَ نر او ښځے حصّه یو شان ده ، او باقی میراث به ئے نورو وارثانو ته ملاوُ شی) او که دَ دوی نه علاوه نور څوک نه وُو، نو دغه پاتے به بیا دَ دوی شی، دا دوه صورتونه شوا او په دواړو صورتونو کښے (میراث) دَ وصیّت (قدرِ مال) ویستلو نه پس چه وصیّت ئے کړے وی یا دَ کم چرے) قرض (وی نو دَ دے دَ ویستلو) نه پس (به ملاویږی) په دے شرط چې (وصیّت کونکے) چا (وارث) ته ضرر اُونه رسوی (نه ظاهراً نه اِرادتًا ، ظاهرًا داسے چه دَ دریمے نه په زیات وصیّت اوکړی، نو دغه وصیّت به په میراث با ندے وُړمبے نه وی، او ارادتًا داسے چه په دریمه کښے دَ ننه وی لیکن نیّت ئے دا وی چه وارث ته کم ملاوُ شی، نو دا به په ظاهر کښے نافذ وی لیکن گناه به ئے کیږی) دا (ټول مره چه دلته بیان اوشو) حکم ئے شوے دے دَ الله تعالیٰ دَ طرفه نه او الله تعالیٰ ښهٔ پیژنی (چه څوک ئے منی او څوک ئے نه منی، او نهٔ منونکو ته چه کومه فوراً سزا نه ورکوی نو دَ هغے وجه دا ده چه) حلیم (رحم) دے - (یعنے صبر کوی او فوراً چا ته په حکم نه منلو سزا نه ورکوی) -

# مَعلُومَات اَوْ مَسَئلے

**دَ کلاله میراث** په دے کښې دَ کلاله میراث بیان شوے دے، دَ کلاله څه پیره تعریفونه شوی دی چه علامه قرطبیؒ پخپل تفسیر کښې هم نقل کړی دی، مشهور تعریف ئے دادے چه په لنډ تفسیر کښې ذکر دے چه دَ مړی نهٔ اُصول وی او نه ئے فروع وی هغه کلاله دے۔

صاحب دَ روح المعانی لیکی چه کلاله په اصل کښې مصدر دے چه دَ کلال په معنیٰ کښې دے، او دَ کلال معنیٰ ده ستړی کیدل: چه په ضعف باندے دلالت کوی۔ دَ پلار دَ ځوئی دَ رشتو نه سِوا نور و رِشتو ته کلاله وئیلے شی۔ ځکه چه دغه رشته دَ پلار ځوئی دَ رشتے په نسبت کمزورے ده۔

بیا دَ کلاله اطلاق په هغهٔ مړی هم اوشه چا چه نهٔ اولاد پاتے کړے وی او نه پلار او په هغه وارثئے هم اطلاق اوشو چه دَ مړی پلار او بچی نه وی۔ دَ لغت په اعتبار سره چه ئے کوم اشتقاق او خورو دَ دے تقاضا دادهٔ چه لفظ دَ "ذو" دے مقدر وی او کلاله به په معنی دَ "ذو کلاله" وی، یعنی کمزورے رشتے والا۔ بیا په دغه میراثی مال هم دَ دے اطلاق اوشو چه داسے مړے ئے پاتے کړی چه ځوئی او پلار ئے نه وی۔

بخوری دَ خبرے داشو چه که یو سړے یا ښځه وفات شی او دَ دهٔ نه پلار وی او نه نیکه او نه اولاد، او دهٔ یو رور یا خور مورشریک پاتے کړی وی۔ نو که دغه رور وی نو دَ دے مړی په مال کښې به هغهٔ ته شپږم ملاوشی او که رور نه وی خور وی نو هغې ته به شپږم ملاوشی، او که دَ یو نه زیات وی مثلاً یو رور او یوه خور وی یا دوه رونړه یا دوه خویندے وی۔ نو دوی ټول به دَ مړی په ټول پاتے کړی مال کښې په دریمه حصه کښې شریک وی۔ او په دے کښې به نارینه ته دَ ښځے نه دو چند حصه نه ملاویږی۔ علامه قرطبیؒ فرمائی: وَلَيْسَ فِي الْفَرَائِضِ مَوْضِعٌ يَكُونُ فِيهِ الذَّكَرُ وَالْأُنْثَى سَوَاءً إِلَّا فِي مِيرَاثِ الْإِخْوَةِ لِلْأُمِّ: "یعنی په میراث کښې یو ځائے داسے نیشته چه نارینه او ښځه په کښې دَ برابر حصو حقدار وی مګر په خویندو رونړو دَ مور دَ طرف کښې"۔

## دَ خور رورحِصّه

پوهه شه چه په دے ایات کښے دَ مور شریک رور خور حصّه خودَلے شوے ده، اګرچه دَ قرآن کریم په دے ایات کښے دَ دے قید ذکر نیشته لیکن په اجماع سره دا قید معتبر دے۔ دَ حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه قرأت هم په دے ایات کښے داسے دے: وَلَهٗ اَخٌ اَوْ اُخْتٌ مِّنْ اُمِّهٖ: لکه چه علامه قرطبی صاحب دَ روح المعانی او ابوبکر جصاص او نورو حضراتو نقل کړے دے۔ اګرچه دا قرأت متواتر نه دے لیکن دَ اُمّت دَ اجماع په وجه پرے عمل او دَ دے یو ښکاره دلیل دا دے چه الله تبارک وتعالیٰ دَ سورة نساء په آخر کښے هم دَ کلاله دَ میراث ذکر کړے دے، هلته ئے وئیلی دی چه که یوه خور وه نو دے ته به نیمه مِلاویږی او که یو رور وه نو دَ خور دَ ټول مال وارث به وی او که دوه خویندے وے نو دوه ثلث ⅔ به اخلی، او که ګڼ خویندے رونړه وُو نو نارینه به دَ زنانه نه دوچند حصّه اخلی۔ دَ سورة په آخر کښے چه کوم دا حکم دے نو دا دَ: عینی: یعنی حقیقی خور رور او ؛علاتی: یعنی پلار شریک خور رور ذکر دے، نو که دلته ورسره عینی او علاتی خور رور شامل کړے شی نو په احکامو کښے نه ټکراؤ لازم شی۔

## دَ وصیّت مسئلے

په دے رکوع کښے ئے درے پیرے دَ میراث حصّے بیان کړے دائے او فرمائیل چه دَ حصّو دا تقسیم دَ وصیّت او قرض نه پس دے۔ لکه چه وړاندے عرض شوے دے چه دَ مړی دَ کفن دفن نه پس به دَ ټول مال نه قرض ادا کړے شی نو دَ قرض نه چه کوم مال پاتے شی په دے کښے به په دریمه حصّه باندے وصیّت نافذ کیږی، او که وصیّت دَ دریمے حصّے نه په زیات مال باندے وُه نو شرعًا دَ دے هیڅ اعتبار نیشته۔ په ضابطه کښے قرض اداکول دَ وصیّت نه وړاندے دی که ټول مال ئے په قرض کښے ختم شو نو نه به بیا وصیّت نافذ وی او نه به میراث چلیږی۔ په دے رکوع کښے کوم ځائے چه دَ وصیّت ذکر راغلے دے درے ځایه هلته ئے دَ وصیّت ذکر دَ قرض نه وړاندے کړے دے۔ نو دَ دے نه په ظاهره دا معلومیږی چه دَ وصیّت حق دَ قرض نه وړُمبے دے۔ حضرت علی رضی الله عنه دَ دے غلط فهمئ دَ لرے کولو دَ پاره فرمائیلی دی:

اَنَّكُمْ تَقْرَءُوْنَ هٰذِهِ الْاٰيَةَ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَا اَوْ دَيْنٍ، وَاِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضٰى بِالدَّيْنِ قَبْلَ الْوَصِيَّةِ ؎

مشكوٰة بحوالۀ ترمذی صـ۲۶۳)

"يعنې تاسو دا آيات تلاوت کوئ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوْصُوْنَ بِهَا اَوْ دَيْنٍ- په دې کښې اګر چه لفظ د وصيّت وړاندې دے ليکن په عملي طور سره نبي کريم صلی الله عليه وسلم دے د قرض نه رو ستو کړے دے"

خو بيا هم دا نکته معلومول ضروري دي چه په عمل کښې وصيّت روستے دے نو په الفاظو کښې ئې دے د قرض نه وړاندې ولې بيان کړو؟ صاحب د روح المعاني په دے باره کښې ليکي:

وَتَقْدِيْمُ الْوَصِيَّةِ عَلَى الدَّيْنِ ذِكْرًا مَعَ اَنَّ الدَّيْنَ مُقَدَّمٌ عَلَيْهَا حُكْمًا لِاِظْهَارِ كَمَالِ الْعِنَايَةِ بِتَنْفِيْذِهَا لِكَوْنِهَا مَظَنَّةً لِلتَّفْرِيْطِ فِيْ اَدَائِهَا الخ: "يعني په آيات کښې په قرض باندې د وصيّت د وړاندې والي وجه دا ده چه چونکه دے د ميراث په شان بغير د څۀ عوض نه ملاويږي او په دے کښې رشته داري هم شرط نه ده په دے وجه د وارثانو د طرف نه د دے په نافذ کولو کښې د کوتاهئ يا وخت اړه ولو قوي يره وه چه خپل د ميراث مال به د بل لاس ته تلل نه خوښوي په دے وجه ئې د وصيّت د شان اهتمام کولو د پاره په قرض باندې وړاندې کړو - او بيا دا خبره هم وه چه دا ضروري نه ده چه په هر يو مړي دے قرض وي، او که په ژوندانۀ پرے وي هم خو د مرګ نه روستو ئې پاتے کيدل ضروري نه دي - او که د مرګ په وخت پرے قرض وي هم نو د دے مطالبه د حقدار د طرفه وي نو په دے وجه ترے وارثان انکار هم نه شي کولے نو په دے کښې د کوتاهئ کولو احتمال ډير کم دے، په خلاف د وصيّت نه، چه کله مړکيدونکے مال پاتے کوي نو د هغۀ زړۀ دا هم غواړي چه د صدقه جاريه په طور باندې د خپل مال يو حصه د نيکئ په څۀ کار کښې او لګوي، نو دلته د دے مال څوک مطالبه کونکے نه وي په دے وجه د وارثانو د طرفه پکښې د کوتاهئ امکان وۀ. چه د هغې د بنديز د پاره په خاص طور سره ئې هر ځائے کښې وصيّت لره په قرض وړاندې ذکر کړو-

مسئله :- کله چه قرض او وصيت نه وي نو د کفن دفن نه پس پاتې ټول مال به په وارثانو تقسيم کړې شي -

مسئله :- د وارث په حق کښې وصيت کول باطل دي، که چا د خپل ځوئ، لور، خاوند يا ښځې د پاره يا د يل داسې سړي د پاره وصيت او کړو چه د ه ته په ميراث کښې حصه ملاويږي نو د دې وصيت هيڅ اعتبار نيشته، وارثانو ته صرف د ميراث حصه ملاويږي د دې نه د زيات دوی مستحق نه دي - نبي کريم صلى الله عليه وسلم د حجة الوداع په خطبه کښې ارشاد فرمائيلے دے:

| | |
|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ قَدْ اَعْطٰى كُلَّ ذِىْ حَقٍّ حَقَّهٗ فَلَا وَصِيَّةَ لِوَارِثٍ - (مشکوٰة بحواله ابوداؤد ص۲۶۵) | " الله تعالیٰ هر حقدار ته د هغهٔ حق ورکړے دے پس د يو وارث په حق کښې هيڅ وصيت معتبر نه دے " |

البته که نور وارثان اجازت او کړي نو د کوم وارث د پاره چه ئې وصيت کړے دے هغه به پوره کړې او پاتې مال تقسيم کړي په شرعي طريقه سره چه په دغه تقسيم کښې به بيا هم د دغې وارث خپله حصه رسي - په بعضې روايتونو د حديث کښې د : اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ الْوَرَثَةُ : استثناء هم ذکر کړه (لکه چه صاحب د هدايه وئيلي دي)

| | |
|---|---|
| د غَيْرَ مُضَآرٍّ تفسير | د کلاله د ميراث په آخر کښې د دې فرمائيلو نه پس: "چه دا ميراث به د وصيت او قرض نه پس نافذ وي" لفظ د "غَيْرَ مُضَآرٍّ" ئے |

او فرمايه - دا قيد اګر چه صرف په دې ځائې کښې ذکر دے، ليکن د دې نه معلومه چه کوم دوه ځايه د وصيت او قرض ذکر دے هلته هم دا معتبر او معمول دے مطلب د دې دا دے چه مړ کيدو نکی لره د وصيت او قرض په ذريعه وارثانو ته نقصان د رسول جائز نه دي - په وصيت کولو يا په خپل ځان د قرض په فرضي اقرار کولو سره وارثانو لره محرومه کول او اراده کول او په دې اراده يا نيت عمل کول سخت منع دي - او ګناه کبيره دے -

د قرض يا وصيت په ذريعه د ضرر رسولو ډير صورتونه کيدے شي مثلاً چه د خپل يو دوست د پاره په ځان د دروغو د قرض اقرار او کړي، يا خپل خاص مال چه د ده ذاتي وي او دے دا بنکاره کړي چه دا د فلاني سړي امانت دی د دې د پاره چه د ميراث څوره نه بچ شي او هغهٔ ته اورسي - يا د دريمې حصې نه د زيات مال وصيت

ادا کړی، یا په یو سړی باندے ئے قرضه وی او هغهٔ نه وی وصول شوے، لیکن دے دروغ اووائی چه د هغهٔ نه قرضه وصول شوے ده۔ د دے د پاره چه وارثانو ته ملاؤ نه شی، یا د مرګ په مرض کښے د دریمے حصے نه زیات چا ته اُوبخی (هبه کړی) ۔

دا ټول د ضرر رسَولو صورتونه دی هر یو بنده چه د دُنیا نه ځی هغهٔ لره د ژوند په آخری وخت کښے د دا قسم ضرر رسَولو نه ځان ساتل پکار دی۔

د مقرر و حصو په مطابق د تقسیم کولو تاکید | د میراث د حصو بیا نولو نه پس الله پاک ارشاد او فرمایه: وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ: یعنے کومے حصے چه

مقرر کړے شوے او د قرض او وصیّت په باره کښے چه کوم تاکید او شو په دے تولو عمل کول انتهائی ضروری دی۔ دا د الله تعالیٰ د طرف نه یو عظیم وصیّت او مهتم بالشان حکم دے۔ د دے خلاف وَرزی مکوئے۔ بیا د زیات خبردارکَولو د پاره ئے او فرمائیل: وَاللّٰهُ عَلِيمٌ حَلِيمٌ: یعنے الله تعالیٰ هرڅهٔ پیژنی او هغهٔ د خپل علم مطابق حصے مقرر کړے، نو څوک چه په دے حکمونو باندے عمل کوی د الله تعالیٰ د علم نه د هغهٔ دا نیکی با هر نه ده۔ او څوک چه ترے خلاف وَرزی کوی د هغهٔ دا بَد عملی هم د الله تعالیٰ په علم کښے راځی۔ چه دے به پرے نیسی۔

دا رنګے کوم مړکید ونکے چه د قرض یا وصیّت په ذریعه سره ضرر رسَوی دغه هم د الله تعالیٰ په علم کښے دی۔ د دے د سزا نه دے نهٔ بے پَرے کیږی۔ هم دا کید ے شی چه الله تعالیٰ په خلاف ورځے کولو باندے په دے دنیا کښے سزا ورنهٔ کړی نو دا ځکه چه هغهٔ حَلیم دے، خلاف وَرزی کونکے دے په دے نه دو که کیږی چه کو ندے زهٔ بچ شوم۔

تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ

دا د الله ټاکلی شوی حدونه دی۔ او څوک چه د الله حکم منی او د رسول ئے داخل به ئے کړی

جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ وَ ذٰلِكَ

جنتونو ته چه لاندے ئے نهرونه بهیږی همیشه به وی په دے کښے۔ او دا دے

اَلْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿۱۳﴾ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ

لوئے مراد مو ندل - او څوک چه نافرماني کوي د الله او د هغهٔ د رسول او وځي د هغهٔ د

حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿۱۴﴾ ع۲

حدونو نه او به ئے غورزه وي اور ته همیشه به وي په هغې کښې او د دهٔ د پاره د ذلت عذاب دے.

## لنډ تفسير

**د ايا تونو تړون** | د میراث د احکامو بیا نولو نه پس ئے په دے دوه وُوایاتونو کښے د دے حکمونو د منونکوا و په دے د عمل کولو فضیلت او د نا فرمانی کونکو د بد انجام بیان دے - چه مقصد ترے د دے ذکرشوؤ حکمونو اهمیت دے.

دا ټول حکمونه چه ذکر شو (د میراث متعلق یا د یتیمانو متعلق) خدائی ضابطے دی او کوم سړے چه د الله او د هغهٔ د رسول پوره حکم مَنی (یعنې د دے ضابطو پابندی کوی) الله تعالیٰ به دهٔ لره داسے جنتونو ته (فورًا) داخل کړی چه د هغو (د محلونو) لاندې به نهرونه بهیږی همیشه همیشه به په دغو کښے وی او دالو یه کامیابی ده، او کوم سړے چه د الله او د هغهٔ د رسول خبره او نه مَنی او بالکل د دے ضابطو نه اووځی (یعنی پابندی ئے ضروری هم نه گنړی، او دا حالت د کفر دے) دهٔ لره به (د دوزخ) اور کښے داخل کړی په دے طور سره چه دے به پکښے همیشه همیشه وی او دهٔ لره به داسے سزا وی چه ذلت به پکښے هم دے.

## معلومات او مسئلے

د قرآن کریم دا طریقه ده چه د حکمونو او عقیدو د بیانولو نه پس د ختمولو په طور سره د منونکو د پاره ترغیب او د دوی د فضیلت ذکر وی او د نهٔ منونکو د پاره یره او سزا او د دوی بدٔ والے ذکر وی.

دلته هم چونکه د احکامو ذکر وُه په دے وجه ئے په دے آخری دوه آیاتو نو کښے د حکم منونکو او نا فرمانو انجام ذکر کړو۔

## د میراث نور حکمونه

**مسلمان د کافر وارث نه شي جوړیدے** اګرچه د میراث تقسیم په نسبي خپلولي سره اړخوړے شوے دے لیکن په دے کښے بعضے څیزونه داخل نه دي۔ اول دا چه کچا نه میراث اغستے شي او هغهٔ چه میراث اخلي د دواړو دینو نه جدا جدا نه وي، نو په دے بنا سره یو مسلمان د کافر او کافر د مسلمان نه میراث نه شي وړے خواه که هر څو مره نسبي رشته ئے وي۔ نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائي:

| | |
|---|---|
| لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ ۔ (مشکوٰة ص۲۶۳) | "یعنی مسلمان د کافر او کافر د مسلمان وارث نه شي جوړیدے" |

دا حکم په هغے صورت کښے دے چه د پیدائش نه پس یو سړے مسلمان یا کافر شي لیکن که یو سړے د اول نه مسلمان وُه بیا (نعوذبالله) کافر شو او مرتد شو نو که دا سړے مړ شو یا قتل شو نو د دهٔ هغهٔ مال چه د اسلام په زمانه کښے ئے ګټلے وُه، د دهٔ مسلمانانو وارثانو ته به میلاویږي۔ او کوم مال چه ئے د مرتد کیدو نه پس ګټلے دے هغه به په بیت المال کښے جمع کیدے شي۔

لیکن که ښځهٔ مرتده شوه نو د دے ټول مال خواه که په اسلام کښے ئے ګټلے وي او که په زمانه د مرتد کیدو کښے ئے ګټلے وي د دے مسلمانانو وارثانو ته به ملاویږي لیکن پخپله مرتد سړے وي او که ښځهٔ د وي ته نه کچا مسلمان میراث ملاویدے شي او نه د بل مرتد۔

**د قاتل میراث** که چا د اسے سړے قتل کړو چه د دهٔ نه ئے میراث ملاویدو نو دا قاتل به د دغه سړي د میراث نه محروم شي۔ د نبي کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: اَلْقَاتِلُ لَا يَرِثُ (مشکوٰة ص۲۶۳) یعنے قاتل به وارث نه وي۔ البته د قتل خطا بعضے صورتونه د دے نه مستثنیٰ دي (تفصیل ئے د فقه په کتابو نو کښے دے)

**د کیدے دننه د بچي میراث** که یو سړے مړ شو او د دهٔ اولاد پاتے شو او د ښځے ئے کیدهٔ هم وه، نو دا بچے به هم د وارثانو په فهرست کښے داخل وي۔

لیکن دا پته لږه ولګوان دی چه په ګیډه کښې هلک دے که جینۍ ده، یا یو دے او که دوه دی، په دے وجه د بچی د پیدا کیدو پورے به میراث لا نه تقسیموی - او که تقسیمول ئے ضروری وُو- نو سر دست به یو هلک یا یوه جینۍ فرض کړی او د دواړو په اعتبار سره به دوه صورتونه فرض کړے شی - نو په دے دواړو صورتونو کښے چه په کوم صورت کښے وارثانو ته کم ملاویږی و په هغے باندے به تقسیم او کړے شی - او پاتے به د دغے حمل د پاره کیخودے شی -

| کومه ښځه چه په عدت کښے وی د هغے میراث | کوم سړی چه خپلے ښځے له طلاق ورکړۀ او طلاق رجعی وُو- او بیا دے د طلاق د رجوع او عدت |
|---|---|

ختمیدو نه اول وفات شو، نو دا ښځه به په میراث کښے حصه مومی - ځکه چه نکاح ئے لا باقی دے -

او که یو سړی د مرګ په مرض کښے یو دے ښځے له طلاق ورکړه اګرچه طلاق بائن یا مغلظ ولے نه وی او د عدت ختمیدو نه اول او مړشو - بیا به هم دغه ښځه د دۀ نه میراث وړی - او ښځے لره به د وارث تے جوړه ولو د پاره به دوه وُو عدتونو کښے چه کوم عدت اوګد وی هغه به اختیاره کولے شی - چه د دے لنډه تشریح داده چه:

د طلاق عدت درے حیضه دی، او د وفات عدت څلور میاشتے لس ورځے دی، په دے دواړو کښے چه کوم عدت د زیاتو ورځو وِی هغه به عدت مقرر کولے شی - د دے د پاره چه ترڅو مره پورے ممکنه وی ښځے ته حصه ملاؤ شی -

او که یو سړی د مرګ د مرض نه وړاندے ښځے ته بائن یا مغلظ طلاق ورکړه او د دے نه څو ورځے پس د ښځے په عدت کښے دے مړشو نو په دے صورت کښے به دے ته په میراث کښے حصه نۀ ملاویږی - البته که طلاق رجعی ئے ورکړی وی نو دا به وارثه وی -

که ښځے د خاوند د مرګ په مرض کښے د دۀ نه ځان خُلع کړو- نو میراث ترے نه شی وړے - اګر که د دے خاوند د دے په عدت کښے مړشی -

| د عصبا تو میراث | د فرائضو مقرر دے حصے د دو لسو وارثانو د پاره مقرر شوے |
|---|---|

دی او دے وارثانو ته "اصحاب الفروض" "د فرض حصو خاوندان" وائی - چه تفصیل ئے

څۀ قدر ے بره تیرشوٚ که دَ اصحاب الفروضؐ نه هیڅوک نه وٚو ، یا دَ ذوی دَ حصونه
ورستو څۀ مال پاتے شوٚ نو دغه به عَصَبه وٚلره ورکولے شی ۔ او بعضے وخت یو
سړی ته په دواړه وحیثیتونو سره مال ملاویږی ، په بعضے صورتونو کښے دَ
مړی اولاد او دَ مړی پلار هم عصبه کیږی، دَ نیکه اولاد یعنے تره او دَ پلار
اولاد یعنی رورهم عصبه کیږی ۔

دَ عصبا تو ډیر قسمونه دی چه تفصیلو نه ئے دَ میراث په کتابونو کښے دی
دلته یو مثال لیکلے شی، مثلاً زید مړشه او دۀ څلور وارثان پریخودل ، ښځه،
لوٚر، مور او تره ۔ نو دَ دۀ مال به ټول څلیرویشت حصے کړے شی ۔ نو نیم مال یعنے دولس
حصے به لوٚر له او دَ $\frac{1}{8}$ په حساب سره درے حصے ښځے ته او دَ $\frac{1}{6}$ په حساب سره به
څلور حصے مور ته او کومے پنځه حصے چه پاتے شوے دا به دَ عصبه کیدو په
وجه باندے تره ته ملاؤ شی ۔

**مسئله** :۔ که عصبه نه وٚو نو دَ فرض میراث دَ حصو نه چه کوم مال پاتے شی هغه
به بیا واپس دوی ته دَ خپلو حصو په مطابق ملاویږی او دِیته دَ فرائضو په
علم کښے رَدْ وائی ۔ البته ښځے او خاوند ته رَد نه شی کیدے ، یعنی په هیڅ حال کښے
دوی ته دَ مقرره حصو نه زیات نۀ شی ملاویدے ۔

**مسئله** :۔ که دَه فرض حصو خاوندان هیڅوک نه وٚو او په عصبا تو کښے هم
هیڅوک نه وٚو ۔ نو بیا میراث ذوی الارحامو ته رسی ۔ دَ ذوی الارحامو فهرست
اوګډ دے ۔ نمسی، نمسئ دَ خویاندو اولاد، ترورانے دَ پلار خویاندے، ماماګان، دَ
مور خویاندے دا ټول په ذوی الارحامو کښے راځی ۔ او په دے مسئله کښے تفصیل دے
چه دا ځائے دَ هغے نه دے ۔ بس دا پوره دی ۔

وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِکُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا عَلَیْهِنَّ

او څوک چه بدکاری اوکړی دَ ښځو ستاسو نه نو ګواهان راولئ په هغوی

اَرْبَعَةً مِّنْکُمْ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِکُوْهُنَّ فِی الْبُیُوْتِ حَتّٰی

څلور سړی دَ خپلو نه بیا که دوی ګواهی ورکړی نو بندے کړئ دِے ښځو لره په کورونو کښے تر هغے

يَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِيْلًا ﴿١٥﴾ وَالَّذٰنِ

چه پوره ته کړي دوی لره مرګ یا مقرر کړي الله د دوی د پاره څه لار - او کوم دوه سړي

يَاْتِيٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا

چه او کړي ستاسو نه دغه بدکاري نو دوی ته آزار ورسوئ - بیا که دغه دواړه توبه او کړي او خپله اصلاح او کړي

عَنْهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِيْمًا ﴿١٦﴾

نو د دوی نه تلار شئ - بے شکه الله توبه قبلوونکے مهربان دے -

# لنډ تفسير

**د ایاتونو ربط** په تیرو ایاتونو کښے د هغه بے قاعدګو اصلاح اوشوه چه د جاهلیت په زمانه کښے به د یتیمانو او میراث خوړو په حق کښے کیدلے - دے خلقو به په ښځو ظلمونه او زیاتی کول - او د دوی په باره کښے په خرابو رسمو نو کښے اخته وو - د کومو ښځو سره چه نکاح جائز نه دے د هغو سره به ئے نکاح کوله -

په راتلونکو ایاتونو کښے د دے معاملو اصلاح فرمائی ، او که د چا ښځے نه څه داسے قصور اوشی چه هغه په شریعت کښے قصور وی نو په هغے د تادیب اجازت ورکوی ، او د اصلاح او تادیب دا مضمون مخکښے د دوه درے رکوع ګانو پورے تلے دے -

او کومے ښځے چه د بے حیائی کار (یعنی زنا) او کړی ستاسو د (نکاح کړو) ښځو نه پس تاسو په دغه ښځو (په دے کارئے) څلور سړی د خپلو نه (یعنی مسلمانان آزاد، عاقل، بالغ سړی) ګواهان کړئ (د دے د پاره چه د دوی په ګواهئ با ندے حاکمان راتلونکے سزا جاری کړی) پس که دوی ګواهی او کړی نو (د دوی سزا داده چه) تاسو دوی لره (د حاکم په حکم) په کورونو کښے دننه (سیاستًا) قید کړئ تر د ے پورے چه (یا خو) مرګ د دوی خاتمه او کړی (او) یا الله تعالی د دوی د پاره

څهٔ بله لار (یعنې دویم حکم) تجویز او فرمائي (دوروستو چه کوم دویم حکم په دې باره کښې تجویز شو دَ هغې ذکر په "معلومات او مسئلو" کښې راروان دے) او (دَ زنا په سزا کښې څهٔ دَ نکاح شوے بنځې تخصیص نیشته بلکه) کوم دوه سړي هم چه دَ بے حیائۍ دَغه کار اوکړي (یعنې زنا اوکړي) ستاسو نه (یعنې عاقل بالغ مسلمانان) نو دے دواړو ته آزار دَسوئ بیا (پس دَ ضرور دَ ثبوت نه) که دغه دواړه (دَ تیر کار نه) توبه اوکړي او (دَ آئنده دَ پاره خپله) اصلاح اوکړي (یعنې چه بیا به داسے کار دوی نه کوي) نو بیا دے دواړو ته هیڅ مه وایئ (ځکه چه) بے شکه الله تعالیٰ توبه قبلونکے دے، رحمت والا دے (نو په خپل رحمت سره ئې دَ دوی ګناه معاف کړو او ستاسو له هم پکار دي چه دَ دوی په آزار پسے نهٔ ور پسے کیږئ ځئ)۔

# معلومات او مسئلے

په دے آیاتونو کښې دَ داسے سړو او بنځو په باره کښې سزا تجویز شوے ده دَچا نه چه بدکاري یعنې زنا اوشي۔ په اولنۍ آیات کښې ئې اوفرمائیل چه دَ کومو بنځو نه داسے حرکت اوشي نو دَ دے دَ ثبوت دَ پاره دے څلور ګواهان سړي طلب کړے شي کوم چه دَ شهادت اهلیت لري، او ګواهي هم دَ سړو ضروري دَهٔ۔ دَ بنځو ګواهي په دے معتبره نه ده۔

دَ زنا په ګواهانو کښې شریعت په دوه طریقو سره سختي کړے ده چونکه دا معامله ډیره اهمه ده، چه عزت او پاکدامنۍ پورے داغداره کیږي، او خاندانونه پرې بے عزته کیږي او شرمیږي۔ اول خو ئې دا شرط اولګاوه چه ګواهان ؍ سړي وي دَ بنځو ګواهي لره په دے باره کښې هیڅ اعتبار نیشته۔ څلورم ئې دَ څلو ؍ سړو موجودوالے ضروري کړو۔ نو ښکاره خبره ده چه دا شرط ډیر سخت دے چه دَ دے موجودیدل ډیر شاذو نادر کیدے شي۔ دا سختي ئې ځکه اختیار کړه چه دَ بنځے خاوند یا مور، خور وغیره دَ خپلے ذاتي غصې په وجه خامخا الزام اونه لګوي۔ یا نور بدخواهان خلق دَ دشمنۍ په وجه سره دَ الزام او تهمت لګولو زړه ورتیا اونه کړے شي۔ ځکه چه کهٔ دَ څلورو کسانو نه کم خلقو دَ زنا ګواهي اوکړه نو دَ دوی ګواهي معتبره نه ده، په داسے صورت کښې به مدعي او ګواهان ټول دروغژن اوګڼلے شي۔

او په یو مسلمان د الزام لګولو په وجه سره به په دوی باندې "حدِّ قذف" جاري کولې شي.

په سورت نور کښې ئې په واضح طور سره فرمائيلي دي: لَوْلَا جَآءُوْ عَلَيْهِ بِاَرْبَعَةِ شُهَدَآءَ فَاِذْ لَمْ يَاْتُوْا بِالشُّهَدَآءِ فَاُولٰٓئِكَ عِنْدَ اللّٰهِ هُمُ الْكٰذِبُوْنَ "چه کوم خلق　شلور ګواهان را نه وړې شي دوی دروغژن دي"

بعضې مشرانو د شلورو ګواهانو د ضرورت حکمت داسې بیان کړې دې. چه په دې معامله کښې چونکه دوه تنه ملوّث کیږي ښځه او سړې، نو ګویا دا یوه معامله د دوه وو معاملو په حکم کښې ده، او هره یوه معامله دوه ګواهان غواړي. نو په دې وجه په دې کښې شلور ګواهان ضروري شو.

د آیات په آخر کښې ئې اوفرمائيل چه که دوی دواړه توبه اوباسي او خپله اصلاح اوکړي، نو دوی ته بیا څۀ مه وایئ. د دې مطلب دا دې چه د سزا نه پس که دغه دواړه توبه اوباسي نو بیا دوی ته مۀ ملامته کوئ، او نوره زیاته سزا ورلوه مه ورکوئ. دا مطلب نه دې چه کوم نه دې په توبه سره سزا هم معاف شو ځکه چه د توبې ذکر د سزا نه پس دې. "لکه چه د فاء د تفریع نه ظاهر ده". البته که توبه ئې نه وي وېستلې نو د سزا نه پس ئې بیا هم ملامته کولې شئ.

د قرآن کریم په دې دوه وو آیاتونو کښې ئې د زنا د پاره څۀ مقرر حد نه دې متعیّن کړې بلکه صرف دومره ئې وئیلي دي چه دوی ته تکلیف ورسوئ او زناکارو ښځولره په کورونو کښې بند ے کړئ.

د تکلیف رسَوَلو ئې هم څه خاص طریقه او نه خوده، او د حاکمانو په رائې باندې ئې پریخوده. ابن عباسؓ فرمائي چه دلته د تکلیف ورکولو معنیٰ دا ده چه د خولې په خبرو ئې شرموئ او د لاسو په ذریعه ئې هم په لاسونو پېزار او نو ښۀ مرمّت کوئ. د حضرت ابن عباس دا قول هم په طور د مثال معلومیږي اصل خبره هم دغه ده چه دا معامله د حاکمانو رائې ته پاتې شوې ده.

د نزول په اعتبار سره د قرآن کریم د دې دوه وو آیاتونو ترتیب دا دې چه په شروع کښې دوی ته د تکلیف ورکولو حکم نازل شو. او د دې نه پس په خاص طور سره د ښځو د پاره دا حکم بیان شو چه دوی لره په کورونو کښې بند ے کړئ

تر دے چه دغه ښځه مړه شي، د دے په ځرو ند کښے که را تلونکے حکم راغے نو به طور د حَلْ سره به پرے دغه نافذ کړے شي۔

نو بیا وروستوئے د دغه "سبیل" یعنے لارے بیان اوکړو د کومے چه الله تعالیٰ په دے ایات کښے وعده فرمائیلے وه۔ حضرت ابن عباس رضی الله عنه د "سبیل" دا سے تفسیر فرمائي چه "یعني اَلرَّجْمُ لِلثَّیِّبِ وَالْجَلْدُ لِلْبِکْرِ" چه د واده شوے په حق کښے د زنا حد د هغے سنګساره ول دی او د غیر واده شوے د پاره کو رے دی (بخاری کتاب التفسیر ص۶۵۷)

په موضوع احادیثو کښے هم د دے "سبیل" بیان د نبی کریم صلے الله علیه و سلم نه په وضاحت سره ثابت دے۔ او د واده شوے او غیر واده شوے هر یو د پاره جُدا جُدا حکم بیان کړے شوے دے۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په حضرت ماعز بن مالك رضی الله عنه او د قبیله ازد په یوه ښځه د زنا حد جاری کړے وه۔ او دا دوا په واده شوی وُو۔ په دے وجه ئے دوی لره سنګسار کړل دارنګے یو یهودی هم د زنا په وجه رجم شوے وُو۔ او د دهٔ په حق کښے دا فیصله د تورات په حکم شوے وه۔

د نا واده شوی حکم خو پخپله د قرآن مجید په سورتِ نُور کښے دے:

| | |
|---|---|
| اَلزَّانِیَةُ وَالزَّانِیْ فَاجْلِدُوْا کُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ | "زنا کاره ښځه او زنا کارے سړی هر یو له سل سل کورے اووهئ"۔ |

په شروع کښے د رجم د حکم د پاره په قرآن کریم کښے ایات هم نازل شوے وُو۔ لیکن روستو بیا د هغے تلاوت منسوخ شو، البته حکم ئے باقی پاتے کړے شو۔

د حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد دے:

| | |
|---|---|
| اِنَّ اللهَ بَعَثَ مُحَمَّدًا بِالْحَقِّ وَاَنْزَلَ عَلَیْهِ الْکِتٰبَ فَکَانَ مِمَّآ اَنْزَلَ اللهُ تَعَالیٰ اٰیَةَ الرَّجْمِ رَجَمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّے اللهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَرَجَمْنَا بَعْدَهٗ وَالرَّجْمُ فِیْ کِتَابِ اللهِ حَقٌّ عَلٰی مَنْ زَنٰی اِذَا اَحْصَنَ | "الله تعالیٰ محمد صلے الله علیه وسلم برحق نبی رالیږلے دے او په دهٔ ئے کتاب هم نازل کړو او کوم څه چه الله تعالیٰ نازل فرمائیلے وه په هغے کښے د رجم ایات هم وُو رسول الله صلے الله علیه وسلم رجم کړے دے او موږ هم د هغهٔ پس رجم اوکړو، د رجم حکم د هغه کس د پاره |

مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ الخ | ثابت دے کوم چه زنا اوکړی او واده شوی وی سرې وی او که ښځه "

(بخاری، مسلم بحواله مشکوٰة ص۳۰۹)

لَنډه دا چه پدے آیاتونوکښے کوم په کورونوکښے قید کولو او د تکلیف رسولو حکم دے دغه د شرعی حد په نازلیدو باندے منسوخ شه او اوس حد د زنا نقل کوے یا په رجم باندے عمل کول لازمی دی۔ د دے زیات تفصیل به انشآء الله تعالیٰ د سورت نور په تفسیر کښے بیان شی۔

په غیر فطری طریقه سره د شهوت پوره کولو حکم | قاضی ثنآء الله پانی پتی رحمة الله علیه په تفسیر مظهری کښے لیکی چه زمونږ په نزد د ؛ اَلَّذٰنِ یَاْتِیٰنِهَا ؛ مقصداق هغه خلق دی چه په غیر فطری طریقه سره شهوت پوره کوی یعنی چه سړی د یو بل نه خپل شهوت پوره کوی۔

د قاضی صاحب نه علاوه نورو حضراتو هم دا قول اغستے دے د قرآن په الفاظو کښے چونکه لفظ د ؛ اَلَّذٰنِ یَاْتِیٰنِهَا ؛ موصول او صله دواړه د مذکر الفاظ دی په دے وجه د دے حضراتو دا قول بعید (یعنی لرے) نه دے۔ او کومو حضراتو چه ترے زانی او زانیه مراد اغستی دی هغوی په طور د تغلیب د مذکر دا صیغه د زانیه د پاره هم شامله کړے ده۔ غوبیا هم د موقعے په مناسبت سره د مثل نه د خوند اغستو حرامولے او سختی او د دے د جزا او سزا ذکر په دلته بے ځایه نه وی۔

د احادیثو او آثارو نه چه پدے سلسله کښے څه ثابتیږی د هغے نه د نمونے په طور سره څه نقل کوو:-

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ سَبْعَةً مِنْ خَلْقِهٖ مِنْ فَوْقِ سَبْعِ سَمٰوٰتِهٖ وَرَدَّدَ اللَّعْنَةَ عَلٰی وَاحِدٍ مِّنْهُمْ ثَلٰثًا وَلَعَنَ کُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمْ لَعْنَةً تَکْفِیْهِ قَالَ

"د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی الله تعالیٰ د خپل مخلوق نه په اووه قسمه خلقو د اووه آسمانونو د برنه لعنت لیګلے دے او په دے اووه وو کښے یو باندے درے پیرے لعنت لیګلے دے او په نورو یو وارے فرمائیلی دی

مَلْعُوْنٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوْطٍ
مَلْعُوْنٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوْطٍ
مَلْعُوْنٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوْطٍ
(الحديث: الترغيب والترهيب)

ملعون دے هغه سړے چه د قوم د لوط عمل کوی ملعون دے هغه سړے چه د قوم د لوط عمل کوی، ملعون دے هغه سړے چه د لوط د قوم عمل کوی۔

وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَرْبَعَةٌ یُصْبِحُوْنَ فِیْ غَضَبِ اللّٰهِ وَیُمْسُوْنَ فِیْ سَخَطِ اللّٰهِ قُلْتُ مَنْ هُمْ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ اَلْمُتَشَبِّهُوْنَ مِنَ الرِّجَالِ بِالنِّسَآءِ وَالْمُتَشَبِّهَاتُ مِنَ النِّسَآءِ بِالرِّجَالِ وَالَّذِیْ یَاْتِی الْبَهِیْمَةَ وَالَّذِیْ یَاْتِی الرِّجَالَ (الترغیب والترهیب)

"د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه څلور سړی د سحر په وخت کښې د الله جل شانه په غضب کښې وی او ماښام هم الله جل شانهٗ د دوی نه ناراض وی، ما تپوس او کړو چه هغهٔ کوم خلق دی؟ دوی او فرمائیل هغه سړی چه د ښځو پشان جوړیګی او هغه ښځې چه د سړو پشان جوړیګی او هغه سړے چه د څاروی سره غیر فطری کار کوی او هغه سړے چه د سړی نه خپل شهوت پوره کوی۔"

وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُمَا قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ وَجَدْتُّمُوْهُ یَعْمَلُ عَمَلَ قَوْمِ لُوْطٍ فَاقْتُلُوا الْفَاعِلَ وَالْمَفْعُوْلَ بِهٖ۔ (الترغیب والترهیب)

"د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دے فرمائی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چا له وه چه تاسو د قوم لوط په شان په غیر فطری کار کولو بانده او وینئ نو فاعل او مفعول دواړه قتل کړئ۔"

حافظ زکی الدین په ترغیب ترهیب کښې لیکلی دی چه څلورو خلفاؤ حضرت ابوبکر صدیق رض حضرت علی رض حضرت عبد الله بن الزبیر رض او هشام بن عبد الملک رض ښځیلو زمانو کښې غیر فطری حرکت کوونکو لره په اور کښې سوزه ولی دی په دے سلسله کښې دوی د محمد بن المنکدر د روایت نه یو واقعه هم لیکلے ده چه خالد بن ولید رض حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته خط اولیکه چه د لته

دَ عربو په یو علاقه کښې یو سړے دے چه دَ ښځو پشان کارو ورسره کولے شي۔

حضرت ابوبکر رضی الله عنه په دے باره کښې اصحابؓ راجمع کړل، او په دوی کښې حضرت علیؓ هم تشریف راوړو۔ حضرت علی رضی الله عنه اوفرمائیل چه دا یو داسے ګناه دے چه دا سوا دَ یو قوم نه بل هیچا نه دے کړے او الله جل شانهٗ دَ هغه قوم سره چه کوم معامله کړے ده هغه تاسو ټولو ته معلومه ده ځما رائے دے چه دے دِے په اور کښې اوسیزلے شي، نورو صحابه کرامؓ هم دَ دے سره اتفاق اوکړو او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دَ دهٔ په اور کښې دَ سیزلو حکم ورکړو۔

په دے ذکر شوو روایتو نو کښې دَ قوم لوطؑ دَ عمل حواله بار بار راغلے ده حضرت لوط علیه السلام چه کوم قوم ته لیګلے شوے وو هغه قوم دَ کفر او شرک نه علاوه په دے سخت ترینې او غیر فطري حرکت کښې هم اخته وو۔ او هر کله چه دَ حضرت لوط علیه السلام دَ دعوت او تبلیغ په دوی باندے اثر اونه شو۔ نو دَ الله جل شانهٗ په حکم سره فرښتو دَ دے قوم کلو لوه دَ زمکے نه او چت کړل او پا ستو ئے زمکے ته را اوویشتل۔ چه ذکر به ئے په سورتِ اعراف کښې راشي۔ انشاء الله تعالیٰ۔

دا بره نی روایتونه دَ خپل جنس نه دَ خوند اغستو متعلق وو۔ په روایتو نو کښے دَ ښځو سره په دے غیر فطري عمل کولو باندے هم سخت ترینې وعید ے دَ عذاب راغلی دی۔

عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا اَنَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ اِلٰى رَجُلٍ اَتٰى رَجُلًا اَوْ اِمْرَأَةً فِيْ دُبُرِهَا (الترغیب والترهیب)

"دَ حضرت ابن عباسؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی الله جل شانهٗ به دَ هغے سړي طرف ته په نظر دَ رحمت سره اونه ګوري کوم چه دَ سړي یا ښځے سره غیر فطري عمل کوي"

عَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيِيْ مِنَ الْحَقِّ ثَلٰثَ مَرَّاتٍ لَا تَاْتُوا النِّسَاءَ فِيْ اَدْبَارِهِنَّ (ترغیب ترهیب)

"خزیمه بن ثابتؓ فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلے دے چه الله جل شانهٗ دَ حق په بیا نولو کښې شرم نه کوي دا الفاظ دوی درے پیرے او فرمائل بیائے اوفرمائیل چه ښځو ته په غیر فطري طریقے سره راتلل مه کوئے"

وَعَنْ اَبِیْ هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَلْعُوْنٌ مَنْ اَتَی امْرَاَةً فِیْ دُبُرِهَا (الترغیب والترهیب)

"د حضرت ابوهریرةؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم فرمائیلی دی هغه سړے ملعون دے چه په غیر فطري طریقه د ښځے سره کوروالے کوی"

وَعَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ اَتٰی حَائِضًا اَوِ امْرَاَةً فِیْ دُبُرِهَا اَوْ کَاهِنًا فَصَدَّقَهٗ فَقَدْ کَفَرَ بِمَآ اُنْزِلَ عَلٰی مُحَمَّدٍ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ -

"او د دے حضرت ابوهریرةؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی کوم سړے چه د حیض په حالت کښے د ښځے سره کوروالے کوی یا په غیر فطري طریقه ورسره کوروالے کوی، یا کاهن ته ځی او د غیبو متعلق د دهٔ په خبرو یقین کوی نو دغه خلق د هغه دین نه منکر شو کوم چه په محمد صلے الله علیه وسلم نازل شو"

د دے قبیح کار د پاره د څهٔ معیّن حد په مقرر کولو کښے خو د فقهاؤ اختلاف دے چه تفصیل ئے د فقه په کتابونو کښے موجود دے، خو بیا هم د دے د پاره د سختو نه سختے سزاگانے نقل شوی دی، مثلاً په اور کښے ئے سیځل، دیوال پرے راغورزول د غرونه ئے رغړول او سنګسارکول ئے په تورے سره ئے قتلول وغیره (کومه سزا چه ورله د وخت مطابق حاکم تجویز کړی) -

---

اِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَی اللّٰهِ لِلَّذِیْنَ یَعْمَلُوْنَ السُّوْٓءَ بِجَهَالَةٍ

خامخا توبه تیلوی الله د هغو چه کوی بد کار په ناپوهئ سره

ثُمَّ یَتُوْبُوْنَ مِنْ قَرِیْبٍ فَاُولٰٓئِكَ یَتُوْبُ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ

بیا توبه او باسی ژر - نو الله تعالیٰ دوی لره معاف کوی -

وَکَانَ اللّٰهُ عَلِیْمًا حَکِیْمًا ﴿۱۷﴾ وَلَیْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِیْنَ

او الله تعالیٰ هر څهٔ پیژندونکے دے حکمت والا - او د داسے خلقو توبه نیشته

يَعْمَلُوْنَ السَّيِّاٰتِ حَتّٰٓى اِذَا حَضَرَ اَحَدَهُمُ الْمَوْتُ

چه کوی بد کارونه تر دے چه مخامخ راشی په دوی کښے چا ته مرګ

قَالَ اِنِّىْ تُبْتُ الْـٰٔنَ وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ ؕ

نو اووائی چه زهٔ توبه کوم اوس او نه د داسے خلقو توبه چه مرهٔ کیږی په حالت د کفر کښے۔

اُولٰٓئِكَ اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۸﴾

د دوی د پاره مونږ تیار کړے دے عذاب دردناک ۔

**د ایاتو نوم ترون** — په تیرو ایات کښے د توبے ذکر راغلے وُو، اوس په دے دوه ایاتونو کښے د توبے د قبلید و شرطونه او د قبلید و او نهٔ قبلید و صورتونه بنائی۔

# لنډ تفسير

توبه (چه قبلول ئے د وعدے مطابق) د الله تعالیٰ په ذمه دی، دا د هغه چا ده چه د ناپوهئ نه څهٔ ګناه (د پروکے وی که لوئے) کوی بیا په نزدے وخت کښے (یعنی مخکښے د حاضریدو د مرګ نه چه معنیٰ ئے وړاندے راځی) توبه اوباسی، پس په داسے خلقو خدائے تعالیٰ (د قبلولو د توبے سره) توجه فرمائی (یعنی توبه ئے قبلوی) او الله تعالیٰ ښهٔ پیژنی (چه چا په زړهٔ سره توبه اوکړهٔ) حکمت والا دے (چه د زړهٔ نه توبه نهٔ کوونکے نهٔ رُسوا کوی) او د داسے خلقو توبه (قبوله) نه ده کوم چه (په مخه) ګناه کوی تر دے چه کله په دوی کښے د چا مخے ته راشی (د مرګ د حاضریدو مطلب دا دے چه دهٔ ته د هغے جهان څیزونه په نظر راشی) نو اووائی چه زهٔ اوس توبه کوم (پس نه د داسے خلقو توبه قبوله ده) او نه د دے خلقو (توبه یعنی ایمان راوړل په داسے وخت کښے قبول دی) چا ته چه د کفر په حالت کښے مرګ راځی د دے (کافرو) خلقو د پاره مونږ یو دردناکه سزا (یعنی عذاب د دوزخ) تیاره کړے ده۔

# معلومات او مسئلې

**آيا په قصد او اختيار سره کړے ګناه نهٔ معاف کيږي؟**

دلته دا خبره دَ ذکر قابله ده چه په قرآن کريم کښے لفظ دَ: بِجَهَالَةٍ: راغلے دے دَ دے نه په ظاهر دا معلوميږي چه په ناخبرۍ او ناپوهۍ سره ګناه اوکړي نو دَ هغهٔ توبه به قبوله وي - او چه سره دَ پوهے ئے اوکړي نو توبه به ئے نه قبليږي، ليکن دَ صحابه کرامؓ نَنچه دَ دے اٰيات کوم تفسير بيان شوے دے هغه دا دے چه دَ: جهالتٍ: نه دلته دا مراد نه دے چه دهٔ ته دَ ګناه ګناه والے نه وي معلوم، يا ئے دَ ګناه قصد او اراده نه وي - بلکه مراد دا دے چه دے دَ ګناه دَ بَد انجام او دَ اٰخرت دَ عذاب د غفلت سبب دَ دے ګناه کولو ته تيار کړے دے - اګر چه ګناه لره ګناه پيژني او دَ دے قصد او اراده ئے هم کړے وي -

په نورو الفاظو کښے دَ جهالت لفظ دلته دَ حماقت او بے وقوفۍ په معنیٰ کښے دے لکه چه په لنډ تفسير کښے ئے ذکر شو يد ے، او دَ دے مثل په سورتِ يوسف کښے دے - حضرتِ يوسف عليه السلام خپلو رونړو ته فرمائيلي وُو: هَلْ عَلِمْتُمْ مَّا فَعَلْتُمْ بِيُوْسُفَ وَاَخِيْهِ اِذْ اَنْتُمْ جٰهِلُوْنَ ۞: په دے کښے ئے رونړو ته جاهلان وئيلي دي - حال دا دے دوي چه کوم کار کړے وُه دغه په خطا يا په هيره سره نه وُو بلکه څهٔ په اراده سره ئے قصدًا کړے وُه - مګر دَ دے کار دَ انجام نه دَ غفلت په سبب ئے دوي ته جاهلان وئيلي دي -

اَبو العاليهؒ او قتادهؒ نقل کړے دے - چه صحابه کرام په دے با ند ے متفق وُو - چه: کُلُّ ذَنْبٍ اَصَابَهٗ عَبْدٌ فَهُوَ جَهَالَةٌ عَمَدًا كَانَ اَوْ غَيْرَهٗ: يعني بنده چه کوم ګناه کوي خواه قصدًا وي او که بے قصده بهرحال جهالت دے -

دَ تفسير امام مجاهدؒ فرمائي: كُلُّ عَامِلٍ بِمَعْصِيَةِ اللهِ فَهُوَ جَاهِلٌ حِيْنَ عَمِلَهَا: يعني کوم سړے چه څهٔ کار دَ الله دَ نا فرمانۍ کوي هغه دَ دغے کار کولو په وخت کښے جاهل دے - اګر چه په صورت کښے لوئے عالم او خبردار وي (ابن کثير)

او ابو حيانؒ په تفسير بحرِ محيط کښے فرمائي چه دا داسے دهٔ لکه چه په حديث کښے ارشاد دے: لَا يَزْنِي الزَّانِيْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ: يعنے زنا کوونکے دَ مؤمن والي په حالت کښے زنا نه کوي-

مراد دا دے چه کوم وخت دے په دے ناکاره کارکښے اخته شو یدے - نو دغه وخت دے د ایمان د تقاضے نه چیر لرے تلے دے -

په دے وجه حضرت عکرمهؒ فرمائی: اُمُوْرُ الدُّنْیَا کُلُّهَا جَهَالَةٌ : یعنې د دنیا ټول کارونه چه د الله تعالیٰ د فرمانبردارئ او اطاعت نه باهر وی ټول جهالتونه دی او د دے وجه ښکاره ده - چه د الله تعالیٰ نا فرمانی کوونکے د لږ وخت د خوند اغستلو د پاره هغه د همیشه او باقی پاتے کیدونکی خوندونه هیر کړی او دا پرے غوره کړی او څوک چه د دے لږ خوند او مزے په بدله کښے د همیشه د پاره عذاب اخلی هغه ته هوښیار رنګی ویلے - ده ته به هر سړے جاهل وائی - اګرچه دے دغه خپل بدکار پیژنی او اراده ئے هم کوی -

لنډه دا ده چه انسان په قصد او کړی یا په خطا سره په دواړو حالتونو کښے ګناه جهالت وی - په دے وجه د صحابو﷢ تابعینوؒ او د ټول امت په دے باندے اتفاق دے چه کوم سړے قصداً هم څه ګناه او کړی کړ ده توبه قبلیږی (بحر محیط)

په ذکر شوی آیات کښے یوه خبره د غور کولو قابله داده - چه د توبے د قبلیدو د پاره ئے دا شرط خودلے دے، چه په نزدے وخت کښے توبه اوباسی - په توبه ویستو کښے وخت تیر نه کړی - په دے کښے د قریب (نزدے) څه مطلب دے؟ او په قریب کښے څومره زمانه داخله ده؟ نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دے تفسیر په یو حدیث کښے پخپله داسے بیان فرمائیلے دے:

اِنَّ اللهَ یَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ مَالَمْ یُغَرْغِرْ : د حدیث معنیٰ دا ده چه: "الله تعالیٰ د خپل بنده توبه تر هغے وخته پورے قبلوی تر څو چه پَدَ ه مرګ او روح ختو غرغره نه وی شروع شوے"

او محدث ابن مردویهؒ د حضرت عبد الله ابن عمر﷛ نه روایت کړے دے چه دوئی د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه دا آوریدلی دی چه کوم مؤمن بنده د مرګ نه یوه میاشت وړاندے د خپل ګناه نه توبه اوباسی، یا یوه ورځ یا یوه ګړئ وړاندے توبه اوباسی نو الله تعالیٰ د ده توبه قبلوی - په دے شرط سره چه په اخلاص ئے رښتونے توبه ویستلے وی (ابن کثیر)

لنډه دا چه د: مِنْ قَرِیْبٍ: تفسیر کوم چه پخپله نبی کریم صلے الله علیه وسلم

او فرمایه، دا دے نه معلومه شوه چه دَ انسان دَ ټول عمر زمانه په قریب کښے داخله ده دَ مرګ نه وړاندے وړاندے چه توبه اووبیستلے شي قبوله به شي - البته دَ مرګ دَ غرغرے پوخت کښے توبه قبوله نه ده -

دَ دے وضاحت کوم چه حکیم الاُمت تهانوئ په تفسیر بیان القرآن کښے فرمائیلے دے دادے - چه دَ مرګ نه نزدے دوه حالتونه راپیخیږی یو دَ ناچاره کیدو او ناامید ے دے چه هرکله انسان دَ هرڅ دارو او تدبیر نه عاجزه شي، او دا اوګنړی چه او س مرګ راتلونکے دے ده ته حالت دَ یأس په نامه سره وائی - دویم حالت دَ دے نه پس دے هرکله چه ساه ختل شروع شي او دَ غرغرے وخت راشي دِ یته حالت دَ یأس په نامه سره وائی - او لنے حالت یعنے دَ یأس حالت په: مِنْ قَرِيْبٍ: کښے داخل دے او توبه دَ دغے وخت قبلیدے شي - مګر دَ دویم حالت یعنے دَ حالتِ یأس توبه نشی قبلیدے - هرکله چه فرښتے او دَ آخرت څیزونه دَ انسان مخے ته راشی - ځکه چه دغه وخت په مِنْ قَرِيْبٍ: کښے داخل نه دے -

په دے آیات کښے ئے دَ: مِنْ قَرِيْبٍ: په لفظ راوبوسره دے طرف ته اشاره اوکړه چه دَ انسان ټول عمر چیره لږه زمانه دے او مرګ کوم لره چه دے لرے ګنړی بالکل قریب دے -

دَ قریب دا تفسیر کوم چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه نقل شوے دے په نورو آیاتونو کښے پخپله قرآنِ کریم هم دے طرف ته اشاره فرمائیلے ده چه په هغے کښے ئے داخو دَ لے ده چه مرګ دَ وخت توبه قبوله نه ده -

دَ آیات دَ مضمون نچوړه دا شو چه کوم سړے څه ګناه کوی خواه قصداً ئے په اراده سره کوی یا په خطا او ناپوهئ سره ئے کوی - دغه په هرحال جهالت دے دَ هر داسے ګناه نه دَ انسان توبه قبلول الله تعالیٰ پخپله ذمه آغستی دی - په دے شرط چه دَ مرګ نه اول اول رشتونے توبه اوکړی -

پخپله ذمه دَ اغستو نه دا مطلب دے چه الله تعالیٰ دَ دے وعده فرمائیلے ده چه پوره کیدل ئے یقینی دی - ورنه دَ الله تعالیٰ په ذمه څه فرض، واجب یا دچا حق لازم نه وی - په اولنی آیات کښے دَ هغے توبے ذکر وُو چه دَ الله تعالیٰ په نزد قابلِ قبول ده - په دویم آیات کښے دَ هغے توبے بیان دے چه قابلِ قبول نه ده -

په دې کښې ئې بيان فرمائيلې دې چه د هغې خلقو توبه قابلِ قبول نه ده چه ټول عمر په زړه ورتيا سره ګناه کوي، او هرکله چه مرګ ئې په سر راشي او د ساه ختو وخت ئې شروع شي، د مرګ فرښتې ورته مخامخ شي نو دغه وخت وائي مونږ اوس توبه اوباسو دوی فرصت د عمر برباد کړه د توبې وخت ئې ضائع کړو او په دې وجه د دوی توبه نهٔ قبليږی - لکه فرعون او فرعونيانو چه د غرق کيدو په وخت کښې چغې کړې چه مونږ په رب د موسیٰ او هارونؑ ايمان راوړو - نو دوی ته جواب ملاؤ شو چه اے اوس ايمان راوړې او س خو د ايمان راوړو وخت تير شو؛

او دا مضمون ئې د آيات په آخرې جمله کښې ارشاد او فرمايه چه د هغې خلقو توبه هم قابلِ قبول نه ده - چا ته چه په حالت د کفر باندې مرګ راشي او عين د روح ختو په وخت کښې د ايمان راوړو اقرار او کړي - دا اقرار او ايمان بې وخته او بې فائدې دے - د دوی د پاره عذاب تيار کړې شوے دے -

## د توبې تعريف او حقيقت

د دو آيړو آيا تو نو د لفظي تفسير نه پس ضروري خبره دا باقي پاتې کيږی، چه د توبې تعريف څهٔ دے؟ او د دے څهٔ حقيقت او څهٔ درجه ده؟

امام غزالیؒ په احياء العلوم کښې فرمائي چه د ګناهونو کولو درې درجې دي۔

اول دا چه چرته ئې هيڅ ګناه هم نه وي کړې، دا د فرښتو خاصيت دے يا د انبياؤ عليهم السلام - دوېمه درجه دا ده چه ګناهونه کوي او اصرار پې هم جاري وي، چرته هم په دے باندې پښيماني او د پاتې کولو خيال ورلره رانشي، دا درجه د شيطانانو ده - دريم مقام د بني آدم دے چه ګناه ترې کيږی او فوراً پرې ستومانه کيږی او د آئينده د پاره د دے د پريخودلو پوخ قصد کوي۔

د دے نه معلومه شوه چه د ګناه کيدونه پس توبه نهٔ ويستل دا خالص د شيطانانو کار دے - په دے وجه په اجماع (اتفاق) د امت سره توبه فرض ده۔

د قرآن مجيد ارشاد دے:

يَاۤ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا تُوْبُوْۤا اِلَى اللّٰهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا، عَسٰى رَبُّكُمْ اَنْ يُّكَفِّرَ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ

"اے ايماندارو! الله تعالیٰ ته توبه اوباسئ رښتونې توبه نو دا څهٔ عجيبه نه ده چه الله تعالیٰ ستاسو ګناهونه اوبخي

| | |
|---|---|
| وَيُدْخِلْكُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۵ ۔ | او تاسو لره داسې جنتونو ته داخل کړي چه لاندې ترې نهرونه بهيږي ۔ |

دَ سخيانو سخي او دَ رحيمانو دَ رحيم دَ رحمت دَ دربار شان ته اوګورئ چه انسان تول عمر دَ هغه په نا فرمانو کښې اَخته وي، مګر چه دَ مرګ نه وړاندې په صدق دَ زړهٔ سره توبه اوباسي نو صرف دا نه چه دَ دهٔ قصور به معاف کړي بلکه دې به پخپلو محبوبو بندګانو کښې داخل کړي او دَ جنّت وارث به ئې کړي ۔ (الله اکبر)

په حديث کښې دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے :

| | |
|---|---|
| اَلتَّآئِبُ حَبِيْبُ اللّٰهِ وَ التَّآئِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لَّا ذَنْبَ لَهٗ (ابن ماجه) | "يعنې دَ ګناه نه توبه کونکے دَ الله محبوب دے او چا چه دَ ګناه نه توبه اوکړه هغه داسې شو لکه دهٔ چه دَ سره ګناه کړې نه وي" |

په بعضې رواياتو کښې دي چه هر کله بنده دَ څهٔ ګناه نه توبه اوکړي او هغه دَ الله تعالیٰ په نزد قبوله شي ۔ نو صرف دا نهٔ چه دے به اوس په دغې ګناه نيوَلے کيږي نهٔ، بلکه دغه ګناه به دَ فرښتو دَ ليکلو شوو عملنامو نه هم ورانه کړے شي ۔ چه دے پرې رُسوا کيږي نه ۔

البته دا ضروري ده چه توبه رښتونے او: توبة النصوح: وي ۔ چه دَ د ے درے ارکان دي ۔ اوّل پخپلو کړو خپيمانتيا او شرمندګي ۔ په حديث کښې ارشاد دے : اِنَّمَا التَّوْبَةُ اَلنَّدَمُ: يعنې توبه نوم دے دَ خپيمانتيا رستوما نه کيدو ۔ دوئيم رکن دَ توبې دا دے چه کوم ګناه ئې کړے وي هغه فورًا پاتے کړي ۔ او په راتلونکي وخت کښې هم دَ دے نه دَ ځان ساتلو پوخ قصد او اراده اوکړي ۔

دريم رکن ئې دا دے چه دَ تير نقصان دَ تلافۍ (پوره کولو) فکر اوکړي ۔ يعنې کوم ګناه چه دَ دهٔ نه شوے دے ۔ دَ دے چه څومره بدل راګرځول دَ دهٔ په قبضه کښې او په طاقت کښې وي هغه پوره کړي ۔ مثلًا مونځ روژه ترے فوت شوي دي نو دَ هغې دے قضا راګرځوي ۔ که دَ فوت شوو مونځونو روژو پوره شمار ورته معلوم نه وي نو پخپل فکر او اندازه سره دے کوي ۔ که په يو وخت ټول نشي کولے نو دَ هر مانځهٔ سره دے يو يو مونځ قضا راګرځوي ۔ او دغه شان په فارغ وخت کښې دِ دَ روژو اهتمام کوي، که ذکوة پرې پاتے وي هغه دے ټول په يو ځائې يا لږ لږ ادا کړي ۔

دَ چا حق ئے اغستے وی هغهٔ دے واپس کړی۔ چا ته ئے تکلیف رسولے وی دَ هغه نه دے معافی اوغواړی، لیکن که پخپلو کړو ستومانه نهٔ وی، خو دَ اینده دَ پاره دغه گناه پاتے نه کړی، نو دا توبه نه ده اګوکه هزار بار په خولے توبه توبه کوی ؎

توبه برلب سبحه برکف دل پرازذوق گناه
معصیت را خنده می آید زاستغفا رما

(په خولے توبه په لاس کښے تسبیح زړهٔ دَ شوق دَ گناه نه ډک، گناه ځما په دے توبه پورے خندا کانے کوی)

هرکله چه یو بنده دَ بره ذکر شوی تفصیل په مطابق توبه اُوویسته نو دهٔ که هر څومره گناهونه کړی وی دَ الله محبوب بنده جوړ شی۔

او که چرته دوباره ترے دَ انسانیت په تقاضا سره څهٔ گناه اوشی، نو فورًا دے بیا توبه نوے کړی۔ دَ غفور او کریم دَ دربار نه دے هر وخت او هر پیره دُعا قبلیدُ اُمید ساتی ؎

این درگهِ ما درگهِ نومیدی نیست
صد بار اگر توبه شکستی باز آ

(ځما دربار دَ نا اُمیدئ دربار نه دے۔ که سل پیرے دے توبه ماته کړه خو بیا راشه)

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا

اے ایماندارو حلال نه دی تاسو لره چه په میراث دې ئې ښځو لره په زبردستئ۔

وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ إِلَّا

او مه بندَ وئې دوی لره په دے وجه چه واخلئ دَ دوی نه بعض هغه چه تاسو ورکړی دی مګر

أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ ج وَعَاشِرُوهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ

که دوی اوکړی بے حیائی ښکاره۔ او گذران کوئ دَ ښځو سره په ښهٔ طریقه۔

فَإِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰ أَنْ تَكْرَهُوا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللَّهُ

پس که تاسو دوی بدے گنړئ نو شاید چه تاسو ته خوښ نوئ یو شے او الله ایخے دی

فِيْهِ خَيْرًا كَثِيْرًا ⑲ وَاِنْ اَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ

په دے کښے ډیر بنهٔ والے - او که بدلول غواړئ د یوے ښځے په ځائے

مَّكَانَ زَوْجٍ وَّاٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا

بلے ښځے لره او ورکړے وی تا سو یوے ته ډیر مال نو مه اخلئ د هغے نه

مِنْهُ شَيْئًا ؕ اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ⑳ وَ

هیڅ شے- آیا اخلئ تا سو دے لره په ناحقه او ښکاره ګناه سره - او

كَيْفَ تَاْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ

څه رنګ به دے لره اخستے شئ او رسیدلے دے یو تا سو کښے یو بل ته.

وَّاَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ㉑

او اخستے ده دغو ښځو ستا سو نه وعده پخه -

**د ایاتونو تړون**

په تیرو ایاتونو کښے د توبے ذکر په یو مناسبت سره راغلے وه- د دے نه وړاندے د ښځو متعلق د احکامو ذکر روان وو- نو په دے ایاتونو کښے هم د ښځو متعلق حکمونه دی - د جاهلیت په زمانه کښے به په ښځو باندے د خاوندانو د طرف نه هم ظلم کیده، او د دوی د وارثانو د طرف نه هم-

هر کله چه به د ښځے خاوند مړ شو نو د خاوند وارثانو به من مانئ کول کنډه به ئے غوختل نو د دغے ښځے سره به ئے پخپله نکاح کولو او یا به ئے بل ته په نکاح کوله او که مینه به ئے ورته نهٔ وه نو نه به ئے ورسره پخپله نکاح کولو او نه به ئے بل ته پریښوده - قید یا نے به ئے ساتلے د دے د پاره چه د خپلے امد نئ ذریعه ئے جوړے کړی - ځکه چه په دے صورت به دوی یا خپل ټول مال اسباب دوی له ورکولو ځان به ئے ترے خلاصولو- او یا به هم دغه شان په ګور کښے قید او سیده

او په دے حالت کښے به دے لره مرګ راغلو -

خاوندانو به هم ښځلو ښځو ظلمونه کول - که مینه به ئے ورسره نه وه نو نه به ئے دَ خاوند والی حقونه ادا کول، او نه به ئے طلاق ورکول تر دے چه دا خپل مال ورکړی او طلاق حاصل کړی -

په دے آیا تو نو کښے دَ دے خرابو دَ بند ولو بیان دے او په: عَاشِرُوْهُنَّ: سره ئے خاص خاوندانو ته خطاب کړے دے - او دَ: اِنْ اَرَدْتُّمُ اسْتِبْدَالَ زَوْجٍ نه تر مِيْثَاقًا غَلِيْظًا: پورے دا دوه آیا تو نه هم دَ دے مضمون تتمه ده:

# لنډ تفسير

اے ایمان دارو! تا سو لره دا خبره حلال نه ده چه دَ ښځو (دَ مال یا جان) په زبردستئ سره مالکان جوړ شئ (دَ مال مالک کیدل په درے قسمه دی - ۱ یو دا چه دَ دے ښځے کوم شرعی حق په میراث کښے دے هغه ښځله واغستے شی دے لره ورنه کړے شی - ۲ دویم دا چه نکاح کولو ته ئے نه پریدی چه دا دلته مړه شی او مال ئے دَ دوی ته پاتے شی، او یا ورلره ښځپل لاس څهٔ مال ورکړی - ۳ دریم دا چه خاوند دے لره بے وجه مجبوره کړی چه هغه دهٔ لره څهٔ مال ورکړی نو بیا به ئے دے پریدی -

په اوّل او دریم صورت کښے دَ جَبَرْ دَ قید نه دا فائده ده چه که دا کار ونه بالکل دَ ښځے په خوشحالئ سره وی نو بیا جائز او حلال دی - او په دویم صورت کښے دا جبر په واقع کښے دَ نکاح نه په منع کولو کښے دے چه غرض تر ے مال اغستل وُو، نو ځکه ئے په الفاظو کښے دَ دے سره پیوست کړو - نو په دے کښے هم دغه فائده دا اُوَ تَلَه - یعنی که دا ښځله خوشئ سره نکاح نهٔ کوی نو بیا په دغه خلقو ګناه نیشته -

او دَ جان مالک کیدل دا دُو - چه دَ مړی ښځه به ئے دَ مړی دَ مال پشان خپل میراث ګنړلو - په دے صورت کښے دَ جبر قید واقعی یعنی دَ بیان دَ واقعے دَ پاره دے چه دوی به داسے کول - مګر دَ دے دا مطلب نه دے چه که ښځه ښځپله رضا مندئ سره خپل ځان دَ مړی دَ مال پشان په میراثی ترکه جوړه ولو با نه دے راضی شی نو دا به بالکل هم دغه شان میراث او مِلک اوګرځی - داسے نه ده )

او دے ښځو لره په دے غرض سره قید کوئے مه چه څهٔ تاسو ورته یعنے ښځله تا سو یا ستاسو عزیزانو) دوی لره ورکړی دی دَهغے نه څه حصه (هم دَدوی نه) وصول کړئ (په دے مضمون کښے هم درے صورتونه راغلَه - یو[۱] دا چه دَمړی وارث دَمړی ښځے لره نکاح کولو ته نه پریږدی - دَ دے دَ پاره چه دا مال څهٔ راکړی - دوئم[۲] دا چه خاوند دا مجبوره کړی چه مال څهٔ راکړی نو بیا به ئے پریږدم - دریم[۳] دا چه خاوند طلاق ورکولو نه پس هم دے لره ترهغے دَبل سره نکاح کولو ته نهٔ پریږدی ترڅو چه دهٔ لره څهٔ ورنه کړی - دَدے دا اولنی صورت دَ بره نو صورتونو کښے دَدوئیم صورت یوجز دے - او دَدے دوئم صورت دَ بره نو صورتونو دریم صورت دے - او دَ بره نو صورتونو اولنی صورت او دَدے صورتونو دریم صورت جُدا جُدا دی) مګر په بعضے صورتونو کښے دَ دوی نه مال اغستل یا دوی لره قید کول جائز دی هغه) دا چه دغه ښځے څه صریح ناکاره کار او کړی (په دے کښے هم درے صورتونه راغلل یو[۱] دا چه دغه ناکاره حرکت دَدے دَ خاوند نا فرمانی او بدخوئی وی، نو خاوند لره جائز دی چه دے لره بغیر دَمال اغستو نه نهٔ پریږدی خو دغه مال به دَمهر نه زیات نه وی - دوئم[۲] دا چه دغه ناکاره حرکت دَدے زنا وی نو په اوّل دَ اسلام کښے دَحد ورو دَ نازیدو نه اول خاوند لره جائز وُو چه په دے جرمانه کښے دَدینه خپل ورکړے مال واپس کړی او دا دَکوره او باسی - او س دا حکم منسوخ دے په زنا سره دَمهر وجوب نه ساقطیږی په دے دواړو صورتو کښے به مال اغستے شی - او دریم[۳] صورت دا چه دغه ناکاره حرکت زنا وی نو خاوند لره او دارنګے نورو وارثانو لره لکه چه دَ رکوع په شروع کښے ذکر دی پطور دَسزا دَ حاکم په حکم ښځو لره په کورونو کښے دننه قید ساتل جائز وُو - بیا دا حکم هم منسوخ شو - پس دا قید کول به په طور دَسزا وی نه په غرض دَ مال وصولولو به نه وی - پس دا استثناء مطلق په عضل سره به وی، نه عضلِ مقیده په غرض دَ تللو دَمال سره)-

(او س وړاندے خاص خاوندانو ته حکم دے) او دَدے ښځو سره په ښهٔ طریقه سره ګذران کوئے (یعنی په خوش اخلاقئ سره او دَنان نفقے خبرے اخلئ) او که د دَ طبیعت په تقاضا سره دوی ستاسو خوښے نه وی (مګر دَدوی دَطرفه دَناخو ښئ څه خبره نه وی واقع شوے) نو (تاسو دَعقل په موجب دا سے ګنړئ او برداشت کوئ)

تاسو به شئ نه خوښوئ او الله تعالیٰ به دے کښې څهٔ لویه نفع (دنیوی یا دینی)
اېښے وی (مثلاً دا ستا سو خدمت کاره او آرام رسوونکے او همدرده وی، دا دنیوی
نفع ده، یا د دے نه څهٔ اولاد پیدا شی په ورکوتوالی کښې مړه شی، یا لوئے شی او نیک وی
چه د آخرت ذخیره شی - یا په کمه درجه کښې په ناخوښه شی باندے د صبر کولو ثواب
او فضیلت خو به ضرور ملاؤ شی) او که تاسو (د خپلے مینے په وجه سره) په ځائے د
یوے ښځے (یعنی اولنۍ) دویمه ښځه کول غواړئ (او د اولنۍ ښځے څهٔ قصور نه وی)
او تاسو د غې یوے ته (په مهر کښې یا هسے په هبه چالئ کښې) انبار ونه مال ورکړے
وی (خواه دستی مؤ ورکړے وی یا د مهر د پاره په معاهده کښې ورکړے وی)
نو تاسو د دغې (ورکړې شوی مال) نه څهٔ (د ښځے په تنګولو) هیڅ هم (واپس) مهٔ
اخلئ (او معاف کول هم حکماً واپس کول دی) آیا تاسو دے لره (واپس) اخلئ (د
دے په ذات باندے د نافرمانئ یا بدکارئ) بهتان لګوئ او (د دے په مال کښې)
د صریح ګناه (یعنی ظلم) مرتکب کیږئ (خواه که دا بهتان صراحتاً وی یا دلالتاً
وی - چه بیره صرف د نافرمانئ او بدکارئ په صورت کښې د دے نه د مال اغستو
اجازت وُو - نو اوس د دے نه مال اخلئ چه د خلقو په نظر کښې دا نافرمانه او بد
کرداره تصور کړئ - او دا ظلم ځکه دے چه ښځه ئے په خوشحالئ نه ورکوی - او د
هبے په صورت کښې ظلم دے چه ښځه خاوند یو بل ته څهٔ شے هبه کړی نو اوس
ئے د واپس اغستو شرعاً هیڅ حق نیشته - او که واپس ئے اخلی نو یو قسم غصب
به وی - او بهتان هم په دے سره لازم راځی ځکه چه واپس اغستل ګویا داسے وئیل
دی چه دا ځما ښځه نه وه او دا ځکه بهتان دے چه پدے سره دا ښځه د دے سړی
د ښځوالئ په دعوه کښې دروغجنه او فاسقه وه) او تاسو دے (ورکړې شوی) لره
(حقیقتاً یا حکماً) څنګه اخلئ حال دا دے چه (علاوه د بهتان او ظلم نه د دے مال په
واپس اغستو کښې دوه خبرے نورے منع کوونکے دی یوه دا چه) تاسو د یو بل سره بے
حجابه ملاؤ شوی یئ (یعنی کور والے مو کړے دے یا خلوت صحیحه چه هغه هم په حکم د
کور والی کښې دے، بهرحال دے خپل ځان تاسو ته ستاسو د لذتونو او خوندونو د
اغستو د پاره سپارلے دے، او مهر خو د دغې ځان سپارلو معاوضه ده پس د هغې نه نفع
اغستل او هغې ته نفع نه رسول یا تړے واپس اغستل د عقلِ سلیم نه بالکل خلاف ده۔

او که دغه مال دَ مهر نه وی بلکه بخشش وُه نو بیا دَ ښځوالی او خاوند والی دغه بے حجابانه ملاقات دَ دے دَ واپس اخستو نه منع کوُنکے دے) او (دویم مانع دا دے چه دغې ښځو ستاسو نه یو مضبوط اقرار (یعنی محکمه وعده) اغستے ده - (دغه عهد هغه دے چه دَ نکاح په وخت کښے تا سو مهر بخپل ځان ایخودے وُه - او عهد کول او دَ هغې خلاف کول هم دَ عقل په نزد بده خبره ده - او که هبه یا بخشش وی نو بیا هم دغه بے حجابه ملاقات دَ دے عهد دے او واپسی ئے مانع ده - غرض دا دے چه دَ دے څلورو موانعو با وجود واپسی ډیره ناکاره خبره ده)

## معلومات او مسئلے

**دَ اسلام نه وړاندې په ښځو دَ کیدونکو ظلمونو بندَ وَل.**

په دے درے وُوا آیاتونو کښے دَ هغې ظلمونو بندیز بیان شوید ے چه دَ اسلام نه وړاندے په دے نازک قسم (یعنے ښځو) باندے کوَلے شو - په دے کښے یو ډیر لوئے ظلم دا وه، چه سړو به ځانو نه دَ ښځو دَ مال او جان مالکان گنړل - ښځه چه به دَ چا په نکاح کښے راغله نو دوُه به ئے دَ جان (روح) هم ځان مالک گانړه - او دَ خاوند دَ مرګ نه پس چه څنګه وارثانو دَ دے دَ خاوند دَ مال ځانونه مالکان گنړل دغسے به ئے دَ دے ښځے هم ځانونه مالکان شمیرل، که غوښته به ئے نو پخپله به ئے ورسره نکاح کولو ورنه نو دَ بل نه به ئے مال اغستو او هغهٔ ته به ئے په نکاح کوَله - دَ خاوند خوئ چه دَ بلے ښځے نه به وُه هغهٔ به هم په نکاح اخسته - او چه دَ دوی دَ جان به ئے ځانونه مالکان گنړل نو مال خو هسے وخت خبره نه وه - او په دے وجه به په ښځو به سوو نو ظلمونه کیدل : مثلاً :

یو ظلم دا وُه چه کوم مال به ښځے ته چرته په میراث کښے ملاؤ شو یا دَ خپلوانو او پلار کور دَ طرفه به ورته پیطور دَ تحفے ملاؤ شو دا عاجزه به دَ دے ټول هم څهٔ نه محرومه وه او دا ټول مال به دَ خاوند کورس و هضم کا وُه -

دویم ظلم به دا وُو چه که ښځے به پخپل مال چرته قبضه او کړه نو دا به دَ نکاح کولو په دے وجه منع کوَلے شوه چه دا چرته دا خپل مال دَ دے کور نه یا هر یو نَسی بلکه چه دلته ئمړه شی او مال ئے زمونږ په قبضه کښے پاتے شی -

دریم ظلم به ځینې ځینې ځایونو دا هم کیده، چه ځینې وخت به ښځې ته هیڅ قصور نه ؤ - خو صرف دَ خاوند به خوښه نه وه نو دَ دے دَ ښځو الی حقونه یرځی نهٔ اداکول لیکن طلاق به ئے ورلره هم نه ورکول دَ دے دَ پاره چه دا تنګه شی او خپل مَهر کالے وغیره څهٔ چه ورلره دهٔ ورکړی وی هغه واپس کړی - او که لا ورکړے ئے نه وی نو چه معاف ئے کړی نو پس دَ هغې به ئے پریږدی -

او بعضې وخت به خاوند طلاق هم ورکړهٔ لیکن بیا به ئے هم دا طلاقه کړے دَ بل سړی سره نکاح کولو ته نهٔ پریښوده - دَ دے دَ پاره چه دا مجبوره شی او مهر واپس کړی او یا واجب الادا مهر معاف کړی -

څلورم ظلم به بعضې وخت داسے کیده، چه خاوند به مړ شو - نو دَ دهٔ وارثانو به دا کونډه نکاح کولو ته نهٔ پریښوده، یا دَ جاهلانه شرم په وجه، یا په دے طمع چه دَ دے په ذریعه څهٔ مال وصول کړی -

دا ټول ظلمونهٔ په دے بنیاد باندے کیده چه دَ ښځې مال او جان به دوی خپل مِلک ګڼړهٔ - قرآن کریم دَ دے فساد ذیلے اوُ بنسکلے او دَ دے فسادلاندے چه کوم ظلمونه کیدل دَ هغې ټولو دَ بندیز دَ پاره ئے ارشاد او فرمایه:

يَاۤ أَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَآءَ كَرْهًا

"اے ایماندارو! ستاسو دَ پاره دا حلال نهٔ دی چه تاسو جبرًا دَ ښځو مالکان جوړ شئ"۔

دَ جبر قید دلته کښې پطور دَ شرط نه دے چه کوندے دَ ښځو په رضامندئ سره به دَ دوی مالکان جوړیدل صحیح شی - بلکه دَ واقعې دَ بیان په طور دے، چه دَ ښځو دَ جان او مال بے دَ شرعی او عقلی وجې نه مالک جوړیدل ظاهره خبره ده چه جبر کیدے شی - په دے باندے عقل او هوش لرونکے یوه ښځه هم نهٔ شی راضی کیدے (بحر محیط) په دے شریعت په دے معامله کښې دَ دے رضا اثر کوونکے مقرر نهٔ کړهٔ - که چرته یوه ښځه په بے وقوفئ سره دَ چا په مملوکه جوړیدلو باندے راضی هم شی خو اسلامی قانون پرے راضی نه دے - چه یو آزاد انسان دے دَ چا مملوک جوړ شی -

دَ ظلم او فساد دَ منع کولو عامه طریقه داده چه په صیغه دَ نهئ سره دَ دے نه منع اوکړے شی - لیکن په دے ځائے کښې قرآن کریم دا عامه قاعده پریښوده په لفظ دَ: "لَا يَحِلُّ" سره ئے دَ دے بیان اوکړهٔ - په دے کښې دَ دے معاملے دَ سختے ګناه نه

علاوه دے طرفته هم اشاره کیدے شی چه که چا دیو بالغې ښځې سره بغیر د هغې د رضا او اجازت نه نکاح هم اوکړه نو دغه نکاح په شریعت کښې حلال نه دے بلکه په نښت به حساب وی - په داسې نکاح سره نه ډوی ښځه خاوند کیدے شی او نه د میراث یا نسب احکام پرې جاری کیدے شی -

دغه شان که چا یو ښځه مجبوره کړه او خپل ورکړے مهر ئې ترے واپس واغست یا واجب الأدا مهر ئې پرے جبرًا معاف کړو نو دا جبرًا واپسی یا معافی په شریعت کښې معتبره نه ده - نه دغه مال د دے سړی د پاره حلال کیږی او نه واجب حق معاف کیږی - او د دے مضمون د زیات وضاحت د پاره ئې ارشاد اوفرمایه:

:وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ: "یعنې ښځو لره د خپلې مرضئ د نکاح کولو نه مه منع کوئ- په دے خیال باندے چه کوم مال تاسو یا ستاسو خپلوانو دوی لره پطور د مهر یا تحفه ورکړے ده دغه ترے واپس واخلئ" د مهر په ورکولو او په واپس اغستو کښې دا هم داخله ده چه کوم مهر ورکول مقرر شوی دی دغه پرے معاف کړی- غرض ورکړے شوے مهر واپس اغستل یا واجب الأداء جبرًا معاف کول دا ټول ناجائزا و حرام دی او دغه شان حکم د تحفې او د هغې مال دے چه ښځې لره ورکړے شی د دے هم واپس اغستل خاوند لره یا وارثانو لره حلال نه دی - د مالکانه طور سره د ورکولو مطلب دا دے چه که خاوند څه کالي یا بل د استعمال څه شے ښځې ته محض عاریتًا د استعمال د پاره ورکړے وی د مالک کیدو د پاره نه وی - نو دغه شے د ښځې په ملکیت کښې نه شی داخلیدے - په دې وجه د هغې واپس کول منع نه دی -

د دے نه پس: اِلَّآ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ: ئې او فرمائیل بعضې داسې صورتونه ئې ترے اُو ویستل په کومو کښې چه خاوند له خپل ورکړے مال مهر وغیره واپس اغستل جائز کیږی -

معنی ئې دا ده چه که د ښځې نه څه ښکاره ناکاره حرکت داسې اوشی چه د هغې پو چه سړے په طلاق و ورکولو مجبوره شی - نو په داسې صورت کښې باک نیشته چه که خاوند تر هغې وخته پورے طلاق نه ورکوی تر څو پورے چه دا ښځه د ده ورکړے مهر وغیره واپس نه کړی - یا واجب الأداء مهر معاف نه کړی -

او دلته د لفظ فاحشه یعنی ناشایسته حرکت نه مراد د حضرت ابن عباس رض او

حضرت عائشهؓ او حضرت ضحاکؒ وغیره په نزد دَخاوندنافرمانی او دَخاوند سره بد ژبانی کول دی۔

او کَه ابو قلابهؒ حسن بصریؒ په نزد دَ فاحشه نه مراد دلته کښې بے حیائی او زنا ده نو معنیٰ ئې دا شوه چه کَه دَ دے ښځو نه دَ بے حیائی کار اوشی او یا دوی په نافرمانی او بد ژبانی سره دَ تلل کوی چه دَ دینه سړے مجبوره شی او طلاق ته تیار شی۔ نو چونکه قصور دَ ښځو دے۔ په دے وجه خاوند ته دا حق حاصل دے چه دے ئې ترهغې وخته پورے پخپل نکاح کښې بنده ساتی ترڅو چه دَ دینه خپل مال وصول نه کړی یا پرے مقرره مهر معاف نه کړی۔

په وړاندے دَوه آیاتونو کښې هم دَ دے مضمون تفصیلی بیان دے۔ ارشاد دے چه کله دَ ښځې دَطرف نه څهٔ دَ سرکشئ یا بے حیائی کار اُونشی۔ مګر خاوند محض دَ خپل طبعی خواهش او خوشحالئ دَپاره موجوده ښځه پاتے کوی بل واده کول غواړی نو په دے صورت کښې که دهٔ دَ مال ډیری حم دے لره ورکړی وی خو جائز نه دی چه دغه ورکړے مال یا دَ دغې څهٔ حصه دَطلاق په بدله کښې دَ دینه واپس واخلی یا پرے مقرره مهر معاف کړی۔ ځکه چه ښځې ته قصور نیشته۔ او یکوم سبب سره چه مهر واجبیږی هغه سبب هم پوره شوے دے یعنی دَ نکاح غوټه هم تړلے شوې او بے حجابه دَ یو بل سره ملاؤ شوی هم دی۔ نو اوس ورکړے مال واپس اغستل یا دَمقرره مهر معاف کولو هیڅ حق نیشته۔

دَ دینه پس ئې دَ دے رقم دَ واپسئ ظلم او ګناه په درے مرحلو کښې بیان کړو۔ اول ئې او فرمائیل: اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّ اِثْمًا مُّبِيْنًا: یعنی آیا تاسو دا غواړئ چه په ښځې باندے دَ زنا وغیره بهتان لګولو ښکاره ګناه او کړئ دَ خپل مال دَواپس اغستو لاره جوړه کړئ۔ یعنی هر کله چه دا معلومه شوه چه ورکړے مال اغستل واپس صرف په هغه صورت کښې جائز دی چه کله ښځه ناشائسته حرکت او کړی۔ نو اوس دَ دینه مال واپس اغستل په حقیقت کښې دَ دے اعلان کول دی چه دے څهٔ ناکاره حرکت بے حیائی وغیره کړیدی۔ اګر که په خولے سره پرے دَ زنا تهمت او نه لګوی او که نه. بهرحال دا دَ تهمت او بهتان یو صورت دے۔ چه دَ دے: اِثْمٌ مُّبِيْنٌ: ښکاره لوئے ګناه والے ظاهر دے۔

د دیه جمله کې دا ارشاد او فرمائیله: وَ کَیْفَ تَاْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰی بَعْضُکُمْ اِلٰی بَعْضٍ: "یعنې اوس تاسو خپل مالونه د دوی نه څنګه واپس اغستې شئ هرکله چه صرف د نکاح غوټه نه بلکه صحیح خلوت او بې حجابه ملاویدل هم شو یدی - ځکه چه په دې صورت کښې کوم ورکړې شوې مال د مهر وی نو ښځه د دې پوره مستحقه او مالکه شوې ده ځکه چه دې خپل ځان خاوند ته او سپاره - اوس کوم دې د واپسئ هیڅ معنی نیشتے - او که ورکړې مال چالۍ او تحفه وی نو هم ئې واپسی ممکن نه ده ځکه چه ښځه خاوند پخپل منځ کښې یو بل ته څه شے او بخښي د هغې واپسی نه شرعاً جائز ده او نه قانوناً - غرض دا دے چه د ښځوالۍ خاوند والي تعلق د هغې په واپسئ کښې مانع دے -

او د دې مضمون په دریمه جمله کښې ئې ارشاد او فرمایه: وَاَخَذْنَ مِنْکُمْ مِّیْثَاقًا غَلِیْظًا: "یعنې دې ښځو ستاسو نه پوخ او مضبوط عهد اغستې دے" د دې نه مراد د نکاح عهد دے - کوم چه د الله په نوم د خطبې سره د خلقو د وړاندې تړلې شي -

لنډه دا چه دا د ښځوالۍ خاوند والۍ عهد او میثاق او د یو بل سره د بې حجابه ملاویدو نه پس د ورکړې مال په واپس کولو کښې د ښځې مجبوروه کول بنکاره ظلم او زیاتې دے - مسلمانانو لره د دې نه ځان ساتل لازمي دي -

---

وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ؕ

او په نکاح مه خلئ هغه ښځې چه په نکاح اغستي وی ستاسو پلارانو مګر هغه چه وړاندې شو یدی -

ع ۳ ۸ ۱۴ اِنَّهٗ كَانَ فَاحِشَةً وَّمَقْتًا ؕ وَسَآءَ سَبِيْلًا ﴿۲۲﴾ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ

دا بې حیائي ده او کار د غضب دے - او ډیره ناکاره لاره ده - حرامې شوې دي پر تاسو

اُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَاَخَوٰتُكُمْ وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ

ستاسو میندې او لونړه او خویندې او د پلار خویندې او د مور خویندې

وَبَنٰتُ الْاَخِ وَبَنٰتُ الْاُخْتِ وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِیْٓ اَرْضَعْنَكُمْ

او د ورور لونړه او د خور لونړه او هغه مور میندې چه تاسو لره ئې تې درکړي دي

وَاَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَاُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ

او خویندې د رضاعت ستاسو - او ستاسو د ښځو میندې

وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِیْ فِیْ حُجُوْرِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِیْ

او د دوی لونړه چه ستاسو په پرورش کښې دي کومې چه ستاسو د ښځو نه پیدا دي د کومو

دَخَلْتُمْ بِهِنَّ ز فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا

ښځو سره چه تاسو کوروالې کړې دې - او که تاسو ورسره کوروالې نه وي کړې نو بیا په تاسو

جُنَاحَ عَلَیْكُمْ ز وَحَلَآئِلُ اَبْنَآئِكُمُ الَّذِیْنَ مِنْ

څه ګناه نیشته د دوی په نکاح کښې - او ستاسو د ځامنو ښځې کوم چه ستاسو د

اَصْلَابِكُمْ لا وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَیْنَ الْاُخْتَیْنِ اِلَّا مَا

شا نه وي - او دا چه جمع کړئ دوه خویندې لره مګر چه وړاندې

قَدْ سَلَفَ ط اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِیْمًا ۝۲۳ لا

شوې دي - بې شکه الله بخښونکی والا مهربان دی

**د آیاتو نوټرون**

د بره نه د جاهلیت د نا کاره رسمونو ذکر روان دې په دې کښې یو رسم دا وه چه د بعضو حرامو ښځو سره به ئې نکاح کولو - مثلاً د خپلې میرې مور سره - یوه خور به ئې په نکاح کښې وه او د بلې خور سره به ئې نکاح کولو او په دې مناسبت سره د نورو محرماتو ذکر هم دې - دا رنګې دغه غلفونه د هغه هغه د ښځې سره نکاح حرام کړې شوې چه به ئې د ځوئې پشان او پالو -

دَ دے اِبطال دَ پاره هم او فرمایه (یعني چه دَ دوی سره نکاح جائز دَ ے)

# لنډ تفسیر

او تاسو دَ هغې ښځې سره نکاح مکوئ دَ کومو سره چه ستاسو پلار (یا نیکونو) نکاح کړے وی مګر (خیر) کومه خبره چه تیره شوه هغه تیره شوه (په اینده کښې چرته داسے مکوئ) بے شکه دا (خبره عقلاً هم) لویه بے حیائي ده او (دَ سلیم طبعو په نزد هم) ډیره دَ نفرت خبره ده او (شرعاً هم) ډیره بده طریقه ده، په تاسو (دا ښځې) حرامے کړے شوے دی (یعني دَ دوی سره نکاح کول حرام او باطل دی۔ او دَ دوی څو قسمونه دی:-

اوّل قسم دَ نسب حراموالے دے چه هغه دا دی:) ستاسو میندے (مستاسو لونړه (په دے کښے اصول او فروع ټول که په واسطه سره وی او که بے دَ واسطے نه وی ټول داخل دی) او ستاسو خوینډے (خواه حقیقي وی او دَ دَ مور دَ طرفه وی او که دَ پلار دَ طرفه) او دَ پلار خوینډے (په دے کښے هم دغه درے واړه قسمو نو خوینډے عینی، علاتی، اخیافي، راغلے) او ستاسو دَ مور خوینډے (په دے کښے هم دَ دغه درے واړه قسمو نو خوینډے راغلے) او ستاسو دَ رونړو لونړه (دَ دغې درے واړه قسمونو رونړو لونړه سوبیځه راغلے که په واسطه سره وی او که بے واسطے وی) او ستاسو دَ خوینډو لونړه (په دے کښے هم دَ درے واړه قسمو نو خوینډو لونړه راغلے که په واسطه سره وی او که بے واسطے وی) - او

دوئیم قسم دَ رضاعت حراموالے دے چه هغه دا دی:) ستاسو هغه میندے کومو چه تاسو لره تے در کړے وی (یعني دائی مور) او ستاسو هغه خوینډے چه دَ تی په وجه وی (یعني چه که تاسو دَ دغې جینکو دَ حقیقي یا رضاعي مور تی خوړلی وی یا دوی ستاسو دَ حقیقي یا رضاعي مور تی خوړلی وی، اګر که په مختلفو وختو نو کښے خوړلی وی) او

دریم قسم حراموالے دَ خواخوالۍ دے (یعني حراموالے بالمصاهرت) او هغه دا دی): ستاسو دَ ښځو میندے (په دے کښے دَ ښځے ټول زنانه اصول راغلل) او ستاسو دَ ښځو لونړه (په دے کښے دَ ښځے ټول زنانه فروع راغلل) کومے چه (عادتًا) ستاسو

په پرورش کښې وي (مګر په دې کښې یو قید هم دې هغه دا چه دغه جینکۍ) د هغه بي‌بيانو نه (وي) د کومو سره چه تاسو کور والی کړې وي (یعني د یو ې ښځې سره صرف په نکاح کولو د هغې لور نه حرامیږي ترڅو چه کوروالی ورسره نه وي شوې) او که (لا تر وسه) تاسو د دغو بي‌بيانو سره کوروالی نه وي کړې (اګرچه نکاح شوې وي) نو (د دا سې بي‌بي د لور سره په نکاح کولو کښې) تاسو ته څه ګناه نیشته- او ستاسو د هغې ځامنو بي‌بيانې (هم حرامې دي) کوم چه ستاسو د نسل نه وي (په دې کښې د نکو تړلو نا رینو فروع بي‌بيانې داغلې، او د نسل د قید مطلب دا دې چه بچولي چا ته خوئې ویئلې وي (لکه متبنیٰ) نو د هغه بي‌بي حرامه نه ده) او دا (کار هم حرام دې) چه تاسو دوه خوئیندې ولره (رضاعي وي او که نسبي وي یځپل نکاح کښې) یوځا ئې کوئې لیکن کوم چه (د دې حکم نه) وړاندې شوي دي (هغه معاف دي) بې‌شکه الله تعالیٰ ډیر لوئې بخښونکې والا لوئې رحمت والا دې (چه په رحمت سره ګناه معاف کوي) او (دلته څلورم قسم هغه ښځې حرامې دي چه غا وندانې وي خو دا بیان پاتې د بنځم پارې نه شروع کیږي- دلته چونکه پاره څلورمه ختمه شوه ځکه دغه بیان پاتې شو هلته ئې کوو)

# معلومات او مسئلې

په دې ایاتونو کښې د محرماتو یعني د هغه ښځو د تفصیل بیان دې کوم سره چه نکاح حرام دې، بیا بعضې محرماتې هغه دي چه په هیڅ حال کښې حلالې نه دي چه هغوي ته د همیشه د پاره حرامې ویئلې شي- او بعضې هغه محرماتې دي چه همیشه نه دي حرامې بلکه په بعضې حالتونو کښې ورسره نکاح حلالیږي-

د شروع درې قسمونه، محرماتې نسبي، محرماتې رضاعي، محرماتې بالمصاهرة- دا د همیشه د پاره حرامې دي- او اخري یو قسم (چه د بنځم پارې د شروع نه ئې بیان شروع کیږي) دا د بل په نکاح کښې ښځې دي دوی تر هغه وخته پورې حرامې دی ترڅو پورې چه دوی د بل په نکاح کښې وي-

:وَلَا تَنكِحُوا مَا نَكَحَ آبَاؤُكُم: د جاهلیت په زمانه کښې په دې کښې هیڅ باک نه ؤ او د پلار د مرګ نه پس به د ده ښځه خوئې په نکاح کوله- په دې ایات کښې الله تعالیٰ د دې بې شرمئ او بې حیائي د کار نه منع او فرمایئله او د دې سبب د خدائې پاک

دَ نارَاضګئ اُو وے، بنګاره خبره ده چه دا څومره اخلاق مړګی او دَ عمل خرابی ده چه کومے ته دَ یو زمانے پورے مور ویلے شوے ده هغه دَ پلار دَ مړګ نه پس دَ ښځے په جوړ بیا ساتی -

**مسئله:** په ایات شریف کښے ئے دَ پلار دَ نکاح شوے سره نکاح حرام کړے دے، په دے کښے ئے دَ دے خبرے قید نه دے لګولے چه پلار ورسره کور والے هم کړے وی- نو په دے وجه دَ کومے ښځے سره چه دَ پلار د نکاح قد رے هم اوشی نو دَ ځوئ دَ پاره چرته بیا حلال نۀ ده -

دغه شان دَ ځوئ دَ ښځے سره دَ پلار نکاح کول جائز نۀ دی اګرچه ځوئ ورسره صرف نکاح قد رے کړے وی- قَالَ الشَّامِیْ وَتَحْرُمُ زَوْجَةُ الْاَصْلِ وَالْفَرْعِ بِمُجَرَّدِ الْعَقْدِ دَخَلَ بِهَا اَوْ لَا :(شامی وائی چه دَ اصل او فرع دواړو ښځے حرامے دی په مجرد نکاح کولو سره دخول ورسره شوے وی او که نۀ)

**مسئله:** که پلار دَ یوے ښځے سره زنا کړے وه نو هم ځوئ لره دَ دغے ښځے سره نکاح کول حلال نۀ دی -

حُرِّمَتْ عَلَیْکُمْ اُمَّهٰتُکُمْ : یعنے دَ خپلے مور سره نکاح کول حرام دی او په لفظ دَ اُمَّهٰتُکُمْ کښے نیا ګانے هم لے دَ پلار (مورانے او مور مورانے) داخلے دی -

وَبَنٰتُکُمْ : دَ خپلو اصلی لونړو سره نکاح حرام دے، او دغه شان دَ لور او دَ ځوئ دَ لونړو سره -

لَنِّیْ ه داده چه دَ ممسو کړو سو هو لو سره نکاح حرام دے که دَ لور دَ طن نه وی او که دَ ځوئ - او دَ پرکتئ سره کومه چه دَ ښځے سره راغلے وی او دَ دے ښځے دَ بل خاوند نه وی دَ دے په نکاح کښے تفصیل دے چه وړاندے راځی- او کوم هلکجینئ چه دَ دهٔ نه پیدا نوی پردی ئے لوئے کړی وی دَ دوی سره او دَ دوی دَ اولاد سره نکاح جائز دے خو په دے شرط چه په بله طریقه حرمت نه وی راغلے - دغه شان که چا دَ یوے ښځے سره زنا اوکړه او دَ دهٔ دَ نطفے نه چه کومه جینئ پیدا اشی هغه هم دَ لور په حکم کښے ده نکاح ورسره جائز نۀ دے-

وَاَخَوٰتُکُمْ : دَ خپلے حقیقی خور سره نکاح حرام دے، او دَ پلار شریکے او مور شریکے خور سره هم حرام دے -

وَعَمّٰتُكُمْ: دَ خپل پلار دَ حقیقي خوئینډو، پلار شریکو او مور شریکو، درې واړو سره نکاح حرام دے۔

وَخٰلٰتُكُمْ: دَ خپلے مور دَ حقیقي خور پلار شریکے او مور شریکے درې یو سره نکاح حرام دے۔

وَبَنٰتُ الْاَخِ: دَ ورور دَ لونړو سره که حقیقي وي او که پلار شریک یا مور شریک رورو ی دَ درې واړو دَ لونړو سره نکاح حرام دے۔

وَبَنٰتُ الْاُخْتِ: او دغه شان دَ درې واړه قسمه خوئینډو دَ لونړو سره نکاح حرام دے۔

وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِيْٓ اَرْضَعْنَكُمْ: دَ کومو ښځو چه تاسو پئ خوړلی وي دغه هم دَ مور په حکم کښے دي نکاح ورسره حرام دے۔ لږ پئ وي او که ډیر، یو وار شکلی وي او که ډیرے پیرے خو رضاعت پرے ثابتیږي او حرمت پرے راځي۔ دیته فقهاء رحمهم الله رضاعت وائي۔

البته دومره خبره یادساتل په کار دي چه دَ رضاعت حرامولے دَ ور کوتوالي په زمانه کښے په پئو خوړلو سره راځي۔ دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے: اِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ: یعنے دَ رضاعت حرامولي دَ هغې وخت په پئو خوړلو سره ثابتیږي کوم وخت کښے چه دَ بچي نشو نما په پئو سره وي (بخاري مسلم)

او دا موده دَ امام صاحب په نزد دوه نیم کالو پورے ده۔ او دَ نورو فقهاؤ په نزد چه امام یوسف او امام محمد په کښے هم دي تر دوه کالو پورے ده۔ او په دے دَ امام محمد صاحب فتوٰی هم ده۔ که یو هلک جینئ دَ دے عمر نه پس دَ چا ښځې ته او خوري نو حرمت دَ رضاعت پرے نهٔ ثابتیږي۔

وَاَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ: یعنے دَ رضاعت په رشته سره چه کومے خوئینډے دي دَ هغوي سره هم نکاح حرام دے۔ تفصیل ئے دا دے چه هرکله یو هلک یا جینئ دَ رضاعت په موده کښے دَ چا ښځې پئ او خوړهٔ نو دغه ښځه دَ دهٔ رضاعي مور شوه او دَ دے خاوند ئے پلار شه، او دَ دے ښځې نسبي اولاد دَ دهٔ خوئینډے رونړه شو۔ او دَ دے خوئینډے دَ دهٔ ترورانے شوے او دَ دے لیورونه ئے رضاعي ترونه شو۔ او دَ دے ښځې دَ خاوند خوئینډے دَ دے بچي ترورانے شوے او دَ دے ټولو پخپل منځ کښے دَ رضاعت حرمت ثابت شو کوم رشتے چه دَ نسب په لحاظ سره حرامے دي هغه دَ رضاعت په لحاظ سره هم حرامے دي۔ دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے: يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ الْوِلَادَةِ: (بخاري) او دَ مسلم په روایت کښے دي: اِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا حَرَّمَ مِنَ النَّسَبِ: (مشکوٰة ص۲۷۳)

**مسئله:** که یو هلک او یوې جینۍ د یوې ښځې پۍ او خوړل نو د دې دواړو د یو بل سره نکاح نه کیږي، دغه شان د رضاعي رور او رضاعي خور د لور سره هم نکاح نه کیږي.

**مسئله:** د رضاعي رور یا رضاعي خور د نسبي مور سره نکاح جائز دے، او د نسبي خور د رضاعي مور سره هم حلال ده، او د رضاعي خور د نسبي خور سره هم او د نسبي خور د رضاعي خور سره هم نکاح حلال دے.

**مسئله:** د رضاعت په ورځو کښې په خوله یا پوزه سره ئې پیو تللو هم حرمت ثابتیږي. او که په بل لاره پۍ دننه او رسولے شو یا د پیو انجکشن ورته اوکړے شو نو د رضاعت حرام والے پرے نه ثابتیږي.

**مسئله:** د ښځې د پیو نه علاوه د بل شي په پیو مثلاً د خاروي په پیو یا د سړي په پیو سره رضاعت نه ثابتیږي.

**مسئله:** پۍ که په دارو کښې یا د بیړۍ، غوا، میښې په پیو کښې ملاؤ وو نو په دے سره به حرمت د رضاعت هغه وخت ثابت شي کله چه د ښځې پۍ پرے غالب وو، او که دواړه برابر وو نو هم حرمت د رضاعت ثابتیږي لیکن که د ښځې پۍ کم وي نو بیا نهٔ ثابتیږي.

**مسئله:** که د سړي پۍ راووتلې نو په دے سره حرمت د رضاعت نهٔ ثابتیږي.

**مسئله:** که د پیو خوړلو شک ئې وه نو په دے سره حُرمت د رضاعت نه ثابتیږي. که یوې ښځې د یو بچي په خوله کښې تے کیخود ه لیکن د پیو تللو یقین ئې نه وي نو په دے سره حرمت د رضاعت نه ثابتیږي. او نکاح ورسره حلال دے.

**مسئله:** که یو سړي د یوې ښځې سره نکاح اوکړه، او بلے ښځے اووے چه ما تا سو دواړو لره تے در کړے دے نو که دغه دواړه د دے تصدیق اوکړي نو د نکاح فاسد کیدو فیصله به اوکړے شي او که دغه دواړه ئے دروغژن نه کړي او ښځه دینداره خدا ترسه وي، نو د نکاح فاسد کیدلو فیصله به نشي کولے، لیکن طلاق ورکول او جدا کیدل غوره دي.

**مسئله:** د رضاعت د حرام والي د ثبوت د پاره د دوه دینداره سړو ګواهي ضروري ده، د یو سړي او یوې ښځې په ګواهئ سره رضاعت نه ثابتیږي. لیکن معامله د حرام و حلال لو ده، په دے وجه احتیاط غوره دے، تردے چه بعضے فقهاؤ دا تفصیل لیکلے دے چه که د یوې ښځې سره نکاح کوي او یو دیندار سړے ګواهي چه دا دواړه رضاعي خور رور دي. نو نکاح جائز نه دے، او که د نکاح نه پس ګواهي اوکړي نو احتیاط به جدا کیدو کښې دے،

بلکه که یو ه ښځه هم او وائی نو بیا هم احتیاط په جدا کیدو کښې دے -

**مسئله:** لکه څنګه چه د دوه دینداره سړو په ګواهئ سره د رضاعت حرامولے ثابتیږي دغه شان د یو دینداره سړي او دوه دینداره ښځو په ګواهئ سره هم د دې ثبوت راځي. البته احتیاط په دے کښې دے چه که نصاب د شهادت پوره هم نه وي خو د حرامولی ترجیح کیدو د پاره جهت له ترجیح ورکولے شي -

:وَ اُمَّهٰتُ نِسَآئِکُمْ ; د ښځو میندے هم حرامے دي - دلته په اُمَّهٰت کښې تفصیل دے، په دے کښې د ښځو نیا ګانے د پلار او مور دواړو د طرفه نسبي وي او که رضاعي وي ټولے داخلے دي.

**مسئله:-** لکه څنګه چه د نکاح شوے ښځے مور حرامه ده - دغه شان د هغه ښځے مور هم حرامه ده چه د شک په وجه ورسره هم بستري شوے وي یا د چا سره چه زنا شوے وي یا په کومے ښځے لوه تے په شهوت سره لاس وروړے وي -

**مسئله:** په نفس نکاح کولو سره د ښځے مور حرامه شوه دُخول وغیره ضروري نه دي -

:وَرَبَآئِبُکُمُ الّٰتِیْ فِیْ حُجُوْرِکُمْ مِّنْ نِّسَآئِکُمُ الّٰتِیْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ ; د کومې ښځے سره چه نکاح او شه او د نکاح نه پس یوځائے هم شو نو د دے ښځے لور چه د بل خاوند نه ده او دغه شان نمسئ کړوسئ هم حرامے شوے - که دوي سره نکاح کول جائز نه دي لیکن که یوځائے شوي نه وي صرف نکاح شوے وي - نو صرف په نکاح سره دا ذکر شوي قسمونه حرامیګي - لیکن د نکاح نه پس که ئے ورلوه په شهوت سره لاس وروړو یائے ورلوه پټ اندام ته په شهوت سره او کتل نو دا هم د یوځائے کیدو په حکم کښې دي په دے سره پرے هم دغه ذکر شوي قسمونه حرام شو -

**مسئله:-** دلته هم په نِسَآئِکُمْ کښې عام والے دے نو کومے ښځے سره چه د شک په وجه یوځائے شوے وي یائے ورسره زنا کړے وي هم پرے دغه قسمونه حرام شو -

:وَحَلَآئِلُ اَبْنَآئِکُمُ الَّذِیْنَ مِنْ اَصْلَابِکُمْ ; د خوئي ښځه حرامه ده - او په دے کښې نمسي کړوسي د ځامنو او لونړو ټول او لاهم داخل دي نو د دوي د ښځو سره هم نکاح حرام دے -

د: مِنْ اَصْلَابِکُمْ ; په قید سره ئے ترے متبنّی او ویستلو - نو د متبنّی د ښځے سره نکاح حلال دے - او رضاعي ځوئي هم د نسبي ځوئي په حکم کښې دے نو د هغه د ښځے سره هم نکاح حرام دے.

:وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَیْنَ الْاُخْتَیْنِ ; دوه خوئیندے و لوه په نکاح کښې جمع کول هم حرام دي که حقیقي خوئیندے وي او که پلار شریکے یا مور شریکے خوئیندے وي یا رضاعي خوئیندے وي -

داحکم تولو لره شامل دے - البته دَ یوے دَ طلا قو لو نه پس ریا دَ مړه کیدو نه پس) دَ بلے سره نکاح جائز دے - لیکن دا جواز دَ عدّت تیریدو نه پس دے - دَ عدت په دوران کښے نکاح جائز نه دے -

**مسئله:** لکه څنګه چه دوه خوئندے دَ یوسړی په نکاح کښے جمع کول حرام دی دغه شان ترور او نږور او خورځے وریرے وغیره هم په یو نکاح کښے جمع کول حرام دی -

قَالَ النَّبِیُّ صَلَّی اللہُ عَلَیْہِ وَسَلَّمَ لَا یُجْمَعُ بَیْنَ الْمَرْءَۃِ وَ عَمَّتِہَا وَ لَا بَیْنَ الْمَرْءَۃِ وَخَالَتِہَا - (بخاری ومسلم)

"نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی نه دے شی جمع کولے دَ پلار خور او وریره په یو نکاح کښے او نه دَ مور خور او خوریه په یو نکاح کښے"

**مسئله:-** فقهاؤ دَ قاعدے کلیئ په طور سره دا سے لیکلی دی چه هر هغه دوه ښځے چه یوه یکښے نارینه فرض کړے شی او دَ هغے بلے سره ئے نکاح جائز نه وی نو دغه دوا ړه په یو نکاح کښے نشی جمع کیدے -

اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ: یعنی په جاهلیت کښے چه څۀ کیده په هغے اوس نۀ شی نیوے - دا الفاظ په: وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمْ: ایات کښے هم ذکر شوی دی او هلته ئے هم دا معنیٰ ده چه په جاهلیت کښے ستاسو نه څۀ شوی دی هغه شوی دی - اوس دَ اسلام راؤړو نه پس په هغے نیول نیشته، او دا مُنده دَ پاره ترے ځان ساتل په کار دی -

دغه شان کۀ دَ حُرمت دَ نزول پوخت کښے دَ پلار منکوحه یا دوه خوئیندے دَ چا په نکاح کښے وی نو جُدا والے ضروری دے - او دَ دوه خوئیندو نه به یوه لوے کوی -

دَ حضرت براء بن عازبؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ابو برده بن نیار لره دَ یو سړی دَ قتل دَ پاره په دے وجه لیږلے وو چه دغے سړی دَ پلار ښځے سره نکاح کړے وه - (مشکوٰة ص۲۷۴)

دَ ابن فیروز دیلمی نه روایت دے، دے دَ خپل پلار نه نقل کوی چه کله زۀ مسلمان شوم نو دوه خوئیندے ځما په نکاح کښے وے زۀ دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شوم - نو حضورؐ ما ته او فرمائیل چه پَد وی کښے یوه طلاقه کړه او جدا ئے کړه - او یوه دَ ځان سره اوساته (مشکوٰة ص۲۷۴)

دَ دے روایتونو نه معلومه شوه چه څۀ رنګ دَ اسلام په حالت کښے دَ اوّل نه

دَ پلار منکوحه او جمع دَ دوه خوئيندو جائز نه ده - وغه شان که دَ کفر په حالت کښې ئې داسې نکاح کړې وي، نو دَ اسلام راوړونه پس دَ هغې باقي پاتې کول جائز نه دي -

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا: دَ اسلام نه وړاندې چه هرڅه دوي په ناپوهئ سره کړي دي، او س دَ اسلام راوړونه پس الله جلّ شانهٗ دوي ته معافي کوي او پخپل رحمت سره دوي ته متوجه کيږي -

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ

# څلورمه پاره ختمه شوه

ناشران

# تاج کتب خانه محله جنگی پشاور

وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ

او خاوند والا ښځې مګر د کوم چه مالکان شی ستاسو لاسونه

كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ۚ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا

حکم او شو د الله پتاسو۔ او حلالې دی ستاسو د پاره ټولې ښځې د دی نه سوا په دې شرط چه طلب

بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ؕ فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ

کوئ دوی لره د څیز مال په بدله په قید کښې راوستو لره نه مستی ویستو لره۔ بیا کوم چه پکار کښی تاسو

بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ؕ وَلَا جُنَاحَ

راوستې د دې ښځو نه نو دوی لره ورکړئ د دوی حق کوم چه مقرر شوی دے۔ او ګناه نیشته پتاسو

عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ؕ اِنَّ

په دے خبره کښې چه رضا شئ تاسو دواړه پخپل مینځ کښې په هغې پس د مقرر کولو نه۔ بے شکه

اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۲۴﴾

الله دے خبردار حکمت والا۔

**د آیاتو نوټرون**

په تیرو آیاتونو کښې د څنې ښځو سره د نکاح د حرامولی بیان وو۔ او س په دے ذکر شوی آیات کښې د بعضې هغې ښځو سره د نکاح د حلال والی بیان دے، یکوموکښې چه مسلمانانو ته شک راغلے وو، مثلاً وښځه چه د مسلمانانو په قبضه کښې راشی او د دے اولنی خاوند په دارالحرب کښې وی۔ د دے سره د نکاح د شرطونو او مهر وغیره ذکر دے۔

## لنډ تفسیر

د دځلو د مے پارے په اخری دوه آیاتونو او د دے پنځم پارے په دے ذکر شوی آیاتو کښې

دَ هغې ښځو ذکر روان دے دَ کومو سره چه نکاح حرام دے، او دَ دے محرماتو څو قسمونه دي چه درے قسمونه ئے هلته ذکر شو۔ او

(څلورم قسم) هغه ښځې دي چه خاوند انو والادي مګر ددے قسم کښې هغه مستثنیٰ دي کومے چه (شرعاً) ستاسو وینځې شي (او دَ دے حربي خاوند په دار حرب کښې موجود وي او دا دَ یو حیض کیدو یا دَ حمل پیدا کیدو نه پس حلالے دي (هدایه) الله تعالیٰ دا حکمونه په تاسو فرض کړي دي، او دَ دے ښځو نه سوا نورے (باقي) ښځې ستاسو دَ پاره حلالے شوے دي، یعني دا چه تاسو دوی لوه دَ خپلو مالونو په ذریعه سره (په نکاح کښې راوستل) غواړئ (یعني مهر په نکاح کښې ضروري دے او دا سے چه تاسو (دوی لره) ښځه جوړه وئ (چه شرطونه ئے په شریعت کښې مشهور دي مثلاً چه ګواهان پکښې هم وي او نکاح دَ څهٔ وخته پورے تړلے هم نه وي وغیره) صرف مستي ویستل مقصود نه وي (دَ دے په عموم کښې زنا او متعه تهول داخل دي اګر چه په دے کښې هم مال خرچ کولے شي) بیا (دَ نکاح کیدو نه پس) په کومه طریقه سره (دَ شریعت په معتبره طریقو باندے) چه تاسو دَ دوی نه نفع واخسته پس دوی نه (ددوی عوض) دَ دوی مهر ورکړئ څهٔ چه مقرر شوے دے او (دا مه ګڼړئ چه په دے مقرره کښې به دَ هیڅ قسم لکه دَ ما څه دوڅړے کمے زیاتے ممکن نه وي بلکه) دَ مقرر کیدو نه پس هم څومره (مقدار) باندے چه تاسو (ښځه خاوند) یو تربله رضامند شئ په دے کښې پتا سو هیڅ ګناه نیشتے (مثلاً خاوند نور مهر زیات کړو یا ښځې کم کړو یا ئے معاف کړو هرشان جائز دي) بے شکه الله تعالیٰ ډیر پوهیدونکے دے (ستاسو مصلحتونه ورته څهٔ معلوم دي) لوئے حکمت والا دے (دَ دے مصلحتونو په لحاظ سره ئے احکام مقرر کړي دي، اګر چه ستاسو په فکر کښې نه راځي)۔

# معلومات او مسئلے

: وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ: یعنے خاوندانو والا ښځې ئے هم حرامے کړیدي۔ ترڅو پورے چه یوه ښځه دَ چا په نکاح کښې وي دویم سړے دَ دے سره نکاح نه شي کولے۔ دَ دے نه په واضح طور سره دا معلومه شوه چه یوه ښځے په یو وخت کښې ډیر خاوندان نشي کیدے۔ دَ دے دَوَر بعضے جاهل بے دینه وائي چه هر کله سړو ته دَ یو نه ذیات

ښځو اجازت دے، نو ښځو ته هم د یو نه د زیاتو خاوندانو اجازت پکار دے. دا مطالبه د دے آیات شریفو نه بالکل خلاف ده. دا سے د جهالت خبرے کونکی خلق په دے نه پوهیږی چه د سړی د پاره د ښځو ډیر والے خو یو نعمت دے، چه په هر مذهب او ملت کښې جائز ګڼلے شوے دے او د انسان تاریخ پرے ګواه دے. لیکن د ښځے د پاره په یو وخت کښې د یو نه زیات خاوندان کیدل د دے ښځے د پاره هم یو مصیبت دے.

اوګوره د ده سړی چه د یوے ښځے خاوندان جوړ شی د هغو د پاره څومره عار او شرم دے. او دا رنګ په دے کښې د یو بچی د نسب ثابتید و هم څه لار پاتے نه شوه هر کله چه ډیر سړی د یوے ښځے نه فائده واخلی نو د دینه پیدا کید ونکے اولاد به د چا اولاد ګڼلے شی. نو په دے وجه دا بد ترینه مطالبه هغه خلق کولے شی چه سراسر د انسانیت دشمنان وی. او د چا چه د غیرت او حیا جنازه وتلی وی. دا خلق ائنده نسل له د اولاد او مور و پلار د حقونو د رحمتونو نه محرومه کول غواړی. چه هر کله نسب ثابت نه شی نو د یو بل په مینځ کښې د حقونو او د ځنو ذمه وارئ به په چا راوړه ولے شی؟

که خالص په طبعی او عقلی اعتبار سره اوکتے شی نو هم د یوے ښځے د پاره د ډیرو خاوندانو جواز په نظر نه راځی.

(۱) د ښځوالئ خاوند والئ بنیادی مقصد اولاد پیدا کیدل دی. نو په دے اعتبار سره ډیرے ښځے د یو سړی نه حامله کیدے شی. لیکن یوه ښځه د ډیرو سړو نه نه شی حامله کیدے دا خو صرف د یو نه حمل نیسی. نو چه خاوندان ډیر وی نو د باقی خاوندانو قوت به هسے ضائع کیږی. صرف د شهوت رانی نه علاوه به دوی ته هیڅ فائده حاصله نه وی.

۲: په تجربه او مشاهده سره ثابته شوے ده چه ښځه د سړی په مقابله کښې صنف نازک (کمزورے قسم) دے، دا د کال په اکثره حصه کښې د نفع اغستو قابله هم نه وی، په بعض وخت کښې خو دے له د یو خاوند حقونه ادا کول هم ګران وی بلکه ناممکن وی. نو چه لا ګڼړ شی بیا به څه کوی؟

۳: چونکه سړے د جسمانی قوت په اعتبار سره د ښځے په مقابله کښې زیات صحت مند دے. په دے وجه که د یو سړی جنسی قوت د معمول نه زیات وی

او په یوه ښځه باندې د دوه تسلّي نه کیږي نو دوه لوه په جائز طریقه سره د دویم او دریم نکاح اجازت پکار دی، او که داسې نه وي نو په ناجائزه طریقه اختیاره وَ لو سره په دې ټول معاشره ګنده کړي. لیکن د ښځې نه د داسې معاشرې ګنده کول لو یره کمه ده.

په اسلامي شریعت کښې د دې مسئلې اهمیت دومره زیات دې چه نه صرف دا چه د یو خاوند په موجودګۍ کښې دیته د بل نکاح کولو اجازت نیشته، بلکه چه کومه ښځه یو خاوند طلاقه کړي یا مړ شي نو د عدّت تیریدو پورې ورله د بل سره د نکاح کولو اجازت هم نیشته.

اِلَّا مَا مَلَکَتْ اَیْمَانُکُمْ: دا جمله د: وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ: نه استثناء ده. مطلب ئې دا دې چه د خاوند لرونکې ښځې سره د بل سړي نکاح کول جائز نه دي. مګر دا چه کومه ښځه د وینځې په شکل کښې لاس له راشي. چه د دې صورت دا دې چه مسلمانان د دارِ حرب د کافرانو سره جهاد اوکړي. او د هغوئ ځائې نه څه ښځې په قید کښې راولي. نو په دوي کښې چه کومې ښځې دارِ اسلام ته راوستې شوې او خاوند ئې په دارِ حرب کښې پاتې شو نو د دغې ښځې نکاح دارِ اسلام ته په راتلو سره د خپل زوړ خاوند نه ختم شو. او س که دغه ښځه کتابیه یا مسلمانه وي نو د دې سره په دارِ اسلام کښې د مسلمان نکاح کیدې شي. او که امیر المؤمنین د دینه وینځه جوړه کړي او یو فوجي سپاهي ته ئې د غنیمت د مال په تقسیم کښې ورکړي نو هم د دینه نفع اغستل جائز دي. لیکن دا نکاح یا نفع اغستل د یو حیض راتلو نه پس جائز دي. او که حمل ئې وي نو د حمل پیدا کیدو نه پس.

**مسئله:-** که یو کافره ښځه په دارالحرب کښې مسلمانه شي او خاوند ئې کافر وي، نو د درې حیضو نو کیدو نه پس به دا د هغهٔ د نکاح نه اوځي.

**مسئله:-** او که په دارالاسلام کښې یو کافره ښځه مسلمانه او خاوند ئې کافر وي. نو شرعي حاکم به د دې خاوند ته اسلام وړاندې کړي، که د مسلمانیدو نه ئې انکار اوکړو، نو قاضي به د دوارو په مینځ کښې جدا والې راولي، او دا جدا والې به طلاق شمارولې شي. د دینه پس چه عدت ئې تیر شي نو دغه ښځه بیا د یو مسلمان سره نکاح کولې شي.

کِتٰبَ اللّٰهِ عَلَیْکُمْ: یعني د کومو محرماتو ذکر چه اوشو د دې حراموالې د الله تعالی د

طرف نه مقرر شوی دے -: قَالَ الْقُرْطُبِیُّ اَیْ حُرْمَةُ هٰذِهِ النِّسَآءِ کِتَابًا مِّنَ اللّٰهِ عَلَیْکُمْ؛ یعنی د دے ښځو حرامو والے د الله تعالیٰ د طرف نه یتا سو فرض شوے دے۔

وَ اُحِلَّ لَکُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِکُمْ: یعنی کوم محرمات چه تراوسه پورے ذکر شو د دے نه علاوه نورے ښځے ستاسو د پاره حلالے دی، مثلاً د تره لور، د ترور لور، د ماما لور- مامی او تندار د دوی د خاوند د وفات یا طلاق ورکولو نه پس، په دے شرط چه دا ذکر شوی قسمونه په بله څه رشته سره حرام شوے نه وی - او د متبنّیٰ ښځه چه کله ورلره دے طلاق ورکړی یا دے وفات شی- که ښځه مړه شی نو د دے د خور سره هم نکاح کیدے شی- او داسے نور بے شماره صورتونه دی چه دا قول د: مَا وَرَآءَ ذٰلِکُمْ په عموم کښے داخل دی -

**مسئله:-** په یو وخت د څلورو نه زیاتے ښځے په نکاح کښے ساتل جائز نه دی د دے تفصیلی بیان د سورت نسآء په شروع کښے تیر شوے- د دے ایات نه چرته څوک په دے غلطئ کښے پرے نه وځی چه د: مَا وَرَآءَ ذٰلِکُمْ: په عموم کښے بغیر د څه پابندئ نه د ښځو سره نکاح جائز دے - دارنګ ډیرے محرماتے هغه دی چه د هغوی ذکر په احادیثو کښے دے او د هغوی طرفته په دے ایاتو نو کښے اشارے هم دی چه مونږ ئے په تفسیر کښے ورسره ورسره ذکر کړے دے -

اَنْ تَبْتَغُوْا بِاَمْوَالِکُمْ: یعنی د محرماتو دا بیان ستاسو د پاره ځکه او شو چه په خپلو مالونو سره حلالے ښځے تلاش کړئ او بخپل نکاح کښے ئے راولئ -

ابوبکر جصاصؒ په احکام القرآن کښے لیکی چه د دے نه دوه خبرے معلومے شوے یوه دا چه بغیر د مهر نه نکاح نه شی کیدے (تر دے چه که ښځه خاوند د یو بل سره داسے اقرار او کړی چه نکاح به بغیر د مهر نه وی نو هم به مهر لازمیګی چه تفصیل ئے د فقه په کتابونو کښے دے) دویمه دا خبره معلومه شوه چه مهر هغه شے یکار دے چه مال ورته وئیلے شی -

د حنفیانو مذهب دا دے چه د لسو درهمو نه کم مهر نه شی کیدے یو درهم درے نیمے ماشے سپین زر دی -

مُّحْصِنِیْنَ غَیْرَ مُسٰفِحِیْنَ: یعنی د خپلو مالونو په ذریعه حلالے ښځے طلب کړئ او دا (وګنړئ چه د ښځو تلاش د پاکدامنئ حاصلولو د پاره دے چه د نکاح اهم مقصد دے،

نو د نکاح په ذریعه دغه شے حاصل کړئ، په مال خرچ کولو سره د زنا د پاره ښځے مه تلاش کوئ -

د دے نه معلومه شوه چه اګر که زناکار هم مال خرچ کوی لیکن دغه مال خرچ کول هم حرام دی، او د دغے مال په ذریعه چه کومه ښځه حاصله کړے شی د هغے نه فائده اخستل هم حلال نه دی -

په لفظ د: غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ: زنا تولو سره ئے د زنا منع کولو سره سره دے طرف ته ئے هم اشاره اوفرمائیله چه په زنا کښے مقصد صرف شهوت رانی او او به تویول وی ځکه چه په دے سره اولاد طلب کول او د نسل باقی پاتے کیدو اراده نه وی - مسلمانانو له پاک امن او سیدل او د انسان د نسل زیاتولو د پاره خپل قوت په ځائے خرچ کول پکار دی - چه د دے طریقه مِلک د نکاح او مِلک د یَمِیْن دے - (یعنے ښځه او وینځه) -

فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً: یعنی د نکاح نه پس د کومو ښځو نه چه نفع اخلئ نو مهرئے ورکوئ - دا د مهر ورکول په تاسو باندے فرض کړے شوی دی -

په دے ایات کښے د نفع اخستو نه مراد د ښځو سره یوځائے کیدل او کور والے کول دی - که محض نکاح او شی او رُخصتی نه وی شوی، او خاوند ته د نفع اخستو موقع ملاؤ نه شی بلکه د واده کیدو نه وړاندے طلاق ورکړی نو نیم مهر واجبیږی - او که د نفع اخستو موقع ورته ملاؤ شی نو پوره مهر واجب شو - په دے ایات کښے ئے خاصه توجه راګرځولے ده چه کله د یوے ښځے نه نفع واخستے شوه نو د دے مهر ورکول په هر شان سره واجب شو، په دے کښے کوتاهی کول د اسلامی شریعت نه خلاف دی - او انسانی غیرت هم داغواړی چه هر کله د نکاح مقصد حاصل شو نو د ښځے په حق کښے کوتاهی او ټال مټول نه دی کول پکار - البته شریعت ښځے ته دا حق هم ورکوی چه که مهر لاسی وی نو تر هغه پورے کور ته تلو نه انکار هم کولے شی - که مهر لاسی وی نیته دار نه وی نو د مهر د وصولی پورے دا د خاوند سره د ورتلو نه انکار هم کولے شی -

**د متعے حرام والے**

د لفظ د استمتاع ماده - م، ت، ع، ده چه معنیٰ ئے ده فائده حاصلول - د یو سړی نه یا د ده د مال نه فائده حاصلولو ته استمتاع وائی - د عربئ د قاعدے په بنا سره د یو کلمے په ماده کښے د - س، ت

په ذیا تولو سره دَ طلب او حاصلولو معنیٰ پیدا کیږی، نو دَ دے لغوی تحقیق په بنیاد بانډ دَ: فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ: سید اساده معنیٰ هم دغه ده دَ تحول امت په نز د بانډ کومه چه موږ ه بره بیان کړے ده- لیکن یوه فرقه وائی چه دَ دے نه اصطلاحی مُتعه مراد ده- او دَ دے خلقو په نزد دا ایات دَ مُتعے دَ حلال لیدو دَ پاره دلیل دے- حال دا دے مُتعه چه څۀ ته وائی دَ دے صاف رَدُ دَ قرآن کریم دَ دے بره نی ایات په لفظ دَ: مُحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ: سره کیږی- چه تشریح ئے مخکښے راځی-

مُتعه اصطلاحی دَ کوم دَ جواز چه یو فرقه دَعوه کوی دا ده، چه یو سړے یوے ښځے ته او وائی چه دَ دومره ورځو دَ پاره دَ دومره پیسو یا فلانی جنس په عوض کښے زۀ ستا سره مُتعه کوم- دَ اصطلاحی مُتعے دَ دے ایات سره هیڅ تعلق نیشته صرف دَ اشتقاق دَ ماده په کتو سره ئے دغه فرقه دَعوه کوی- چه دَ دے ایات نه دَ مُتعے دَ حلالوالی ثبوت راوځی-

اوّل خبره خو دا ده چه کله دَ دویے معنیٰ دَ کم نه کم احتمال وی ( او زموږ په نزد خو متعین ده) نو دَ ثبوت لار ئے بیا څۀ ده؟-

دویمه خبره دا ده چه قرآن مجید دَ محرماتو دَ ذکر کولو سره او فرمائیل چه دَ دینه علاوه دَ خپلو اصولو په ذریعه حلالے ښځے تلاش کوئے- په دا سے حال کښے چه اوُ به بَیَوُ نکے والا نه وی، یعنی محض شهوت رانی مقصود نه وی، او دَ دے سره سره ئے دَ مُحْصِنِيْنَ قید هم لګولے دے- یعنے دا چه دَ پاکدامنئ خیال لرونکے وی- مُتعه چونکه دَ مخصوص وخت دَ پاره کولے شی نو په دے وجه په دے کښے مقصد نه اولاد وی او نه کور اباد وَل- او نه پاکدامنی حاصلول- او په دے وجه دَ کومے ښځے سره چه مُتعه او کړے شی نو دا مخالف فریق ئے په میراث کښے حصه داره هم نه مَنی- او دَ معلومو ښځو په شمار کښے ئے هم نه راولی- او چونکه مقصد ئے صرف شهوت پوره کول دی- په دے وجه سړے او ښځه دَ نوُو نوُو جوړو په تلاش کښے وی- نو چه دا حال دے بیا خو مُتعه دَ پاکدامنئ ضامنه نه دهٔ بلکه دُشمنه ده -

صاحب دَ هدایه ئے حضرت امام مالک طرف ته نسبت کړے دے چه دَ هغهٔ په

نزد متعه جائزه ده - لیکن دا نسبت بالکل غلط دے - لکه چه د هدایے شارحانو
او نورو مشرانو د دے وضاحت کړے دے چه د هدایے والا نه سهوه شوے ده۔
البته بعض خلق دا دعوه کوی چه حضرت ابن عباس رض تر آخره پورے د متعے د
حلالوالی قائل وُو - حال دا دے چه داسے نه ده - ترمذی په باب د مَاجَآءَ فِیْ نِکَاحِ
الْمُتْعَةِ کښے دوه حدیثونه نقل کړی دی - اوّلنے دا دے :

عَنْ عَلِیِّ بْنِ اَبِیْ طَالِبٍ رض اَنَّ النَّبِیَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ نَهٰی عَنْ مُتْعَةِ النِّسَآءِ وَعَنْ لُحُوْمِ الْحُمُرِ الْاَهْلِیَّةِ زَمَنَ خَیْبَرَ -

" د حضرت علی رض نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د خیبر د غزا په موقعه باندے د ښځو سره د متعے کولو نه او د کورنو خرو د غوښو خوړلو نه منع فرمائیلے ده "

د حضرت علی رضی الله عنه دا حدیث په بخاری او مسلم کښے هم دے -
دویم حدیث کوم چه ترمذی نقل کړے دے هغه دا دے -

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رض قَالَ اِنَّمَا کَانَتِ الْمُتْعَةُ فِیْ اَوَّلِ الْاِسْلَامِ حَتّٰی اِذَا نَزَلَتِ الْاٰیَةُ اِلَّا عَلٰٓی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَکَتْ اَیْمَانُهُمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رض فَکُلُّ فَرْجٍ سِوَاهُمَا فَهُوَ حَرَامٌ -

" د حضرت ابن عباس رض نه روایت دے فرمائی متعه د اسلام په اول زمانه کښے روا وه تر دے چه نازل شو دا آیات کریمه : اِلَّا عَلٰٓی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَکَتْ اَیْمَانُهُمْ ؛ نو هغه منسوخ شوه - د دے نه پس حضرت ابن عباس رض فرمائی چه د شرعی ښځے او شرعی وینځے نه علاوه د هر قسم شرمګاه نه فائده اخستل حرام دی "

البته دومره خبره ضرور ده چه حضرت ابن عباس رض ترڅهٔ وخته پورے مُتعه
حلاله ګڼړله خو بیا د حضرت علی رض په پوهه کولو (لکه چه په صحیح مسلم ص۴۵۲ کښے دی )
او د دے آیات شریف : اِلَّا عَلٰٓی اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَکَتْ اَیْمَانُهُمْ : نه په خبرید و باندے
ئے رجوع او فرمائیله' لکه چه د ترمذی په روایت کښے دی کوم چه دا بره دے -
دا هم عجیبه خبره ده چه کومه فرقه د متعے د حلالوالی قائله ده' سره د دے چه
د حضرت علی رض سره محبت کونکی او د هغهٔ فرمانبردار دی' په دے مسئله کښے د هغهٔ نه هم
مخالف دی " فَسَیَعْلَمُ الَّذِیْنَ ظَلَمُوْٓا اَیَّ مُنْقَلَبٍ یَّنْقَلِبُوْنَ " (یعنی چیر زر به ئے ځان پوهه شی) -

صاحب د روح المعانی د قاضی عیاض نه نقل کوی چه د خیبر د غزا نه وړاندے مُتعه حلال وه بیا د خیبر په غزا کښے حرامه کړے شوه. د دے نه پس د فتح مکے په ورځ حلاله کړے شوه لیکن بیا درے ورځے پس د همیشه د پاره حرامه کړے شوه.

دا دلیل داخبره هم د غور کولو قابل ده چه د الله تعالیٰ فرمان دے: وَالَّذِيْنَ هُمْ لِفُرُوْجِهِمْ حٰفِظُوْنَ اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ فَاِنَّهُمْ غَيْرُ مَلُوْمِيْنَ؛ (یعنے صفه خلق چه دوی د خپلو عورتونو حفاظت کوی مګر د خپلو بیبیانو او خپلو وینځو نه نو په داسے خلقو هیڅ ملامتیا نیشته").

دا داسے واضح ارشاد دے چه په دے کښے د هیڅ قسم تأویل ځائے نیشته. د دے نه د مُتعے حرامولے صاف ښکاره دے. د دے په مقابله کښے د بعضے شاذو قرأتونو سهارا اغستل بالکل غلط دی.

نکه چه وړاندے عرض شوے دے د: اِسْتَمْتَعْتُمْ: نه د مُتعے اصطلاحی مراد اغستو هیڅ قطعی دلیل نیشته. محض یو احتمال دے او دا احتمال د: اِلَّا عَلٰٓى اَزْوَاجِهِمْ اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُهُمْ: قطعی الدّلالت مضمون سره هرګز ټکراؤ نه خوری. او که فرض کړه د واړه دلیلو نه په قوت کښے برابر شی نو بیا خو به د حِلّت او حُرمت ټکراؤ راشی. نو که فرض کړه دا ټکراؤ او منلے شی نو بیا د عقل سلیم تقاضا داده چه حرام لره به په مباح باندے ترجیح ورکړے شی.

د مُتعے د نکاح په شان وَقتی نکاح هم حرام او باطل دے. وقتی نکاح دا دے. چه د یوے مقررے نیټے پورے نکاح اوکړے شی. او په دے دوا ړو کښے فرق دا دے چه په متعه کښے لفظ د متعے وئیلے شی. او وقتی نکاح په لفظ د نکاح سره وی.

: وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ: د آیات د دے جملے مطلب دا دے چه ځپل منځ کښے د مهر مقررکولو نه پس دا مقرر شوے مهر څه داسے آخری فیصله شوے شے نه دے چه په دے کښے اوس کمے زیاتے جائز نه دے، بلکه خاوند په مقرر شوی مهر باندے د خپل طرفه زیاتوالے هم کولے شی. او ښځه که غواړی نو د زړه په خوشحالئ سره کم یا ټول مهر معاف کولے هم شی. د الفاظو د عاموالی نه دا هم معلومه شوه چه که ښځه خپل لاسی مهر نسیا کړی یعنی او وائی چه خیر دے ما لره ئے بیا را کړه وروستو، نو هم جائز دی او ګناه په کښے نیشته.

إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿﴾: د آیات په ختمید و باندې ئې د دې جملې په زیاتولو سره ئې یو دا خبره او خوده چه الله تعالیٰ د هرڅهٔ نه خبر دې نو په دې ذکر شوو حکمونو کښې که یو سړې خلاف ورزي اوکړي نو اګرچه د ئې خبر قاضي، حاکم یا بل چا نه وي لیکن الله جل شانه د هرڅهٔ نه خبر دې د دهٔ نه په هر حالت کښې یریدل په کار دي۔

او دا ئې هم اوخوده چه کوم احکام بیان شو د دې ټولو بنا په څهٔ حکمت باندې دهٔ۔ حکمت هغې باریکې خبرې ته وائي چه هر سړے پرې نه پوهیږي۔ د حلالولې او حراموالي کوم احکام چه پدے آیاتونو کښې ذکر دي د دې وجه که د چا په خیال کښې راځي او که نهٔ۔ خو په هر حال د دې منل لازمي دي۔ ځکه چه که موږ ته ئې وجه معلومه نه وي نو د حُکم خاوند الله جل شانهٔ ته خو معلومه وه، چه علیم او حکیم دے۔

د دې دور ځینو جاهلان تعلیمیا فته د الله تعالیٰ د حکمونو د وجې تلاش کوي نو که څه وجه ئې ورته معلومه نه شي نو معاذ الله د خدائے پاک هغه حکم نامناسب یا د دورِ حاضر د تقاضو خلاف اوګنړي او باتې ئې کړي۔ په دې الفاظو سره ئې د داسې خلقو خولې بندے کړے دي۔ او دا ئې ورته خودلي دي چه تاسو نا پوهه یئ الله جل شانه پوهه دے تاسو پرې نه پوهیږئ الله حکیم دے، خپلے پوهے لره د حقوالي معیار مه جوړه وئ۔ الله علیم دے او علم ئې پوره او د حکمت نه ډک دے۔

وَمَن لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنكُمْ طَوْلًا أَن يَنكِحَ الْمُحْصَنَاتِ

او څوک چه نه لري پتاسو کښې طاقت د دے چه نکاح اوکړي د بیبیانو

الْمُؤْمِنَاتِ فَمِن مَّا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُم مِّن فَتَيَاتِكُمُ الْمُؤْمِنَاتِ ۚ

مسلمانانو سره نو نکاح دِ اوکړي د هغو سره چه ستاسو د لاس مال دي چه ستاسو وینځے دي مسلمانانې

وَاللّٰهُ أَعْلَمُ بِإِيمَانِكُم ۚ بَعْضُكُم مِّن بَعْضٍ ۚ فَانكِحُوهُنَّ

او الله ته بنهٔ معلومه ده ستاسو مسلماني۔ تاسو پخپل مینځ کښې یو یئ۔ پس د دوي سره نکاح کوئ

بِإِذْنِ أَهْلِهِنَّ وَآتُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ مُحْصَنَاتٍ

د دوی د مالکانو په اجازت سره او ورکوئ دوی ته مهر د دوی موافق د دستور چه په قید کښے راوستونکے

غَيْرَ مُسَافِحَاتٍ وَلَا مُتَّخِذَاتِ أَخْدَانٍ ۚ فَإِذَا أُحْصِنَّ فَإِنْ

وی نه مستی ویستونکے او نه پټه یارانه کونکے - بیا چه کله دوی په قید کښے راغلے نو که اوځے

أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ

کړو د بے حیائی کار نو په دوی نیمه سزا ده د بیبیانو د

مِنَ الْعَذَابِ ۚ ذَٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ۚ وَأَنْ

سزا نه - دا په دے وجه دی چه څوک پتا سو کښے یریږی د تکلیف راپیښیدو نه - او که صبر

تَصْبِرُوا خَيْرٌ لَكُمْ ۗ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٢٥﴾ ع ۴

او کړئ نو غوره دی ستاسو په حق کښے - او الله بخښونکے مهربان دے

**د آیاتو نوتړون** د بره نه چونکه د نکاح احکام راروان دی په دے وجه د دے په مناسبت سره د شرعی وینځو سره د نکاح کولو ذکر شروع شو - او بیا یے د دوی متعلق د حد حکم هم بیان کړو - چه د وینځے او غلام حد د آزاد نیځے او سړی نه مختلف وی -

## لنډ تفسیر

او کوم سړے چه پتا سو کښے پوره قدرت او ګنجایش نه لری د آزادو مسلمانو ښځو سره د نکاح کولو نو هغه دے بچیل منځ (والو) کښے د مسلمانو وینځو سره کوم چه ستاسو خلقو (شرعًا) مملوکے دی نکاح دے کوی (ځکه چه اکثر د وینځو مهر وغیره کم وی او د غریبانو سره په نکاح کولو کښے شرم هم نه کوی) او د د وینځو سره په نکاح کولو کښے شرم ځے نه کوی، ځکه چه د دین په وجه سره کیدے شی چه دوی ستاسو نه هم غوره وی، ځکه چه

دَ غوره والي مدار په دين ايمان دے (او ستاسو دَ ايمان پوره حالت الله تعالىٰ ته معلوم دے
(چه کوم يو په کښې اعلیٰ دے او کوم اَدنیٰ، ځکه چه دَ دے تعلق دَ زړهٔ سره دے او دَ زړهٔ
پوره علم الله تعالىٰ ته دے، او په دنيا کښې خو دَ عار (شرم) زياته وجه تفاوت دَ نسب
دے او په دے کښې خو دَ ټولو انسانانو پيدائښت دَ حضرت آدم او حوا عليهما السلام نه دے
او په دے اعتبار سره) تاسو ټول په خپل مينځ کښې دَ يو بل سره برابر يئې (نو بيا دَ عار وجه
څهٔ ده؟) پس (هر کله چه دَ عار نګولو وجه معلومه شوه نو دَ ذکر شوی ضرورت په
وخت کښې) دَ دوی سره نکاح کوئ (ليکن شرط دا هم دے چه) دَ دوی دَ مالکانو په
اجازت سره (وی) او دَ دوی (مالکانو) ته دَ دوی مهر دَ قاعدے (شرعی) موافق ورکوئ
او دا مهر ورکول ئې په دے طور سره (وی) چه دغه دَ نکاح ښځه جوړه کړے شي، نۀ چه
ښکاره بدکاری کونکي وی او نه په پټه يارانه کونکي وی (يعنے چه دغه مهر دَ نکاح په
مقابله کښې وی، دَ زنا دَ اُجرت ورکولو په طور سره نه حلاليږی) بيا چه کله دغه وينځے
په نکاح کښې راوستلے شي نو بيا که دوی دَ لوئے بے حيائي کار (يعنی زنا) او کړی نو (پس
دَ ثبوت نه په دے شرط چه مسلمانه وی) په دے باندے دَ هغے سزا نيمه بر (جاری)
وی کومه چه (دَ غير نکاح شوے) آزادو ښځو باندے وی (ځکه څنګه چه دَ نکاح نه
وړاندے هم دَ وينځو دا سزا وه، او دغه شان دَ غلامانو هم) دا (دَ وينځو سره
نکاح کول) دَ هغه سړی دَ پاره (مناسب) دی چه پټا سو کښې (دَ غلبے دَ شهوت. او دَ
آزادے ښځے دَ حاصلولو دَ قدرت نۀ لرلو په وجه) دَ زنا (کښې دَ مبتلا کيدو) يره
لری (او دَ چا چه دا يره نه وی دَ هغهٔ دَ پاره مناسب نه دی) او (که دَ دے يرے
په حالت کښې هم غوک په خپل نفس قادر وی نو) ستاسو خپل نفس قابو کول زيات
غوره دی (په نسبت سره نکاح دَ وينځے ته) او (رحسے خو) الله تعالىٰ ډير بخښنے والا دے
(چه که دَ کراهت په صورت کښې هم نکاح او کړی نو مواخذه به پرے نه کوی او) لوئے
رحمت والا دے (چه دَ داسے حکم ئے او نه کړو) -

# معلومات او مسئلے

طَوْلًا: قدرت او غنی والی ته وئيلے شي - دَ آيات مطلب دا دے چه دَ چا دَ آزادو
ښځو سره دَ نکاح کولو قدرت نه وی، يا ور سره دومره سامان نه وی - نو دَ

مؤمنو وینځو سره نکاح کولے شی۔ دَ دینه معلومه شوه چه ترڅو پورے ممکنه وی دَ اٰزادے ښځے سره نکاح کول پکار دی، دَ وینځے سره دے نکاح نه کوی۔ او که څوک دَ وینځے سره نکاح کوی نو بیا دے مؤمنه کوری۔

دَ حضرت امام ابوحنیفهؒ دا مذهب دے چه دَ اٰزادے ښځے سره ئے دَ نکاح قدرت وی نو دَ وینځے سره نکاح کول یا دَ کتابیے وینځے سره نکاح کول مکروه دی۔

او دَ حضرت امام شافعیؒ او نورو امامانو په نزد چه دَ اٰزادے ښځے سره دَ نکاح قدرت لری نو دَ وینځے سره نکاح کول حرام دی۔ او دَ کتابیے وینځے سره نکاح کول خو مطلق جائز نه دی۔

په هرحال اٰزاد سړی لره دَ وینځے دَ نکاح نه ځان ساتل غوره دی په هرحال کښے چه وی۔ او که مجبوری شی نو بیا دے دَ مؤمنے وینځے سره کوی۔ وجه ئے داده۔ چه دَ وینځے کوم اولاد پیدا شی هغه خو دَ هغے سړی غلام به وی دَ کوم چه دا وینځه ده۔ او دَ غیرمؤمنے وینځے نه چه کوم اولاد پیدا شی نو دَ دے خبرے یَره ده چه هغه به دَ مور په رنګ کښے بے دینی اختیار کړی۔ نو څېل اولاد لره دَ غلامئ نه دَ بچ کولو او دَ مؤمن جوړه دَ لو دَ پاره دا ضروری ده چه دَ بچو مور دے اٰزاده وی او که وینځه وی نو کم نه کم چه مؤمنه خو خامخا وی۔ دَ دے دَ پاره چه دَ بچی ایمان محفوظ پاتے شی۔ په دے وجه علمائے کرامو فرمائیلی دی چه کتابی ښځه چه آزاده وی نو دَ دے سره اګرچه نکاح کول جائز دی، لیکن ځان ساتل ترے غوره دی۔ او په دے دور کښے خو ترے دَ ځان ساتلو اهمیت ډیر زیات دے، ځکه چه دَ یهودو او نصاراؤ ښځے دَ مسلمانانو سره په دے وجه نکاح کوی چه دا څپل خاوند او دَ ده اولاد څپل دین ته راواړه وی۔

بیا ئے اوفرمائیل: وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِیْمَانِكُمْ بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ: "یعنے الله تعالیٰ ته ستاسو دَ ایمان ښه علم دے"، ایمان وجه دَ فضیلت ده، بعضے وخت کښے غلام او وینځه په ایمانی مرتبه کښے دَ اٰزاد سړی او ښځے نه زیات وی۔ نو په دے وجه دَ مؤمنے وینځے سره دَ نکاح کولو نه نفرت مه کوئ بلکه دَ دے دَ ایمان قدر کوئ۔

په اٰخر کښے ئے اوفرمائیل: بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ: یعنی اٰزاد او غلام ټول دَ یو جنس بنی اٰدم سره تعلق لری او ټول دَ یو نفس نه پیدا شوی دی، دَ فضیلت مدار

ایمان او تقوی ده۔

قَالَ فِی الْمَظْهَرِیِّ فَهَاتَانِ الْجُمْلَتَانِ لِتَأْنِیْسِ النَّاسِ بِنِکَاحِ الْاِمَآءِ وَمَنْعِهِمْ عَنِ الْاِسْتِنْکَافِ مِنْهُنَّ۔

"مظهری دا ئې چه دا دواړه جملو مطلب دا دے چه خلق د وینځو د نکاح سره مانوس وی او نفرت ترے نه کوی"۔

فَانْکِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ: یعنې د وینځو سره نکاح د دوئ د مالکانو په اجازت سره کوئ، که هغوی اجازت نه کوی نو نکاح ورسره نه صحیح کیږی ځکه چه د وینځے خپل نفس پخپله تصرف کښے نه وی۔ دا حکم د غلام هم دے چه د خپل مالک د اجازت نه بغیر نکاح نشی کولے۔

بیا فرمائی چه د وینځو سره نکاح او کړئ نو مهر ئے په ښه شان سره ادا کوئ یعنې تال متول په کښے مه کوئ او پوره ئے ورکوئ۔ هسے نه چه وینځه ئے گڼړئ او تکلیف ورله ورکوئ۔

په دے سلسله کښے د امام مالک مذهب دا دے چه مهر د وینځے حق دے، او نور امامان فرمائی چه کوم مال وینځے ته په مهر کښے ملاؤشی دا مال د دے د مالک دے۔

مُحْصَنٰتٍ غَیْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ: یعنې د مؤمنانو وینځو سره نکاح کوئ په دے حالت کښے چه دوی پاک لمنے وی او مسٰفحات نه وی (یعنې په ښکاره زنا کونکے نه وی) او نه په پټه طریقه سره اشناسا تونکے وی۔ گویا دلته کښے ئے د وینځو په باره کښے فرمائیلی دی چه د نکاح د پاره پاک لمنے وینځے تلاش کوئ۔ لیکن ازاده ښځه چه زنا کاره وی د دے سره د نکاح کولو نه ځان ساتل هم غوره او بهتر دی۔

لکه چه د ایات نه معلومه شوه چه د ازادے ښځے سره د نکاح قدرت نه وی نو د وینځے سره نکاح کوئ۔ د دے نه دا هم ثابته شوه چه مُتعه جائز نه ده ځکه چه که مُتعه جائز وے نو د آزادے ښځے سره د نکاح د قدرت نه لرلو په صورت کښے د یو سړی د پاره د تولو نه اسان صورت د مُتعه وه۔ چه په دے کښے جنسی خواهش هم پوره کیدے شی او مالی بوج هم د نکاح په مقابله کښے ډیر کم دے۔

دا رنګه په ایات کښے ئے په مُحْصَنٰتٍ غَیْرَ مُسٰفِحٰتٍ سره د وینځو صفت بیان کړو او د متعے په صورت کښے خو مقصد هم دغه او بس تو یسول وی او بس۔ چه یوه ښځه په لنډه موده کښے د ډیرو سړو په استعمال کښے راځی۔ او د چا نسبت هیچا ته نشی کیدے۔

په دے وجه د تناسل هم څه فائده نه حاصلیږی - او د ټولو قوت صرف په شهوت رانۍ کښے ضائع کیږی -

بیا ئے او فرمائیل: فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ: یعنے هر کله چه وینځے په نکاح کښے راشی او د پاکدامنئ انتظام ئے اوشی نو اوس که زنا اوکړی نو دوی ته به د هغے سزا نیمه ملاویږی کومه چه د آزادو ښځو د پاره مقرره ده - د دے نه مراد نا واده شوے آزادے ښځے دی - نا واده شوی آزاد سړے او ښځه چه زنا اوکړی نو د دوی سزا سل کوړے ده چه ذکر ئے د سورت نور په دویم ایات کښے دے - او چه واده شوی سړے او ښځه زنا اوکړی نو سزا ئے رجم دے - یعنی تر هغے به ئے په کاڼو ولی چه مړه شی - چونکه دا سزا نیمیدے نشی په دے وجه د خلو روا ماما نو مذهب دا دے چه غلام او وینځه که واده شوی وی او که نه وی خو چه زنا اوکړی نو سزا ئے پنځوس کوړے ده - د وینځو حکم په ایات شریف کښے ذکر دے او بطور د دلالة النص ترے د غلام مسئله هم معلومه شوه -

ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ: یعنے د وینځو سره د نکاح اجازت د هغے سړی د پاره دے چه په زنا کښے د واقع کیدو ویره ئے وی -

وَاَنْ تَصْبِرُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ: یعنے سره د ویرے د زنا نه هم که صبر اوکړئ او خپل نفسونه پاکدامن ساتلے شئ نو دا ستاسو د پاره د دے خبرے نه غوره ده چه د وینځو سره نکاح کوئے -

د ایات په ختمید و ئے او فرمائیل: وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ: یعنی د وینځو سره نکاح کول مکروه دی نو که یو چا کراهت عمل اوکړئ نو بیا به هم الله تعالیٰ معافی اوکړی - او رحم والا هم دے ځکه چه ده د وینځو سره د نکاح اجازت اوکړو او منع ئے او نه کړه -

**فائده:** د برنی ایات په تفسیر کښے چه کوم د وینځو غلامانو ذکر راغلے دے د دے نه مراد شرعی وینځه او غلام دی - کوم چه د جهاد په موقع بندی کافر سړے او ښځه په قید کښے بوتلل - او د مؤمنانو امیر به جهادکونکو له په تقسیم کښے ورکول دا قیدیان به غلامان وینځے جوړیدل او بیا به د دوی نسل هم غلام وو (خو بعضے صورتونه تر دے مستثنیٰ هم وو چه تفصیل ئے د فقه په کتابونو کښے دے) د کله نه چه مسلمانانو په

په شرعي طور سره جهاد کول پاتې کړي دي- او د خپل جهاد او صلح او جنګ دار مدار
ئې د دين د دشمنانو په اشاره باندې ایښو دی دی، د غير شرعي اصولو پا بند شوي
دي د هغې وخت نه د غلامانو او وینځو نه هم محروم شول - د اموجوده نوکر چاکر
او په کور د نوکينې خدمت کونکي نوکرانې وینځې غلامان نه دي- دوی آزاد دي -
په بعضو علاقو کښې بچي خرڅولې شي او غلامان ترې جوړه وي دا سرا سر حرام
دي - او په دا سې کولو سره دوی غلامان نه شي جوړې دې - بلکه شرعي غلام
او وینځه دغه دي کوم چه ئې بره تفصيل اوشه -

---

يُرِيدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَكُمْ وَيَهْدِيَكُمْ سُنَنَ الَّذِيْنَ

غواړي الله چه بيان کړي تاسو ته او چلوي تاسو د پخوا نو

مِنْ قَبْلِكُمْ وَيَتُوبَ عَلَيْكُمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦﴾ وَ

په لارې او معاف کړي تاسو لره، او الله پوهه دې حکمت والا- او

اللّٰهُ يُرِيدُ أَنْ يَتُوبَ عَلَيْكُمْ قف وَيُرِيدُ الَّذِيْنَ

غواړي الله چه تاسو ته متوجه شي- او غواړي هغه خلق

يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ أَنْ تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا ﴿٢٧﴾

چه لګيدلي دي پخپلو مزو پسې چه تاسو کاږه شئ د لارې نه ډير لرې

يُرِيدُ اللّٰهُ أَنْ يُخَفِّفَ عَنْكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا ﴿٢٨﴾

او غواړي الله چه ستاسو نه بوج کم کړي - او انسان جوړ په دې کمزورې -

| | |
|---|---|
| د ايا تو نو تړون | په تيرو ايا تو نو کښې د احکامو د تفصيل ذکر وه په دې<br>ايا تو نو کښې الله جل شانه خپل انعام او احسان ښائي- |

او دا چه د دے احکامو په رواکید وکښے ستاسو نفع او مصلحتونه دی، اګر که تاسو ئے په تفصیل پوهه نشئ - او بیا د دے سره سره په دے احکامو د عمل کولو ترغیب دے او د ګمراهانو د پلیتو ارادو نه پکښے خبردارے هم دے، چه دا خلق ستاسو بده غواړی دوی تاسو کږلارے ته بے لارے کوی -

# لنډ تفسیر

الله تعالیٰ ته د په دے ذکرشوو مضامینو فرمائیلو او دغه شان په نورو مضامینو سره خپله څۀ نفع مقصود نه ده ځکه چه دا عقلی محال ده بلکه تاسو ته د نفع رسولو د پاره) دا منظوره ده چه (د احکامو په ابتدا کښے) تاسو ته (ستاسو د مصلحت احکام) بیان کړی او د (قصو په ابتدا کښے) تاسو ته د وړاندینو خلقو حالات او خاکې (چه ستاسو تابعدارئ طرف ته مینه پیدا شی او د مخالفت نه او یریږئ) او د (لنډ شریک مقصد د دے ټولو نه دا دے چه) په تاسو باندِ (په رحمت سره) توجه او فرمائی (او هغه توجه هم دا بیا نول او خودل دی چه په د ے کښے سراسر د بندګانو نفع ده لکه چه ذکر شوه) او الله تعالیٰ لوئے علم والا دے (چه د بندګانو مصلحت ورته معلوم دے) لوئے حکمت والا دے (چه د دے مصلحتونو د وجوب نه بغیر رعایت فرمائی) او الله تعالیٰ لره خو د د حکمونو او قصو په بیانولو کښے لکه چه اوس ئے ذکر او شو) ستاسو په حال باندے (په رحمت سره) توجه فرمائیل منظور دی او کوم خلق (د کافرانو او فاجرانو نه) چه شهوت پرست دی هغوی خو دا غواړی چه تاسو (د نیغ لارے نه) په ډیر ولویو کږیدو وکښے پریوځئ (او کړدوی پښان شئ نو دوی خپل پلیت خیالات د مسلمانانو په غوږونو کښے اچوی، او د الله تعالیٰ چه څومره په احکامو کښے ستاسو په مصلحت باندے نظر دے دغه شان ئے ستاسو په آسانئ باندے هم نظر دے لکه ارشاد دے چه) الله تعالیٰ ته (په احکامو کښے) پرتاسو باندے سپکوالے (یعنی اسانی را وستل هم) منظوردی او (وجه د دے دا ده چه) بنی آدم (په نسبت د نورو مکلفینو په بدن او همت د واړو سره) کمزورے پیدا شوے دے (په دے وجه د ده د کمزورئ مناسب احکام ئے مقرر کړیدی ورنه په سختو احکامو مقررولو کښے هم څه مضائقه نه وه - مګر مونږ

د دوائو وخبرو په جمع سره لحاظ اوفرمایه او دا په لوئے علم او حکمت او دا رنګې په رحمت او شفقت بانده موقوفه ده) -

# معلومات او مسئلے

د نکاح د ډیرو احکامو بیانولو نه پس تے په دے آیاتونو کښے دا اوخوده چه الله پاک په واضح طورسره څۀ په دا که تاسو ته احکام بیانوی، او د پیغمبرانو او د نیکانو خلقو کوم چه وړاندے تیرشویدی د هغوی د لارے خود نه درته ښکاره کوی تاسو دا مۀ ګنړئ چه دا حرام حلال صرف زمونږ د پاره دی، بلکه ستاسو نه مخکښے چه کوم اُمتونه تیرشویدی هغوی ته هم دغه شان احکام خودلی شوی وُو- نو چه هغوی پرے عمل اوکړو نو د الله پاک د دربار مقربین جوړ شو -

کوم خلق چه د شهوتونو تابع دی یعنے زناکار دی او هغه قومونه او د باطلو مذهبونو خاوندان چه د هغوی په نزد حلال او حرام هیڅ شے نه دے دوی تاسو لره هم د حقے لارے نه اړه وی او د خپلو باطلو ارادو طرفته ستاسو مخ کوی - تاسو د دوی نه هوښیار اوسئ - په بعضے مذهبونو کښے د خپلو محرمونو سره هم نکاح کول جائز دی - او بعضے بے دینه خو په دے دور کښے د نکاح په ختمولو پسے وَرپسے دی - او په بعضے ملکونو کښے خو د ښځے د مشترک سامان په شان د مقررکولو خبرے کیږی - دا خبرے هغه خلق کوی چه سراسر د نفس غلامان او د خواهش بندګان دی - د اسلام کلمه ویونکی بعضے کمزوری ایمان والا خلق چه د دے بے دینو سره تاسته پاسته کوی د دوی په خبرو کښے راځی او پخپل دین بانده د فرسوده (زوړ شوی) خیال کوی - او د دشمنانو خبرے د انسانیت ترقی ګنړی - او د نا پوهئ نه پدے خیام خیالئ کښے اخته شی چه څنګه دا خلق د دے نوے (زمانے) زمانے خبرے کوی چه زمونږ دین هم د دے اجازت ورکولے څنګه په سبۀ وے (العیاذ بالله) الله پاک خبردارے اوفرمایه چه تاسو خلق د داسے پلیتو خلقو د نظر یو خپلو لوئے لرے اوسئ -

بیا ئے اوفرمائیل: يُرِيدُ اللهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ ؛ الله تعالیٰ پتا سو د سپکو او اسانو احکامو اراده فرمائی - ستاسو د سختو لرے کولو د پاره ئے د نکاح په باره کښے دا سے

نرم احکام ورکړه چه هر څوک پرې عمل کولے شي - او که د آزادو ښځو سره د نکاح طاقت نه وي نو د وینځو سره ئې د نکاح اجازت اوکړو - د مهر په باره کښې ئې دواړو جانبو له اختیار ورکړو چه په خپله رضا دې مقرر کړي - او د ضرورت په وخت کښې ئې د یوې نه د زیاتو ښځو سره هم د نکاح اجازت ورکړو په دې شرط سره چه عدل به نه پاتے کوي -

بیا ئې اوفرمائیل: وَخُلِقَ الْإِنْسَانُ ضَعِيفًا: یعنې انسان په پیدائیشي طور سره ضعیف دے، او په ده کښې د شهوت ماده ایخودے شوې ده - که بالکل ئې ورته د ښځو نه د لرې اوسیدو حکم ورکړے وے، نو دے به د فرمانبردارئ او حکم منلو نه عاجز شوے وه - د ده د دے عجز او کمزورئ په بنا ئې ورته د ښځو سره د نکاح کولو یوازې دا نه چه اجازت ئې ورکړو بلکه ترغیب ئې ورکړو - او د نکاح نه پس چه کوم دوي په مابین کښې کومه د نفس او نظر د پاکوالی نفع او نورې فائدې حاصلیږي د دې دواړو جانبو ته تقویت رسي -

پس نکاح د ضعف لرې کولو د پاره د یو بل سره معاهده او یو بے مثاله طریقه ده -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا أَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ

اے ایماندارو! مه خورئ مال د یو بل په خپل مینځ کښې په ناحقه سره

إِلَّا أَنْ تَكُونَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِنْكُمْ ۚ وَلَا

مګر دا چه تجارت وي د یو بل په خوشئ سره او مه

تَقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿۲۹﴾ وَمَنْ

قتلوئ یو بل - بے شکه الله په تاسو مهربان دے - او څوک

يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا ۚ

چه دا کار اوکړي په زیاتي او ظلم سره نو مونږ به اوغورځوو دَوه له اور ته -

وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۳۰﴾

او دا کار دے په الله باندے آسان

**دَ آیاتونو تړون** دَ سورتِ نسآء په شروع کښے ئے او فرمائیل چه تاسو ټول دَ یو مور او پلار نه پیدا شوی یئ او ټول د رور ولئ په یو مزی کښے تړلی شوی یئ، په دے فرمائیلو سره ئے دَ ټولو انسانانو دَ حقونو حفاظت ادا کولو طرف ته اجمالی اشاره او فرمائیله - بیا ئے دَ یتیمانو او ښځو تفصیلی بیان او کړه - بیا دَ میراث احکام بیان شو چه دَ یتیمانو او ښځو نه علاوه په کښے دَ نورو رشته دارانو دَ حقونو دَ ادا کولو هم تاکید راغے - او دَ دینه پس دَ نکاح احکام راغلل چه دَ کومے ښځے سره نکاح حلال دے او دَ کومے سره حرام دے، ځکه چه نکاح یو داسے معامله او معاهده ده چه په دے سره دَ ښځے په جان او مال باندے جائز دَ تصرف کولو حق ملاویږی -

په ذکر شوو آیاتونو کښے دَ عامو انسانانو دَ جان او مال دَ حفاظت او په دے کښے دَ هر یو ناجائز تصرف کولو دَ ممانعت بیان دے، خواه دغه انسان سړے وی او که ښځه، خپل رشته دار وی او که پردے - تر دے چه مسلمان وی او که غیر مسلمان چه دَ جنګ نه کولو څهٔ معاهده ورسره شوے وی (مظهری)

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو! پخپل مینځ کښے دَ یو بل مال په ناحقه (یعنے په غیر جائز) طور سره مه خورئ (مه استعمالوئ) لیکن (چه په جائز طور سره وی مثلاً) چه تجارت وی دَ یو بل په رضامندئ سره وی (په دے شرط چه په دے کښے نور شرعی شرطونه هم وی) نو پاک نیشته (دا هم مالی تصرف وه، او س وړاندے نفسی تصرف فرمائی) او تاسو یو بل قتلوئ هم مه بے شکه الله تعالیٰ پیتاسو ډیر مهربان دے (په دے وجه ئے دَ ضرر رسولو صورتونه منع کړهٔ، خاص طور سره هر کله چه په دے کښے دا اثر وی چه بل سړے به بیا هم تاسو ته ضرر رسوی نو دا هم دَ الله تعالیٰ مهربانی ده چه تاسو ئے هم دَ ضرر نه بچ کړئ) او (چونکه قتل په دے دواړو کارونو کښے سخت دے

په دے وجه په دے بانړے په خاص طور سره دَ سزا وعده اَوْرَه وی چه) کوم سړے داسے کار (یعنی قتل) اوکړی په دے طور سره دَ (شرعی) حد نه تجاوز اوکړی او (دغه تجاوز کول هم په خطاء کار یا خطاء فکر سره نه وی بلکه) په دے طور چه (قصدًا) ظلم اوکړی نو مونږ به هغه زر (یعنی بس دَ مرګ نه) دَ لوے (دَ دوزخ) په اور کښے داخل کړو او دا کار (یعنی داسے سزا ورکول) خدائے تعالیٰ ته (بالکل) اسان دے (دَ دے دَ پاره دَ هیڅ قسم دَ څۀ اهتمام کولو حاجت نیشتے چه کوم نادے دا هم کیدے شی چه څنګے وخت دَ دے پوره سامان جمع نه وی نو سزا به اونه شی)

# مَعْلُوْمَاتُ اَوْ مَسْئَلے

لکه څنګه چه په باطله طریقه دَ بل مال خوړل جائز نه دی، خپل مال هم په باطله طریقه خرچ کول جائز نه دی

دَ ایات په الفاظو کښے دَ: اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ: لفظ راغلے دے - چه معنیٰ ئے داده "خپل مال پخپل مینځ کښے" په دے کښے داخبره خو په اتفاق دَ مفسرینو داخل ده ، چه هیڅوک دے دَ بل مال په ناجائزه طریقه سره نۀ خوری - ابو حیان په تفسیر بحر محیط کښے فرمائی چه په دے کښے دا هم داخله ده چه څوک دے خپل مال هم په ناجائزه طریقه سره نخوری ، مثلًا چه په داسے کارونو کښے ئے خرچ کوی چه شرعًا ګناه یا بے ځایه اسراف وی نو دا هم دَ دے ایات په رُو سره منع دی او ناجائز دی -

په ایات کښے دَ: لَا تَاْكُلُوْا : لفظ راغلے دے چه معنیٰ ئے ده "مۀ خورئ" لیکن دعامے محاورے په اعتبار سره دَ دے معنیٰ داده چه دَ نورو په مال کښے په ناحق طور سره هیڅ قسم تصرف مۀ کوئے خواه دَ خوړلو سکلو وی او که دَ استعمال په عام عرف کښے دَ چا په مال کښے تصرف کولو ته خوړل وائی، اګر چه هغه شے دَ خوراک نه وی - لفظ دَ : باطل: چه ترجمه ئے په : ناحق: سره شوے ده - دَ عبدالله ابن مسعودؓ او دَ جمهورو صحابوؓ په نزد ټول هغه صورتونه راګیوه وی چه چه شرعًا منع او ناجائز وی - چه په دے کښے غلا، ډاکه، غصب، خیانت، رشوت او سود، جواری ټول فاسد معاملے داخلے دی (بحر محیط)

په باطله طریقه دَ مال خوړلو تشریح او تفصیل

قرآن کریم یو لفظ دَ : بِالْبَاطِلِ : اوفرمایه

په تولو ناجائزو طريقو سره حاصل شوے مال ئے حرام کړو - بيا ئے د دے ناجائزو طريقو تفصيل د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په حواله سره او فرمايه - حضور د هرے ناجائزے طريقے تفصيل بيان کړے دے -

د دينه دا هم معلومه شوه چه کوم تفصيلات د ناجائزو اغستلو خرڅولو يا ناجائزو اجارو وغيره د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په احاديثو کښے ذکر دی هغه په حقيقت کښے د دے قرآنی حکم تشريح ده - په دے وجه هغه ټول حکمونه په يو حيثيت سره د قرآن احکام دی - د نبي کريم صلّے الله عليه وسلم په احاديثو کښے چه څومره شرعي احکام ذکر شوی دی - د ټولو په عام طور سره دغه حال دے چه دوی د څه نه څه قرآنی اشارے تصريح دی - خواه که مونږ ته معلوم وی او که نه چه دا د فلانی آيات تشريح ده -

د آيات په اوله جمله کښے ئے په ناحقو او ناجائزو طريقو سره د چا په مال کښے تصرف کول حرام کړيدی - په دويمه جمله کښے ئے جائز طريقے د دينه ويستلی دی ارشاد فرمائی: اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ: يعني د نورو هغه مال حرام نه دے کوم چه په تجارت د يو بل په رضامندئ سره حاصل شوے وی -

جائز طريقے اګرچه د تجارت نه علاوه نورے هم دی، مثلاً هبه بخل، صدقه خيرات، ميراث - ليکن په عام طور سره د يو کس مال د بل په لاس کښے د ورتلو معلوم او جاری صورت تجارت دے -

بيا د تجارت معنی په عام طور سره اغستلو خرڅولو ته ځی - ليکن په تفسير مظهری کښے اجاره يعني د نوکرئ مزدورئ او کرائے معاملے هم په تجارت کښے دا خلے کړی دی - ځکه چه په بيعه کښے خو د مال په بدله کښے مال حاصلولے شی او په اجاره کښے د محنت او خدمت په بدله کښے مال حاصلولے شی لفظ د تجارت کښے دا دواړه داخل دی -

د آيات د مضمون نچوړ دا شو چه د چا مال په ناحقه خوړل حرام دی ليکن که په رضامندئ سره يعني د اغستلو خرڅولو يا نوکرئ او مزدورئ معامله اوشی نو په دے شان سره د بل مال حاصلول او په دے کښے مالکانه تصرفات کول جائز دی -

| | |
|---|---|
| د کسب معاش په ذریعو کښې تجارت او محنت د ټولو نه غوره دی | د بل د مال حاصلولو په جائز صورتونو کښې په دے آیات کښې صرف د تجارت په ذکر کولو کښې یوه وجه دا هم ده |

چه د کسب معاش په ذریعو کښې تجارت او محنت د ټولو نه غوره او پاکه ذریعه ده د معاش۔

حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه تپوس او شو چه کومه گټه حلاله او پاکه ده؟ دوی او فرمائیل:

| | |
|---|---|
| عَمَلُ الرَّجُلِ بِيَدِهٖ وَ كُلُّ بَيْعٍ مَبْرُوْرٍ (رواه احمد والحاكم) (مظهری و ترغیب و ترهیب) | "یعنی د انسان د خپل لاس مزدوری او هره رشتونے بیعه او شراء (چه دروغ او دوکه پکښے نه وی)" |

حضرت ابوسعید خدری رض فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

| | |
|---|---|
| اَلتَّاجِرُ الصَّدُوْقُ الْاَمِيْنُ مَعَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَ الشُّهَدَآءِ (ترمذی) | "رشتونے تاجر چه امانتدار وی دے به د انبیاؤ او صدیقینو او شهداؤ سره وی د آ په قیامت کښے)۔ |

او حضرت انس رض فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:-

| | |
|---|---|
| اَلتَّاجِرُ الصَّدُوْقُ تَحْتَ ظِلِّ الْعَرْشِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ (رواه الاصبهانی) (ترغیب) | "رشتونے تاجر به د قیامت په ورځ د عرش د سوری لاندے وی"۔ |

| | |
|---|---|
| د پاکیزه گټے خاص شرطونه | او د حضرت معاذ بن جبل رض نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی: |

"د ټولو نه زیاته پاکه گټه د سوداگرو گټه ده په دے شرط چه دوی کله خبرے کوی نو دروغ نه وائی، او چه وعده او کړی نو وعده خلافی نه کوی او کله چه د دوی سره څه امانت کیخو دے شی نو خیانت پکښے نکوی او کله چه د چا نه څه سامان اخلی (نو د سوداگرو د عادت مطابق) دغه سامان ته خراب او ناکاره نه وائی، او کله چه خپل سامان خرڅوی نو د (واقع نه خلاف) د هغے صفت نه کوی او چه د دوی په ذمه د چا قرض وی نو حصاره وی کے نه، او چه د دوی په چا قرض وی نو هغه تنگوی نه"۔ (اخرجه الاصبهانی از حاشیه مظهری)

په دے وجه په یو حدیث کښے ارشاد دے :

اِنَّ التُّجَّارَ یُبْعَثُوْنَ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فُجَّارًا اِلَّامَنِ اتَّقَیَ اللّٰهَ وَ بَرَّ وَصَدَقَ (اخرجه الحاکم عن رفاعة بن رافع)

"د قیامت په ورځ به سوداګر خلق د فاجرانو ګناه ګارانو په صف کښه وی بغیر د هغه سړی نه چه د الله نه یریګی او نیکه معامله کوی او رښتیا وائی"

د بل د مال د حلالیدو د پاره د تجارت او رضامندۍ دوه شرطونه

د آیات په دے جمله کښے ئے د تجارت سره عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ : او فرمائیل دائے او خو دا چه کوم ځائے کښے د سره تجارت هډو وی نه، بلکه د تجارت په نوم بانډے جواری، ستها، یا د سود معامله وی، یا مال لاموجود نه وی محض په ذهنی قرارداد بانډے د دے سودا شوے وی دا بیعه باطله او حرامه ده -

دغه شان که تجارت یعنی د مال اَدَلْ بَدَلْ وی لیکن د فریقینو رضامندی په کښے نه وی هغه هم بیعه فاسده او ناجائزه ده - او دا دواړه صورتونه د مال په باطله طریقه سره خوړو کښے داخل دی - اول صورت ته فقهاء بیعه باطله وائی او دویم صورت ته بیعه فاسده وائی -

تشریح د دے دا ده چه د یو د مال د بل په مال سره د بدلولو نوم تجارت دے - که په دے کښے یو طرف ته خو مال وی لیکن د دے په مقابله کښے بل طرف ته د سره مال نه وی نو دا تجارت نه دے بلکه فریب (دوکه) ده - د سود د معاملو دا حال دے چه د سود رقم د نَسِیًا د میعاد معاوضه (بدله) وی - او دا میعاد خو څه مال نه دے - دغه شان حال د ستهے او جوارۍ دے، چه په دے کښے خو یو طرف ته متعین مال موجود دے لیکن د بل طرف د مال وجود یا نه وجود په شک کښے وی - دغه شان هغه د وعدے سودا ګانے چه په هغے کښے مال لاتر اوسه پورے موجود شوے نه وی او سودا ورله او کړی نو یو طرف ته مال او بل طرف ته خیالی وعده ده - نو په دے وجه په حقیقت کښے دا د سره تجارت نه دے - بلکه یو قسم دوکه او فریب دے په دے وجه فقهاء دے ته بیعه باطله وائی -

دویم صورت دا دے چه دواړه طرف ته مال او بدل د مال خو وی لیکن د یو جانب نه رضامندی نه وی، نو دا تجارت خو اوشو مګر فاسد او غلط قسم تجارت دے،

په دے وجه دے ته بیعه فاسده وائی او نا جائز ده -
د دے تشریح نه د اغستلو خرڅولو او تجارت چه څومره ناجائز صورتونه وی ټول اُوځی -

| د جانبینو د رضامندئ د شرط حقیقت | البته یو دریم قسم بل دے چه په هغے کښے د جانبینو نه د مال بدل هم دے او په ظاهره د جانبینو رضامندی |
|---|---|

هم ده - مګر دا رضامندئ په حقیقت کښے د مجبورئ رضامندی وی حقیقی رضامندی نه وی - په دے وجه شرعًا دا دریم قسم هم په دویم قسم کښے داخل شوے دے مثلًا د عام ضرورت څیز ونه ټول یو سړے یا یوه کمپنی را ټول کړی او ستاک ئے کړی، او بیائے په قیمت کښے چه څومره غواړی زیاتوالے اوکړی او خرڅوی ئے - چونکه په بازار کښے بل ځائے ملاویږی نه نو خلک مجبوره وی چه اوس ګران وی او که ارزان خوچه واخلی - په دے صورت کښے اګرچه خلک د اغستونکے) پخپله راځی او ظاهرئ مننه په رضامندئ اخلی لیکن د دهٔ دا رضامندی په حقیقت کښے یو مجبوری ده نو په دے وجه دا رضامندی رضامندی نه ده -
دغه شان که یو خاوند د خپلے ښځے سره داسے سلوک شروع کړی چه هغه پخپل مهر معاف کولو باندے مجبوره شی، نو اګرچه د معافئ په وخت کښے دا د خپلے رضامندئ اظهار کوی - لیکن په حقیقت کښے دا رضامندی نه وی -
یا یو سړے هر کله چه دے ته اوګوری چه ځما جائز کار بغیر د رشوت ورکولو نه کیږی نو دے په رضامندئ سره رشوت ورکولو ته تیار وی خو دا رضامندی هم په حقیقت کښے رضامندی نه ده په دے وجه شرعًا په نښت لیکه ده -
د دینه معلومه شوه چه د: اِلَّآ اَنۡ تَكُوۡنَ تِجَارَةً عَنۡ تَرَاضٍ مِّنۡكُمۡ؛ نه د اغستو خرڅولو او تجارت صرف د هغو صورتونو روا والے ثابت شه د کوم روا والے چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په احادیثو سره ثابت دے - او کتابونو دغه لیکلی دی - او څومره صورتونه چه د اغستو خرڅولو او تجارت په شریعت کښے منع دی او ناجائز دی هغه ټول د دینه با هر دی - د قرانِ کریم یو لفظ د فقهٔ پوره کتاب البیوع او کتاب الاجاره بیان په مکمل طور سره اوکړو -
د ایات دریمه جمله داده: وَلَا تَقۡتُلُوۡٓا اَنۡفُسَكُمۡ؛ د دے لفظی معنی داده،

چه" تاسو خپل ځانونه مه قتلوئ". په دے کښے په اتفاق د مفسرينو سره ځان وژل (خودکشي) هم داخل دے - او دا هم چه يو بل په ناحقه قتلوی -

د آيات په اول جمله کښے د عامو انسانانو د مالي حقونو او د دوی د حفاظت بيان وُو - په دے جمله کښے د دوی د نفسونو د حقونو د حفاظت بيان راغے - او د دلته ئے مال مخکښے او نفس شائد په دے وجه ورستو بيان کړو چه په مالي حقونو کښے ظلم زيا تے او کوتاهي او بے پرواهي ډيره عامه ده - په ناحقه قتل او وينے تويول اګر چه د دے نه ډير سخت دی ليکن عادةً په دے کښے اخته کيدل کم دی - په دے وجه ئے د دے بيان د روستو کړو -

د آيات په اخر کښے ارشاد دے: إِنَّ اللهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا: يعني کوم احکام چه په دے آيات کښے ورکړے شوی چه د خلقو مال په ناحقه مه خورئ، يا څوک په ناحقه مه قتل کوئ - دا ټول احکام ستاسو په حق کښے د خدائے پاک رحمت ئے د دے د پاره چه تاسو د دے کارونو د آخرت د وبال نه هم بچ شئ - او د دُنيا د سزا نه هم -

د دے نه پس په دويم آيات کښے ئے ارشاد اوفرمايه: وَمَنْ يَفْعَلْ ذٰلِكَ عُدْوَانًا وَّظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا: يعني د قرآن د خود نه با وجود که يو سړے د دے نه خلاف ورزي اوکړي او قصداً په زور زياتي د چا مال په ناحقه واخلي يا چا لره په ناحقه قتل کړي نو هغه ته به مونږ جهنم ته داخل کړو -

د زياتي او ظلم د قيد نه معلومه شوه چه که په هيره، غلطي يا خطاءً سره د چا نه داسے اوشي نو هغه د عذاب په دے وعده کښے داخل نه دے -

إِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ

که تاسو ځان اوساتئ د هغے غټو نه چه په ګناهونو کښے لوئے دی نو مونږ به معاف کړو ستاسو نه

سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُمْ مُّدْخَلًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾

واړه ګناهونه ستاسو او داخل به کړو تاسو لره د عزت مقام ته -

**دَ ایاتو نوتړون** دَ دے ایات نه په وړاندینو ایاتونو کښے دَ څو لویو لویو ګناهونو ذکر وُه۔ او په دے ګناهونو کښے دَ اَخته کیدونکو دَ پاره دَ سخت عذاب بیان دے۔ دَ قرآن کریم دَ بیان یو خاص انداز دا دے چه کله په یو ګناه باندے دَ سزا نه دَ ډیرو لو بیان کوی چه ترهیب ورته وائی نو دَ دے سره دَ ترغیب طرف هم ذکر کوی۔ چه کوم سړے دَ دے جُرم نه واپس شی نو دَ هغهٔ دَ پاره دا انعامونه او درجے دی۔

په دے ایات کښے هم خاص دَ یو خدائی انعام ذکر کوی او ترغیب ورکوی۔ هغه دا چه که تاسو دَ لویو لویو ګناهونو نه ځان اوساتئ نو ستاسو واړهٔ ګناهونه به مونږ پخپله معاف کړو۔ او دغه شان به تاسو دَ لویو وړو هر قسم ګناهونو نه پاک صاف شئ دَ عزت او راحت هغه مقام ته به داخل شئ دَ کوم نوم چه جنّت دے۔

# لنډ تفسیر

دَ کومو کارونو نه چه تاسو له (په شریعت کښے) منع کولے شی (یعنی دَ ګناه دَ کارونو) په دے کښے چه کوم لوئے لوئے کارونه دی (یعنی لوئے لوئے ګناهونه دی) که تاسو دَ دے نه ځان اوساتئ نو (په دے ځان ساتلو ستاسو مونږ درسره وعده کوُو چه ستاسو دَ نیکو عملونو په وجه به چه هر کله هغه قبول شی) مونږ به ستاسو سپکے بدئی (یعنے واړهٔ واړهٔ ګناهونه چه دوزخ ته بوتلے کولے شی) ستاسو نه لرے (یعنی معاف) کړو (پس دَ دوزخ نه به بچ شئ) او مونږ به تاسو دَ عزت ځائے (یعنی جنّت) ته داخل کړو۔

# مَعلومَات او مَسئلے

**دَ ګناهونو دوه قسمونه** دَ دے ایات نه معلومه شوه چه ګناهونه دوه قسمه دی څهٔ کبیره یعنی لوئے ګناهونه او څهٔ صغیره یعنی واړهٔ ګناهونه۔ او دا هم معلومه شوه چه که یو سړے همّت او کړی او دَ لویو ګناهونو نه ځان اوساتی نو دَ الله تعالیٰ وعده دهٔ چه دَ دهٔ واړهٔ ګناهونه به هغه پخپله معاف کړی۔

دَ کبیره ګناهونو نه په ځان ساتلو کښې دا هم داخله ده چه ټول فرائض او واجبات ادا کوی، ځکه چه دَ یو فرض یا واجب پاتې کول پخپله کبیره ګناه ده - نو حاصل دا شو چه کوم سړے دَ دے خبرے پوره اهتمام کوی چه ټول فرض او واجب ادا کوی او دَ ټولو کبیره ګناهونو نه ځان بچ ساتی نو الله تعالیٰ به دَ دهٔ واړهٔ ګناهونه معاف کړی او درګند به ترے اوکړی -

**نیک عملونه دَ صغیره ګناهونو کفاره کیږی**

دَ کفارے مطلب دا دے چه دَ دهٔ په نیکو عملو نو به دَ دهٔ صغیره ګناهونه ختم کړی او حساب به ورلره بے باق کړی او په ځائے دَ عذاب به ورته ثواب او په ځائے دَ جهنّم به ئے جنّت نصیب کړی -

لکه په صحیح احادیثو کښې راغلی دی چه کله یو سړے دَ مانځه دَ پاره اودس کوی نو دَ هر اندام دَ اِنځلو سره سره دَ ګناهونو کفاره اوشوه - چه مخ او وینځی نو دَ سترګو، غوږونو، پوزے وغیره دَ ګناهونو کفاره اوشوه، چه خوله او وینځی نو دَ ژبے دَ ګناهونو کفاره اوشوه - خپے چه او وینځی نو دَ خپو ګناهونه ئے اُووینځلے شو، بیا چه جمات ته روان وی نو هر یو قدم ئے دَ ګناه کفاره کیږی -

**کبیره ګناه صرف په توبه سره معاف کیدے شی**

دَ ایات نه معلومه شوه چه نیک عملونه دَ ګناهونو کفاره کیدل کوم چه دَ حدیث په روایتونو کښې ذکر دی دَ دے نه مراد صغیره ګناهونه دی - او کبیره ګناه دَ توبے نه بغیر نه معاف کیږی او په صغیره کښې دا شرط دے چه بنده کوشش او همّت اوکړی ځان دَ کبیره ګناهونو او ساتی - معلومه شوه چه که یو سړے دَ کبیره ګناهونو کولو سره سره اودس او مونځ کوی - نو محض په اودس مانځه یا نورو نیکو عملونو سره دَ دهٔ دَ صغیره ګناهونو کفاره هم نه کیږی، او کبیره خو پخپل ځائے دی -

نو دَ کبیره ګناهونو یو ډیر لوئے ضرر پخپله دَ دے ګناهونو وجود دے چه په قرآن او حدیث کښې پرے دَ سخت عذاب وعدے راغلی دی - او دغه بغیر دَ رشتونې توبے نه نهٔ معاف کیږی - او دَ دے نه علاوه دویم محرومی دا ده چه دَ دے په وجه سره واړهٔ ګناهونه هم نه معاف کیږی - او دا سړے به په محشر کښې دَ کبیره او صغیره ګناهونو دَ بوج لاندے حاضر کړے شی او هیڅوک به په دَغه وخت کښې دَده بوج نه شی

سپکوَلے۔

**ګناه او دَهغې دوه قسمونه صغیره او کبیره**

په ایات کښې دَکبائر لفظ راغلے دے په دے وجه دا پېژندل پکار دی چه کبیره ګناه څهٔ ته وائي، او دا ټول څومره دی، او صغیره ګناه څهٔ ته وائي او دَدے شمار څومره دے؟

دَاُمّت عالمانو په دے مسئله باندے په مختلف انداز کښې ځان ځان له کتابونه لیکلی دی۔

دَګناه کبیره او صغیره دَ تقسیم او دَدوی دَ پېژندو نه مخکښې په دے ځان پوهه کول پکار دی چه مطلق ګناه نوم دے دَهر داسے کار چه دَ الله تعالیٰ دَحکم او رضا نه خلاف وی۔ دَ دے نه به تاسو ته دا اندازهٔ هم اولګی چه کوم ګناه ته وړوکے ګناه وئیلے شی هغه په حقیقت کښې وړوکے نه وی۔ دَ الله تعالیٰ نافرمانی او دَ دهٔ دَ رضا مخالفت په هر حالت کښې ډیر سخت جُرم دے۔ په دے حیثیت سره دَ حرمینو امام او دَ اُمّت ډیرو عالمانو فرمائیلی وی چه دَ الله تعالیٰ هره نافرمانی او دَ هغهٔ دَ رضا مخالفت کبیره ګناه دَے۔

دَکبیره او صغیره فرق صرف دَګناهونو په یو بل سره دَمقابلے او موازنے نه کولے شی۔ په دے معنیٰ کښې دَحضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنه نه نقل دے چه «کُلُّ مَا نُهِيَ عَنْهُ فَهُوَ کَبِيْرٌ» یعنی کوم کار چه په شریعت کښې منع دے هغه ټول کبیره ګناهونه دی۔

**لنډه** دا دهٔ چه کوم ګناه ته په اصطلاح کښې صغیره یعنی وړوکے وئیلے شی دَهغې دا معنیٰ دَ هیچا په نزد هم نه ده چه دَ داسے ګناهونو په کولو کښې دے غفلت یا سُستی اوشی او دا دے معمولی کمتری نظر انداز کوی دے۔ بلکه صغیره ګناه چه په بے باکئ او بے پرواهئ سره اوکړے شی نو هغه هم کبیره جوړیشی۔

یو بزرګ فرمائیلی دی چه دَ واړهٔ ګناه او لوئے ګناه مثال په بسکاره څیز ونو کښې داسے دے لکه دَ وړوکے لړم او لوئے لړم، یا دَ اور وړه سکروټه او لویه سکروټه چه انسان په دے دواړو کښې دَ یو تکلیف هم نشی برداشت کولے۔ په دے وجه محمد بن کعب قرطبی فرمائي چه دَ الله تعالیٰ دَ ټولو نه لوئے عبادت دا دے چه ګناهونه پریخودے شی۔ کوم خلق چه دَ مانځه، تسبیح سره ګناهونه نهٔ پاتے کوی

دَ هغهٔ عبادت قبول نه دے - او حضرت فضیل بن عیاضؒ فرمائی چه تا سو څومره یو ګناه سپک ګنړئ دومره هغه دَ الله په نزد لوئے جُرم جوړیګی - او پخوانی بزرګان فرمائی چه هر ګناه دَ کفر قاصد دے چه انسان ته دَ کافرانه عملونو او اخلاقو بَلَنه ورکوی -

او په مسند احمدؒ کښے دی چه حضرت عائشے صدیقےؓ حضرت معاویهؓ ته په یو خط کښے او لیکل چه بنده څومره دَ خدائے تعالیٰ نافرمانی کوی نو دَ ده صفت کوونکی هم دَ دهٔ بدئ بیانول شروع کړی او دوستان ئے هم دشمنان شی، دَ ګناهونو نه بے پرواهی دَ انسان دَ پاره دَ همیشه تباهیٔ سبب دے -

په صحیح حدیث کښے دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه مؤمن هر کله یو ګناه اوکړی نو دَ دهٔ په زړهٔ یو تور داغ جوړ شی، بیا که دے توبه او استغفار اوکړی نو دا داغ وران شی، او که توبه او نه کړی نو دا داغ زیاتیږی تردے چه دَ دهٔ ټول زړهٔ اونیسی او هٔ دے نوم په قرآن کښے دَ رَین دے: كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَىٰ قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ؛ یعنے دَ دوی بدو عملونو دَ دوی په زړونو باندے زنګ اولګولو" البته دَ ګناهونو دَ فسادونو او بدو نتیجو په اعتبار سره دَ دوی په مینځ کښے فرق ښکاره دے - دَ دے فرق په وجه سره څنے ګناه ته کبیره او څنے ګناه ته صغیره ویئیلے شی -

**کبیره ګناه** دَ کبیره ګناه تعریف دَ قرآن حدیث او تیرو مشرانو دَ وینا په مطابق دا دے چه یکوم ګناه باندے قرآن څهٔ شرعی حَد یعنی سزا په دنیا کښے مقرر کړے وی، یا یکوم چه دَ لعنت الفاظ راغلی وی، یا یکوم چه دَ دوزخ وغیره دَ عذاب وعید راغلے وی دغه ټول کبیره ګناهونه دی، دغه شان هر هغه ګناه به هم په کبیره کښے داخل وی دَ کوم فسادونه او بدے نتیجے چه دَ څهٔ کبیره ګناه برابر یا تر ے زیاتے وی - دغه شان کوم صغیره ګناه چه په زړهٔ ور تیا او بے باکئ سره اوکړے شی یا پرے همیشوالے اوکړے شی نو هغهٔ هم په کبیره کښے داخلیږی -

حضرت ابن عباسؓ په مخکښے چا اووے چه کبیره ګناهونه اووه دی نو دویؓ او فرمائیل اووه نه که اووه سوه او ویئیلے شی نو زیاته مناسبه به وی -

امام ابن حجر مکیؒ په خپل کتاب زواجر کښے دَ دے ټولو ګناهونو فهرست او دَ هر یو

پوره تشریح بیان کړې ده کوم چه پدې ذکر شوی تعریف سره په کبائرو کښې داخل دی. په دې کتاب کښې د دې کبیره و شمار څلور سوو[۴۶۷] او ووه شپیته ووته رسیدلې دې. او بعضو ترې صرف غټ غټ را تول کړی دی نو شمار ئې کم لیکلې دې. او بعضو د اقسامو په لحاظ سره د دینه هم زیات شمار لیکلې دې. خو دا څهٔ تکراوٴ او اختلاف نه دې.

نبی کریم صلے الله علیه وسلم په مختلفو ځایونو کښې ډیرو گناهونو ته کبیره وئیلی دی. او د حالاتو په مناسبت سره چرته درې، چرته شپږ، چرته اووه او چرته ئې د دینه هم زیات بیان فرمائیلی دی. نو د اُمت عالمانو د دې نه دا معلومه کړه چه په یو شمار باندې بس کول مقصود نه دی. بلکه د موقعو او حالاتو په مناسبت سره چه څومره ئې مناسب گنړل دومره ئې بیان کړی دی.

د بخاری او مسلم په یو حدیث کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه په کبیره گناهونو کښې هم چه کوم د ټولو نه لوئې دی زهٔ تاسو د هغې نه خبر وٴم هغه درې دی. د الله تعالیٰ سره چا مخلوق لره شریکول، د مورو پلار نافرمانی کول، او د دروغو گواهی کول یا دروغ وئیل.

دغه شان د بخاری او مسلم په یو روایت کښې دی چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه چا تپوس اوکړو، چه د ټولو نه لوئې گناه څهٔ دې؟ او ئې فرمائیل چه تاسو د الله تعالیٰ سره څوک شریک جوړ کړئ، حال دا دې چه هغهٔ تاسو پیدا کړی یئ. بیائې ترې تپوس اوکړه، چه د دې نه پس کوم گناه د ټولو نه لوئې دې؟ او ئې فرمائیل چه تاسو خپل بچې د دې ډرې نه مړ کړئ چه دئ به ستاسو سره په خوراک کښې شریک شي. او دهٔ له به بیا تاسو خوراک ورکوئ، بیائې ترې تپوس اوکړه چه د دې نه پس کوم گناه د ټولو نه لوئې دې؟ او ئې فرمائیل چه د خپل گاونډی د ښځې سره بدکاری کول، بدکاری پخپله لوئې جرم دې او د گاونډی د اهل وعیال حفاظت هم د خپل اهل وعیال په شان په انسان لازم دې، نو په دې وجه دا جرم دوچند دې.

د صحیحینو په یو حدیث کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دا خبره د کبیره گناهونو نه ده چه یو سړې خپل مورو پلار ته کنځل اوکړی صحابه کرامو عرض اوکړو چه یا رسول الله دا څنگه کیدې شي چه یو سړې به خپل مورو پلار ته

څنګه کنځل کوي؟ او ګې فرمائيل چه هاں! کوم سړے چه د بل سړي مور و پلار ته کنځل کوي او د هغې په بدل کښې هغه د ده مور و پلار ته کنځل کوي، نو داسے دی لکه چه ده پخپله خپل مور و پلار ته کنځل کړي وي ځکه چه دا د ده د هغې کنځلو سبب ګرځي.

او د صحيح بخاري په يو روايت کښې نبي کريم صلی الله عليه وسلم شرک او نا حق قتل، او د يتيم مال په ناجائزه طريقه خوړل، او د سود امدن خوړل، او د ميدان د جهاد نه تيختنه، او په پاکدامنو ښځو تهمت لګول، او د مور و پلار نا فرماني کول، او د بيت الله بے حرمتي کول په کبيره ګناهونو کښې شمار کړي دي -

د حديث په بعضے رواياتو کښې ئے دا هم په کبيره ګناهونو کښې شمار کړے ده چه يو سړے د دار الکفر نه هجرت اوکړي دار الاسلام ته راشي او بيا دوباره دار الهجرت پاتے کړي دار الکفر ته لاړ شي -

په نورو روايا تو د حديثو کښې ئے دا صورتونه هم د کبيره ګناهونو په شمار کښې داخل کړي دي، په دروغه قسم خوړل، د خپل ضرورت نه زياتے او په سات نورو ضرورتمندو ولړه ئے نه ورکول، جادو ايزده کول، د جادو عمل کول، او فرمائيلي ئے دي چه شراب سکل اکبر الکبائر دي - او فرمائيلي ئے دي چه شراب سکل د فحاشو مور ده، ځکه چه په شرابو مست شي نو د هر ناکاره نه ناکاره کار بيا کولے شي -

دغه شان په يو حديث کښې ارشاد فرمائي چه د ټولو نه لوئے کبيره ګناه دا ده چه انسان پخپل مسلمان رور داسے عيب او لګوي چه هغه پرے بے عزته شي -

په يو حديث کښې دي چه کوم سړي بغير د څه شرعي عذر نه دوه مونځو نه په يو وخت کښې جمع کړل نو ده کبيره ګناه اوکړه - مطلب دا دے چه يو مونځ ئے پخپل وخت او نه کړه بلکه قضا ئے کړو د بل مونځ سره ئے اوکړه -

په بعضے رواياتو نو د حديث کښې دي چه د الله تعالیٰ د رحمت نه مايوسه (نا اُميده) کيدل هم کبيره ګناه ده، او د عذاب نه ئے بے فکره او بے يرے کيدل هم کبيره ګناه ده -

په يو روايت کښې دي چه وارث ته نقصان رسول او د ده د ميراث د حصے کولو د پاره څه وصيّت کول هم په کبيره وو کښې شمار دے -

او د صحیح مسلم په یو روایت کښې دي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم یو پېره او فرمائیل چه "تباه او برباد او زیاتکاران شو" او دا کلمه ئې درې پېرې او فرمائیله حضرت ابوذر غفاری رضی عرض او کړو چه یا رسول الله دا محروم او تباه برباد خلق څوک دي؟ نو حضور جواب ورکړو چه یو هغه سړے چه د تکبر په وجه پرتوګ یا لنګئ د پړکي نه لاندے زوړنده وي، دویم هغه سړے چه د الله پاک په نوم څه ورکړي او بیا یې زباتنه کوي او احسان پرے اړه وي، دریم هغه بوډا چه بد کاري کوي، څلورم هغه سړے چه بادشاه یا افسروي او دروغ وائي، پنځم هغه سړے چه عیالدار وي او تکبر کوي، شپږم هغه سړے چه د یو امام په لاس محض د دنیا د پاره بیعت کوي۔

او د صحیحینو په یو حدیث کښې دي چه چغلي کونکے به جنت ته نه ځي۔

او د نسائي او مسند احمد وغیره په یو حدیث کښې دي چه څوکسان به جنت ته نه ځي۔ شرابي، د مور و پلار نافرمانه، د رشته دارانو سره بے وجهِ قطع تعلق کونکے، احسان زباتونکے، د پیریانو شیطانانو یا نورو ذریعو سره د غیبو خبرے خودونکے، د یوث، یعنے خپل اهل وعیال د بے حیائي نه منع کونکے۔

د مسلم شریف په یو حدیث کښې دي چه د الله تعالیٰ لعنت دے په هغه سړي چه یو جانور د الله نه سوا د بل چا د پاره قرباني کړي۔

---

وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعْضَكُمْ عَلٰى بَعْضٍ ط

او هوس مکوئ په هغه شي کښې چه لوئي ورکړېده الله یو لره په بل بانده۔

لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوْا ط وَلِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ

د سړو د پاره حصه ده د خپلې ګټې نه او ښځو لره حصه ده

مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ط وَاسْئَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ ط اِنَّ اللّٰهَ

د خپلې ګټې نه او غواړئ د الله نه د هغه فضل۔ بے شک الله ته

كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿۳۲﴾ وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ

هر شئ معلوم دے۔ او د هر يو د پاره موږ مقرر کړي دي وارثان

مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ ۚ وَالَّذِينَ عَقَدَتْ

په هغه مال کښے چه پاتے کړي مور د پلار او خپلوان۔ او د چا سره چه معاهده شوې وه

أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ

ستاسو هغوي ته ورکوئ د هغوي حصه۔ بے شکه د الله په

كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدًا ﴿۳۳﴾ ع ۵/۸ ۲

هر يو شئ وړاندے دے۔

## د آيا تو نو تړون

په تير و آيا تو نو کښے د ميراث احکام تير شو يدي۔ په هغې کښے دا هم خود لے شوي دي چه د مړي په وارثانو کښے که سړي او ښځے وي او د مړي سره ئے رشته يو شان وي نو سړي ته به د ښځے په نسبت دوچند حصه ملاويږي، دغه شان نور فضيلتونه هم د سړو ثابت دي۔ حضرت اُمّ سلمهؓ په دے بانده يو وار نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته عرض اوکړه، چه موږ ته نيم ميراث ملاويږي او نور هم فلانے فلانے فرق په موږ او سړو کښے دے۔

مقصد د دےؓ اعتراض کول نه وُو بلکه آرزو ئے وه چه که موږ هم سړي وے نو د سړو په شان فضيلتونه به موږ ته حاصل وُو۔ بعضے ښځو دا آرزو اوکړه چه کاش موږ سړي وے نو د سړو په شان به په جهاد کښے موږ حصه اَغسته او د جهاد فضيلت به را ته حاصليده۔

يوے ښځے نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته عرض اوکړه چه سړو ته په ميراث کښے دوچند حصه ملاويږي، او د ښځے شهادت هم د سړي په نيمه دے۔ نو آيا چه په نورو عبادتونو او عملونو کښے به هم موږ ته نيم ثواب ملاويږي؟ په دے بانده دا آيات نازل شو چه د دواړو خبرو جواب په کښے ورکړے شه،

دَ حضرت اُمِّ سلمهؓ دَ وَیَنا جواب په: لَا تَتَمَنَّوْا ؛ سره ورکړے شو. او دَ دے بلے ښځے دَ وَیَنا جواب په: لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ ؛ سره ورکړے شو.

# لنډ تفسير

او تاسو (ټولو سړو ښځو ته حکم کیږی چه په خدائے ورکړو فضیلتونو کښے دَ داسے یو کار آرزو مَکوئ) پکوموکښے چه الله تعالیٰ بعضو لره (مثلاً سړو لره) په بعضو باندے (مثلاً په ښځو باندے بغیر دَ دوی دَ څه عمل دَ دخل نه) او چتوالے ورکړے دے (لکه سړے کیدل یا دَ سړو دوچند حصه یا دَ دوی دَ شهادت کامل والے او داسے نور) دَ سړی دَ پاره دَ دوی دَ عملونو (دَ ثواب) حصه (په اخرت کښے) ثابته ده او دَ ښځو دَ پاره دَ دوی دَ عملونو (دَ ثواب) حصه (په اخرت کښے) ثابته دهٔ (او خلاصے په اخرت کښے قانوناً هم په دے عملونو سره دے، او په دے کښے دَ هیچا تخصیص نیشته، نو که دَ نورو نه ځان اوچتول غواړئ نو په کسبی عملونو کښے کوشش کوئ دَ نورو نه به زیات ثواب حاصل کړئ او چه هر کله تاسو په دے باندے قادر یئ نو دَ دے ذکر شوو خاصو فضیلتونو محض تمنا او هوس خو بیا فضول دی، بلکه عمل اوکړئ) او (که په خدائے ورکړو فضیلتونو حاصلولو کښے موخواهش وی چه په هغے کښے عملونو لره هم دخل دے مثلاً باطنی کمالات حاصلول یا نور داسے نو بیا هیڅ باک نیشته، لیکن دَ هغے طریقه هم دا نه ده چه خالی تمنا کا نے کوئ بلکه دا پکار دی چه) دَ الله تعالیٰ نه دَ دے (خاص) فضل خواست (یعنی دعا) کوئ بے شکه الله تعالیٰ هر شئ بنهٔ پیژنی (په دے کښے ټول خیزونه راغلل، یعنی دَ خدائے ورکړو اول قسم فضیلتونو تخصیص هم، او په کسبی فضیلتونو باندِ ثواب هم ورکول، او دَ دویم قسم خدائے ورکړو فضیلتونو خواست هم. نو دَ دے جملے تعلق دَ ټولو سره ذے) او دَ هر داسے مال دَ پاره چه مور و پلار او (نور) رشته دار (خلق دَ خپل مرګ نه پس) ئے پاتے کړی مونږه وارثان مقرر کړیدی او دَ کومو خلقو سره چه ستاسو عهد (دَ مخکښے نه) شوے وی (دیته مولی الموالات وائی) دوی ته را وس چه هر کله په شریعت کښے رشته دار خلق وارثان مقرر کړے شوی دی ټول میراث مه ورکوئ بلکه صرف) دَ دوی حصه (یعنی شپږمه ⅙) ورکړئ بے شکه الله تعالیٰ په هر څهٔ خبردار دے

رپس دوی لره د تول میراث نه ورکولو، او شپږمه حصه مقرره کولو، او دا دے چه
شپږمه دوی لره څوک ورکوي څوک نه ورکوي په دے تولو کښے چه کوم مصلحت دے
د دے تولو نه هغه خبر دار دے)

# معلومات او مسئلے

| د اختیاري کارونو او غیر اختیاري کارونو تمنّا او ارزو کول | په دے ایات کښے د هغه غیر اختیاري کارونو د تمنّا کولو نه منع شوے ده کوم چه نورو ته |
|---|---|

حاصل وي - (او ده ته نه وي حاصل) -

وجه ئے دا ده چه انسان هرکله چه خپل ځان د نورو نه په مال دولت، عیش او ارام، خائست او ښائست والي، علم او فضل وغیره کښے د نورو نه کم بیا موي نو عادتاً د ده په زړه کښے د حسد ماده راپورته شي، چه خواهش ئے د کم نه کم دا وي چه زه هم د ده برابر یا ترے زیات وے. او چیرکرته ئے د دے طاقت نه وي. ځکه چه چیرکالونه داسے وي چه په هغے کښے د انسان د کوشش او عمل هیڅ دخل نه وي هغه محض د الله تعالیٰ انعامات وي، لکه سړے پیدا کیدل یا د یو اعلیٰ خاندان نه یا د شاهي خاندان نه پیدا کیدل، یا خائسته او خوبصورت پیدا کیدل وغیره نو کوم سړي ته چه دا انعامات حاصل نه وي که هغه تول عمر د دے کوشش کوي چه مثلاً سړے شي، یا د سید خاندان نه شي یا د ده قد و قامت خائسته شي - نو دا د ده په قدرت کښے نه دي، او نه دے په څۀ دارو، علاج یا تد بیر سره دا شیونه حاصلولے شي - او چه هرکله د ده دا قدرت نه وي چه ځان د نورو سره برابر کړي نو د ده په نفس کښے دا خواهش کلک شي چه بل ته د دے نورو نه هم دا نعمت واخستے شي چه هغوي هم د ده برابر یا ترے کم شي - د دے نوم حسد دے، او دا په انساني اخلاقو کښے انتهائي شرمناک او مرض خوئي دے، او د دنیا د چیرو جګړو فسادونو قتلونو او لوټ مار سبب دے -

قرآن کریم په دے ایات کښے د دے فساد د دروازے بندولو د پاره ارشاد اوفرمایه: وَلَا تَتَمَنَّوۡا مَا فَضَّلَ اللّٰهُ بِهٖ بَعۡضَكُمۡ عَلٰى بَعۡضٍ : یعنے الله تعالیٰ چه په تقاضا د حکمت او مصلحت سره کوم کمالونه او فضیلتونه په خلقو کښے تقسیم کړي دي،

چالوره ئې څهٔ وصف ورکړے دے چالوره څهٔ- چالوره کم چالوره زیات، په دے کښے هم یوکس لره هڅپل قسمت باندے راضی کیدلو او خوشحاله کیدل پکار دی- دَ نورو دَ فضیلتونو او کمالونو تمنّا نه دی کول پکار ځکه چه دَ دے نتیجه ځان لره غم او خفګان او دَ حسد دَ لوئے ګناه نه سِوا نور هیڅ نیشته-

چالوره چه خدائے پاک سرے جوړ کړے دے هغهٔ دے په دے شکر اوباسی او چالوره چه ئې ښځه جوړه کړے وه هغه دے پدے راضی اوسی- او دا دے ګنړی چه کیدے شی که دا سړے وے نو دَ سړو ذمه دارئ به تر ے نه وے پوره شوے نو ګناه ګاره به وه- څوک چه الله تعالیٰ خائسته پیدا کړے دے هغه دے په دے شکر ګذاروی چه دۀ ته یو نعمت ملاؤ شوے دے- او څوک چه بد صورت وی هغه دے هم نه خفه کیږی چه شاید په دے کښے دَ دۀ خیروی- چه که خائست ورته ملاؤ شوے وے او په څهٔ فتنه او فساد کښے اُخته شوے وے- او څوک چه په نسب کښے لوئے دے یا سیّد وغیره دے، نو دے دے په دے شکر اوباسی چه دا نسبت دَ الله تعالیٰ یو انعام دے- او چا ته چه دا نسبت نه دے حاصل هغه دے کړے فکر او تمنّا نهٔ کوی ځکه چه دا شے په څهٔ کوشش سره نهٔ شی حاصلیدے او دَ دے آرزو به دے په ګناه کښے اُخته کړی او بغیر دَ غم او خفګان نه به ور ته نور هیڅ حاصل نهٔ شی- په نسب دَ افسوس کولو ځائے دِ دَ نیکو عملونو په فکر کښے شی ځکه چه په نیک عمل سره به دے دَ لویو لویو نسبونو دَ خاوندانو نه زیاتی شی-

په قرآنی ایاتونو او احادیثو کښے نیکئ طرفته دَ وړاندے کیدو یعنی په نیکو کارونو کښے دَ نورو نه مخکښے کیدل، یا دَ نورو خلقو فضیلتونه او کمالونه لیدل او دَ هغې دَ حاصلو لو دَ جِد جهد او کوشش کولو ترغیب راغلے دے نو دا دَ هغې کارونو متعلق دے چه دَ انسان په اختیار کښے وی او په کسب کولو سره حاصلیدے شی مثلاً علمی فضیلتونه او عملی او اخلاقی کمالونه چه دَ چا او وینی او دَ دے دَ پاره جد وجهد او کوشش کوی نو دا ډیر غوره کار دے- دا ایات دَ دے نهٔ منع نه کوی بلکه دَ ایات اخری حصه دَ دے تائید کوی چه ارشاد دے: "لِلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوا وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ" یعنی کوم شے چه سړو په کسب او عمل سره حاصل کړو دوی ته به دَ دے حصه ملاؤ شی او کوم چه ښځو په کسب او عمل سره حاصل کړو

دوی ته به دوی حصه ملاویږي.

په دې کښې دا اشاره موجوده ده چه د فضیلتونو او کمالونو د حاصلولو دپاره کوشش او محنت کول بې کاره نه دي. بلکه هر یو ښځې او سړي ته به د دوی د کوشش او محنت حصه خامخا ملاویږي.

د دې نه دا هم معلومه شوه چه څوک د چا علمي او اخلاقي فضیلتونه اووینې او د هغې ارزو کوي او بیا د دې ارزو پوره کولو دپاره کوشش او محنت کوي دا ډیر غوره کار دے. او دا ئے پکار دي.

د لته یو غلطي هم ختمه شوه چه په هغې کښې ډیر تا یو هم اخته کیږي بعضې د غیر اختیاري فضیلتونو په ارزو کښې اوګئي او خپل عیش ارام او اطمینان په دنیا کښې برباد کړي او که نوبت حسد ته اورسي یعنې په بل ئے هم د غه بیوزو ختم شي. نو اخرت ئے هم برباد شي. ځکه چه د حسد عظیم ګناه ئے اوکړو.

او بعضې داسې خلق هم وي چه د خپلې سستۍ او بې همتۍ بلکه د بې غیرتۍ په وجه د اختیاري فضیلتونو د حاصلولو کوشش هم نه کوي او که څوک ورته اووائي نو خپله بې غیرتۍ د پردې اچولو د پاره د قسمت او تقدیر بهانه کوي.

دې ایات یوه د حکمت او عدل ضابطه او خوده. چه کوم فضیلتونه او کمالونه غیر اختیاري دي او د انسان کسب او عمل پکښې اثر نکوي لکه د لوئے نسب کیدل یا خائسته پیدا کیدل وغیره نو دا تقدیر ته حواله کول پکار دي او په څه حالت کښې چه وي په هغې راضي کیدل او د الله تعالیٰ شکر ادا کول پکار دي. د دینه زیاته ارزو کول فضول او عبث ده او ځانله غم او خفګان په بیعه اغستل دي.

او کوم فضیلتونه او کمالونه چه اختیاري دي او په کسب او عمل سره حاصلیدې شي د دې ارزو کول فائده مند دي خو په دې شرط چه د ارزو سره سره کسب او عمل هم وي. او په دې کښې دې ایات دا وعده هم اوکړه چه د چا کوشش او عمل به ضائع نه کړے شي. بلکه هر یو ته به په قدر د محنت حصه ملاویګي سړے وي او که ښځه.

په تفسیر بحر محیط کښې دي چه د دې ایات نه وړاندې د: لَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ، او د: لَا تَقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ، حکمونه راغلي وو چه په کښې د چا مال په ناحقه د استعمالولو او د چا په ناحقه د قتل کولو منع ده. په دې ایات کښې د دې دوا په و

جړ مونو دَ بنیا د بنده دَ ولو دَ پاره دا خودَه نه ور کړے شو ے ده چه کومو نورو خلقو لره الله پاک په مال دولت، یا عیش عشرت، یا عزت او مرتبے وغیره سره پیتا بانده ے او چتو لے ور کړے دے ته دَ دے ارزو هم مکوه۔

په دے خبره چه غور او کړے شي نو معلومه به شي چه په غلا ړا که یا نورو نا جائزو طریقو سره دَ چا مال اغستل، یا قتلونه وغیره کول، دَ دے ټولو جړ مونو اصلي منشاء داوی چه یو انسان هر کله بل انسان لره په مال دولت وغیره کښے دَ ځان نه اوچت او زیات وینی نو اول دَ دهٔ په زړهٔ کښے دَ دهٔ سره دَ برابرئ یا ترے دَ زیا تید و خواهش او آرزو پیدا شي بیا دا آرزو دے دغے جړهونو ته رسوی۔ قرآن دَ دے ټولو جړهونو سرچشمه بنده کړه۔ چه دَ نورو دَ کمالونو او فضیلتونو تمنائے منع کړه۔

په ایات کښے دَ دینه پس ارشاد دے: وَاسْئَلُوا اللّٰهَ مِنْ فَضْلِهٖ: په دے کښے دا خودَ نه ده، چه هر کله تاسو چا لره په مال کښے دَ ځان نه زیات اووینئ نو بجائے دَ دے چه پَدَ غه خاص کمال کښے دَ دهٔ سره دَ برابرید و ارزو شروع کړئ۔ تاسو لره پکار دی چه دَ الله تعالیٰ نه دَ هغهٔ دَ فضل و کرم سوال شروع کړئ۔ ځکه چه دَ الله فضل دَ هر سړی دَ پاره په جُدا جدا صورتونو کښے ظاهر یګی۔ دَ چا دَ پاره مال دولت دَ الله تعالیٰ فضل وی چه که دے فقیر شي نو په ګناه او کفر کښے به اَخته شي، او دَ چا دَ پاره تنګسا او تنګدستی فضل وی چه که دے غنی او مالدار شي نو دَ زړګونو ګناهونو ښکار به شي. دغه شان دَ چا دَ پاره عزت او مرتبه دَ الله تعالیٰ فضل وی۔ او دَ چا دَ پاره سپکیدل وَرَکیدل دَ الله تعالیٰ فضل وی۔ او حقیقت چه او کتے شي نو معلومه به شي چه که دهٔ ته عزت او مرتبه ملاؤ شي نو په ډیرو ګناهونو کښے به اخته شي۔

په دے وجه ئے په ایات کښے دا او خودَه چه هر کله دَ الله تعالیٰ نه غوا ړئ نو دَ ځه خاص شي یا صفت غوښتلو بجائے دَ الله تعالیٰ فضل غوا ړئ۔ چه هغهٔ دَ خپل حکمت په مطابق پیتاسو دَ خپل فضل دروازه اوسپړی۔

په اخره ایات کښے ئے او فرمائیل: اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمًا: یعنی الله تعالیٰ هر شي لره پیژندونکے دے۔ په دے کښے ئے اشاره او فرمائیله چه دَ الله تعالیٰ تقسیم عَین حکمت او عینِ عدل او انصاف دے، څوک چه ئے پکوم حال پیدا کړے او ساتلے دے هم دغه دَ عدل او حکمت تقاضا رغوختنه وه۔ مګر انسان ته دَ خپلو عملونو دَ انجام پوره پته نه وی

دے لوه الله تعالیٰ ښځهٔ پېژنی چه چالره په څهٔ حال کښے لرل دَ دهٔ دَپاره فائده مند دی۔

دَ ذکر شوی ایات په شانِ نزول کښے بیان شوی دی چه هر کله په میراث کښے دَسړو دوچند حصه مقرر شوه نو بعضے ښځو داخواهش اوکړه چه که مونږ سړی وے نو مونږ ته به هم دوچند حصه ملاویده - دَ دے په مناسبت سره په دویم ایات کښے دَمیراث قانون دوباره په داسے انداز سره ذکر شو چه په دے کښے کومے حصے مقرر کړے شوی دی داعین دَحکمت اوعدل مطابق دی - دَانسان عقل دَ ټول مخلوق دَمصلحتونو اوفسادونو احاطه نهٔ شی کولے' په دے وجه دوی دے حکمتونو ته هم نشی رسیدے کوم چه دَخدائے تعالیٰ په دے مقرر شوی قانون کښے دی۔ نو کومے حصے چه دَچا دَپاره مقرر کړے شوی دی دوی لوه په دے باندے راضی کیدل اوشکر کنه ادا او سیدل پکاردی -

**په عقدِ موالات سره دَمیراث رسید و حکم**

دَدے ایات په اخر کښے چه کومه دَ یو بل سره دَمعاهدے په بنا باندے حصه ورکول ذکر دی' دا په اوّل دَاسلام کښے وَه - وروستو په ایات دَ وَاُولُوا الْاَرْحَامِ بَعْضُهُمْ اَوْلٰى بِبَعْضٍ؛ سره دامنسوخ شو - اوس که نور وارثان موجود وی نو دَ دوه تنو دَ یو بل سره معاهده کول په میراث اثر نه غورزه وی -

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ

سړی حاکمان دی په ښځو باندے په دے وجه چه لوئی ورکړے ده الله یو لره

عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ فَالصّٰلِحٰتُ

په بل باندے او په دے وجه چه خرچ کړل دوی خپل مالونه - بیا کومے ښځے چه نیکے دی

قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ وَالّٰتِىْ تَخَافُوْنَ

تابعداره دی، ساتونکی دی پسے شا دَ الله په حفاظت سره او دَکومو چه دَبد خوئی

نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ

یره وی تاسو ته نو دوی پوهه کوئ او جدا کوئے ئے په اوده کید و کښے

وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا ؕ

او وهئ دوی لره - بیا که خبره اومنی ستاسو نو مه تلاش کوئ په دوی باندې لاره د الزام

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ﴿۳۴﴾ وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ

بے شکه الله دے د ټولو نه اوچت لوئے - او که تاسو یریدئ چه دوی د یو بل سره ضد

بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ

ساتي نو اودرَوئ یو منصف د سړی د طرف نه او یو منصف د ښځې

اَهْلِهَا ۚ اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا ؕ

د طرف نه - که دا دواړه غواړی چه اصلاح اوکړی نو الله تعالیٰ به موافقت پیدا کړی په دواړو کښې

اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ﴿۳۵﴾

بے شکه الله په هرڅه باندے پوهه خبردار دے -

**د آیاتو نوتړون** د ښځو متعلق چه کوم احکام تیر شوی دی په دے کښې د دوی د حق ضائع کولو منع هم ذکر شوے ده - او س وړاندے د سړو د حقونو ذکر دے - او د دے سړو حقونه که فوت شی نو په دے صورت کښې د تأدیب اجازت هم ورکړے شوے دے ، په دے حقونو کښې که اختلاف راشی نو د تصفیئ طریقه او د حقونو ادا کونکو فضیلت هم ذکر دے - دے سره سره د دے خبرے هم وضاحت دے چه د سړو درجه د ښځو نه زیاته ده - نو د دینه دا جواب هم راووت چه هرکله سړے د ښځے په مقابله کښې غوره دے نو په دے خبره کښې څه اشکال پاتے نه شو چه په میراث کښې د دوی حصه د ښځو په نسبت ولے زیاته ده؟

## لنډ تفسیر

سړی حاکمان دی په ښځو باندے (په دوه وجهو سره یو) په دے سبب سره چه الله تعالیٰ

بعضو لره (یعنې سړو لره) په بعضو (یعنې ښځو باندې قدرتي) غوره والے ورکړے ئې
ددا خدائے ورکړے کار دے) او (دویم) په دے سبب سره چه سړي ور په ښځو باندې
خپل مالونه (په مهر کښې او په نان نفقه کښې) خرچ کړي دي (او د خرچ کونکو لاس اوچت
او غوره وي د هغو نه په چا چه خرچ کولے شي، او دا کسبي کار دے) پس کومے ښځې چه
نیکې دي (دوی د سړو د دے فضیلتو نو او حقو نو پوچه سره) حکم منونکي دي (او
د سړي په غیر موجودګۍ کښې (هم) په حفاظت (او) د خدائے (په توفیق د دهٔ د عزت
او مال) ساتنه کوي او کومے ښځې چه (د دے صفت نه وي بلکه) داسے وي چه تاسو
ته (په قرائنو سره) د دوی بد دماغۍ احتمال وي (قوي) نو دوی ته (اول) ذباني
نصیحت او کړئ او (که نه مني نو) دوی لره د خملاستو په ځائیونو کښې جدا پاتے کړئ
(یعنې د دوی پخوا کښې مه څملئ) او (که په دے هم او نشي نو) دوی لره (په درمیانه
وهلو سره) او وهئ بیا که دوی ستاسو حکم منل شروع کړي نو په دوی باندے
(د ذیاتي کولو د پاره) بهانه (او موقع) مه لټوئ (ځکه چه) بے شکه الله تعالیٰ ډیر
لوئے اوچت او لوئي والا دے (د هغه حقوق او قدرت او علم ټول لوئے وي. که تاسو
داسے او کړئ نو هغه به ستاسو بیا هم د خپلو حقونو متعلق په ذړګونو الزامات
قائم کولے شي) او که (په قرائنو سره) تاسو خلقو ته په دے دواړو ښځه خاوند کښې
(د ذخهٔ داسے کشمکش) پیره وي (چه دوی ئې پخپل مینځ کښې نه شي لرے کولے) نو تاسو
خلق یو سړے چه د روغے (او ستولیاقت لري د سړي د خاندان نه او یو سړے
چه (هم د غسے) د روغے (او ستولیاقت لري د ښځې د خاندان نه (مقرر کړئ او د دے
کشمکش د لرے کولو د پاره ئې دوی ته) او لیږئ (چه دوی لاړ شي او حالات معلوم
کړي او کوم چه بے لارے وي یا په دواړو کښې څهٔ لږ لږ قصور وي پوهه ئې کړي) که چیرې
دا دواړه سړي (د ذړهٔ په صدق سره د معاملې) روغوالے غواړي نو الله تعالیٰ به د دے
ښځه خاوند په مینځ کښې (په دے شرط که دا ښځه خاوند د دے دواړو په رائے عمل
هم او کړي) اتفاق راولي. بے شکه الله تعالیٰ لوئے علم او لوئے خبر والا دے (په کومه
طریقه سره چه د دوی مصالحت راتلے شي په هغې پوهه دے. هر کله چه د دے
دواړو فیصله کونکو نیت ورته روغ معلوم شي، نو د صلحې (او ستلو طریقه به
د دوی په زړهٔ کښې واچوي) -

# مَعلومَات اَو مَسئلې

دَ سورتِ نسآء دَ شروع نه تر دے ځائے پورے چې احکام او هدایات دَ ښځو دَ حقونو متعلق راغلي دي چې پَد ے کښې ئے هغه ظلمونه وران اوختم کړه کوم چې دَ اسلام نه اول په ټوله دنيا کښې په دے نازک قسم باندے کولے شو، اسلام ښځو له هغه ټول انساني حقونه ورکړهٔ کوم چې سړو ته حاصل دي، که دَ ښځو په ذمه ئے دَ سړو څهٔ خدمتونه واچول، نو په سړو ئے هم دَ ښځو حقونه فرض کړهٔ دَ سورتِ بقره په ایات کښې ئے ارشاد اوفرمایه : وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِي عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ: "يعنې دَ ښځو حقونه دَ سړو په ذمه داسے واجب دي لکه دَ سړو حقونه چې دَ ښځو په ذمه دي" په دے کښې دَ دواړو دَ حقونو دَ يو شان والي حکم ورکړے دے چې دَ دے تفصيلات ئے عرف ته حواله کړه- دَ جاهليت او دَ ټولے دنيا دَ ظالمانه رسمونو ئے يکسر خاتمه اوکړه- البته دا ضروري نه ده چې دَ دواړو حقونه دے دَ صورت په اعتبار سره يو شان وي، بلکه په ښځه باندے يو قسم کار لازم دے نو دَ دے په مقابله کښې په سړي باندے بل قسم کار دے، ښځه دَ کور دَ کارونو دَ بچو دَ پالنے او حفاظت ذمواره ده، نو سړے دَ دے دَ ضرورتونو دَ پوره کولو دَ پاره دَ کسبِ معاش ذموار دے- دَ ښځے په ذمه دَ سړي خدمت او حکم منل دي، نو دَ سړي په ذمه دَ دے مهر او نفقه ده يعنې دَ ټولو ضروري خرچونو انتظام دے- غرض دے ایات ښځو ته دَ سړو په شان حقونه ورکړهٔ-

ليکن يو شے داسے هم دے چې په هغے کښې سړو ته په ښځو باندے او چتوالے او يو خاص فضيلت حاصل دے- په دے وجه ئے دَ دے ایات په اخر کښې اوفرمائيل : وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ ، يعنې سړو ته په ښځو باندے يو حد چه غوره والے حاصل دے-

په دے ایاتونو کښې ئے دَ دے درجے بیان قرآن حکیم په حکیمانه طرز بیان سره داسے کړے دے چې دَ سړو دا فضیلت او اوچتوالے پخپله دَ ښځو دَ مصلحت او فائدے دَ پاره او عین دَ حکمت په تقاضا سره دے چې پَد ے کښې نه دَ ښځے دَ شان کموالے دے او نه پکښے دَ دے څهٔ نقصان دے-

ارشاد فرمائی: اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ: قَوّٰام، قَیَّام، قَیِّم، په عربۍ ژبه کښې هغه سړي ته ویلې شي چه د څه کار یا نظام ذمه وار او چلوونکې وي - په دې وجه په دې ایات کښې د: قَوّٰام، ترجمه عام طور په حاکم سره شوې ده یعنې سړي په ښځو حاکمان دي - مراد دا دې چه د هر یو اجتماعي نظام د پاره په عقل او عرف کښې دا ضروري ده چه د دې څوک سربراه یا امیر او حاکم وي چه د اختلاف په وخت کښې د هغهٔ په فیصلې سره کار او چلیږي - لکه څنګه چه د ملک، حکومت او ریاست د پاره د دې ضرورت د ټولو په نزد منلې شوې دې - دغه شان په قبائیلي نظام کښې هم د دې ضرورت همیشه ګڼړلې شوې دې - او یو سړې د قبیلې سردار او حاکم منلې شوې دې، دغه شان په دې عائلي نظام کښې چه خانه داري ورته ویلې شي په دې کښې هم د یو امیر او سربراه ضرورت دې، د ښځو او بچو په مقابله کښې د دې کار د پاره الله تعالیٰ سړو لره منتخب کړل، چه د دوی علمي او عملي قوتونه په نسبت د ښځو او بچو زیات وي - او دا داسې بدیهي (یعنې روانه) معامله چه یوه عقل لرونکې ښځه یا سړې د دینه انکار نه شي کولې -

**لنډه** دا ده چه د سورتِ بقره په ایات کښې ئې: وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ، او فرمائیل او د سورتِ نِسآء په ذکر شوي ایات کښې ئې: اَلرِّجَالُ قَوّٰامُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ: او فرمائیل دا ئې او خوده چه اګرچه د ښځو حقونه په سړو باندې داسې لازم او واجب دي لکه څنګه د سړو په ښځو دي - او د دواړو حقونه یو شان دي، لیکن په یو شي کښې سړو ته غوره والې حاصل دې چه دوی حاکمان دي -

او د قرآن کریم په نورو ایاتونو کښې ئې دا هم واضحه کړه چه دا حکومت کوم چه سړو ته په ښځو باندې دې محض د امریت او ظلم حکومت نه دې، بلکه حاکم یعنې سړې هم د شریعت د قانون او مشورې پابند دې - محض د خپل طبیعت په خواهش سره یو کار نشي کولې، د ده ته حکم ورکړې شوې دې چه: عَاشِرُوْهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ: یعنې د ښځو سره د رواج په طریقه ښهٔ سلوک کوئ -

دغه شان په بل ایات کښې د: عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ: تعلیم دې - چه په دې کښې ئې دا هدایت کړې دې چه د کور په کار ونو کښې دې د ښځې په مشوره سره کار کوي د دې تفصیل نه پس د سړي حاکمیت د ښځې د پاره د څهٔ خفګان سبب نشي کیدې -

خو بیا هم دا احتمال ؤ چه کیدی شي د سړو د دے غوره والي او حاکمي والي په ښځو باندے څه خراب اثر اوشي په دے وجه دلته صرف الله تعالیٰ په حکم خوندوا وجاري نه لو بلکه پټ صبرا ونه کړو بلکه ځپله ئے د دے حکمت او وجه هم اوخوده له، یوه حقه وجه ده چه حقه د خدائے ورکړه ده او د چا د عمل په دے کښے دخل نیشتے، دویمه کسبي وجه ده چه عمل لره په کښه دخل دے.

نو اول وجه ئے داسے ارشاد اوفرمائیله: بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ: یعني الله تعالیٰ په دنیا کښه په خاص حکمت او مصلحت سره یو لره په بل باندے لوئي ورکړے ده - چا لره ئے افضل او چا لره ئے مفضول (غوره کړے شوے) جوړ کړے دے لکه یو خاص کور (الله تعالیٰ خپل کور (بیت الله) او قبله مقرر کړو او بیت المقدس لره ئے خاص فضیلت ورکړو - دغه شان د سړو حاکمیت هم یو خدائے ورکړے فضیلت دے چه د سړو څه کوشش او عمل یا د ښځو کوتاهئ او بے عملئ لره په کښے څه دخل ... غیره نیشتے -

دویمه وجه کسبي او اختیاري ده، چه سړے خپل مال په ښځه باندے خرچ کوي مهر ادا کوي او د دے د ټولو ضرورياتو ذمواري سرته رسوي - په دے دوه وجهو سره ئے سړي په ښځو باندے حاکمان جوړ کړیدي -

**فائده** دلته یوه بله خبره هم د غور قابله ده، ابن حبان په بحر محیط کښے لیکلي چه په دے آیت کښے د سړو د حاکمیت په دوه وجهو بیا نولو سره دا هم ثابته شوه چه د چا د حاکمیت او ولایت مستحق کیدل صرف په زور او غلبه سره نشي کیدے - بلکه د کار صلاحیت او اهلیت ده لره د حکومت مستحق جوړه ولے شي -

**د سړو د غوره والي بیانولو دپاره د قرآن کریم عجیبه طرز**

د اولے وجه په بیان کښے لنډه طریقه داوه، چه د سړو او ښځو طرفته ئے ضمیرونه راګرځولي وے: فَضَّلَهُمْ عَلَيْهِنَّ: ئے فرمائیلي وے - لیکن قرآن کریم سرنامه بدله کړه د: بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ: الفاظ ئے اختیار کړه - په دے کښه دا حکمت دے چه ښځے او سړي ئے د یو بل حصے او جزونه مقرر کړه دے طرفته ئے اشاره اوکړه چه که په څه شي کښے د سړو غوره والے او اوچتوالے ثابت هم شي نو د دے داسے مثال دے لکه چه د انسان سر د ده د لاسونو غوره دے یا د انسان زړه د ده د معدے نه غوره دے، نو لکه څنګه چه د سر د لاسونو ...

دے نو داغوره والے خو د لاسونو مقام او اهمیت نه شي کولے، دغه شان د سړي حاکم کیدل د ښځې درجه نشي کمولے ځکه چه داد واړه د یو بل د پاره پښان دا نداموتو او اجزاو دي که سړے سر دے نو ښځه بدن دے -

(او بعضے مفسرین (تفسیر لیکونکي) فرمائي چه په دے سرنامے سره ئې دے طرفته هم اشاره کړے ده چه داغوره والے کوم چه سړوته په ښځو باندے حاصل دے دا د جنس او د مجموعے په اعتبار سره دے او تر څو پورے چه د افرادو تعلق دے نو ډیره ممکنه ده چه یوه ښځه په علمي او عملي کمالاتو کښے د چا سړي نه زیاته شي، او د حاکمیت په صفت کښے هم د سړي نه اوچته شي -

د سړي او ښځې مختلف عملونه د کار د تقسیم په اصولو باندے دي

دویمه وجه اختیاري چه ئې دا بیان کړے ده چه سړي خپل مالونه په ښځو باندے خرچ کوي په دے کښے هم یو څو اهمو کارونو طرفته اشاره شوے ده، مثلاً یو خو د دے شبهے لرے کول دي چه د میراث په ایات کښے د سړو حصّه د ښځو دوچنده او د ښځو د یو چند نه پید اشوے ده- ځکه چه د دے ایات یو وجه دا هم او خوده چه مالي ذموارئ ټولے په سړو باندے دي، د ښځو حال خو دادے چه د وادهٔ نه اوّل د دوي د ټولو خرچو ذمواري په پلار باندے ده، او د وادهٔ نه پس په خاوند نو په دے وجه چه غور اوکړے شي نو سړي له دوچند حصّه ورکول دهٔ له څهٔ زیات ورکول خو نه دي دغه خو بیا واپس ښځوته رسي-

دویمه اشاره په کښے د ژوند یو اهم اصولوته دا هم ده چه ښځه پید ایشي او فطرتي طور سره د خپلو خرچونو پېچله د ګټلو قابله نه ده- نهٔ د دے حالات د دے د پاره برابر دي چه دا دے د محنت مزدورئ او نورو کسبونو د پاره د سړو پښان دفترونو او بازارونو ته لاړه شي- ځکه چه الله پاک د دے ټوله ذمواري په سړو باندے اچولے ده- د وادهٔ نه مخکښے ئې پلار کفیل دے او د وادهٔ نه پس ئې خاوند-

د دے په مقابله کښے الله پاک د نسل زیاتولو ذریعه ښځه جوړه کړے ده- د بچو د پرورش د کور ذمواري هم په دے باندے اچولے شوے ده- ځکه چه سړے دا کار و نه نهٔ شي کولے-

په دے وجه دا نشي ګنړلے کيدے چه ښځه ئے پخپله نفقه کښے د سړي محتاج ده کړے ده کوم مرتبه ئے کمه کړے ده - بلکه د کار د تقسيم په اصولو باندے دېوتړ تقسيم شوی دے - البته د دوئ دواړو د غوره والی او ناغوره والی چه پخپل منځ کښے کوم فرق دے هغه دلته هم وی -

لنډه داده چه د دے دواړو وجهو په ذريعه دا اوخودلے شو چه د سړو په حاکميت سره نه د ښځو څه درجه کمه شوه او نه په دے کښے څه نفع ده - بلکه د دے فائده هم ښځو ته رسی -

**صالحه بی بی**

د دے ايات په شروع کښے په طور د ضابطے دا اوخودلے شو چه سړے په ښځه باندے حاکم دے د دے نه پس ئے د نيکو او بدو ښځو بيان داسے اوفرمايه: فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ يعني نيکے ښځے هغه دی چه د سړی حاکميت او منی د دوی تابعداری کوی او د سړو نه پسے شا هم د خپلو نفسونو او د دوی د مالونو حفاظت کوی - يعني په خپله پاکدامنئ او د کور د مال په حفاظت کښے دوی ته د سړو په مخامخ او پيټه شا حالات ټول برابر دی - دانه چه د دوی په وړاندے د دے کارونو اهتمام کوی او پسے شائے بيا پروا نه ساتی -

نبی کريم صلی الله عليه وسلم د دے ايات د تفسير په طور سره فرمائيلی دی:

| | |
|---|---|
| خَيْرُ النِّسَآءِ امْرَاَةٌ اِذَا نَظَرْتَ اِلَيْهَا سَرَّتْكَ وَاِذَا اَمَرْتَهَا اَطَاعَتْكَ وَاِذَا غِبْتَ عَنْهَا حَفِظَتْكَ فِيْ مَالِهَا وَ نَفْسِهَا ۔ | "يعني غوره ښځه هغه ده چه کله ته هغے ته ګورے نو خوشحالے ئے اوکله چه هغے ته حکم کوے نو حکم منی او کله چه ته غائب ئے نو د خپل نفس او مال حفاظت کوی" |

او چونکه د ښځو دا ذمواری يعني ځان پاکدامن ساتل او د خاوند د مال حفاظت کول دا دواړه اسان کارونه ندی په دے وجه ئے وړاندے اوفرمائيل: بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ يعني په دے حفاظت کښے الله تعالیٰ د ښځے مدد کوی او د هغهٔ په توفيق او امداد سره دا دا کارونه سرته د سوړلے شی - ورنه د نفس او شيطان مکرونو هر وخت انسان ښځه او سړے په ګيره کښے اغستی دی - او بيا خاصکر ښځے خو پخپلو علمی او عملی قوتونو کښے د سړو په نسبت کمزورے هم دی، خو بيا هم په دے ذمواری کښے

د سړو نه زیاتې مضبوطې لیدې شي، دا قول د الله تعالیٰ توفیق او امداد دے هم دا وجه ده چه د بې حیائۍ په ګناهونو کښې زیات تر سړي مبتلا کیږي او ښځې د سړو په نسبت چیرې کمې اخته کیږي۔

د فرمانبردارو تابعدارو ښځو غوره والي لکه څنګه چه د دے آیات نه معلومیږي دغه شان په دے باره کښې احادیث هم ډیر راغلي دي۔

په یو حدیث کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائي چه کومه ښځه د خپل خاوند تابعداره او فرمانبرداره وي د دے دپاره په هوا کښې مرغان او په دریاب کښې مهي او په آسمانونو کښې فرښتې او په ځنګلونو کښې ځناور د رندګان استغفار او بخښنه غواړي (بحر محیط)

**نافرمانه ښځه او د دے د اصلاح طریقه** د دینه پس د هغه ښځو ذکر دے چه د خپلو خاوندانو فرمانبردارې نه وي۔ یا د کومو نه چه په دے کار کښې کوتاهي کیږي۔ قرآن کریم د دوی د اصلاح دپاره پړلپسې درې طریقې اوخودے؛ وَالّٰتِيْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ؛ یعني د ښځو د طرف نه که د نافرمانۍ یره وي۔ نو اوله درجه د دوی د اصلاح داده چه په نرمۍ سره دوی پوهه کړئ، خو که په دے پوهه کولو باندے او نه شي نو دویمه درجه داده چه د دوی بستره د ځان نه جدا کړئ چه دوی ستا سو په خفګان پوهه شي او را او ګرځي، د قرآن کریم په الفاظو کښې د فِي الْمَضَاجِعِ لفظ دے۔ د دے نه فقهاؒ دا مطلب را ویستلے دے چه جدائي به صرف په بستره کښې وي د مکان جدائي به نه کوي ځکه چه په دے کښې د زیات خفګان او فساد یره ده۔

د یو صحابيؓ نه روایت دے؛

قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا حَقُّ زَوْجَةِ اَحَدِنَا عَلَيْهِ قَالَ اَنْ تُطْعِمَهَا اِذَا اَطْعَمْتَ وَتَكْسُوْهَا اِذَا اكْتَسَيْتَ وَلَا تَضْرِبِ الْوَجْهَ وَلَا تُقَبِّحْ وَلَا تَهْجُرْ اِلَّا فِي الْبَيْتِ۔

"ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض او کړو چه زمونږ د بیبیا نو په مونږ څه حق دے! او ئے فرمائیل چه کله تاسو خوړئ نو دوی خوروئ او چه تاسو جامې اغوندئ نو دوی ته هم اغوندوئ او په مخ ئے مه وهئ

( مشکوٰة ص۲۸۱ ) | اوکه جدا کیدل ترې غواړئ نو صرف

دومره کوئ (چه بستره ترې جدا کوئ) مکان ترې مه جدا کوئ"

اوکوم چه یدے شریفانه سزا سره هم اونشي نو بیا ئې دَمعمولي وَهلو اجازت هم شته، خو داسې وهل چه په بدن ئې دَ وهلو څه اثر اونه شي، او هډوکے ئې هم مات نه شي او زخم پرې هم رانشي - او دَمخ وهل خو ئې مطلقًا منع کړي دي -

او لنئ دوه سزاګانې شریفانه سزاګانې دي، په دے وجه دَ انبیاؑ او نیکانو نه قولًا هم دَ دے اجازت نقل شوے دے، او په دے باندے عملً هم دَ دوی نه ثابت دے - او دریمه سزا یعنی وَهَل اګر چه دَ مجبورئ په حالت په یو خاص انداز سره سړی ته دَدے اجازت ورکړے شوے دے، لیکن سره دَدے په حدیث کښے دا هم ارشاد دے: وَلَنْ یَّضْرِبَ خِیَارُکُمْ؛ یعنی ښهٔ سړے دَ وهلو سزا ښځو له نه ورکوی- نو په دے وجه دَ انبیاؑ نه چرته هم داعمل نه دے شوے -

اِبن سعد او بیهقي دَحضرت صدیق اکبرؓ دَ لور صاحبې نه داروایت نقل کړے دے چه اول سړی مطلق دَ ښځو دَ وهلو نه منع کړی شوی وُو، لیکن بیا ښځے زړه ورے شو نو دوباره دا اجازت اوُشه -

دَ ذکر شوی ایات تعلق هم دَ دے قسم یو واقعے سره دے چه دَ دے شان نزول دادے چه زید بن زبیرؓ دَ خپلے لور حبیبےؓ نکاح دَ حضرت سعد بن ربیعؓ سره کړے وُه - دَدے دواړو ښځے خاوند په مینځ کښے څهٔ اختلاف راغے خاو نه ورلره یو څپیړه را خلاصه کړه حبیبےؓ خپل پلار ته شکایت اوکړو پلار دا دَ حضور صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضره کړه حضورؐ حکم اوکړو چه حبیبےؓ ته داحق حاصل دے چه په څومره زور سره سعد بن ربیعؓ دے لره څپیړه ورکړے ده په هومره زور سره ئې دا په څپیړه اووَهی -

دے دواړه و پلار لوُر چه دا حکم واوُرید نو روان شو چه دَ سعد بن ربیع نه دَ حکم مطابق خپل بدل واخلي - لیکن عین په دغه وخت کښے دا ذکر شوے ایات نازل شو چه په دے کښے ئې په اخري درجه کښے سړی ته دَ ښځے دَ وهلو اجازت ورکړو، او دَ سړی نه دَ قصاص یا بدل اغستو اجازت ئې ورنه کړو - نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا دواړه واپس کړل او دا حکم ئې ورته واوُراوُه - او دَ بدل اغستو اوّ لنے

حکم ئے منسوخ کړو.

د آیات په آخر کښې ئے ارشاد او فرمایه چه په دے درېو تدبیرونو که دوی تابعدارے شوے نو بیا پرے تاسو هم سترګے پټوئ او په معمولی خبرو پسے د هغوی د الزام لارې مه تلاش کوئ، او پوهه شئ چه د الله تعالیٰ قدرت په تاسو ټولو باندے زیات دے.

**د مضمون نچوړ** د دے آیات نه په بنیادی حیثیت سره چه کومه خبره مخے ته راځی، هغه دا ده، چه د تیرو آیاتونو د بیان مطابق د ښځو او سړو حقونه یو شان دی. بلکه د ښځو د حقونو ادا کولو ئے زیات اهتمام په دے وجه کړے دے چه هغوی د سړو په نسبت باندے کمزورے دی. خپل حقونه د خپلو متو په زور د سړو نه نشی حاصلولے، خو د دے برابرئ دا معنیٰ نه ده چه په ښځه سړی کښې دے د درجے د غوره والی څه فرق نه وی بلکه د حکمت او انصاف په تقاضا سره ئے سړی په دوه وجهو په ښځو باندے حاکمان جوړ کړی دی.

اول خو د سړو جنس ته د خپل علمی او عملی کمالاتو په اعتبار سره د ښځو په جنس باندے یو خدائے ورکړے غوره والے او اوچتوالے حاصل دے، چه د دے حاصلول د ښځے د جنس د پاره ممکن نه دی، که چرته خال خال اتفاقی واقعات وی نو دا خبره ځانله ده.

دوهم دا چه د ښځو ټول ضروریات پوره کول سړے په خپله ګټه او خپل مال سره کوی، اول ئے سبب خاص د خدائے ورکړه دی کوم چه په اختیار کښې نه دے. دوهم کسبی او اختیاری دے. او دا هم وئیلے شی چه د یو مورو پلار په اولاد کښې بعضو له حاکم او بعضو له ماتحت (محکوم) جوړه ولو د پاره د عقل او انصاف په بنا سره دوه څیزونه ضروری وُو. یو دا له چه حاکم جوړه ولے شی په هغه کښې د علم او عمل په اعتبار سره د حاکمیت صلاحیت، دوهم د هغه په حاکمیت باندے د محکوم رضامندی. نو اول ئے سبب د اخبره په ډاګه کوی چه د حاکمیت صلاحیت په سړی کښې دے، او دوهم سبب د محکوم (ماتحت) رضامندی، ځکه چه د نکاح په وخت کښې کله د خپل مهر او نان نفقے د ذمه وارئ په شرط باندے د نکاح اجازت ورکوی، نو د سړی د دے حاکمیت له منظوره وی.

غرض دا دے چه دَ آیات په اوله جمله کښے دَ کورنی نظام یو بنیادی اصول اوخودلے شو- چه که په اکثرو څیزونو کښے حقو نه برابر هم دی خو بیا هم سړی لره په ښځه باندے یو حاکمیت اوغوره والے حاصل دے او ښځه محکومه او تابع ده -

دَ دے بنیادی اُصولو لاندے په عملی دنیا کښے دَ ښځو دوه طبقے شوے یو ه طبقه هغه چا چه دَ دے بنیادی اُصولو او خپلے معاهدے پابندی اوکړه او دَ سړی حاکمیت ئے اومانه تابعداره شوه -

دویمه طبقه هغه ده چه پدے اصولو باندے ولاړه پاتے نه شوه - نو اوله طبقه دَ کورنی امن او اطمینان پخپله کفالت کوی ، دے ته دَ هیڅ قسم اصلاح حاجت نیشتے،

دَ دویمے طبقے دَ اصلاح دَ پاره دَ آیات په دویمه جُمله کښے یو داسے جوړ کړے شوے نظام او خودے شو چه دَ دے په ذریعه دَ کور روغوالے (اصلاح) په کور کښے دننه اوشی' او دَ ښځے خاوند جګړه دَ دے دواړو په خپل مینځ کښے خوره شی - دَ چا بل کس مُدا خلت کَولو ته پکښے ضرورت رانشی - په دے کښے ئے سړو ته داسے خطاب اوفرمایه چه که په ښځو کښے دَ نا فرمانئ کولو یا حکم نه منلو څهٔ کمی اووینئ نو دَ تولو نه اول دَ دے دَ پوهه کَولـــو کوشش اوکړئ که په دے سره کار اوشو خو معامله ختم شوه، ښځه دَ ګناه نه او سړے دَ زړهٔ دَ آزار نه بچ شو -او که په پوهه کولو سره کار اونه شو نو دویمه درجه داده چه دَ دے دَ پوهه کولو او خپل خفګان ښکاره کولو دَ پاره په جُدا بستره کښے څملئ ، دا یو معمولی سزا او غوره پوهه کول دی، که په دے سره هم کار اونه شو او دا بیا هم دَ خپل خوئی نه را اونه ګرځیده ، نو په دریمه درجه کښے ئے دَ معمولی وهلو هم اجازت ورکړو ، دَ دے وهلو حد دا دے چه دَ دے په بدن دَ وهلو څهٔ اثر او زخم اونه شی- لیکن دَ دے دریمے درجے دَ سزا استعمالول نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه دی خوښ کړی، بلکه فرمائیلی ئے دی چه ښهٔ او شریف خلق داسے نه کوی -

بهرحال په دے معمولی وهلو سره هم که معامله برابر شوه نو بیا هم مقصد حاصل شو- په دے باره کښے چه سړو ته دَ ښځو دَ روغولو دَ پاره دا درے اختیارات ورکړی شوی

---

دی دلته ئے دا هم فرمائیلی دی ؛ فَإِنْ أَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوا عَلَيْهِنَّ سَبِيلًا : یعنی که په دے دړے نمبری خبرو کولو سره دوی ستا سو خبره اومنی نو اوس تاسو دَ دینه زیاتی دَ دُوړګے نه روګک مه اوباسئ او زیاتی الزامونه پورے مه تړئ بلکه سترګے پټوئی او دَ تحمل نا ښکاره کوئ'

او بنهٔ یو حه شئ چه الله تعالیٰ تاسو لره په ښځو باندې لوئی درکړیده نو که الله تعالیٰ لوئی پتاسو باندې مسلّط ده که تاسو زیاتې اوکړو نو سزا به ئې تاسو ته کړي۔

که جګړه اوکړه شي نو دواړه طرفته دې د خپلوئ په فیصله کونکو صلح اوکړي داخو هغه نظام وه چه د کور جګړه به کور کښې ختمه شي۔ لیکن بعض وخت جګړه اوکړه شي، یا ښځه سرکشي کوي او یا سړے بے وجه سختي کوي۔ په هرحال په دې صورت کښې د کور خبره باهرته وتل لازمي وي، لیکن د عام عادت مطابق داسې کیږي چه د ښځې طرفدار سړي ته او د سړي طرفدار ښځې ته بدې ردې وائي او الزامونه لګوي۔ او نتیجه ئې داشي چه دواړه طرفته را اوپاریږي او د دوه وو تنو جګړه د خاندانی جګړې صورت اختیار کړي۔

په دې دویم آیات کښې قرآن کریم د دې لوئې فساد د دروازې بنده ولو د پاره د وخت حاکمانو او د دواړو جانبو مشرانو او طرفدارانو او ټولو مسلمانانو ته خطاب اوکړو یو داسې پاکیزه طریقه ئې اوخوده چه په دې سره به د دواړو فریقو راپاریدل هم ختم شي او په یو بل د الزامونو لګولو لړ به هم بنده شي او د دوی په مینځ کښې به د صلح لار را اوځي، او د کور جګړه که په کور کښې ختم نه شوه نو کم نه کم په خاندان کښې خو به ختمه شي۔ عدالتونو او کوڅو بازارونو ته خو به اُونه وځي۔

او هغه دا چه حکومت یا د فریقینو مشران یا عام مسلمانان دې داسې کار اوکړي چه د دوی (ښځې خاوند) په مینځ کښې د د صلح راوستو د پاره دوه فیصله کونکي مقرر کړي، یو د سړي د خاندان نه بل د ښځې د خاندان نه۔ او دلته قرآن کریم د حَکَمْ په لفظ راؤړو او سره د دې دواړو سره ضروري صفتونه هم اوخودل، چه په دې دواړو کښې دې د جګړو د فیصله کولو صلاحیت موجود وي، او دا صلاحیت ښکاره خبره ده چه په هغې سړي کښې کیدے شي چه د علم خاوند وي او دیندار وي،

لنډه دا چه یو حَکَمْ د سړي د خاندان نه او یو حَکَمْ د ښځې د خاندان نه دې مقرر کړي او په دې دواړو ښځه خاوند پسې دې اولیګي۔ او س چه دوی دواړه هلته لاړشي نو څهٔ بکوي او د دوی اختیارات څهٔ دي، قرآن کریم د دې خود نه نه ده کړے۔ البته په آخر کښې ئې یو جمله ارشاد اوفرمائیله: اِنْ یُّرِیْدَآ اِصْلَاحًا

يُوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا؛ يعنې که دا دواړه روغه راوستونکي دحالاتو برابرول اوکړي دے
دواړو د صلح راوستو اراده اوکړي نو الله تعالیٰ به ددوی پکار کښې اِمداد اُو فرمائي
او د ښځې خاوند په مينځ کښې به اتفاق پيدا کړي۔

د دے جُملے نه دوه خبرے معلومے شوے اول دا که مصلحت راوستونکي دواړه
حَكَمَيْن په نيک نيت سره وي او په زړۀ سره غواړي چه د دوی صلح اوشي نو الله تعالیٰ
به ورسره غيبي امداد اوکړي او دوی به پخپل مقصد کښې کامياب شي او د دوی په
زريعه به الله تعالیٰ د ښځې خاوند په زړونو کښې اتفاق او محبّت پيدا کړي۔ نو د دے
په نتيجه کښې دا هم ګنړلے شي چه کوم ځائے کښې صلح رانشي نو د صلح راوستونکو
په يو جانب کښې د اخلاص کمے وي۔

دويمه خبره د دے جملے نه دا هم معلوميږي چه د دے دواړو صلح راوستونکو
د ليږلو مقصد د ښځې خاوند په مينځ کښې صلح کول دي د دے نه سوا بل څۀ
مقصد د دوی په ليږلو کښې شامل نه دے۔ دا بله خبره چه فريقين راضي شي
او دے دواړو صلح راوستونکو لره خپل وکيلان يا ثالثان جوړ کړي او دا اُومني
چه تاسو دواړه يو ځائے شئ او کومه فيصله چه هم زمونږ په حق کښې تاسو اوکړه
مونږ ته به منظوره وي۔ په دے صورت کښې به دا دواړه روغه راوستونکي د
دوی په معامله کښې د فيصلے کولو اختيارمند شي۔ که دواړه په طلاق متفق شي
نو طلاق به اوشي او که د دواړو اتفاق په خلع وغيره راشي نو د سړي د طرفه د
ورکړې شوي اختيار په بنا به ښځې لره طلاق ورکړي او فريقين به ئے مني۔ په اماما نو
کښې د حسن بصريؒ او امام ابو حنيفهؒ تحقيق دا دے (روح المعاني وغيره)

د حضرت علي کرّم الله وجهه په وړاندے يو داسے واقعه راغله په دے کښې هم د
دے شهادت موجود دے چه دے دواړو حَكَمَيْنو ته پخپله څۀ اختيار بغير د صلح کولو
نه نيشته ترڅو چه فريقين دوی لره کلّي اختيار ورنکړي۔ دا واقعه په سننِ بيهقي کښې
په روايت د عبيده سلماني داسے ذکر ده:

يو سړے او يوه ښځه د حضرت علي کرم الله وجهه په خدمت کښې حاضر شو، او
د دواړو سره پوره پوره خلق وُو۔ حضرت علي کرم الله وجهه حکم اوکړو چه يو
حَكَم د سړي د خاندان نه او يو د ښځې د خاندان نه مقرر کړئ هرکله چه دا حَكَمَيْن

مقرر شو نو دے دواړو ته ئے خطاب او فرمایه چه تاسو پوهیږئ چه ستاسو ذمواری څۀ ده، او تاسو لره څۀ کول پکار دی؟ وا اورئ! که تاسو دا دواړه ښځه خاوند یو ځائے کول او د دوی دواړو په مصلحت را وستلو باندې متفق شوئے نو دا سے او کړئ او که تاسو دا معلومه کړئ چه په دوی کښے مصالحت نشی کیدے یا قائم نشی پاتے کیدے او ستاسو د دواړو په دے اتفاق راشی چه د دوی جدا کول غوره دی نو دا سے او کړئ. چه دا ئے واوریدل نو ښځے اووے چه ما ته منظوره ده. دے دواړو فیصله کونکو چه د الله تعالیٰ د قانون مطابق هر څه فیصله اوکړۀ که ځما د رضا مطابق وی او که خلاف ما ته منظوره ده -

لیکن سړی اووے چه جدائی او طلاق خو زۀ په هیڅ حال کښے نه قبلوم البته دے فیصله کونکو لره دا اختیار ورکوم چه په ما مالی تاوان هرڅو مره چه غواړی وا دِ چوی خو دا دِے راضی کړی -

حضرت علی کرم الله وجهه او فرمائیل چه نا تۀ به هم دے حکمینو لره هم دغسے اختیار ورکوے لکه څنګه چه دے ښځے ورکړو -

د دے واقعے نه بعضے مجتهدینو دا مسئله را ویستلے ده چه حکمین با اختیاره کول ضروری دی لکه چه حضرت علی کرم الله وجهه فریقینو ته اووے او دوی ئے با اختیاره جوړ کړل - او حضرت امام ابو حنیفةؒ او حسن بصریؒ فرمائی چه که د حکمینو با اختیاره کیدل شرعی کار وے او ضروری وے نو د حضرت علی کرم الله وجهه د دے ارشاد او د فریقینو نه د رضامندئ حاصلولو هډو څه ضرورت نه وُو — فریقینو لره د رضامند کولو کوشش پخپله د دے خبرے دلیل دے چه په اصل کښے دا حکمین با اختیاره نه وی البته که ښځه خاوند ورلره اختیار ورکړی نو بیا به با اختیاره شی -

د قرآن کریم د دے تعلیم نه د خلقو په مینځ کښے د جګړو او مقدمو فیصله کولو متعلق د یو نوی باب اضافه اوشوه او دا چیره د فائدے خبره ده - چه د دے په ذریعه د عدالت او حکومت ته د رسیدو نه وړاندے د ډیرو جګړو او مقدمو فیصله د خپلوانو په ثالثئ سره کیدے شی - (او د عدالتونو او محکمو د ځغلو نه بچ خلق خلاصیدے شی خو هله چه د قرآن په دے تعلیم عمل اوشی) -

په نورو جګړو کښې دِهم دَحکم په ذریعه مصالحت کولے شي

فقهاؤ حضراتو فرمائیلي دي چه په خپلو منځ کښې دَصلح کولو دَپاره دَدوه وُو حکمانو دَ لیږلو دا تجویز صرف دَ ښځې خاوند په جګړو پورې محدود نه دے بلکه په نورو جګړو کښې هم دَدینه کار اغستے شي - او پکار دي چه کار ترې واغستے شي - او خاصکر چه جګړه دَ خپلوانو په منځ کښې وي ، ځکه چه په عدالتي فیصلو سره وقتي جګړه خو ختمه شي لیکن دَغه فیصلے په زړونو کښې خړوالے او دَ دشمنو جرائیم پاتے کړي چه وروستو بیا ډیر په ناکاره شکلونو کښې ښکاره کیږي -

حضرت فاروقِ اعظمؓ خپلو قاضیانو ته دا سے فرمان جاري کړے وُو چه :

رُدُّوا الْقَضَاءَ بَيْنَ ذَوِى الْاَرْحَامِ حَتّٰى يَصْطَلِحُوْا فَاِنَّ فَصْلَ الْقَضَاءِ يُوْرِثُ الضَّغَائِنَ -

(معین الحکام صـ۲۱۴)

" دَ رشته دارانو مقدمے په دوی کښې واپس کوئ چه دوی خپله دَ رورولۍ په امداد سره په خپل منځ کښې دَصلح صورت راوباسي ځکه چه دَ قاضیانو فیصله په زړونو کښې کینه او دشمني پیدا کوي "

په حنفي فقهاؤ کښې قاضي قدس علاؤ الدین طرابلسي په خپل کتاب معین الحکام کښې ، او ابن شحنه په لسان الحکام کښې دا فاروقي فرمان دَ داسے خپلوۍ دَ فیصلو خاص بنیاد جوړ کړے دے دَکوم په ذریعه چه دَ فریقینو په رضامندۍ سره دَصلح څه صورت راویستلے شي - او دَ دے سره ئے دا هم لیکلي دي چه اګر چه دا فاروقي فرمان دَ خپلوانو دَ جګړو متعلق دے مګر دَ دے چه کوم علت او حکمت په دے فرمان کښې ذکر دے چه عدالتي فیصلے په زړونو کښې خړوالے پیدا کوي دا حکمت په رشته دارو او غیر رشته دارو کښې عام دے ځکه چه په خپل منځ کښې دَ زړه بدي او دشمني نه عام مسلمانان بچ کول پکار دي - په دے وجه دَ حاکمانو او قاضیانو دَپاره مناسب دا دي چه دَ مقدمو دَ آوریدو نه وړاندے دَ دے کوشش کوي چه په څه صورت سره دَ دوی په منځ کښې په رضامندۍ سره صلح اوشي -

غرض په دے دوه وُو آیاتونو کښې ئے دَ انسان دَ کورنۍ او خانداني ژوند دَپاره داسے جامع او مکمل نظام ارشاد او فرمایه چه که په دے باندې پوره عمل اُوشي

نو د دنیا اکثر جنګونه او جګړې به ختم شي، سړی او ښځه تول به بیګ په اطمینان سره خپل کور ته ژوند وکړي د یو جنت په مثل تېره وي - او ټول جګړې او جګړې به ختم شي د امن او امان ژوند به شي -

په آخر کښې بیا په دې عجیبه او ښکلي قرآني محکم نظام یو سر سری نظر واچوئ کوم چه ئې د کور نو جګړو ختمولو د پاره دنیا له ورکړے دے -

۱: د کور جګړه په ترتیب وار تدبیرونو سره دے پکور کښې ختم کړے شي -

۲: که دا سې نه شوه کیدے نو حکیمان یا د خپلو خلق دے کړدوه ډو فیصله کوونکو (حکمینو) په ذریعه د دوی په مینځ کښې صلح اوکړی چه که پکور کښې نه وی نو چه په خاندان کښې دننه خو جګړه ختمه شي -

۳: کله چه دا هم او نه شي نو په آخر کښې دے معامله عدالت ته وړاندے کړې شي چه به د دواړو حالاتو او معاملې تحقیق اوکړی عادلانه فیصله ئې اوکړی -

د آیات په آخر کښې: إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلِيمًا خَبِيرًا ﴿۳۵﴾ ئې او فرمائیل د دواړه حکمین ئې هم خبردار کړه چه تاسو که بے انصافي یا ورانے اوکړئ نو تاسو به هم د یو علیم او خبیر سره مخامخ کیږئ د چا مخ ته وړاندے کړئ -

وَاعْبُدُوا اللَّهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا ۖ وَبِالْوَالِدَيْنِ

او بندګي کوئ د الله او مه شریکوئ د ده سره هیچا له او د مور و پلار سره

إِحْسَانًا وَبِذِي الْقُرْبَىٰ وَالْيَتَامَىٰ وَالْمَسَاكِينِ وَالْجَارِ

نیکي کوئ او د خپلوانو سره او یتیمانو سره او فقیرانو او ګاونډیانو

ذِي الْقُرْبَىٰ وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْبِ وَ

نژدے او ګاونډیانو پردو او د خوا کیناستونکو او

ابْنِ السَّبِيلِ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ

مسافرانو سره او د خپل لاس د مال یعنې غلامانو وینځو سره - بے شکه الله نه خوښوي

مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا ۝۳۶ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَأْمُرُوْنَ

لوئی کونکے تکبر کونکے - کوم چه بخل کوی او امر کوی

النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَيَكْتُمُوْنَ مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ

خلقو ته د بخل او پټوی څه چه دوئ له ورکړی دی الله د خپل فضل نه -

وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ۝۳۷ وَالَّذِيْنَ

او تیار کړی دے موږ د کافرانو دپاره عذاب د ذلت - او هغه خلق کوم

يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ

چه خرچ کوی مالونه خپل خلقو ته د ځان خودلے دپاره او ایمان نه لری په الله

وَلَا بِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ وَمَنْ يَّكُنِ الشَّيْطٰنُ لَهٗ قَرِيْنًا

او نه په ورځ د قیامت - او د چا چه ملګرے شو شیطان نو دے ډیر

فَسَآءَ قَرِيْنًا ۝۳۸

ناکاره ملګرے دے -

**د آیاتو تړون** په دے سورت نساء کښے د شروع نه تا سو وینئ چه په دے کښے زیات اهتمام د بندګانو د حقونو شوی دے - د سورت د شروع نه تر دے ځائے پورے د عام انسانانو د حقونو سرسری ذکر کولو نه پس د یتیمانو او ښځو د حقونو ذکر وه او په دے کښے د کوتاهی کونکو دپاره د سزا وعده - او د ښځو او بچو په باره کښے چه کوم ظالمانه رسمونه په دنیا چلیده د هغے د اصلاح او بیا د وراثت د حقونو بیان دے - او س د مور و پلار او نورو خپلوانو او تعلق دارانو او ګاونډیانو او د عام مخلوق د حقونو څه په تفصیل سره بیان راځی - او چونکه دا حقونه په کماله وجه سره هغهٔ سړے ادا کولے شی

چه په الله تعالیٰ او په رسول ﷺ او په قیامت عقیده مضبوطه لري، او د ریا او د بخل
کبر او ریاء نه ځان ساتي، ځکه چه دا کارونه هم د دغو خبرو د اولو لپاره مانع جوړېږي
شي - په دې وجه چه په دې آیاتو کښې د توحید او د الله تعالیٰ د یو والي، ترغیب
او ترهیب څه مضامین بیان او فرمائیل او د شرک، د قیامت نه د انکار، د رسول
د نا فرماني، د بخل وغیره ناکاره اخلاقو بد والے ئې هم ذکر کړے دے.

## لنډ تفسیر

اوتاسو د الله عبادت اختیار کړئ (په دې کښې توحید هم داخل دے) او د ده سره
څه شي لره (خواه انسان وي او که غیر انسان وي، په عبادت کښې یا د هغه په خاصو
صفتو کښې په عقیده کښې) مه شریکوئ او د (خپلو) مور و پلار سره ښه معامله
کوئ او د (نورو) خپلوانو سره هم او د یتیمانو سره هم او د غریبانو سره
هم او د نزدې کلي والو سره هم او د لرې کلي والو سره هم او د خپل مجلس سره
هم (خواه دغه مجلسي همیشه وي لکه د اوږد سفر ملګرے یا په یو مهام کار کښې
شراکتي، یا عارضي وي لکه د لنډ سفر ملګرے یا په ناڅاپه جلسه کښې شریک شوي)
او د لارې تلونکي سره هم (خواه که ستا خاص میلمه وي او که نه) او د هغو
(غلامانو وینځو) سره هم کوم چه (شرعاً) ستاسو په مالکانه قبضه کښې وي (غرض
د دې ټولو سره ښه معامله کوئ چه تفصیل ئې په بله موقع شریعت خودلے دے
او کوم خلق چه دا حقونه نه ادا کوي اکثر د دې څو سببونه وي. یا په کښې تکبر
وي چه د چا څه پرواه نه ساتي او هیچا ته ګوري نه! یا بخیلان وي چه مال ئې
په څه ورکولو سره ساه خېژي، او یا ئې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره عقیده
نیشته، چه د ده د حکمونو او د حقونو ادا کولو د ثواب د وعدو او د حقونو نه ادا کولو
سره د عذاب وعدو لره صحیح او ګڼړي. او دا کفر دے. او یا د دوي عادت د ځان
خودلو او نوم پیدا کولو دے، نو کوم ځائې چه نمائش کیږي هلته ئې ورکوي اګر چه
حق نه وي، او کوم ځائې چه نوم نمائش نه کیږي هلته ئې د ورکولو همت نه وي اګر
که حق وي، او یا د دوي په خدائې پاک باندې عقیده نیشته، او یا قیامت
نه مني، او دا هم کفر دے. په دې وجه په دې ترتیب سره څوک چه دا کارونه کوي

دَدوی حال هم داؤ دی چې بے شکه الله تعالیٰ دَدا سے خلقو سره محبت نه ساتی کوم چه (په زړه کښې) ځان لوئے گنړی (په ژبه سره) دَ لوئی خبرے کوی کوم چه بخل کوی او نورو خلقو ته هم دَ بخل خودنه کوی (خواه په ژبه سره یا داسے چه نور خلق دوی ته گوری نو هغوی هم بخل اِزده کوی) او دوی هغه شے پټوی کوم چه الله تعالیٰ دوی لره دَ خپل فضل نه ورکړے دے (دَدے نه مراد یا مال دولت دے چه دَ حفاظت په وجه نه بلکه محض دَ بخل په وجه ئے پټوی چه حقداران ترے طمع اونه کړی، یا مراد ترے دَدین علم دے چه یهودو به دَ رسالت خبرے پټولے پس بخل به عام شی، پس په دے کښے بخیلان او دَ رسالت نه منکوان دواړه داغله) او مونږ دَ داسے نا شکرو دَ پاره (کوم چه دَ مال دَ نعمت یا دَ رسولؐ دَ راتلو دَ نعمت حق اونه پیژنی) سپکوونکے سزا تیاره کړے ده او کوم خلق چه خپل مالونه خلقو ته دَ ځان خودو دَ پاره خرچ کوی او په الله تعالیٰ او په اخری ورځ (یعنی دَ قیامت پورځ) عقیده نه ساتی (دَدوی هم دغه حال دے چه دَ الله تعالیٰ دَ دوی سره محبت نیشته) او (خبره داده چه) شیطان چه دَ چا ملگرے وی (لکه دَ دے ذکر شوو خلقو چه دے) نو دے دَ دوی ناکاره ملگرے دے (چه داسے مشوره ورکوی چه دَ هغے انجام سخت ضرروی)۔

# مَعلومَات اومَسئلے

دَحقوقو دَ بیان نه وړاندے دَ توحید ذکر وَلے دے؟ | دَحقوقو دَ تفصیل نه وړاندے دَ الله تعالیٰ دَ حکم منلو او عبادت او دَ توحید (دَ خدائے تعالیٰ دَ یو والی) مضمون په دے شان سره ارشاد فرمائی: وَاعْبُدُوا اللهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا؛ یعنی دَ الله تعالیٰ عبادت کوئ او دَ هغهٔ سره هیڅ لوره په عبادت کښے مه شریکوئ۔

دَحقوقو دَ بیان نه وړاندے دَ عبادت او توحید مضمون ذکر کولو کښے دا حکمت دی۔ چه په دوی کښے یو دا دے چه دَ کوم سړی سره دَ الله تعالیٰ یره او دَ هغهٔ دَ حقوقو اهتمام نه وی۔ نو دَ هغهٔ نه په دَ دنیا دَ بل چا دَ حقوقو ادا کولو څه اُمید اولرلے شی۔ دَ دورولی یا سوسائټی دَ شرم، یا دَ حکومت دَ قانون نه دَ ځان بچ کولو دَ پاره په زړه کوونو لارے چارے لټوی۔ هغه شے کوم چه انسان لره دَ انسانی حقوقو پوره

کولو ته په پټه او په ښکاره مجبوره کوي هغه صرف د الله تعالیٰ ویره او تقوی ده، او دا د خدائ ویره او تقوی په خدائ یو گڼلو (یعني توحید) سره حاصلیږي.
په دې وجه ئې د مختلفو تعلقاتو او رشته دارو د حقونو د تفصیل نه اول د الله تعالیٰ د توحید او د هغهٔ د عبادت یاد دهاني مناسب وه -

| د توحید نه پس د مور و پلار د حقونو ذکر | د دینه پس ئې د ټولو رشته دارانو او تعلق دارانو نه اوّل د مور و پلار د حقونو بیان اوفرمایه |
|---|---|

او الله پخپل عبادت او خپلو حقونو پسې متصل د مور و پلار د حقونو په بیان کولو سره دې طرفته اشاره اوکړه چې په حقیقت کښې خو ټول احسانات او انعامات د الله تعالیٰ د طرفنه دي - لیکن د ظاهري اسبابو په اعتبار سره چرا وکتې شي نو د الله تعالیٰ نه پس د ټولو نه زیات احسانات په انسان باندې د دهٔ د مور و پلار دي ځکه چې په عامو اسبابو کښې د دهٔ د پیدائیښت سبب دوي دي - او د پیدا کیدو نه واخله تر ځوانیدو پورې څومره سختې مرحلې چې دي په دې ټولو کښې په ظاهري اسبابو سره مور و پلار د دهٔ د وجود او بیا د دهٔ د پرورش او لویدو ضامن دي - په دې وجه په قرآن کریم کښې په نورو ځایونو کښې هم د مور و پلار حقونه د الله تعالیٰ په عبادت پسې متصل بیان شوي دي - یو ځائې ارشاد دې:

| اَنِ اشْكُرْ لِي وَلِوَالِدَيْكَ | "یعني ما شکر ادا کړه او د مور و پلار شکر ادا کړه" |
|---|---|

بل ځائې ارشاد دې:

| وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا اللَّهَ وَبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا - | "او کله چې واغستلو مونږ وعده د بنی اسرائیلو نه چې عبادت مکوئ مګر د یو الله او د مور و پلار سره نیک سلوک کوئ" |
|---|---|

په دې دواړو ایاتونو کښې ئې د مور و پلار په معامله کښې دا نه دي فرمائیلي چې د دوي حقونه ادا کوئ یا د دوي خدمت کوئ، بلکه لفظ د احسان ئې راوړے دے - چې د دې په عامه معنیٰ کښې دا هم داخل ده چې د ضرورت مطابق د دوي په نفقه کښې خپل مال خرچ کوئ - او دا په کښې هم داخله ده چې څنګه ضرورت وي د هغې مطابق بدني خدمتونه ئې کوئ - دا په کښې هم داخله ده چې د دوي سره خبرې

کوئ نو په سخت آواز سره مکوئ، چه دَدوی بے ادبی پکښے او نه شی، او څه داسے کلمه په خوله مه راولئ چه دَدوی زړۀ ته پرِ آزار رسی - او دَدوی دَدوستانو او تعلق دارانو سره هم څه داسے سلوک مکوئ چه دَدوی زړۀ پرے آزاریږی - بلکه دوی ته دَ آرام دَ رسولو او خوشحالسا تلو دَ پاره هر ممکن کوشش کوئ - تردے پورے که مور و پلار دَ اولاد په حقو نو کښے کوتاهی هم کړی وی خو بیا هم اولاد ته دَ بد سلوکئ کولو حق نیشته -

حضرت معاذ بن جبل رض فرمائی چه ما ته نبی کریم صلے الله علیه وسلم لس وصیتونه فرمائیلی وُو - یو دا چه دَ الله تعالیٰ سره شریک مه جوړه وَه اګرکه تاځوک قتل کوی یا دِ په اور کښے سیزی ، دویم دا چه دَ خپل مور پلار نا فرمانی یا زړۀ آزاره وَ لَ مکوه ، اګرکه هغه در ته دا حکم او کړی چه ته خپل اهل او مال پاتے کړه -
(مسند احمد)

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ارشاداتو کښے چه څنګه دَ مور و پلار دَ حکم منلو او دَ دوی سره دَ ښهٔ سلوک کولو ډیر زور راغلے دے دغه شان پکښے دَ دے دَ بے انتها فضیلتونو او کډرجو دَ ثواب هم ذکر دے -

دَ بخاری او مسلم په یو حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کوم سړے دا غواړی چه دَ دهٔ په رزق او عمر کښے دے برکت وی نو دهٔ له پکار دی چه صلهٔ رحمی ساتی یعنے دَ خپلو خپلوانو حقونه ادا کوی -

دَ ترمذی په یو روایت کښے دی چه دَ الله تعالیٰ رضا دَ پلار په رضا کښے دهٔ او دَ الله تعالیٰ ناراضه کول دَ پلار په ناراضه کولو کښے دی -

بیهقی په شعب الایمان کښے روایت کړے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کوم هلک دَ خپل مور و پلار حکم منونکے فرمانبردار وی دے چه کله خپل مور و پلار ته دَ عزت او محبت په نظر سره کوری نو په هر یو نظر سره دهٔ ته دَ قبول شوی حج ثواب ملاویګی -

دَ بیهقی په یو بل روایت کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ټول ګناهونه الله پاک معاف کوی لیکن کوم سړے چه دَ مور و پلار نافرمانی کوی او زړۀ ئے آزاره وی دے دَ آخرت نه وړاندے په دنیا کښے په قسم قسم آفتونو

کښې مبتلا کولے شی۔

**دَ خپلوانو سره دَ نیک سلوک تاکید**

په ایات کښې دَمور و پلار نه پس دَعامو خپلوانو یعنی دَ ټولو رشته دارانو سره دَ ښهٔ سلوک تاکید راغلے دے۔ دَ قرآن کریم یو جامع او مشهور ایات چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم به اکثر دَ خپلو خطبو په اخر کښې تلاوت فرمایه دا مضمون په دے شان سره بیان فرمائی:

اِنَّ اللّٰهَ یَاْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْاِحْسَانِ وَاِیْتَآءِ ذِی الْقُرْبٰی: یعنی الله تعالیٰ حکم کوی دَ ټولو سره دَ انصاف او ښهٔ سلوک کولو او دَ رشته دارانو دَ حقو نو ادا کولو، چه په دے کښې دَرشته دارانو سره دَ طاقت مطابق مالی او جانی خدمت کول هم داخل دی، او دَ دوی سره ملاقات او خبر اغستل ئے هُم۔

حضرت سلمان ابن عامر رض فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه دَ خیر خیرات عامو مسکینانو او فقیرانو ته په ورکولو کښې صرف دَ خیرات ثواب ملاویږی او که دَ خپلے صله رحمیٔ رشته دار له ئے ورکړی نو دوه ثوابونه دی یو دَ خیرات او صدقے بل دَ صلهٔ رحمیٔ، یعنی دَ خپلوانو دَ حقو نو ادا کولو (مسند احمد، نسائی، ترمذی)

په ذکر شوی ایات کښې ئے اول دَمور و پلار دَ حقو نو تاکید او فرمایه او بیا دَ عامو رشته دارانو۔

**دَ یتیم او مسکین حق**

په دریم نمبر کښې ارشاد فرمائی: وَالْیَتٰمٰی وَالْمَسٰکِیْنِ: دَ یتیمانو او مسکینانو دَ حقونو پوره بیان اګرچه دَ سورت په شروع کښې راغلے دے، لیکن دَدے دوباره دَرشته دارانو سره په یاده ولو کښې ئے دے طرف ته اشاره او فرمائیله چه دَلاوارثه بچو او بے څوکه خلقو امداد کول هم داسے ضروری او ګڼړی لکه دَ خپلو رشته دارانو امداد چه کوی۔

**دَګاونډی حق**

په څلورم نمبر کښې ارشاد فرمائی: وَالْجَارِ ذِی الْقُرْبٰی: او په پنځم نمبر کښې: وَالْجَارِ الْجُنُبِ: دَجار معنی دَه ګاونډی۔ په دے ایات کښې دَدے دوه قسمونه بیان شو۔ یو جار ذی القربیٰ بل جار جنب، دَدے دوه قسمونو په تشریح او تفسیر کښې دَصحابه کرامو قولونه مختلف دی:

عام مفسرين فرمائي چه دَ: جَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ: نه مراد هغه ګاونډی دے چه ستاد کور سره ئے متصل کور وی۔ او دَ: جَارِ جُنُبِ: نه هغه ګاونډی مراد دے چه ستاد کور نه په څۀ فاصله اوسی۔

حضرت عبد الله ابن عباس رضؓ فرمائي چه دَ: جَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ: نه هغه سړے مراد دے چه ګاونډی هم دے او رشته دار هم نو وغه شان په دۀ کښې دوه حقونه جمع شو۔ او دَ: جَارِ جُنُبِ: نه مراد هغه دے چه صرف ګاونډی دے رشته دار نۀ دے۔ په دے وجه دے په درجه کښې وروستے شو۔

بعضے مفسرين صاحبان فرمائي چه: جَارِ ذِي الْقُرْبَىٰ: هغه ګاونډی دے چه په اسلامی رورولۍ کښې داخل او مسلمان دے۔ او: جَارِ جُنُبِ: غير مسلمان ګاونډی دے۔

دَ قرآن الفاظ دا ټول معنے رانيسی او دَ حقيقت په اعتبار سره هم په درجه کښې فرق کيدل عقل منی۔ او دَ ګاونډی دَ رشته دار کيدو او غير رشته دار کيدو په اعتبار سره هم او دَ مسلمان او غير مسلمان کيدو په اعتبار سره هم،

او په دے دَ ټولو اتفاق دے چه ګاونډی نزدے وی او که لرے، رشته دار وی او که غير رشته دار، مسلمان وی او که غير مسلمان، په هر حال دَ دۀ حق شته په قدر دَ طاقت دَ دۀ امداد او خبر اغستل لازم دی۔

البته دَ چا حق چه دَ ګاونډی توب نه علاوه بل هم دے هغه دَ نورو ګاونډيانو نه په درجه کښې وړاندے دے۔ په يو حديث کښې ښکاره نبی کريم صلے الله عليه وسلم دا خبره په ډاګه کړے ده۔ فرمائي چه " بعضے ګاونډی هغه دے چه دَ هغه صرف يو حق دے بعضے هغه دے چه دوه حقونه ئے دی بعضے هغه دے چه دَ هغۀ درے حقونه دی۔ يو حق والا ګاونډی غير مسلمان دے چه رشته دار ی ورسره نه وی، دوه حقونو والا ګاونډی هغه دے چه ګاونډی هم وی او مسلمان هم وی۔ درے حقونو والا ګاونډی هغه دے، چه ګاونډی هم وی مسلمان هم او رشته دار هم"۔ (ابن کثير)

دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے چه جبرئيل امين هميشه ما ته دَ ګاونډی سره دَ امداد تاکيد کوی تو دے چه ما ګمان شوے دے چه شايد ګاونډی هم

د رشته دارانو پشان په میراث کښې شریک کولے شی (بخاری ومسلم)
د ترمذی او مسند احمد په یو روایت کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د یوے محلے په خلقو کښې د الله تعالیٰ په نزد د ټولو نه غوره او بهتر هغه سړے دے چه د خپلو ګاونډیانو په حق کښې ښه وی -
د مسند احمد په یو حدیث کښې دی چه یو ګاونډی لره په مړه ګیډه خوراک جائز نه دے تر هغے چه د ده ګاونډی ئی نهر وی -
د ملګری حق | په شپږم نمبر کښې ارشاد فرمائی: وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ: د دے لفظی معنیٰ ده "د خوا ملګرے" چه د سفر ملګرے پکښې هم داخل دے چه په ریل، جهاز، بس وغیره کښې خوا ته ناست وی - او هغه سړے پکښې هم داخل دے چه په یو عام مجلس کښې خوا ته ناست وی -
اسلامی شریعت لکه څنګه چه د نزدے او لرے همیشه ګاونډیانو حقوق واجب کړی دی، دغه شان ئے د هغه سړی حق هم واجب کړو کوم چه د لږ وخت د پاره په یو مجلس یا سفر کښې څوا کښې ناست وی - چه په دے کښې مسلمان او غیر مسلمان رشته دار او غیر رشته دار ټول برابر دی - د دوی سره ئے هم د ښه سلوک کولو خودنه او فرمائیله چه ادنیٰ درجه ئے داده چه ستا د څه خبرے یا کار نه ده ته آزار او نه رسی - مثلاً چه سګریټ سکی نو چه لوګے ئے د هغه طرفته ورخوشے نه کړی، پان خوری نو چه توکانړی د هغه طرفته نه توکی، داسے دے نه کینی چه هغه ته ځائے تنګ کړی -
د قرآن کریم په دے هدایت که خلق عمل شروع کړی نو د ریل ګاډو د مسافرانو ټولے جګړے به ختم شی - هر سړے دے په دے خبره ځان پوهه کړی چه ما ته صرف د یو تن د ځائے حق دے د دینه د زیات ځائے نیسلو حق م نیشته - په دے ریل کښې چه بل څوک ځما په خوا کښې دے، د هغه هم دومره حق دے څومره چه ځما دے
بعضے مفسرین صاحبان فرمائی چه په "صاحب بالجنب" کښې هر هغه سړے داخل دے کوم چه په څه کار یا کسب کښې ستا سره شریک دے، کاریګری، مزدوری، د دفتر نوکری، په سفر کښې په کور کلی کښې - دا ټول پکښې داخل دی او د ټولو حق د ملګرتیا شته - (روح المعانی)

**دَمسافرحق** په اُوُوَم نمبر باندے ارشاد فرمائی: وَابْنَ السَّبِيْلِ ؛ يعنی په لاره تلونکے مسافر - دَدے نه مراد هغه سړے دے چه دَسفر په دوران کښے تاسو لوه راشی، یا ستاسو میلمه شی - چونکه دَدے نا آشناسړی دلته څوک پیژ ندګلو والا نه وی - نو قرآن دَده دَاسلامی، بلکه دَ انسانی تعلق په وجه دَدهٔ حق هم پتاسو لازم کړو - چه په قدر دَطاقت دَدهٔ سره ښهٔ سلوک کوئے -

**دَوینځو غلامانو اودَ نوکرانو حق** په اتم نمبر کښے ارشاد فرمائی: وَمَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؛ دَ دِینه مراد مَلَکِیَتیٔ غلامان او وینځے دی - دَدوی ئے هم داحق لازم کړو چه دَدوی سره دَ ښهٔ سلوک معامله کوئ دَ طاقت په مطابق دَدوی په خوراک سکاک اوجامه پیزار کښے کوتاهی مَکوئے - او مَه دَدوی دَطاقت نه زیات کار په دوی ورآره وئے -

اګرچه دَ آیات الفاظ صحیح دلالت په غلامانو او وینځو باندے دے - لیکن دَ عِلّت دَ شریکوالی او دَنبی کریم صلے الله علیه وسلم دَارشاداتو په بِنَا باندے داحکمونه په نوکرانو خادمانو هم حاوی دی - چه دَدوی هم داحق دے - چه مقرره تنخواه او خوراک سکاک وغیره ورکولو کښے بخل او کوئ وخت مَه آړه وئے - او دَدوی دَطاقت نه زیات کار په دوی مه اچوئے -

**په حقونو کښے کوتاهی هغه خلق کوی چه په زړونو کښے ئے تکبّر وی** دَ آیات په آخر کښے ئے ارشاداو فرمایه: إِنَّ اللهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرًا ؛ يعنے الله تعالیٰ داسے سړے نهٔ خوښوی چه مُتکبّر وی او په خلقو باندے ځان بَړ ګنړی -

دَ آیات دا آخری جمله دَ تیرو تمامو بیانونو تکمله ده چه په تیرو آتهٔ وو قسمونو خلقو کښے دَ کومو دَ حقونو دَ پوره کولو چه تاکید شوے دے په دے کښے هغه خلق کوتاهی کوی دَ چا په زړونو کښے چه تکبّر او فخر غرور دے - الله تعالیٰ دے ټول مسلمانان دَدے نه په امان کړی -

دَ تکبر او دَجاهلیّت دَفخر دَسزا دَوعدے په باره کښے ډیر احادیث راغلی دی:

| | |
|---|---|
| عَنْ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِىَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ النَّارَ | دَ حضرت ابن مسعودؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه هغه سړے به جهنّم ته دَ همیشه دپاره) نه ځی |

اَحَدٌ فِیْ قَلْبِهٖ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ مِّنْ اِیْمَانٍ وَّ لَا یَدْخُلُ الْجَنَّةَ اَحَدٌ فِیْ قَلْبِهٖ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ مِّنْ کِبْرٍ (مشکوٰة ص۴۳۳)

د چا په زړه کښې چه د اوړې د دانې برابر ایمان وی - او جنت ته به داسې یو سړې داخل نه شی د چا په زړه کښې چه د اوړې د دانې برابر تکبر وی

په بل حدیث کښې د تکبر تعریف هم ذکر دے:

عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ رض قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰه علیه وَ سَلَّمَ لَا یَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ کَانَ فِیْ قَلْبِهٖ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ مِّنْ کِبْرٍ فَقَالَ رَجُلٌ اِنَّ الرَّجُلَ یُحِبُّ اَنْ یَّکُوْنَ ثَوْبُهٗ حَسَنًا وَنَعْلُهٗ حَسَنًا قَالَ اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰی جَمِیْلٌ یُحِبُّ الْجَمَالَ اَلْکِبْرُ بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ - (مشکوٰة ص۴۳۳ بحواله مسلم)

" د حضرت ابن مسعود رض نه روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی جنت ته به هغه سړے داخل نه شی د چا په زړه کښې چه یوه ذره تکبر وی په حاضرینو کښې یو سړی سوال اوکړو خلق غواړی چه د دوی کپړے ښے وی د دوی پیزار ښه وی (نو دا هم تکبر دے؟) دوی او فرمائیل چه تکبر حق رد کول دی او خلقو لره ذ لیل گنړل دی (ځان ښائسته کول تکبر نه دے ځکه چه خدائے ښائسته دے او ښائسته خوښوی) -

د دے نه پس په: اَلَّذِیْنَ یَبْخَلُوْنَ: کښې بیان دے چه کوم خلق تکبر کونکی وی دوی په واجبو حقوقو کښې هم بخل کوی خپلے ذمواری نه پیژنی او نورو خلقو ته هم د دے ناکاره صفت اختیاره ولو ترغیب ورکوی -

په ایات کښې د بُخل لفظ راغلے دے چه په عام عُرف کښې د مال نه لګولو او ساتلو د پاره استعمالیږی - لیکن د ایات د شان نزول نه معلومیږی چه دلته د بخل لفظ په عامه معنیٰ کښے استعمال شوے دے چه د مال بخل او علم بخل دواړو لره شامل دے -

د حضرت ابن عباس رض د روایت نه معلومیږی چه دا ایات د مدینے د یهودو په حق کښے نازل شوے وُو - دوی ډیر مغروره وُو - ځکه د رجه کنجوسان وو.

په مال خرچ کولو کښې به ئې هم بخل کاوه، او هغه علم به ئې پټاوه کوم چه دوی د خپلو الهامی کتابونو نه حاصل کړے وه - په دے کتابونو کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د راتلو زیرے وه - او د دوی د نښو ذکر پکښې هم وه لیکن هغوی په دے تهولو د یقین کولو نه پس هم د بُخل نه کار واغستو نه ئې خپله په دے علم باندے عمل اوکړو او نه ئې نورو ته او خودو چه هغوی پرے عمل کړے وے -

وړاندے ئې اوفرمائیل چه داسے خلق کوم چه د الله تعالیٰ په ورکړی مال دولت کښې هم بُخل کوی، او د علم او ایمان په معامله کښې هم بخیلان دی - داسے خلق د الله تعالیٰ د نعمت نا شکره دی - او د دوی د پاره سپکونکے عذاب تیار شوے دے -

د خرچ کولو د غوره والی او د بُخل د بَدوالی په باره کښې نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی :

عَنْ اَبِی هُرَیْرَةَ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ یَوْمٍ یُّصْبِحُ الْعِبَادُ فِیْهِ اِلَّا مَلَکَانِ یَنْزِلَانِ فَیَقُوْلُ اَحَدُهُمَا اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا وَیَقُوْلُ الْاٰخَرُ اَللّٰهُمَّ اَعْطِ مُمْسِکًا تَلَفًا -

(بخاری و مسلم)

"د حضرت ابو هریره رضه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی د هر سحر پوخت کښې دوه فرښتے نازلیږی په دوی کښې یو ه دا وائی اے الله د نیکئ په لاره کښې خرچ کونکی ته غوره بدله ورکړے او بله وائی اے الله د بخیل مال دولت تباه او برباد کړے"

---

عَنْ اَسْمَآءَ رض قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنْفِقِیْ وَلَا تُحْصِیْ فَیُحْصِیَ اللّٰهُ عَلَیْكِ وَلَا تُوْعِیْ فَیُوْعِیَ اللّٰهُ عَلَیْكِ وَارْضَخِیْ مَا اسْتَطَعْتِ -

"د حضرت اسماء رضه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی" اے اسماء! د نیکئ په لاره کښې خرچ کوه او په شمار لوئے مه ورکوه ورنه الله به هم ستا په باره کښې شمار شروع کړی، او د خرچ

(بخاري ومسلم)

کولو نه دځان ساتلو دپاره چېرزيان حفاظت مکوه، ورنه الله تعالیٰ به هم حفاظت کول شروع کړي، او کم نه کم څومره چې ستا نه کيدې شي خرڅ کوه منع مکوه"

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رض قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلسَّخِيُّ قَرِيْبٌ مِّنَ اللهِ قَرِيْبٌ مِّنَ الْجَنَّةِ قَرِيْبٌ مِّنَ النَّاسِ بَعِيْدٌ مِّنَ النَّارِ، وَالْبَخِيْلُ بَعِيْدٌ مِّنَ اللهِ بَعِيْدٌ مِّنَ الْجَنَّةِ بَعِيْدٌ مِّنَ النَّاسِ قَرِيْبٌ مِّنَ النَّارِ، وَالْجَاهِلُ سَخِيٌّ اَحَبُّ اِلَى اللهِ مِنْ عَابِدٍ بَخِيْلٍ -

(ترمذي)

"د حضرت ابوهُرَيره رض نه روايت دے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي سخي الله تعالیٰ ته هم نزدے دے جنت ته هم نزدے دے خلقو ته هم نزدے دے او د دوزخ نه لرے دے، او بخيل د الله نه هم لرے دے د جنت نه هم لرے دے د خلقو نه هم لرے دے او د دوزخ اور ته نزدے دے - او جاهل سړے چه سخي وي داو فرض ادا کوي او د حرامو نه ځان ساتي) د هغه بخيل نه غوره دے چه عبادت کندا دوي "

عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَصْلَتَانِ لَا تَجْتَمِعَانِ فِيْ مُؤْمِنٍ، اَلْبُخْلُ وَ سُوْءُ الْخُلُقِ - (ترمذي)

"د حضرت ابو سعيد رض نه روايت دے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي، دوه عادتونه چرته په مؤمن کښې نه شي جمع کيدے، بخل او بد اخلاقي -

په وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ سره دے د تکبر کونکو يو بل صفت او خودو، چه دا خلق د الله په لاره کښې پخپله هم خرڅ نه کوي او نورو ته هم د بخل ترغيب ورکوي البته خلقو ته د ځان خودو دپاره خرڅ کوي او چونکه دا خلق په الله او په ورځ د اخرت ايمان نه لري، په دے وجه د الله د رضا او د اخرت د ثواب

په نیت سره د خرچ کولو خوښه وسوال نه پیدا کیږي - دا سې خلق د شیطان ملګري دي - نو په دے وجه د دوي انجام به هم هغه وي کوم چه د شیطان وي، ځکه چه دوي د هغه ملګري شو۔

د دے ایات نه معلومه شوه چه لکه څرنګه په واجبو حقوقو کښې کوتاهي کول، بخل کول عیب او نقصان دے، دغه شان کوم خلق چه د ځان د خود د لو د پاره او په بے مقصده ځایونو کښې خرچ نه کوي دا هم ډیر ناکاره دي- هغه خلق چه خالص د الله تعالیٰ د پاره نهٔ بلکه خلقوته د ځان خودو د پاره نیکي کوي- د هغوي عمل د الله تعالیٰ په نزد قبول نه دے- او په حدیث کښې ئے دے ته شرک وئیلي دي:

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رض قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللهُ تَعَالىٰ اَنَا اَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ مَنْ عَمِلَ عَمَلًا اَشْرَكَ فِيْهِ مَعِيَ غَيْرِيْ تَرَكْتُهٗ وَشِرْكَهٗ۔

"د ابو هریره رض نه روایت دے چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلي د الله تعالیٰ فرمائي چه زهٔ د شرک نه بالکل بیزاره یم، کوم سړے چه څهٔ نیک عمل کوي او په دے کښې ځما سره بل څوک هم شریکوي نو زهٔ دغه عمل د دهٔ د شریک ته پاتے کوم او دے هم پاتے کوم چه دے پوهه شه او شرک ئے پوهه شه"

---

وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ اَوْسٍ رض قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلّٰى يُرَائِيْ فَقَدْ اَشْرَكَ وَمَنْ صَامَ يُرَائِيْ فَقَدْ اَشْرَكَ، وَمَنْ تَصَدَّقَ يُرَائِيْ فَقَدْ اَشْرَكَ۔

(احمد بحواله مشکوٰة)

"د شداد بن اوس رض نه روایت دے وائي چه ما د نبي کریم صلے الله عَلَيْهِ وسلّم نه آورېدلي دي چا چه مونځ اوکړو د ځان خودنے د پاره نو دهٔ شرک اوکړو، چا چه روژه اونیوه د ځان خودنے د پاره نو دهٔ شرک اوکړو، او چا چه څهٔ صدقه ورکړه د ځان خودنے د پاره نو دهٔ شرک اوکړو"

---

عَنْ مَحْمُوْدِ بْنِ لَبِيْدٍ رض اَنَّ

"د محمود بن لبید رض نه روایت دے چه

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَخْوَفَ مَا أَخَافُ عَلَيْكُمُ الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ، قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ وَمَا الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ؟ قَالَ الرِّيَاءُ۔

(احمد بحوالۀ مشکوٰة)

نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي ستاسو متعلق ټولو ډيره يره د وړوکي شرک کولو په باره کښې ده صحابوؤ تپوس اوکړو وړوکے شرک څۀ دے؟ دوئ اوفرمائيل چه وړوکے شرک ريآء ده۔

او د بيهقي په روايت کښې دا اضافه هم ده چه د قيامت په ورځ هر کله د نيکو عملونو ثواب تقسيميږي نو الله تعالیٰ به دے رياکارانو ته اوفرمائي:
"د دغې خلقو خوا له لاړ شئ کوم ته د خودنے د پاره چه په دنيا کښے تاسو نيک عمل کولو او اوګورئ چه آيا ستاسو د نيکو عملونو ثواب د دغوي سره شته"؛

وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوْا بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَ

او څۀ نقصان ؤ د دوي که ايمان ئے راوړے په الله او په ورځ د قيامت او

اَنْفَقُوْا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللهُ ؕ وَكَانَ اللهُ بِهِمْ عَلِيْمًا ﴿۳۹﴾

خرچ کولے ئے د الله د ورکړو نه - او الله د دوي نه ښۀ خبر دے۔

إِنَّ اللهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۚ وَإِنْ تَكُ حَسَنَةً

بے شکه الله ظلم نه کوي د يوے ذرے په مقدار - که نيکي وي نو

يُّضٰعِفْهَا وَيُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ أَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۴۰﴾

هغه دوچند کوي او ورکوي د خپل طرف نه لوئے ثواب۔

فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيْدٍ وَّجِئْنَا

بيا څۀ به حال وي هر کله چه راوغواړو موږ د هر امت نه حال بيانوونکي او را اوغواړو

بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيْدًا ﴿٤١﴾ يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ

تا لره په دے خلقو باندے حال ویونکے - په دغه ورځ به ارزو او کړی هغه

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَعَصَوُا الرَّسُوْلَ لَوْ تُسَوّٰى

خلق چه کافران دی او د رسول ﷺ نافرمانی ئے کړے ده چه برابر شوے د

ع ٦/٩/٢ بِهِمُ الْاَرْضُ ۭ وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴿٤٢﴾ ع

زمکے سره - او نه به شی پټولے د الله نه څهٔ خبره -

**د ایاتو نوترون** د دے نه په وړاندے ایاتونو کښے د خدائے نه د انکار او د اخرت نه د انکار او د بخل وغیره بد والے ذکر وه - او په دے ایاتونو کښے په خدائے او په اخرت باندے د ایمان او د الله تعالیٰ په لاره کښے د خرڅ کولو ترغیب ذکر دے - او په اخر کښے ئے د حشر په میدان کښے د اوږد ید و ذکر او کړو د دوی د ناکاره انجام نه ئے دوی او یره ول کوم خلق چه ایمان نهٔ راوړی او نیک عمل نهٔ کوی -

# لنډ تفسیر

او په دوی به څهٔ مصیبت نازل شی که دا خلق په الله تعالیٰ او په ورځ اخره (یعنی قیامت) باندے ایمان راوړی او الله تعالیٰ چه دوی لره څهٔ ورکړی دی د هغے نه څهٔ (په اخلاص سره) خرڅ کول کوی (یعنی هیڅ نقصان پکښے نیشته بلکه سراسر فائده او نفع ده) او الله تعالیٰ د دوی (ښهٔ او بد) لره ښهٔ پیژنی (پس په ایمان او د خدائے په لاره کښے په خرڅ به ورلره ثواب ورکړی او په کفر وغیره به عذاب) بے شکه الله تعالیٰ به یو ذرے په قدر هم ظلم او نه کړی (چه د چا ثواب او هم یا ورلره بے وجې عذاب ورکړی چه دا خو بسکاره ظلم دے) او (بلکه هغه خو دا سے رحیم دے چه) که یوه نیکی وی نو هغه به څو چنده کړی (ثواب به ورکړی لکه چه په نورو ایاتونو کښے ئے وعده ذکر ده) او (د دے وعده کړی شوی ثواب نه علاوه)

دَخپل طرف نه (بې دَ بدلې دَ عمل نه پَطور دَ انعام) لوئے اَجر (جُدا) ورکړي بس هغه وخت به هم څهٔ حال وي هرکله چه دَ هر يو امت نه يو يو ګواه حاضر کړو اوتا لوه په دے خلقو باندے (دَ کوم چه ستاسره سابقه پريوتے ده) دَګوا هئ کولو دَ پاره حاضر کړو (يعنې کوم خلقو چه دَ خدائے حکمونه په دنيا کښے نه وي منلې دَ هغوي دَمقدمے دَ پيشئ په وخت کښے به پَطور دَ سرکاري ګواه دَ اَنبياء عليهم السلامو نه بيانات اوريدے شي چه کومے معاملے دَ دوي په موجودګۍ کښے شوے وے ټولے ښکاره کړي دَ دے ګواهئ نه پس به په مخالفينو جرم ثابت شي سزا به ورکولے شي - بيره ئے فرمائيلي وو چه پَه غه وخت کښے به څهٔ حال وي وړاندے اوس دَ دغے حال بيان فرمائي چه) په دغه ورځ (به دا حال وي چه) کوم خلقو چه (په دنيا کښے) کفر کړے وي او دَرسول خبره ئے نه وي منلے هغوي به دَ دے خبرے اَرزو کوي چه کاش (دا وخت) مونږ دَ ځمکے سره پيوند شوے (چه دَ دے رُسوائئ او اَفت نه محفوظ شو) او (دَ ګواهئ نه علاوه پخپله به هم اقراري مجرمان وي ځکه چه) دَ الله تعالیٰ نه يوه خبره (کومه چه ترے په دنيا کښے شوے وي) به پټه نه کړے شي (نو له دواړه طرفه به په دوي جرم ثابت شي او سزا به پرے جاري کړے شي) -

# مَعلومَات او مَسئلے

په اوّلنۍ اٰيات کښے ئے او فرمائيل : وَمَا ذَا عَلَيۡهِمۡ لَوۡ اٰمَنُوۡا بِاللّٰهِ : يعنې دوي ته به څهٔ نقصان اورسي او څهٔ مصيبت به پرے راپريوځي که دا خلق په الله او په اٰخرت ايمان راوړي او دَ الله دَ ورکړي مال نه خرچ کوي، دا ټول اسان کارونه دي دَ دے کارونو په اختيارولو کښے هيڅ تکليف نيشته، نو بيا ولے دوي نافرماني کوي او خپل اٰخرت تباه کوي -

دَ دے نه پس ئے اُوفرمائيل : اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظۡلِمُ مِثۡقَالَ ذَرَّةٍ : يعنې الله تعالیٰ دَ هيچا دَ نيک عمل په ثواب کښے او په غوره جزا کښے دَ ذرّے په قدر کمے هم نه کوي بلکه دَ خپل طرف نه په دے کښے نور زياتے کوي او دَ اٰخرت ثواب به ورله په څو څو چنده زيات ورکوي - او دَ خپل طرف نه به ورته لوئے ثواب ورکړي -

دَ الله تعالیٰ په نزد دَ ثواب دَ کم نه کم اندازه داده چه دَ یوے نیکۍ په ځائے لس نیکئ شي، او دا دے نه علاوه په مختلفو بڼو سره څو څو چنده ئے زیاتوی دَ احادیثو دَ روایتونو نه معلومیږي چه څهٔ عملونه داسے دي چه ثواب ئے تر لاکهٔ چنده ته زیاتولے شي، او دَ الله تعالیٰ ذات خو کریم ذات دے هغه ئے بیحد بے اِنْتِهَا رحمت سره دومره زیات ثواب ورکوی چه بحساب او شمار کښے هم نه شي راتلے: ﴿وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾: هغه لوئے اجر به څهٔ په تصور کښے راشي کوم چه دَ ربّ العزت دَ دربار نه ملاویږي: ﴿وَ يُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا عَظِيْمًا﴾: "او ورکوی دَ خپل طرف نه اجر ډیر لوئے"۔

په آیات کښے چه کوم لفظ دَ: ﴿ذَرَّةٍ﴾: راغلے دے۔ دَ دے یوه ترجمه خو معلومه ده چه وړاندے تیره شوه۔ او بعضے حضرات وائي چه ذَرَّة دَ تهولونه ورکوتی سُور رنګی میګی ته وئیلے شي۔ هر بیانونو به دَ کم او سپک شي دَ پاره پطور دَ مثال دے پیش کولو۔

﴿فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ﴾: سره ئے دَ آخرت دَ میدان دَ حشر نقشه وړاندے کړه، او دَ قریشو کافرانو ته زوره نه هم ورکوی۔

دَ دغے خلقو به څهٔ حال وي هر کله چه په میدان دَ حشر کښے دَ هر یو امت نبي دَ خپل امت په نیکو بدو عملونو باندے پطور دَ ګواه پیش شي، او تاسو هم پطور دَ ګواه بخپل امت باندے حاضر کړے شئ۔ او خاصکر دَ دے کفارو او مشرکانو په باره کښے په خدائي عدالت کښے ګواهي ورکړئ۔ چه دوی ښکاره ښکاره معجزے لیدے او بیائے هم ورته دروغ وے، او ستا په یو والي او ستا په پیغمبرئ ئے ایمان رانه وړو۔

په بخاري شریف کښے روایت دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم عبدالله ابن مسعودؓ ته اوفرمائیل چه ما ته قرآن واوروه، حضرت عبدالله عرض اوکړو، چه تاسو ځما نه اوریدل غواړئ؟ حال دا دے چه قرآن خو پتا سو نازل شوے دے، دوئ اوفرمائیل چه هاں وایه، ما دَ سورت نسآء تلاوت شروع کړو او کله چه: ﴿فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ اُمَّةٍۭ بِشَهِيْدٍ﴾: ته اورسیدم نو دوئ اوفرمائیل چه او س بس کړه، او کله چه ما دوئ ته اوکتل نو دَ ستر ګو مبارکو نه ئے اوښکے روانے وے۔

علامه قسطلاني ليکي چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته پدې ايات سره د اخرت نقشه راوړاندې شوه او د خپل امت د هغه خلقو په باره کښې ئې خيال پيدا شو کوم چه په عملونو کښې کوتاهي کوي يائې نه کوي، په دې وجه ئې او ښکې مبارکې جارې شوې -

**فائده:** بعضې حضرات فرمائي چه د: هٰٓؤُلَآءِ: اشاره د رسالت په زمانه کښې موجوده کفارو او منافقانو طرف ته ده، او بعضې فرمائي چه تر قيامته پورې د ټول اُمت طرف ته اشاره ده - ځکه چه د بعضې روايتونو نه معلوميږي چه د اُمت عملونه دوی ته پيش کيږي -

په هرحال د دې نه معلومه شوه چه د تيرو امتونو پيغمبران به پخپل خپل اُمت پطورد ګواه پيش کيږي، او دوئ به هم د خپل امت د عملونو ګواهي ورکوي د قرآن کريم د دې طرز نه معلوميږي چه د دوی نه پس بل نبي راتلونکې نشته چه د خپل څه امت متعلق ګواهي ورکړي - که وې نو په قرآن شريف کښې به د هغه د شهادت ذکر هم وه - په دې اعتبار سره دا آيات د ختم نبوت دليل هم دې -

په: يَوْمَئِذٍ يَّوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا: کښې د اخرت په ميدان کښې د کافرانو د بدحالئ ذکر دې - چه دا خلق به د قيامت په ورځ ارزو او کړي چه کاش موږ د زمکې سره پيوند شوې، کاش زمکه اوچاوده او موږ پکښې ننوتې او خاورې شوې، او د دې وخت د دې سوال جواب او عذاب نه خلاص شوې -

په ميدان د حشر کښې چه هرکله کفار او وينې چه ټول ځناور د يو بل نه د بدله اَخستو نه پس خاورې شو نو دوئ به آرمان او ارزو او کړي چه کاش موږ هم خاورې شوې لکه چه په سورت نبأ کښې فرمائي: وَيَقُوْلُ الْكَافِرُ يَالَيْتَنِيْ كُنْتُ تُرَابًا:

په اخر کښې ئې او فرمائيل: وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا: يعني دا کفار به د خپلو عملونو او عقيدو متعلق هيڅ شې پټ نه کړې شي - د دوئ خپل لاس و خپې به اقرار او کړي پيغمبران به ګواهي ورکړي، او په عملنامو کښې به ئې هرڅه موجود وي -

د حضرت ابن عباس نه تپوس او شو چه په قرآن شريف کښې يو ځائې ارشاد دې چه کفار به هيڅ هم پټ نه کړې شي او بل ځائې دا سې دي چه دوی به قسم او خوري او وبه وائي

وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ: چه موږ شرک نه دے کړے - په ظاهره خو په دے دواړو آیاتو کښے ټکراؤ دے؟ نو دوئ جواب ورکړو چه: اول به شي داسے چه هر کله په شروع کښے کفار دا اووینی چه د مسلمانانو نه سوا بل څوک د سره جنت ته نشي تلے، نو دوی به او وائی چه اوس موږ لره د شرک او د خپلو بدو عملو نه انکار کول پکار دی کیدے شي که په داسے کولو سره موږ نجات بیا موموليکن د دے انکار نه پس به ښکیله د دوی اندامونه د دوی خلاف ګواهي ورکړی او د پټولو کوم مقصد چه دوی جوړ کړے وه په دے کښے به بالکل ناکامه شي دغه وخت به ټول اقرار اوکړی، ځکه فرمائی: وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا: هیڅ به پټ نه کړے شي -

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى

اے ایماندارو! مه نزدے کیږئ مانځه ته کوم وخت چه تاسو په نشه کښے یئ

حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا اِلَّا عَابِرِىْ سَبِيْلٍ

تر دے چه پوهه شئ چه تاسو څه وائی او نه په هغه وخت کښے چه د غسل حاجت وی مګر که په لاره

حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا ؕ وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ

ځئ ترهغے چه غسل اوکړئ ط او که تاسو مریضان یئ یا په سفر کښے یئ

اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ

یا راغلے دے پتاسو کښے یو تن د اودس ماتی نه یا ورغلی یئ ښځو لره

فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا

بیا نه مومئ تاسو اوبه نو اراده کوئ د زمکے پاکے بیا راکاږئ پخپلو

بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿٤٣﴾

مخونو او لاسونو - بے شکه الله دے معاف کوونکے بخښونکے والا -

## شانِ نزول

په ترمذی کښې د حضرت علی رضی الله تعالیٰ عنه دا واقعه ذکر ده چه د شرابو د حرامولی نه وړاندې یو ځل حضرت عبد الرحمن بن عوف رضی الله عنه بعضې صحابه کرامو رضی الله عنهم له میلمستیا کړې وه - چه په هغې کښې د شرابو انتظام هم و، هر کله چه دې ټولو حضراتو خوراک سکاک اوکړو - نو د ماښام د مانځه وخت شو او حضرت علی رضی الله عنه ئې امام کړو - د ده نه په مانځه کښې د: قُلْ يٰٓاَيُّهَا الْكٰفِرُوْنَ: په تلاوت کښې د نشې په وجه سخته غلطی اوشوه - په دې باندې دا آیات نازل شو او په دې کښې ئې د دې خبرې ورکړو چه د نشې په حالت کښې د مونځ نه شی کولے -

# لنډ تفسير

اے ایماندارو! تاسو مانځه ته هم په داسې حالت کښې مه ځئ (یعنی په داسې حالت کښې مونځ مه کوئ) چه تاسو په نشه کښې یئ تر دې چه تاسو پوهه شئ چه په خولې سره څه وایئ (تر دغې وخته پورې مونځ مه کوئ، مطلب دا دے چه د مونځ اداکول خو په خپلو وختونو کښې فرض دی، او دا حالت د مانځه سره منافی دے پس د مانځه په وختونو کښې د نشې استعمال مه کوئ - چه چرته ستاسو د خولې نه په مانځه کښې خلاف کلمه اونه وځی) او په حالت د جنابت کښې هم (یعنی هر کله چه غسل درباندې فرض شی) سوا د دینه چه تاسو د سفر په حالت کښې یئ (چه د دې حکم نه دے راروان دے، مانځه له مه ورځئ) تر دې چه غسل اوکړئ (یعنی د جنابت غسل د مانځه د صحیح کیدو د پاره شرط دے، او دا حکم یعنی د جنابت نه پس بغیر د غسل نه مونځ نه کول په حالت د نشتوالی د عذر کښې دے) او که تاسو ته څه عذر لرئ مثلاً) بیمار یئ (او د اوبو استعمال درله نقصان درکوی یا که چه وړاندې راځی) یا په حالت د سفر کښې یئ (لکه چه بره د دې استثنیٰ راغلې ده چه حکم ئې وړاندې راځی، یعنی او په نه ملاویږی لکه څنګه چې بر راشی، نو په دې دواړو عذرونو سره د تیمم اجازت دے، او د تیمم جواز خاص په دې دوه عذرونو پورې نه دے تړلے بلکه که تاسو ته خاص دا عذر روی) یا (دا خاص عذر نه وی یعنی نه تاسو مریضان یئ نه مسافران بلکه هسې کچا او دشی یا غسل پرې واؤ پداسې چه مثلاً)

پیتاسو کښې څوک سړے (د ودربولو یا لویو بولو) د استنجاځانه (فارغ) راشي (چه پدې سره اودس ما تیږي) یا تاسو ښځو ته نږدې شوي یئ (چه پدې غسل واجبیږي او) بیا (په دے ټولو صورتونو کښې خواه د مرض یا د سفر څنډ روي یا نه مرض وي نه سفر هم دغسے اودس او غسل ته موضرورت شي) تاسو ته اوبه (د استعمال موقع ئے) ملاؤ نه شي (خواه په دے وجه سره چه په مرض کښې ورته نقصان رسوي او که پدے وجه چه هلته اوبه نه وي خواه سفر وي او که نه وي (په دے ټولو حالتونو کښې) تاسو په پاکه زمکه سره تیمم کوئ (یعني په دغه زمکه دوه پیرے لاس او وهئ) بیا خپلو مخونو او لاسونو با ندے (لاس) را کا بدئ بے شکه الله تعالیٰ لوئے معاف کونکے لوئے بخښنے والا دے را و د چا چه عادت داسے وی هغه اسان حکم کوی، ځکه الله تعالیٰ داسے اسان حکمونه او کړل چه تاسو ته تکلیف او تنګسا نه وی) -

# معلومات او مسئلے

**د شرابو د حراموالي درجه په درجه احکام**

اسلامي شریعت لره الله پاک یو خاص شان ورکړے دے چه د دے حکمونه ئے چیر اسان کړی دی - په دے سلسله کښې یوه کړئ داده، چه شراب نسکل د عرب پښتوانے عادت وه او ټول قوم په دے عادت کښې اخته وُو - پغیر د یو څو خاصو صاحبانو نه چه د دوی طبیعتونه الله پاک داسے روغ او سالم جوړ کړی وُو - چه دے خبیث شي ته چرته هم نه وُو ورنږدے شوی - لکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د نبوّت نه وړاندے هم چرته شرابو لره لاس قدرے نه وُو وړوړے - او په دے هم هر سړے پوهیږی چه عادت د هر شي چه وی خو پاتے کول ئے انسان ته چیر ګران وی، خاص بیا د شرابو او د نشے عادت خو د انسان په طبیعت داسے قبضه او کړی چه د دے نه خلاصیدل بنده د ځان د پاره مرګ ګنړی -

د الله تعالیٰ په نزد شراب سکل او نشه کول حرام وُو، او د اسلام راوړو نه پس ئے مسلمانانو لره د دینه خلاصول مقصود وُو - مګر که یکدم ئے حرام کړی وے نو په خلقو به د دے حکم منل چیر ګران شوی وُو - په دے وجه ئے په

دے جز وی پابندی اولګول او د دے د خرابوالو نه ئے د دوی ذهنونه خبرداره کړل او پاتے کولو ته ئے تیار شو، نو په اول کښے په دے ایات کښے صرف دا حکم او شو چه د نشے په حالت کښے مانځه لره مه ورځئ، چه د دے مطلب دا وه چه د مانځه په وخت کښے د مانځه اراده کول خو فرض دی، نو د مانځه په وختونو کښے دے د شرابو استعمال نشی کولے، چه د دینه مسلمانانو دا معلومه کړه چه دا دومره خراب شے دے چه انسان د مانځه نه منع کوی نو ډیرو صاحبانو د دغه وخت نه د دے د پاتے کولو اهتمام شروع کړو، او د نورو سره ئے هم فکر شو آخر چه د سورت مائده په ایات کښے د دے حرمواله او پلیتواله داغه او په هر حال کښے شراب حرام شو۔

**مسئله:**- لکه څنګه چه د نشے په حالت کښے مونځ حرام دے، بعض مفسرین فرمائی- چه کله خوب دومره غلبه اوکړی چه بنده په ځپله ژبه بیا قابو نشی کړلے نو بیا د دے حالت کښے هم مونځ کول ټیک نه دی، لکه چه په یو حدیث کښے ارشاد دے:

إِذَا نَعَسَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَلْيَرْقُدْ حَتّٰى يَذْهَبَ عَنْهُ النَّوْمُ فَإِنَّهٗ لَا يَدْرِيْ لَعَلَّهٗ يَسْتَغْفِرُ فَيَسُبَّ نَفْسَهٗ۔

(قرطبی)

"که پتا سو کښے چا په مانځهٔ کښے خوب غالب شی نو هغهٔ لره د لږ ساعت د پاره اوده کیدل پکار دی چه د خواب اثر لاړ شی ځکه چه د خواب په حالت کښے به دے نه پو هیږی او ځائے د دعا او استغفار به ځانته په کنځلو شروع شی"۔

**د تیمم حکم یو انعام دے چه د دے امت خصوصیت دے**

د الله تعالیٰ خومره لوئے احسان دے چه د اودس او پاکئ د پاره ئے داسے شے د اوبو قائمقام مقرر کړو چه په حاصلولو کښے د اوبو نه زیات اسان دے، او ښکاره خبره ده چه زمکه او خاوره هر ځائے موجوده ده- په حدیث شریف کښے دی چه دا اسانی صرف د امتِ محمدیؐ د پاره خاص ده او دا خاصیت صرف دے امت ته ورکړے شوے دے-

د تیمم ضروری مسئلے د فقه په کتابونو کښے دی او د اردو پښتو په رسالو کښے هم چیرے چاپ شوی دی هلته ئے کوری۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يَشْتَرُوْنَ

آیا تهٔ نه کورے هغوته چه ورته ملاؤشوے ده څهٔ حصه دکتاب نهٔ اخلی

الضَّلٰلَةَ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ تَضِلُّوا السَّبِيْلَ ﴿٤٤﴾ وَاللّٰهُ

گمراهی او غواړی چه تاسو هم بے لارے شئ - او الله

اَعْلَمُ بِاَعْدَآئِكُمْ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّا ۙ وَّكَفٰى

ښهٔ پیژنی ستا سو دښمنان - او الله پوره دے حمایت کونکے - او پوره دے

بِاللّٰهِ نَصِيْرًا ﴿٤٥﴾ مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ

الله مددګار - بعضے خلق یهود یان کږوی خبرے لره

الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا

د ځپل ځائے نه او وائی چه مونږ واؤریده او نهٔ منو

وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا لَيًّا بِاَلْسِنَتِهِمْ وَ

او وائی واؤره وا نهٔ اؤریدے شے او وائی راعِنا په اړولو د ژبو سره او

طَعْنًا فِى الدِّيْنِ ۭ وَلَوْ اَنَّهُمْ قَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا

دعیب لګولو په دین کښے - او که دوی وئیلے چه مونږ واؤریده او اؤ منله

وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَاَقْوَمَ ۙ وَلٰكِنْ لَّعَنَهُمُ

او واؤره او په مونږ نظر اوکړه نو غوره به وه دوی په حق کښے او برابر او لیکن لعنت اوکړو په

اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٤٦﴾

دوی باندِ الله د دوی د کفر په سبب پس دوی ایمان نه راوړی مګر ډیر کم -

# لنډ تفسیر

(اې مخاطبه) آیا تا دغه خلق لیدلي او نه لیدلي (یعني د لیدو قابل دي او کوره او تعجب او کړه) کوم ته چه کتاب (د الله یعني د تورات د علم) یو لوی حصه ملاؤ شوی ده (یعني د تورات علم لري او سره د دې) چه دغه خلق ګمراهي (یعني کفر) اختیاروي او (خپله خو ګمراهان دي دی مکر دوئ) داغواړي چه تاسو (مسلمانان) د لارې (برابرې) نه روا اوړي (بې لارې شئ (یعني قسم قسم تدبیرونه کوي لکه چه د دې پارې په آخر او د شلوړمې په شروع کښې ئې ذکر هم شوی دی) او (تاسو ته که د دې خلقو تراوسه پورې خبر نه وي نو خه اوشو) الله تعالیٰ ستاسو (دا) دښمنان ښه پېژني (ځکه ئې تاسو ته او خودل پس تاسو ترې ځان ساتئ) او (د دوئ د مخالفت حال موواوریدو نو زیات په فکر کښې مه پریوځئ ځکه چه) الله تعالیٰ (ستاسو) پوره ملګری دی (چه ستاسو د مصلحتونو رعایت ساتي) او الله تعالیٰ (ستاسو د پاره) پوره مددګار دی (چه د دوئ د ضررونو نه به تاسو ساتي او) دا خلق (د کوم چه ذکر اوشو) د یهودیانو نه دي (او د دوئ ګمراهي اختیارول چه بره ذکر شول هغه دا دي چه) کلام (د الله یعني تورات) لره د خپلې موقع (او محل) نه (لفظًا یا معنًا) بدلوي (یعني تحریف ئې کوي) او (یوه ګمراهي د دوئ په کومه کښې چه په دوکه سره د نورو ساده ګانو خلقو مختل هم ممکن دي دا ده چه دوئ د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره د خبرو کولو په وخت کښې) دا کلمات وائي (چه وړاندې ذکر کیږي د دې کلمو دوه دوه معنې دي، یوه ښه او بله بده دغه خلق ترې بد مطلب اخلي او نورو ته ښکاره کوي چه مونږ ئې د ښه مطلب د پاره وایو او په دې سره د یو مسلمانان دوکه کیدل او په دې کلمو سره حضور صلی الله علیه وسلم ته خطاب کول څه لرې خبره نه ده چنانچه د سورت بقره په دولسمه رکوع کښې مؤمنان د لفظ د راعِنَا نه منع کړې شوي دي- پس په دې اعتبار سره د یهودو د دې کلمو ویئل یو قسم له نورو لره ګمراه کول هم وي اګر چه لفظًا هم وي پس په دې کښې د : یُرِیْدُوْنَ اَنْ تَضِلُّوا لفظ

چه بره واغلې دے بیان هم اوشو لکه چه په : مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا: کښے بیان وه د
: اَلَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا : او په يُحَرِّفُوْنَ: کښے بیان وه د : يَشْتَرُوْنَ : د دغې کلمو نه
یوه داده : سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا : (د دے ترجمه خو داده چه مونږ واورېده او منو نهٔ
د دے بنهٔ مطلب خو دا دے چه ستا سوار شاد مونږ واورېدهٔ او ستا د چا مخالف
خبره چه مونږ ه غوږ لږ نه منو- او بد مطلب څوئے ښکاره دے چه مونږ ستا خبره
واخو اورېده لیکن عمل پرے نه کوو) او (دوېمه کلمه داده) اِسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ
(د دے لفظي ترجمه داده چه تاسو زمونږ خبره واورئ او خدائے دِ کړی چه
تاسو هیڅ خبره وا نه اورئ ، د دے بنهٔ مطلب دا دے چه د مخالف بده خبره
دِ تاسو ته وا نه اورولے شی بلکه ستا سو اقبال دے داسے قائم وی چه څهٔ خبره
تاسو فرمایئ د هغې موافق د خوشحالۍ خبره دے تاسو ته اوره ولے شی ، او بد
مطلب ئے دا دے چه تاسو ته دِ موافق او د خوشحالۍ خبره وا نهٔ اورَولے شی.
بلکه تاسو چه څهٔ خبره کوئ د هغې مخالف جواب دِ ستاسو په غوږ ونو کښے
پریوځي) او (دریمه کلمه دادهٔ) رَاعِنَا (د دے لفظ دواړه بنهٔ او بد
مطلبو نه په سورت بقره کښے تیر شوی دی چه بنهٔ معنیٰ ئے ده زمونږ رعایت
اوکړئ او بده معنیٰ ئے د یهود و په لغت کښے کنځل دی ، غرض دے کلمو لره)
په دے طور سره روائي) چه خپلو ژبو لوه (د عزت د لهجے نه د بے عزتۍ لهجے ته)
اړه وی او (په زړهٔ سره) په دین کښے د طعنو کولو او سپکولو) په نیت سره ،
(وجه داده چه د نبی سره طعن او مسخره کول عین د دین سره طعن او مسخره
کول دی) او که دے خلقو (بجائے د دوه معنی لفظونو) دا کلمے وئیلے (بجائے د
سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا) سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا (چه معنیٰ ئے داده چه مونږ واورېده او اومنله)
او (بجائے د اِسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ صرف) اِسْمَعْ (چه معنیٰ ئے ښالی داده چه تاسو
واورئ) او (بجائے د رَاعِنَا) اُنْظُرْنَا (چه معنیٰ ئے داده زمونږ په مصلحت باندِ
نظر او فرمایئ ، او دا کلمے د شرارت د معنونه پاکے دی نو که دا کلمے ئے وئیلے) نو
دا خبره د دوی د پاره غوره (او نفع مند هم) به وے او (په حقیقت کښے هم)
د موقع مناسب خبره وه مگر (دوی د نفع او موقع مناسب خبره خو هډو کوی
نه بلکه هم دغه عبث خبرے کوی په دے وجه دوی ته دا تکلیف اورسید چه)

دوی لره خدائے تعالیٰ د دوی د کفر په سبب رچه دا کلمے وئیل یکښے هم داخل
او نور هم د دوی تولے خبرے او کاروته د کفر پکښے داخل شو پس د د ے
ته لو کفر یا تو پوَ چه الله تعالیٰ دوی لره) د خپل رخاص) رحمت نه لرے او غورځولے
اوس دوی ایمان نۀ داوړی حال مګو لږ خلق رځکه چه دوی د
داسے حرکتو نو نه لرے اوسید ل، دغه لرے والے د رحمتِ خاصه نه مستثنیٰ
او دوی ایمان هم راوړو لکه عبد الله بن سلام وغیره)

# معلومات او مسئلے

## د ایاتونو تړون

په تیرو ایاتونو کښے د تقویٰ د موقعو بیان ؤ چه زیات ذکر پکښے د یوبل سره د معاملوؤه - او په مینځ کښے څۀ حکمونه د عبادت او ما نځه او د دے د متعلقاتو ذکر شو چه په بنده کښے د خدائے یره او د آخرت فکر پید اکړی او د معاملو برابر والے آسان کړی - په دے ذکر شو وایاتونو کښے د مخالفینو سره د معاملو ذکر فرمائی چه په دے کښے د یهودو د شرارت علاج دے او مسلمانانو ته پکښے په الفاظو او عنوانونو کښے هم د ادب د لحاظ سا تلو تلقین کړے دے - چه د حضورؐ سره د خبرو پوخت کښے د ادب لحاظ ساتی او د یهودو پشان بے ادبه الفاظ دخولے نه نۀ اوباسی -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا

اے کتاب والؤ! ایمان راؤړئ په هغې چه مونږ نازل کړے دے

مُصَدِّقًا لِمَا مَعَكُمْ مِنْ قَبْلِ أَنْ نَطْمِسَ وُجُوهًا

رشتونے کوی هغه کتاب په ستا سو سره دے مخکښے د دے نه چه مونږ وران کړو چیرے مخونه

فَنَرُدَّهَا عَلَىٰ أَدْبَارِهَا أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّا

بیا اُلټه کړو هغو لره شا طرف ته یا لعنت اوکړو په دوی لکه چه مونږ لعنت اوکړه

اَصْحٰبَ السَّبْتِؕ وَكَانَ اَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُوْلًا ﴿۴۷﴾

په خاوندانو د ورځې د هفتې - او د الله حکم خامخا کيدونکے دے -

# لنډ تفسير

اے خلقو ... کتاب (تورات) چه درکړے شوے دے تاسو ته په دے کتاب (يعني قرآن) باندے ايمان راوړئ کوم چه موږ نازل کړے دے را او تاسو په دے د ايمان راوړو نه مخکښے ترينه چه موږ د ځه لره) په دا سے حال کښے (نازل کړے و) چه د دے رشتونکوی هغه کتاب لره چه ستاسو سره دے (يعني ستاسو د اصل کتاب تصديق کونکے دے، باقی ستاسو په لاس کښے حصه ترے جُدا ده پس تاسو په قرآن) د هغے (يقيني کار کيدو) نه اول اول (ايمان راوړئ ...) چه موږ (ستاسو) مخونه (يعني د مخونو نقش ونګار يعني سترګے پوزے وغيره) بالکل وران کړو او دے (مخونو) لره د دوی د شا جانب (يعني څټ) پشان (صفا هوار) جوړ کړو يا دوی (ايمان نه راوړونکو) باندے موږ دا سے (په خاص طور) لعنت اوکړو لکه چه لعنت شوے وو په هفتے والو باندے - (چه دغه په يهوديانو کښے تيرشوی دی او ذکر ئے په سورت بقره کښے راغلے دے يعني د هغوی پشان د دوی نه هم شادوګان جوړ کړو) او د الله تعالیٰ (کوم) حکم (چه صادريدونکے وی هغه) خامخا پوره کيږی (پس که الله تعالیٰ ستاسو په ايمان نه راوړو باندے دغه د مسخ کيدو حکم اوکړی نو بيا به دا ظهور کيږی نو په دے وجه تاسو لره يويدل پکار دی او ايمان راوړل پکار دی) -

# معلومات او مسئلے

فائده ۱: (دا قول د الله تعالیٰ): فَنَرُدَّهَا عَلٰٓى اَدْبَارِهَا: (الټه به کړو دوی لره شا طرف ته) په الټه کولو کښے دوه احتماله دی چه د مخ نقش ونګار به ورانو کړی قول مخ به شا طرفته الټه کړی، او دا هم کيد سے شی چه مخ لره د څټ پشان هوار کړی او دا شته مخ څټ طرفته اوګرځوی (مظهری، روح المعانی)

فائده ۲: دلته دا سوال پیدا کیږي چه د مخ وړانول او مسخ کول کله
اوشو؟ بعضې وائي چه دا عذاب به د قیامت نه مخکښې په یهودو باندې وي
بعضې وائي دا عذاب ځکه واقع نه شو چه په دوی کښې بعضو خلقو ایمان
راوړے وُه۔

حضرت حکیم الامت تهانوی رحمة الله علیه فرمائي چه زما په نزد خو سره
دغه سوال نه واقع کیږي، ځکه چه په قرآن شریف کښې یو لفظ داسې نیشته
چه د هغې نه معلومه شوه چه که ایمان مُو رانه وړو نو د مخو نو ورانولو
او مسخ کولو عذاب به خامخا واقع کیږي، بلکه احتمال دے، یعنی که د دوی
جرم ته اوکتے شي نو د دے سزا لائق دی، او که عذاب ورلره ورُ
نه کړے شي نو دا خو د هغهٔ رحمت دے

---

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ

بے شکه الله نه بخي هغه چا لره چه شریک ورلره جوړه کړي او بخي د دینه لاندې ګناه

ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَآءُ ۚ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ افْتَرٰٓى

د چا چه غواړي - او چا چه شریک جوړ کړو الله لره نو دهٔ جوړ لوئے

إِثْمًا عَظِيْمًا ﴿٤٨﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ

ګناه جوړه کړو - آیا تا اونه لیده هغو لره چه ځانو نو ته پاک

أَنْفُسَهُمْ ۚ بَلِ اللّٰهُ يُزَكِّيْ مَنْ يَّشَآءُ وَلَا يُظْلَمُوْنَ

وائي - بلکه الله پاکوي چا لره چه او غواړي او په دوی به ظلم نه وي

فَتِيْلًا ﴿٤٩﴾ أُنْظُرْ كَيْفَ يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ۖ

د مزي برابر - او ګوره! څنګه تړي په الله پورې
دروغ -

وَكَفَىٰ بِهِۦٓ إِثْمًا مُّبِينًا ﴿٥٠﴾

او کافي دے دا ګناه ښکاره -

# لنډ تفسير

بے شکه الله تعالیٰ دے خبرے لره (د سزا ورکولو نه پس هم) به او نه بخښي چه د هغهٔ سره څوک لره شریک جوړه کړي (بلکه په همیشه همیشه سزا کښے به ګرفتار وي) او د دے نه سوا چه نور څومره ګناهونه دي (خواه واړه وي او که لوئے) د چا د پاره چه غواړي (بے سزا ورکولو به) هغه ګناه او بخښي (البته که مشرک مسلمان شي نو بیا خو دے مشرک پاتے نه شو نو اوس دغه سزا به همیشه هم نه وي) او (وجه د شرک د نهٔ بخلو داده چه) کوم سړے د الله تعالیٰ سره (چا لره) شریک جوړه وي دے ډیر لوئے جرم کوي (چه د خپل لوئے والي په وجه د بخښنے قابل نه دے) -

(اے مخاطبه) آیا تا هغه خلقو لره او نه لیدل (یعني د تعجب قابل دي) چه خپلو ځانو نو لره پاک ښکاره کوي (د دوي په دے ښکاره کولو باندے هیڅ نه کیږي) بلکه الله تعالیٰ چا لره چه غواړي پاک ښکاره کوي (البته دا د اعتبار قابل ده او الله تعالیٰ په قرآن کښے مؤمن لره پاک خودلے دے - لکه په سورة سَبِّحِ اسْمَ کښے د اَشْقٰی یعني کافر په مقابله کښے د مؤمن په باره کښے فرمائیلي دي : قَدْ اَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى : نو پس هغه به پاک وي نهٔ چه کفر کوونکي لکه یهودیان) او (دے یهودو لره به په قیامت کښے د دے درو غژنے دعوے "چه پدے سبب ئے کفر ایمان ګڼلے دے" کومه سزا وي په هغے سزا کښے به) په دوي... د مزي په قدر هم ظلم نه وي (یعني دغه سزا د دوي د جرم نه زیاته نه ده بلکه پدا سے ظلم باندے دا سے سزا لایق ده 'لږ') او ګوره (په دے دعوه کښے) دا خلق په الله څرنګے د درو غو تهمت لګوي (ځکه چه هر کله دوي سره د کفر نه د الله په نزد د مقبولیت وعوه کوي نو د دینه ښکاره لازمیږي چه کفر د الله په نزد غوره دے، حال دا دے چه دا محض تهمت دے ځکه چه په ټولو شریعتو نو کښے

الله تعالیٰ دَ دے خبرے وضاحت فرمائیلے دے چه کفر خو په نزد دپرنا کاره او مردود دے) او دا خبره چه په خدائے پاک تهمت اولګولے شی) دَ بنکاره جرم کیدو دَ پاره کافی ده (بیا په دا سے واضح لویه خبره باندے دا سے سزا څه ظلم او زیاتے دے؟)

# معلومات او مسئلے

**دَ شرک تعریف او دَ دهٔ یو څو صورتونه**

دَ الله تعالیٰ قول دے: إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ: دَ الله تعالیٰ دَ ذات او صفا تو په باره کښے چه کومے عقیدے دی۔ دغسے څه عقیده دَ چا مخلوق په باره کښے ساتل شرک دے۔ دَ دے څهٔ تفصیلات دا دی:

**په علم کښے شریک جوړول:**۔ یعنی دَ چا بزرګ یا پیر په بارهٔ کښے دا عقیده لرل چه څو دَ تولو حالاتو نه دے هر وخت خبر دے، دَ نجومی پنډت نه دَ غیبو خبرونه معلومول یا دَ چا بزرګ په خبرو باندے فال نیول او په هغے یقین کول یا دَ لرے نه آوازونه بلل او دا ګنړل چه دے خبر شو یا دَ چا په نوم روژه نیول۔

**په تصرف کښے شرک:**۔ یعنی چا لره دَ نفع یا نقصان اختیار من ګنړل۔ دَ چا نه مرادونه غوښتل، رزق او اولاد غوښتل۔

**په عبادت کښے شریک جوړول:**۔ چا ته سجده کول، دَ چا په نوم څناور پریښودل، دَ چا بزرګ په قبر باندے نذرونیاز کیښودل، دَ چا په نامه نذر منل، دَ چا دَ قبر یا کور نه طواف کول، دَ خدائے دَ حکم په مقابله کښے دَ چا بل چا قول یا رسم لره ترجیح ورکول، دَ چا مخے ته رکوع په شان ټکته کیدل، دَ چا په نوم څناور ذبح کول، دَ دنیا کاروبار دَ ستورو په اثر سره ګنړل، او یو مياشتے ریا ورځے لره منحوسه (بد) ګنړل۔

**ځپل صفتونه کول او دَ عیبونو نه ځان پاکول دعوی جائز نه ده**

دَ الله تعالیٰ قول دے: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِيْنَ يُزَكُّوْنَ أَنْفُسَهُمْ: یهودو به ځپل ځان ته پاک وئیلو په دے خبره الله تعالیٰ په دے آیات کښے دَ دوی بد والے بیان کړو او وې فرمائیل چه لږ دے خلقو ته او ګورئ چه ځپله پاکی بیا نوی په دوی باندے

تعجب کول پکار دی۔

دَ دے نه معلومه شوه چه چالره دَ خپل ځان یا دَ نورو پاکۍ بیانول جائز نه دی۔ دا منع په درے وجهو سره ده:

۱: دَ خپل صفت سبب اکثر تکبر وی نو په حقیقت کښے دا منع دَ تکبر له کبله ده۔

۲: په دے وجه چه دَ خاتمے حال الله ته معلوم دے چه په تقوٰی او پاکۍ سره کیږی او که نه۔ په دے وجه خپل ځان پاک خودل دَ الله دَ یرے نه خلاف خبره ده۔ چنانچه په یو روایت کښے زینب بنتِ ابی سلمهؓ فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ځما نه تپوس او کړو چه ستا نوم څهٔ دے؟ دغه وخت ځما نوم بَرَّةٌ وو (چه دَ دے معنیٰ ده دَ گناهونو نه پاک) ما ورته هم دا نوم اووے، نو دوی او فرمائیل :لَا تُزَكُّوْا اَنْفُسَكُمْ اَللّٰهُ اَعْلَمُ بِاَهْلِ الْبِرِّ مِنْكُمْ سَمُّوْهَا زَيْنَبَ (رواه بحواله مشکوٰة) "یعنی تاسو خپل ځان دَ گناهونو نه پاک مه بیانوئ ځکه چه دا علم صرف الله ته دے چه پتا سو کښے څوک پاک دے۔ بیا دَ برّة په ځائے (الرووی) زینب نوم کیخودو (مظهری)

۳: دَ منع دریمه وجه دا ده چه اکثر په دے دعوه سره دَ خلقو دا وهم پیدا شی چه دا سړے دَ الله په نزد ځکه مقبول دے چه دے دَ ټولو نقصونو او عیبونو نه پاک دے حال دا دے چه دا دروغ دی ځکه چه په بنده کښے خو ډیر عیبونه موجود وی۔ (بیان القرآن)

که دا ذکر شوی عوارض نه وی نو دَ نعمت دَ اظهار په طور بیانِ دَ خپل صفت بیانولو اجازت شته (بیان القرآن)

---

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ يُؤْمِنُوْنَ

آیا تا او نه لیده هغو لره چا ته چه ملاؤ شوے ده څهٔ حصه دَ کتاب چه منیٔ

بِالْجِبْتِ وَالطَّاغُوْتِ وَيَقُوْلُوْنَ لِلَّذِيْنَ كَفَرُوْا هٰۤؤُلَآءِ

بتانو لره او شیطانانو لره او وائی کافرانو ته چه دا۔ خلق

أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا ﴿٥١﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ

زیات په لاره برابره دي د مسلمانانو نه - دا هغه دي چې

لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا ﴿٥٢﴾

چه لعنت کړے دے الله، او په چاچه لعنت اوکړي الله بيا به نه مومے ته د هغه څوک مددګار۔

# لنډ تفسير

(اے مخاطبه) آیا تا هغه خلق او نه لیدل چا ته چه د کتاب (د الله یعني د تورات د علم) یو حصه ملاؤ شوه (بیا سره د دے) دوی بتان او شیطانان مني (ځکه چه د مشرکانو دین بت پرستي او د شیطان تابعداري وه هرکله چه دا سے دین ته ښهٔ وائي نو د دینه د بُت او شیطان تصدیق لازم شو) او دغه خلق (یعني اهلِ کتاب) د کفارو (یعني مشرکانو) په نسبت وائي چه دا خلق په نسبت د دے مسلمانانو زیات په برابر لارے باندے دي (دا خو دوئ په ډاګه ویلي وو) دا خلق (کوم چه د کفر طریقے ته د اسلامي طریقے نه غوره اووے) هغه دي کوم چه خدائے پاک لعنتیان کړي دي (او د دے لعنت اثر دے چه دوی داسے بے باکه د کفر خبرے کوی) او خدائے پاک چه چا لره لعنتي کړي د دهٔ (د عذاب نه و خت کښے) څوک حامي به بیا نهٔ مومے (مطلب دا دے چه پدے باندے به دهٔ لره په آخرت کښے یا په دنیا کښے هم سخته سزا وی، نو په دنیا کښے بعضے قتل، بعضے قید، بعضے ذلیل رعیتیان شو، او په آخرت کښے چه څهٔ وی هغه به هلته وی)

## د ایاتونو تړون

د تیر ایات: أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ الخ نه د یهودو د قباحتونو او بد خویونو ذکر روان دے د دے ایاتونو تعلق هم د روئی د دغه قباحتونو سره دے۔

# معلومات او مسئلے

د جبت او طاغوت نه څه مراد دے؟ | په دے ایات کښے دوه لفظونه "الْجِبْتِ" او

«الطّاغوت» ذکور اغلې دي؟ دَ دینه څه مراد دے؟ دَ مفسّرینو په دے باره کښې ډیر قولونه دي، حضرت ابن عباسؓ، ابن جبیر، او ابوالعالیه رضی الله عنهم فرمائی چه "جِبت" په حبشی ژبه کښې ساحره وائی، او دَ طاغوت نه مراد کاهن دے۔
حضرت عمر رضی الله تعالیٰ عنه فرمائی چه دَ "جبت" نه مراد سحر دے او دَ "طاغوت" نه مراد شیطان دے۔ دَ مالک بن انسؒ نه نقل دے چه دَ الله نه سوا دَ کومو څیزونو چه عبادت کیدے شی دے ټولو ته طاغوت ویلے شی۔
امام قرطبیؒ فرمائی چه دَ مالک بن انسؒ قول زیات غوره دے ځکه چه دَ دے ثبوت دَ قرآن نه هم کیږی۔ ارشاد دے: اَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّاغُوْتَ:
لیکن په دے ډیرو قولونو کښې څۀ ټکراؤ نیشته۔ په دے وجه ټول توے مراد اخستے شی داسے چه په اصل کښې جِبت دَ بُت هم نوم وُه۔ لیکن روستو بیا دَ دے استعمال دَ نورو (هغه څیزونو چه دَ الله نه سیوائے عبادت کیدے شی) هم نوم شو (روح المعانی)۔

دَ ذکر شوی ایات شانِ نزول

دَ حضرت ابن عباسؓ نه روایت دے چه دَ یهو دو سردارانو حُیَی بن اخطب او کعب بن اشرف دَ خپلے یوے ډلے سره دَ جنګِ اُحد نه پس دَ مکے دَ قریشو سره دَ ملاوید و دَ پاره راغلل، دَ یهودو سردار کعب بن اشرف ابو سفیان له راغے او دهٔ دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم خلاف دَ دوی سره دَ تعاون (ملګرتیا) کولو وعده اوکړه۔ دَ مکے خلقو کعب بن اشرف ته اووے چه تاسو یو دوکه باز قوم یئ که تاسو واقعی پخپله خبره کښې رشتونی یئ نو زمونږ دے دوه وُو بتانو (جِبت او طاغوت) په وړاندے سجده اوکړئ۔
نو ده قریشو له دَ مطمئن کولو دَ پاره داسے اوکړل۔ دَ دے نه پس کعب قریشو ته اووے چه دیرش کسان ستاسو نه او دیرش زمونږ ته دے راوړاندے شی چه دَ ربّ دَ کعبے په وړاندے دَ دے شی عهد اوکړو چه مونږ به ټول په جمع سره دَ محمد (صلے الله علیه وسلم) خلاف جنګ کوُو۔
دَ کعب دے تجویز له قریشو غوره کړو او دغه شان دوی دَ مسلمانانو خلاف یو متحده محاذ جوړ کړو۔ دَ دے نه پس ابوسفیان کعب ته اووے چه تاسو

دَ علم خاوندان يئ ستاسو سره دَ الله تعالیٰ کتاب دے - ليکن مونږ بالکل جاهلان يُو - په دے وجه تاسو زمونږ متعلق دا او وايئ چه مونږ په حقه باندئ يُو او که محمّد (صلے الله عليه وسلم)

کعب تپوس اوکړو چه ستاسو دين څۀ دے؟ ابو سفيان اووے چه مونږ دَ حج دَ پاره خپل اُوښان ذبح کوُو، او دَ دوی يئ په خلقو سکوُو، دَ ميلمنو دَ پاره ميلمستيا کوُو، دَ خپلو خپلوانو سره تعلقات قائم ساتو، او دَ بيت الله طواف او عمره کوُو - دَ دے په خلاف محمّد (صلے الله عليه وسلم) دَ خپل پلار نيکه دين پريخودے دے - دَ خپلوانو نه جدا شوے دے - او دۀ زمونږ دَ پخوانی دين پخلاف خپل يو نوے دين پيش کړے دے -

دا خبرے چه کعب بن اشرف واورېدے نو دۀ اووے چه تاسو خلق په حقه يئ محمد (صلے الله عليه وسلم) (معاذالله) ګمراه شوے دے -

په دے باندے الله تعالیٰ دا ذکر شوی آياتونه نازل کړه دَ دوی دَ دروغو او فريب بد والے ئے بيان کړو (روح المعانی)

**دَ نفس خواهشات بعضِ وخت سړے دَ دين او ايمان نه محروم کوی**

کعب بن اشرف دَ يهوديانو يو ډير اوچت عالم وُه - چه پخُدائے پاک ئے هم عقيده لرله او دَ دۀ عبادت ئے کاوُه - ليکن هر کله چه دَ دۀ په زړۀ او دماغو باندے دَ نفس دَ خواهشاتو خبيث روح سوُر شو- نو دَ دۀ دَ مسلمانانو خلاف دَ قريشو سره ځان جوړ کړو، دَ مکے قريشو دَ دۀ سره دَ يو کيدو دَ پاره دا شرط اولګاوُ چه دے دِ زمونږ بتانو ته سجده اوکړی دۀ دا هم منظوره کړه چه دَ دے تفصيل اوس تير شو- دۀ دَ خپل مذهب خلاف دَ قريشو شرط قبول کړو او ليکن دَ خپلو مذهبی عقيدو دَ قائمو ساتلو دَ پاره ئے دَ دوی نه جدا کيدل اختيار نه کړل- قرآن کريم په يو بل مقام کښے داسے قسم يو واقعه دَ بلعم باعوراء په باره کښے بيان کړے ده، ارشاد دے: وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ الَّذِيْٓ اٰتَيْنٰهُ اٰيٰتِنَا فَانْسَلَخَ مِنْهَا فَاَتْبَعَهُ الشَّيْطٰنُ فَكَانَ مِنَ الْغٰوِيْنَ (ا)

مُفسرينو ليکلی دی چه بلعم بن باعوراء يو لوئے عالم وُو او دَ تصوف خاوند وُه - ليکن هر کله چه دۀ دَ خپل نفسانی خواهش دَ پوره کولو دَ پاره دَ موسیٰ عليه السلام

خلاف ناپاک تدبیرونه شروع کړل نو د دۀ ئے هیڅ وران نه کړل لیکن په خپله مردود او ګمراه شه۔

د دینه معلومه شوه چه د کتاب محض علم هیڅ نفع نشی ورکولے تر څو پورے چه په صحیح معنو کښے د دے تابعداری نه وی۔ او محض د دُنیوی طمع او په کاره خواهشاتو نه په مکمل طور سره ځان اونه ساتی۔ که دا سے نه وی نو انسان خو خپل مذهب هم په خواهشاتو باندے قربانوی۔ نن صباهم بعضے خلق د دے قسم نه دی چه د دُنیوی اوسیاسی غرضونو او مقصد ونو د حاصلولو د پاره خپل حق دین په آسانۍ سره پاتے کوی او د بے دینۍ عقیدو او نظریو لره د اسلام په جامه کښے د پیش کولو کوشش کوی نه دوی د خدائے د عهد او میثاق څه پرواه ساتی او نه د آخرت نه یریږی۔ او دا هر څۀ د شیطان په اشارو سره کیدے شی۔

د الله تعالیٰ لعنت په دنیا او آخرت کښے د رسوائۍ سبب دے

لعنت نوم دے د الله تعالیٰ د رحمت نه د لرے کیدو۔ او د چیرے رُسوائۍ او ذلت۔ په چا چه د الله تعالیٰ لعنت وی هغه د الله تعالیٰ نزدیکت نشی حاصلولے۔ د دوی په باره کښے د عذاب دومره سخته زوره نه راغلے ده چه فرمائی: مَلْعُوْنِيْنَ اَيْنَمَا ثُقِفُوْا اُخِذُوْا وَقُتِّلُوْا تَقْتِيْلًا "په چاچه د الله تعالیٰ لعنت دے هغوی چه کوم ځائے هم موندے شی څټونه دِ ورلره وهلے شی" دا خو د دوی دُنیا وی رُسوائی ده او د آخرت رُسوائی به ئے د دے نه هم سخته وی۔

د الله تعالیٰ د لعنت مستحق کوم خلق دی؟

وَمَنْ يَّلْعَنِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ نَصِيْرًا: د دے ایات نه معلومیږی چه په چا د الله تعالیٰ لعنت وی د هغۀ هیڅوک مددګار نه وی۔ اوس د غور کولو ځاے دا خبره ده چه د الله تعالیٰ د لعنت مستحق کوم خلق دی؟

په یو حدیث کښے ارشاد دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په سود ورکونکی سود خوړونکی او سود لیکونکی او په دے د ګواهی کونکی په ټولو باندے لعنت کړے دے او دوی ټول په ګناه کښے برابر دی (مسلم بحواله مشکوٰة)

په یو بل حدیث کښے دوئی فرمائی: مَلْعُوْنٌ مَنْ عَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوْطٍ (رزین بحواله مشکوٰة)

"یعنې کوم سړے چه د لوط (علیه السلام) د قوم کار پشان کار کوي هغه لعنتي دے."
(یعنې د سټهي سره بدکاري کونکے) بیا فرمائي چه الله تعالیٰ په غل باندے لعنت لیږي کوم چه د اګئ او رسئ پشان د معمولي شي د غلا نه هم منع نه کوي چه په بدله کښې ئے د دهٔ لاس کټ کیږي۔ (متفق علیه بحواله المشکوٰة)

په یو بل حدیث کښې ارشاد دے: چه

لَعَنَ اللّٰهُ اٰكِلَ الرِّبٰو وَمُوْكِلَهٗ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَالْمُصَوِّرَ۔
(رواه البخاري بحواله مشكوٰة)

" الله لعنت کړے دے په سود خوړونکي او سود خوروُونکي او په هغه ښځو چه په خپل جسم کښې خالونه کدي یا نورو لره خالونه کدي۔ او دغه شان په تصویر و نو جوړوُونکو"

په یو بل حدیث کښې فرمائي چه الله تعالیٰ لعنت لیږي په شرابو کړ دے په څکوُونکو او څکوُونکو په څښونکو د شرابو او اغستونکوئے او کړ دے په نچوړوُنکو او کړ دے په وړوُنکو او کړ دے په راغوښتونکو په ټولو باندے (ابوداؤد و ابن ماجه بحواله المشکوٰة)

په یو بل حدیث کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد فرمائي چه شپږ کسان داسے دي چه په دوي باندے ما لعنت کړے دے او الله تعالیٰ هم په دوي لعنت کړے دے او د هر نبي دُعا قبوله وي۔ هغه شپږ کسان دا دي:

(۱) د الله تعالیٰ په کتاب کښې زیاتي کونکے (۲) او هغه سړے چه په زور سره اقتدار حاصل کړي دے هغه چالره عزت ورکړي چالره چه الله تعالیٰ ذلیل کړے وي او ذلیل کړي هغه چالره چه الله تعالیٰ ورلره عزت ورکړے وي (۳) او د الله تعالیٰ تقدیر لره دروغژن کونکے (۴) د الله تعالیٰ حرام کړو څیزونو لره حلال ګڼړونکے (۵) ځما په اولاد کښې هغه سړے چه محرماتو لره حلالونکے وي۔ (۶) او ځما سنتو لره پاتے کونکے۔ (رواه البیهقي في المدخل بحواله المشکوٰة)

په یو بل حدیث کښې دوئ فرمائي: لَعَنَ اللّٰهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُوْرَ اِلَيْهِ: " یعنې څوک چه نامحرم ته په بد نظر سره ګوري او په چا چه نظر څوړ ځکي (په دے شرط چه په چا نظر پریوځي د هغه د اختیار او ارادے کښې دخل وي)

د حضرت ابو هریره رض نه روایت دے: لَعَنَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

الرَّجُلَ يَلْبَسُ لِبْسَةَ الْمَرْأَةِ وَالْمَرْأَةَ تَلْبَسُ لِبْسَةَ الرَّجُلِ؛" يعني نبي كريم صلے الله عليه وسلم په داسے سړی لعنت کړے دے چه د ښځے جامے اغوندی، او په داسے ښځه ئے لعنت کړے دے چه د سړی جامے اغوندی۔ (مشکوٰۃ)

عَنْ عَائِشَةَ رضی الله تعالیٰ عنها اَنَّ اِمْرَءَةً تَلْبَسُ النَّعْلَ قَالَتْ لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّے اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّجُلَةَ مِنَ النِّسَاءِ۔ (ابو داؤد بحوالۂ مشکوٰۃ ص۳۸۳)

"حضرت عائشہؓ ته چا عرض اوکړه چه یوه ښځه د سړو پیزار پښیو کوی نو حضرت عائشہؓ او فرمائیل چه د الله رسولؐ په داسے ښځے باندے لعنت کړے دے چه د سړو طور طریقه اختیار وی۔"

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضی الله تعالیٰ عنهما قَالَ لَعَنَ النَّبِیُّ صَلَّے اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُخَنَّثِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالْمُتَرَجِّلَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَقَالَ اَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ بُيُوْتِكُمْ۔ (رواه البخاری بحوالۂ مشکوٰۃ)

"د حضرت ابن عباسؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم لعنت کړے دے په هغو سړو چه د ښځو پشان شکل صورت جوړه وی هیجړګان جوړ یګی۔ او لعنت ئے کړے دے په هغو ښځو چه په شکل صورت کښے د ځان نه سړی جوړه وی۔ او ارشاد ئے او فرمایه چه دوی د خپلو کورونو نه اوباسئ۔"

په بخاری شریف کښے دی چه حضرت عبد الله بن مسعودؓ فرمائیلی دی چه:

لَعَنَ اللهُ الْوَاشِمَاتِ وَالْمُسْتَوْشِمَاتِ وَالْمُتَنَمِّصَاتِ وَالْمُتَفَلِّجَاتِ لِلْحُسْنِ الْمُغَيِّرَاتِ خَلْقَ اللهِ۔

یعنی د الله تعالیٰ لعنت دِ وی په خالونو ایښودونکو او چه څوک چا له خالونه ګدی او څوک چه ورونه وچته او باسی او نریٔ کوی ئے، او لعنت دے وی په هغه ښځو چه د ښائست د پاره د غاښونو مینځ ارتوی چه د الله تعالیٰ خلقت بدلوونکے دی۔"

**د لعنت حکمونه** | لعنت چه څومره ناکاره شے دے دومره د دے یکولو پابندۍ هم تاکیدلی دی، په یو مسلمان لعنت کول حرام دی او په کافر باندے هم صرف په هغه وخت کښے کول شی هر کله چه د ده په کفر باندے مرګ یقینی وی۔ د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشادات د دے متعلق دادی: په حدیث کښے دی:

عَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍؓ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالطَّعَّانِ وَلَا بِاللَّعَّانِ وَلَا الْبَذِيْءِ۔
(رواه الترمذی بحواله مشکٰوة)

"حضرت ابن مسعودؓ فرمائی چه ما ګ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه دا اورېدلی دی چه هغه مؤمن نه دے چه طعنه کونکے لعنت کونکے او بدګویه وی۔"

---

عَنْ اَبِی الدَّرْدَاءِؓ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ اِنَّ الْعَبْدَ اِذَا لَعَنَ شَيْئًا صَعِدَتِ اللَّعْنَةُ اِلَى السَّمَآءِ فَتُغْلَقُ اَبْوَابُ السَّمَآءِ دُوْنَهَا ثُمَّ تَهْبِطُ اِلَى الْاَرْضِ فَتُغْلَقُ اَبْوَابُهَا دُوْنَهَا ثُمَّ تَاْخُذُ يَمِيْنًا وَّشِمَالًا فَاِذَا لَمْ تَجِدْ مَسَاغًا رَجَعَتْ اِلَى الَّذِیْ لُعِنَ اِنْ كَانَ لِذٰلِكَ اَهْلًا وَاِلَّا رَجَعَتْ اِلٰى قَائِلِهَا۔
(ابوداؤد بحواله مشکٰوة)

"حضرت ابودرداءؓ فرمائی چه ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه اورېدلی دی چه کله یو بنده په څه شی باندې لعنت کوی نو هغه لعنت اسمان ته خېژی نو د اسمان دروازے ورته بندېږی ... شی بیا هغه زمکے ته راکوزېږی نو د زمکے دروازے بنده ولے شی (یعنی زمکه ئې نه قبلوی) بیا هغه ښیٔ طرف ته او ګڅ طرفته ګرځی نو چه چرته لار بیا نه مومی نو چه پچا لعنت شوے وی هغه ته لاړ شی نو که هغه واقعی د لعنت قابل وی نو په هغه پریوځی ورنه بیا دے ویونکی ته واپس شی او په ده پرے وځی۔"

---

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍؓ اَنَّ رَجُلًا نَازَعَتْهُ الرِّيْحُ رِدَآءَهٗ فَلَعَنَهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلْعَنْهَا فَاِنَّهَا مَاْمُوْرَةٌ وَاِنَّهٗ مَنْ لَعَنَ شَيْئًا لَيْسَ لَهٗ بِاَهْلٍ رَجَعَتِ اللَّعْنَةُ عَلَيْهِ۔
(رواه الترمذی بحواله مشکٰوة ص ۴۱۳)

"د حضرت ابن عباسؓ نه روایت دے چه هوا د یو سړی څادر راوچت کړو نو ده په هوا لعنت اوکړو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم او فرمائیل چه ته په دے لعنت مه کوه ځکه چه دے ته امر شوے دے د الله د طرفه او زیاد ساته) کوم سړے چه په داسے شی لعنت اوکړی چه هغه ئې مستحق

نه وي نو دا لعنت واپس په ده ورځي ځکه چې د لعنت پر ځای وه.

**مسئله:-** د یو معیّن سړي په باره کښې تر څو چې دا نه وي معلومه چې د ده مرګ په کفر باندې شوی دی لعنت پرې وئیل جائز نه دي اګر چه دې فاسق وي. د دې اصولو په بنا په یزید د لعنت کولو نه علامه شامي منع کړې ده. لیکن یو معلوم کافر چې مړ شي، ځې په کفر باندې یقیني وي مثلاً ابوجهل او ابولهب باندې جائز دی (شامي ج ۲ ص ۸۳۶)

**مسئله:-** د چا د نوم اخستو نه بغیر داسې لعنت کول جائز دي چې په ظالمانو یا دروغژنو دې د الله لعنت وي.

**مسئله:-** په لُغت کښې د لعنت معنیٰ "د الله د رحمت نه د لرې کېدو ده" شرعاً د کفارو په حق کښې د دې معنیٰ د الله د رحمت نه د لرې کېدو ده او د مؤمنانو په حق کښې د صالحانو د درجې نه د لاندې راغورځېدو ده (شامي د قهستاني ج ۲ ص ۸۳۶ نه نقل کړې ده) په دې وجه د یو مسلمان د پاره د ده د نیک عمل کمېدو دُعا هم جائز نه ده.

---

أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ

آیا د دوی سره څه حصه شته په حکومت کښې بیا به دوی ورنه کړي خلقو ته د یو

نَقِيرًا ﴿٥٣﴾ أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ

خسنړي برابر. یا حسد کوي د خلقو سره په هغې باندې چې ورکړې دي دوی له الله

مِن فَضْلِهِ ۖ فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ وَ

د خپل فضل نه پس مونږ ورکړې ده د ابراهیم خاندان له کتاب او

الْحِكْمَةَ وَآتَيْنَاهُم مُّلْكًا عَظِيمًا ﴿٥٤﴾ فَمِنْهُم مَّنْ آمَنَ

حکمت او دوی له مونږ ورکړې ده لوئې حکومت. بیا په دوی کښې چا اومنله

بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ۗ وَكَفٰى بِجَهَنَّمَ سَعِيْرًا ﴿۵۵﴾

دے لره او څوک دے نه پخنلي شو - او پوره دے د دوزخ لمبے وهونکے اور -

# لنډ تفسير

آیا د دوی سره څۀ حصه شته د حکومت پس په داسے حالت کښے خو به نورو خلقو ته لږ شے هم ورنه کړی یا د نورو خلقو (لکه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم) په حقه څیزونو باندے سوزی کوم چه الله تعالی دوی لره د خپل فضل نه ورکړی دی پس (تاسو ته داسے شے ملاو یدل څۀ نوے خبره نه ده ځکه چه) مونږه (د وړاندے نه) د حضرت ابراهیم علیه السلام خاندان (والو) ته (آسمانی) کتاب هم ورکړے دے او علم هم ورکړے دے او مونږ دوی ته ډیر لوئے حکومت هم ورکړے دے (چنانچه په بنی اسرائیلو کښے ډیر پیغمبران تیر شوی دی بعضے پکښے بادشاهان هم وُو - لکه حضرت یوسف علیه السلام او حضرت داؤد علیه السلام، او د حضرت داؤد علیه السلام د بیبیانو ډیروالے هم مشهور دے او دا ټول په اولاد د ابراهیم علیه السلام کښے وُو - پس هرکله چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم هم د ابراهیم علیه السلام په اولاد کښے دے نو که دوئی ته دا نعمتونه او بخششونه ملاؤ شو نو آخو څۀ د تعجب خبره نه ده) پس (د دے پیغمبرانو علیهم السلام په زمانه کښے هم چه کوم د ابراهیم علیه السلام په خاندان کښے تیر شوی دی کوم خلق چه موجود وُو) په دوی کښے بعضو خو ایمان راوړو په دغے (کتاب او حکمت) باندے، او بعضے داسے وُو چه د دغے نه ئے مخونه واړه وُل (پس که ستا په پیغمبرئ او قرآن باندے هم ستا د زمانے بعضے خلق ایمان رانهٔ وړی نو هیڅ د خفګان خبره نه ده) او (که دے کفارو او اعتراض کونکو ته په دنیا کښے سزا که وی یا نهٔ هم وی نو څۀ او شو، د دوی د پاره په آخرت کښے) د دوزخ سوځونکے اور (د سزا د پاره) کافی دے -

# معلومات او مسئلې

**د یهودو په حسد کولو باندې سخت مذمت**

الله تعالیٰ چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته کوم علم او فضل او جاه وجلال ورکړے وه - په دے به یهود دیان سوزیدل الله په ۵۳ او ۵۴ نمبر ایا تونو کښې د دوی د دے حسد او بغض سخت مذمت (ناکاروالی) کړے دے او اوئے فرمائیل چه دا حسد په دوه وجهو سره عقل نه منی - یوه وجه ئے په ۵۳ نمبر ایات کښې بیان کړه او بله ئے په ۵۴ نمبر کښې - لیکن د دواړو حاصل یو دے - یعنی که ستاسو حسد په دے خبره دے چه اصل د حکومت خاوندان تاسو یئ، ستاسو حکومت دوی ته ملاؤ شوے دے نو دا خوښکاره غلطه ده، چه تاسو د حکومت نه بچیله محروم یئ - او که تاسو ته د حکومت څه حصه ملاؤ وے نو تاسو به یوه کوبځکه هم چالره نه وه ورکړے او که ستاسو حسد په دے دے چه کو یاکر زمونږ نه ورته حکومت نه دے ورغلے خو بیا هم دوی ته ولے ملاؤ شو؟ د دوی د حکومت سره څه تعلق دے؟ نو د دے جواب ئے داورکړو، چه دے هم د پیغمبرانو د خاندان نه دے چه د وړاندې نه یکښې حکومت راروان دے نو په دے وجه حکومت ناآشنا ځائے ته نه دے تلے - نو ستاسو حسد بے ځایه دے -

**د حسد تعریف، حکم او د ضرر ونو بیان**

علامه نووی شارح مسلم د حسد تعریف داسے کوی: اَلْحَسَدُ تَمَنِّیْ زَوَالِ النِّعْمَةِ: مسلم ج ۲: یعنی د بل سړی نه د نعمت لرے کید و خواهش کولو ته حسد وائی، او دا حرام دی -

د نبی کریم صلی الله علیه ارشاد دے:

لَا تَبَاغَضُوْا وَلَا تَحَاسَدُوْا وَلَا تَدَابَرُوْا وَكُوْنُوْا عِبَادَ اللهِ اِخْوَانًا، وَلَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ اَنْ يَّهْجُرَ اَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ -

(مسلم ج ۲)

"تاسو د یو بل سره بغض او حسد مکوئ او مه یو بل ته شا کوئ بلکه د الله بندګان او رونړه جوړ شئ - او جائز نه دی یو مسلمان لره چه د خپل رور سره د درے ورځو نه زیات تعلق قطع کړی"

په یو بل حدیث کښې فرمائی:

اِیَّاکُمْ وَالْحَسَدَ فَاِنَّ الْحَسَدَ یَاْکُلُ الْحَسَنَاتِ کَمَا تَاْکُلُ النَّارُ الْحَطَبَ۔

(ابوداؤد بحواله مشکوٰة)

"تاسو د حسد نه ځان ساتئ ځکه چه حسد نیکولره داسې خوري لکه ځنګه چه اور لرګي لره خوري"

عَنِ الزُّبَیْرِ رض قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ دَبَّ اِلَیْکُمْ دَاءُ الْاُمَمِ قَبْلَکُمْ اَلْحَسَدُ وَالْبَغْضَآءُ هِیَ الْحَالِقَةُ لَآ اَقُوْلُ تَحْلِقُ الشَّعْرَ وَلٰکِنْ تَحْلِقُ الدِّیْنَ۔

(احمد و ترمذي بحوالمشکوٰة)

"حضرت زبیرؓ فرمائي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه تاسو ته هم د تیرو قومونو مرض په پټه سره رانږوتې دے او هغه حسد دے او بغض داسې خوئي دے چه خرونکے دے زه دا نه وایم چه دے ویښته خروي بلکه دین لره خروي۔

حسد خواه په دیني کمال باندے وي او که په دُنیاوي کمال وي دواړه حرام دي، نو د الله تعالیٰ د قول: اَمْ لَهُمْ نَصِیْبٌ مِّنَ الْمُلْکِ نه دُنیاوي امرته اشاره وه او په اَلْکِتٰبَ وَالْحِکْمَةَ؛ سره دیني کار ته اشاره معلومیږي۔

اِنَّ الَّذِیْنَ کَفَرُوْا بِاٰیٰتِنَا سَوْفَ نُصْلِیْهِمْ نَارًا ؕ کُلَّمَا

بے شکه څوک چه منکر شو زمونږ د ایاتونو نه دوی لره به مونږ داوغورزوو اورته، هر کله

نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا غَیْرَهَا لِیَذُوْقُوا

چه اوسوزي څرمنې د دوي نو مونږ به بدلے کړو دوي لره نورې څرمنې چه او ځکي

الْعَذَابَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ کَانَ عَزِیْزًا حَکِیْمًا ﴿۵۶﴾ وَالَّذِیْنَ

عذاب بے شکه الله دے زبردست حکمت والا۔ او کوم خلق چه

اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ

ایمان ئے راوړو او کارئے اوکړو نیک البته مونږ به داخل کړو دوي لره باغونو ته چه بهیږي

مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ لَهُمْ فِيْهَآ

لاندے د هغوی نه ویالې (نهرونه) اوسی به په دے کښې همیشه - د دوی دپاره هلته

اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۡ وَّ نُدْخِلُهُمْ ظِلًّا ظَلِيْلًا ﴿۵۷﴾

ښځې دی پاکې - او دوی لره به مونږ داخل کړو کنړ و سوری ته -

# لنډ تفسیر

بے شکه کوم خلق چه زمونږ د آیاتونو (احکامو) نه منکر شو (مونږ به دوی) ډیر زر په یو سخت اور کښې داخل کړو او هلته به د دوی برابر دا حالت وی چه) کله یو وار د دوی څرمن (په اور سره) اوسوزی نو مونږ به د دے اوّلې څرمنے پځائے فورًا بله (تازه) څرمن پیدا کړو د دے دپاره چه (همیشه) عذاب څکی (څکه چه په اول څرمنه کښې د سوزید و نه پس دا شک کیدے شو چه شاید په دے کښې به اوس د نورو سوزید و ادراک او پوهه نه وی یعنی اوس به دا نوره په سوزید و نه پوهیږی نو په دے وجه ئے د دے شک ختمولو دپاره دا او وے) بے شکه الله تعالیٰ زبردست دے (چه هغهٔ دا سے سزا ورکولے شی او) حکمت والا دے (نو سره د قدرت نه سوے څرمنے ته هم تکلیف د رسولے شی بیائے هم په څهٔ حکمت سره بدله کړه، لکه چه د یو حکمت بیان ئے دغه اوس شوے دے) او کوم خلق چه ایمان راوړی او نیک کارکوی مونږ به دوئ لره ډیر زر دا سے باغونو ته داخل کړو چه د هغې (د محلونو) لاندے به نهرونه بهیږی دوی به په هغې کښې همیشه اوسیږی، د دوی دپاره به په دغے (باغونو) کښې پاکے صافے بیبیانے وی او مونږ به دوی لره د ډیر کنړ سوری (ځائے) ته داخل کړو -

# معلومات او مسئلے

حضرت معاذؓ د ‹ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ › په تفسیر کښې فرمائی - چه کله د دوی څرمنے او سوزی نو بدلے به کړے شی، او دا کار به دومره په جلتئ سره کیږی

چه په یو ساعت کښې به شل پیرې څرمن بدلولې شي -

او حضرت حسن بصریؒ فرمائي :-

تَأْكُلُ النَّارُ كُلَّ يَوْمٍ سَبْعِيْنَ اَلْفَ مَرَّةٍ كُلَّمَا اَكَلَتْهُمْ قِيْلَ لَهُمْ عُوْدُوْا فَيَعُوْدُوْنَ كَمَا كَانُوْا - (اخرجه البيهقي عن الحسن بحواله مظهري ج ۲)

"او ر به په یوه ورځ کښې اویا زره پیرې دوی لره خوري هر کله چه دوی لره اوخوري نو دوی ته به او ویئیلې شي چه بیا په اول حالت شئ- نو دوی به بیا په اول حالت شي"

عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ اَهْوَنَ اَهْلِ النَّارِ عَذَابًا رَجُلٌ فِيْ اَخْمَصِ قَدَمَيْهِ جَمْرَتَانِ يَغْلِيْ مِنْهُمَا دِمَاغُهُ كَمَا يَغْلِي الْمِرْجَلُ بِالْقُمْقُمِ -

"نبي علیه السلام فرمائي چه په دوزخیانو کښې به د ټولو نه کم د عذاب په اعتبار سره هغه سړې وي د چا په تلو کښې چه به د اور دوه سکروټې وي چه د دې په وجه به د ده دماغ د کټوئ پشان جوشیږي"

(رواه البخاري ومسلم بحواله الترغيب والترهيب ج ۴ ص ۲۳۹)

**وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ تفسیر**

حاکم د ابو سعید خدریؓ نه نقل کړې دې چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه د جنت ښځې به پاکې وي" یعني د حیض، نفاس، بول و براز او پوزې (ترشې) نه -

حضرت مجاهد په ذکر شو و څیزونو باندې اضافه کوي فرمائي چه دوی به د بچو پیدا کولو او د دې ناپاکې نطفې نه هم پاکې وي - (مظهري)

ظِلًّا ظَلِيْلًا : د ظل نه پس ئې د ظلیل لفظ ذکر کړو دې طرف ته ئې اشاره اوکړه چه دغه سوړې به د همیشه دپاره وي او کمزور سوړې به وي لکه چه وئیلې شي : شَمْسٌ شَامِسٌ او لَيْلٌ لَيْئِلٌ ؛ د دې نه اشاره دې طرف ته ده چه د جنت نعمتونه به همیشه پاتې کیدونکي وي -

عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ رض عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَشَجَرَةً يَسِيْرُ الرَّاكِبُ فِيْ ظِلِّهَا مِائَةَ عَامٍ مَا يَقْطَعُهَا

حضرت ابو هریرةرض د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوي چه دوئ فرمائیلي دي تحقیق په جنت کښې یو داسې ونه ده چه د هغې سوړې به یو سوړ په سل کاله کښې قطع کړي

اِقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ وَ ظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ (متفق علیه بحواله مظهری) | که تاسو غواړی نو دا آیات: وَظِلٍّ مَّمْدُوْدٍ او لولئ"

د ربیع بن انس د: ظِلًّا ظَلِیْلًا: په تفسیر کښې فرمائی: هُوَ ظِلُّ الْعَرْشِ الَّذِیْ لَا یَزُوْلُ: یعنی هغه د عرش سوری دے چه چرته به هم زائله نه شی- یعنی نه به لرے کیږی-

اِنَّ اللّٰهَ یَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰۤی اَهْلِهَا ۙ وَ اِذَا

بے شکه الله تاسو ته فرمائی چه اورسوئ امانتونه امانت والو ته او کله چه

حَكَمْتُمْ بَیْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

فیصله کوئ په خلقو کښې نو فیصله کوئ په انصاف سره- الله ښه

نِعِمَّا یَعِظُكُمْ بِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِیْعًۢا بَصِیْرًا ﴿۵۸﴾

نصیحت کوی تاسو ته- بے شکه الله دے اوریدونکے لیدونکے-

یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْۤا اَطِیْعُوا اللّٰهَ وَ اَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ

اے ایماندارو! حکم منئ د الله او حکم منئ د رسول

وَ اُولِی الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِیْ شَیْءٍ فَرُدُّوْهُ

او د حاکمانو کوم چه ستاسو نه وی بیا که جګړه مو واشی په څه شی کښې نو هغه واپس کوئ

اِلَی اللّٰهِ وَ الرَّسُوْلِ اِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَ الْیَوْمِ

طرف د الله ته او د رسول ته که یقین لرئ په الله او په ورځے

ع ۸/۹/۵ الْاٰخِرِ ؕ ذٰلِكَ خَیْرٌ وَّ اَحْسَنُ تَاْوِیْلًا ﴿۵۹﴾ ع

د قیامت- دا خبره ښه ده او ډیر غوره ده د کړے انجام

# لنډ تفسير

راے د حکومت خاوندانو! خواه که په لږو مو حکومت وي او که په ډيرو) بے شکه الله تعالیٰ د دے خبرے حکم درکوي چه حقدار و ته د هغوي حقونه (رکوم چه ستاسو په ذمه دي) د سوئي او (تاسوته) دا (هم حکم درکوي) چه کله (د خپلو رعيتيانو) د خلقو فيصله کوئ (په دا سے حقونو کښے چه د دوي په مينځ کښے د يو بل په ذمه وي) نو په عدل (انصاف) سره فيصله کوئ بے شکه الله تعالیٰ د کومے خبرے چه تاسو ته نصيحت کوي دغه خبره ډيره ښه ده (د دنيا په اعتبار سره هم، چه په دے کښے د حکومت محکموالے دے، او د آخرت په اعتبار سره هم چه سبب د نزديکت او ثواب دے) بے شکه الله تعالیٰ (ستاسو خبرو لره چه په باره د امانتوا و تصفيئے کښے ستاسو نه کيږي) ښے اوري (او ستاسو کارونه کوم چه په دے باره کښے ستاسو نه کيږي) ښه وينې (نو که څوک اوکوتاهي اوکړي نو هغه پرے خبريږي تاسو لره به سزا درکړي، دا خطاب حاکمانو ته او شو اوس محکومينو (رعيتيانو) ته خطاب دے چه) اے ايماندارو! تاسو د الله تعالیٰ خبره منئ او د رسول (صلے الله عليه وسلم) خبره منئ او دا حکم ستاسو او د حاکمانو د پاره عام دے) او په تاسو (مسلمانانو) کښے چه کوم خلق حاکمان دي د هغوي هم (خبره منئ، او حکم خاص دے د محکومينو سره) بيا (که د دوي حکمونه د الله او د رسول د دوينا مخالف نه وي نو په دے کښے د دے حاکمانو حکم منئ او کړے (د دوي په احکامو کښے) په يو کار کښے تاسو يخپل مينځ کښے په اختلاف شوئ (چه دا حکم د الله او د رسول د دوينا نه خلاف دے او که نه دے) نو (د رسول الله صلے الله عليه وسلم په ژوندانه کښے د هغه نه تپوس کوئ او ورو ستو د دوي د وفات نه مجتهدينو اماما نو او عالمانو ته رجوع کوئ) دغه کار لره د الله (کتاب) او د رسول (صلے الله عليه وسلم سنتو) طرف ته حواله کوئ را و د دے حضرا تو نه چه څۀ فتوٰی درته ملاؤ شي په دے تول حاکمان او محکومين عمل کوئ) که تاسو په الله او په ورځے د قيامت ايمان لرئ (ځکه چه د دے ايمان مقتضیٰ دا ده چه د قيامت په ورځ کښے د الله تعالیٰ د ګرفت نه اويريږئ) دا کار د دو نه

رکوم چه ذکر شو د الله د رسول او د اولی الامر منکم ، او د جګړې و حواله کول د الله کتاب او سنت ته) ټول د په دنیا کښې هم) غوره دی او د په آخرت کښې هم د دے انجام ډیر ښه دے (ځکه چه په دنیا کښې امن او راحت دے او په آخرت کښې نجات او سعادت دے)۔

# معلومات او مسئلے

**د آیات شان نزول** په دے آیاتو نو کښې د اول آیات د نزول یو خاص واقعه ده - چه د کعبے خدمت د اسلام نه وړاندے هم ډیر عزت ګڼړ لے کیده - او کوم خلق چه به د بیت الله د څه خاص خدمت د پاره منتخب کیده نو هغه به په ټول قوم کښې ډیر عزتمند منلے کیده - په دے وجه د بیت الله مختلف خدمتونه مختلفو خلقو کښې تقسیم شوی وُو - د جاهلیت د ورځو نه د حج په ورځو کښې حاجیا نو ته د اوبو ورکولو خدمت د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ترهٔ محترم حضرت عباس رض په ذمه وُه - چه سقایه ئے ورته وئیلو - دغه شان بعضے نور خدمتونه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم بل ترهٔ ابوطالب سپارلی وُو - دغه شان د بیت الله کنجی ساتل او په مقرره ورځو کښې د دهٔ بیرته کول بندول د عثمان بن طلحه په ذمه وُو -

د عثمان بن طلحه خپل بیان دے چه د جاهلیت په زمانه کښې به مونږه د پیر او جمعرات په ورځ بیت الله شریف پرانستو ، او خلقو به ورته د دننه تللو سعادت حاصلولو - د هجرت نه وړاندے یوه ورځ نبی کریم صلے الله علیه وسلم د خپلو څو صحابوؓ سره بیت الله شریف ته د دا خلید و د پاره تشریف راوړو دغه وخته پورے عثمان بن طلحه په اسلام کښې نه وُو داخل شوے) دهٔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دننه تللو نه منع کړو ، او ډیرے بدے ردے ئے ورته اووے - دوی په ډیر صبر سره د دهٔ سختے خبرے او زغلے بیائے او وهائیل ، اے عثمانه ! شاید ته به یوه ورځ دا د بیت الله کنجی زما په لاس نو کښے اووینے چه ماته به اختیار وی چه چا ته غواړم ورئے کړم - عثمان بن طلحه اووئے چه کر د اسے اوشوه نو قریش به هلاک او ذلیله شی - دو

او فرمائیل چه نا، دغه وخت به قریش ابا داوعزتمند شي، دوی داوفرمائیل او بیت الله شریف ته کےدننه تشریف یوړو۔ ددے نه پس هرکله چه ماخپل زړهٔ را تعول کړو (عثمان بن طلحه وائی) نو ځما یقین شان راغے چه دوی څهٔ اوفرمائیل دا به اوشي۔ مادغه وخت دمسلمانیدو اراده اوکړه۔ لیکن دخپل قوم تندی م تاڼوه او لیدل او تولوزهٔ دیر سخت ملامته کړم په دے وجه ما خپله اراده پوره نه کړے شوه۔ هرکله چه مکه فتح شوه نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم زهٔ راواغوختم دبیت الله کنجی ئے طلب کړه ما ورته پیش کړه۔

په بعضے روایتونوکښے دی چه عثمان بن طلحه کنجی واغستله او بیت الله ته بره اوختو حضرت علی کرم الله وجههٔ ترے دحضورؐ دحکم دتعمیل دپاره په زبردستئ دلاس نه واغستله حضور صلے الله علیه وسلم لره ئے ورکړه بیت الله ته دداخلید واوهلته دموځ کولو نه پس هرکله چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم باهر تشریف راوړو نو بیا ئے کنجی ماته واپس کړه او ئے فرمائیل چه واخله اوس داکنجی به همیشه ستاپه خاندان کښے ترقیامته پورے وی کوم سړے چه ستانه داکنجی واخلی هغهٔ به ظالم وی، مقصد داوه چه بل سړی ته دا حق نیشته چه ستانه داکنجی واخلی۔ ددے سره ئے داهدایت اوفرمایه چه دبیت الله ددے خدمت په بدله کښے چه تاته کوم مال ملاؤشی دغه دشرعی قاعدے مطابق استعمالوه۔

عثمان بن طلحهؓ وائی چه کله ما کنجی واغستله په خوشحالئ خوشحالئ روان شوم نو دوی ماته بیا آواز اوکړو او اوئے فرمائیل۔ څنګه عثمانه کومه خبره چه ما وئیلے وه هغه پوره شوه او که نه؟ اوس ماته هغه خبره یاده شوه کومه چه نبی کریم صلے الله علیه دهجرت نه اول فرمائیلے وه، چه یو ورځ به ته دا کنجی ځما په لاس کښے اووینے۔ ما عرض اوکړه چه بے شکه ستاسو ارشاد پوره شو، او دغه وخت ما کلمه اووے مسلمان شوم (مظهری بروایت ابن سعد)

حضرت فاروق اعظمؓ فرمائی چه په دغه ورځ هرکله نبی کریم صلے الله علیه و سلم دبیت الله شریف نه باهر تشریف راوړو نو دا ایات ئے په ژبه مبارکه وه۔ اِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا ؛ ددے نه وړاندے ما دا آیت

چا ته د دوی نه نه وُوا وریدلی۔ ښکاره خبره ده چه دا ایات دغه وخت د کعبې دننه نازل شوي وُه۔ په دې ایات د عمل کولو د پاره نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوباره عثمان بن طلحهؓ راوُغوښتو کنجی ئې هغهٔ ته اوسپارله۔ ځکه چه عثمان بن طلحهؓ کله کنجی نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ورکړې وه نو دا ئې ورته وئیلی وُو چه "زهٔ دا آمانت تاسو ته سپارم" اګرچه د ضابطې مطابق د هغهٔ داخبره صحیح نه وه، بلکه نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د هر قسم اختیار وُه، چه څهٔ غواړی هغهٔ اوکړی، لیکن قرآن کریم د امانتو د صورت هم لحاظ اوساتلو او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ئې دا هدایت اوکړو چه کنجی دې هم عثمان ته واپس کړی۔ حال دا دې چه دغه وخت حضرت عباس او حضرت علی رضی الله عنهما هم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا درخواست کړې وُه چه دا کنجی دې مونږ لره راکړې شي۔ لیکن د ذکر شوی ایات موافق نبی کریم صلی الله علیه وسلم د هغوی درخواست رد کړو کنجی ئې عثمان بن طلحهؓ ته واپس کړه (مظهری)

تر دې ځائې پورې د ایات په شانِ نزول باندې خبره وه۔ او په دې د ټولو اتفاق دې چه د ایات شانِ نزول که یوه خاصه واقعه وی خو حکم عام وی۔ چه پابندی ئې د ټول اُمت د پاره ضروری وی۔

اوس ئې معنیٰ او مطلب واورئ:

ارشاد دې: اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا: "یعنی الله تعالیٰ تاسو ته حکم کوی چه امانتو نه د هغې مستحقو ته رسوئ" د دې حکم مخاطب دا هم کیدې شي چه عام مسلمانان وی او دا هم احتمال دې چه خاص امیران او حاکمان ئې مخاطب وی۔ او زیاته ښکاره خبره دا ده چه هر هغه سړې ئې مخاطب دې چه د څهٔ امانتو امین دې، په دې کښې عوام هم داخل دی او حاکمان هم۔

**د امانتونو د ادا کولو تاکید**

حاصل د دې ارشاد دا دې چه د چا په لاس کښې څهٔ امانت وی په دهٔ لازم دی چه دغه امانت خپل مستحق ته اورسوی۔ نبی کریم صلی الله علیه وسلم د امانتو د ادا کولو ډیر تاکید فرمائیلې دې۔ حضرت انسؓ فرمائی چه ډیره کمه به داسې شوې وی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به خطبه ورکوله او دا الفاظ به پکښې نه وُو؛

| | |
|---|---|
| لَا اِیْمَانَ لِمَنْ لَّا اَمَانَةَ لَهٗ وَلَا دِیْنَ لِمَنْ لَّا عَهْدَ لَهٗ۔ | "یعنی په چا کښې چه امانتداری نیشته په هغهٔ کښې ایمان نیشته او په چا کښې چه د معاهدې پابندی نیشته په هغهٔ کښې دین نیشته"۔ |

دا روایت بیهقي په شعب الایمان کښې نقل کړې دے۔

**خیانت د نفاق علامه ده** — په بخاری او مسلم کښې د حضرت ابوهریره او ابن عمرؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم یوه ورځ د نفاق نښې خودے یوه نښه ئې پکښې دا او خوده چه کله ورسره امانت کیدے نو خیانت پکښې کوی۔

**د امانتونو قسمونه** — د لته دا خبره د غور کولو ده چه قرآن کریم لفظ د امانات په صیغه د جمع سره فرمائیلے دے۔ چه په دے کښې اشاره ده۔ چه امانت صرف دا نه دی چه د چا څهٔ مال د چا سره پروت وی چه عام طور سره دیته امانت وائی بلکه د امانتونو نور قسمونه هم دی۔ کومه واقعه چه د آیات د نزول اوس ذکر شوه پخپله په دے کښې هم امانت څهٔ په مالی شکل کښې نه وو۔ بلکه د بیت الله د خدمت یو کنجی چه د عهدے نښه ده۔

**د حکومت منصبونه د الله تعالیٰ امانت دی** — د دے نه معلومه شوه چه د حکومت عهدے او منصبونه څومره چه دی ټول د الله تعالیٰ امانتونه دی چه امانتدار ئې حاکمان او افسران دی۔ د چا په لاس کښې چه د معزول کولو او مقرر کولو اختیارات دی، دوی لره جائز نه دی چه یوه عهده داسے سړی ته او سپاری چه د خپل عملی یا علمی قابلیت په اعتبار سره د هغے اهل نه دے۔ بلکه په دوی باندے لازم دی چه د هر کار او هرے عهدے د پاره پخپل حکومت کښې مستحق تلاش کړی۔

**په یو منصب باندے نااهل لره مقررکول کونکے ملعون دے** — چه د یو ده اهلیت او ټولو شرطونو پوره کونکے څوک ملاؤ نه شی نو په موجودو خلقو کښې چه کوم یو د قابلیت او امانتدارئ په لحاظ سره د ټولو نه زیات وی هغهٔ لره د ترجیح ورکولے شی۔

په یو حدیث کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے چه کوم سړی ته

دغا مو مسلمانانو څخه ذمواري سپارلے شوے وی، بيا دے په يوه عهده چا لره محض د دوستئ او تعلق په بنا سره بغير د اهليت معلومولو نه مقرر کوی په ده د الله لعنت دے - نه د ده فرض قبول دی او نه نفل تو دے چه دے جهنم ته داخل کړے شی -(جمع الفوائد ص۳۲۵)

په بعضے روايتو نو کښے دی چه کوم سړی يو عهده چا ته او سپاره له، او سره د دے چه ده ته معلومه وه چه بل سړے د دے عهدے د پاره د ده نه زيات قابل او اهل شتے، نو ده د الله خيانت او کړه او د رسول او د ټولو مسلمانانو - نن صبا چه کوم د حکومت نظام خراب دے دا ټول د دے قرآنی تعليم د نظر انداز کولو نتيجه ده، چه په تعلقاتو او سفارشونو سره او په رشوتونو سره عهدے تقسيمولے شی چه د دے نتيجه دا ده چه نا اهل او نا قابله خلقو په عهد و باندے قبضے او لګولے د خدائے مخلوق پريشانه کوی، او د حکومت ټول نظام برباد يږی -

په دے وجه نبی کريم صلے الله عليه وسلم په يو حديث کښے ارشاد فرمائيلے دے: اِذَا وُسِّدَ الْاَمْرُ اِلٰی غَيْرِ اَهْلِهٖ فَانْتَظِرِ السَّاعَةَ: يعنی هر کله چه او وينے چه د کارونو ذمواری داسے خلقو ته او سپارلے شوه چه د دغے کار اهل او قابل نه وی نو او س د دے فساد هيڅ علاج نيشته) د قيامت انتظار کوه - دا روايت د صحيح بخاری په کتاب العلم کښے دے -

لنډه دا ده - چه قرآن کريم لفظ د اَمٰنٰت په صيغه د جمع سره راوړه دے ط فتنه ئے اشاره او کړه چه امانت صرف د دے نوم نه دے چه د يو سړی مال د بل سړی سره په طور د امانت پروت وی بلکه د امانت هم ير قسمونه دی چه په هغے کښے د حکومت عهدے هم داخلے دی -

او په يو حديث کښے د نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے:

اَلْمَجَالِسُ بِالْاَمَانَةِ | "يعنی مجلسونه په امانتداری سره پکار دی"

مطلب دا دے چه په مجلس کښے کومه خبره اوشی هغه د دے مجلس امانت دے - د دے مجلس د اجازت نه بغير دغه خبره نورو خلقو ته نقل کول او خوره و ل جائز نه دی -

دغه شان په یو حدیث کښې دی: اَلْمُسْتَشَارُ مُؤْتَمَنٌ: "یعنی د کوم سړی نه چه څۀ مشوره واغستے شي هغه امین دے" په دۀ لازمه ده چه هغه مشوره ورلره ورکړی کومه چه د دۀ په ازد د مشوره اغستونکی په حق کښې مفیده او غوره وی. که سره د پوهے ئے خلاف مشوره ورکړه نو په امانتو کښې ئے خیانت اوکړو. دغه شان که چا دۀ ته خپل راز اووے، نو دا د هغۀ امانت دے بغیر د هغۀ د اجازت نه ئے چا ته وئیل خیانت دے. په ذکر شوی آیات کښې د دے ټولو اماناتو نو د حق ادا کولو تاکید دے.

تر دے پورے د آیات د اوّلے جملے تفسیر وُو. اوس د آیات د دویمے جملے تفسیر دے: وَاِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ: "یعنی هر کله چه تاسو د خلقو په مینځ کښې د جګړو فیصله کوئ نو په عدل او انصاف سره کوئ" ظاهره دادۀ چه دا خطاب امیرانو او حاکمانو ته دے چه د جګړو او مقدمو فیصلے کوی. او د دے قرینے په وجه بعضے حضرا تو د اوّلے جملے مخاطب هم امیران او حاکمان مقرر کړیدی. اګرچه د اوّلے جملے پشان په دے کښې هم ګنجائیش د دے خبرے موجود دے چه حاکمان او عوام دے دواړه پۀ دے خطاب کښې شامل وی. ځکه چه په عوامو کښې هم اکثر فریقین چا لره ثالث مقرر کړی <sup>هغه</sup> فیصلے کوی. دغه شان د جګړو فیصله کول په عوامو کښې هم وی. مګر په دے کښې شک نیشته چه په اول نظر کښې د دے دواړو جملو مخاطب امیران او حاکمان دی. په دے وجه دا وئیلے شی چه د دے مخاطب اوّل امیران او حاکمان دی او دویم دا خطاب هر هغه سړی ته هم دے د چا سره چه د خلقو امانتو نه وی او چا لره چه په یوه مقدمه کښې ثالث جوړ کړے شی.

په دے جمله کښې الله تعالیٰ: بَيْنَ النَّاسِ: او فرمائیل: بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ: یا: بَيْنَ الْمُؤْمِنِيْنَ: ئے اونه فرمائیل. په دے کښې ئے دے خبرے ته اشاره اوفرمائیله چه د مقدمو په فیصلو کښې ټول انسانان برابر دی. مسلمان وی او که غیر مسلمان، دوست وی او که دُشمن، د خپل وطن، هم رنګه، هم ژبانی وی او که غیر وی. د فیصله کونکو فرض دی چه د دے ټولو تعلقاتو نه جدا کوم چه د حق او انصاف تقاضا وی هغه فیصله اوکړی.

**عدل او انصاف د دنیا د امن ضمانت دے**

غرض دا دے چه د آیات په اوله جمله کښے د امانتونو د ادا کولو حکم دے - او په دویمه کښے د عدل او انصاف په دے کښے ئے د امانتونو ادا کول وړمبی کړل ، شاید چه د دے وجه داوی چه په ټول ملک کښے عدل او انصاف بغیر د دے نه قائمیدے نه شی - چه د چا په لاس کښے د ملک اقتدار دے هغه دے اول د ادا کولو د امانتونو فریضه ادا کړی په صحیح طور سره - یعنی د حکومت په عهدو دے صرف هغه خلق مقرر کړی چه د کار د صلاحیت او د امانت او دیانت په بنا سره د دغے عهدے د پاره د ټولو نه زیات غوره په نظر راځی - د دوستئ تعلقاتو یا محض د سفارش یا رشوت په وجه دے نه مقرر کوی - ورنه نتیجه به ئے داوی چه نا اهله نا قابله یا خیانتګر او ظالمان خلق به په عهدو باندے قبضه اوکړی - بیا که د اقتدار خاوندان په زړه سره هم داغواړی چه په ملک کښے دے د عدل او انصاف رواج شی خو دا به د دوی د پاره ممکنه نهٔ وی ځکه چه هم دا د عهدو خاوندان د حکومت لاس او خپے وی هر کله چه دوی خیانتګر او نا قابله وی نو عدل او انصاف به د کوم طرف نه راشی -

په دے آیات کښے دا خبره په خاص طور سره د یاد ولو قابله ده چه په دے کښے الله جلّ شانه د حکومت عهدو ته هم امانت او وئے او دا خبره ئے اولے ښکاره کړه چه لکه څرنګے امانت صرف هغه چا ته ادا کول پکار دی کوم چه د دے مالک دے ، په چا فقیر مسکین باندے رحم کول او پردی امانت ورلره ورکول جائز نه دی - دغه شان د حکومت عهدے چه د عامو خلقو کار و نه ورسره تړلی شوی دی دا هم امانتونه دی ' او د دے امانتونو مستحق صرف هغه خلق دی چه د کار د صلاحیت او قابلیت په اعتبار سره هم د دے عهدے د پاره مناسب او په موجوده خلقو کښے د ټولو نه غوره وی ' او د دیانت داری او امانتداری په اعتبار سره هم په ټولو کښے بهتر وی ، که د دوی نه سوا بل چا ته ئے دا عهده اوسپارله نو امانت ادا نهٔ شو -

**د علاقو او صوبو په بُنیاد د حکومت منصبونو سپارل اصولی غلطی ده**

د دے سره د قرآن حکیم دے جملے هغه عامه غلطی هم لرے کړه کومه چه د اکثرو

ملکونو په دستور کښې چلیږی۔ چه د حکومت عهدے ئے د ملک د اوسیدونکو حقونه مقرر کړی دی۔

او د دے اصولی غلطئ په بنا د ملک قانون دا سے جوړ ول پریوتل چه د حکومت عهدے د ابادئ په تناسب سره تقسیمولے شی۔ د هرے صوبے د پاره کوټے مقرر دی۔ د یوے صوبے په کوټه کښے د بلے صوبے سړے نه شی ځائے کولے خواه که هغه هرڅومره قابل او امانتدار ولے نه وی، او د دے صوبے سړے اګر که غلط کار نا اهل وی۔ قرآن کریم صاف اعلان اوفرمایه چه دا عهدے د چا حق نه دے بلکه دا امانتونه دی چه صرف امانتګروته به ورکولے شی خواه هغه د هرے صوبے او هرځائے اوسیدونکے چه وی۔ البته په یو خاصه علاقه او صوبه باندے د حکومت د پاره د هغے علاقے سړی لره ترجیح ورکولے شی چه په دے کښے ډیر مصلحتونه دی مګر شرط دا دے چه د کارصلاحیت او امانتدارئ کښے په دوه باندے پوره اطمینان وی۔

| د حکومت د دستور یو څو زرین اصول | دغه شان په دے لنډ ایات کښے د حکومت د دستور یو څو بنیادی اصول راغلل چه دا لاندے دی: |
|---|---|

۱: اول دا چه د ایات د اولے جملے په شروع کښے چه: اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ؛ نه ئے شروع کړه دے طرف ته ئے اشاره اوکړه چه اصل اَمْر او حکم د الله تعالیٰ دے۔ د دنیا ټولے بادشاهان په دے مامور دی۔ د دینه ثابته شوه چه په ملک کښے اقتدار اعلیٰ صرف د الله تعالیٰ دے۔

۲: دویم دا چه د حکومت عهدے د ملک د اوسیدونکو حقونه نه دی، چه د ابادئ د تناسب په اصولو به تقسیمولے شی۔ بلکه د الله تعالیٰ د طرف نه ورکړی شوی امانتونه دی چه صرف د هغے اهل او لائقو خلقو لره به ورکولے شی۔

۳: دریم دا چه په زمکه د انسان حکمرانی صرف د یو نائب او امین په حیثیت سره کیدے شی۔ دے به د ملک په قانون جوړه ولو کښے د هغے اصولو پابندوی کوم چه د حاکم مطلق الله تعالیٰ د طرف نه د وحی په ذریعه خودلی شوی دی۔

۴: څلورم دا چه د حاکمانو او امیرانو فرض دی چه هرکله یو مقدمه دوی ته

باشي نو دَ نسل او وطن، رنګ او نسل، او ژبې تر دې چه دَ مذهب او مسلک دَ امتياز نه بغير دې په عدل او انصاف سره فيصلې کوي۔

په دې ايات کښې ئې دَ حکومت دستور زرينا اصول او خود ول په آخر کښې ئې او فرمائيل چه الله تعالیٰ تاسو ته کوم نصيحت کړې دې دا ډير ښۀ دې ځکه چه الله تعالیٰ دَ هر چا آوري او کوم چه په خبرو او فرياد کولو طاقت نه لري دَ هغۀ حالات پخپله وينې په دې وجه دَ هغۀ خودلي او جوړ شوي اُصول داسې دي چه هميشه په هر ملک کښې او په هر دور کښې دَ عمل کولو قابل کيدے شي۔ دَ انساني دماغو جوړ شوي اُصول او دستور صرف دَ خپل ماحول پورې محدود وي او دَ حالاتو بدليد وسره بيا دَ هغې بدلول بيا خامخا لازمي وي۔ لکه څنګه چه دَ اول ايات مخاطب حاکمان او اميران وُو په دويم ايات کښې ئې عوام مخاطب کړو او ئې فرمائيل چه اے ايمان والو! تاسو دَ الله او دَ هغۀ دَ رسول او دَ خپلو اولی الامر و حکم منئ۔

اُولِي الامر کوم خلق دي؟ | اُولِي الامر په لغت کښې هغه خلقو ته وئيلې شي دَ چا په لاس کښې چه دَ څۀ شي نظام او انتظام وي۔ په دې وجه حضرت ابن عباسؓ مجاهدؒ او حسن بصريؒ وغيره مفسرينو دَ قرآن دَ اُولی الامر مصداق علماء او فقهاء مقرر کړي دي چه دوي دَ نبي کريم صلّے الله عليه وسلم نائبان دي او دَ دين نظام دَ دوي په لاس کښې دے۔

او دَ مفسرينو يو جماعت چه په دوي کښې حضرت ابو هريرهؓ هم شامل دے فرمائي چه دَ اولِي الامر نه مراد حاکمان او اميران دي چه دَ دوي په لاس کښې دَ حکومت نظام دے۔

او په تفسير ابن کثير او تفسير مظهري کښې دي چه دا لفظ دواړو طبقو لره شامل دے يعني عالمانو لره هم او حاکمانو او اميرانو لره هم ځکه چه نظام دَ امر دَ دے دواړو سره تړلے دے۔

په دے ايات کښې په ظاهره سره دَ دريو دَ خبرو منلو حکم دے، الله، رسول اُولِي الامر، ليکن دَ قرآن کريم نورو اياتونو دا خبره واضحه کړے ده چه حکم او اطاعت په اصل کښې صرف دَ يو الله دے: اِنِ الْحُکْمُ اِلَّا لِلّٰهِ؛ مګر دَ دۀ حکم

او دَ دهٔ دَ فرمانبردارئ عملی صورت په څلورو حصو کښې تقسیم دے -

**دَحکم او فرمانبردارئ درې عملی صورتونه**

یو هغه دے دَ کوم شی حکم چه خدائے تعالیٰ په قرآن کریم کښې واضح نازل کړے دے او په دے کښې دَ څهٔ قسم تفصیل او تشریح حاجت نیشتے - لکه شرک او کفر چه ډیر سخت جُرم دے، دَیو الله پاک عبادت کول او په آخرت او قیامت یقین ساتل، او محمد صلے الله علیه وسلم دَ الله آخری برحق پیغمبر منل، مونځ، روژه، حج، زکوٰة فرض کنړل دا هغه شیئونه دی چه نیغ په نیغه دَ الله تعالیٰ حکمونه دی- په دے عمل کول بے دَ واسطے نه دَ الله تعالیٰ حکم منل دی -

دویمه حصه دَ احکامو هغه ده چه په هغے کښې تفصیل او تشریح ته ضرورت دے - په دے کښې قرآن کریم اکثر یو مُجمل او مُبهم حکم ورکوی، او تفصیل او تشریح ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته حواله کړے شی - بیا هغه تفصیل او تشریح کومه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم پخپلو احادیثو کښې فرمائی هغه هم یو قسم وَحی وی - که په دے تفصیل او تشریح کښې په اجتهادی طور سره څهٔ کمی یا کوتاهی پاتے کیږی نو دَ وَحی په ذریعه دَ هغے اصلاح فرمائیلے شی او په آخری ډول سره دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم قول او عمل کوم چه په آخر کښې وی هغه دَ الله تعالیٰ دَحکم ترجمان وی -

دَ دے قسم حکمونو منل هم اګر چه په حقیقت کښې دَ الله تعالیٰ فرمانبرداری ده لیکن په ښکاره ډول سره چونکه دا احکام واضح قرآن نه وی - دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ ژبے مبارکے نه امت ته رسیدلی دی- په دے وجه دَ دے فرمانبردارئ ته په ښکاره ډول سره دَ رسول فرمانبرداری وائی - چه په حقیقت کښې دَ الله تعالیٰ فرمانبرداری ده خو په ظاهری اعتبار سره جدا حیثیت لری - په دے وجه ئے په ټول قرآن کریم کښې دَ الله تعالیٰ دَ فرمانبردارئ دَحکم ورکولو سره دَ رسول دَ فرمانبردارئ ذکر مستقل کړے دے -

دریمه درجه دَ احکامو هغه ده چه نه په قرآن کښې صراحتًا ذکر ده نه په حدیثو کښې، او نه دَ احادیثو په ذخیره کښې دَ دے متضاد (الټه) روایتونه موندے شی په داسے حکمونو کښې مجتهدین عالمان دَ قرآن او سنتو په رڼا کښې دَ دے په

نظیرو نو یعنې د دې پشان نورې کومې مسئلې چې په قرآن یا حدیثو کښې وی) بانديې غور او فکر کوی او د دې حکم تلاش کوی - د دې حکمونو منل هم اګر چه په حقیقت کښې د قرآن او سنت نه د راوېستو پوچه د خدائے پاک د حکم منلو یوه حصه ده لیکن په ظاهری اعتبار سره دې ته فقهی فتوٰی وائی او عالمانو طرفته ئې نسبت دے -

په دے دریم قسم کښې داسې احکام هم دی چه په هغې کښې د قرآن او سنت په اعتبار سره څهٔ پابندی نیشته بلکه په دې د عمل کولو اختیار دے چه څنګه غواړی کوی ، چه دې ته په اصطلاح کښې مباحات ویلې شی په داسې احکامو کښې عملی انتظام حاکمانو او امیرانو ته سپارلے شوے دے چه هغوئی د حالاتو مطابق څهٔ قانون جوړ کړی او خلق په هغې د چلیدو پابند کړی - مثلاً د کراچئ په سېنهو کښې دے ډاکخانے پنځوس وی او که شپږ وی د پولیسو تهانے دے څومره وی ، د ریل کاڅو انتظام دِ څنګه وی ، د اباد کارئ انتظام دے په کوم قاعده وی - دا ټول مباحات دی د دې یو جانب نه واجب دے او نه حرام - بلکه اختیاری دے - لیکن که دا اختیار عوامو ته ورکړے شی نو یو کار به هم او نه چلیږی .نو په دې وجه د انتظام ذمواری په حکومت ده -

په ذکر شوی ایات کښې د اُولوالامر د اطاعت نه د علماؤ او حاکمانو دواړو اطاعت مراد دے - په دے وجه د دے ایات په دُوسره په فقهی مسئلو کښې د فقهاؤ حکم منل او په انتظامی کارونو کښې د حاکمانو او امیرانو حکم منل واجب شو.

دا حکم منل هم په حقیقت کښې د الله جل شانهٔ د حکمونو منل دی - لیکن په ظاهره دا حکمونه نهٔ په قرآن کښې شته نه په سنت کښې بلکه د دے بیان یا د عالمانو د طرف نه وی یا د حاکمانو په دے وجه د دے منل ئې جُدا په دریم نمبر کښې مقرر کړه د اُولوالامر د اطاعت نوم ئې ورلره کیخود او لکه څنګه چه د قرآن په دلیلو نو د قرآن حکم منل او د رسول د وینا په دلیل د رسول حکم منل لازم او واجب دی دغه شان په فقهی مسئلو کښې د فقهاؤ او په انتظامی کارونو کښې د حاکمانو او امیرانو تابعداری واجب ده - او دا مطلب دے د اطاعت د اُولی الامر -

| | |
|---|---|
| د شریعت نه په خلاف کارونو کښې د امیر اطاعت جائز نه دے | اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تُؤَدُّوا |

الْاَمٰنٰتِ اِلٰٓى اَهْلِهَا الاية: په دے ايات کښے چه الله تعالیٰ د کوم کار ارشاد او فرمايه چه که تاسو د خلقو په مينځ کښے څۀ فيصله کوئ نو په عدل او انصاف سره کوئ او د دے نه اوّل الله تعالیٰ خلقو ته د اولی الامر د حکم منلو تعليم ورکړو۔ د دے نه ئے اشاره دے طرف ته اوکړه چه امير که په عدل ولاړ وی نو د دۀ حکم منل واجب دی، او که دے عدل او انصاف پاتے کړی د شريعت نه خلاف حکمونه کوی نو په دے کښے به د امير اطاعت نۀ شی کولے۔ لکه چه د نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے: "لَا طَاعَةَ لِمَخْلُوْقٍ فِیْ مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ"؛ يعنی د مخلوق داسے حکم منل جائز نۀ دی چه په هغے کښے د خالق نافرمانی کول لازمه کيږی۔

وَاِذَا حَكَمْتُمْ بَيْنَ النَّاسِ اَنْ تَحْكُمُوْا بِالْعَدْلِ: په دے ايات کښے الله تعالیٰ ارشاد فرمائی چه که تاسو د خلقو په مينځ کښے فيصله کوئ نو په عدل سره کوئ۔ د دينه دا خبره معلوميږی چه کوم سړے د عدل او انصاف قائمولو طاقت او صلاحيت نه لری دۀ لره قاضی جوړيدل هم نۀ دی پکار ځکه چه حکم کول په عدل سره هم يو امانت دے چه حفاظت ئے کمزورے او نااهل سړے نۀ شی کولے۔ نو کله چه حضرت ابو ذر رض حضور اکرم صلے الله عليه وسلم ته درخواست اوکړو چه تاما د يو ځائے حاکم مقرر کړئ نو دوئ په جواب کښے ارشاد او فرمايه:

| | |
|---|---|
| يَا اَبَا ذَرٍّ اِنَّكَ ضَعِيْفٌ وَ اِنَّهَا اَمَانَةٌ وَاِنَّهَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ خِزْیٌ وَنَدَامَةٌ اِلَّا مَنْ اَخَذَ بِحَقِّهَا وَاَدَّى الَّذِیْ عَلَيْهِ فِيْهَا۔ (رواه مسلم بحواله مظهری) | "اے ابا ذر رض ته يو ضعيف سړے ئے او منصب يو امانت دے چه د دے په وجه به د قيامت پورځ انتهائی ذلت او رسوائی وی سوا د هغه سړی نه چا چه د دے امانت حق پوره کړے وی (يعنی ځکه به د ذلت نۀ بچ وی)"۔ |

| | |
|---|---|
| عادل سړے د الله تعالیٰ محبوب ترين بنده دے | په يو حديث کښے نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد فرمائی چه عادل د الله تعالیٰ محبوب او زيات نژدے |

بنده دے۔ او ظالم د الله تعالیٰ د رحمت او د کرم د نظر نه لرے وی۔

په يو بل حديث کښے دی چه نبی کريم صلے الله عليه وسلم صحابو ته او فرمائيل چه تاسو ته معلومه ده چه د قيامت په ورځ اول به د الله تعالیٰ د سورى لاندے څوک ورځی؟

دوئ جواب ورکړو چه الله او د هغهٔ رسول په دے باندے زیات پوهه دی - بیا دوئ ارشاد اوفرمایه چه دا به هغه خلق وی د چا مخې ته چه حق راشی او فوراً ئے قبول کړی، او کله چه ترے سوال اوکړے شی نو مال خرچ کوی - او کله چه دوی فیصله کوی نو دا سے عادلانه فیصله کوی لکه چه دوی د خپل ځان د پاره کوی -

د اجتهاد او قیاس ثبوت | قوله تعالیٰ : فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ : په دے ایات کښے الله تعالیٰ حکم کړے دے چه که ستاسو د څهٔ کار په باره کښے اختلاف راشی نو تاسو د الله او د رسول طرف ته رجوع کوئے -

د کتاب او سنت طرف ته د رجوع کولو دوه صورتونه دی - یو دا چه د کومو احکامو د پاره په قرآن او سنت کښے دلیلونه راغلی دی هغوی طرفته رجوع اوکړے شی - دوېم صورت دا دے چه د احکامو د پاره دلیلونه موجود نه وی نو د هغے نظائرو یعنی د هغے په مثال نورو مسئلو باندے قیاس اوکړی رجوع ورته اوشی - د : فَرُدُّوهُ : الفاظ عام دی چه دے دواړو صورتونو له شامل دی -

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ

آیا تا او نه لیدهٔ هغو لره چه دعوه کوی چه ایمان ئے راوړے دے په هغے چه نازل شو

إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا

تا ته او په هغه چه نازل شوی دی ستا نه وړاندے، غواړی چه فیصله یوسی شیطان

إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا بِهِ وَيُرِيدُ

طرف ته او حکم شوے دے دوی ته چه د غه به نه منئ - او غواړی

الشَّيْطَانُ أَنْ يُضِلَّهُمْ ضَلَالًا بَعِيدًا ۞ ٦٠ وَإِذَا قِيلَ

شیطان چه دوی لاره اوغلوی ډیر لرے ئے بوځی - او کله چه اوو ویلے شی

لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ رَاَيْتَ

دوی ته چه راشئ د الله د حکم طرفته کوم چه ئې نازل کړو او د رسول طرف ته نو ته وینې

الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ﴿٦١﴾ فَكَيْفَ

منافقان چه واپس کیږی ستانه په ډډه کولو سره - پس څه وی

اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ

هر کله چه اورسی دوی ته مصیبت د خپلو لاسونو د کړو و نه

ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ بِاللّٰهِ اِنْ اَرَدْنَآ اِلَّآ اِحْسَانًا

بیا راشی تا ته قسمونه خوری - په الله چه زمونږ غرض نه وه مګر د ښیګړے

وَّتَوْفِيْقًا ﴿٦٢﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا فِيْ قُلُوْبِهِمْ

او موافقت - دا هغه خلق دی چه الله تعالیٰ ته معلوم دی هغه چه په زړونو کښې ئې دی

فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ

پس ته د دوی نه ځان ناخبره کړه او دوی ته نصیحت کوه او دوی ته وایه د دوی په حق کښې

قَوْلًاۢ بَلِيْغًا ﴿٦٣﴾ وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُوْلٍ اِلَّا لِيُطَاعَ

خبره د کار - او مونږ یو رسول نه دے لیږلے مګر د دے د پاره چه د ده حکم او منلے شی

بِاِذْنِ اللّٰهِ ۭ وَلَوْ اَنَّهُمْ اِذْ ظَّلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ جَآءُوْكَ

د الله په اذن سره - او که دغه خلق کوم چه د ځان سره ئې بدکړی وو راتلے تا ته

فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُوْلُ لَوَجَدُوا

بیا ئې د الله نه معافی غوښتے او رسول هم بښنه غوښتے وے د دوی د پاره نو البته موندلے به ئې

اللهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿٦٤﴾

الله لره معاف کونکے مهربان -

# لنډ تفسير

(اے محمد صلے الله علیه وسلم) آیا تا هغو خلقو لره او نه لیدل کوم چه (په ژبه سره) دعوه کوی چه دوی (......) په هغه کتاب هم ایمان لری چه تا ته نازل کړے شو (یعنی قرآن) او په هغه کتاب هم کوم چه ستاند وړاندے نازل کړے شوے دے (یعنی تورات) ځکه چه په دے کښے د منافقانو بیان دے او اکثر منافقان د یهودو نه و او مطلب دادے چه په ژبه سره دعوه کوی چه لکه څنګه مونږ تورات منو دغه شان قرآن هم منو یعنی د اسلام دعوه کونکی دی بیا په دے د پاسه حال دادے چه) خپله مقدمه شیطان لره وړل غواړی (ځکه چه غیر شرعی طرف ته د مقدمے وړل د شیطان خوډنه ده، پس په دے عمل کول داسے دی لکه چه مقدمه شیطان لره یوسی) حال دادے چه (د دینه دوه کارونه منع کونکی موجود دی یو دا چه) دوی ته (د شریعت د طرف نه) دا حکم دے چه ده (شیطان) لره مه منئ (یعنی په عمل او عقیده دواړو کښے د ده مخالفت کوئ) او (دویم منع کونکے کار دادے چه) شیطان (د دوی داسے دشمن او بدخواه دے چه) دوی لره (د حق نه) بے لارے کوی او ډیر لرے ئے بوتلل غواړی (ایس سره د دے دواړو کارونو چه دائے غوښتنه چه د شیطان په وئیلو عمل نه کوی بیا هم دوی د هغه موافقت کوی) او کله چه دوی ته او وئیلے شی چه راشئ د هغے حکم طرف ته چه الله تعالی نازل کړے دے او (راشئ) رسول (صلی الله علیه وسلم) طرف ته (چه دوی د دے حکم موافق فیصله او فرمائی) نو تا سو (دغه وخت) منافقانو لره وینئ په دے حالت کښے چه ستاسو (د خوا) نه ډډه کوی بیائے حال داسے جوړ شی چه کله په دوی څه مصیبت پریوځی د دوی د دغے کار په وجه کوم چه (د دے مصیبت نه اول کړے وی (مراد د دے کار نه شریعت پاتے ګوزل بل ځائے ته مقدمه وړل دی او د مصیبت نه مراد لکه قتل یا خیانت او نفاق

ئې ښکاره کېدل او بازپرس ترې کېدل، يعنې دغه وخت سوچ کوي چه ګډې کار
څۀ بهانه جوړه کړي چه ځ ئې روښانه شي) بيا (بهانه جوړه کړي) تا ته (راشي په خپله
قسمونه خوري چه (مونږ چه کوم بل ځائې ته تلي وو) زمونږ بل څۀ مقصد نه
وۀ سوا ددې نه چه (د معاملې د دواړو فريقو) څه ښېګړه (يعنې څه صورت ئې
راوځي او (ددوي) موافقت ئې راشي (مطلب دا دې چه قانون خو د شرع
حق دې مونږ بل ځائې ته په دې وجه نۀ وو تلي چه شريعت مو ناحق ګڼړلو
خو خبره دا ده چه په قانوني فيصله کښې خو د حق خاوند حاکم ته دانه شي وېلې
چه رعايت اوکړه او پخپل منځ کښې په فيصله کو لو کښې اکثر رعايت کولې شي نو دا
وجه وه زمونږ بل ځائې ته د تللو - او د قتل په قصه کښې د مقتول پخپل کار کښې د
بهانې جوړه ولو مقصود خپل ځان بري کول او په حضرت عمر رض د قتل دعوه کول
په هم وی - الله تعالیٰ د دوی د بهانو د دروغ کولو د پاره فرمائي چه) دا هغه
خلق دي چه الله تعالیٰ ته معلوم ده هغه (د نفاق او کفر خبره) چه د دوی په
زړونو کښې ده (چه ګډې کفر او نفاق او په شرعي حکم د نه رضا کېدو په
وجه سره دا خلق بل ځائې ته ځي - او په مقرر وخت ددې سزا هم مومي)
پس (مصلحت دا دې چه) تاسو (د خدائې په علم او د خدائې په مؤاخذه
اِکتِفا اوکړئ او) په دوی باندې ځان نا ښکاره کړئ (يعنې څۀ ورته مه
وايئ) او (د خپلې پيغمبرۍ د مرتبې په وجه) دوی ته نصيحت کوئ (چه داسې
کارونو نه قلا وشئ) او دوی ته خاص ددوی د نفسونو (د اصلاح) متعلق
پوره بيان اوکړئ (چه دليل پرې پوره شي بيا که نه مني نو دوئي پوهه شئ)
او مونږ ټولو پيغمبرانو لوه خاص په دې وجه راليږلي دي چه د خدائې په
حکم سره (کوم چه د رسول د اطاعت په باب کښې وئېلې شوې دې) د دوی
حکم او منلې شي (پس د اوّل نه په دې خلقو د رسول حکم منل واجب وو)
او که (د بدبختۍ نه ترې بې وقوفي شوې وه نو) کوم وخت چه ئې په دې ګناه
سره) خپل نقصان کړې وۀ دغه وخت (د خپيما نتيا سره) ستا په خدمت
کښې حاضر شوي وې بيا (پس د حاضرېدو نه) د الله تعالیٰ نه ئې (د خپلې ګناه)
معافي غوښتې او رسول (صلی الله عليه وسلم يعنې تاسو هم) ددوی د پاره

ذ الله تعالیٰ نه معافي غوښتي نو خامخا به ئې الله تعالیٰ توبه قبلوُنکے او رحمت کوُنکے
مونده ه (یعنے الله تعالیٰ به ئې پخپل رحمت سره توبه قبوله کړې وے)

# مَعلومَات اومَسَئلے

**دَ ایاتونو تړون** په تیرو ایاتونو کښې په ټولو معاملو کښې ذ الله او ذ رسول حکمونو طرف ته ذ رجوع کولو حکم وُه - په دے ایاتونو کښې ذ شریعت نه خلاف بل قانون ته ذ رجوع کولو بد والے بیان شوے دے -

**ذ ایاتونو شانِ نزول** ذ دے ایاتونو ذ نزول یوه خاص واقعه ده ذ هغے تفصیل داد ے چه بِشر نوم یو منافق وُه ذ ده ذ یو یهودی سره جګړه جوړه شوه یهودی او وے ذ چه لاړ شو په محمد (صلے الله علیه وسلم) وا فیصله اوکړو - لیکن بشر منافق دا خوښه نه کړه ، بلکه کعب بن اشرف یهودی له تلل او په هغهٔ ئې ذ فیصلے کولو تجویز پیش کړو - کعب بن اشرف ذ یهودو سردار وُه او ذ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او مسلمانانو سخت دشمن وُه - دا عجیبه خبره ده چه یهودی خپل سردار ر پاتے کولو په نبی کریم صلے الله علیه وسلم ئې فیصله کول خوښول، او ځان ته مسلمان ویُونکی بشر ذ حضور په ځائے ذ یهودی سردار فیصله خوښوی، لیکن راز په دے کښې داؤ وچه ذ دے دواړو دا یقین وُه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم به فیصله په حق او انصاف سره کوی دے ذ چا نه ملاحظه هیڅ نه کوی - او یهودی په دے جګړه کښې په حقه وُه - په دے وجه ذ ده ذ خپل سردار کعب بن اشرف نه زیات اعتماد په نبی کریم صلے الله علیه وسلم وُه - او بشر منافق په ناحقه وه په دے وجه هغه پوهیده چه دا فیصله به ځما خلاف وی اګر چه زهٔ مسلمان ځان ته وایم او دے یهودی دے -

دواړو ذ خبرو اترو نه پس دواړه په دے راضی شو چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته لاړ شی او په هغوی دا فیصله اوکړی، نو مقدمه حضور صلے الله علیه وسلم ته پیش شوه ، دوی ذ معاملے تحقیق اوکړو نو حق ذ یهودی ثابت شو او ذ هغهٔ په حق کښې ئې فیصله اوکړه - او بشر چه په ظاهره

مسلمان وه نا کامه شو. نو په دې وجه دې په فیصله راضي نه شو، او یوه نوې لار ئې راویسته چه په هر شان چه وي دا یهودي په دې راضي کړي چه مونږ دواړه حضرت عمر رضی الله عنه له لاړ شو او فیصله په هغهٔ اوکړو. یهودي دا قبوله کړه ځان په دې کښې داوَه چه بِشر په دې پوهه وه چه حضرت عمرؓ دَ کفارو په معامله کښې سخت دې. دې به دَ یهودي په حق کښې دَ فیصلې کولو په ځائې ځما په حق کښې فیصله اوکړي۔

بهرحال دواړه اوس عمر فاروقؓ ته اورسیدل، یهودي حضرت فاروق اعظمؓ ته پوره واقعه بیان کړه، چه دَ دې مقدمې فیصله رسول الله صلے الله علیه وسلم فرمائیلې ده، لیکن دَ دې سړي په هغې باندې تسلّي نیشته او اوس ئې مقدمه تا سو له راوړه۔

حضرت عمرؓ دَ بشر نه تپوس اوکړه چه دا خبره تیک ده؟ نو هغه اقرار اوکړه چه هاں، حضرت فاروقؓ اوفرمائیل چه بشهٔ ده یاره لږ حصار شئ زهٔ را ځم، کورته لاړو او یو توره ئې راوړه او دَ منافق کار ئې پرې تمام کړو، او اُو ئې فرمائیل "کوم سړے چه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم په فیصله راضي نه وي دَ هغهٔ دا فیصله ده" (دا واقعه روح المعاني په روایت ثعلبي او ابن حاتم دَ حضرت عبدالله ابن عباس نه نقل کړې ده)

او عامو مفسرینو په دې کښې دا هم لیکلي دي چه دَ دینه پس دَ دغه مقتول منافق وارثانو دَ حضرت عمر خلاف دعوه هم داخله کړه چه دهٔ یو مسلمان بغیر دَ شرعي دلیل نه وژلے دے او دَ دهٔ دَ مسلمان ثابتولو دَپاره ئې مختلفې بهانې جوړې کړې چه کوند دے مسلمان وه. په ذکر شوی ایات کښې الله تعالیٰ دَ معاملې اصل حقیقت او دَ دغې قتل شوی سړي منافقوالې ښکاره کړو حضرت عمرؓ ئې برئ کړو۔

په دې سلسله کښې نورې هم څو واقعې نقل دي چه ځنې خلقو شرعي فیصله پاتې کړې وهٔ دَ چا کاهن یا نجومي فیصله ئې قبوله کړې وه. کیدے شي چه دا ذکر شوے ایات دَ دې ټولو واقعو متعلق نازل شوے وي۔

اوس دَ ایاتو تفسیر واورئ، په اولني ایات کښې ارشاد اوشه "چه

دغه سړی ته او کوږي کوم چه دا دعوه کوی چه ما په تیرو کتابونو تورات او انجیل باندے هم ایمان راوړے وه، او کوم کتاب قرآن چه پتاسو نازل شو په دے هم ایمان راوړم، یعنی اول په اهلِ کتابو کښے داخل وه بیا په مسلمانانو کښے داخل شو، لیکن دا په مسلمانانو کښے داخلیدل ئے محض زبانی دی - زړه ئے هم دغه کفر نه ډک دے کوم چه دَ جګړے پَوخت کښے دا سے ښکاره شو چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ئے پاتے کولو او دَ یهودی سردار کعب بن اشرف طرفته ئے دَ تللو تجویز پیش کړو - او دَ دے نه پس چه هرکله نبی کریم صلے الله علیه وسلم واضحه او حق فیصله او کړه نو په هغے راضی نه شو۔

دَ طاغوت دَ لفظ لغوی معنی سرکشی کونکے دے، او په عُرف کښے شیطان ته طاغوت وئیلے شی - په دے ایات کښے ئے کعب بن اشرف طرفته فیصله وړل شیطان طرفته وړل وئیلی دی، یا په دے وجه سره چه کعب بن اشرف پخپله یو شیطان وه - او یا په دے وجه سره چه شرعی فیصله پاتے کول خلاف شرع فیصلے طرفته رجوع کول خاص دَ شیطان تعلیم کیدے شی - دَ دے تابعداری کونکے گویا شیطان طرفته خپله فیصله وړی - په دے وجه ئے دَ ایات په اٰخر کښے اوفرمائیل چه کوم سړے دَ شیطان خبره منی نو شیطان به دے په ډیره لوے گمراهئ کښے اَخته کړی -

په دویم ایات کښے ئے او خودل چه پخپل مینځ کښے دَ جګړے په وخت کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ شرعی فیصلے نه ځَړه کول دَ یو مسلمان کار نه شی کیدے - داسے کار کونکے منافق کیدے شی، او هرکله چه دَ دغے منافق کفر عملاً په داسے شان سره ښکاره شو چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په فیصله راضی نه شو نو دَ فاروقِ اعظمؓ دَ ځوره قتلول صحیح شو، ځکه چه اوس هغه منافق پاتے نه شو بلکه ښکاره کافر شو - په دے وجه ئے ارشاد او فرمایه چه دا خلق داسے دی چه هرکله دوی ته اووئیلے شی چه راشئ هغے حکم طرفته کوم چه الله تعالیٰ نازل کړے دے او دَ هغهٔ دَ رسولؐ طرف ته نو دا منافقان ستا طرفته دَ راتلونه اوډریږی -

په دریم ایات کښے ئے دَ دغو باطلو بهانو غلط والے ښکاره کړے دے کوم چه شرعی فیصله پاتے کوی او غیر شرعی فیصلے طرفته دَ رجوع کونکو دَ طرف نه پیش کولے شوے،

چه ځکه ئې داوه چه مونږ نبي کريم صلے الله عليه وسلم په نا حقه ګنړلو سره نه وُو پاتے کړے، او د نورو فيصله مونږ د دوئ په مقابله کښے د حق ګنړلو په وجه سره نه وه اختيار کړے، بلکه دا کار مونږ د بعضے مصلحتونو په وجه سره اوکړو، مثلاً دا مصلحت وه يکښے چه ستا سو فيصله خو قانونی فيصله وه چه يَدے کښے د صلح او رواداری څهٔ سوال نه پيدا کيدو۔ خو مونږ مقدمه دويم ځائے لره په دے وجه سره يوړه چه د دے دواړو فريقينو د پاره د سپينه والی څهٔ صورت پکښے راواوځی، او د دواړو په منځ کښے مصالحت اوُ کړے شی (يعنی د دواړو صلح راوستے شی)۔

دا تاويلونه (بهانے) دے خلقو هغه وخت پيش کړے هر کله چه د دوی راز ښکاره شو او خيانت او نفاق ئے ښکاره شو۔ د دوی سړے د حضرت عمرؓ د لاسه مړ شو۔ غرض دا دے چه هر کله د دوی د بد و عملونو په نتيجه کښے په دوی رسوائی او د قتل مصيبت پريوتو، نو قسمونه ئے خواړهٔ او بهانے ئے جوړه ولے۔ الله تعالیٰ په دے ايات کښے په ډاګه کړه، چه دوی پخپلو قسمونو او بهانو کښے دروغژن دی۔ دوی چه څهٔ اوکړه د خپل کفر او نفاق په وجه سره ئے اوکړه۔ ارشاد ئے اوفرمايه چه هر کله په دوی باندے د خپلو بدو عملونو په نتيجه کښے څهٔ مصيبت پريوځی مثلاً خيانت او نفاق ئے ښکاره شی رسوا ئے اوشی يا ورته د دے په نتيجه کښے د قتل واقعه راپيښه شی نو دغه وخت دا خلق تا ته راځی او قسمونه خوری چه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه سوا بل چا لره د مقدمے وړلو سبب کفر يا د دوئ فيصلے لره نا حقه ګنړل نه وُو بلکه زمونږ مقصد ښيګړه او موافقت وه، يعنی د فريقينو د پاره د ښيګړے او مصالحت لا ر تلاش کول مقصود وُو۔

په خلورم ايات کښے د دے جواب راغے چه د دوی په زړونو کښے چه کوم کفر او نفاق دے۔ الله تعالیٰ د دے نه ښهٔ خبر دے د دوی بهانے غلطے او قسمونه په دروغه دی۔ نو پس ته د دوی عذر مه قبلوه، او د حضرت عمرؓ خلاف د دعوه کونکو دعوه رد کړه۔ ځکه چه د دغے منافق کفر ښکاره شوے وه۔ د دے نه پس فرمائی چه دے منافقانو ته د خيرخواهئ نصيحت کوه، چه

د دوی په زړه باندې نو اثر کوی یعنی د آخرت نه ئے یره د ه او مخلصانه دعوت ورلوه د اسلام طرفته ورکوه - یا ورته د دُنیا د سزا ذکر کوه چه که تاسو د نفاق نه قلا رنه شوئ نو یو وخت به ستاسو دا نفاق ښکاره شی نو ستاسو به هم دغه انجام وی کوم چه د بشر شو-

په پنځم آیات کښے ئے اول یو عامه ضابطه او خوده چه مونږ کوم رسول او لیږو نو د دے د پاره ئے لیږو چه ټول خلق د الله تعالیٰ د حکم مطابق د ده حکمونه اُومنی- نو لازمی نتیجه به ئے داوی چه کوم سړے د رسول د احکامو مخالفت کوی د هغه سره به د کفا رو پښان معامله کولے شی- په دے وجه حضرت عمرؓ چه کوم کار اوکړه دا صحیح اشو- د دے نه پس ئے ورته د خیرخواهئ مشوره ورکړے ده چه که دے خلقو د با طلو بها نو او د دروغو د قسمو نو په ځائے پخپل گناه چاره شوی وے او ستا په حضور کښے ئے پخپله هم د الله تعالیٰ نه معافی غوښتے او رسول صلے الله علیه وسلم هم د دوی د پخانه دُعا کولے نو الله تعالیٰ به خامخا د دوی توبه قبوله کړے وے-

د لته د توبے د قبلید و د پاره د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضرید ل او بیا د حضور صلے الله علیه وسلم د مغفرت د پاره د دعاء کولو شرط غالبًا د دے وجه نه دے چه دے خلقو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د نبوّت په منصب (مرتبے) باندے حمله اوکړه او د دوی په فیصله ئے عمل او نه کړو و دوی ترے اذار اورساوه - په دے وجه د دے جرم د توبے د پاره د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضری او د دوی پخانه غوښتل ئے په کښے شرط مقرر کړو-

دا آیات اگرچه د منافقانو د یو خاص واقعے په باره کښے نازل شوے دے لیکن د دے د الفاظو نه یوه عامه ضابطه را اُوته چه کوم سړے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شی او د دوی د ده د پاره د مغفرت دُعا اوکړی نو د ده ته به خامخا معافی اوشی- او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضری لکه څنګه چه د دوی په دنیوی ژوند کښے کیده دغه شان نن هم د دوی په پاک روضه مبارک حاضری په دے حکم کښے ده-

حضرت علی کرم الله وجهه فرمائی چه کله مونږ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دفن کړو نو درے ورځے پس یو کلی وال راغے ، او په قبر شریف باندے رالړیوت او په زار زار ئے اوجړل او ورته ئے دا آیات حواله ئے ورکړه عرض ئے اوکړه چه الله تعالیٰ په دے آیات کښے وعده فرمائیلے ده ، چه که ګناه ګار د رسول ﷺ په خدمت کښے حاضر شی او رسول ﷺ ورته د الله تعالیٰ دپاره د مغفرت دعا اوکړی نو د ده مغفرت به اوشی ، په دے وجه زه ستاسو په خدمت کښے حاضر شوے یم چه تاسو زما دپاره د مغفرت دعا اوکړئ ۔ نو دغه وخت چه کوم خلق حاضر وو د هغوی بیان دے چه په جواب کښے ورته د پاکے روضے مبارکے نه دا آواز راغے ؛ قَدْ غُفِرَ لَكَ ؛ ستا بخانه اوشوه ۔

فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتّٰى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ

پس قسم دے ستا د رب چه دوی مؤمنان کیدے نشی تو هغے پورے چه تا لره منصف اونه منی په هغه

بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ

جګړه کښے چه په دوی کښے پورته شی بیا نه مومی په خپلو نفسونو کښے تنګی ستا د فیصلے نه او

وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾

قبول ئے کړی په خوشحالئ سره ۔

## لنډ تفسیر

بیا قسم دے ستا د رب دا خلق (چه صرف په ژبه سره ایمان ظاهروی په نزد د خدائے) ایماندار نشی کیدے تر هغے پورے چه دا خبره نه وی چه د دوی په مینځ کښے کومه جګړه جوړه شی په هغے کښے دا خلق تا سو را وچه تا سو نه یئے بیا ستاسو شریعت باندے) فیصله اونه کړی بیا کله چه تاسو فیصله اوکړئ (نو ستاسو په فیصله سره په خپلو زړونو کښے (د انکار) تنګی نه مومی او (دے فیصلے لره) پوره پوره (په ظاهر باطن سره) اومنی ۔

# مَعلومَات او مَسئلې

| | |
|---|---|
| په دې ایات کښې دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ لوئ او لوئے مرتبے او شان دَ ښکاره کولو سره | دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم فیصله نه منل کفر دے |

دَ دوی دَ حکم منلو واضح تشریح بیان کړے ده، چه دا دَ بے شماره نورو ایاتو نو دَ قرآن نه هم ثابته ده. په دے ایات کښې الله تعالیٰ قسم خوری فرمائی چه یو سړے دَ هغه وخته پورے مؤمن یا مسلمان نشی کیدے ترڅو پورے چه دے دَ زړهٔ دا خلاصهٔ دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم پیغمبری او حکم او نه منی، چه دَ دهٔ په زړهٔ کښې هم دَ دوئ دَ فیصلے نه څهٔ تنګی را نشي۔

نبي کریم صلے الله علیه وسلم ځنې په حیثیت دَ رسول دَ امت حاکم او دَ هرے را پیښے شوی جګړے دَ فیصلے کولو ذموار دے۔ دوی خو ځکه دے ذمواری داسے نه ده چه کوم ندے څوک به دوی لره حاکم یا حَکَمْ او منی نو هله۔ بیا په دے ایات کښې ئے مسلمانانو ته دَ دوئ دَ حَکَمْ جوړه ولو تلقین ځکه فرمائیلے دے چه دَ حکومت دَ مقرر شوی حاکم او دَ دهٔ په فیصله خو دَ ډیرو خلقو اطمینان نه راځی۔ داسے لکه څنګه چه ئے ځنې مقرر کړی ثالث یا حکم اطمینان راځی۔ لیکن نبي کریم صلے الله علیه وسلم صرف حاکم نه دے بلکه رسول معصوم هم دے دَ مخلوق دَ پاره رحمت هم دے، دَ امت مشفق او مهربان پلار هم دے۔ په دے وجه ئے دا تعلیم ورکړو چه هر کله ستاسو په یوه معامله یا یوه مسئله کښې اختلاف راشی۔ نو دَ دواړو فریقو فرض دی چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم لره حَکَمْ جوړ کړی په دوئ فیصله اوکړی او بیا دَ دوی فیصله په سر سترګو قبوله کړی عمل پرے اوکړی۔

| | |
|---|---|
| مُفَسِّرِینْ فرمائی چه دَ قرآن په ارشاد باندِ عمل کول دَ دوئ په زمانه مبارکه پورے | په اختلافاتو کښې دوئ لره حَکَمْ جوړول دَ دوئ په زمانه پورے خاص نه دی |

خاص نه دی۔ دَ دوئ نه پس دَ دوئ دَ پاک شریعت فیصله ځنې دَ دوئ فیصله ده۔ په دے وجه دا حُکم هم دغه شان تر قیامته پورے جاری دے چه دَ دوئ په زمانه مبارکه کښې به دوئ ته رجوع کولے شی او دَ دوئ نه پس

به د دوی شریعت طرف ته رجوع کولے شی - چه په حقیقت کښے هم د دوی طرف ته رجوع ده -

## یو څو اهم مسئلے

اول دا چه هغه سړے مسلمان نه دے چه پخپله هم یوه جګړه او مقدمه کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په فیصله باندے مطمئن نه وی - دغه وجه ده چه حضرت فاروق رض دغه سړی لره قتل کړو کوم چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په فیصله راضی نه شو. او بیا ئے معامله حضرت فاروق اعظم رض لره یوړه - د دے وژلی شوی وارثانو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په عدالت کښے په حضرت عمر رض باندے دعوه اوکړه چه د ئے یو مسلمان بے وجه قتل کړو هرکله چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے دا درخواست پیش کړے شو نو د هغوی د ژبے مبارکے نه فوراً دا الفاظ اووتل "مَا كُنْتُ اَظُنُّ اَنَّ عُمَرَ يَجْتَرِءُ عَلٰى قَتْلِ رَجُلٍ مُؤْمِنٍ" (یعنی ما دا ګمان نه وُه چه عمر رض به د یو مؤمن د قتل جرءت اوکړی) د دے نه ثابته شوه چه اوچت حاکم ته د یو ماتحت حاکم د فیصلے اپیل اوکړے شی نو دهٔ لره د خپل ماتحت حاکم د جانبه اړئی په ځائے په انصاف سره فیصله کول په کار دی لکه چه په دے واقعه کښے د ا ایات نازلیدو نه وړاندے نبی کریم صلے الله علیه وسلم د حضرت عمر رض په فیصله باندے ناخوښی ښکاره کړه - بیا چه کله دا ایات نازل شو نو حقیقت ښکاره شو چه د دے ایات په بنا سره دغه سړے مؤمن نه وُه -

دویمه مسئله د دے ایات نه دا راووته چه لفظ د "فِيْمَا شَجَرَ" صرف د معاملو او حقوقو سره متعلق نه دے په عقیدو نظریاتو وغیره باندے هم حاوی دے یعنی عقیدے او نظریئے پکښے هم داخلے دی (بحر محیط) په دے وجه د هر مسلمان دا فرض دی چه کله هم په یو مسئله کښے اختلاف ته نوبت اورسی نو د یو بل سره د جګړے کولو په ځائے دوا ړه فریقو لره پکار دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم طرفته او د دوی نه پس د دوی شریعت طرفته رجوع اوکړی د مسئلے حل را اوباسی -

دریمه مسئله دا معلومه شوه چه کوم کار د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه

قولاً یا عملاً ثابت شه دَ حغې په کولو کښې دَ زړهٔ تنګی محسوس کول دَ ایمان دَ کمزورئ نښه ده - مثلاً کوم ځائے چه شریعت په تیمم سره دَ مانځه کولو اجازت ورکړے دے، حلته چه په تیمم سره دَ کوم سړی زړهٔ راضی نه وی نو دے دا تقویٰ نه ګنړی بلکه دا دَ دهٔ دَ زړهٔ خړوالے دے - دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه زیات متقی څوک نه شی کیدے، پکوم صورت کښې چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم په ناستے دَ مانځه کولو اجازت ورکړے دے او پخپله ئے کړے دے، که دَچا زړهٔ په دے راضی نه وی او نا قابل برداشت محنت او مشقت تیره وی په ولاړے دے کوی نو دے او ګنړی چه دَ دهٔ په زړهٔ کښې خړوالے دے، البته که دَ معمو لی تکلیف یا ضرورت پوخت کښے په رُخصت عمل او نه کړی عزیمت اختیار کړی نو دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ تعلیم مطابق دا ټهیک ده - لیکن مطلق شرعی رخصتونو کښې تنګدلی محسوس کول څهٔ تقویٰ نه ده - په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

| | |
|---|---|
| اِنَّ اللّٰهَ تَعَالٰی یُحِبُّ اَنْ تُؤْتٰی رُخَصُهٗ کَمَا یُحِبُّ اَنْ تُؤْتٰی عَزَآئِمُهٗ - | " یعنی الله تعالیٰ چه څنګه په عزیمتونو سره په عمل کولو خوشحالیږی دغه شان په رخصتونو هم عمل کول خوښوی " |

په عامو عبادتونو ذکرونو او وظیفو کښې دَ ټولو نه غوره طریقه هغه ده کومه چه پخپله دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم معمول پاتے شوے ده - او دَ دوئ نه پس پورے صحابه کوامو عمل کړے دے - په مسلمانانو فرض دی چه دَ حدیثو دَ صحیح روایتونو نه دغه طریقه معلومه کړی او خپل عمل ئے جوړ کړی -

**یو اهمه فائده** دَ تیر تفصیل نه دا خبره واضحه شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ اُمت صرف اصلاح کونکے او دَ اخلاقو خودونکے نه وَه، بلکه یو عادل حاکم هم وَه او بیا حاکم هم دَ داسے شان چه دَ دوی فیصله دَ ایمان او دَ کفر معیار مقرر کړے شوے لکه چه دَ بِشر منافق دَ واقع نه ښکاره ده - دَ دے خبرے دَ وضاحت دَ پاره الله تعالیٰ پخپل پاک کتاب کښې څو یو ځایه دَ خپل حکم منلو دَ تعلیم سره سره دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم حکم منل هم لازمی مقرر کړی دی - فرمائی: اَطِیْعُوا اللّٰهَ وَاَطِیْعُوا الرَّسُوْلَ: یعنی دَ

الله تعالیٰ حکم منئ او د رسول د الله حکم منئ۔

په بعد ځائ کښے ارشاد فرمائي: مَنۡ یُّطِعِ الرَّسُوۡلَ فَقَدۡ اَطَاعَ اللّٰهَ: یعنې څوک چه د الله د رسول حکم او مني نو دهٔ په حقیقت کښے د الله تعالیٰ حکم اومانه۔

په دے ایاتونو چه غور او کړے شي نو د دوی د حاکموالی شان تر ے بنهٔ په ډاګه کیږي۔ چه د دے د عملی صورت ښکاره کولو د پاره الله تعالیٰ دوئ ته خپل قانون او لیږه۔ چه د دے مطابق دوی د مقدمو فیصلے اوکړي۔ لکه چه ارشاد دے: اِنَّاۤ اَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡكَ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ لِتَحۡكُمَ بَیۡنَ النَّاسِ بِمَاۤ اَرٰىكَ اللّٰهُ؛ یعنې مونږ پتا کتاب د حق سره نازل کړو چه ته د خلقو په مینځ کښے دا سے فیصلے او کړے څنګه چه الله پاک تا ته خودلے دی او ته ئے پو ے پوهه کړے یئے

---

وَلَوۡ اَنَّا كَتَبۡنَا عَلَیۡهِمۡ اَنِ اقۡتُلُوۡۤا اَنۡفُسَكُمۡ اَوِ اخۡرُجُوۡا

او که مونږ په دوی باندے حکم کړے چه هلاک کړئ خپل ځانونه یا پاڅئ کور ځئ خپل

مِنۡ دِیَارِكُمۡ مَّا فَعَلُوۡهُ اِلَّا قَلِیۡلٌ مِّنۡهُمۡ ؕ وَلَوۡ اَنَّهُمۡ

کورونه نو دا سے بهٔ نه وُو کړی مګر لږ د دوی نه۔ او که دا خلق او کړی هغه

فَعَلُوۡا مَا یُوۡعَظُوۡنَ بِهٖ لَكَانَ خَیۡرًا لَّهُمۡ وَاَشَدَّ تَثۡبِیۡتًا ﴿۶۶﴾

کوم چه ئے دوی ته نصیحت کولے شي نو دا به غوره وی دوی لره او زیات ثابت لوونکے په دین کښے۔

وَّاِذًا لَّاٰتَیۡنٰهُمۡ مِّنۡ لَّدُنَّاۤ اَجۡرًا عَظِیۡمًا ﴿۶۷﴾ وَّلَهَدَیۡنٰهُمۡ

او په دغه وخت کښے به البته ورکړو مونږ دوی لره د خپل طرف نه ثواب لوئے۔ او دا وُ به

صِرَاطًا مُّسۡتَقِیۡمًا ﴿۶۸﴾

ښایو دوی ته لار نیغه برابر۔

# لنډ تفسير

(او مونږ که په خلقو باندې دا خبره (په طور د مقصودي حکم) فرض کړې وې چه تاسو ځانونه وژنئ يا د خپل وطن نه بې وطنه کيږئ نو په غير د يو څو کسانو نه (کوم چه کامل مؤمنان وو) دا حکم به هيچا هم نه وو په ځائے کړے (د دے نه ثابته شوه چه کامل حکم منونکی ډير کم وی) او که چرے دے (منافقانو) خلقو ته چه په څۀ شی سره دوی ته (د رسول د حکم په سرسترګو سره د منلو) نصيحت کولے شی په دے باندے عمل کولے نو د دوی د پاره به (په دنيا کښے د دوچه د ثواب ګټلو نه) غوره وے او (دا ربلي د دين د مکمل کولو په اعتبار سره به د دوی) ايمان لره به ئے زيات پخه ونکے وے (ځکه چه په تجربے سره ثابته شوه چه د دين په کارکولو سره پخيله باطن او عقيده او يقين پخيږی او ترقي کوی) او په دے حالت کښے به (چه کله په عمل سره دوی ته د دين ثابت والے حاصليدے نو په آخرت کښے به) مونږ دوی ته خاص د خپل طرف نه لوئے اجوورکولو او مونږ به دوی ته (د جنت) نيغه لار خودلے - (چه بے دريغه جنت ته داخليږی چه د لوئے اجر او د مقام وے) -

# معلومات او مسئلے

**شانِ نزول** د کومے واقعے په بنا چه دا آيات او که دے نه وړاندے آيا تونه نازل شو - هغه د بشر منافق معامله وه - چه د خپلے جګړے د فيصلے د پاره ئے اول کعب بن اشرف يهودی تجويز کړو ، بيا په مجبوری د نبی کريم صلے الله عليه وسلم خواله لاړو - او چونکه د هغوی فيصله د دۀ خلاف وه نو په هغے راضی نه شو ، او دوباره حضرت عمرؓ له لاړ شو - دا واقعه چه کله په مدينه کښے مشهوره شوه نو مسلمانانو ته يهوديانو پيغور ورکړو چه تاسو څنګه خلق يئ - چه کوم لره تاسو رسول ؐ منئ او د تا بعدارئ دعوه ئے کوئ د هغه فيصلے نه منئ - او کوم دئ يهوديانو ته د دوی د ګناه د توبے په باره کښے دا حکم شوے وۀ چه تاسو يو بل قتل کړئ ، نو مونږ د غه سخت حکم هم او منلو

تر دې چه ځمونږ ه او يا زره کسان اووَړلے شو، که تاسو ته چه ته دا سے حکم شوے وے نو چه تاسو به څهٔ کول - په دے باندے دا ايات نازل شو: وَلَوۡ[1] أَنَّا كَتَبۡنَا عَلَيۡهِمۡ : يعنې دَ دے منافقانو يا دَ عامو خلقو چه کافرا ومؤمن ټول پکښې داخل دی خوحال دا دے چه که په دوی باندے دَ بنی اسرائيلو پشان څهٔ سخت حکم دَ ځان دَ وژلو يا دَ وطن پريخودو شوے وے نو په دوی کښې به ډيرو کمو خلقو دا حکم منلے وه -

په دے کښې هغه خلقو ته سخت خبردارے دے چه دَ خپلو جګړو فيصله رسول الله يا دَ رسول الله شريعت پاتے کوی بل طرفته وړی، او دَ يهودی دَ پيغور جواب په کښے هم دے چه دا حال دَ منافقانو دے دَ ټولو مسلمانانو نه دے - او ګواه دَ دے دا دے - چه کله دا ايات نازل شو نو په صحابه کرامو رضوان الله تعالیٰ عليهم کښے يو صاحب اووے چه الله مونږ په دے ازمائيش کښے نه يو اچولی ، دَ صحابیؓ دا کلمه رسول الله صلے الله عليه وسلم ته اورسيده ، نو دوی او فرمائيل چه زما په امت کښے دا سے خلق هم شته چه په زړو نو کښے ئے ايمان دَ مضبوطو غرونو نه زيات مضبوط شوے دے - دَ ابن وهب بيان دے چه دا کلمه دَ حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه وه -

او په يو روايت کښے دی چه حضرت صديق اکبرؓ هم کله دا ايات واوريدو نو اوئے فرمائيل چه که دا حکم نازل شوے وے نو په خدائے قسم چه دَ ټولو اول به پرے ما خپل ځان او خپل دَ کور خلق قربان کړی وے -

په بعضے روايتو نو کښے دی چه دَ دے ايات په نازليدو باندِ نبی کريم صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل چه که دا حکم دَ ځان وژلو يا وطن پرے خودو دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه راغلے وے نو اُمِّ عبدؓ يعنې حضرت عبد الله بن مسعودؓ به ضرور په دے عمل کړے وه - او پاتے شوه دَ وطن پريخودو معامله نو صحابه کرامؓ خو په دے عمل کړے او خودلے دے - چه خپل وطن مکه او ټول جائدادونه او تجارتونه ئے پاتے کړل او مدينے منورے طرفته ئے هجرت اختيار کړو -

په اخر ايات کښے ئے اوفرمائيل چه دا کار ګرچه ګران دے ليکن که ځما دَ حکم مطابق دوی دے لوه او منی نو انجام به ئے داوی چه دا به دَ دوی دَ پاره غوره وی

[1] له دې لفظ تحقيق نکاره دے چه اصل تفسير کښې هم دغسې دے او دَ دې روايت اصل ماخذ معلوم نه دے که چا ته معلوم وی نو ګټه به ئے کړی او مونږ ته دے اطلاع راکړی ۔ (مترجم)

او داعمل به د دوی ایمان نور مضبوط کړی، او موږ به په دې باندې دوی لره لوئ
ثواب ورکړو او دے به په نیغه لار روان کړو۔
او د دے نه پس په آخری آیات کښې د الله تعالیٰ او د هغه د رسول صلی الله
علیه وسلم د حکم منونکو د لویو درجو ذکر دے چه په دے کښې دوی ته زیرے هم
ورکړے شوے دے چه دا خلق به په جنت کښې د انبیاؤ، صدیقانو او شهیدانو
او صالحانو سره وی۔
د دے آیات د نزول یوه خاصه واقعه ده، او د دے تفصیل د انبیاؤ
صدیقانو شهیدانو او صالحانو د څلورو درجو ذکر موچه په دے آیات کښې
ذکر دے د دے تشریح او په جنت کښې د دوی سره د ملګری کیدو
تفسیر به انشاء الله تعالیٰ چه وړاندې راشی۔

---

وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ

او څوک چه حکم منی د الله او د هغه د رسول پس هغه به د هغو سره وی

اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَ

په چا چه الله انعام کړے دے چه هغوی نبیان، صدیقان او

الشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿٦٩﴾

شهیدان او نیک بخت دی او غوره دوی د دوی ملګرتیا۔

ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ﴿٧٠﴾ ع ۹/۱۱

دا فضل دے د الله د طرف نه۔ او الله پوره دے پوهه۔

**لنډ تفسیر** او کوم سړے (چه په ضروری احکامو کښې هم) د الله او د
رسول خبره او منی (اګر چه په چیرو عبادتونو سره کمال حاصل نه کړی)

نو دا سې خلق به هم (په جنت کښې) د هغې حضراتو سره وي په چا چه الله تعالیٰ (کامل) انعام (د نزدیکت او دین او قبول والي) فرمائیلے دے. یعنی انبیاء (علیهم السلام) او صدیقان (کوم چه د انبیاؤ په اُمت کښې د ټولو نه زیات مرتبې والا وي چه باطني کمال پکښې هم وي او په عُرف کښې ورته اولیاء والې) او شهیدان (چا چه د دین په محبت کښې خپل ځانونه قربان کړي وي) او صالحان (چه د شریعت پوره تابع وي په واجبا توکښې هم او په مستحبا توکښې هم چه نیک بخت او دیندار ورته وئیلے شي) او دا حضرات (چه د چا ملګری وي) څومره ښه ملګری دي (او د فرمانبردارو د دوی سره ملګرتیا ثابته ده، پس حاصل دا شو چه د فرمانبردار دا میوه شوه چه دوی ته به دا سې ملګری ملاؤ شي) دا (ملګرتیا او یوځائې والے د دې حضراتو سره محض) فضل دے د الله تعالیٰ د جانب نه (یعنی د عمل اجر نه دے ځکه چه د عمل مقتضا دا ده چه کومه درجه د عمل وي د هغې درجې دے وړاندې نه تلے نو پس دا په طور د انعام ده) او الله تعالیٰ پوره پوهه دے (په هر یو عمل او د هغې په مقتضا باندې او د دینه د زیات مناسب انعام مقدار ورته ښه معلوم دے. ځکه چه په دے انعام کښې به هم تفاوت وي څوک به د دې حضراتو سره هر وخت یوځائې وي او څوک کله کله، الله تعالیٰ ښه عالم دے).

**د ایاتو نو تړون:** په دې آیتونو کښې د الله او د رسول په فرمانبردارئ باندے د لوئے اجر وعده وه. او س په دے ایاتو نو کښې په طور د قاعدے کلیئے د الله او د هغه د رسول په فرمانبردارئ باندے د عام وعدے ذکر دے.

# مَعلومَات او مَسئلے

**د جنّت درجے به د عملونو په اعتبار سره وی:** کوم خلق چه په هغو ټولو څیزونو باندے عمل کوی د کوم د کولو حکم چه الله تعالیٰ او د هغهٔ رسول صلے الله علیه وسلم کړے دے، د هغو ټولو څیزونو نه ځان ساتی د کوم د کولو نه چه الله تعالیٰ او د هغه رسول صلے الله علیه وسلم منع فرمائیلے ده. نو د عمل په اعتبار سره به د دوی مختلفے درجے وی. د اوّلے درجے خلقو ته به الله تعالیٰ

د انبياء عليهم السلام سره د جنت په اوچتو مقامونو کښې ځائے ورکړى ی - او د دويمے درجے خلقوته به د هغه خلقو سره ځائے ورکړى چه د انبيائو نه پس دى کوم ته چه صدّيقين وئيلے شى، يعنى هغه لوئے لوئے صحابه کرام رضي الله عنهم کوم چه بغير د څۀ چون وچرا نه په اول ځل کښے ايمان قبول کړے دے لکه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه. بيا به د دريمے درجے خلق د حضراتو شهيدانو سره وى - شهيدان هغه خلق دى چا چه د الله په لاره کښے خپل ځانونه او مالونه قربان کړى دى - بيا د څلورمے درجے خلق به د صالحانو حضراتو سره وى، او صالحان هغه خلق دى چه پخپل ظاهر او باطن کښے د نيکو عملونو پابند وى -

**لنډ** دا دے چه د الله تعالىٰ او د هغۀ د رسول صلى الله عليه وسلم پوره په پوره فرمانبردارى کونکى به د دے حضراتو سره وى کوم چه د الله تعالىٰ په نزد د ټولونه زيات عزتمند او مقبول وى او د کوموچه څلور درجے او خودلے شو ے - يعنى انبياء عليهم السلام، صدّيقانُ، شهيدانُ او صالحانُ -

**شانِ نزول** دا آيات د يو خاص واقعے په بنا نازل شوے دے چه د تفسير امام حافظ ابن کثيرؒ په ډيرو سندونو سره نقل کړے دے -

واقعه دا ده چه حضرت عائشه رضى الله عنها فرمائى چه يوه ورځ يو صحابى رضي الله عنه د نبى کريم صلے الله عليه وسلم په خدمت کښے حاضر شو او عرض ئے اوکړو چه يارسول الله ﷺ ځما په زړۀ کښے ستا سو محبت د خپل روح نه هم زيات دے او د خپلے ښځے نه هم او د خپل اولاد نه هم - بعضے وخت زۀ پخپل کور کښے بے آرامه يم تر دے چه ستاسو په خدمت کښے حاضر شم ستاسو زيارت اوکړم نو پس د هغے راته آرام راشى - او س ځما سره دا فکر دے - چه کله د دے دنيا نه تاسو لاړشئ او ماله هم مرګ راشى نو زۀ پوهيږم چه تاسو به په جنت کښے د انبياء عليهم السلامو سره په اوچتو درجو کښے يئ، او ما ته خو اول دا معلومه نۀ ده چه زۀ به جنت ته اورسم او که نۀ - که اورسم هم نو ځما درجه به ستاسو نه ډيره لاندے وى زۀ به هلته ستاسو زيارت نۀ شم کولے نو زۀ به څنګه صبر يوم؟

نبي كريم صلے الله عليه وسلم دا خبره واوريده هيڅ جواب ئے ورنه كړو،
تر دے چه دا ذكر شوے آيات نازل شو: وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ فَاُولٰٓئِكَ
مَعَ الَّذِيْنَ: تر: وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ - نو دغه وخت نبي كريم صلے الله عليه وسلم
دهٔ ته زيرے وركړو چه ورته خبر داروته يه په جنت كښے د انبياء عليهم
السلام، صديقانو، او شهيدانو او صالحانو سره د ملاقات موقع ملاويږي،
يعنې په جنت كښے به د درجو د اوچتوالي او لاندے والي باوجود د ملاقات
او يوځائے كيناستو موقعے ملاويږي۔

په جنت كښے د ملاقات يو څو صورتونه

چه د دے به يو صورت دا هم وي چه پخپل خپل ځائے به ناست وي او يو بل به ويني. لكه چه
په موطاء امام مالكؒ كښے په روايت د ابوسعيد خدريؓ نقل دے چه نبي
كريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه جنتيان به پخپلو كړكو كښے د ځان
نه د اوچتے درجے خلق ويني لكه تاسو چه په دنيا كښے ستوري وينئ۔

او دا صورت به هم وي چه د يو بل درجو ته به د ملاقات د پاره راځي
لكه چه ابن جريرؒ په روايت د ربيعؒ نقل كړے دے چه نبي كريم صلے الله عليه وسلم
د دے آيات په تفسير كښے دا ارشاد فرمائيلے دے چه د برے درجے خلق به
د لاندے درجے د خلقو د ملاقات د پاره راځي او د دوي سره به ملاقات
او مجلس كوي۔

او دا هم ممكنه ده چه د لاندے درجے خلقو ته د ملاقات د پاره برو
درجو ته د تللو اجازت وي۔ د دے آيات په بنا رسول الله صلے الله عليه وسلم
ډير و خلقو ته په جنت كښے د خپل ځان سره يوځائے د اوسيدو زيرے
وركړے دے۔

په صحيح مسلم كښے دي چه حضرت كعب بن اسلميؓ به د نبي كريم صلے الله عليه وسلم
سره شپے تيره ولے، يوه شپه د تهجد په وخت كعب اسلميؓ د نبي كريم صلے الله
عليه وسلم د پاره د اودا سهٔ اوبه او مسواك وغيره راؤړو وكيخودو. نو دوي
خوشحاله شو او ئے فرمائيل چه غواړه څهٔ غواړے، كعب اسلميؓ عرض اوكړو چه
په جنت كښے ستاسو سره يوځائے اوسيدل غواړم، او ئے فرمائيل او نور څهٔ؟

نو هغوی عرض اوکړو نو رهيځ نه - په دے خبره نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد اوفرمايه چه که ته په جنت کښے ځما سره اوسيدل غواړے نو: "اَعِنِّیْ عَلٰی نَفْسِكَ بِكَثْرَةِ السُّجُوْدِ"؛ يعنی ستا مقصد په حاصلېږی خو ته هم په دے کښے ځما مدد داسے اوکړه چه ډيرے سجدے کوه - يعنی نفل زيات کوه -

په مسند احمدؒ کښے دی چه نبی کريم صلے الله عليه وسلم له يو سړے راغے او عرض ئے اوکړو يا رسول الله "ما دَ دے خبرے ګواهی کړے ده چه دَ الله نه سوا بل څوک دَ عبادت لايق نيشته او دَ دے چه تاسو دَ الله رشتونے رسول يئ او زه دَ پنځه وخته مانځه هم پابنديم او زکوٰة هم ورکوم او دَ رمضان روژے هم نيسم، داچه ئے واوريده نو نبی کريم صلے الله عليه وسلم اوفرمائيل چه کوم سړے په دے حالت مړشه دے به دَ انبياؤ، صديقانو، شهيدانو او صالحانو سره وی خپه دے شرط چه دَ خپل مورو پلار نافرمانی اونه کړی -

دغه شان دَ ترمذی په يو حديث کښے دی چه نبی کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلی دی:

| | |
|---|---|
| اَلتَّاجِرُ الصَّدُوْقُ الْاَمِيْنُ مَعَ النَّبِيِّيْنَ وَالصِّدِّيْقِيْنَ وَ الشُّهَدَاءِ - | "يعنی هغه بيوپاری چه رشتونے او امانتدار وی دے به دَ انبياؤ صديقانو او شهيدانو سره وی" |

| | |
|---|---|
| دَ نزديکت شرط محبّت دے | دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم صحبت (مجلس) او ملګرتيا به دَ دوی سره په محبّت سا تلو حاصلېږی- |

لکه چه په صحيح بخاری کښے دَ صحابه کرامو دَ يو لوئے جماعت نه په طريقے دَ تواتر سره نقل دی - چه دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم نه تپوس اوشو چه دَ هغه سړی به څه درجه وی چه دَ يوے ډلے (جماعت) سره محبّت او تعلّق لری مګر په عمل کښے دَ دوی درجے ته اونه رسی، نو دوی اوفرمائيل: "اَلْمَرْءُ مَعَ مَنْ اَحَبَّ"؛ "يعنی په قيامت کښے به هر سړے دَ هغهٔ چا سره وی چه دَ چا سره ئے محبّت وی"

حضرت انسؓ فرمائی چه صحابه کرامؓ په دنيا کښے په يو شی دومره نه وو خوشحاله شوی لکه چه څومره پدے حديث سره خوشحاله وو- ځکه چه پدے حديث کښے دوی ته دا زيرے ورکړے شو چه دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم سره

محبت کونکی به پد محشر او جنت کښې هم د حضور سره وی۔

| | |
|---|---|
| د نبی کریم صلی اللہ علیه وسلم ملګرتیا په رنګ نسل موقوف نه ده | طبرانی په معجم کبیر کښې د حضرت عبد اللہ بن عمرؓ دا روایت نقل کړے دے۔ چه یو |

حبشی سړے د نبی کریم صلی اللہ علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اوکړو چه یا رسول اللہ (صلی اللہ علیه وسلم) تاسو زمونږ نه په حُسن او صورت او خائست کښې هم غوره یئ او په نبوت او رسالت کښې هم، اوس په دے حال کښې که زهٔ هم په دغه خدا باندے ایمان راوړم یکوم چه تاسو ایمان لرئ او هغه عمل کوُم چه تاسو کوئ نو آیا زهٔ په جنت کښې تاسو سره کیدے شم؟

نبی کریم صلی اللہ علیه وسلم اوفرمائیل چه هاں خامخا۔ (تهٔ د دے خپلے حبشی بد صورتئ نه مه یرِیږه) قسم دے د هغه ذات د چا په قبضه کښې چه ځما روح دے په جنت کښې به تور رنګے حبشی سپین او خائسته شی۔ او د زرو کالو په فاصله باندے به بربر قیږی۔ او کوم سړے چه د لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ قائل وی د هغه خلاصے اُنجات د اللہ تعالیٰ په ذمه دے۔ او کوم سړے چه سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ لولی د دهٔ په عملنامه کښې یو لاک څلیر ویشت زره نیکئ لیکلے شی۔

چه دائے واؤریده نو په مجلس کښې یو سړی عرض اوکړه یا رسول اللہ ﷺ هرکله چه د اللہ تعالیٰ په دربار کښې د نیکو دومره سخاوت دے نو بیا مونږ څنګه هلاک کیدے یا په عذاب کښې ګرفتاریدے شو؟ حضورؐ اوفرمائیل (داخبره نه دهٔ) حقیقت دا دے چه په قیامت کښې به بعضے خلق دومره نیکئ راوړی چه که هغهٔ په غرهٔ باندے کیخودے شی نو غر به ئے هم بوج تینګ نه کړے شی لیکن د دے په مقابله کښې چه کله د اللہ تعالیٰ نعمتونه راشی او د هغوی سره وزن کړے شی نو د انسان عمل به د هغے په مقابله کښې ختم شی، مګر دا چه اللہ تعالیٰ دے په خپل رحمت سره او نمانځی۔

د دے حبشی په سوال او جواب باندے د سورتِ دَهر دا آیات نازل شو هَلْ اَتٰی عَلَی الْاِنْسَانِ حِیْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ لَمْ یَکُنْ شَیْئًا مَّذْکُوْرًا۔ حبشی په حیرانتیا

سره تپوس اوکړو چه یا رسول الله! ځما ستر ګې به هم څخه نعمتونه لیدے شی کوم چه ستاسو مبارکې ستر ګې به وینی؟

حضورؐ اوفرمائیل چه هاں خامخا، چه دائې واؤریده نو دغې نوی مسلمان شوی حبشی ژړا شروع کړه تردې چه په ژړا ژړا کښې ئې هم په دغه ځائې روح ورکړو۔ اونبی کریم صلے الله علیه وسلم پخپلو مبارکو لاسو سره د ده تجهیز او تکفین اوفرمایه۔

## د درجو تفصیل

د ایات تفسیر سره د شانِ نزول او مناسب تشریح نه بیان شو۔ اوس یوه خبره د غور قابله پاتې شوه چه الله تعالیٰ یکومو خلقو باندې انعام کړې وې د هغوی ئې څلور درجې بیان کړې دا درجې پکوم اعتبار سره دی، او د دې درجو په مینځ کښې نسبت او فرق څۀ دې، او چه آیا دا څلور واړه درجې په یوسری کښې جمع کیدے شی او که نۀ؟

مفسرینو حضراتو په دې باره کښې مختلف قولونه اولوئې لوئې بحثونه کړیدی۔ بعضے فرمائی چه دا څلور واړه درجې په یوسری کښې جمع کیدے شی اودا ټول داخلی صفتونه دی ځکه چه په قرآن کریم کښې ئې بنی ته د صدیق القاب هم ورکړی دی۔ د حضرت ابراهیم علیه السلام متعلق ارشاد دې: إِنَّهُ كَانَ صِدِّيقًا نَّبِيًّا، او د حضرت یحيٰ علیه السلام په باره کښې راغلی دی: وَنَبِيًّا مِّنَ الصَّالِحِينَ: دغه شان د حضرت یحيٰ علیه السلام متعلق: وَكُلًّا مِّنَ الصَّالِحِينَ: راغلی دی۔

نو د دې حاصل دا شو چه که د مفهوم او معنیٰ په اعتبار سره دا څلور واړه صفتونه او درجې جدا جدا دی۔ لیکن دا ټول صفتونه په یوسری کښې هم جمع کیدے شی۔ د دې مثال داسې دې لکه مُفسّر، مُحدّث، فقیه، مؤرخ او متکلّم د علماؤ مختلف صفتونه دی۔ لیکن بعض علماء داسې هم کیدے شی چه مفسر هم وی محدث هم، فقیه هم وی او مؤرخ او متکلّم هم۔ یا لکه څنګه چه ډاکټر، انجنیر، پائلټ مختلف صفتونه دی مګر دا ټول په یوسری کښې هم جمع کیدے شی۔

البته په عام عرف کښې دا قاعده ده چه په کوم سړي باندې کوم يو صفت غالب وی په هغې نوم سره هغه پيژندے شي - په طبقو باندے کتابونه ليکونکي ده لره هم په دغه طبقه کښې شماره وی - په دے وجه عام مفسرين فرمائي چه دَ صديقينو نه مراد لوئے مرتبے والا اصحابهؓ، او دَ شهيدانو نه شهيدان دَ اُحد مراد دی او دَ صالحانو نه عام نيکان مسلمانان مراد دی -

او امام راغب اصفهانیؒ دے څلورو درجو لره مختلفے درجے مقرر کړی دی په تفسير بحر محيط، روح المعاني، او مظهري کښې هم دا ذکر دی - يعنی دا چه په دے آيات کښې الله تعالیٰ مؤمنانو لره په څلورو قسمونو کښې تقسيم کړ و، دَ هر يو دَ پاره ئے درجے اعلیٰ او ادنیٰ مقرر کړے - او عامو مسلمانانو ته ئے دَ دے ترغيب ورکړے دے چه په دے کښې دَ يوے درجے نه روستو پاتے نه شی په علمی او عملی کوششونو سره دے ته دَ رسيد وجد وجهد کوی - په دے کښې نبوّت يو داسے مقام دے چه په جد وجهد سره هيڅ چا ته نه شی حاصليدے ليکن دَ انبياؤ ملگرتيا بيا هم حاصليدے شی، امام راغب فرمائي چه په دے درجو کښې دَ ټولو نه اوله درجه دَ انبياؤ ده چه دوی ته دَ الله دَ قوّت امداد حاصل وے، او دَ دے مثال داسے دے لکه يو سړے چه يو شے دَ نزدے نه وينی په دے وجه الله تعالیٰ دَ دوئ متعلق ارشاد فرمائي: أَفَتُمٰرُوْنَهٗ عَلٰى مَا يَرٰى؛

دَ صديقانو تعريف | دويمه درجه دَ صديقانو ده، او دا هغه خلق دی چه په معرفت کښې انبياؤ عليهم السلام ته نزدے دی او دَ دوی مثال داسے دے لکه څوک چه يو شے دَ لرے نه وينی، دَ حضرت علی کرم الله وجهه نه چا تپوس او کړو چه آيا تاسو الله تعالیٰ ليدلے دے؟ دوی او فرمائيل زهٔ دَ يو داسے شی عبادت نه شم کولے چه نه ئے وينم، بيائے او فرمائيل چه الله تعالیٰ الخلقو په سترگو سره څوک نه دے ليدلے ليکن دَ دوی زړونو دَ ايمان دَ حقيقتونو په ذريعه ليدلے دے - دَ دے ليدونه دَ حضرت علیؓ مراد علمی ليدل دی يعنی علم ئے دَ هغهٔ په شته والی باندے کامل راغلے دے -

دَ شهيدانو تعريف | دريمه درجه دَ شهيدانو ده دا هغه خلق دی چه مقصود لره دَ دليلونو په ذريعه پيژنی په مشاهده (مخامخ ليدو) سره نه، دَ دوی مثال

داسې دې لکه یو سړے چه یوشی لوه په آئینه کښې دَ نزدے نه وینی، لکه حضرت حارثه فرمائی چه ما ته داسې محسوس کیږی چه زه ځپل رب کریم عرش لوه وینم۔
او په حدیث: اَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ ؛ کښې هم دا قسم لیدل مراد کیدے شی۔
دَصالحانو تعریف | څلورمه درجه دَ صالحانو ده داهغه خلق دی چه مقصود لوه دَ تقلید او تابعداری په ذریعه سره پیژنی۔ دَ دوی مثال داسې دے لکه څوک چه یوشی لوه په آئینه کښې دَ لرے نه وینی او په حدیث کښې: فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ ؛ راغلی دے۔ په دے کښې هم دَ لید و دا درجه مراد کیدے شی۔
دَامام راغب اصفهانی دَ دے تحقیق نچوړ دا دے چه دا درجے دَ الله تعالیٰ دَمعرفت درجے دی او دَ معرفت دَ مختلفو درجو په بنا باندے یوړئ مختلفے دی۔
په هرحال دَ آیات مضمون صاف دے چه په دے کښې مسلمانانو ته داذیرے ورکړے شو چه دَ الله تعالیٰ او دَ حضرت دَرسول صلی الله علیه وسلم مکمل حکم منونکی به دَ اوچتو درجو دَ اوسیدونکو سره په جنت کښې وی۔ الله تعالیٰ دے دا محبّت زمونږ دَ ټولو نصیب کړی او مونږ لوه دے په دین دَ مکمل عمل کولو توفیق را کړی آمین ۔

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ
اے ایمان والو! واخلئ ځپله وسله پس او ځئ دَ ټلے ټلے شی

اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ﴿۷۱﴾ وَاِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَّيُبَطِّئَنَّ
یا ټول په جمع سره ۔ او ستاسو کښې بعضې داسې دی چه واپس کیږی به

فَاِنْ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالَ قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ
بیا که تاسو ته څۀ مصیبت اورسی نو وائی چه انعام اوکړو الله په ما باندے

اِذْ لَمْ اَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيْدًا ﴿۷۲﴾ وَلَئِنْ اَصَابَكُمْ
چه زۀ نه وُمه دَ دوی سره ۔ او که اورسی تاسو ته

فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوْلَنَّ كَاَنْ لَّمْ تَكُنْۢ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهٗ

فضل د الله د طرفه نو دا سے وائي چه ګويا نه وه په مونږ او په تاسو کښے څه

مَوَدَّةٌ يّٰلَيْتَنِيْ كُنْتُ مَعَهُمْ فَاَفُوْزَ فَوْزًا عَظِيْمًا ﴿۷۳﴾

دوستي اے کاش چه زه وے د دوی سره نو مونده لے به مے وے لوئے مراد۔

فَلْيُقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يَشْرُوْنَ الْحَيٰوةَ

پس پکار دی چه جنګ دِکوی د الله په لاره کښے هغه خلق چه خرڅوی ژوندون د

الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ؕ وَمَنْ يُّقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَيُقْتَلْ

دُنیا په بدله د اخرت ۔ او څوک چه جنګیږی د الله په لار کښے بیا مړ کړے شی

اَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۷۴﴾

او یا غالب شی نو مونږ به ورکړو ده ته لوئے ثواب۔

## لنډ تفسير

اے ایماندارو د کافرانو په مقابله کښے خوم خپل احتیاط کوئ (یعنی د دوی د حملے او داؤ نه هوښیار او سئ او د جنګ په وخت کښے سامان وسله ډال او توره هم برابر ساتئ) بیا (د دوی سره د جنګ کولو د پاره) جدا جدا یا په جمع باندے (څنګه چه موقع وی) او ځئ، او ستاسو په جماعت (ټولی) کښے (چه بعضے منافقان پکښے هم شاملیږی) بعضے خلق داسے دی (مراد د دینه منافقان دی) چه پشا کیږی (یعنی په جهاد کښے نه شریکیږی) بیا که تاسو ته څۀ حادثه او رسیده (لکه شکست وغیره) نو (هغوی ډیر نه تلو خوشحالیږی) وائی بے شکه الله تعالیٰ په ما لوئے فضل اوکړه چه زه د دغه خلقو سره (په جنګ کښے) شریک نه شوم (کنه په ما به هم دا مصیبت راغلے وه) او که پتا سو د الله تعالیٰ فضل او شی

(یعنې فتح او غنیمت) نو په دا سې طور باندې (په خود غرضۍ سره) چه ګویا په تا سو او په دوی کښې څه تعلق د سره نیشتې (د مال په فوت کیدو باندې افسوس کوی) هائې څه خه به وے چه زهٔ هم د خلقو سره شریک وے (یعنې جهاد ته تلے) نو ما به هم ډیره کامیابی موندلے وے (چه مال او دولت به م راوړے وه ' او خودغرضی او بے تعلقی د دے وینا نه ظاهره ده ' ورنه که چا سره چه تعلق وی د هغهٔ په کامیابۍ باندے خو هم خلق خوشحالیږی - دا سے نه وی چه په ځان باندے افسوس کوی او د هغهٔ د خوشحالۍ نوم هم نه اخلی ' الله تعالیٰ د دا سے سړی په حق کښے فرمائی چه لو یه کامیابی په مفت کښے نه ملاویږی که د دے طالب وی) نو هاں دا سے سړی لره په کار دی چه د الله په لاره کښے (یعنې د الله د کلمے د اوچتو لو په نیت سره دے په ایمانی او خلاق جذبه یعنې مخلص مسلمان د جوړیدو نه پس (د دے (کافرانو) خلقو سره دے او جنګیږی کوم چه آخرت پاتے کوی او د هغې) په بدله کښے ئے د دنیا ژوند اختیار کړے دے (یعنې د دے سړی که د لوئے کامیابۍ حاصلولو شوق وی نو ډیره دے برابر کړی لاس او پښے دے او خوزه وی مشقت دے تیر کړی غشو او نیزو ته دے سینه او نیسی نو بیا دے ګوری چه لو یه کامیابی ورته په لاس ورځی او که نهٔ ' او دا خوشه هسے توقے نه دی ' بیا چه کوم سړے د ومره مصیبت تیر کړی نو رشتونے کامیابی د هغهٔ ده - ځکه چه د دنیا کامیابی اول خو هیڅ هم نه ده او بیا کله وی او کله نه وی ځکه چه که غالب راشی نو شته ورنه نیشته ' او د آخرت کامیابی کومه چه د دا سے سړی د پاره ئے وعده شوے ده دا سے ده چه عظیمه هم ده او په هرحالت کښے هم ده ځکه چه د هغهٔ قانون دا دے چه) کوم سړے د الله په لاره کښے جنګ کوی بیا خواه (مغلوب شی تر دے چه) مړ کړے شی یا غالب راشی موږ (په هرحالت کښے) دهٔ لره (د آخرت) لوئے اجر به ورکړو (چه عظیمه کامیابی هغې ته ویلی لائق دی) -

## د آیاتو نوټرون

د دے نه وړاندے د الله او د هغهٔ د رسول د حکم منلو ذکر وو - او س وړاندے په دے آیاتو کښے حکم منونکو ته د دین د ژوندی ساتلو او د الله تعالیٰ د کلمے د اوچتولو د پاره د جهاد حکم ورکړے شوے دے (قرطبی)

# معلومات او مسئلے

**اهم فائدے**

۱: يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ الخ: دَ دے ایات په اوّله حصّه کښے ئے دَ جهاد دَ پاره دَ وسلے دَ راجمع کولو حکم اوکړو او په دویمه حصّه کښے ئے دَ جهاد دَ کولو، دَ دے نه یوه خبره خو دا معلومه شوه کومه چه ئے په ډیرو ځایونو کښے واضحه کړے ده چه ظاهري اسباب اختیارول دَ توکل منافي نه دي۔

دویمه خبره ترے دا معلومه شوه چه دلته دَ وسلے دَ جمع کولو حکم خو ئے اوکړه لیکن دا وعده ئے نه ده کړے چه دَ دے په وجه سره به تاسو خامخا محفوظ یئي۔ دَ دے نه اشاره دے طرف ته اوشوه چه دَ اسبابو اختیاره ول صرف دَ زړه دَ اطمینان دَ پاره وي ورنه فی نفسه په دے کښے څۀ نفع نقصان نیشتے لکه ارشاد دے:

قُلْ لَّنْ يُّصِيْبَنَآ اِلَّا مَا كَتَبَ اللّٰهُ لَنَا۔

"یعني اے نبي تاسو اووایئ چه موږ ته څه تکلیف نه رسیږي مگر هغه چه زموږ دَ پاره مقدر شوے وي۔"

۲: په دے ایات کښے اول خو دَ جهاد دَ تیارۍ حکم ورکړے شو دَ دے نه پس دَ دے دَ پاره دَ وتلو طریقه او خودے شوه چه دَ هغے دَ پاره ئے دوه جملے ذکر کړے یعنی: فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا: ثُبَاتٍ دَ: ثُبَةٌ: جمع ده چه معنیٰ ئے ورکوټے شان جماعت دے چه فوجي دسته (سریّه) ورته وئیلے شي یعنی که تاسو دَ جهاد دَ پاره اوځئ نو یوه دوه او یوائے مه اوځئ۔ بلکه دَ وړو وړو ډلو په شکل کښے اوځئ۔ یا ډیر (په جمع) دَ لښکر په صورت کښے ځئ۔ ځکه چه یوائے دَ جنګ دَ پاره په تلو کښے دَ نقصان قوي احتمال دے، او دشمن دَ دا سے موقع نه پوره پوره فائده اغستے شي۔

دا تعلیم خو دَ جهاد په موقع مسلمانانو ته ورکړے شوے دے۔ لیکن په عام حالاتو کښے هم دَ شریعت دا تعلیم دے۔ چه یوائے دے سفر نه کوي، لکه چه په یو حدیث کښے یوائے مسافر ته یو شیطان وئیلے شوے دے او دوه دوو مسافرو ته دوه شیطانان او دریو ته ئے جماعت فرمائیلے دے۔

دغه شان په یو بل حدیث کښې ارشاد دے:

خَيْرُ الصَّحَابَةِ اَرْبَعَةٌ وَّ خَيْرُ السَّرَايَا اَرْبَعُمِائَةٍ وَ خَيْرُ الْجُيُوْشِ اَرْبَعَةُ اٰلَافٍ۔

"یعنی غوره ملګری څلور دی او غوره فوجي دسته څلور سوه ده او غوره لښکر څلور زره کسان دی."

(رواه طبرانی بحواله مشکوٰة)

۳: وَاِنَّ مِنْكُمْ الخ: د دے ایات نه په ظاهره دا معلومیږی چه دا هم مؤمنانو ته خطاب دے لیکن محققینو چه کوم صفتونه بیان کړے شوی دی دغه د مؤمنانو نه شی کیدے۔ په دے وجه علامه قرطبی فرمائی، چه د دے نه مراد منافقان دی دوی په چونکه په ظاهره د مسلمانید و دعوے کولے۔ په دے وجه په خطاب کښې دوی ته د مسلمانانو یو جماعت او وئیلے شو۔

---

وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ

او تاسو له څه او شو چه نه جنګیږئ د الله په لاره کښې او د هغو د پاره چه مغلوب دی

مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَآءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِيْنَ يَقُوْلُوْنَ

سړی او ښځې او بچی کوم چه وائی

رَبَّنَآ اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا ۚ وَ

اے ربه زمونږ ته او باسے مونږ له د دے کلی نه چه ظالمان دی خلق د دے۔ او

اجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ وَلِيًّا ۙ وَّاجْعَلْ لَّنَا مِنْ لَّدُنْكَ

کړه زمونږ د پاره د خپل طرف نه څوک مددګار۔ او کړے زمونږ د پاره د خپل طرف نه

نَصِيْرًا ؕ﴿۷۵﴾ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ

امداد کوونکے۔ کوم خلق چه ایماندار دی پس جنګیږی د الله په لاره کښې

وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ الطَّاغُوتِ

او کوم چه کافر دی پس جنګ کوی په لاره دَ شیطان کښے

فَقَاتِلُوا أَوْلِيَاءَ الشَّيْطَانِ ۖ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَانِ

پس جنګ کوئ تاسو دَ شیطان دِملګرو سره - بے شکه فریب دَ شیطان

كَانَ ضَعِيفًا ﴿٧٦﴾ ع ۱۰ ۷

کمزور دے -

# لنډ تفسیر

او ستاسو سره څهٔ عذر دے چه تاسو جهاد نه کوئ (سره دَ دے چه قوی ضرورت ئے موجود دے ځکه چه دا جهاد) دَ الله په لاره کښے دے یعنی دَ الله دَ کلمے دَ اوچتولو دَ پاره دے او دَ دے اهتمام ضروری دے) او (دَ دے دین دَ اوچت ساتلو دَ نښو نه دَ یو بے خاص نښے ضرورت هم په وړاندے دے او هغه دا چه) دَ کمزورو (ایماندارو) په خاطر (رحم دا جنګ کول ضروری دی چه دَ کفارو دَ ظلم دَ منګُلو نه خلاص شی) کوم (عاجزانو) کښے چه څهٔ سړی دی څهٔ ښځے دی او څهٔ بچی دی کوم چه (دَ کفارو نه تنګ شوی دی) دعاګانے کوی چه اے زمونږ پروردګاره مونږ لره (په څه شان) دَ دے کلی نه (یعنی مکے نه چه زمونږ دَ پاره جیل خانه جوړه شوے ده) او باسے باهر ته دَ کوم چه اوسیدونکی سخت ظالمان دی (چه په مونږ ئے یوا' فت راغورزوَ ولے دے) او زمونږ دَ پاره دَ غیبو نه یو امداد کوونکے راولیږے (چه زمونږ امداد او کړی دَ دے ظالمانو دَ منګُلو نه مونږ خلاص کړی) کوم خلق چه پوخ ایمان لرونکی دی (دَ دوئ چه احکمونه واوری) دَ الله په لاره کښے (یعنی دَ اسلام دَ غلبے په قصد سره) جهاد کوی او کوم خلق (دَ دوی په مقابله کښے) چه کافران دی دوی دَ شیطان په لاره کښے (یعنی دَ کفر دَ غلبے په قصد سره) جنګ کوی (او ښکاره خبره ده چه په دے

دداړه وکښې په دالله مدد د ایماندارو سره وی، نوهرکله چه دایماندارو سره دالله مدد دے) نو (اے ایماندارو!) تاسو دشیطان دملګرو سره (یعنی دکافرانو سره کوم چه دالله د مدد نه محروم دی) جهاد کوئ (او اګرچه هغوی هم دخپلې غلبې دپاره مختلف تدبیرونه کوی لیکن) په واقع کښې (دغه شیطانی تدبیرونه دی چه شیطان ددے کفر د تدبیرونو حکم کوی) شیطانی تدبیر (بیخبله) بے کاره وی ځکه چه په دے کښې غیبی امداد نه وی، او که چرته یو وار په غلبه هم بیاموی نو دا دوی ته یو څو ورځے مهلت ورکول وی، نو کوم غیبی امداد چه دمؤمنانو سره دے ددوی دغه تدبیر به د هغه څه مقابله اوکړی)

لنډه داده چه ضرورت ئے هم دے، او وعده د مدد هم ده نو بیا عذر څه دے ؛ په دے وجه مکرر تاکید اوشه۔

# معلومات او مسئلے

| دمظلوم فریادرسی داسلام یو اهم فریضه ده | په مکه کښې داسے کمزوری مسلمانان پاتے شوی وو چه د بدن د کمزورئی او کم سامانئ په وجه سره |
| --- | --- |

ئے هجرت نه وه کړے شوے۔ او روستو بیا کافرانو هم دوی نه پرېښودل، او قسم قسم تکلیفونه به ئے ورته رسول، چه دا خلق د اسلام نه واپس شی په دے حضراتو کښې د بعضو نومونه هم په تفسیر ونو کښې ذکر دی، مثلاً ابن عباس او د دوی مور بی بی، سلمه بن هشام، ولید بن ولید، او ابوجندل بن سهل (قرطبی) دے حضراتو دخپل ایمان د پوخوالی په وجه د دوی ظلمونه زغمل او په اسلام باندے بند کلك ولاړ وو، البته دالله تعالیٰ نه به ئے د دے مصیبتونو نه دخلاصی د پاره دعاګانے برابر کولے، اخر الله تعالیٰ د دوی دعا قبوله کړه او مسلمانانو ته ئے حکم اوکړو چه جهاد د اوکړئ او دوی لره دے د کافرانو د زور زیاتی نه خلاص کړی۔

په دے ایات کښې مؤمنانو الله تعالیٰ ته د دوه خبرو درخواست کړے وه۔ یو دا چه مونږ د دے کلی نه اوباسے (دلته د کلی نه مراد مکه ده) دویم دا چه زمونږ د پاره خوك حمایتی او مددګار دا اولیږه ۔ نو الله تعالیٰ د دوی دا دواړه خبرے قبولے کړے۔ داسے چه بعضو ته ئے د دغے ځائے نه د وتلو موقع په لاس ورکړے چه په دے

سره دَ دوی او له خبره پوره شوه. بعضې دغلته پاتې شو ترڅو چې مکه فتح شوه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم عتاب بن اَسِید رض دَ دوی سرپرست مقرر کړو چې دوئ دغه مظلومینو له دَ ظالمانو دَ منځې نه آزاد کړل او دغه شان دَ دوی دویمه خبره هم پوره شوه. په دې آیات کښې په صافو لفظونو کښې دَ جنګ دَ حکم ورکولو په ځائې قرآن کریم دا الفاظ اختیار کړل: مَالَكُمْ لَا تُقَاتِلُوْنَ:

په دې کښې دې طرف ته اشاره ده چې په داسې حالاتو کښې جنګ او جهاد یو طبعي او فطري فریضه ده (یعني انسان طبعًا دیته مجبوره وي) چې دَ دې نه کول دَ بنده سړي دَ شان نه ډیره لرې خبره ده.

دَ الله تعالیٰ نه دعا غوښتل دَ ټولو مصیبتو نو بهترین علاج دے

په آیات: يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَا اَخْرِجْنَا: سره ئې دا او خودله چې دَ جنګ دَ حکم کولو یو سبب دَ مغوکمزورو مسلمانانو سړو او ښځو دعا وه چې دَ هغې قبول والې ئې مسلمانانو ته دَ جهاد دَ حکم په کولو سره اوکړو. او دَ دوی دَ مصیبتو نو فورًا خاتمه اوشوه.

جنګ خو ټول کوي لیکن په دې کښې دَ مؤمن او کافر مقصد جُدا جُدا وي

اَلَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الخ: په دې آیات کښې او خودې شوه چې مؤمنان دَ الله په لاره کښې جنګیږي، او کافران دَ شیطان په لاره کښې. دَ دینه صاف ښکاره ده چې دَ مؤمن دَ جد وجهد مقصد صرف دا وي چې په دنیا کښې دې دَ خدائې قانون رائج وي او دَ الله تعالیٰ حکم دې اوچت وي. ځکه چې الله تعالیٰ دَ ټولو مخلوقاتو مالك دے او دَ دهٔ قانون خالص په انصاف باندې بنا دے او هر کله چې دَ انصاف حکومت قائم شي نو امن به قائم وي. دَ دُنیا دَ امن دَ پاره دا ضروري ده چې په دنیا کښې دې هغه قانون جاري وي کوم چې دَ خدائې قانون دے. نو په دې وجه سره کامل مؤمن چې کله جنګ کوي نو دَ دهٔ په وړاندې هم دا مقصد وي.

لیکن دَ دې په مقابله کښې دَ کفارو خواهش دا وي چې کفر دې جاري وي او دَ کفر دې غلبه وي. او شیطاني قوتو نه دې په اقتدار باندې قبضه کونکي وي چې په دنیا کښې کفر او شرک بنهٔ اوچلیږي. او چونکه کفر او شرک دَ شیطان لارې دي نو په دې وجه کافران دَ شیطان په کار کښې دَ دهٔ مدد کوي.

**دَ شیطان تد بیر ضعیف دے**

إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيفًا: په دے ایات کښے اُوخودے شوه چه دَ شیطان تد بیرونه بے کاره او کمزوری دی۔ چه په دے وجه دے دَ مؤمنانو هیڅ نه شي ورا نوَلے۔ نو مؤمنانو لره په کار دی چه دَ شیطان دَ دوستانو یعنی کافرانو سره په جنګ کولو کښے سُستی نه کوی۔ ځکه چه دَ دوی مددګار الله تعالیٰ دے۔ او کافرانو لره به دَ شیطان تد بیر هیڅ فائده ورنه کړی۔

لکه چه په جنګ بدر کښے دا سے او شوه، چه اول شیطان دَ کافرانو په زړه کښے لوئے لوئے لافے کولے او دوی لره ئے مکمل یقین ورکولو چه: "لَا غَالِبَ لَكُمُ الْيَوْمَ": نن ورځ تا سو هیڅوک نشی مغلوب کولے ځکه چه: "إِنِّي جَارٌ لَّكُمْ": زهٔ ستاسو مددګار یم"۔ زهٔ به دَ خپل قوم لښکر سره ستاسو مدد کوم۔ کله چه جنګ شروع شو نو دے دَ خپل لښکر سره اګر چه دَ زړو پر اندے شو لیکن هر کله چه دهٔ اولیدل چه دَ مسلمانانو امداد کولو له فرښتے را اورسیدے نو ده خپل تد بیر ناکام او لیدهٔ پښائے تختیدل شروع کړل۔ او خپلو دوستانو یعنی کافرانو ته ئے اووے: "إِنِّي بَرِيءٌ مِّنكُمْ إِنِّي أَرَىٰ مَا لَا تَرَوْنَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ وَاللَّهُ شَدِيدُ الْعِقَابِ": "زهٔ ستاسو نه ویزاره یم، ځکه چه زهٔ هغه څه وینم چه تاسو ئے نه شئ لیدے، (یعنی دَ فرښتو لښکر) زهٔ دَ الله تعالیٰ نه ویریږم ځکه چه هغه سخت عذاب ورکونکے دے"۔ (مظهری)

په دے ایات کښے ئے دَ شیطان تد بیر ته چه کوم ضعیف و ئیلے دے په دے وجه دَ دے ایات نه دوه شرطونه هم معلوم شو، یو دا چه هغه سړے دَ چا په مقابله کښے چه شیطان تد بیر کوی مسلمان وی، او دویم دا چه دَ دهٔ دغه کار محض دَ الله دَ پاره وی څهٔ دُنیا وی یا نفساني غرض پکښے نه وی۔ اول شرط دَ "الَّذِينَ آمَنُوا" نه او دویم دَ "يُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ" نه معلوم شو۔ که په دے شرطونو کښے یو فوت شي۔ نو بیا ضروری نه ده چه دَ شیطان تد بیر دَ دهٔ په مقابله کښے کمزورے وی۔

حضرت ابن عباسؓ فرمائی "چه کله تاسو شیطان اووینئ نو بغیر دَ څهٔ ویرے ترے نه پورے حمله کوئ"۔ بیائے دا ایات تلاوت کړو: إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيفًا ؕ: (احکام القرطبی للسیوطیؒ)۔

اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ وَاَقِيْمُوا

اے تا او نہ لیدہ ھغو خلقو لرہ چا تہ چہ حکم شوے وہ چہ خپل لاسونہ بند ساتی او قائم ساتئ

الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۚ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ

مونځ او ورکوئ زکوۃ - پس کلہ چہ حکم اوشو دوی تہ دَ جنګ کولو

اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللّٰهِ

نو پہ دغہ وخت کښے یو جماعت دَ دوی او یریدہ دَ خلقو نہ پشان دَ یریدے دَ اللہ نہ

اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ عَلَيْنَا

یا دَ دے نہ ھم زیاتہ یرہ - او اوئے وئے اے زمونږ ربہ ولے دے فرض کړو پہ مونږ

الْقِتَالَ ۚ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۗ قُلْ مَتَاعُ

جنګ - ولے دے نہ پاتے کولو مونږہ دَ لږ وختہ پورے - او وایہ چہ فائدہ

الدُّنْيَا قَلِيْلٌ ۚ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ۗ وَلَا تُظْلَمُوْنَ

دَ دُنیا لږہ دہ - او اٰخرت غورہ دے دَ پرهیزګارا نو دَ پارہ - او ستاسو حق بہ پاتے

فَتِيْلًا ﴿۷۷﴾ اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ

نکړے شی دَ مزی برابر - کوم ځائے کښے چہ تاسو یئ او بہ نیسی تاسو لرہ مرګ اګر کہ تاسو یئ

كُنْتُمْ فِيْ بُرُوْجٍ مُّشَيَّدَةٍ ۗ وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ

پہ مضبوطو قلاګا نو کښے - او کہ اورسی دے خلقو تہ څہ خیګړہ

يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ

نو وائی دا دَ اللہ دَ طرف نہ دہ - او کہ اورسی خلقو تہ څہ بد ی -

يَقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِكَ ؕ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ

نو وائی چه دا ستا د طرف نه ده - او وايه چه دا ټول د الله د طرف

اللّٰهِ ؕ فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ

نه دی - پس څه حال دے د دے خلقو چه هرګز نه دی دوی چه پوهه شی په

حَدِيْثًا ﴿۷۸﴾ مَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ز وَ

خبره - څه چه رسی تا ته څهٔ ښیګړه نو د الله د طرف نه ده - او

مَآ اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ ؕ وَاَرْسَلْنٰكَ

څهٔ چه رسی تا ته بد ه پس ستا د نفس د طرف نه ده - او مونږ لیږلے ئے

لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿۷۹﴾

تا لره پیغام رسونکے خلقو ته - او الله پوره دے مخامخ لیدونکے -

# لنډ تفسير

(اے مخاطبه) ولے تا هغو خلقو لره او نه لیدل (چه د جهاد د حکم نازلیدو نه اول خوئے د جنګ کولو دا سے خواهش وه چه) دوی ته (د منع کولو د پاره) دا وئیلی شوی وو چه (او س) خپلو لاسونو لره (د جنګ نه) بند ساتئ او (کوم کوم حکمو نه چه تا سو ته شوی دی په هغې کښے لګیا اوسئ مثلاً) د مونځونو پابندی کوئ او زکوٰة ورکوئ (یا خو دا حالت وُو او یا) بیا په دوئ باندے جهاد کول فرض کړے شو نو څه حال ئے شو چه په دوئ کښے بعضے بعضے خلق د (مخالفو) خلقو نه (طبعًا) دا سے یریدل (چه مونږ به قتل کړی) لکه (څوک) چه د الله نه یریږی بلکه د دے نه هم زیاته یره (د دزیاتے یرے دوه معنے کیدے شی یوه دا چه اکثر د الله تعالیٰ نه یره عقلاً دی او د دشمن نه یره طبعًا وی - او قاعده دا ده چه

طبعي حالت دَ عقلي حالت نه سخت وي- دويم دا چه لکه څنګه دَ خدائے پاک نه يَوه ده نو دغه شان تر دَ رحمت اُميد هم دے او دَ کافر دشمن نه خو دَ ضرر يَره او يَره ده- او چونکه دا يَره طبعي ده نو ځکه ګناه نه شو) او زيا دَ جهاد دَ حکم د روستو کولو په ارزو کښے) دا سے ئے او وے (خواه په ژبه سره يا په زړه سره او دَ خدا ئے تعالٰي په علم کښے خو دَ ژبے وَئيلا او دَ زړه برابر دي) چه اے زمونږ پروردګا ره تا ولې په مونږ جهاد وَلے فرض کړو مونږ لره دے (دَ خپلے مهربانۍ په وجه) لږ ه نوره موده مهلت را کړے وے (نو لږ په بے فکرۍ سره به مونږ خپل ضرورتونه پوره کړي وُو- او چونکه دا عرض په طور دَ اعتراض يا دَ انکار نه وُه، ځکه ګناه نه شو- وړاندے دَ دے جواب فرمائي چه اے محمد صلے الله عليه وسلم) تاسو او وائيئ چه دَ دُنيا نه فائده اُغستل (دَ کوم دَ پاره چه تاسو دَ مهلت ارزو کوئ) محض يو څو ورځے دي او اٰخرت (چه دَ حاصليدو اعلٰي ذريعه ئے جهاد دے) په هرشان سره غوره دے (مګر هغه) دَ هغه چا دَ پاره (دے) څوک چه دَ الله تعالٰي دَ مخالفت نه بچ شو (ځکه چه که دَ کفر په وجه ئے مخالفت او کړو نو دَ دۀ دَ پاره خو دَ اٰخرت سامان هيڅ هم نيشته او که ګناه ئے او کړو نو دَ اعلٰي درجے نه به محرومه شي) او پتا سو به يوه ذره ظلم او نه کړے شي (يعني څو مره عملونه چه وي دَ هغے پوره پوره ثواب به ملاؤ شي نو بيا دَ جهاد پشان دَ عمل نه وَلے ځانو نه محرومه کوئ- او که جهاد مو هم او نه کړو نو په مقرر وخت بانديے به دَ مرګ نه بچ شئ؟ هرګز نه، ځکه چه دَ مرګ خو دا حال دے چه) تاسو هرځائے چه يئ هلته به مرګ تاسو را نيسي اګرچه په پخو مضبوطو قلاګانو کښے رولے نه) يئ (غرض دا دے چه هرکله مرګ بچپل مقرر وخت بانديے راتلونکے دے نو بيا په مرګ سره به يو وار دا دنيا پاتے کيږي نو اٰخرت ته وَلے خالي لاسونه لاړ شو، بلکه دَ عقل خبره خو دا ده چه ''يو څو ورځے محنت باقي تول عمر خندا'') او که چرے دوي (منافقانو) ته څۀ ښۀ حالت وړاندے راشي (لکه فتح او کاميابي) نو وائي چه دا دَ الله دَ طرف نه (اتفاقي) او شوه (ورنه مسلمانانو خو دَ دے دَ پاره هيڅ تدبير هم نه دے کړے) او که دوي ته څۀ بَد حالت وړاندے راشي (لکه په جهاد کښے مرګ يا قتل) نو (اے محمد صلے الله عليه وسلم نعوذ بالله ستا په نسبت باندے) وائي چه دا ستا او دَ مسلمانانو دَ بے تدبيرۍ په وجه

سره ده (ورنه چه په ارام په کور ووتو کښې ناست وے نو ولے به په دے مصیبت کښې پریوتو) تاسو ورته اووایئ چه (څما په دے کښې یوه ذره دخل هم نیشته بلکه) هرڅه (ښه او بد) دَ الله دَ طرف نه دی (اګرچه یو په واسطه سره دے او بل بے دَ واسطے نه دے لکه چه تفصیل ئې راروان دے - چه حاصل ئې دا دے چه نعمت خو محض دَ الله تعالیٰ په فضل سره بے دَ واسطے دَ عمل نه دے، او مصیبت په واسطه دَ بد عملونو دَ بنده ګانو دَ الله دَ عدل نه دے، پس تاسو چه پکوم مصیبت کښې ګډ خل ګنړئ په واقعه کښې ستاسو دَ بد عملونو په دے کښې دخل دے، لکه په اُحد کښې چه دَ شکست په اسبابو کښې تیر شوی دی - او دا خبره څرګنده ظاهره ده - که بنده لږ هم غور اوکړی نو دَ خوشحالئ نه وړاندے څۀ نیک عمل به دَ دومره درجے بیا نه مومی بلکه دا به ثابته شی چه دا محض دَ الله فضل دے - او دَ بد حالئ نه وړاندے به خامخا څۀ بد عمل (داسے) بیا مومی چه دَ هغے سزا به دَ دے نه هم زیاته وی نو چه هر کله دا خبره ښکاره ده) نو دے (بے وقوفو) خلقو لره څۀ اوشو چه په خبره باندے هډو پوهیږی نه (او که پوهه شی نو څۀ او هغه تفصیل دا دے چه) اے انسانه تا ته چه څۀ خوشحالی وړاندے راځی نو دا محض دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه (مهربانی) ده او څۀ بد حالی چه درته وړاندے راځی نو هغه ستا دَ (بد عملونو دَ) سبب نه ده (پس دے بد حالئ ته دَ شریعت په احکامو دَ عمل کولو نتیجه وئیل یائې شارع طرف ته نسبت کول پوره جهالت دے، لکه چه منافقانو به جهاد او دَ جهاد امام طرف ته دَ دے نسبت کولو) او موږ ته تاسو لره ټولو خلقو طرف ته پیغمبر جوړ کړے او لیږلے او (که څوک منافق یا کافر انکار کوی نو دَ هغه په انکار سره نبوّت نشی لرے کیدے ځکه چه) الله تعالیٰ (ستاسو دَ رسالت) پوره ګواه دے (چه دَ دے قولی او فعلی شهادت ئې ورکړے دے - قولی شهادت لکه دا کلمه: وَاَرْسَلْنٰكَ، شوه - او فعلی شهادت معجزے دی چه دَ نبوّت دَ ثابتولو دَ پاره ئې تاسو لره درکړی دی)

## معلومات او مسئلے

**شانِ نزول** : اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ الخ : په مکه کښې دَ

هجرت نه وړاندې به کافرانو مسلمانانو ډېر آزاره ول، مسلمانان دَ حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو شکايت ئې کولو او رخصت ئې غوښتلو چه مونږ دَ کفارو سره جنګ اوکړو او دَ دوى نه دَ دې خپل ظلم بدله واخلو. خو دوئ ﷺ به مسلمانان دَ جنګ نه منع کول چه ما ته دَ جنګ حکم نيشته بلکه دَ صبر او معافئ حکم دې، او فرمائيل به ئې چه دَ مانځه او زکوٰة کوم حکم چه تاسو ته شوې دې دَ غه برابر کوئ ځکه چه ترڅو پورې بنى آدم دَ خدائے پاک په اطاعت (حکم منلو) کښې په خپل نفس با ندې دَ جهاد کولو او دَ بدنى تکليفو نو سره آموخته شوې نه وى او دَ خپل مال په خرچ کولو باندې عادت شوې نه وى، نو دهٔ ته جهاد کول او خپل روح ورکول ډېر ګران وى، دا خبره مسلمانانو قبوله کړې وه. بيا دَ هجرت نه پس هر کله چه مسلمانانو ته دَ جهاد حکم او شو نو دوى لره خوشحالېدل پکار وُو چه زمونږ درخواست قبول شو. ليکن بعضې کچه مسلمانان دَ کافرانو دَ جنګ نه داسې اوېرېدل لکه څنګه چه دَ الله دَ عذاب نه يېره پکار ده، يا دَ دېنه هم زيات، او آرزوګانې ئې شروع کړې چه لږ نورې ورځې نورې دَ جنګ حکم نه وې راغلے او مونږ ژوندى او سيدے نو مښهٔ به وے. په دې دا آيات نازل شو (روح المعانى)

| دَ جهاد دَ حکم په نازليدو باندې دَ مسلمانانو دَ طرف نه دَ مهلت آرزوګانې وَلے اوشوې؟ |

دَ جهاد په حکم باندې دَ مسلمانانو دَ طرف نه دَ مهلت آرزو په حقيقت کښې څهٔ اعتراض نهٔ وُه بلکه يو خوندهٔ وُره ګله وه. چه دَ دې وجه دا وه چه عادت داسې وى چه هر کله سړې ډېرې تنګئ او تکليف ته اورسى نو دَ دهٔ جذبات راپورته شى نو په داسې وخت کښې بدل اغستل ډېر آسان وى. ليکن دَ آرام او راحت په وخت کښې دَ دهٔ طبيعت جنګ ته تيار نه وى، دا يو انسانى خواهش دے. نو کله چه دا مسلمانان په مکه کښې وُو نو دغه وخت دَ کفارو دَ ضررونو نه تنګ شوى وُو دَ جهاد دَ حکم آرزو ئې کوله ليکن هر کله چه مدينے ته راغلل او دوى ته سکون او آرام حاصل شو، نو په داسې صورت کښې چه دَ جنګ حکم اوشو نو دغه وخت دَ دوى پخوانئ جذبه کمه شوې وه او دَ دوى په زړونو کښې هغه جوش خروش نهٔ وُه پاتې شوې

په دے وجه دوی محض یو ارزو اوکړه، چه که دا وخت د جهاد حکم نه وے شوے نو ښهٔ به وے، دا ارزو په اعتراض حمل کول او دغه مسلمانانو ته د ګناه نسبت کول صحیح نه دی، خو دا تقریر هله دے چه که دوی د دے کلے اظهار په ژبه سره هم کړے وی، لیکن که په ژبه سره ئے نه وی کړے محض په زړهٔ کښے ئے وسوسه پیدا شوے وی، نو د زړهٔ وسوسو له خو د سره شریعت ګناه نه دے شمارلے، دلته دا دواړه احتمالات شته، او د ایات د لفظ: قَالُوْا: نه دا شک نه دی کول پکار چه دوی په ژبه سره هم اظهار کړے وُه ځکه چه د دے دا معنے کیدے شی چه دوی پخپل زړهٔ کښے وئیلی وُو۔ (بیان القرآن ملخصًا)

د بعضے مفسرو ینو تفسیر لیکونکو په نزد د ایات تعلق د مؤمنانو سره نه دے بلکه د منافقانو سره دے۔ نو په دے صورت کښے خو د هیڅ قسمه اشکال نه شی پاتے کیدے (تفسیر کبیر)

**د ملک د اصلاح نه د نفس اصلاح وړمبئ ده**: اَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّکٰوةَ: الله تعالیٰ اول د مانځهٔ او زکوٰة حکمونه بیان کړل چه د نفس د اصلاح سببونه دی۔ او د دینه پس ئے د جهاد حکم ورکړو۔ چه د ملک د اصلاح سبب دے، یعنی د دے په ذریعه ظلم او زیاتے ختمولے شی او په ملک کښے امن وامان قائمیدے شی۔ د دے نه معلومه شوه چه بنی آدم لوه د نورو د اصلاح نه اول خپله اصلاح پکار ده، نو دا د دلیل د درجے په اعتبار سره هم د اول قسم حکم فرضِ عین دے او د دویم فرضِ کفایه دے۔ چه د دے نه د نفس د اصلاح اهمیت او وړمبے والے ښکاره دے (مظهری)

**د دُنیا او د اخرت په نعمتونو کښے فرق**: په ایات کښے ئے د دُنیا د نعمتونو په مقابله کښے د اخرت نعمتونو ته غوره او بهتر وئیلی دی۔ د دے والا نه ئے څو وجوه دی:

۱: د دنیا نعمتونه لږ او د اخرت نعمتونه ډیر دی۔

۲: د دنیا نعمتونه ختمیدونکی دی او د اخرت باقی پاتے کیدونکی۔

۳: د دنیا د نعمتونو سره قسم قسم پریشانئ دی او د اخرت نعمتونه د دے پریشانو نه پاک دی۔

۴ : د دنیا د نعمتونو حاصلیدل یقیني نه دي او د آخرت نعمتونه به هر یو متقي ته یقیناً ملاؤ شي (تفسیر کبیر)

وَلَاخَیْرَ فِي الدُّنْیَا لِمَنْ لَّمْ یَکُنْ لَّهٗ ‌‌ مِنَ اللّٰهِ فِيْ دَارِ الْمُقَامِ نَصِیْبٌ
فَاِنْ تُعْجِبُ الدُّنْیَا رِجَالًا فَاِنَّهَا ‌‌ مَتَاعٌ قَلِیْلٌ وَالزَّوَالُ قَرِیْبٌ

"یعني په دې فاني دُنیا کښې د داسې سړي د پاره هیڅ خیر نیشتې د چا د پاره چه د الله تعالیٰ د طرف نه په هغه همیشه پاتې کیدو نکي کور یعني په اخرت کښې څۀ ځائې نه وي- بیا که دا دنیا څینې خلقو لره په ځان پاندې مینې کړي نو خبر دار چه دا دُنیا لږ سامان دې او زوال ئې ډیر نزدې دې، یعني د سترګو پټیدو دي او اخرت مخې ته را تلل دي"

## یو عبرت ناکه واقعه

: اَیْنَ مَا تَکُوْنُوْا یُدْرِکْکُّمُ الْمَوْتُ الخ : الله تعالیٰ په دې ایات د جهاد نه د پاتې کیدو نکو د دې شبهې اِزَالَه اوکړه، یعني دا شبه ئې پورې لرې کړه چه شاید د جهاد نه پاتې شي نو د مرګ نه به هم بچ شي- په دې وجه ئې اوفرمائیل چه مرګ به یو ورځ خامخا راځي تا سو هر ځائې چه یئ هلته به مرئ نو چه خبره داسې ده نو ستا سو د جهاد نه ځان پاتې کول بې کاره دي-

حافظ ابن کثیر د دې ایات لاندې یو عبرتناکه واقعه په روایت د ابن جریر او ابن ابي حاتم د مجاهد نه لیکلې ده، چه په مخکنو امتونو کښې یوه ښځه وه د دې چه هر کله د بچي کیدو وخت شروع شو او لږ ساعت پس ئې بچې اوشو نو دې خپل نوکر د اُور راوړو د پاره اولیږلو- دې چه د دروازې نه راووت نو ناڅاپه یو سړې راښکاره شو او تپوس ئې اوکړو چه د دې ښځې څۀ بچې اوُ شو؟ نوکر جواب ورکړو چه یوه جینۍ ئې اوشوه، نو دې سړي اووې چه ته یاد ساته دا جینۍ به د سلو سړو سره زنا کوي او په اخر کښې به د یو جولاګي نه مړې- دې نوکر چه دا خبره واورېده نو واپس شو او فوراً ئې یوه چړه کښې راواغستله او د دې جینۍ ګیډه ئې اوشیره له- او سوچ ئې اوکړو چه اوس به دا مړه وي او ولاړ او تختیدو، لیکن د جینۍ مور دې جینۍ له ګیډه اوګنډله او اخر چه دغه جینۍ ځوانه شوه او ښائسته د ومره وه چه په دغه ښهر کښې

بے مثله وه - او دغه نوکورَ سمند رپه لارے لاړا او تختید واو ډیره زمانه ئے پوره مال او ګټلو، او بیا دَ واده کولو دَپاره واپس دے ښهر ته راغے، او دلته ورته یوه بوډۍ ملاو شوه نوهغے ته ئے اووے چه زهٔ دَ داسے جینۍ سره واده کول غواړم چه دَهغے ژبا ته خائسته په دے ښهر کښے بله نه وی - دغے ښځے ورته اووے چه دَ فلانۍ جینۍ نه خائسته په دے ښهر کښے بله نیشته ته دَهغے سره واده اوکړه، ده کوشش اوکړو او اخر چه دَهغے سره ئے واده اوشو - دغے جینۍ دَ دے سړی نه تپوس اوکړه چه ته څوک ئے؟ او کوم ځائے اوسے؟ دے سړی ورته اووے چه زهٔ دَ دے ښهر اوسید ونکے یم، لیکن دَ یوے جینۍ کیډه رم ځیړے کړے وه او تختید لے وم، او پوره واقعه ئے ورته بیان کړه - چه دا ئے واوریده نو دے اووے چه هغه جینۍ زهٔ یم او خپله کیډه ئے ورته اوخوده چه لښے پرے موجود وے، چه سړی دا اولیده نو او ئے وے چه که ته هغه ښځه ئے نو ستا متعلق دوه خبرے نورے دی یوه دا چه ته به دَ سلو سړو سره زنا کوے، نو دے ښځے اقرار اوکړو چه هاں ځما نه داسے شوے ده، لیکن شمار راته یاد نه دے، سړی اووے چه شمارئے سَل دے - دویمه خبره داده چه ته به دجولاګۍ نه مرے -

سړی دَ دے دَپاره یو عالیشان محل تیار کړو داسے چه دَ جولاګۍ دَ جالے پکښے هډو څه نوم نښان نه وه، یوه ورځ په دغے محل کښے ملاست وو، چه په دیوال باندے ئے یو جولاګے اولیدو ښځے او وے چه هغه جولاګے دا دے چه ته ترے مایرَ وے؟ سړی اووے چه هاں دا دے - نو دا ښځه فورًا پاسیده چه دے خو به زهٔ اوس مړ کړم او جولاګے ئے لاندے راګوزار کړو او پچیوئے اوچقاوه -

جولاګے خو مړ شو لیکن دَ هغهٔ دَ زهرو څاڅکی دَ دے پچیو او نوکو نو پریوتل او دا دَ هغے نه مړه شوه (ابن کثیر)

دا ښځه په صاف ستره او عالیشان محل کښے ناڅاپه دَ یو جولاګی په ذریعه هلاکه شوه (او چه وختئے نه وه نو دَ ښیټے دَ ځیړلو نه مړه کیده) او بل کوړے په مقابله کښے څومره داسے خلق دی چه ټول عمرئے په جنګونو کښے تیر شوے

او حلته مُړهٔ نه دی۔ حضرت خالدبن ولید چه د اسلام سپاهی او مشهور جرنیل دے تول عمر د شهادت په ارمان په جهاد کښے مشغول وه او په زرګونو کافران ئے وژلی دی او په ډیرو خطرناکو موقعو باندے ورغلے دے او همیشه به ئے دا ارزو کوله چه څما مرګ دے د ښځو پشان په کټ کښے نه وی بلکه د یو بهادر سپاهی پشان دے د جهاد په میدان کښے وی۔ خو اخر د دهٔ مرګ په بستره کښے راغے۔ د دینه معلومه شوه چه د ډرونو او مرګ نظام الله تعالیٰ پخپل لاس کښے ساتلے دے هرکله چه هغه غواړی نو د آرام په بستره باندے ئے د جولاګئ دلاسه وژنی او چه یچ کول ئے غواړی نو د تورو د بریق پریوتو په مینځ کښے ئے ساتی۔

پوخ مضبوط کورا باد ول د توکل خلاف نه دی :وَلَوْ كُنْتُمْ فِيْ بُرُوْجٍ مُّشَيَّدَةٍ ؕ : په دے ایات کښے او وئیلے شو چه مرګ به تاسو ته په هرحال باندے رارسی اګرچه تاسو په مضبوطو محلونو کښے د لے نه یئ۔ د دینه معلومه شوه چه د اوسید واو مال اسباب د حفاظت د پاره مضبوط او ښکلے کورا باد ول د توکل نه خلاف نه دی۔ او نه د شریعت نه خلاف دی (قرطبی)

انسان ته نعمت محض د الله په فضل سره رسی :وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ : دلته د حسنة نه مراد نعمت دے۔ (مظهری)

په دے ایات سره ئے اشاره دے خبرے ته او کړه چه انسان ته کوم نعمت ملاویږی دا د دهٔ څهٔ حق نه وی بلکه محض د الله فضل وی، انسان خواه هرڅومره عبادت چه کوی په دے سره دے د نعمت مستحق کیدے نه شی۔ ځکه چه د عبادت توفیق هم د الله تعالیٰ د طرف نه وی۔ او بیا د الله تعالیٰ نعمتونه خو بے حسابه وی په دے لږ شان محدود عبادت او طاعت سره څنګه حاصلیدے شی؟ او بیا خاص چه زمونږ عبادت هم د رب العلمین د بادشاهت د شان لائق نه وی۔

په یو حدیث کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائی:

مَا اَحَدٌ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ اِلَّا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ قِيلَ وَلَا اَنْتَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ وَلَا اَنَا (متفق علیه) (بحوالهٔ مظهری)

"یعنی سوا د الله تعالیٰ د رحمت نه یو سړے جنت ته نه شی تلے۔ راوی عرض او کړو چه تاسو هم یا رسول الله؟ او ئے فرمائیل چه هاں زهٔ هم نه شم۔"

| | |
|---|---|
| مصیبت د انسان د بدعمل نتیجه ده | وَمَا أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ : دلته د سيئة نه مراد مصیبت دے۔ (مظهری) |

د مصیبت پیدا کونکے اګرچه الله پاک دے لیکن د دے سبب پخپله د انسان بدعملونه وی۔ او س که د انسان کا فر دے نو د ده لره چه په دنیا کښے کوم مصیبت راځی نو دا د ده د پاره د هغې عذاب یو معمولی شان نمونه ده او د آخرت عذاب ئے ډیر زیات دے، او که دے مؤمن دے نو د ده د پاره مصیبتونه او تکلیفونه د ده د ګناهونو کفاره کیږی د آخرت د نجات (خلاصی) سبب ئے جوړیږی۔ لکه یو حدیث کښے حضور صلے الله علیه وسلم فرمائی :

| | |
|---|---|
| مَا مِنْ مُصِيبَةٍ تُصِيبُ الْمُسْلِمَ إِلَّا كَفَّرَ اللّٰهُ بِهَا عَنْهُ حَتَّى الشَّوْكَةَ يُشَاكُهَا۔ (ترمذی بحواله مظهری) | "یعنی یو مصیبت داسے نیشته چه یو مسلمان ته او رسی مګر د ده د ګناهونو کفاره کیږی، تردے پورے چه ازغے کوم چه د ده پښو کښے ځی۔" (یعنے غته) |

په یو بل حدیث کښے فرمائی :

| | |
|---|---|
| عَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُصِيبُ عَبْدًا نُكْبَةٌ فَمَا فَوْقَهَا وَمَا دُونَهَا إِلَّا بِذَنْبٍ وَمَا يَعْفُوا أَكْثَرُ ۔ (ترمذی بحواله مظهری) | "حضرت ابو موسیٰ رض فرمائی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه بنده ته څه ډیر وړکے یا سخت مصیبت راځی نو دا د ده د ګناهونو نتیجه وی، او ډیر د ګناهونو لره الله تعالیٰ معاف کوی۔" |

| | |
|---|---|
| د حضور رسالت د ټول عالم د پاره عام دے | وَأَرْسَلْنَاكَ لِلنَّاسِ رَسُولًا : د دے نه ثابته شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ټولو خلقو د پاره رسول |

جوړ کړے شوے او را لیږلے شوے دے د ده صرف د عربو د پاره نه وو را لیږلے شوے بلکه د دوی رسالت د ټول عالم انسان د پاره عام دے خواه د هغه وخت موجود وی او که راتلونکی د ده تر قیامته پورے پیدا کیږی (مظهری)

مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللّٰهَ ۚ وَمَنْ تَوَلَّىٰ

چا چه حکم او مانه د رسول ص ده حکم او مانه د الله۔ او څوک چه واپس شو

فَمَآ اَرۡسَلۡنٰكَ عَلَيۡهِمۡ حَفِيۡظًا ﴿۸۰﴾

نو مونږ تا لره نه دے لیږلے په دوی باندے نګهبان : (ساتونکے)

# لنډ تفسیر

کوم سړی چه د رسول (صلی الله علیه وسلم) حکم او منلو نو دهٔ د خدائے تعالیٰ حکم او منلو او څوک چه د رسولؐ نافرمانی او کړه نو هغهٔ د خدائے تعالیٰ نافرمانی او کړه، او د الله تعالیٰ حکم منلهٔ عقل سره هم واجب دی نو پس د دوئی حکم منل هم واجب شو) او کوم سړی چه ( د دوی د حکم نه) مخ واړاوهٔ پس (تاسو هیڅ غم مه کوئ ځکه چه مونږه) تاسو لره په طور د ذمه وار) د دوی نګهوانان نهٔ یئ لیګلی (چه تاسو به دوی کفر کولو ته نه پریدئ بلکه ستاسو فرض پیغام د رسول دی او دا په رسولو سره پوره کیږی که د دینه پس دوی بیا هم کفر کوی نو ستاسو نه د دے خبرے څه تپوس به نشی کیده ے۔ تاسو د دے خبرے فکر مه کوئ)۔

وَيَقُوۡلُوۡنَ طَاعَةٌ فَاِذَا بَرَزُوۡا مِنۡ عِنۡدِكَ

او وائی قبول دے۔ بیا چه کله باهر لاړشی ستا د خوا نه

بَيَّتَ طَآئِفَةٌ مِّنۡهُمۡ غَيۡرَ الَّذِىۡ تَقُوۡلُ‌ؕ وَاللّٰهُ يَكۡتُبُ

نو مشورے کوی بعضے بعضے په دوی کښے د شپے د هغے نه خلاف چه تا ته ئے ویلی دی۔ او الله لیکی

مَا يُبَيِّتُوۡنَ‌ۚ فَاَعۡرِضۡ عَنۡهُمۡ وَتَوَكَّلۡ عَلَى اللّٰهِ‌ؕ وَكَفٰى

کومے چه دوی مشورے کوی۔ پس ته ځان ناخبره کوه په دوی او توکل کوه په الله او الله

بِاللّٰهِ وَكِيۡلًا ﴿۸۱﴾ اَفَلَا يَتَدَبَّرُوۡنَ الۡقُرۡاٰنَ‌ؕ وَلَوۡ

کافی دے کارساز۔ آیا دوی غور نه کوی په قرآن کښے۔ او که چرے

كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ﴿٨٢﴾

وے دَبل چا سِوا دَ الله نه نو خامخا به مو ندے شو په دے کښے ډير تفا و ت۔

## لنډ تفسير

او دا (منافقان) خلق (ستا حکمونه وا ؤري نو ستا په وړاندے په ژبه سره خو) وائي چه زمونږ کار (ستا سو) حکم منل دي بيا چه کله ستا دَ خوانه باهر ته لاړ شي نو دَ شپے په وخت کښے (د پټے) مشورے کوي په دوي کښے يوه ډله (يعني دَ دوي دَ سردارانو ډله) په خلاف دَ هغے چه څه ئے په ژبه سره ويلي وي (او چونکه دوي سرداران دي اصل مشوره دوي کوي باقي نور دَ دوي تابع وي نو په دے خلاف کښے دَ ټولو حال يو دے) او الله تعالیٰ د په سرکاري روزنامچه کښے ليکي څه چه دوي دَ شپے مشورے کوي (په موقع به سزا ورکوي) پس ته دَ دوي (دے بے هودګئ) طرف ته مه ګوره (او خيال مکوه) او (مه څه فکر کوه بلکه ټول قصه) الله ته حواله کوه او الله پوره کارساز دے (هغه به پخپله په مناسب طور سره دَ دے دَفعه او فرمائي، نو هيڅ ته هم ورته دَ دوي دَ دے شرارتونو نه څه نقصان او نه رسيده و) آيا دا خلق (دَ قرآن په مُعْجِز والي، فصاحت او بلاغت کښے او دَ غيبو په خبر ونو ورکولو کښے) فکر کوي او بيا هم) په قرآن کښے غَوْر نه کوي (چه ثابته شي ورته چه دا دَ الله کلام دے) او دا که دَ الله تعالیٰ نه سِوا دَ بل چا (کلام) وے نو په دے (په مضامينو کښے به ئے ډير زيات تفاوت موندو (ځکه چه په هر يو مضمون کښے به ئے يو يو اختلاف وه خو په ډيرو مضمونو نو کښے به ئے اختلافات ډير وُو۔ او حال دا دے چه دَ دے په يو مضمون کښے هم اختلاف نيشتے نو پس خامخا دا دَ غير الله کلام نشي کيدے)

## معلومات او مسئلے

؛ دَ يَقُوْلُوْنَ طَاعَةٌ ؛ نه تر ؛ غَيْرَ الَّذِیْ تَقُوْلُ ؛ پورے ۔ په دے ايات کښے دَ هغے خلقو بَدُ والے بيان شوے دے چه دوه ژبے پاليسي لري، په ژبه يو څهٔ وائي

په زړه کښې ئې بد شوی وی. د دے نه پس د دا سے خلقو په باره کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د طرز عمل متعلق یو خاص خود نه ده -

## د پیشوا د پاره ضروری خودنه

فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللّٰهِ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا: هر کله چه به منافقان د دوی مخې ته راغلل نو وئیل به ئې چه مونږ ستاسو حکم قبول کړو - او هر کله چه به واپس لاړل نو د دوی د نافرمانئ کولو د پاره به ئې مشورے کولے، چه د دے سره به نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته سخت خفګان رسیدو، نو الله تعالیٰ دوی ته خودنه اوکړه چه د دوی پرواه مکوئ، تاسو خپل کار د الله تعالیٰ په بھروسه یا نده کوئ ځکه چه هغه ستاسو د پاره کافی دے -

د دے نه معلومه شوه چه کوم سړے د خلقو پیشوا او رهنما وی دے به د قسم قسم سختو نه تیریږی، خلق به قسما قسمه الزامونه د ده په سر وړ تی - د دوستئ په شکل کښې به ئې دشمنی هم کوی، د دے قسم تولو خبرو سره سره دے رهنما لره پکار دی چه په مضبوط اراده ثابت قدمی او د الله په بهروسه خپل کار جاری ساتی، که د ده لار او منزلِ مقصود صحیح وی نو انشاء الله تعالیٰ چه خامخا به کامیابیږی -

## په قرآن کښے غور او فکر

اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ الْقُرْاٰنَ: په دے ایات سره الله تعالیٰ په قرآن کښے د غور او فکر کولو بلنه ورکوی، په دے کښې څو خیزونه د غور کولو قابل دی -

یو دا چه الله تعالیٰ: اَفَلَا يَتَدَبَّرُوْنَ: او فرمائیل: اَفَلَا يَقْرَءُوْنَ: ئې او نه فرمائیل - د دے نه په ظاهر یو باریکه اشاره دے طرف ته معلومیږی چه په دے ایات سره د دے خبرے خودنه کولے شی چه که دوی چرے په ژور نظر سره قرآن ته اوکوری نو د دے په معنو او په مضمونونو کښے به ورته څۀ اختلاف په نظر را نشی نو د دے مقصد د پاره ئې د تَدَبُّر عنوان راوړو، ځکه چه صرف په تلاوت او قرأت چه تدبر یعنی غور او فکر په کښې نه وی په دے سره چیرا اختلافات په نظر راتلے شی - چه د حقیقت نه خلاف وی -

دویمه خبره د دے ایات نه دا معلومه شوه چه د قرآن مطالبه دا ده چه

هر انسان دے د دے په مطالعو کښې غور کوی. نو دا خبره کټه چه په قرآن کښې تدبر (فکر او سوچ) کول صرف د امامانو او مجتهدانو کار دے صحیح نه ده. البته د فکر او سوچ درجے به د علم او پوهے د درجو په شان مختلفے وی. د امامانو او مجتهدانو فکر به د يو يو آيات نه په زرګونو مسئلے را او باسی د عامو عالمانو فکر به دو مره وی چه پدے مسئلو به پوهه شی. عوام که د قرآن ترجمه او تفسیر په خپله ژبه کښې اوکړی او فکر پکښې کوی نو د الله تعالیٰ د لوئی او محبت او د آخرت فکر به ئې پیدا شی چه دا د کامیابئ کنجی ده. البته عوامو لره د غلط فهمئ او غلطو نه د بچ کیدو د پاره دا ضروری ده او غوره ده چه د چا عالم نه قرآن په سبق سبق سره او لولی. او که دا نه شوه کیدے نو د خپلے ژبے يو معتبر او مستند تفسیر دے مطالعه کوی او کوم ځائے چه ئے څهٔ شك راځی هلته دے فیصله په خپله رائے سره نه کوی بلکه د يو پوهه عالم نه دے ځان پوهه کوی.

**د قرآن او سنت په تفسیر او تشریح باندې يو تن یا يو جماعت اجاره داری نیشته لیکن د دے د پاره څهٔ شرطونه دی**

د ذکر شوی آیات نه معلومه شوه چه هر سړی ته دا حق شته چه دے په قرآن کښے غور او فکر او کړی. لیکن لکه څنګه چه مونږ وئیلی دی، چه د غور او فکر درجے مختلفے دی او د هر يو حکم جُدا دے. د مجتهد فکر د قرآن کریم نه مسئلے را و باسی نو د دهٔ د پاره ضروری ده چه دهٔ لره د دے نه وړاندے کوم علمونه حاصلول ضروری دی هغه په کامله طریقه سره حاصل کړی د کوم چه يو مجتهد ته ضرورت وی. نو که دے دغه علمونه حاصل نه کړی یا ئے حاصل کړی خو ناقص ئے حاصل کړی او کوم صفتونه او شرطونه چه يو مجتهد ته ئے ضرورت وی هغه پدهٔ کښے نه وی نو ښکاره خبره ده چه نتیجے به غلطے را و باسی. نو که د دهٔ نه عالمان انکار کوی نو حق دے.

که يو سړی چه ته میډیکل کالج لیده لے هم نه وی، او دا اعتراض کوی چه په ملك کښے په علاج معالجه باندے د سند یافته ډاکټرانو اجاره داری ولے قائمه ده؟ ما ته هم په حیثیت د يو انسان دا حق ملاو یدل پکار دی. یا يو د عقل نه پوره انسان دا او وائی چه په ملك د پلونو نهرونو

او بند ونو جوړولو تهيكه صرف ماهرو انجنيرانو ته ولې ورکولې شي؟ زه هم بحيثيت د دې ملک د اوسيدونكي د دې كار كولو حقدار يم -

يا يو بې عقله دا اعتراض او كړي چه د ملک د قانون په تشريح او تعبير صرف د قانون د ماهرانو اجاره داري ولې قائمه كړې شوې ده؟ زه هم د يو عاقل او بالغ په حيثيت سره دا كار كولې شم - نو د دې سړي ته به داسې وئيلې شي چه بې شكه په حيثيت د دې ملک د اوسيدونكي تا ته د دې ټولو كارونو حق حاصل دې - ليكن د دې كارونو په ځان كښې د قابليت او اهليت پيدا كولو د پاره چرې كلونه محنت كول غواړي، د ماهرو او پوهه استاذانو نه د دې متعلق علمونه اِزده كول غواړي، او د دې د پاره ډګرئ حاصلول غواړي، اوّل به دا تكليفا او سختنه تيره كړې نو بيا بې شكه چه ته به هم دا ټول خدمتونه كولې شې - ليكن كه دا خبره د قرآن او سنت د تشريح او د باريكو او نازكو مسئلو په باره كښې او كړې شي نو په دې باندې د علماؤ د اجاره دارئ چغې او نعرې ويستلې شي؟ نو ولې د قرآن او سنت د تشريح او تعبير د پاره څۀ اهليت او قابليت نه دې پكار؟ او ولې په دنيا كښې صرف يو د قرآن او سنت علم داسې لاوارثه پاتې شوې دې چه پرې دې معامله كښې هر سړي ته د خپلې تشريح او خپل تعبير حق لري، خواه كه ده د قرآن او سنت د علم حاصلولو د پاره يو څو مياشتې هم نه وي خرچ كړي -

| د قياس ثبوت | د دې آيات نه يوه دا خبره معلومه شوه چه كه د يوې |
|---|---|

مسئلې وضاحت په قرآن او سنت كښې ملاؤ نه شي نو د قرآن او سنت نه به په غور او فكر كولو سره د دې حل راويستلې شي او د دې كار ته په اصطلاح كښې قياس وائي (قرطبي)

| د ډيرو اختلافونو تشريح | ؛لَوْ كَانَ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ لَوَجَدُوْا فِيْهِ اخْتِلَافًا كَثِيْرًا ؛ د ډيرو اختلافونو مطلب دا دې چه كه په يو مضمون كښې |
|---|---|

اختلاف وې نو په ډيرو مضمونونو كښې به هم اختلاف زيات وۀ (بيان القرآن) ليكن دلته په يو مضمون كښې هم اختلاف نيشته نو په دې وجه دا د الله تعالىٰ كلام دې -

دَ بنده په کلام کښې دا سې یوشان والے چرته وی - نه پکښې چرته دَ فصاحت او بلاغت کمی شتے نه دَ توحید کفر او حلالو حرامو په بیان کښې څه تفاوت او تناقض شتے - او بیا دَ غیبو په خبرونو کښې هم یو خبر داسې نه دے چه دَ واقع مطابق نه وی او نه په نظم دَ قرآن کښې چرته داسې فرق شتے چه څهٔ فصیح او څه غیر فصیح وی - دَ هر بنده په تحریر او تقریر باندے دَماحول اثر وی ، دَ اطمینان په وخت کښې ئې کلام یو شان وی او دَ پریشانئ په وخت کښې بل شان ، دَخوشحالئ په وخت کښې په یو رنګ وی او دَ غم په وخت کښې په بل رنګ - لیکن قرآن کریم دَ هر قسم تفاوت او ضد نه پاک دے - او دا دَ دے دَ کلام الهی کیدو ښکاره دلیل دے -

وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِالْخَوْفِ اَذَاعُوْا

او هر کله چه د وی ته او رسی څه خبر دَ امن یا دَ یرے نو هغه مشهو ر

بِهٖ ؕ وَلَوْ رَدُّوْهُ اِلَی الرَّسُوْلِ وَاِلٰٓی اُولِی الْاَمْرِ

کړی - او که دغه ئې رسولے رسول ﷺ ته یا خپلو حاکما نو

مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِیْنَ یَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ؕ وَلَوْلَا

ته نو تحقیق به کړے وَه په دے کښې کوم چه پد وی کښې تحقیق کونکی دی دَ دے - او که نه

فَضْلُ اللّٰهِ عَلَیْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّیْطٰنَ

وے فضل دَ الله پتا سو او دَ هغهٔ مهربانی نو خا مخا به تا سو ور پسے شوی وئ په شیطان

اِلَّا قَلِیْلًا ﴿۸۳﴾

مګر لږ ( نه ) -

## لنډ تفسیر

او هر کله چه د وئ ته دَ څه ( نوی ) کار خبر او رسی خواه ( دغه کار موجب ) دَ امن

وی یا (موجب) د ډیرې (مثلاً د مسلمانانو یو لښکر چې ته د جهاد دپاره لاړه او د هغوی د غالب کیدو خبر راغې دا د امن خبر شو، یا د دوی د مغلوب کیدو خبر راغې دا د ډیرې خبر دې) نو دې (خبر) لره (فوراً) مشهور کړی (حال دا دې چې بعض وخت هغه غلط او خیژی- او که صحیح هم شی خو بیا هم د انتظامی کارونو په بنا سره د هغې مشهوره ول د مصلحت نه خلاف وی) او که چیرې (ټچانې د دې چې دوی ئې پخپله مشهوره وی) دې خلقو دا (خبر) رسول (صلی الله علیه وسلم) ته او کوم چې (لوئې صحابه کرام) په دوی کښې کاردونه پیژنی (رسائې) د دوی ته حواله کولې (او پخپله ئې پکښې څه دخل نه کولې) نو (د) دې خبر(د صحت او غلط او د قابل شهرت والی یا د نا قابل شهرت کیدو) لره به دغې حضرا تو پیژندو کوم چې به دوی کښې د دې تحقیق کونکی دی (لکه چې همیشه دوی خبره پیژنی نو بیا چې د دې خبر سره دغې حضرا تو څۀ عمل کولې هغسې به دوی لره هم کول پکار وو- د ځانه دوی لره به دا سې خبرو کښې دخل ورکولو ته کوم ضرورت ئې که دوی پکښې د ځانه دخل نه کولې نو د دوی به څۀ وران شوی وو؟ وړاندې د ذکر شوو حکمو نو د اوره ولونه پس کوم چې د دُنیا او اخرت د مصلحتونه پکښې دی په طور د احسان مسلمانانو ته ارشاد دې) او که پتاسو خلقو د خدائې تعالیٰ (دا خاص) فضل او رحمت (چې تاسو ته ئې قرآن درکړو خپل پیغمبر ئې دا ولیږه که دا) نه وې نو تاسو ټولو به (د دنیا او اخرت نقصان اختیار کړې وه) د شیطان ملګری شوی به وئ بغیر د لږ و خلقو نه (کوم بانده چې الله پاک خپل خاص فضل او رحمت کړې دې او روغ عقل ئې ورکړې دې د دې نه به محفوظ شوی وو- پس تاسو لره پکار دی چې دا سې پیغمبر او دا سې قرآن چې د دنیا او اخرت د جوړیدو احکام پکښې راځی غنیمت او ګڼئ او پوره په پوره د دې اطاعت او فرمانبرداری اختیار کړئ) -

## مَعْلُوْمَات او مَسْئَلے

**شانِ نزول** :وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ اَذَاعُوْا بِهٖ؛ د ابن عباس رض ضحاک رح او ابو معاذ رح په نزد دا ایات د منافقانو په

باره کښې نازل شوې وې- او د حضرت حسن رض او نورو اکثرو حضراتو په نز د دا ایات د کمزورو او ضعیفو مسلمانانو په باره کښې نازل شوې دې (روح المعاني)
علامه ابن کثیر د دې آیات متعلق د واقعو نقل کولو نه پس فرمائي چه د دې ایات په شانِ نزول کښې د حضرت عمر بن خطاب رض د حدیث ذکر کول پکار دي، حضرت دا چه حضرت عمر رضی الله عنه ته دا خبرا ورسیده چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپلو بیبیانو ته طلاق ورکړی دی- نو دے د خپل کور نه جُمات ته راغی چه دروازے ته ورسید و نو ده واوریده چه په جُمات کښې دننه خلق هم دا خبرے کوی- دوئ دا اولیده نو اوئے وې چه د دې خبرے تحقیق پکار دے- نو دے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته ورسید و او تپوس ئے ترې اوکړو چه تا سو خپلو بیبیانو ته طلاق ورکړی دی؟ دوئ او فرمائیل چه نا- حضرت عمر رض فرمائي چه د دې تحقیق کولو نه پس زه جمات ته راغلم او په دروازه او دریدم دا اعلان م اوکړو چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپلو بیبیانو ته طلاق نه دی ورکړی- دا تاسو خلق چه څه وایئ دا دروغ دی، نو په دې باندې دا ایات نازل شو: وَإِذَا جَآءَهُمْ أَمْرٌ الخ: (تفسیر ابن کثیر) -

**بے تحقیقه خبرے خورول گناه او لویه فتنه ده.-** د دې ایات نه معلومه شوه چه هره اوریدلې خبره بغیر د تحقیق نه نه دی بیا نول پکار- لکه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په یو حدیث کښې فرمائیلی دی: كَفَىٰ بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُّحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ؛ "یعنی د یو بنده د دروغژن کیدو د پاره دا خبره پوره ده چه دے هره اوریدلې خبره بغیر تحقیق نه بیان کړی"
په یو بل حدیث کښې د وی فرمائي: مَنْ حَدَّثَ بِحَدِيْثٍ وَهُوَ يَرٰى أَنَّهٗ كَذِبٌ فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِيْنَ؛ یعنی کوم سړے چه څه داسې خبره بیانه کړی چه دې ته معلومه وی چه دا دروغ دی نو په دوه دروغژنو کښې یو دے هم دے"
(تفسیر ابن کثیر) -

**اُولو الامر کوم خلق دی؟** وَلَوْ رَدُّوْهُ إِلَى الرَّسُوْلِ وَإِلٰٓى أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ الخ: استنباط په اصل کښې د کوهي د وېخ نه اوبو را ویستلو ته وائي- د کوهي د کنستلو په وخت کښې چه کومې اوبه اول وار را اوځي

هغې ته: مَاءِ مُسْتَنْبَط؛ وائي: لیکن دلته مراد دا دے چه د یوے خبرے ویخ ته رسیدل او صحیح حقیقت ئے معلومول۔ (قرطبی)

د اُولِي الأمر په تعیین کښې ډیر قولونه دي، حضرت حسن، قتاده او ابن ابي لیلی رحمهم الله په نزد باندے علماء او فقهاء مراد دي، حضرت سدی رحمة الله علیه فرمائي چه امیران او حاکمان مراد دي۔ ابوبکر جصاص د دے دواړو قولونو نقل کولو نه پس فرمائي صحیح دا ده چه دواړه مراد دي، ځکه چه د اولي الأمر اطلاق په دے دواړو باندے کیږي۔ البته په دے باندے بعضے خلق شبه کوي چه د اولي الامر نه مراد فقهاء نه شي کیدے۔ ځکه چه اولي الامر د خپلے لفظي معنیٰ په اعتبار سره هغه خلق دي د چا چه حکم چلیږي۔ او دا خو ښکاره خبره ده چه د فقهاؤ دا کار نه دے، حقیقت دا دے چه د حکم چلیدو دوه صورتونه دي، یو په جبر او تشدد سره دغه صرف د حکومت کولو نکو کار دے دویم صورت د عقیدے او اعتماد په وجه سره د حکم منلو دے او دا فقهاؤ حضراتو ته حاصل دے چه دا د عامو مسلمانانو د حالاتو نه په هر دَور کښې کتلے لیدے شي چه د دین په معاملو کښې عام مسلمانان د خپل اختیار سره د علماؤ په حکم باندے عمل واجب ګنړي، او د شریعت په رو سره په دوئ باندے د دے احکامو منل واجب هم دي۔ نو په دوئ باندے هم د اولوا الامر اطلاق صحیح دے (احکام القرآن للجصاص)

د دے بحث زیات تفصیل د آیات: قُلْ اَطِيْعُوا اللّٰهَ وَاَطِيْعُوا الرَّسُوْلَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ: لاندے هم شوے دے۔

| پهٔ نوو مسئلو کښې د قیاس او اجتهاد د عوامو د پاره د امامانو د تقلید ثبوت دے | د دے آیات نه معلومه شوه چه پکومو مسئلو کښې نص نه وي د هغې احکام |
| --- | --- |

د اجتهاد او قیاس په اصولو باندے په قرآني حیثیت سره راویستلے شي، ځکه چه په دے آیات کښې ئے د دے خبرے حکم ورکړو چه د نوو مسئلو د حل کولو د پاره که نبي کریم صلی الله علیه وسلم موجود وي نو هغوی ته رجوع کوئ او که دوی موجود نه وي نو عالمانو او فقهاؤ ته رجوع کوئ ځکه چه دوی د مسئلو راویستلو پوره صلاحیت لري۔

دَدې ایات نه څو خبرې معلومې شوې:
یوه دا چه یکو مه مسئله کښې نص نه وی په هغې کښې دِعلماؤ او فقهاؤ ته رجوع کولے شی -
دویمه دا چه دَ الله حکمونه دوه قسمه دی یو قسم هغه دی چه نص یکښې وی او واضحه وی او بعضې هغه قسم دی چه واضحه نه وی او مُبهم وی اودَ ایات په جوړ رو معنو کښې الله پاک ایخودی وی -
دریمه دا چه دَعالمانو دا فرض دی چه دوی دا سې معنې دَ اجتهاد او قیاس په ذریعه را اُوباسی -
څلورمه دا چه عوامو لره ضروری ده چه په داسې مسئلو کښې دَعلماؤ تقلید (پیروی) اوکړی - (احکام القرآن للجصاص)

**لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ:** دَ دے ایات نه معلومیږی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم هم دَاستنباط او استدلال مکلّف وُو- دَ بنی کریم صلے الله علیه وسلم هم دَدلیلونو په ذریعه دَحکمونو په راویستلو باندے مکلّف وُو- نو ځکه ئې دَ ایات په اوّل کښې دوه تنو طرفته دَرجوع کولو حکم ورکړې و- یو دَ نبی کریم صلے الله علیه طرف ته او بل دَ اُولوالامر طرف ته- دَدے نه پس ئې اوفرمائیل: لَعَلِمَهُ الَّذِيْنَ يَسْتَنْبِطُوْنَهٗ: او دا حکم عام دے چه دَدے ذکرشوو دواړو فریقو نه یکښې دَیو فریقے خاص والے نیشتے- نو په دے وجه دَدے نه ثابته شوه چه دَدوئی ذات مبارک هم دَ احکامو په راویستلو مُکلّف وُو- (احکام القرآن للجصّاص)

**اَهم فائدے**

(۱) که څوک دا شبه کوی چه دَ دے ایات نه خو صرف دو مره معلومیږی چه دَ دشمن نه دَ امن او دَیرے په باره کښې تاسو دَ ځانه خبرو نه مه خوره وئ بلکه کوم چه دَعِلم او رائې خاوندان دی هغوئ ته رجوع کوئ -نو بیا چه هغوی دَغور او فکر نه پس کومه خبره او بنائی په هغې عمل کوئ- نو بنکاره خبره ده چه دَ حادثاتی مسئلو سره دَ دے هیڅ تعلق نیشتے ،
نو جواب ئې دا دے چه په ایات: وَاِذَا جَآءَهُمْ اَمْرٌ مِّنَ الْاَمْنِ اَوِ الْخَوْفِ: کښې

د دشمن څهٔ ذکر نیشته ، نو په دے وجه امن اوېره عام دی ، لکه څنګه چه د دے تعلق د دشمن سره دے دغه شان ئے د حادثاتي مسئلو سره هم دے، څکه چه هرکله یو نوے مسئله د یو عام سړی مخے ته راشي چه د هغے د حرام والی او حلالوالی په باره کښے څهٔ نص نهٔ وی نو د دهٔ سره فکر شي چه کوم اړخ اختیار کړی، په دواړو صورتونو کښے د نفع نقصان احتمال وی نو د دے عوره عمل شریعت دارا اُو ويستلو چه تا سو د مسئلو راويستونکو طرف ته رجوع او کړئ، هغوئ چه کوم خبره او بنائی په هغے عمل کوئ -(احکام القرآن للجصّاص)

اجتهاد او استنباط د غلبے د ګمان فائدهٔ ورکوی د علم یقیني نهٔ ورکوی

۲: په استنباط سره چه کوم حکم فقهاء راوباسی د دے په باره کښے په قطعی طور سره دا نهٔ شی ویلے چه د الله تعالیٰ په نزد دا قطعی طور سره حق دے ، بلکه د دے حکم د خطاء هم احتمال وی ، البتّه د دے د صحیح کیدو غالب ګمان حاصل شی کوم چه د عمل د پاره کافی دے -

(احکام القرآن للجصّاص و تفسیر کبیر)

---

فَقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ لَا تُكَلَّفُ إِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ

پس تهٔ جنګ کوه د الله په لاره کښے - تهٔ ذمه وار نهٔ ئے مګر د خپل ځان او تاکید کوه

الْمُؤْمِنِينَ عَسَى اللَّهُ أَن يَكُفَّ بَأْسَ الَّذِينَ

مسلمانانو ته - نزدے ده چه الله بند کړی جنګ د کافرانو

كَفَرُوا وَاللَّهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنكِيلًا ﴿٨٤﴾

او الله ډیر سخت دے په جنګ کښے او ډیر سخت دے سزا ورکونکے-

## لنډ تفسیر

(هرکله چه د جهاد ضرورت شی) پس تاسو راے محمّد صلے الله علیه وسلّم)

دَ الله په لاره کښې (دَ کفارو سره) جنګ کوه (او که فرض کړه څوک ستا سره نه وي نو ته فکر مه کوه ځکه چه) تا سره ته بغیر دَ خپل ذاتي کار نه (دَ بل سړي دَ کار) څۀ حکم نیشته او (دَ دې سره) مسلمانانو ته (صرف) ترغیب ورکوه (بیا که هم در سره څوک ملګرتیا نه کوي نو ستا غاړه آزاده ده، نو ستا نه دَ تیو س کیدو فکر مه کوه او مه دَ یو اځې پاتې کیدو غم کوه ځکه چه) دَ الله تعالیٰ نه امید دې راود امید درکول وعده ده) چه دَ کافرانو دَ جنګ زور به مات کړي (او دوی به مغلوب کړي) او (اګر چه دوی ډیر زور آور په نظر راځي لیکن) الله تعالیٰ په زور دَ جنګ کښې (دَ دوی نه په ډیرو درجو سره) زیات سخت (او قوي) دې او (مخالف لره) سخته سزا ورکوي۔

# مَعْلُومَاتْ اَوْمَسْئَلے

**شانِ نزول** هرکله چه دَ اُحُد غزا دَ شوال (دوارلسمې اختر) په میاشت کښې اوشوه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم په ذي قعده کښې دَ کفارو دَ وعدې موافق بدر ته دَ مقابلې دَ پاره تلل اوغوښتل (چه تاریخ لیکونکي ورته بدر صغرٰی وائي) په دغه وخت کښې بعضې خلقو دَ تازه زخمونو په وجه او بعضو دَ افواهي خبرونو په وجه په تلو کښې څه تأمل اوکړو، نو په دې باندې الله تعالیٰ دا آیات نازل کړو۔ چه په دې کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلّم ته دا هدایت اوفرمایه چه که دا کچه مسلمانان دَ جنګ نه یریګي نو اې دَ رسول ته یواځې پخپل ذات سره جنګ کوه الله تعالیٰ ستا مدد ګار دې۔ دَ دې هدایت مو ند و سره دَ وې دَ اویا ملګرو سره و بدروکې بدر ته تشریف یوړو۔ دَ کوم چه وعده دَ ابو سفیان سره دَ اُحد دَ غزا نه پس شوې وه۔ الله تعالیٰ دَ ابُوسفیان او کفارو په زړونو کښې رُعب اوویره اُوغورزَ وَلْ او هیڅوک مقابلې ته را نغې او کفار پخپله وعده کښې دروغژن شو۔ الله تعالیٰ دَ خپل ارشاد موافق دَ کافرانو جنګ بند کړو او نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ خپلو ملګرو سره صحیح سلامت واپس تشریف راوړو (قرطبي، مظهري)

د قرآن د حکمونو مبنکلی طرز : فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الخ: د دے آیات په اوله جمله کښے خو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا حکم ورکړے شویدے چه تاسو یوازے د جهاد د پاره تیار شئ بل څوک ستاسو سره تلو ته تیار روی او که نه وی لیکن ورسره ئے په بله جمله کښے دا هم ارشاد او فرمایه چه نورو مسلمانانو ته هم جهاد ته د تلو ترغیب ورکول مه پاتے کوئے، د ترغیب ورکولو نه پس هم که دوی تیار نه شو نو تاسو خپل فرض ادا کړه - د دوی د کار به ستاسو نه تپوس نه شی کولے -

د دے سره سره چه ځنگ په یوائے تلو کښے کومه یره وه د هغے د لرے کولو د پاره ئے او فرمائیل چه د دے خبرے اُمید دے چه الله تعالیٰ به د کافرانو جنگ بند کړی او په دوئ به رُعب واچوی دوی به مغلوب شی او تاسو به یک یوائے کامیاب شئ - بیائے د دے نه پس په دے کامیاب کیدو دلیل او فرمایه چه هرکله د الله تعالیٰ مدد ستاسو سره دے چه د هغهٔ د جنګ قوّت او د جنګ زور د دے کافرانو نه چیرو درجو زیات دے نو بیا خو کامیابی هم یقیناً ستاسو ده - بیائے د جنګ د دے سخت والی سره د خپلے سزا سخت والے هم بیان کړو - دا سزا خواه په قیامت کښے وی لکه چه ښکاره ده، یا په دنیا کښے وی لکه چه بعضے وائی - په هرحال لکه څنګه چه په جنګ کولو کښے زمونږ قوّت او طاقت زیات دے دغه شان سزا هم زمونږ چیره سخته ده -

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ وَ

څوک چه سفارش اوکړی په نیکے خبرے کښے نو وی ته به هم ملاویږی د دے نه برخه، او

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ۗ وَكَانَ

څوک چه سفارش اوکړی د بدے خبرے په دهٔ به هم وی یو بوج د دے نه - او دے

اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ﴿۸۵﴾ وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ

الله په هر څه باندے قدرت لرونکے - او کله چه تاسو ته دعا اوکړی څوک نو تاسو هم دعا

تُحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ

کوئ دې نه غوره یاهغه ورته واپس وایه - بې شکه الله دې د هر شي حساب

شَیْءٍ حَسِیْبًا ﴿۸۶﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَیَجْمَعَنَّكُمْ

کوونکې - د الله نه سوا بل هیڅوک د بندګۍ لائق نیشته - بې شکه تاسو لره به جمع کړي

اِلٰى یَوْمِ الْقِیٰمَةِ لَا رَیْبَ فِیْهِ ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ

د قیامت په ورځ په دې کښې هیڅ شک نیشته - او د الله نه د چا

اللّٰهِ حَدِیْثًا ﴿۸۷﴾

خبره رشتو نې ده -

ع ۱۱
۸ النصف

# لنډ تفسیر

کوم سړے چه ښه سفارش اوکړي (یعنې د کوم چه طریقه او مقصود دواړه جائز وي) د هٔ لره به د دغې (سفارش) نه (د ثواب) حصه ملاؤ یګي او کوم سړے چه ناکاره سفارش اوکړي (یعنې د چا چه طریقه او غرض ناروا وي) نو ته به د دې (سفارش) په وجه سره (د ګناه) حصه ملاؤ یګي، او الله تعالیٰ په هر څهٔ قدرت لرونکے دے (د دے پچپل قدرت سره په نیکۍ ثواب او په بدۍ عذاب ورکولے شي) او هرکله چه تاسو ته څوک (په شرعي طور) سلام کوي نو تاسو هم (په جواب کښې) په ښو الفاظو سره سلام کوئ یا (په جواب کښې) هم هغه الفاظ ورته وایئ (تاسو ته دواړه اختیاره درکولے شي) بې شکه الله تعا په هر څهٔ (یعنې په هر یو عمل) باندے به حساب واخلي (یعنې د هغه قانون دا دے او که هسے ئې پچپل فضل سره معاف کړي نو دا بله خبره ده) الله تعالیٰ داسے دے چه د هغه نه سوا بل څوک د عبادت لائق نیشته هغه به خامخا تاسو ټولو لره جمع کړي په ورځ د قیامت په دے کښې هیڅ شک نیشته او د الله تعالیٰ نه زیاته

دَ چا خبره ورشتو ته کيدے شي (نو چه هغه خبره ورکوي نو دا بالکل ټيک دے).

# معلومات او مسئلے

دَ سفارش حقيقت او دَ دے حکمونه او دَ دے قسمونه: وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً الخ: په دے ايات کښے ئے شفاعت يعنی سفارش لره په ښنهٔ او بد دوه قسمونو کښے تقسيم کړو دَ دَ حقيقت ئے هم ښکاره کړو او دائے هم اوخودله چه نه هر يو سفارش بد دے او نه هر يو سفارش ښنهٔ دے - او دَ دے سره ئے دا هم اوخوده چه دَ ښنهٔ سفارش کونکی ته به په ثواب کښے حصه ملاو يګی او دَ بد وسفارش کونکی ته به عذاب - په ايات کښے ئے دَ ښنهٔ سفارش کو نکی سره دَ نَصِيبٌ لفظ راوړے دے او دَ بَدْ سفارش کونکی سره دَ کِفْلٌ - او په لغت کښے دَ دواړو معنیٰ يوه ده - يعنی دَ څهٔ شي يوه حصه، ليکن په عام عُرف کښے دَ نَصِيبٌ لفظ دَ ښے حصے دَ پاره وئيلے شي او دَ کِفْلٌ لفظ اکثر دَ بدے حصے دَ پاره وئيلے شي اګرچه په ځينے ځينے ځايونو کښے دَ ښے حصے دَ پاره هم لفظ دَ کِفْلٌ استعمال شوے دے - لکه په قرآن شريف کښے چه: کِفْلَيْنِ مِنْ رَّحْمَتِهٖ: فرما ئيلے شوے دے -

دَ شفاعت لفظی معنیٰ "مِلا و يدل" يا "مِيلا وهَل" دی په دے وجه سره په عربي ژبه کښے لفظ دَ "شفعه" دَ جوړے په معنیٰ باندے راځی - او دَ دے په مقابله کښے دَ "وتر" لفظ دَ طاق په معنیٰ استعمالولے شي - نو په دے وجه دَ شفاعت لفظی معنی دا شوه چه دَ خپل حق طلب کونکی کمزوری سره خپل قوت ملاؤ کړی او هغه قوی کړے شي - يا دَ بے څو که يوائے سړی سره ځپله يو ځائے شي دَ هغه نه جوړهٔ جوړه کړی -

دَ دينه معلومه شوه چه دَ جائز شفاعت او سفارش دَ پاره يو خو دا شرط دے چه دَ چا سفارش کولے شي دَ هغهٔ مطالبه حقه او جائزه وی - دويم دا چه هغه خپله مطالبه پوَ جه دَ کمزوری ځپله لويو خلقو ته نه شي رسولے او تا سو ئے اورسوئے - دَ دينه معلومه شوه چه نا حقه سفارش کول يا نورو لره دَ دے په قبلَو لو مجبوره کول شفاعتِ سَيِّئه يعنی دَ ګناه سفارش دے،

دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه په سفارش کښے که دَ خپل تعلق یا مرتبے په وجه دَ دباؤ او زور طریقه استعمال کړے شی نو دا هم په وجه دَ ظلم جائز نه دی - په دے وجه دا هم په شفاعتِ سیّئه کښے داخل دے -

اوس دَ ذکر شوی ایات دَ مضمون پخوړ داشو چه کوم سړے دَ چا دَ جائز حق او جائز کار دَپاره په جائزه طریقه سفارش اوکړی نو دهٔ ته به دَ ثواب حصّه ملاویګی، او دغه شان څوک چه دَ چا دَ نا جائز کار دَپاره یا په ناجائزه طریقه سفارش کوی دهٔ ته به دَعذاب حصّه ملاویګی -

دَ حصّے ملاویدو مطلب دا دے چه کوم سړی ته سفارش شوے وے هغه هرکله دَ دے مظلوم یا محروم کار اوکړی نو لکه څنګه چه دغه کار کوونکی افسر ته ثواب ملاویګی دغه شان به سفارش کوونکی ته ثواب ملاویګی -

او دغه شان به دَ یو ناجائز کار سفارش کوونکے هم ګناه ګار وی - او دا هم ښکاره معلومه شوے ده چه دَ سفارش کوونکی ثواب یا عذاب په دے پورے تړلے شوے نه دے چه دَ دهٔ سفارش دے اثر هم اوکړی او کامیاب دے هم شی بلکه دهٔ ته به په هر حال خپله حصّه دَ ثواب یا عذاب ملاویګی که دَ دهٔ سفارش کار اوکړی او که نه -

دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: اَلدَّالُّ عَلَے الْخَیْرِ کَفَاعِلِهٖ؛ (رواه البزاز عن ابن مسعود والطبرانی عنه وعن سهل بن سعد بحواله مظهری) "یعنی کوم سړے چه یو نیک کار ته څوک تیار کړی دهٔ ته به هم داسے ثواب ملاویګی لکه چه دغه نیک کار کوونکی ته ملاویګی"

دغه شان دَ ابن ماجه په یو حدیث کښے دَ حضرت ابو هریرهٔ نه نقل دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی:

مَنْ اَعَانَ عَلٰی قَتْلِ مُؤْمِنٍ بِشَطْرِ کَلِمَةٍ لَقِیَ اللّٰهَ مَکْتُوْبٌ بَیْنَ عَیْنَیْهِ اٰیِسٌ مِّنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ -

(مظهری)

" یعنی کوم سړی چه دَ یو مسلمان په قتل کښے په یو وه کلمه سره هم مدد اوکړو نو دے به دَ قیامت په ورځ دَ الله تعالیٰ په پیشئ کښے داسے راوستے شی چه په تندی به ئے داليکلی وی چه داسړے دَ خدائے تعالیٰ دَ رحمت نه مایوس دے"

دَ دینه معلومه شوه چه لکه څنګه نیک کار ته یو سړے تیاره وَل نیک کار دے او برابر ثواب بړے ملاوېږي۔ دغه شان بدئي او ګناه ته یو سړے تیاره ول یا ورلره سهاره ورکول هم دَ هغهٔ هومره ګناه دے۔

دَ آیات په آخر کښې ئے ارشاد او فرمایه: وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا؛ دَ "مقیت" دَ لفظ معنیٰ دَ لغت په اعتبار سره دَ قادر او قدرت لرونکي هم ده، او دَ حاضر او لید ونکي هم، او دَ رزق تقسیمونکي هم۔ او په دے جمله کښې درے واړه معنے مراد کیدے شي۔ دَ اوّلے معنیٰ په اعتبار سره خو به ئے مطلب دا شي چه" الله تعالیٰ په هرڅه قادر دے دَ عمل کونکي او سفارش کونکي جزا یاسزا هغهٔ ته ګرانه نه ده"۔

او دَ دویمے معنیٰ په اعتبار سره به ئے مطلب دا وي چه" الله تعالیٰ حاضر او هرڅهٔ لید ونکے دے دهٔ ته هرڅهٔ معلوم دي چه څوک په څهٔ نیّت سره سفارش کوي محض دَ الله دَ پاره دَ یو مسلمان رور امداد کول ئے مقصد دے یا دَ خپل څهٔ غرض دَ پاره په طور دَ رشوت اغستو کوي"۔

او دَ دریمے معنیٰ په اعتبار سره به مطلب دا وي چه" دَ رزق او روزئي دَ تقسیم خو الله پخپله کفیل دے څومره چه دَ چا دَ پاره لیکلي دي هغه به ورته ملاوېږي دَ چا په سفارش کولو هغه مجبوره کولے شي۔ بلکه چا لره چه څومره غواړي رزق ورکوي البته سفارش کونکي ته په مفتو کښې ثواب ملاوېږي چه دے دَ یو کمزوري مدد کوي"۔

په حدیث شریف کښې دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے:

كَانَ اللّٰهُ فِيْ عَوْنِ عَبْدِهٖ مَادَامَ فِيْ عَوْنِ اَخِيْهِ۔

" یعنی الله تعالیٰ ترهغه وخته پورے دَ خپل بنده په مدد کښې وي ترڅو پورے چه دے دَ خپل یو مسلمان رور په امداد کښې لګیا وي"۔

په دے بنا سره دَ صحیح بخاري په یو حدیث شریف کښې دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے:

اِشْفَعُوْا فَلْتُؤْجَرُوْا وَ يَقْضِي اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهٖ مَا شَاءَ۔

" یعني تاسو سفارش کوئ تاسو ته به ثواب ملاوېږي بیا چه الله تعالیٰ دَ خپل

نبي په ذريعه کومه فيصله او فرمائي په هغې راضي او سئ"

په دے حديث شريف کښے چه ئے کوم ځائے سفارش ته ثواب وئيلے دے نو هلته ئے دا هم فرمائيلي دي چه د سفارش حد دا دے چه د کمزوري سړي کوم چه خپله خبره لويو ته د رسولو او د خپل حاجت په صحيح طور سره د بيانولو طاقت نه لري تاسو د هغۀ خبره هلته د رسوئ۔ اوس وړاندے دغه سفارش او منلے شي اوکه نه، او د دغه سړي مطلب پوره شي اوکه نه۔ په دے کښے ستاسو دخل کول نه دي پکار، اوکه کار خلاف هم اوشي نو تاسو له پوړے خفګان کول هم نه دي پکار - د حديث شريف د آخري جملے: وَيَقْضِي اللّٰهُ عَلٰى لِسَانِ نَبِيِّهٖ مَا شَآءَ: هم دا مطلب دے۔ او هم دا وجه ده چه د قرآن په الفاظو کښے دے طرف ته اشاره موجوده ده چه د سفارش ثواب يا عذاب په دے پورے تړلے شوے نه دے چه سفارش کامياب شي۔ بلکه د ثواب او عذاب تعلق مطلق د سفارش کولو سره دے، که تاسو شفاعتِ حسنه اُوکړو نو د ثواب مستحق شوئ او که شفاعتِ سَيِّئَه مُو اوکړو نو د عذاب مستحق شوئ خواه ستاسو په سفارش عمل اوشي او که نه -

په تفسير بحرِ محيط او بيان القرآن وغيره کښے ئے په لفظ د مَنْ يَّشْفَعْ کښے مِنْهَا ره سببيه مقرر کړے دے، دے طرفته ئے اشاره خو د لے ده۔ او په تفسير مظهري کښے ئے د مجاهد قول نقل کړے دے چه سفارش کوونکي ته به د سفارش ثواب ملاويږي اګر که د دۀ سفارش قبول نه کړے شي - او دا خبره صرف د رسول الله صلے الله عليه وسلم سره خاص نه ده که چا بل انسان ته سفارش اوکړے شي نو د هغې هم دغه اُصول کيدل پکار دي چه سفارش دے اوکړي بيا دے هغه په قبلولو نه مجبوره کوي - لکه چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم خپله د حضرت عائشے صديقے رضه آزاد دے کړے وينځې ته دا سفارش اوکړو چه دے چه کوم طلاق د خپل خاوند مغيث رض نه حاصل کړي دي او هغه د دے په محبت کښے پريشانه ګرځي دوباره دے د هغۀ سره نکاح اوکړي۔ نو بَرِيْرَة رض عرض اوکړو چه يا رسول الله صلے الله عليه وسلم که دا ستاسو حکم وي نو په سرسترګو او که سفارش وي نو زما طبيعت دۀ ته بالکل تيار نه دے۔

نبي کريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه حکم نه دے سفارش دے، بريره رضي الله عنها
چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د اصولو نه خلاف خفګان نه کوی په دے وجه
ئے صاف عرض اوکړو چه حکم نه دے نو بيا زه دا سفارش نه قبلوم - نو حضور
ښه په خوشحالئ سره دا خپل حال باندے پاتے کړه -

دا هر ه د سفارش حقيقت چه شرعًا د اجر او ثواب باعث وه - نن صبا خلقو
دا سفارش داسے وران کړے دے چه په حقيقت کښے سفارش نه دے پاتے شوے
بلکه تعلقات يا د مرتبے اثر او دباؤ غورزول وی - او هم دا وجه ده چه هر کله
ئے سفارش او نه منلے شی نو خفه کيږی، او بلکه دشمنئ ته تيارشی، حال دا دے
چه په داسے سړی باندے دباؤ غورزه ول چه هغه د ضمير او رضا نه په
خلاف کار کولو باندے مجبوره شی په جبر او اکراه کښے داخل دی او سخت
ګناه دے - او داسے غيره ده لکه څوک چه د چا په مال يا په څه حق باندے
په زبردستئ قبضه اوکړی - دغه سړے شرعًا او قانونًا آزاد او خود مختار
(د خپل اختيار خاوند) وه، او تا سو دے مجبوره کړو او د هغه آزادی
دے ختمه کړه - د دے مثال به داسے وی چه لکه د يو محتاج د حاجت پوره
کولو د پاره د بل مال غلا کړی او هغۀ له ئے ورکړی -

| به سفارش معاوضه اخستل رشوت دے او حرام دے | په کوم سفارش چه معاوضه واخستے شی هغه رشوت دے په حديث کښے ئے دے ته |
|---|---|

سُحت او حرام فرمائيلی دی - په دے کښے هر قسم رشوت داخل دے - خواه
مال وی او که د دۀ د کار کولو په عوض کښے په دۀ خپل کار او کړی -

په تفسير کشاف وغيره کښے دی چه شفاعتِ حسنه هغه دے چه منشاء
ئے د يو مسلمان حق پوره کول وی، يا دۀ ته څۀ جائز نفع رسول يا د
ضرر او نقصان نه ئے بچ کول وی، او د دے سفارش کولو دا کار هم د
څۀ دنيا وی لالچ د پاره نه وی بلکه محض د الله د پاره د کمزوری مدد
کول ئے مقصود وی، او په دے سفارش باندے څۀ مالی جانی رشوت هم
وا نخستے شی، او دا سفارش په څۀ ناجائز کار کښے هم نه وی، او د ارنګه
دا سفارش د داسے يو ثابت شوی جُرم د معافئ د پاره نه وی د کوم سزا

چه په قرآن کښې معلومه او مقرر ده -
په تفسیر بحر محیط او مظهری وغیره کښې دی، چه دچا مسلمان د حاجت پوره کولو د پاره د الله تعالیٰ نه دُعا غوښتل هم په شفاعتِ حسنه کښې داخله ده - او دُعا کونکی ته به هم اجر ملاویګی - په یو حدیث کښې دی چه کله یو سړے د خپل ورور مسلمان د پاره د خیر دُعا کوی نو فرښته وائی "وَلَكَ بِمِثْلِ" یعنی الله تعالیٰ دِ ستا هم حاجت پوره کړی -

# سلام او اسلام

وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا الخ: په دے ایات کښې الله تعالیٰ سلام او د سلام د جواب طریقے خودلی دی -

**د لفظ د تحیّه تشریح او دے تاریخی پهلو-** د تحیّه لفظی معنی ده چا ته "حَيَّاكَ الله" وئیل - یعنی الله دِ تا لره ژوندے ساتی - د اسلام نه اول د عرب بو عادت ؤ - چه کله به د یو بل سره ملاویده نو یو بل ته به ئے "حَيَّاكَ الله" یا "أَنْعَمَ اللهُ بِكَ عَيْنًا" یا "أَنْعِمْ صَبَاحًا" وغیره الفاظو سره سلام کولو اسلام د تحیّه طرز بدل کړو د "اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ" وئیلو طریقه ئے جاری کړه - چه د دے معنیٰ ده، "ته دے د هر تکلیف او مصیبت نه سلامت اوسے" -
ابن عربی په احکام القرآن کښې فرمائی چه لفظ د سلام د الله تعالیٰ د اسماءِ حسنیٰ نه دے او د "اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ" معنیٰ ده چه "اَللهُ رَقِيبٌ عَلَيْكُمْ" یعنی الله تعالیٰ ستا محافظ دے"

**اسلامی سلام د نورو قومونو د سلام نه غوره دے** د دُنیا په هر تهذیب یافته قوم کښې د دے رواج دے چه کله د یو بل سره ملاقات کوی نو څۀ کلمه د یو بل سره د اُلفت او محبّت د پاره وائی - لیکن چه موازنه او شی نو معلومه به شی چه اسلامی سلام څومره جامع دے د ومره بل نه دے - ځکه چه په دے کښې صرف د محبّت اظهار نه دے، بلکه د دے سره سره پکښې د محبت حق ادا کول هم دی چه د الله تعالیٰ نه دا سوال کوی چه تا دے د ټولو آفتونو او غمونو نه سلامت او ساتی، او بیا دُعا هم د عرب په طرز سره صرف د ژوندی پاتے کیدو نه ده - بلکه د

پاک ژوند دُعا ده، یعنی د ټولو آفتونو او دردونو نه د محفوظ پاتې کیدو. د دې سره سره د دې خبرې هم اظهار دے چه مونږ او تاسو ټول د الله تعالیٰ محتاج یُو۔ یو بل ته څۀ نفع بغیر د هغۀ د اجازت نه نه شو رسولے۔ د دې معنی په اعتبار سره دا کلمه یو عبادت هم دے او خپل مسلمان رور ته د خدائے تعالیٰ د یادولو ذریعه هم ده۔

د دې سره که دے ته او کتے شی چه کوم سړے د الله تعالیٰ نه دا دُعا غواړی چه دا ځما ملګرے د ټولو آفتونو او تکلیفونو نه محفوظ کړے۔ نو په دے ضمن کښې دے ګویا دا وعده هم کوی چه ته ځما د لاسونو او ژبے نه په امن یې۔ ستا ځمال، جان او عزّت زۀ حفاظت کونکے یم۔

ابنِ عربی په احکام القرآن کښې د امام ابن عیینه دا قول نقل کړے دے،

أَتَدْرِيْ مَا السَّلَامُ؟ يَقُوْلُ أَنْتَ آمِنٌ مِّنِّيْ۔

"یعنی ته پوهیګے چه سلام څۀ شے دے؟ سلام کونکے دا وائی چه ته ځما نه په امن یې"

لنډه دا چه اسلامی سلام یو ډیر لوئے جامع سلام دے (۱) په دے کښې د الله تعالیٰ ذکر هم دے (۲)، یادګیرنه هم (۳) د خپل مسلمان رور سره د تعلّق او محبت اظهار هم (۴) د هغه د پاره د ښیګړے دُعا هم (۵)، او د دۀ سره دا معاهده هم ده چه ځما د لاس او ژبے نه به تا ته تکلیف نه رسی۔ لکه چه په حدیث شریف کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا ارشاد وارد دے:

اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَيَدِهٖ۔ (الحديث)

"یعنی مسلمان هغه دے د چا د لاس او ژبے نه چه بل مسلمان ته تکلیف نه رسی او محفوظ وی"

کاش چه مسلمانانو دا کلمه د عامو خلقو د رسم پشان نه ادا کولے بلکه د دے حقیقت ئې او پیژندے او په هغې طریقه ئې ادا کولے، نو شاید چه د ټول قوم د اصلاح د پاره به دا کافی وے۔ هم دا وجه ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم مسلمانانو ته پخپل منځ کښې د سلام رواج کولو لوئے تاکید فرمائیلے دے او دا ئې په عملونو کښې د ټولو نه غوره عمل مقرر کړے دے او د دے د فضیلتونو او د

برکتونو او اجر او ثواب ئې بیان کړے دے. په صحیح مسلم کښې د حضرت ابو هریرهؓ یو حدیث دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی: چه

"تاسو جنت ته ترهغې پورے نه شئ داخلیدے ترڅو پورے چه مؤمنان نه شئ او ستاسو ایمان نه شی مکمل کیدے ترڅو پورے چه پخپل مینځ کښې محبت نه کوئ، زهٔ تاسو ته داسې خائیم چه که تاسو په هغې عمل اوکړئ نو ستاسو به د یو بل سره محبت قائم شی هغه دا چه پخپل مینځ کښې سلام عام کړئ، یعنی د هر یو مسلمان د پاره خواه ستا سره پیژندګلو وی او که نه"۔

حضرت عبدالله ابن عمرؓ فرمائی چه یو سړی د نبی کریم صلی الله علیه وسلمؐ تپوس اوکړو چه د اسلام په عملونو کښې د ټولو نه غوره څهٔ شے دے! دوی او فرمائیل چه ته خلقو ته خوراک ورکوه او سلام عام کړه خواه ته ئې پیژنې او که نه (صحیحین)

مسند احمد، ترمذیؒ ابو داؤد، د حضرت ابو امامهؓ نه نقل کړے دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د الله تعالیٰ په نزد د ټولو نه زیات نزدے هغه سړے دے چه په سلام کښې ابتداء اوکړی۔

په مسند بزار او معجم کبیر طبرانی کښې د حضرت عبدالله بن مسعود رضؓ حدیث دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائی چه سلام د الله تعالیٰ په نومونو کښې یو نوم دے کوم چه الله تعالیٰ په زمکه یا ندے نازل کړے دے. په دے وجه تاسو پخپل مینځ کښې سلام عام کړئ ځکه چه مسلمان سړے هر کله چه یو مجلس ته ځی او دوی ته سلام کوی نو دے سړی ته د الله تعالیٰ په نزد د فضیلت اوچت مقام حاصلیږی. ځکه چه دهٔ ټولو ته سلام یعنی د الله تعالیٰ نوم وریاد کړو. که دے مجلس والو د دهٔ د سلام جواب ورنه کړو، نو داسے خلق به دهٔ له جواب ورکړی چه د دے مجلس والو نه به غوره وی. یعنې د الله تعالیٰ فرښتے۔

او په یو حدیث کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ډیر بخیل هغهٔ سړے دے چه په سلام کښې بخل کوی. (طبرانی معجم کبیر عن ابی هریرة رضؓ)

د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دے ارشاد اتو چه په صحابه کوامو کوم اثر اوشو،

دَدے اندازه دَدے روایت نه کیدے شی، چه حضرت عبد الله ابن عمرؓ به اکثر بازار ته صرف دَدے دپاره تلو چه څوک مسلمان ورته ملاؤ شی او سلام ور ته اُو کړی او دَعبادت ثواب حاصل کړی، څهٔ اغستل خرڅول به ئے مقصود نه وُه - دا روایت مؤطاء امام مالکؒ کښے دَطفیل بن ابی کعبؓ نه نقل کړے دے -

دَ قرآن مجید کوم آیات چه بره ذکو شوے دے په دے کښے ارشاد داوے چه کله تاسو ته سلام اوشی نو جواب ئے دَهغے نه په غوره الفاظو کښے ورکوئ - یا کم نه کم هم دغه الفاظ وایئ، دَدے تشریح نبی کریم صلے الله علیه وسلم پخپل عمل سره داسے فرمائیلے ده چه یو وارے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته یو صاحب راغے اَو اُوئے وے: اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؛ دوی پجواب کښے یوه کلمه زیاته کړه اُوئے فرمائیل: وَعَلَیْکُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ؛ بیا یو بل صاحب راغے هغهٔ اووئے: اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ؛ دوی پجواب کښے اُووے: وَعَلَیْکُمُ السَّلَامُ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَکَاتُهٗ؛ بیا یو بل صاحب راغے هغهٔ پخپل سلام کښے دا درے واړه کلمے زیاتے کړے وے: اَلسَّلَامُ عَلَیْکُمْ یَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَکَاتُهٗ؛ نو دوی پجواب کښے صرف وَعَلَیْکُم او فرمائیل - دَ هغهٔ په زړهٔ کښے ګله پیدا شوه - او عرض ئے اوکړه یا رسول اللهؐ! مور و پلار دے پتا سو قربان شی دا ورمبی صاحبان چه راغله نو دَ هغوی په جواب کښے تاسو دُعا چیرے کلمے او فرمائیلے او ما دغه ټولے په سلام کښے اووئیلے نو تاسو صرف وعلیکم او فرمائیل - دوی او فرمائیل چه تا ماته هیڅ کلمه پاتے نه کړه چه ما پجواب کښے زیاته کړے وے تا ټولے کلمے پخپل سلام کښے جمع کړے نو په دے وجه ما دَ قرآن دَ تعلیم مطابق په جواب بالمثل باندے صبر اوکړو، دا روایت ابن جریر او ابن ابی حاتم په مختلفو سندونو سره نقل کړے دے -

دَدے حدیث نه یوه خبره خو دا معلومه شوه چه دَ سلام جواب دَ دوُه نه په ښهٔ الفاظو کښے دَ ورکولو کوم حکم چه په آیات کښے راغلے دے دَدے صورت دا دے چه دَ سلام کونکی دَ الفاظو نه دے په زیاتو الفاظو سره جواب ورکړی مثلاً سلام کونکے: السلام علیکم: او وائی نو په جواب کښے دے؛ وعلیکم السلام ورحمة الله؛ وائی او که دے: السلام علیکم ورحمة الله! ووائی نو پجواب کښے دے؛ وعلیکم السّلام ورحمة الله وبرکاتهٗ وائی -

دويمه خبره ترې دا معلومه شوه چې دا دَ کلموزيا توالې صرف تر درې کلمو پورې سنت دې دَ دينه زيات سنت نه دې - او حکمت په دې کښې دا دې چې دا دَ سلام موقع دَ لنډ وخبر ووخت دې ډيرې خبرې پکښې نه ځائيگي - هسې نه چې دَچا په کار کښې خلل راشي يا په آوريدونکي باندې گران شي - نو هرکله چې يو صاحب په خپله اولني سلام کښې درې واړه کلمې جمع کړې نو نبي کريم صلے الله عليه وسلم پرې نورزياتے غوره نه کړو. دَ دې زيات وضاحت حضرت عبدالله بن عباس رض دا سې فرمائيلې دې چې دَ ذکرشوو درې واړو کلمو نه زياتي کونکو ته ئې دا سې او فرمائيل او منع ئې کړل چې: إِنَّ السَّلَامَ قَدِ انْتَهَىٰ إِلَى الْبَرَكَةِ (مظهري عن البغوي)
يعنې سلام په لفظ دَ برکت باندې ختم دې، دَ دينه زياتول سنت نه دي۔ (ومثله عن ابن کثير)

دريمه خبره دَ ذکرشوي حديث نه دا معلومه شوه چې په سلام کښې دَ درې کلمې ويونکي په جواب کښې که صرف يوه کلمه اووئيلې شي نو هغه هم دَ قرآن دَ حکم: أَوْ رُدُّوهَا: باندې دَ عمل کولو دَ پاره پوره ده لکه چې په دې حديث کښې نبي کريم صلے الله عليه وسلم صرف په يوه کلمه باندې اکتفا فرمائيلې ده - (تفسير مظهري)

دَ آيات دَ مضمون نچوړ دا شو چې هرکله يو مسلمان ته سلام او کړې شي نو دَ هغه په ذمه جواب ورکول واجب دي - که بغير دَ څهٔ شرعي عذر نه ئې جواب ورنه کړو نو گناه گار دې - البته په جواب ورکولو کښې دَ دوه خبرو اختيار دې يو دا چې پکوم الفاظو سره ئې سلام کړې دې دَ هغې نه په غوره الفاظو کښې جواب ورکړي - دويم دا چې بعينه په هغو الفاظو سره جواب ورکړي -

په دې آيات کښې ئې دَ سلام جواب ورکول خوځواحة واجب فرمائيلې دي لیکن دَ اول سلام کولو څهٔ درجه ده دائې نه دي فرمائيلي - ليکن په: إِذَا حُيِّيتُم: کښې دې حکم طرف ته هم اشاره ده - ځکه چې دا لفظ په صيغه دَ مجهول بغير دَ تعين دَ فاعل نه په ذکر کولو کښې اشاره کيدې شي چې سلام داسې شې دې چې عادةً ئې تول مسلمانان کوي -

او دَ سلام تاکيد او فضيلتونه دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ ارشاداتو نه

اوس تاسو آورید لی دی- د دینه دومره خامخا معلومیګی چه اول سلام کول هم د سنت مؤکده نه کم نه دے- په تفسیر بحر محیط کښے دی چه اوّل سلام کول خو د اکثرو عالمانو په نزد سنّت مؤکده دے، او حضرت حسن بصریؒ فرمائی: اَلسَّلَامُ تَطَوُّعٌ وَالرَّدُّ فَرِیْضَةٌ؛ یعنی په اوّلنی سلام کولو کښے خو اختیار دے لیکن رد کول د سلام فرض دی-

نبی کریم صلے الله علیه د قرآن د دے حکم د ذیاتے تشریح په طور سره د سلام او د جواب د سلام متعلق نور هم څه تفصیلات بیان کړی دی هغه هم په لنډه طریقه سره واورئ-

د صحیحینو په حدیث کښے دی چه کوم سړے په سورلئ باندے وی هغهٔ له په کار دی چه په پیاده تلونکی ورپسے سلام اوکړی- او څوک چه روان وی د ے دے په ناست باندے او کړی- او کوم خلق چه په شمار کښے کم وی او په کنړو باندے تیریګی نو دوی له په کار دی چه اوّل سلام اوکړی-

د ترمذی په یو حدیث کښے دی چه کله سړے خپل کورته راشی نو په خپل کور والو باندے سلام کول په کار دی چه په دے سره د هٔ له هم برکت دے او د دهٔ کور والو له هم-

د ابوداؤد په یو حدیث کښے دی چه د یو مسلمان سره دے یا ربار ملاقات وی نو هر ځل په سلام کول په کار دی- او لکه څنګه چه د اوّل ملاقات په وخت کښے سلام کول سنت دی دغه شان د رخصت په وخت کښے هم سلام کول سنّت او ثواب دے- په ترمذی ابوداود کښے دا حکم په روایت د قتادهؓ او د ابوهریرهؓ نقل دے-

او دا حکم چه اوس بیان شوے دے چه د سلام جواب ورکول واجب دی د دے نه څو حالتونه مستثنیٰ دی- کوم سړے چه مونځ کوی که دهٔ ته څوک سلام اوکړی نو جواب ورکول ئے واجب نه دی بلکه مونځ پرے ماتیګی- دغه شان کوم سړے چه خطبه ورکوی یا د قرآن مجید تلاوت کوی یا اذان او اقامت کوی یا د دینی کتابونو درس ورکوی یا په انسانی ضرورتونو استنجی وغیره کښے مشغول وی دوی ته په دے حالتونو کښے سلام کول هم جائز نه دی او د دهٔ په ذمه ئے جواب

ورکول هم واجب نه دی۔

دَ مضمون په ختمید وئے اوفرمائیل : إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ حَسِيبًا : یعنی الله تعالیٰ دَ هرشی حساب اَخستونکے دے چه په دے کښے دَ انسان او اسلامی حقونو لکه سلام او جواب دَ سلام ټول کاروته داخل دی دَ دے به هم الله تعالیٰ حساب اَخلی۔

بیا فرمائی : اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ لَیَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى یَوْمِ الْقِیٰمَةِ لَا رَیْبَ فِیْهِ : یعنی دَ الله نه سِوا څوک دَعبادت لائق نیشتے دے معبود او کښے او کوم کار چه کوئی کَ هغه دَ عبادت په نیّت ئے کوئے هغهٔ به تاسولره دَ قیامت په ورځ جمع کړی چه څهٔ شك په کښے نیشتے۔ په دغه ورځ به ټولو لره بدلے ورکړی۔ دَ قیامت وعده او جزا او سزا ټول حق دی۔

وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِیْثًا : ځکه چه دَ دے خبر الله تعالیٰ ورکړے دے۔ او دَ الله تعالیٰ نه زیاته دَ چا خبره رشتونے کیدے شی؟۔ نو دا هرڅهٔ حق دی ځکه چه خبر ئے الله تعالیٰ ورکړے دے۔

---

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِیْنَ فِئَتَیْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا

پس تاسو لره څهٔ او شوچه دَ منافقانو په باره کښے دوه ډلے کیدئ او الله دوی اُلټه کړی دی په

كَسَبُوْا ؕ اَتُرِیْدُوْنَ اَنْ تَهْدُوْا مَنْ اَضَلَّ اللّٰهُ ؕ وَمَنْ

سبب دَ دوی دَ عملونو۔ آیا تاسو غواړئ چه په لارے کړئ هغه لره چه گمراه ئے کړی الله۔ او چا لره

یُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ تَجِدَ لَهٗ سَبِیْلًا ﴿۸۸﴾ وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ

چه گمراه کړی الله هرګز به بیا نهٔ مومے دَ هٔ لره څهٔ لار۔ غواړی چه تاسو هم کافر شئ

كَمَا كَفَرُوْا فَتَكُوْنُوْنَ سَوَآءً فَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ

لکه چه دوی کافر شوی دی بیا به تاسو ټول برابر شئ پس تاسو په دوی کښے چالره دوست

أَوْلِيَاءَ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ فَإِن تَوَلَّوْا فَخُذُوهُمْ

مه جوړه وئ تر دے چه وطن پاتے کړی د الله په لاره کښے - بیا که دا قبول نه کړی نو دوی او

وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ ۖ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ

نیسئ او قتلوئ یئ کوم ځائے چه دوی مومئ - او مه جوړه وئ په دوی کښے

وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿۸۹﴾ إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ

چالره دوست او نه مددګار - مګر هغه خلق چه ملاؤ دی د یو قوم سره چه ستاسو او د

وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ

دوی په مینځ کښے عهد دے یا راشی تاسو لره چه تنګ شوی دی زړونه د دوی

أَن يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ

ستاسو د جنګ نه او د خپل قوم د جنګ نه هم - او که الله غوختے

لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ فَلَقَاتَلُوكُمْ ۚ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ

نو دوی لره به ئے په تاسو زور ورکړے وه نو خامخا به ئے ستاسو سره جنګ کاوه، پس که ستاسو نه څنګ شی

يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ

او ستاسو سره جنګ نه کوی او وړاندے کړی تاسو ته صلح نو الله نه ده درکړے تاسو لره

عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ﴿۹۰﴾ سَتَجِدُونَ آخَرِينَ يُرِيدُونَ

په دوی باندے لار - اوس به تاسو او مومئ یو بل قوم لره چه غواړی چه په

أَن يَأْمَنُوكُمْ وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ كُلَّمَا رُدُّوا إِلَى

امن شی ستاسو نه هم او د خپل قوم نه هم - هر کله چه دوی واپس کړے شی فساد

الْفِتْنَةِ أُرْكِسُوا فِيهَا ۚ فَإِن لَّمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوا

طرف ته نو دوی ورته واپس کیږی - بیا که دوی ستا سو نه یو طرف ته نه شی او دو ړاندې نه کړی

إِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوا أَيْدِيَهُمْ فَخُذُوهُمْ

تاسو ته صُلح او خپل لاسونه منع نه کړی نو نیسئ دوی لره

وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ۚ وَأُولَٰئِكُمْ

او قتل کوئ دوی لره چرته چه ئې مومئ - او په دوئ باندے

۱۲ ع ۹

جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطَانًا مُّبِينًا (۹۱)

مونږ تاسو لره درکړے دے ښکاره سند -

# لنډ تفسیر

## دَ دریو مختلفو ډلو بیان او دَ دوی حکمونه

دَ اوّلے فرقے بیان (هر کله چه تاسو ته دَ دے مرتدینو حالت او لیدو) بیا تاسو لره څهٔ اوشو چه دَ دے منافقانو په باره کښے تاسو راختلاف رائے کوئ) دوه ډلے کیږئ (چه یوه ډله دوئ ته او س هم مسلمانان وائی) حال دا دے چه الله تعالیٰ دوی لره (ددوئ دَ ښکاره کفر طرف ته) واپس کړه دَ دوی دَ بد عمل په سبب (دغه بد عمل دَ وجهٔ دَ مرتدکیدو نه داراسلام ته پاتے کول سره دَ قدرت نهٔ چه په دغه وخت کښے دار اسلام ته هجرت نه کول په مثل دَ اقرار نهٔ کولو په اسلام باندے ؤو او دَ کفر نښه وه ، او په واقع کښے دوی اول هم نه وو مسلمانان شوی او په دے وجه ئے دوئ ته منافقان اووے) اے تاسو خلق راے هغے ته لے چا ته چه دَ دار اسلام پاتے کول دَ کفر نښه کیدل معلوم نه دی) دَ دے اراده لرئ چه دا سے خلقو ته هدایت او کړئ کوم لره چه الله تعالیٰ (هر کله چه دے خلقو ګمراهی اختیار کړه)

په ګمراهۍ کښې اچولی دی (ځکه چه د الله تعالیٰ عادت دے چه د بنده د کوم کار قصد او
کړی نو الله تعالیٰ هغه کار پیدا کړی، مطلب دا دے چه غیر مؤمن ګمراه ته هدایت
موندونکے مؤمن وایئ داستاسو د پاره جائز نه دی) او چا لره چه الله تعالیٰ په
ګمراهۍ کښې واچوی د هغه د (مؤمن کیدو) د پاره به هیڅ لار بیا نه مومې،
(پس داسے خلقو ته مؤمن ویل نه دی پکار، اُو دوی به څنګه مؤمنان شی د
دوی په کفر کښې د بخت کیدو خو دا حال دے چه) دوی په دے ارزو کښې دی
چه څنګه دوی کافر دی تاسو هم (خدائے مکړه) کافر شئ چه تاسو او دوی ټول
یوشان شئ پس (چه د دوی هرکله دا حالت دے نو) په دوی کښې هیچا لره دوست
مه جوړ وئ (یعنې د یو سره هم د مسلمانانو پشان سلوک مکوئ ځکه چه د
دوستئ د جائز کیدو د پاره اسلام شرط دے) کله چه دوی د الله په لاره کښې
(یعنې د اسلام مکمل کیدو د پاره) هجرت او نه کړی (ځکه چه دغه وخت د هجرت
هغه حکم وه کوم چه اوس په دوه شهادتونو اقرار دے، او د اسلام د مکمل کولو
قید پکښې ځکه دے، چه خالی دارالاسلام ته راتلل کافی نه دی هسے خو کافران
د تجارت د پاره هم راځی، بلکه چه په اسلامی حیثیت سره راشی، یعنې اسلام
هم ظاهر کړی چه اقرار په اسلام او هجرت دواړه ئے جمع شی، او پاتے شو د زړه
تصدیق نو د دے علم صرف الله تعالیٰ ته کیدے شی مسلمانانو لره د دے
لټون ضروری نه دے) او که دوی (د اسلام نه) تیره او کړی (او کافران پاتے شی)
نو دوی نیسئ او قتلوئ کوم ځائے چه دوی مومئ (د رانیول یا خو د قتل د پاره دی
یا د غلام جوړه ولو د پاره) او مه په دوی کښې څوک (ځان له) دوست جوړه وئ
او مه (ځیل) مددګار جوړه وئ (مطلب دا دے چه په هیڅ حالت کښې هم د دوی
سره څه تعلق مه ساتئ نه په امن کښې د دوستئ نه په یره کښې د مدد، بلکه
ځان او ځان لره تړلے اوسئ)

| د دوی بے فریقے بیان | مګر (په دے کفارو کښې) کوم خلق چه داسے دی چه (ستا

سره په روغه باندے) او سیدل غواړی (چه د دے دوه طریقے دی یو دا چه
په واسطه د صلح وی یعنې) د داسے خلقو سره ملاؤ شی (یعنې عهد ورسره او کړی)
چه ستاسو او د هغوئ په مینځ کښې عهد (صلح) وی (لکه بنو مدلج، چه د دوی سره

صلح اوشوه نو د دوی چه د چا سره عهد وي هغوی هم په دے استثنیٰ کښے راغلل
نو بنی مدلج خو ترے په طریق اولیٰ سره مستثنیٰ شو) یا ( د دویمه طریقه داده چه
بے واسطے صلح وي داسے چه) پخپله تاسو ته پیدا سے حالت کښے راشي چه د دوی زړه
ستاسو سره او د خپل قوم سره هم د جنګ نه تنګ وي ( نو نه د خپل قوم سره
ستاسو سره د جنګ کولو د پاره ملګرتیا کوي او نه ستاسو سره ملګري کیږي د
خپل قوم سره جنګ کوي بلکه د دوی سره هم صلح ساتي او ستاسو سره هم نو په
دواړو طریقو سره چه پکومه طریقه صلح ساتي نو دوی به په دے ذکر شوي حکم
کښے د نیولو او قتلولو نه مستثنیٰ وي ) او ( تاسو د دے خلقو د صلح په درخواست
کښے د الله تعالیٰ احسان اُومنئ چه د دوی په زړونو کښے ئے ستاسو هیبت او غورزاوه
ورنه) دوی به ئے پتاسو مسلّط کړي (او زړه ورکړي) ډوا وستاسو سره به ئے
جنګ کولو (مګر الله تعالیٰ تاسو د دے پریشانئ نه بچ کړئ) بیا که چرے (صلح اوکړي)
دوی ستاسو نه په ډډه شي یعنی ستاسو سره جنګ نه کوي او د سلامتیا معامله
درسره ساتي ( د دے ټولو الفاظو مطلب داد ے چه په صلح سره اوسیدل غواړي'
دیو الفاظ ئے د تاکید د پاره راوړیه) نو ( په دے حالت د صلح کښے الله تعالیٰ
تاسو لره په دوی باندے ( د قتل یا قید وغیره) څه لار نده درکړے ( یعنی اجازت
ئے نه دے درکړے )

**د دریم فریقے بیان** | بعضے به داسے هم تاسو ته ضرور ملاؤ شي ( یعنی د دوی
به دا حالت معلوم وي ) چه ( د دوکے د پاره) هغوی دا ( هم) غواړي چه ستاسو نه
هم بے خطره اُوسي او د خپل قوم نه هم بے خطره اوسي ( او کړے سره) کله چه
هم دوی لره رښکاره مخالفین) شرارت (او فساد) طرفته متوجه کوي ( یعنی د
مسلمانانو سره ئے جنګ ته راپاره وي) نو دوی ( فوراً) په دے ( شرارت) کښے
راپریوځی ( یعنی د مسلمانانو سره جنګ ته تیاریګی او دغه د دوکے صلح ماتوی)
پس دا خلق که ( صلح ماته کړي او ) ستاسو نه ( یعنی ستاسو د جنګ نه ) په ډډه
نه شي او نه ستاسو سره د سلامتیا روِش ساتي او نه خپل لاسونه ( ستاسو د مقابلے
نه) بند وي ( د دے ټولو الفاظو مطلب کټیرو پښتان یو دے یعنی چه صلح ماته
کړي) نو تاسو ( هم) دوی نیسئ او قتلوئ کوم ځائے چه دوی مومئ او مونږ

تاسو لره په دوی باندے صاف حجّت درکړے دے (چه په هغے سره د دوی قتلول ښکاره دی او هغه حجت د وعدے ماتول دی) -

# مَعلومَات او مَسئلے

په دے ذکر شوو ایاتونو کښے د درے فرقو بیان دے - چه د دوی متعلق دوه حکمونه ذکر شو - د درے فرقو واقعات به د دے لاندِ روایتونو نه په ډاګه شی.

**اوّلنے روایت:** عبد الله بن حمید د مجاهدؒ نه روایت کړے دے چه بعضے مشرکان د مکے نه مدینے ته راغلل او ښکاره ئے کړه چه مونږ مسلمانان شوو او هجرت مُو اُوکړه راغلو، بیا مرتد شو او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه د تجارت د سامان راوړلو په بهانه بیا مکّے ته لاړه او واپس رانغله، د دوی په باره کښے د مسلمانانو رائے مختلفے شوے، بعضو وے چه دوی کافر دی، بعضو وے چه دوی مؤمنان دی، الله تعالیٰ د دوی کافر کیدل په ایات: فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنَافِقِينَ فِئَتَيْنِ سره بیان کړل، او د دوی د قتل حکم ئے ورکړو-

حضرت حکیم الأمت تهانویؒ فرمائی چه دوی ته منافق ویئل په دے معنیٰ دی چه کوم وخت دوی د اسلام دعوه کړے وه په هغه وخت کښے هم دوی منافقان وو، په زړه سره ئے ایمان نه وه راوړے - او منافقان خوګویا چه ښکاره قتلولے تر څو پورے دوی خپل کفر پټ ساتی او که دے خلقو مرتد کیدل خو ښکاره شوی وو - او چا چه ورته مسلمانان وے نو شاید چه دا د دوی نیک ګمان وه او د دوی د مرتد کیدو په دلیلو نو کښے به ئے څه تاویلونه کړی وی او دا به صرف د دوی خپله رائے وی چه شرعی دلیل به پورے نه وی نو په دے وجه معتبر نه کړے شو-

**دویم روایت:** ابن ابی شیبه د حسنؓ نه روایت کړے دے چه سراقه بن مالک مدلجی پس د واقعے د بدر او د اُحد نه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم حضور ته راغے درخواست ئے اوکړو چه زما د قوم بنی مدلج سره صلح اوکړئ. حضورؐ حضرت خالدؓ لره د صلح د مکمّل کولو د پاره هلته اولیږه - د صلح مضمون دا وه:

مونږ به د نبی کریم صلے الله علیه وسلم خلاف د چا مدد نه کوو، او چه قریش مسلمانان شی نو مونږ به هم مسلمانان شوو، او کوم قومونه چه زمونږ سره

یوشي حغوی به هم په دے معاهده کښے زمونږ سره شریک وی"۔
په دے باندے دا ایات: وَدُّوْا لَوْ تَكْفُرُوْنَ: تر: اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ الخ: پورے نازل شو۔

دویم روایت: حضرت ابن عباسؓ نه روایت دے چه ایات: سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ الخ: کښے کومو خلقو ذکر دے مراد ترے نه قبیلهٔ اَسد او غطفان دی۔ چه مدینے ته راغله او په ظاهره ئے د اسلام دعوه کوله او خپل قوم ته ئے وئے چه مونږ خو په بندر (شادو) او عقرب (لړم) باندے ایمان راوړے دے۔ او مسلمانانو ته به ئے وے چه مونږ ستاسو په دین یو۔

او ضحاک د ابن عباسؓ نه دا حالت د بنی عبد الدار نقل کړے دے۔ اوّلنے او دویم روایت په روح المعانی او دریم روایت په معالم کښے دے۔

حضرت تهانویؒ فرمائی چه که دے دریم روایت د خلقو حالت د اوّلنی روایت د خلقو پشان دے۔ چه په دلیل سره د دوی د سره مسلمانیدل ثابت نه شو۔ په دے وجه د دوی حکم د عامو کافرانو پشان دے۔ یعنی د صلح په وخت کښے به د دوی سره جنګ نه شی کولے او چه صلح نه وی بیا به ورسره جنګ کولے شی۔ نو د اوّلنی روایت والو په بارہ کښے دویم ایات یعنی: فَاِنْ تَوَلَّوْا فَخُذُوْهُمْ وَاقْتُلُوْهُمْ: د نیولو او قتل کولو حکم، او په دریم ایات: اِلَّا الَّذِيْنَ يَصِلُوْنَ الخ: کښے د صلح په وخت کښے د دے استثناء موجوده ده۔ چه د صلح ذکر ئے په دویم روایت کښے دے۔ او د استثناء د تاکید د پاره ئے بیا د: فَاِنِ اعْتَزَلُوْكُمْ: الخ: وضاحت اوکړو۔

او د دریم روایت والو په باره کښے څلورم ایات یعنی: سَتَجِدُوْنَ اٰخَرِيْنَ الخ: کښے بیان اوکړو چه که دا خلق ستاسو د څه اونه کړی بلکه جنګ کوی نو تاسو هم د دوی سره جهاد کوئی۔ د دے نه دا معلومیږی چه که دوی صلح کوی نو بیا ورسره جنګ مکوئے۔ (بیان القرآن)

لنډه دا چه دلته د دریو فریقو ذکر شوے دے:

۱: کومه فریقه چه هر کله هجرت د اسلام د پاره شرط وُه په دغه زمانه کښے سره د قدرت نه هجرت اونه کړی یا اوکړی خو بیا د دار اسلام نه او ځی دار حرب ته لاړ شی۔

۲ : دَ مسلمانانو سره دَ جنګ نه کولو معاهده پخپله اوکړی، یا دَ داسې معاهده کونکو سره معاهده اوکړی -

۳ : کوم چه دَ وخت دَ غرض دَ پاره صلح اوکړی، او هر کله چه ورته دَ مسلمانانو خلاف دَ جنګ کولو او ویلې شی نو شریک کیږی پکښې او دَ خپلې معاهدې هیڅ قسم پرواه نکوی - او پخپل عهد قائم نه وی -

دَ اول فریق حکم دَ عاموکفارو پشان دې - دویم فریق دَ قتل او قید نه مستثنیٰ دې - دریم فریق دَ هغې سزا مستحق دې دَ کوم چه اول فریق وُه - په دې آیاتونو کښې تول دوه حکمونه ذکر شوی دی - یعنی دَ صلح دَ نښتوالی په وخت کښې جنګ او دَ صلح په وخت کښې جنګ نه کول -

دَ هجرت مختلف صورتونه او دَ هغوی حکمونه

دَ الله تعالیٰ قول : حَتّٰی يُهَاجِرُوْا فِیْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الخ : دَ اسلام په اول کښې هجرت دَ دارالکفر نه په ټولو مسلمانانو فرض وُه - په دې وجه الله تعالیٰ دَ داسې خلقو سره مسلمانان دَ سلوک کولو نه منع کړی دی چه دا فرض نه اداکوی - بیا چه کله مکه فتح شوه نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : لَا هِجْرَةَ بَعْدَ الْفَتْحِ : (رواه البخاری) یعنی هر کله چه مکه فتح شوه دارالاسلام جوړه شوه نو اوس دَ مکې نه هجرت کول فرض پاتې نه شو - دا دَ هغه زمانې حکم دې هر کله چه هجرت دَ ایمان شرط وُه ، هغه سړې به مسلمان نه شو کنړلې چه سره دَ قدرت نه هجرت او نه کړی - لیکن وروستو بیا دا حکم منسوخ شو اوس دا صورت باقی نه دې پاتې شوې -

دَ هجرت دویم صورت دا دې کوم چه دَ قیامته پورې به باقی وی او دَ کوم په باره کښې چه په حدیث شریف کښې راځی : لَا تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ حَتّٰی تَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ : یعنی هجرت به دَ هغې وخته پورې جاری وی ترڅو پورې چه دَ توبې دَ قبولیت وخت باقی وی . (صحیح بخاری)

علامه عینی دَ بخاری شرح کونکی دَ دې هجرت متعلق لیکلی دی : اَنَّ الْمُرَادَ بِالْهِجْرَةِ الْبَاقِيَةِ هِیَ هِجْرَةُ السَّيِّئَاتِ : یعنی دَ دې هجرت نه مراد ګناهونه پریښودل دی - لکه چه په یو حدیث کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمائی : اَلْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَی اللّٰهُ عَنْهُ : یعنی مهاجر هغه دې چه دَ هغو ټولو څیزونو نه ځان اوساتی کوم چه

دَ هجرت متعلق دَ پوره سورت ، آیات ۸۸ تا ۱۰۰ ، دَ ګوره ۱۲

الله تعالیٰ حرام کړی دی (بحواله مرقاة جلد اول)

د دې بحث نه معلومه شوه چه په اصطلاح کښې د هجرت اطلاق په دوو معنو باندې کیدې شی (۱) د دین د پاره وطن پریښودل، لکه چه صحابه کرامو ځپل وطن مکه پریښوده مدینې او حبشې ته ئې تشریف یوړو (۲) د ګناهونو پریښودل -

وَلَا تَتَّخِذُوْا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا: د دې ایات نه معلومه شوه چه د کفارو نه طلب د مدد حرام دے - لکه په یو روایت کښې راځی چه د کفارو خلاف انصارو چه کله د یهودو نه د مدد طلب کولو اجازت د حضورﷺ نه اوغوښت نو اوئې فرمائیل: اَلْخَبِيْثُ لَا حَاجَةَ لَنَا بِهِمْ = دا خبیث قوم دے دوی ته زمونږ حاجت نیشته (مظهری جلد ۲)

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ وَمَنْ قَتَلَ

او نه دی لایق مسلمان لره چه قتل کړی مسلمان لره مګر په غلطئ سره او چا چه قتل کړو

مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ

مسلمان په غلطئ سره نو آزاد دې کړی یو غلام مسلمان او خون بها دې ورکړی

اِلٰۤى اَهْلِهٖۤ اِلَّاۤ اَنْ يَّصَّدَّقُوْا ؕ فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ

د هغه اهل ته مګر دا که هغه ئې معاف کړی - بیا که مقتول وو د داسې قوم نه چه هغه

عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ؕ

ستاسو دشمن وی او دے پخپله مسلمان وی نو آزاد دې کړی یو غلام مسلمان لره -

وَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ

او که وو د داسې قوم نه چه ستاسو او د هغوی په مینځ کښې عهد وو -

فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰۤى اَهْلِهٖ وَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۚ

نو خون بها دې ورکړی د هغه کور والو ته او آزاد دې کړی یو غلام مسلمان -

فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً

پس چا چه نه مونده (غلام) نو روژے دے نیسی دوه میاشتے پرلپسے - د پاره د گناه بخلو

مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۹۲﴾ وَمَنْ يَّقْتُلْ

د الله نه - او الله پوهه او حکمت والا دے - او چا چه قتل کړو

مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا

مسلمان قصداً نو سزا ئے دوزخ دے پروت به وی په هغے کښے

وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَاَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ﴿۹۳﴾

او په ده غضب وے د الله او لعنت دے پرے او ده لره تیار دے لوئے عذاب -

# لنډ تفسیر

د یو مؤمن شان نه دے چه دے یو مؤمن لره (ابتداءً) قتل کړی لیکن په غلطئ سره (تیرے واسے اوشی نو بد خبره ده) او کوم سړے چه یو مؤمن لرد په غلطئ سره قتل کړی نو په ده (شرعاً) یو مسلمان غلام یا وینځه آزاده ول (واجب) دی او خون بها (هم واجب) ده چه د ده (مقتول) خاندان والو ره (یعنی په دوی کښے چه کوم وارثان دی په قدر د حصو د میراث) ور کړے شی (او د چا چه وارث نه وی نو بیت المال د وارث قائمقام دے) مگر دا چه دغه خلق (دا خون بها) معاف کړی (خواه ټوله یا بعضے نو دغه هومره به معاف شی) او که هغه (مقتول یعنی په خطاء سره وژلے شوے) د داسے قوم نه وی چه ستا سو مخالف وی (یعنی حربی وی او په دغه وجه سره په دوی کښے اوسی) او دغه سړے پخپله مؤمن وی نو (صرف) یو غلام یا وینځه مسلمانه آزاده ول (دی، او دیت ځکه نیشته چه که وارثان د دے قتل شوی مسلمانان وی خو بیا هم د اسلامی حکومت ماتحت نه دی نو په دے وجه مستحق نه دی او که کافری نو په دے صورت کښے دیت د

دَ بیت المال حق دے او دَ دار الحرب نه دَ دار الاسلام بیت المال ته ترکه نشي راوړے
او که هغه (په خطا سره وژلے شوے) دَ داسے قوم نه وي چه ستاسو او دَ هغوي په
مینځ کښے معاهده (دَ صلح یا دَ ذمواري) وي (یعني ذمي وي یا اَمن ورکړے شوے یا ورسره
صلح شوے وي) نو خون بها (هم واجب) ده چه دَ دے (قتل شوي) خاندان والو
ته (یعني کوم چه پکښے وارثان وي) حواله کولے شي (ځکه چه کافر دَ کافر وارث وي)
او دَ یو غلام یا وینځے مسلمانے آزاده ول (دي) بیا (په کوم صورت کښے چه دَ غلام
یا وینځے آزاده ول واجب دي) کوم سړي نه چه (غلام یا وینځه) ملاؤ نه شي (او نه
ورسره دومره پیسے وي چه واخلي یې) نو (دَ ده په ذمه ځائے دَ دے آزادولو
.....) پورپسے دوه میاشتے روژے دي (دا آزاده ول یا که دا نه وي او روژے نیسي
په طریقه دَ توبے (دي) کوم چه دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه مقرر شوي دي (یعنے دا
طریقه ځکے مشروع شوے ده) او الله تعالیٰ لوئے علم والا حکمت والا دے (دَ
خپل علم او حکمت په بنا سره حکمونه مقرر فرمائي اګرچه په هرځائے کښے دَ هغه حکمت
بنده ته معلوم نه وي) او کوم سړے چه په قصد سره یو مسلمان قتل کړي
نو دَ ده (اصلي) سزا (خو) جهنم دے (داسے به پکښے وي) چه همیشه به په
هغے کښے اوسي (لیکن دَ الله تعالیٰ فضل دے چه دا اصلي سزا جاري نه شي بلکه دَ
ایمان په برکت سره آخر خلاصے بیا مومي) او په ده به (دَ یو مقرر میعاد
پورے) الله تعالیٰ غضبناک وي او دے به دَ خپل (خاص) رحمت نه لرے کړي
او دَ ده دَ پاره دَ لوئے سزا (یعني دَ دوزخ) سامان به تیار کړي -

# معلومات او مسئلے

**دَ آیاتونو تړون**

دَ بره نه دَ قتل و قتال ذکر روان دے - او ټول صورتونه
ابتداءً دَ قتل آیت دي ځکه چه وژلے شوے به دَ څلورو
حالاتونه خالي نه وي - یا به مؤمن وي، یا ذمّي یا صلح کونکے او امن غوښتونکے
یا حربي وي - او قتل به دوه قسمه دے یا به قصداً وي یا خطاءً - نو به دے
اعتبار سره دَ قتل ټول صورتونه آته شو - (۱) دَ مؤمن قتل قصداً (۲) دَ
مؤمن قتل په خطا سره (۳) دَ ذمي قتل په قصد سره (۴) دَ ذمي قتل په خطاء سره -

(۵) د صلح کړی شوی قتل قصداً (۶) د صلح کړی شوی قتل خطاء (۷) د حربي قتل په قصداً (۸) د حربي قتل په خطاء سره۔

په دے صورتونو کښے د بعضو حکم بره معلوم شو بعضے ورا ندِ ذکر دی۔ او بعضے په حدیث کښے ذکر دی۔ نو د اولنی صورت حکم د دُنیا یعنی د قصاص واجب کیدل په سورتِ بقره کښے ذکر دے او د آخرت حکم ئے په وړاندے آیات: وَمَنْ يَّقْتُلْ، کښے راځی۔ او د دویم صورت بیان په: وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ تر: تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ، پورے کښے راځی۔ او د دریم صورت حکم په حدیث د دارقطنی کښے دے چه د ذمی په بدله کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مسلمان نه قصاص واخستو (اخرجه الزيلعي في تخريج الهداية) د څلورم صورت ذکر دا قول د الله تعالیٰ دے: وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيْثَاقٌ: په دے کښے راځی۔ د پنځم صورت ذکر د پورته رکوع په دے قول د الله تعالیٰ: فَمَا جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيْلًا: کښے راغلے دے۔ د شپږم صورت حکم د څلورم سره ذکر دے۔ ځکه چه میثاق عام دے وقتی او دائمی دواړو لره شامل دے نو ذمی او امن غوښتلے شوے دواړه په کښے راغله۔ په درمختار کښے د کتاب الدیات په شروع کښے ئے د امن غوښتلے شوی د دیت د وجوب تصحیح کړے ده۔ د اووم او اتم صورت حکم پخپله د جهاد په رواکیدو سره بره معلوم شوے دے ځکه چه په جهاد کښے حربیان په قصد سره قتل کولے شی نو د خطاء جائز والے خو خامخا ثابت شو (بیان القرآن)

| | |
|---|---|
| د قتل درے قسمونه او د دے شرعی حکم | اول قسم، عَمَدْ: یعنی قصداً قتل، چه په ظاهره سره قصداً د داسے آلے په ذریعه واقع شی چه د اوسپنے |

وی یا په پریکولو د اندامونو کښے د اوسپنے د آلے پشان وی لکه تیره بانس یا تیره کتهه وغیره۔

دویم قسم: شبه عمد: چه په قصد سره وی خو په داسے آله سره نه وی چه اجزاء پرے پریکیدے شی

دریم قسم: خطاء: یا خو په قصد او گمان سره د لوے نه سرې لره ښکار د ځنا ور یا حربي کافر او گڼړی او نشانه ئے کړی یا فعلاً نښه کړے ئے ځناور وی خو او لگی پرے بنی آدم۔ په دے کښے د خطاء نه مراد غیر قصداً دے۔

پس دویم او دریم دواړه قسمونه په دې کښې راغلل په دواړو کښې دیت هم دې او ګناه هم - لیکن په دې دواړو کارونو کښې دا دواړه قسمونه مختلف دی - د دویم قسم دیت ښل او ښان دی څلور قسمه یعنې د هر یو قسم نه پنځویشت پنځویشت او د دریم قسم دیت ښل او ښان دی پنځه قسمونه یعنې د هر یو قسم نه ښل ښل او ښان دی - البته که دیت په نقد کښې ورکوی نو په دواړو قسمونو کښې لس زره درهمه شرعي یا زر دیناره شرعي دی - او ګناه په دویم قسم کښې زیات دې په وجه د قصد سره او په دریم قسم کښې صرف د بې احتیاطۍ ګناه دې (کذا فی الهدایة) لکه چه د مرئې ازاده ولو واجب کیدل او لفظ د توبې هم په دې سره دلالت کوی - او دا دریواړه په حقیقت کښې په دنیا کښې د جاری کیدو د تکو احکامو په اعتبار سره دې - او د ګناه په اعتبار سره چه قصدًا یا غیر قصدًا کیدل دی د دې تعلق د زړهٔ قصد او ارادې سره دې - چه د عذاب وعدهٔ ده پرې - نو د غه خدائے ته معلومه ده ممکنه ده چه په دې اعتبار سره اول قسم غیر قصدًا شی او دویم قسم قصدًا شی -

مسئله: د دیت دا ذکر شوې مقدار هغه دې چه قتل شوې سړې وی او که ښځه وی نو بیا نیم دیت دې (هدایه)

مسئله: دیت د مسلمان او د ذمي برابر دې - د وجه د دې قول د نبي علیه السلام نه: دِيَةُ كُلِّ ذِي عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ أَلْفُ دِينَارٍ (کذا فی الهدایة اخرجه ابو داؤد فی مراسیله)

مسئله: کفاره یعنې آزادول د غلام یا روژې نیول به پخپله قاتل اداکوی، او دیت د قاتل په اهلِ نصرت باندې دې چه د شرع په اصطلاح کښې ورته عاقله وائي - (بیان القرآن)

دلته دا شبهٔ پیدا کیږی چه د قاتل د جرم بوجه د دهٔ په اولیاؤ او مددګارو ولې اچولې شی ځکه چه هغوی خو بې قصوره دی؟ وجه په اصل کښې دا ده چه په دې کښې د قاتل اولیاء هم قصور وار دی چه هغوی دې د دې قسم بې احتیاطۍ نه نه دې منع کړې او د دیت د ډیرې نه په دوی اُئنده د دهٔ حفاظت کوی -

مسئله: په کفاره کښې د ښځه او غلام برابر دی، لفظ د رقبه عام دې البته

دَ دوی اندامونه سلامت پکاردی۔

مسئله:۔ دیت به دَ مقتول په شرعي وارثانو باندې تقسیمیږي۔ او څوک چه پکښې خپله حصه معاف کوي هغه معاف کیږي۔ او که ټولو معاف اوکړه نو ټول به معاف شي۔

مسئله:۔ دَ کوم مقتول چه څوک شرعي وارث نه وي دَ هغهٔ دیت به په بیت المال کښې داخلیږي ځکه چه دیت ترکه ده او دَ ترکې دغه حکم دې (بیان القرآن)

مسئله:۔ دَ چا سره چه معاهده شوې وي (ذمي یا مستأمن) دَ دهٔ په باره کښې چه کوم دیت واجب دې ظاهره خبره داده چه دا په هغه وخت کښې دې کله چه دَ دې ذمي یا مستأمن اهل موجود وي، او که دَ دهٔ اهل نه وي یا وي خو مسلمانان وي او مسلمان دَ کافر وارث کیدې نه شي نو دا ځائې دَ فِیشت دې نو که دې ذمي وي دیت به ئې په بیت المال کښې داخلولې شي ځکه چه دَ ذمي لاوارث ترکه چه دیت پکښې داخل دې په بیت المال کښې داخلولې شي۔ (در مختار) او که دا ذمي نو نه واجبیږي (بیان القرآن)

مسئله:۔ په روژو کښې که دَ مرض وغیره په وجه پرلپسې والې رانه شي نو دَ نوې سره به بیانیسي۔ البته دَ ښځې دَ حیض په وجه پرلپسې والې نه ختمیږي۔

مسئله:۔ که دَ څه عذر په وجه ئې په روژو قدرت نه وي نو دَ قدرت راتلو پورې دې توبه کوي۔

مسئله:۔ په قتلِ عمد کښې (یعنې قصداً قتل کښې) کفاره نیشته توبه دې او باسي او معافي دې غواړي (بیان القرآن)

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا ضَرَبْتُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

اے ایمانداراو هر کله چه سفر کوئ دَ الله په لاره کښې

فَتَبَيَّنُوا وَلَا تَقُولُوا لِمَنْ أَلْقَىٰ إِلَيْكُمُ السَّلَامَ لَسْتَ

نو تحقیق کوئ او مه وائی هغه چا ته چه تاسو ته سلام اوکړي ته نه ئې

مُؤْمِنًا تَبْتَغُونَ عَرَضَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللَّهِ

مسلمان تاسو غواړئ اسباب دَ دُنیا دَ ژوند ۔ پس دَ الله سره

مَغَانِمُ كَثِيرَةٌ ؕ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ فَمَنَّ

ډیر غنیمتونه دی - تاسو خو هم دا سې وئ د دې نه وړاندې بیا الله

اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا ؕ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ

پتاسو فضل اوکړو پس اوس تحقیق کوئ - بې شکه الله ستنا سو د کارونو نه

خَبِيْرًا ﴿۹۴﴾ لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ

خبردار دې - برابر نه دی ناست مسلمانان چې ته چې

غَيْرُ أُولِي الضَّرَرِ وَالْمُجٰهِدُوْنَ فِي سَبِيْلِ اللّٰهِ

هیڅ عذر نشته او هغه مسلمانان چې جنګیږی د الله په لاره کښې

بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ ؕ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ

پخپلو مالونو سره او خپلو نفسونو سره - الله لویه کړیده د جنګید ونکو

بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً ؕ

پخپلو مالونو او خپلو نفسونو سره په ناستو خلقو باندې درجه -

وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ؕ وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ

او د هر یو سره وعده کړې ده الله د ښیګړې - او زیات کړی دی الله جنګید ونکو له

عَلَى الْقٰعِدِيْنَ أَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۹۵﴾ لا دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً

په ناستو خلقو باندې په لوئې اجر کښې - چه درجې دی د الله د طرف نه او بخښنه ده

وَّرَحْمَةً ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۹۶﴾ ع

او مهربانی ده - او الله دې بخونکے او مهربان نه -

# لنډ تفسیر

اے ایمانداراو! کله چه تاسو د الله په لاره کښے (یعنی د جهاد د پاره) سفر کوئ نو هر یو کار لره (قتل وی یا بل څه) د تحقیق نه پس کوئ او داسے سړی ته چه ستاسو وړاندے (ښنے) د اطاعت ښکاره کړی (لکه کلمه وئیل یا د مسلمانانو په طرز سلام کول) داسے مه وایئ چه دے (په زړه سره) مسلمان نه دے (محض د خپل ځان بچ کولو د پاره په دروغه اسلام ظاهره وی) په داسے طور سره چه تاسو د دنیا د ژوند د سامان خواهش کوئ، ځکه چه د خدائے سره (یعنی د هغهٔ په علم او قدرت کښے ستاسو د پاره) ډیر د غنیمت مالونه دی (چه تاسو ته به په جائزه طریقه سره ملاؤ شی او یاد کړئ چه) اول (په یوه زمانه کښے) تاسو هم داسے وئ (چه ستاسو د اسلام قبلولو مدار صرف ستاسو دعوه او اظهار وه) بیا الله تعالیٰ پتاسو احسان اوکړو (چه پدے ظاهري اسلام باندے ئے اکتفاء اوکړه او د باطن لټون ئے لازمی نه کړو) پس (لږ) غور (خو) کوئ بے شکه الله ستاسو د عملونو پوره خبر لری (چه پس د دے حکم نه څوک په دے عمل کوی او څوک نه کوی) برابر نه دی هغه مسلمان چه بے د څه عذر نه په کور کښے ناست وی (یعنی جهاد ته نه ځی) او هغه خلق کوم چه د الله په لاره کښے په خپلو مالونو او نفسونو سره (یعنی مالونه خرچ کوی او نفسونه حاضر وی) جهاد کوی (بلکه) الله تعالیٰ د داسے خلقو درجه ډیره زیاته جوړه کړے ده چه په خپلو مالونو او نفسونو سره جهاد کوی په نسبت د کور کیناستونکو او (حسے خو په وجه د دے چه دا فرضِ عین نه دے گناه په دے کیناستونکو هم نیشتے بلکه په وجه د ایمان او نورو فرضِ عین کارونو ځائے راوړو) د دواړو سره (یعنی د جهاد کونکو سره هم او د ناستو سره هم) الله تعالیٰ د غوره کور (یعنی د جنت په آخرت کښے) وعده کړے ده او (بره چه کوم اجمالاً وئیلی شوی دی چه د جهاد کونکو لویه درجه ده د دے تعین دا دے چه) الله تعالیٰ (دے ذکر شوو) مجاهدینو لره په مقابله د کور کیناستونکو لوئے اجر ورکړے دے (دغه درجه د دغے اجر عظیم اجمالی تفصیل فرمائی) یعنی (د ډیرو عملونو په وجه چه د جهاد کونکی نه صادر یګی

د ثواب) ډیرے درجے کومے چه د خدائے د طرف نه ملاویګی او (دګناهونو) مغفرت او رحمت (دا تحول د اجرِ عظیم تفصیل شوم او الله تعالیٰ لوئے مغفرت والا او رحمت والا دے۔

## معلومات او مسئلے

**د ایاتونو تړون** په تیرو ایاتونو کښے د مؤمن په قتل باندے د عذاب سختے زورنے راغلی دی۔ اوس ورباندے فرمائی چه د شرعی حکمونو د جاری کیدو د پاره د مؤمن د مؤمن کیدو صرف ظاهری اسلام کافی دے کوم سړے چه د اسلام اظهار او کړی د ده د قتل نه لاس بنده ول واجب دی، او محض د شك او شبهه په وجه سره د باطن تلاش کول او د اسلامی حکمونو په جاری کولو کښے د ده د یقینی ایمان د ثبوت انتظار کول جائز نه دی ځکه چه د بعضے صحابوؓ نه په بعضے غزاګانو کښے داسے لغزش واقع شوے وه۔ چه بعضے خلقو ځیل ځان مسلمان ښکاره کړو لیکن بعضے اصحابوؓ د دوی د اسلام په دروغو باندے حمل کړو قتل ئے کړو او د قتل شوی مال ئے په غنیمت کښے واخستو الله تعالیٰ د دے منع او فرمائیله۔ او چونکه دغه وخت دا مسئله اصحابوؓ ته په ښکاره طور سره معلومه نه وه نو په دے وجه ئے صرف د دوی په پوهه کولو صبر او فرمایه او په دے کار ئے په دوی څهٔ د عذاب وعده نازله نه کړه (بیان القرآن)

**د مسلمان ګڼړلو د پاره صرف لنبے د اسلام کافی دی د باطن تلاش کول جائز نه دی** په ذکر شوو درے ایاتونو کښے په اول ایات کښے دا خودنه شوے ده چه کوم سړے ځان مسلمان ښکاره کړی نو یو مسلمان لره جائز نه دی چه بغیر د تحقیق نه د هغه دا وینا نفاق او ګنړی۔ د دے ایات د نزول سبب څهٔ داسے واقعات دی چه په هغے کښے د بعضے صحابه کرامؓ نه داسے لغزش شوے وه۔

لکه چه په ترمذی او مسند احمدؒ د حضرت عبدالله بن عباسؓ نه نقل دے چه د قبیلے بنو سلیم یو سړے د صحابه کرامؓ د یو جماعت سره ملاؤ شو

په داسے موقع چه دا حضرات جهاد له روان وُو- دے سړی خپلے بیزے ګډولے د دا صحابو ته سلام اوکړو چه دا په عمل کښے د دے خبرے اظهار وه چه زه مسلمان یم، صحابه کرامو اوګڼړله چه دا وخت دے محض د خپل ځان او مال د بچ کولو د پاره دُوکه کوی نو دوی هغه قتل کړو او د هغهٔ بیزے ئے د غنیمت مال مقرر کړو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے ئے حاضرے کړے، په دے بانډ دا آیات نازل شو چه کوم سړے تاسو ته په اسلامی طرز سلام اوکړی نو بغیر تحقیق نه داسے مه ګڼړئ چه دهٔ د د وکے په وجه سره ځان مسلمان ظاهر کړو- او د دهٔ مال د غنیمت ګڼړلو په چوړ سره مه حاصلوئ (ابن کثیر)

او د حضرت عبد الله بن عباس نه یو بل روایت دے چه بخاری په لنډه سره او بزار مفصل نقل کړے دے- چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مجاهد ینو یو دسته اولیږله چه حضرت مقداد بن اسودؓ پکښے هم وُه- هر کله چه دوی موقع ته اورسیدل نو ټول خلق اوتختیدل صرف یو سړے پاتے شو چه د دهٔ سره ډیر مال وُه، دهٔ دا صحابو په وړاندے اووے: اَشۡهَدُ اَنۡ لَّاۤ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ؛ لیکن حضرت مقدادؓ دا اوګڼړله چه د ذړهٔ نه ئے نه وائی بلکه صرف د ځان او مال بچ کولو د پاره د اسلام کلمه وائی نو دے ئے قتل کړو- په حاضر ینو کښے یو صحابیؓ اُووے چه تا بد اوکړو چه یو داسے سړے دے قتل کړو چاچه د: لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ ګواهی ورکړے وه- زهٔ که د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شوم نو د دے واقعے ذکر به خامخا کوم- هر کله چه دا خلق مدینے ته واپس راغلل- نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته ئے دا واقعه بیان کړه- دوی حضرت مقدادؓ دا اُوغوښتو او سخته زورنه ئے ورکړه- او اوئے فرمائیل چه په ورځ د قیامت به ستا څهٔ جواب وی کله چه د: لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ کلمه ستا په مقابله کښے دعوید اره وی- په دے واقعه بانډ دا آیات نازل شو: لَا تَقُوۡلُوۡا لِمَنۡ اَلۡقٰۤی اِلَیۡکُمُ السَّلٰمَ لَسۡتَ مُؤۡمِنًا ؛ -

د دے آیات په باره کښے د دے دوه واقعو نه علاوه نورے واقعے

هم نقل دی لیکن د تفسیر تحقیق کوونکی فرمائی چه په دے روایتونو کښې ټکراؤ نه شی کیدے - دا ټول واقعات دے د نزول سبب وی -

د ایات په الفاظو کښې: اَلْقٰۤی اِلَیْكُمُ السَّلٰمَ : راغلی دے - په دے کښې د لفظ د "سلام" نه که اصطلاحی سلام مُراد شی نو اوله واقعه ورسره زیاته سمون خوری، او که د سلام نه لفظی معنی سلامت او اطاعت واغستے شی نو بیا دا ټول واقعات په دے کښې برابر دی - په دے وجه اکثرو حضراتو د سلام ترجمه دلته د اطاعت (حکم منلو) کړے ده -

**د واقعې د تحقیق نه بغیر فیصله کول جائز نه دی**

د دے ایات په اوله جُمله کښې یو عام هدایت دے چه مسلمانان دِ یو کار بے تحقیقه محض په ګمان باندے نه کوی - ارشاد دے: اِذَا ضَرَبْتُمْ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ فَتَبَیَّنُوْا : "یعنی کله چه تاسو د الله په لاره کښې سفر کوئ نو هر کار د تحقیق کولو نه پس کوئ" محض په ګمان او خیال باندے په کار کولو سره ډیر کرته غلطی کیږی - په دے کښې ئے د سفر قید هم په دے وجه سره ذکر کړو - چه دغه واقعات په سفر کښې مخے ته راغله - یا په دے وجه چه شبهات عام طور سره په سفر کښې مخے ته راځی - په کلی کښې عام طور سره د یو بل د حالاتو نه خلق خبر وی - که داسے وی نو اصل حکم عام دے په سفر کښې وی او که په کلی کښې خو بغیر تحقیق نه یو کار کول جائز نه دی - په یو حدیث کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: "په سوچ سمج سره کار کول د الله تعالیٰ د طرفه دے او جلد بازی د شیطان د طرف نه ده" - (بحر محیط)

دویمه جمله ده: تَبْتَغُوْنَ عَرَضَ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا : په دے کښې د دے مرض اصلاح ده کوم چه د دے غلطئ کولو باعث شو - یعنی د دنیا د دولت او د غنیمت د مال حاصلولو خیال -

وړاندے دا هم فرمائی چه ستاسو د پاره الله تعالیٰ د غنیمت مالونه ډیر مقرر کړی دی، تاسو د مالونو په فکر کښې مه پریوځئ - د دے نه پس ئے یو بل خبرداری اوفرمایه - چه لږ دے ته هم اوګورئ چه اول پتا سو کښې هم ډیر حضرات داسے وو چه په مکه مکرمه کښې ئے د خپل اسلام او ایمان

اعلان نه شو کولے. بیا الله تعالیٰ پتاسو باندے احسان اوکړه چه د کفارو د قبضے نه ئے ازاد کړئ۔ نو د اسلام اظهار مو اوکړه۔ نو آیا دا ممکنه نه ده چه دغه سړے کوم چه د اسلام لبنکرا او وینی او کلمه وائی په حقیقت کښے د اول نه مسلمان وی خو د کفارو د ویرے نه د اسلام اظهار ئے نه وی کړے۔ او چه دا وخت د مسلمانانو لښکر ئے اولیده نو اظهار ئے اُوکړه۔ یا چه هرکله په اول کښے تاسو د اسلام کلمه اووے او ځان ته مُو مسلمان وے نو په هغه وخت کښے خو تاسو لوه د مسلمانانو مقرر کولو د پاره شریعت دا قید نه وُو لګولے چه ستاسو د زړه و نو تلاش دے اوشی نو که په زړه کښے د اسلام ثبوت ملاؤ شی هله به درته مسلمان وائی. بلکه صرف کلمه وئیل ئے ستاسو د مسلمان مقررکولو د پاره کافی ګڼلی وُو۔ نو دغه شان اوس هم چه ستاسو په وړاندے څوک کلمه اووائی نو مسلمان ئے ګڼړئ۔

| اصلِ قبله ؤ ته د کافر نهٔ وئیلو مطلب | د دے آیات کوبید نه دا یواځے مسئله معلومه شوه چه کوم سړے خپل ځان ته مسلمان وائی |
|---|---|

خواه په کلمه وئیلو یا بله یو اسلامی طریقه اختیار د وُلو او ښکاره کولو مثلاً په مانځه او داسه وغیره کښے په شریک کید و نو په مسلمان لازم دی چه دے به مسلمان ګڼړی او د دهٔ سره به د مسلمانانو پشان معامله کوی۔ د دے خبرے انتظار به نه کوی چه دے د زړهٔ نه مسلمان شوے دے او که نه دے او د څهٔ وجه نه د اسلام اظهار کوی۔

او دارنګ په دے معامله کښے به د ده عملونو ته هم نه شی کتے، فرض کړه چه دے مونځ نه کوی او روژه نه نیسی او هر قسم ګناهونه کوی بیا هم دهٔ ته د کافر وئیلو او یا د دهٔ سره د کافرانو د معاملے کولو د هیچا حق نیشتے۔ په دے وجه امام اعظمؒ فرمائی: لَا نُكَفِّرُ اَهْلَ الْقِبْلَةِ بِذَنْبٍ: " یعنی مونږ اهلِ قبله ته د څهٔ ګناه په وجه کافر نهٔ شو وئیلے"۔

په بعضے روایتونو د حدیث کښے هم د دے قسم الفاظ ذکر دی، چه اهلِ قبله ؤ ته کافر مه وایئ. خوا دے هر څومره ګناه ګار ځه وی۔

مګر دلته یو د خبره په خاص طور سره د یاد وسا تلو او ځان پوهه کولو ده،

چه دَ قرآن او حدیث نه دا ثابته ده چه کوم سړے خپل ځان ته مسلمان وائي هغهٔ ته کافر دیل یائے کافر ګنړل جائز نه دي- دَ دے واضح مطلب دا دے چه ترڅو پورے دَ دهٔ نه څهٔ داسے خبره یا کار نه وي صادر شوے چه دَ کفر یقیني نښه وي تر هغې وخته پورے به دَ دهٔ دَ اسلام اقرار صحیح وي او دهٔ ته به مسلمان و ئیلے شي او دَ دهٔ سره به دَ مسلمانانو پشان معامله کولے شي دَ دهٔ دَ زړه متعلق دَ بحث کولو هیچا ته حق نیشته-

لیکن کوم سړے چه دَ اسلام دَ اظهار او دَ ایمان دَ اقرار سره سره دَ کفر څهٔ کلے هم وائي یا څهٔ بُت ته سجده کوي یا دَ اسلام دَ څهٔ داسے حکم نه انکار کوي چه هغه دَ اسلام قطعي حکم وي یا دَ کافرانو څه مذهبي نښه اختیار وي لکه په غاړه کښے زنار وغیره اچول، نو دے به بے شکه دَ خپل کفر دَ عمل نو په سبب کافر مقرر کولے شي- په ذکر شوي ایات کښے په لفظ دَ "تَبَيَّنُوْا" کښے دے طرف ته اشاره موجوده ده- ورنه یهودو نصاراؤ خو ټولو خپل ځانته مسلمانان وے، او مسیلمه کذاب چه په اجماع دَ صحابه کرامو کافر مقرر شوے او قتل کړے شوے دے- دے صرف دَ اسلام دَ کلمے اقراري نه وهٔ بلکه دَ اسلامي شعائرو مانځه آذان وغیره هم پابند وهٔ- پخپل آذان کښے به ئے دَ "اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ" سره "اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ" هم وے خو دَ دے سره به ئے خپل ځان ته هم نبي او رسول صاحبِ وحې وے، چه دَ قرآن او سنت دَ نصوصو نه خلاف او بنکاره انکار وهٔ- په دے وجه دے مُرتد مقرر شو او دَ دهٔ خلاف دَ اصحابو په اجماع سره جهاد اوکړے شو-

دَ مسئلے پخوړ دا شو چه هر کلمه کو اهل قبله لره مسلمان ګنړئ، او دَ دهٔ دَ زړهٔ او باطن معامله دَ خدائے سره ده دَ دے لټون دَ انسان کار نه دے، دغه الله ته حواله کوئ- البته که دَ ایمان دَ اظهار سره ترے دَ ایمان خلاف څهٔ کار وشي نو دے مرتد ګنړئ په دے شرط چه دَ ایمان نه خلاف کیدل ئے قطعي او یقیني وي- او په دے کښے دَ څهٔ بل احتمال یا تاویل ځائے نه وي-

دَ دے نه دا هم معلومه شوه چه لفظ دَ "کلمه کو" یا "اَهلِ قبله" اصطلاحي الفاظ وي چه مصداق ئے صرف هغه سړے دے چه دَ اسلام دَ دعویدار کیدو سره

تر دې څۀ کافرانه وَیناپا کار صادر نه شي -

| دَجهاد متعلق ځوا حکام | په دویم آیات: لَا یَسْتَوِی الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِیْنَ : کښې دَجهاد څو اَحکام ذکرشوي دي - چه کوم خلق بغیر دَ څه معذورئ نه |
|---|---|

په جهاد کښې نه شریکیږي دوی دَ هغې خلقو سره نَشي برابریدے کوم چه دَالله په لاره کښې پخپل ځان او مال سره جهاد کوي - بلکه الله پاک جهاد کونکو لره په غیر جهاد کونکو درجه او غوره والے ورکړے دے - دَ دے سره ئې داهم اوفرمائیل چه الله تعالیٰ دَجهاد کونکو او غیر جهاد کونکو دواړو فریقو سره دَ ښے بَدلے وعده کړے ده ، جنت او مغفرت به دواړو ته حاصل وي - فرق به صرف په درجو کښے وي -

دَ تفسیر عالمان فرمائي چه دَ دے آیات نه معلومه شوه چه په عاموحالاتو کښې جهاد فرض کفایه دے چه بعضے خلق ئې اداکړي نو دَ باقي مسلمانانو غاړه خلاصیږي - په دے شرط چه کوم خلق په جهاد کښے شریک وي هغه دَ دے دَپاره پوره وي ، او که هغوی پوره نه وي نو دَ دوی په خوا وشا مسلمانانو هم فرض کیږي چه دَ مجاهدینو امداد اداوکړي -

| دَ فرض کفایه پیژندل | فرض کفایه په شریعت کښې هغو فرضوته وئیلے شي چه |
|---|---|

اداکول ئې په هر مسلمان باندے ضروري نه وي بلکه دَ بعضو کول ئې پوره کیږي او په عامه طریقه سره قومي او اجتماعي کارونه په دے درجه کښے وي - دَ دیني علمونو تعلیم او تبلیغ هم دا سے فرض دي څۀ خلق چه پکښے مشغول وي او هغۀ ورلره پوره وي نو دَ نورو مسلمانانو غاړه پرے آزادیګي - لیکن کوم ځائے چه هیڅوک هم په دے کښے مشغول نه وي نو ټول ګناه ګار دي -

دَ مړي دَجنازے مونځ او کفن دفن هم یو قومي خیز دے چه یو دور دَ خپل بل مسلمان د ورحق اداکوي - او دَ دے حکم هم دغه دے - جماتونه او مدرسے جوړَ ول او نور دَ عامو خلقو دَ فائدے کارونه کول هم په دے حکم کښے داخل دي - یعنې چه بعضے مسلمانان ئې کوي نو دَ نورو غاړه خلاصیږي -

په عام طور سره هغه حکمونه چه دَ اجتماعي او قومي ضرورتونو سره ئې تعلق وي دغه اسلامي شریعت فرض کفایه مقرر کړي دي - دَ دے دَپاره

په دکارونو د تقسيم په اصولو باندے عمل کيږی او ټول فرض ادا کيږی۔
يعنی په ځينے خلق جهاد کوی ځينے د تعليم او تبليغ کار کوی او ځينے نور خلق د اسلامی
يا انسانی ضرورتونو د پوره کولو کار کوی۔ نو ټول کارونه په سرته رسی۔
په دے ايات کښے ئے ؛ كُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى : او فرمائيل هغه خلق ئے هم مطمئن
کړه کوم چه د جهاد نه علاوه په نورو دينی ضرورتونو کښے مشغول وی۔ ليکن
دا حکم په عامو حالاتو کښے۔ چه کله د څو خلقو جهاد د اسلام د دشمنانو د دفع
کولو د پاره کافی وی او که د دوی جهاد کافی نه وی د نور کمک ضرورت وی نو
د نوا وشا په نورو خلقو هم جهاد فرضِ عين کيږی۔ او که دغه هم کافی نه وی
نو بيا په نورو د خوا وُشا خلقو فرض عين کيږی او هم دغسے ترمشرق او مغربه
پورے په هر يو مسلمان فرض کيږی چه شريک شی پکښے۔
په دريم ايات کښے هم د دغے درجو د فضيلت بيان دے کوم چه جهاد
کونکو ته په نورو باندے حاصلے دی۔
**مسئله**:۔ په شل کُښ، ړُوند او بيمار او بل شرعی معذور باندے جهاد
فرض نه دے۔

إِنَّ الَّذِينَ تَوَفّٰهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيٓ أَنْفُسِهِمْ قَالُوا

هغه خلق د چا چه فرشتے روح اوباسی په داسے حالت کښے چه د ځان سره ئے بد کړی وی۔ وائی

فِيمَ كُنْتُمْ ؕ قَالُوا كُنَّا مُسْتَضْعَفِينَ فِي الْأَرْضِ ؕ

دوئيته فرشتے چه تاسو په څۀ حال کښے وئ دوی وائی مونږ وو ناچاره په دے ملک کښے۔

قَالُوٓا أَلَمْ تَكُنْ أَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوا

وائی فرشتے آيا نه وه زمکه د الله آرته چه وطن مو پاتے کړے وے او هلته

فِيهَا ؕ فَأُولٰٓئِكَ مَأْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ؕ وَسَآءَتْ مَصِيرًا ﴿٩٧﴾

تلی وئے؟ پس د داسے خلقو ځائے دوزخ دے۔ او هغه ډير ناکاره ځائے دے۔

إِلَّا الْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ

مګر کوم چه کمزوری دی د سړو او د ښځو او د بچو نه

لَا يَسْتَطِيعُونَ حِيلَةً وَلَا يَهْتَدُونَ سَبِيلًا ﴿۹۸﴾

چه نه شی کولے څه تدبیر او نه ورته څه لار معلومه ده

فَأُولَٰئِكَ عَسَى اللَّهُ أَنْ يَعْفُوَ عَنْهُمْ ۚ وَكَانَ اللَّهُ

پس دغو لره امید دے چه الله ئے معاف کړی۔ او دے الله

عَفُوًّا غَفُورًا ﴿۹۹﴾ وَمَنْ يُهَاجِرْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ يَجِدْ

معاف کونکے بخښونکے والا ۔ او څوک چه وطن پریدی د الله په لاره کښے بیا به مومی

فِي الْأَرْضِ مُرَاغَمًا كَثِيرًا وَسَعَةً ۚ وَمَنْ يَخْرُجْ مِنْ بَيْتِهِ

د دے په مقابله کښے ځائے ډیر او فراخی ۔ او څوک چه اوځی د خپل کور نه

مُهَاجِرًا إِلَى اللَّهِ وَرَسُولِهِ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ

هجرت کونکے الله او رسول طرف ته بیا او نیسی دهٔ لره مرګ نو مقرر

وَقَعَ أَجْرُهُ عَلَى اللَّهِ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَحِيمًا ﴿۱۰۰﴾

شو د دهٔ ثواب د الله سره ۔ او دے الله بخښونکے والا مهربان ۔

# لنډ تفسير

بے شکه د داسے خلقو روح چه فرښتے قبض کوی چا چه رسره د قدرت د هجرت نه هجرت نه وی کړے، خپل ځانو نے ګناه ګار ساتلی وی نو د دغه وخت، هغه د فرښتو ده ته وائی چه ته د دین، په کوم د کوم، ګار کښے وے، یعنی د دین څه څهٔ ضروری کار

دے کولو) دے (جواب کښے) وائی چه مونږ (دَ خپلو اوسیدو) په زمکه کښے محض مغلوب وُو (نو په دے وجه مُونږ دَ دین په ډیرو ضروری حکمونو عمل نه شو کولے یعنی دغه فرض مونږ دَ مجبورئ نه پاتے کړی وُو) دوی (فرښتے) وائی (که په دغه ځائے کښے مونه شو کولے نو) ولے دَ خدائے تعالیٰ زمکه فراخه نه وه تاسو وطن پرے خودل دَ دے نه ریلے زمکے ته) تلل پکار وُو (هلته به تلی وئ نو فرض به مُو ادا کولے شو نو دوی به لاجوابه شی او جُرم به ئے ثابت شی) پس دَ دے خلقو ځائے دوزخ دے او دَ تلو دَ پاره دغه ډیر ناکاره ځائے دے۔ لیکن کوم سړی او ښځے او ماشومان (چه په واقع کښے په هجرت هم قادر نه وی نه څهٔ تدبیر کولے شی نه ورته لار معلومه وی پس دَ دوی دَ پاره اُمید کیږی چه الله تعالیٰ معاف اوکړی او الله تعالیٰ لوئے معاف کونکے لوئے مغفرت کولو والا دے او دَ کومو خلقو دَ پاره چه هجرت روا دے په دوی کښے) کوم سړے چه دَ الله په لاره کښے (یعنی دَ دین دَ پاره) هجرت اوکړی نو دهٔ ته به په زمکه کښے دَ تلو دَ پاره ډیر ځایونه ملاؤ شی او (دَ دین دَ ښکاره کولو) ډیره فراخی به بیا مومی (پس که داسے ځائے ته اوُرسید نو په دنیا کښے هم په دے سفر او اظهار دَ دین سره کامیابی ظاهره ده) او که اتفاقًا داذکر شوے کامیابی ورته حاصله نه شی نو بیا هم دَ آخرت کامیابی خو یقینی ده ځکه چه زمونږ قانون دے چه) کوم سړے دَ خپل کور نه په دے نیت سره اوځی چه دَ الله او رسول (دَ دین ظاهرو ولو موقعے) طرف ته هجرت اوکړم بیا دَ مقصد حاصلولو نه ورا ندے) ده له مرګ اونیسی نو بیا هم دَ دهٔ ثواب (دَ کوم وعده چه په هجرت کولو وه) ثابت شو (چه دَ وعدے په وجه سره داسے ده لکه) دَ الله په ذمه (اګرچه لا ترا وسه دے سفر ته هجرت نشی وئیلے لیکن په بنه نیت سره دَ دے په شروع کولو ورته پوره صلهٔ ورکړے شوه) او الله تعالیٰ لوئے مغفرت کونکے دے (دَ دے هجرت په برکت سره اګرچه پوره نه شو ډیر ګناهونه به معاف کړی۔ لکه په حدیث کښے راغلی دی چه په هجرت سره تیر ګناهونه معاف کیږی او) لوئے رحمت والا دے (چه دَ عمل په بنه نیت سره په شروع کولو دَ عمل دَ پوره کیدو هومره برابر ثواب ورکوی) ۔ یعنی چه نیک عمل شروع کړے شی نو که پوره هم نه شی خو ثواب ئے پوره ملاویګی ۔

# معلومات او مسئلې

## دَ هجرت پيژندګلو

په دې ځلورو ايا تونو کښې دَ هجرت فضيلتونه برکتونه او دَ حکمونو بيان دې - په لغت کښې هجرت دَ هجران او هجر په معنیٰ کښې دې - يعنې دَ يو شي نه ويزاره کېدل او پاتې کول ئې - او په عامو محاورو کښې دَ هجرت لفظ دَ وطن پاتې کولو دَ پاره ويلې شي. دَ شرع په اصطلاح کښې دارالکفر پرېښودل او دارالاسلام ته تللو ته هجرت وائي (روح المعاني) -

او مُلّا علي قاري په شرح دَ مشکوٰة کښې فرمائي چه يو وطن لره دَ ديني وجهو په بنا پاتې کول هم په هجرت کښې داخل دي (مرقات ص۳۹ ج۱)

د سورتِ حشر ايات: اَلَّذِيْنَ اُخْرِجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَاَمْوَالِهِمْ: کوم چه دَ مهاجرينو اصحابو ؓ په باره کښې نازل شوې دې - دَ دې نه معلومه شوه چه کَه دَ يو ملک کفار مسلمانانو لره دَ دوی دَ مسلمانيد و په وجه په زبردستئ او باسي نو دا هم په هجرت کښې داخل دې -

دَ دې تعريف (يعنې معلوماتو) نه معلومه شوه چه دَ هندوستان نه پاکستان ته کوم مسلمانان بچپل اختيار سره دَ دارالکفر نه دَ بې زارئ په سبب راغلي دي يا کوم لره چه غير مسلمو په زبردستئ باندې دَ دوی دَ مسلمانيد و په وجه راوليستلي دي دا ټول خلق دَ شرعي معنیٰ په اعتبار سره مهاجرين دي - البته څوک چه دَ تجارتي ترقئ يا دَ نوکرئ دَ اسانئ په وجه سره منتقل شي هغه شرعًا دَ مهاجر ويلو مستحق نه دې -

او دَ صحيح بخاري او مسلم په يو حديث کښې دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دې:

اَلْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ مَا نَهَى اللّٰهُ عَنْهُ وَرَسُوْلُهٗ -

"يعنې مهاجر هغه دې چه هغه ټول څيزونه پاتې کړي دَ کوموڼه چه الله تعالیٰ او دَ هغه رسول ؐ منع فرمائيلې ده"

پس دَ دې مطلب دَ دې حديث دَ اولے جملے نه ظاهريږي ی په کوم کښې چه ارشاد دي:

اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَ يَدِهٖ -

" يعنى مسلمان هغه دے دَچا دَ ژبے او لاسو نو دَ تکليف نه چه ټول مسلمانان محفوظ او سلامت وى "

دَ دے مُراد ښکاره دے چه رشتونے او پوخ مسلمان هغه دے چه نورو ته تکليف نه رسوى- دغه شان رشتونے او کامياب مهاجر هغه دے چه صرف دَ وطن په پاتے کولو بس نه کړى بلکه څو مره څيزونه چه شريعت حرام او ناجائز مقرر کړى دى هغه ټول هم پاتے نه کړى -

+خپل زړه لره هم بدل کړه دَجا مے دَ احرام سره+

## دَ هجرت فضيلتونه

په قرآن کريم کښے چه لکه څنګه دَ جهاد متعلق آيا تونه په ټول قرآن کښے خواره واره دى- نو دغه شان دَ هجرت ذکرهم دَ قرآن کريم په اکثرو سورتونو کښے ځائے پځائے خو پيرے راغلے دے- چه دا ټول آيا تونه راجمع کړے شى نو دَ دے نه معلوميږى چه دَ هجرت په آيا تونو کښے درے قسمه مضمونونه دى- اول دَ هجرت فضيلتونه دويم ئے دَ دُنيا او اخرت برکتونه، دريم سره دَ قدرت نه دَ دارالکفر نه دَ هجرت په نه کولو دَ عذاب وعدے -

اول مضمون يعنى دَ هجرت فائدے دَ سورت بقره په يو آيات کښے دى:

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَ الَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَجَاهَدُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اُولٰٓئِكَ يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ -

" يعنى هغه څوک چه ايمان راوړے او چا چه دَ الله په لاره کښے هجرت او جهاد او کړو دوى دَ الله تعالىٰ دَ رحمت اُميد وار دى او الله تعالىٰ لوئے بخونکے مهربان دے "

دويم آيت په سورت توبه کښے دے:

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَهَاجَرُوْا وَجَاهَدُوْا فِىْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ اَعْظَمُ دَرَجَةً عِنْدَ اللّٰهِ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفَآئِزُوْنَ -

" يعنى کوم خلق چه ايمان راوړے او چا چه دَ الله په لاره کښے هجرت او جهاد اختيار کړو دوئ دَ الله سره په لويه درجه کښے دى او دا خلق کامياب او بامُراده دى "

او دریم ایات دا د سورت نسآء دے:

وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْۢ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَى اللّٰهِ ـ

"یعنی کوم سړے چه د الله او د رسول د پاره د خپل کور نه په نیت د هجرت او تی بیا په لاره کښے ورله مرګ راشی نو د ده ثواب د الله په ذمه شو"

دا ایات د بعضے روایتونو په مطابق د حضرت خالد بن حزام په باره کښے د حبشے د هجرت په زمانه کښے نازل شوے دے. دے د مکے نه حبشے ته د هجرت په نیت وتلے وه. په لاره کښے دے مار اوچیچه او د هغے نه وفات شو. په هرحال په دے درے واړه واړو ایاتونو کښے د دارالکفر نه د هجرت ترغیب او د دے د لویو لویو فضیلتونو بیان په واضح طور سره راغلے دے.

په یو حدیث کښے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دے: اَلْهِجْرَةُ تَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهَا: "یعنی هجرت هغه ټول کناهونه ختموی کوم چه ئے د هجرت نه وړاندے کړی وی".

## د هجرت برکتونه

د برکتونو متعلق د سورت نحل په یو ایات کښے ارشاد دے:

وَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا فِي اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا ظُلِمُوْا لَنُبَوِّئَنَّهُمْ فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَلَاَجْرُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ـ

"یعنی کومو خلقو چه د الله د پاره هجرت اوکړو پس د دے نه چه په دوی باندے ظلم اوشو مونږ به دوی له په دنیا کښے ښه ځائے ورکړو او د اخرت ثواب خو ډیر لوئے دے. کاش چه دا خلق پوهیدلے"

د سورت نسآء څلور ایاتونه کوم چه بره ذکر شوی دی په دے کښے د څلورم ایات هم تقریبًا دا مضمون دے چه په دے کښے ارشاد دے:

وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْاَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً ـ

"یعنی کوم سړے چه د الله په لاره کښے هجرت اوکړی دے به بیا موسی په زمکه کښے ځائے ډیر او فراخی"

د ایات لفظ: مُرَاغَم: مصدر دے چه معنیٰ ئے ده د یوے زمکے نه دوبے

زمکې طرف ته منتقل کيدل او د منتقل کيدو ځائې ته هم "مُراغم" وائي۔
په دې دواړو ايا تونو کښې د هجرت ظاهري او باطني برکتونه بيان شوي دي۔ چه په دې کښې د الله تعالىٰ دا وعده ده چه کوم سړې د الله او د رسول د پاره هجرت کوي الله تعالىٰ د ده د پاره په دُنيا کښې لارې سپړي او ده له په دنيا کښې ښه ټهکانه ورکوي او د اخرت ثواب او درجې خو د وهم او ګمان نه هم ډيرې زياتې دي۔
د غوره ټهکانه تفسير مجاهد په رزقِ حلال سره او حسن بصريؒ په ښکلي مکان سره او بعضو نورو تفسير ليکونکو په مخالفينو د غلبې، عزت او شرافت سره کړې ده۔ او حقيقت دادې چه د ايات په مفهوم کښې داټول خبرې داخلې دي۔ لکه چه د دُنيا تاريخ ګواه دې چه کله چا د الله د پاره وطن پريخودې دې۔ نو الله تعالىٰ ده له د وطن د مکان نه ښکلي مکان، د وطن د عزت او شرافت نه زيات عزت، د وطن د آرام نه زيات آرام ورکړې دې۔
حضرت ابراهيم عليه السلام خپل عراق وطن پريخود شام ته ئې هجرت او فرمايه نو الله تعالىٰ دا ټول څيزونه د هغهٔ نصيب کړل۔ حضرت موسىٰ عليه السلام او د هغهٔ سره بني اسرائيلو د خپل وطن نه د الله د پاره هجرت او کړه يعني مصر ئې پريخود، نو الله تعالىٰ دوی له د دينه غوره وطن د شام ملک ورکړه او بيا مصر هم دوی ته ملاؤ شو۔ زمونږ آقا حضرت خاتم الانبياء نبي اکرم صلے الله عليه وسلم او د دوئي صحابؓ د الله او رسول د پاره مکه پريخوده نو دې مهاجرينو ته د مکې نه غوره ټهکانه په مدينه کښې نصيب شوه۔ د هر قسم عزت، غلبه او راحت او مالداري ورته ورکړې شوه۔ د هجرت په اوّلنو ورځو کښې يو څو ورځې تکليف او سختئ خوشهٔ خبره نه ده، کوم چه عبوری دور نه پس چه کوم نعمتونه الله تعالىٰ دوی له ورکړه او د دوی په نسلونو کښې تر ډيره پورې جاري پاتې شو اعتبار د هغې له ده دې۔
د صحابه کرامو د لوګو تند وکوم واقعات چه په تاريخ کښې مشهور دي هغه په عام طور سره د هجرت د ابتدائي (اوّلنی) دور سره تعلق لري، او يا هغوی دا فقر په خپله رضا سره خوښ کړې وه، مال دولت ئې نه خوښاوه، څهٔ چه ورته

د اتلل د الله په لاره کښې به ئې خرچ کول، لکه چه پخپله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم داحال وه چه د دوی لوږه تنده محض اختیاری وه - دوئی غناء او مال داری نه اختیار وله - او د دے سره هم د هجرت په شپږم کال د خیبر د فتح نه پس د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ټول اهل وعیال د ګذارے کافی انتظام او شو، دغه د خلفائے راشدینؓ ټولو داحال وُه - چه مدینے ته د رسیدو نه پس الله تعالیٰ دوئی ته هرڅه ورکړی وُو - لیکن چه اسلامی ضرورت پیښی شو نو حضرت صدیق اکبرؓ د خپل کور ټول مال راوړو او پیش ئے کړو، اُمُّ المؤمنین حضرت زینبؓ ته چه څهٔ وظیفه ملاویده هغه به ئے ټوله په فقیرانو او مسکینانو تقسیموله او پخپله به ئے د فقیرانو ژوند تیراوه - په دے وجه د دے نوم اُمُّ المساکین (د مسکینانو مور) وُه - او سره د دے د غنیانو صحابوؓ د چا نه چه په ډیر مقدار سره مال او جائیدادیانے شوے وه - د دوی مقدار هم په صحابه کرامو ؓ کښې کم نه وُه - ډیر صحابه کرامؓ داسے هم وُو چه پخپل وطن مکه مکرّمه کښې مفلس او نادار وُو - د هجرت نه پس الله تعالیٰ دوی لره مال دولت او د هر قسم راحتونه ورکړه - حضرت ابوهریره رضی الله تعالیٰ عنه چه هر کله د یوے صوبے والی جوړ کړے شو - نو په ډیر خوند سره به ئے د خپل تیر ژوند نقشه مخے ته کوله او خپل نفس ته به ئے وئیل، ابو هریره! ته هغه ئے چه د فلانئ قبیلے نوکر وے او ستا تنخواه صرف د ګیډے ډکولو روټئ وه - او ستا ډیوټئ دا وه چه کله به دغه خلق په سفر تلل نو تهٔ به ورسره پیاده روان وے - او کله چه به دوی په یو منزل کوز شو نو تا به ورلره د سوانئ د پاره خشاک راوړو - بیا د اسلام په برکت ته د کوم ځائے نه کوم ځائے ته اورسیدے تا ته امام او امیر المؤمنین وئیلے شی -

لنډه دا ده چه الله تعالیٰ کومه وعده د مهاجرینو د پاره په قرآن کریم کښې فرمائیلے ده دا دُنیا پخپلو سترګو سره پوره شوے لیدلے ده - البته په دے آیات کښې شرط دا دے چه: هَاجَرُوْا فِي اللهِ = مصداق وی - د دُنیا د مال دولت یا حکومت بادشاهت یا عزت او مرتبے د طلب د پاره ئے هجرت نه وی کړے ورنه د صحیح بخاری په حدیث کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دا ارشاد هم دے.

چه کوم سړے د الله او د هغه د رسول په نیت سره هجرت کوی نو د هغه هجرت د الله او د رسول د پاره دے یعنی صحیح هجرت دے چه فضیلتونه او برکتونئے په قرآن کښے ذکر دی - او کوم سړے چه د څه مال د طلب یا د ښځے د نکاح په خیال سره هجرت کوی نو د ده د هجرت بدله هم دغه شے دے د کوم د پاره چه ده هجرت کړے وی -

نو چه کوم بعضے مهاجرین پریشان حال وی، یا خولا تر اوسه په دغه عبوری دوړ کښے دی کوم چه د هجرت په اوّلنی دور کښے پریشانی راځی یا هغوی په صحیح معنا کښے مهاجر نه دی دوی له پکار دی چه د خپل نیت او حال د اصلاح طرفته توجه او کړی - د نیت او عمل د اصلاح کولو نه پس به دوی د الله تعالیٰ د وعدے رشتونوالے پخپلو سترګو سره او وینی -

---

وَاِذَا ضَرَبْتُمْ فِى الْاَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ

او کله چه تاسو سفر کوئ په زمکه کښے نو پتا سو ګناه نشته چه څه

تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ

کم کوئ د مانځه نه - که تاسو سره یره وی چه ازار به کړی تاسو له

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ اِنَّ الْكٰفِرِيْنَ كَانُوْا لَكُمْ عَدُوًّا

کافران - البته کافران ستاسو بنکاره دشمنان

مُّبِيْنًا ﴿١٠١﴾ وَاِذَا كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ

دی - او کله چه تاسو په دوی کښے موجود یئ - بیا دوی له جماعت مونځ دروکوئے

فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَّعَكَ وَلْيَاْخُذُوْٓا اَسْلِحَتَهُمْ ۣ

نو پکار دی چه یوه ډله د دوی او دریږی ستاسره او دخان سره دے واخلی خپله وسله -

فَإِذَا سَجَدُوا فَلْيَكُونُوا مِن وَرَآئِكُمْ وَلْتَأْتِ

بیا چه کله دوی سجده اوکړی نو لرې دې شي ستاد خوا نه - او را دې شي

طَآئِفَةٌ أُخْرَىٰ لَمْ يُصَلُّوا فَلْيُصَلُّوا مَعَكَ وَلْيَأْخُذُوا

بله ډله چا چه مونځ نه دې کړې - هغوی دې مونځ اوکړي ستا سره او را دې اخلي ځل

حِذْرَهُمْ وَأَسْلِحَتَهُمْ وَدَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ

د بچاؤ سامان او خپله وسله - کافران غواړي چه په څه شان سره

تَغْفُلُونَ عَنْ أَسْلِحَتِكُمْ وَأَمْتِعَتِكُمْ فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم

تاسو بے پرواه شئ د خپلې وسلے او اسبابونه چه پتا سو حمله اوکړي

مَّيْلَةً وَاحِدَةً وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ

په یو وار - او پتا سو څهٔ ګناه نیشته که تاسو ته تکلیف

أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ

دی د باران نه یا تاسو بیا ردیئ چه کیدئ خپله د سله -

وَخُذُوا حِذْرَكُمْ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا

او د ځان سره اخلئ خپل د بچاؤ سامان - بے شکه الله تیار کړې دے د کافرانو د پاره عذاب

مُّهِينًا ﴿١٠٢﴾ فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ

د ذلت - پس کله چه تاسو مونځ اوکړو نو یاد دئ الله لره

قِيَامًا وَقُعُودًا وَعَلَىٰ جُنُوبِكُمْ فَإِذَا اطْمَأْنَنتُمْ

په ولاړے په ناستے او په ملا ستے - بیا چه کله ډاډه شئ

فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ۚ اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ

پس برابر کوئ مانځه لره - بے شکه مونځ په مسلمانانو باندے فرض

كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا ﴿۱۰۳﴾ وَلَا تَهِنُوْا فِي ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ؕ اِنْ

دے پیلو مقرر وختونو کښے - او بے همته کیږئ مه په دوی پسے په ورپسے کیدو کښے - که تاسو

تَكُوْنُوْا تَاْلَمُوْنَ فَاِنَّهُمْ يَاْلَمُوْنَ كَمَا تَاْلَمُوْنَ ۚ

بے آرامه کیږئ نو دوی هم بے آرامه کیږی لکه څنګه چه تاسو کیږئ -

ع ۱۵ ۱۲ وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۰۴﴾ ع

او تاسو د الله نه اُمید لرئ داسے چه دوی نه لری او الله په هر څه پوهه حکمت والا دے -

## لنډ تفسیر

او کله چه تاسو په زمکه کښے سفر کوئ (چه مقدار ئے درے منزله وی) پس تاسو لره په دے کښے څه ګناه به نه وی (بلکه ضروری ده) چه تاسو د ماسپخین مازیګر او ماسختن فرض) مونځ (څلور رکعتونو) لره کم کړئ (یعنی د څلورو په ځائے دوه کوئ) که ستاسو سره دا یره وی چه کافران خلق به تاسو پریشانه کړی او د دے یرے په وجه سره په یو ځائے ترډیر وخته پورے او دریدل د مصلحت خلاف ګنړئ ځکه چه) بے شکه کافران خلق ستاسو ښکاره دشمنان دی. او کله چه تاسو په دوی کښے تشریف فرمایئ او دغه شان چه ستاسو نه پس بل څوک امام وی) بیا تاسو دوی لره مونځ کول غواړئ او یره وی چه که ټول په مانځه کښے مشغول شو نو داسے نه چه دشمن موقع بیا مومی او حمله او کړی) نو (په داسے حالت کښے) داسے پکار دی چه (دغه جماعت دے دوه ډلے شی بیا) په دوی کښے یوه ډله ستاسو سره (په مانځه) او دریګی او دویمه ډله د حفاظت د پاره د دشمن مقابلے ته او دریګی چه دشمن ته ګوری) او دغه خلق (کوم چه ستاسو سره په مانځه کښے شامل دی دوی

دے هم مختصره شان) وَسله واخلی (یعنی دَمانځه اودریږی وِنه اول دے راواخلی چې شاید که دَمقابلې ضرورت راشی نو په وَسله راغستو کښې به وخت نه لګی، فورًا به جنګ کوی، اګر چه مونځ به ئے په جنګ سره مات شی لیکن دا ګناه نه دے) بیا چه کله دا خلق (ستاسره) سجده اوکړی (یعنی یو رکعت پوره کړی) نو دا خلق دے ردَ حفاظت دَپاره) ستاسو نه شا ته شی (یعنی دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه او دَ دغے بلے ډلے نه چې لا په مانځه کښې نه وه شامل او س شاملیږی دوی دے دَ دے ټولو نه شا ته لاړ شی) او هغه بله ډله چا چې لا تر اوسه مونځ نه دے کړے (یعنی شروع کړے ئے هم نه دے هغه دے دَ دے اوّلنئ ډلے پځائے امام ته نژدے) راشی او ستاسره دے (یو رکعت) مونځ چې باقی دے (هغه دے) اوکړی او دا خلق دے هم دَ خپل بچاؤ سامان او خپلے وَسلے راواخلی (او دَ سامان او وَسلے دَ ځان سره دَ راغستو ځکه حکم شوے دے چې) کافران خلق دا غواړی چې که تاسو دَ خپلو وسلو او سامانو نه (لږ شان) غافل شوئ نو دوی به په تاسو په یو وار حمله اوکړی (پس په داسے حالت کښې احتیاط ضروری دے) او که تاسو ته دَ باران (وغیره) په وجه سره (دَ وَسلے سره په تلو کښې) تکلیف وی یا تاسو بیماریئ (او په دے وجه وسله نشئ ترلے) نو تاسو ته په دے کښې (هم) څه ګناه نیشته چې وسله ویستلے ساتئ، او (بیا هم) دَ خپل بچاؤ سامان (رهانخا دَ ځان سره) اخلئ (او دا خیال مکوئ چې دَ کفارو دَ دشمنئ صرف په دنیا کښې علاج شوے دے بلکه په آخرت کښې به دَ دے نه زیات دَ دوی علاج وی ځکه چې) بے شکه الله تعالیٰ دَ کافرانو دَ پاره سپکونکے سزا تیاره کړے ده۔ بیا چه کله تاسو مونځ (دَ یرے) ادا کړئ نو (په زړه طریقه) دَ الله تعالیٰ په یادو کښې مشغولیږئ په ولاړے هم او په ناستے هم او په ملاستے هم (یعنی په هر حالت کښې حتّٰی چې عینِ دَ جنګ په وخت کښې هم دَ الله ذکر جاری ساتئ په زړه سره هم او دَ شرعی احکامو په منلو سره هم چې دغه هم په ذکر کښې داخل دی۔ په جنګ کښې دَ خلافِ شرع څه کار کولو نه ځان ساتئ، غرض دا دے چې مونځ ختم شو خو ذکر بانده دے) بیا چه کله تاسو مطمئن شئ (یعنی سفر ختم کړئ مقیم شئ، او دَ غه شان دَ یرے ختمیدو نه پس بے یرے شئ) نو مانځه لره دَ (اصلی) قاعدے موافق

کوئ (یعنی قصر او په مانځه کښې تلل وغیره اوس مکوئ ځکه چه دغه خو د یو عارض وجه روا شوی وو) یقیناً مونځ په مسلمانانو فرض دے او په وخت پورے تړلے شوے دے (لیس د فرض والي په وجه ئے ادا کول ضروری شو، او د وخت سره د خاص کیدو په وجه ئے په وخت کښې ادا کول ضروری شو. په دے وجه په شکل صورت کښې ئے څۀ لږه تبدیلی اوکړے شوه، خو بیا هم د مانځه مقصودی صورت هم هغه اصلی صورت دے، پس چه سبب ختم شو نو د مانځه د اصلی صورت حفاظت لازمی شو) او بے همتی مکوئ د دے مخالف قوم په ورپسے کیدو کښې (ځکه چه د دے ضرورت دے) او که تاسو د (زخمونو نه) په تکلیف کښې اخته یئ (نو رغۀ او شو) هغه هم په درد کښې اخته دی لکه تاسو چه په درد کښې اخته یئ (نو هغوی ستاسو نه زیات قوت نه لری بیا یره د څۀ ده) او (ستاسو کښې یو زیاتے د دوی نه دا دے چه) تاسو د الله د طرف نه د داسے څیزونو اُمید ساتئ چه دغه خلق (د هغې) اُمید نه ساتی (یعنی ثواب، نو د زړۀ په قوت کښې تاسو زیات شوئ او د بدن په کمزورئ کښې یو شان نو تاسو لره زیات چُست کیدل پکار دی) الله تعالیٰ لوئے علم والا دے (هغۀ ته د کفارو کمزورے زړۀ او کمزورے بدن معلوم دے) لوئے حکمت والا دے (ستاسو د برداشت د طاقت نه زیات حکم ئے در ته او نه فرمائیلو) -

## مَعلومَات او مَسئلے

**د ایاتو نو تړون**

بره د جهاد او د هجرت ذکر وُه او په غالبو حالاتو کښې د جهاد او هجرت د پاره د سفر کولو ضرورت وی، او په داسے سفر کښې د مخالف د طرفه ویره هم اکثر وی، په دے وجه د سفر او ویرے په رعایت سره چه په مانځه کښې کومے خاصے اسانئ ورکړے شوے وے د هغې ذکر فرمائی -

**د سفر او قصر حکمونه**

مسئله: کوم سفر چه د درے منزلو (اته څلویښت میلونو) نه کم وی په هغې سفر کښې مونځ پوره کولے شی - د قصر مونځ به نشی کولے -

**مسئله:-** او کله چه سفر ختم کړی منزل ته اورسی نو که هلته ئې اراده د پنځلسو ورځو نه د کمو پاتې کیدو وه بیا هم مسافر دے - څلور رکعته فرض موځ به دوه رکعته کوی - او دیته قصر وائی - او که د پنځلسو ورځو یا د زیاتو پاتې کیدو اراده ئې وه په یو کلی کښې نو هغه به ئې وطن د اقامت شی هلته به قصر نه کوی بلکه اصلی وطن پشان پوره موځ به کوی -

**مسئله:** قصر صرف د درے وختونو په فرض مانځه کښې دے - د ما ښام او سحر په مانځه کښې او په سنتو او وترو کښې نیشته -

**مسئله:** په سفر کښې که یره نه وی خو هم به قصر موځ کوی -

**مسئله:** بعضے خلق د پوره مانځه پځائې په قصر مانځه کولو کښې په زړه کښې د ګناه وسوسه پیدا کوی دا صحیح نه ده - ځکه چه قصر هم د شریعت حکم دے نو د شریعت په حکم منلو کښې ګناه نه وی بلکه ثواب وی -

**مسئله:** په آیات کښې دی: وَاِذَا كُنْتَ فِيْهِمْ فَاَقَمْتَ لَهُمُ الصَّلٰوةَ: (یعنی کله چه تاسو په دوی کښې تشریف فرمایئ) د دے نه دا نه دی ګڼړل پکار چه کوم نن دے اوس د یرے د مانځه حکم باقی پاتې نه شو ځکه چه د دوی ذات مبارک اوس په مونږ کښې موجود نه دے - او دا شرط د هغې وخت په اعتبار سره بیان شوے دے ځکه چه د نبی په موجودګئ کښې بل سړے بلا عذره امام نه شی جوړیدے د دوی نه پس اوس چه څوک امام وی هغه د دوی قائم مقام دے، او هغه به د یرے موځ قوم له کوی، د ټولو اماموں په نزد د یرے د مانځه حکم د دوی نه پس هم جاری دے منسوخ شوے نه دے -

**مسئله:** لکه د بنی آدم نه د یرے په وخت کښې چه د یرے موځ کول جائز دی دغه شان که د منزری یا اژدها وغیره یره وه او د مانځه وخت تنګیده نو دغه وخت هم جائز دے -

**مسئله:** په آیات کښې ئې د دواړو ډلو د یو یو رکعت کولو ذکر کړے دے د دویم رکعت کولو طریقه په حدیث کښې راغلے ده چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم هم کله په دوه دوه رکعتونو باندے سلام او ګرځاوه نو دواړو ډلو خپل یو یو رکعت ځان ځانله او کړو - نور تفصیل په احادیثو کښې دے -

إِنَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ ٱلنَّاسِ

بے شکه موږ نازل کړے تا ته کتاب د رښتونے چه ته انصاف اوکړے په خلقو کښے

بِمَآ أَرَىٰكَ ٱللَّهُ ۚ وَلَا تَكُن لِّلْخَآئِنِينَ خَصِيمًا ﴿۱۰۵﴾

په هغه څه چه خودلی دی تا ته الله - او ته مه کیږه د ټګی کونکو د طرف نه جګړه کونکے -

وَٱسْتَغْفِرِ ٱللَّهَ ۖ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿۱۰۶﴾ وَ

او بخښنه غواړه د الله نه - بے شکه الله بخښونکے والا مهربان دے - او

لَا تُجَٰدِلْ عَنِ ٱلَّذِينَ يَخْتَانُونَ أَنفُسَهُمْ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ

جګړه مه کوه د هغوی د طرف نه چه په زړونو کښے ټګی لری - الله نه

لَا يُحِبُّ مَن كَانَ خَوَّانًا أَثِيمًا ﴿۱۰۷﴾ يَسْتَخْفُونَ مِنَ

خوښوی هغه څوک چه ټګی گناهګار وی - شرمیګی د

ٱلنَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ ٱللَّهِ وَهُوَ مَعَهُمْ إِذْ

خلقو نه او نه شرمیګی د الله نه او هغه د دوی سره دے کله چه

يُبَيِّتُونَ مَا لَا يَرْضَىٰ مِنَ ٱلْقَوْلِ ۚ وَكَانَ ٱللَّهُ بِمَا

مشورے کوی د شپے د هغې خبرے چه الله پرے راضی نه دے - او څه چه دوی

يَعْمَلُونَ مُحِيطًا ﴿۱۰۸﴾ هَٰٓأَنتُمْ هَٰٓؤُلَآءِ جَٰدَلْتُمْ

کوی ټول د الله په قابو کښے دی - آورئ تاسو خلق جګړه کوئ د

عَنْهُمْ فِى ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا فَمَن يُجَٰدِلُ ٱللَّهَ عَنْهُمْ

دوی د طرف نه د دنیا په ژوند کښے - بیا به څوک جګړه اوکړی د دوی د پاره د الله سره

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَمْ مَّنْ يَّكُوْنُ عَلَيْهِمْ وَكِيْلًا ﴿١٠٩﴾ وَمَنْ

د قيامت په ورځ يا څوک به وی د دوی کارساز - او څوک چې

يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللّٰهَ

وکړی گناه يا د خپل ځان سره بد اوکړی بيا د الله نه بخښنه اوغواړی

يَجِدِ اللّٰهَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿١١٠﴾ وَمَنْ يَّكْسِبْ اِثْمًا فَاِنَّمَا

نو بيا به مومی الله لره بخونکے مهربان - او څوک چې اوکړی گناه نو کوی

يَكْسِبُهٗ عَلٰى نَفْسِهٖ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿١١١﴾

د خپل ځان په حق کښې - او الله په هر څه پوهه حکمت والا دے -

وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْۗـــَٔةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ بَرِيْۗــــــًٔـا

او څوک چې کوی خطاء يا گناه بيا تهمت او لگوی په چا بے گناه

۱۶ ع ۸ ۱۳ فَقَدِ احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿١١٢﴾ ع وَلَوْلَا فَضْلُ

د هٔ پخپل سر بار کړه طوفان او گناه ښکاره - او که نه وے پتا د الله

اللّٰهِ عَلَيْكَ وَرَحْمَتُهٗ لَهَمَّتْ طَّاۗىِٕفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ

فضل او د هغهٔ رحمت نو قصد کړے وه د دوی نه يوے ډلے چې

يُّضِلُّوْكَ ۭ وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَضُرُّوْنَكَ

تا لوه بے لارے کړی - او نه بے لارے کوی مگر خپل ځانونه او ستا هيڅ

مِنْ شَيْءٍ ۭ وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ

نه شی ورانولے - او الله نازل کړو پتا کتاب او حکمت

وَعَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ۚ وَكَانَ فَضْلُ اللّٰهِ

او تا ته ئې اوخودې هغه خبرې چه تا ته نه وې معلومې - او د الله فضل په

عَلَيْكَ عَظِيمًا ﴿۱۱۳﴾

تا باندې ډیر لوئې دې

## لنډ تفسیر

بې شکه مونږ تا ته دا کتاب اولیږلو چه (په دې سره) د واقعې مطابق فیصله کوې کوم چه الله تعالیٰ (د وحې په ذریعه سره) تا ته (اصل حال) خودلې دې (هغه وحې داده چه په دا قضیه کښې بشیر غل دې او قبیله بنو اُبَیرِق چه د دۀ حمایت کوی دروغژن دی) او (هرکله چه اصل حال معلوم شو نو) ته د دې خیانت کوُنکو د طرفدارئ خبره مه کوه (لکه چه د بنی اُبَیرِق اصل خواهش داوه، لکه چه په دویمه رکوع کښې راځي: لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ؛ مګر تا سو دا سې کړی نه وه، بلکه د دې حملې نه ستا په دې عمل نه کول هم معلومیږی، ځکه چه حاصل ئې دادې چه د الله فضل ته د غلطئ نه بچ کړې، چه په دې کښې د هرې غلطئ نفی اوشوه، او د منع کولو دا نه لا زمیږی چه کوندې دغه کار په تیروخت کښې واقع شوې وه - بلکه اصل فائده د منع داده چه د آئنده دپاره ورته حقیقت د حال معلوم شی او د کولو نه ئې منع شی - نو مطلب د منع دا شو چه لکه څنګه دې ترا وسه پورې طرفداری نه ده کړې آئنده هم مکوه' او دا انتظامات ټول د یو نبی د معصوم سا تلو دپاره دی - او په آیات کښې ئې ټولو ته خیانت کوُنکی اُووې حال دادې چه ټول خیانت کوُنکی نه وُو - دا ځکه چه کوم خیانت کوُنکی نه وُو نو د خیانتد ارطرفداری ئې کوله نو په دې وجه خیانت کونکی مقرر شو) او (د خلقو په وړاندې سره په وجه د نیک ګمان چه تاسو بنی اُبَیرِق دیندار ګنړلی دی، اګرچه دا سې ګنړل ګناه نه دې لیکن چونکه په دې کښې دا احتمال وه چه ستا سو په دې فرمائیلو سره اَهلِ حق

خپل حق پاتے کړی، نو داسے اوشوه، رفاعه خاموش کینیاستو، نو په دے وجه دا کار نامناسبه اوشو نو ځکه) ته استغفار کوه (ځکه چه ستا سو شان ډیر لوئے وے دو مره کار هم ستا سو د پاره د استغفار قابل دے) بے شکه الله تعالیٰ لوئے مغفرت کوونکے لوئے رحمت والا دے، او تا سو د دے خلقو د طرفه د څهٔ جواب ورکولو خبره مکوئی (ځکه چه دے خلقو ستا سو نه غوختنه) کوم چه (د خلقو خیانت او نقصان کوی او په اعتبار د وبال او ضرر سره په حقیقت کښے) خپل نقصان کوی، بے شکه الله تعالیٰ داسے سړے نه خوښوی (بلکه بد ئے ګڼړی) کوم چه لوئے خیانت کوونکے وی (ځکه چه لږ خیانت کوونکی لره هم نه خوښوی، لیکن د بشیر لوئے خیانت کوونکے ښکاره کول مقصود وی نو ځکه ئے صیغه د مبالغے راوړے ه) د کومو خلقو چه دا حال دے چه (خپل خیانت خو) د بنی آدمو نه (شرمیګی) پټوی ئے او د الله تعالیٰ نه نهٔ شرمیګی حال دا دے چه هغه (هر وخت) داوخت (هم) د دوئ سره دے کله چه دے د الله د رضا خلاف د خبرو متعلق تد بیرونه کوی او الله تعالیٰ د دوی ټولو عملو نو لره بشپړه (علمی) احاطه کښے راګیر کړی دی (د بشیر وغیره په حمایت کښے چه کوم خلق د محلے جمع شوی او راغلی وو دوی ته وائی چه) تاسو داسے یئ چه تاسو د دنیا په ژوند کښے خو د دوی د طرفنه مخبرے اوکړے د جواب ورکولو په غرض پسے را او وائی چه) د خدائے تعالیٰ په مخکښے د قیامت په ورځ د دوی د طرفنه څوک جواب ورکړی، هغه به څوک سړے وی چه د دوی کار جوړه وکے وی (یعنی نه به څوک زبانی جواب ورکولے شی او نه به عملی د دوی مقدمه برابر ولے شی) او (کچرے دے خیانت کوونکو اوس هم توبه کړے وے د شریعت د قاعدے موافق نو معافی به ورته شوے وه ځکه چه زموږ قانون دا دے چه) کوم سړے څه (د حد نه تیریدونکے بدی اوکړی (یعنی چا ته نقصان اورسوی) یا (صرف) د خپل ځان نقصان اوکړی (یعنی داسے ګناه اوکړی چه اثر ئے نورو ته نه رسی او) بیا د الله تعالیٰ نه (د شریعت د قاعدے موافق) معافی اوغواړی (چه په دے کښے د بنده ګانو حقوق ادا کول یائے معاف کول هم داخل دی) نو دے به الله تعالیٰ لره لوئے بخونکے بیا مومی (رغا ځا ګناه ګار ا نو لره د دے کوشش کول پکار دی ځکه چه) کوم سړے څهٔ د ګناه کار کوی نو دے فقط د خپل ځان د پاره کوی او الله تعالیٰ لوئے علم والا دے (د ټولو د ګناهو نو هغه خبر دے)

لوئے حکمت والا دے ( مناسب سزا تجویز کوی ) او ( دا خو پخپله د ګناه کولو انجام شو او څوک چه په نورو تهمت او لګوی ځکه چه دے حال واوړئ چه ) کوم سړے څۀ وړوکے ګناه او کړی یا لوئے ګناه بیا ( پخپله ) ئے د دے چه پخپله ورلره توبه وبیستل پکار وُو د ۀ دا سے او کړه چه ) د دے ( ګناه ) تهمت ئے په یو بے ګناه او لګاوه پس د ۀ ډیر لوئے بهتان او ښکاره ګناه پخپل ځان ( سر ) د پاسه بار کړو ( لکه بشیر چه او کړه چه پخپله ئے غلا او کړه او د یو نیک بخت بزرګ سړی لبید په سر ئے د غه غلا تهمت او لګاوه ) او که ( په دے مقدمه کښے ) پتا ( سوراے محمد صلے الله علیه وسلم ) د الله فضل او رحمت نه وے ( کوم چه همیشه پتا سو باندے وی ) نو د وی ( رچالاکو خلقو نه یو ے ډلے ) خو تاسو لوه په غلطئ کښے د غورزَ ولو اراده کړے وه ( لیکن د خدائے په فضل سره د دوی د سُولو لو شو و خبرو پتا سو څۀ اثر او نه شو او آئنده به در باندے هم نه کیږی لکه چه فرمائي ) او دوی ( رچه تا لره ) په غلطئ کښے نه شی غورزَ ولے لیکن ( په دے اراده سره ) خپل ځانونه ( په ګناه کښے اخته کوی او د عذاب لائق کوی ئے ) او تاسو ته یوه ذره ( د دے قسمه ) ضرر نه شی رسَولے او ( تاسو ته په غلطئ سره ضرر رسول کله ممکن دی حال کله چه ) الله تعالیٰ پتا باندے کتاب او د علم خبرے نازلے کړی دی ( چه د دے په یوه حصه کښے د دے قصے خبر ئے هم درکړو ) او تا ته ئے هغه د فائدے ( او لوئے ) خبرے خودلے دی چه تا سو ( د مخکښے نه ) نه پیژندے او پتا سو د الله تعالیٰ لوئے فضل دے۔

# مَعلومَات اومَسَئلے

## د آیاتو تړون

په ده د ظاهری کافرانو د معاملو په ضمن کښے څو ځایه د منافقانو ذکر راغلے دے چه کفر په دواړو کښے پوشان دے او س وړاندے د بعضے منافقانو د یو خاص قصے متعلق بیان ذکر وشے ( بیان القرآن )

## د آیاتو شانِ نزول

دا ذکر شوی او ووه آیاتو نه د یو خاص واقع متعلق دی۔ لیکن د قرآن د عام اسلوب مطابق.

کوم هدایات چه په دے سلسله کښے ورکړے شوی دی هغه د دے واقعے سره خاص نه دی بلکه د ټولو موجوده او آئنده راتلونکو مسلمانانو د پاره عام دی او ډیر بنیادی او فروعی مسئلے دی۔

اول واقعه واورئ بیا په دے کښے چه کوم هدایات او مسئلے دی په هغوی باندے غور او کړئ۔

واقعه داده چه په مدینه کښے یو خاندان د بنو اُبَیرِق په نوم سره مشهور وو۔ په دوی کښے یو سړے وُه چه د ترمذی او حاکم په روایت کښے ئے نوم بَشِیر ذکر دے، او د بغوی او ابن جریر په روایت کښے ئے نوم طُعمه ذکر دے دهٔ د حضرت قتادهؓ بن نعمان د تره رفاعه رضی الله عنه په کور کښے کنډرا وکړه او غلا ئے ترے او کړه۔

د ترمذی په روایت کښے دا هم دی چه دا سړے په حقیقت کښے منافق وُه په مدینه کښے اوسیده د صحابوؓ په سپکاوی کښے به ئے اشعار لیکل او په بردو نومونو سره به ئے هغه خور وُل۔

او د غلا صورت داسے او شو چه د حجرت په اوّله زمانه کښے به عامو مسلمانانو په لوګه تنده او تنګئ سره وخت تیرَ وَلو او ډ دوی عام خوراک د وَرِ بشو اوړه وُو، یا کجورے یا د غنمو وړه چه ډیر کم به ملاویده۔ او په مدینه کښے به وُو هم نه۔ د شام د ملک نه چه به کله راغلل نو خلقو به د میلمنو د پاره یا د څهٔ خاص ضرورت د پاره اخستل۔ حضرت رفاعهؓ هم دغه شان د غنمو اُوړه اخستی وُو او په یوه بورئ کښے ئے ایخودی وُو په دے کښے څهٔ وسله وغیره ئے هم ایخودے وه او په یوه وړوکی شان کمره کښے ئے محفوظا ایخودی وُو۔ ابن اُبَیرِق بشیر یا طعمه دغه ضحیٰ کړی وُو نو کنډره ئے پسے او کړه او دا بورئ ئے اُووِیسته۔ حضرت رفاعهؓ چه سحر دا او لیدل نو خپل وراره قتادهؓ له راغے او د دے غلا نه ئے خبر کړو۔ ټولو په محله کښے تلاشی شروع کړه، بعضِ خلقو اووے چه نن شپه مونږ لیدلی وُو چه د بنو اُبیرق په کور کښے اُور بلیده زمونږ داخیال دے چه دوی به ډوډئ پخولے۔ بنو اُبیرق ته چه هر کله د راز ښکاره کیدو خبر ملاؤ شو نو په خپله راغلل او اوُئے وے چه دا کار د لبید بن سهل دے۔

حضرت لبیدؓ خو مونږ پیژنو چه مخلص مسلمان او نیک بزرګ دے - دے چه کله خبر شو نو توره ئے اوچته کړه راغے او وئیل چه غلا او س تاسو په سر لګئ او س به زه دا توره تر هغه وخته پورے نه کږم تر څو چه دا غلا حقیقت نه وی ښکاره شوے -

بنو ابیرق ورته په پټه اوئیل چه ته بے فکره اوسه ستا نوم هیڅوک نشی اخستے او نه دا کار ستا کیدے شي - د بغوی او ابن جریر په روایت کښے دلته دا خبره ده چه بنو ابیرق غلا په یو یهودی ور پورے کړه او دا هوښیاری ئے اوکړه چه د اوړو په بورئ کښے ئے لږ شان سورے اوکړو او د رفاعه د کوره تر یهودی د کوره پورے نښے د اوړو بیا مونده شوے د شهرت کیدو نه پس غلا شوے وسله او زغره ئے هم د یهودی په کور کښے کیخودے - او د تلاشئ په وخت کښے د هغه کره بیا مونده شوے - یهودی قسم اوخوړ چه دا خو ابن ابیرق ایخودی دی -

د ترمذی د روایت او د بغوی د روایت تطبیق داسے کیدے شي چه بنو ابیرق اول غلا په لبید تپلے وی خو بیا هر کله چه خبره نه جوړیده نو په یهودی ئے ور اړوله وی - په هر حال او س معامله د یهودی او بنو ابیرق جوړه شوه -

اخوا د حضرت قتادهؓ او رفاعهؓ په مختلفو صورتونو سره دا ګمان غالب شوے وه چه دا کار روائی د بنو ابیرق ده - حضرت قتادهؓ د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو د غلا د واقعے او د تفتیش په سلسله کښے په بنو ابیرق ئے د غالب ګمان ذکر اوکړو -

بنو ابیرق چه خبر شو نو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو د حضرت رفاعهؓ او قتادهؓ نه ئے شکایت اوکړو چه بغیر د شرعی ثبوت نه غلا په مونږ راړوه وی حال دا دے چه غلا شوے مال د یهودی په کور کښے ښکاره شوے دے - تاسو ئے منع کړئ چه زمونږ په سر ئے نه راتپی او دعوه دے په یهودی اوکړی -

په ظاهری حالاتو او ښنو سره د نبی کریم صلے الله علیه وسلم هم دے

طرفته میلان راغلی وه چه دا کار د یهودی دے ۔ په بنی اُبیرق الزام صحیح نه دے ۔ تر دے چه د بغوی په روایت کښې دی چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم اراده او شوه چه په یهودی د غلا سزا جاری کړے شی او لاس ترے پرے کړے شی ۔

اخوا چه هرکله حضرت قتادهؓ د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو نو دوی ورته اوفرمائیل چه تاسو بغیر د دلیل او ثبوت نه په یو مسلمانه کورنۍ د غلا الزام لګوئ؟ حضرت قتادهؓ په دے معامله ډیر خفه شو او افسوس ئے اوکړه چه کاش په دے معامله کښې ما حضورؐ ته هډو څه خبره نه وے کړے ۔ اګر چه ځما مال هم تلے وے ۔ او حضرت رفاعهؓ چه هم معلومه شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم داسے وئیلی دی نو دوی هم صبر اختیار کړو او او ئے وے: وَاللّٰهُ الْمُسْتَعَانُ : ۔

په دے معامله لا څۀ وخت نه وه تیر شوے چه د قرآن کریم یو پوره رکوع په دے باره کښې نازله شوه او نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته ئے د واقعے حقیقت ښکاره کړو او د داسے معاملو متعلق عام هدایات او خود لے شو ۔

قرآن کریم د بنو اُبیرق غلا ښکاره کړه او یهودی ئے بری کړو ۔ نو بنو اُبیرق مجبوره شو او غلا کړے مال ئے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر کړو ۔ او دوی حضرت رفاعهؓ ته واپس کړو او حضرت رفاعهؓ اوس دغه ټول وسله د جهاد د پاره وقف کړه ۔ دے خوا چه کله د بنو اُبیرق غلا ښکاره شوه نو بشیر بن ابیرق د مدینے نه اوتختید او مکے ته لاړو او د مشرکانو سره ملاؤ شو ۔ که دے اول منافق وه او س ښکاره کافر شو ۔ او که اول مسلمان وه نو اوس مرتد شو ۔

په تفسیر بحرِ محیط کښې دی چه د الله او د رسولؐ د مخالفت وبال بشیر بن ابیرق په مکه کښې هم په آرام پاتے نه کړو ۔ د کومے ښځے په کور کښې چه دے پاتے کید و هغه ته د دینه خبر شوه نو هغے د کوره او ویستلو ۔ دغه شان ځائے پځائے ګرځیده چه آخر د یو بل سړی په کور کښې ئے کنډو کا وه چه دیوال

پورے د پاسه راپریوت او لاندے ترے مړ شو۔

ټول دے ځائے پورے د واقعے تفصیل وُه او س د دے متعلق په قرآنی ارشاداتو باندے غور اوکړئ۔

په اولنی آیات کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د غلا د واقعے اصل حقیقت ښکاره کوی فرمائی چه مونږ پتا باندی قرآن او وحی ځکه نازله کړی دی چه الله تعالیٰ کوم علم او پوهه تا لره درکړے ده د هغے مطابق فیصله کوے۔ او د خیانت کوو یعنی بنوابیرق طرفداری نه کوے۔ اګرچه د ظاهری حالاتو او دلیلونو په بنا باندے د غلا په معامله کښے ستا میلان یهودی طرف ته ځځه ګناه نه وه۔ لیکن د واقعے خلاف وُه په دے وجه ئے په دویم آیات کښے دوی ته د استغفار حکم ورکړو۔ چه د انبیاؤ علیهم السلام شان ډیر اوچت دے د دوی نه د ومره خبره هم ښه نه ده۔

په دریم آیات (۱۰۷) کښے بیا د دے تاکید فرمائی چه د خیانت کوونکو د طرف نه جواب مه ورکوه ځکه چه دوی د الله تعالیٰ خوښ نه دی۔

په څلورم آیات (۱۰۸) کښے د دے خیانت کوونکو بد حال او بے وقوفئ بیان دے۔ چه د اخلق د ځان پشان خلقو نه شرمیږی او غلا پټوی او د الله تعالیٰ نه نهٔ شرمیږی چه هر وخت د دوی سره دے او د دوی ځپو کارونو۔ او خاص بیا په دے واقعه کښے چه کله دوی مشوره اوکړه او دا رائے ئے قائم کړلو چه غلا په یهودی د رواچوو او د قتادهٔ او رفاعهٔ شکایت په نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته اوکړو۔ چه بے وجه په مونږ باندے الزام لګوی او دا درخواست به دوی ته اوکړو چه د یهودی په مقابله کښے زمونږ حمایت اوکړی۔

په پنځم آیات (۱۰۹) کښے د بنوابیرق مدد کوونکو او حمایت کوونکو ته خبر دارے دے چه په دنیا کښے خو به تاسو د دوی حمایت اوکړئ خو معامله دلته نه ختمیږی، په قیامت کښے چه هر کله د الله تعالیٰ په عدالت کښے پیش شی هلته به ئے څوک حمایت کوی؟ په دے آیات کښے دوی ته ملامت هم دے او د آخرت یره ئے ورته ورلاندے کړه د دے خپل کار نه د واپس کیدو او توبے ترغیب هم دے۔

په شپږم آیات (۱۱۰) کښې دَ قرآن کریم دَعام حکیمانه طرز مطابق مجرمانو ګناه ګارانو له دَ نا امیدۍ نه دَ بچ کولو دَ پاره فرمائی - چه د یو ډیر لوئے ګناه وی او که لوئے هر کله چه ګناه ګار الله تعالیٰ ته توبه او استغفار کوی نو الله تعالیٰ لره غفور او رحیم مُومی - په دے کښې هغو خلقو ته دَ کوم نه چه دا ګناه شوے وه دَ دے خبرے ترغیب دے چه که اوس هم واپس شی او په زړه سره توبه اوکړی نو هیڅ نه دی وُران الله تعالیٰ به قبول معاف کړی -

په اوومه آیات (۱۱۱) کښې دا هدایت شوے دے چه که دا خلق اوس هم توبه نه اوُباسی نو دَ الله تعالیٰ یا دَ هغهٔ دَ رسول[ع] یا دَ مسلمانانو هیڅ نه وُرانیږی دُ بال ئے پخپله په دوی باندے دے -

په اتم آیات (۱۱۲) کښې یوه عامه ضابطه ارشاد فرمائی چه کوم سړے پخپلهٔ جُرم اوکړی او بیا دغه خپل جُرم په یو بل بے ګناه پورے اوُتپی (لکه په دے واقعه کښې چه بنوابیرق غلا پخپله اوکړه او الزام ئے په حضرت لبید[2] یا په یهودی اولګاوه) نو دهٔ ډیر لوئے بهتان او بنکاره ګناه پخپل ځان باندے بار کړو -

په نهم آیات (۱۱۳) کښې ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب فرمائیلے دے چه که دَ الله تعالیٰ فضل او رحمت پتا باندے نه وے چه دَ وحئ په ذریعه ئے تا ته دَ واقع حقیقت اوخودو، نو دے خلقو به ته په غلطئ کښې اخته کړے وے لیکن دَ الله تعالیٰ فضل او رحمت ستا سره دی په دے وجه دوی هڅه تا لره په غلطئ کښې نه شی اچولے بلکه پخپله په ګمراهئ کښې اخته کیږی او تا ته یوه ذرّه هم نقصان نه شی رسولے، ځکه چه الله تعالیٰ په تا کتاب او دَ پوهے خبرے نازلے کړی دی کومے چه تا ته نه وے معلومے -

نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دَ اجتهاد کولو حق حاصل وُه

إِنَّآ أَنزَلْنَآ إِلَيْكَ ٱلْكِتَٰبَ بِٱلْحَقِّ الخ: دَ دے آیات نه پنځه مسئلے ثابتے شوے - یوه دا چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته په داسے مسئلو کښے پکومو کښې چه دَ قرآن کریم واضح نص نه وی راغلے پخپلے رائے سره دَ اجتهاد کولو حق حاصل وُه او دَ مهمو نو په فیصلو کښې به دوی ډیرے فیصلے پخپل اجتهاد سره هم فرمائیلے - - -

دوېمه دا خبره معلومه شوه چه د الله تعالیٰ په نزد اجتهاد او رائے هغه معتبره ده کومه چه د قرآن اُصولو او حکمونو نه را ویستلے شوے وی- خالص خیال او رائے معتبره نه ده، او نه دے ته په شریعت کښے اجتهاد ویلے شی.

دریمه دا خبره معلومه شوه چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم اجتهاد د نورو اماما نو مجتهدانو پشان نه وه- پکوم کښے چه د غلطئ او خطاء احتمال همیشه باقی وی- بلکه کله چه به دوی څهٔ فیصله پخپل اجتهاد سره فرمائیله نو که څهٔ غلطی به پکښے کیده نو الله تعالیٰ به پرے دوی خبردار کړل او فیصله به ئے صحیح او د حق مطابق پرے کوله- او کله چه به دوی یو فیصله پخپل اجتهاد سره اوکړه او د الله تعالیٰ د طرفه به د دے خلاف څهٔ شے را نغے نو دا د دے نښه وه چه دا فیصله د الله تعالیٰ په نزد غوره او صحیح ده-

څلورمه خبره دا معلومه شوه چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه به د قرآن نه څه اِزده کول دا به ورته الله تعالیٰ خودلی وُو په دے کښے د غلط فهمئ څه امکان نه وُه- په خلاف د نورو عالمانو او مجتهدانو نه چه د دوی په قرآن باندے پوهه د الله تعالیٰ طرف ته داسے نه شی منسوب کولے چه الله تعالیٰ دوی ته خودلے دے- لکه چه پدے ایات کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم متعلق : بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ : راغلے دے- په دے وجه هر کله چه یو سړی فاروق اعظم رضه ته دا اُووے : فَاحْكُمْ بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ : نو هغوئی اُورټه چه دا خصوصیت د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دے-

پنځمه مسئله دا معلومه شوه چه د دروغو د مقدمے او د دروغو د دعوے پیروی یا وکالت کول یائے تائید او حمایت کول هو ل حرام دی-

## د توبے حقیقت

او د ایات (۱۱۰) نه یعنی: وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا اَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهٗ الخ: نه دا معلومه شوه چه گناه خواه متعدی وی او که لازمی یعنی د بندګانو د حقونو سره ئے تعلق وی او که د الله تعالیٰ د حقونو سره هر قسم گناه په توبه او استغفار سره معاف کیدے شی- البته د توبے او استغفار حقیقت پیژندل ضروری دی- محض په ژبه سره د

:اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَاَتُوْبُ اِلَيْهِ: وئیلو نوم تو به او استغفار نه دے- په دے وجه
دَ عالمانو په دے باندے اتفاق دے چه کوم سړے په یو ګناه کښے اخته وی، او
په دے خپیمانی هم نه کوی او بیا تے کوی ئے هم نه او بیا ئے دَ آئنده دَ پاره
دَ بیا تے کولو قصد هم نه وی کړے او په دے حالت کښے په ژبه سره اَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ
وائی نو دا دَ توبے سره مذاق کول دی۔

لنډه دا چه دَ توبے دَ پاره درے څیزونه ضروری دی- یو په تیرو
ګناهونو باندِ خپیمانه کیدل، دویم یکوم ګناه کښے چه اخته وی هغه یَد غه
دخت پریخودل، او دریم دا ئینده دَ پاره دَ ګناه نه دَ بچ کیدو پخه اراده
کول، البته دَ کومو ګناهونو تعلق چه دَ بندګانو دَ حقونو سره دے
دغه دَ هغوی نه معاف کول یا دَ هغوی حقونه ادا کول هم دَ توبے شرط دے۔

| دَ خپل ګناه الزام په بل لګول دَ دوچنده عذاب سبب دے | او دَ ایات (۱۱۲) یعنی دَ: وَمَنْ يَّكْسِبْ خَطِيْٓئَةً اَوْ اِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهٖ الخ: نه معلومه شوه چه |
|---|---|

کوم سړے ګناه پخپله او کړی او الزام ئے په بل به ګناه سړی او لګوی نو دهٔ
خپل ګناه دوچنده او ډیر سخت کړو او دَ سخت عذاب لایق شو- یو دَ خپل
اصل ګناه عذاب دویم دَ دروغو او بهتان سخت عذاب۔

| دَ قرآن او سنت حقیقت | په ایات (۱۱۳) یعنی: وَاَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ الخ: کښے ئے دَ کتاب |
|---|---|

سره حکمت هم داخل کړو دے طرف ته ئے اشاره کړے ده چه حکمت کوم چه
نوم دے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ سنتو او تعلیما تو، دا هم دَ الله تعالیٰ
دَ طرفه نازل کړی شوی دی- فرق صرف دا دے چه دَ دے الفاظ دَ الله تعالیٰ
دَ طرف نه نه دی، په دے وجه په قرآن کښے نه دی داخل، او مَعْنیٰ دَ دے او دَ قرآن
دَ دواړو دَ الله تعالیٰ دَ طرفه دی- په دے وجه په دواړو عمل کول واجب
دی۔

دَ دے نه دَ هغے کلام حقیقت معلوم شو کوم چه بعضے فقهاؤ لیکلے دے چه
دَ وحیٔ دوه قسمونه دی مَتْلُو (کومه چه تلاوت ئے کولے شی) او غیر مَتْلُو (کومه
چه نشی تلاوت کولے) وحیٔ مَتْلُو دَ قرآن نوم دے- چه معانی او الفاظ ئے دواړه

د الله تعالیٰ د طرف نه دی- او غیر متلو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د حد یثو نوم دے چه الفاظ ئے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم دی او معانے ئے د الله تعالیٰ د طرف نه دی-

**د نبی کریم صلے الله علیه وسلم علم د ټول مخلوقات نه زیات دے**

دویمه مسئله د: عَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ الخ: نه دا ثابته شوه چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم علم د الله تعالیٰ د علم پشان په ټول کائنات باندے محیط نه دٔه لکه بعض جاهلان چه وائی- بلکه څومره علم چه الله تعالیٰ ورکاوه هغه ورته ملا ویدٔ- البته دومره ده چه کوم علم ورکړے شوے وو هغه د ټول مخلوقات د علم نه زیات دے-

لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ

هیڅ خیر نیشته د دوی په اکثرو مشورو کښے مګر څوک چه وائی د صدقے کولو او یا

مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍ بَيْنَ النَّاسِ ؕ وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ

د نیک کار یا د صلح کولو په خلقو کښے - او څوک چه دا کار کوی د

ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۱۴﴾ وَ

الله د خوشحالے کولو د پاره نو مونږ به ورکړو دٔه له لوئے ثواب - او

مَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى

څوک چه مخالفت کوی د رسول ؐ نه پس د هغے چه ښکاره شوید دٔه ته نیغه لار

وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَ

او ځی د ټولو مسلمانانو د لار نه خلاف نو مونږ به حواله کړو دٔه له هغے طرف ته

ع ۱۷ ۱۴ نُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ؕ وَسَآءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾

چه دٔه اختیار کړے ده او او به غورزوو مونږ دٔه له دوزخ ته - او ډیره بده ځائے ته اورسید-

# لنډ تفسير

دَ عامو خلقو په اکثرو مشورو کښې خير (يعني ثواب او برکت) نه وي، هاں مګر کوم خلق چه داسې دي چه دَ (خير) خيرات يا دَ بل نيک کار يا دَ خلقو په مينځ کښې دَ اصلاح کولو ترغيب ورکوي (او دَ دې تعليم او ترغيب دَ پوره کولو او انتظام دَ پاره پټ تدبيرونه او مشورې کوي، يا پخپله دَ صدقې وغيره نورو ته پټ ترغيب ورکوي، ځکه چه بعض وخت پټ ورکول مصلحت وي، دَ دوي په مشورو کښې البته خير يعني ثواب او برکت دے) او کوم سړے چه دا کار کوي (يعني دَ دې کارونو ترغيب ورکوي) دَ الله تعالیٰ دَ رضا کولو دَ پاره (نه دَ مرتبې او شهرت په غرض سره) پس مونږ به دَه ته ډير زر لوئے اجر ورکړو۔ او کوم سړے چه دَ رسول (مقبول صلے الله عليه وسلم) مخالفت کوي پس دَ دې چه حق کار ظاهر شوے وه او دَ مسلمانانو (ديني) لار يا تے کوي په بله لاره ځي (لکه بشير چه مرتد شه حالانکه دَ اسلام حقوالے او دارنګې په دے خاص واقعه کښې دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ فيصلے حق والے پخپله دَه ته معلوم وَه او ښيا هم دے بد بختي او نيولو) نو مونږ به دَه لره (په دنيا کښې) څه چه دے کوي دَ هغې کولو ته پرېږدو او (په آخرت کښې) دَه لره به جهنم ته داخل کړو او هغه بد ځائے دے۔

# مَعلومَات اَو مَسئلے

| | |
|---|---|
| دَ يو بل سره دَ مشورو او مجلسونو آداب | ارشاد دے: لَا خَيْرَ فِيْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ: يعني دَ خلقو دَ يو بل سره په مشورو او تدبيرونو کښې چه |

دَ آخرت دَ فکر او په انجام باندې دَ غور کولو نه خالي وي محض دَ دُنيا دَ څو ورځو او وقتي فائدو دَ پاره وي هيڅ خير پکښې نيشته۔

وړاندې ارشاد فرمائي: اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ اَوْ اِصْلَاحٍۢ بَيْنَ النَّاسِ: يعني بدے مشورو او پټو خبرو کښې که څه دَ خير شے کيدے شي نو هغه دا دے، چه يو بل ته دَ صدقې خيرات ترغيب ورکړي، يا دَ نيکئ حکم اوکړي

یا د خلقو په مینځ کښې د صلح کولو د پاره مشوره کوی - په یو حدیث کښې ارشاد دے چه؛ د انسان هره یوه خبره د ده د پاره مُضِرّه ده بغیر د هغې کلام (یعنې خبرے) نه چه د الله ذکر وی یا په نیکو امر وی یا د بد و نه منع وی؛ -

د معروف معنیٰ دهٔ هر هغه کار چه په شریعت کښې ښهٔ گڼلے شی او چه په شریعت کښې معلوم وی، او د دے مقابل منکر دے یعنې هر هغه کار چه په شریعت کښې ناخوښه وی او په اهلِ شرع کښې ناشنا او نامعلوم وی -

امر بالمعروف د هرے یو نیکئ حکم او ترغیب لره شامل دے، چه په دے کښې د مظلوم امداد کول، حاجتمند و لره قرض ورکول، بے لارے شوی ته لار خودل وغیره ټول نیک کارونه داخل دی - او صدقه او د خلقو په مینځ کښې روغه را وستل هم اگر چه په دے کښې داخل دی لیکن دوی لره ئے په تخصیص سره جُدا ځکه بیان کړه چه د دے دواړو څیزونو نفع متعدی ده یعنې نورو ته رسی - او په دے سره د مِلّت اجتماعی ژوند برابریګی -

د ارنټه دا دواړه کارونه د خدمتِ خلق دوه خاص بابونه دی - یو[1] د الله مخلوق ته نفع رسول، دویم[2] د ضرر دفع کول یعنې خلقو لره د تکلیف او رنج نه بچ کول، صدقه د نفع رسولو یو اهم عنوان دے، او اصلاح بین الناس، د الله مخلوق لره د ضرر او نقصان نه د بچ کولو اهم عنوان دے - په دے وجه د تفسیر د جمهورو علماؤ قول دے چه دلته صدقه عامه ده چه زکوٰة او واجب صدقے په کښې هم شاملے دی او نفلی صدقے هم، او هره نفع چه چا ته اورسولے شی -

## د صُلح کولو فضیلت

د خلقو د یو بل په مینځ کښې د خفګانونو لرے کولو او د دوی په مینځ کښې د صُلح او موافقت پیدا کولو متعلق د نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشادات ډیر اهم دی - دوی[4] فرمائی:

آیا زهٔ تاسو ته داسے کار او نه ښایم چه د هغې درجه د روژے، مانځهٔ او صدقے ټولو نه غوره ده؟ اصحابو[3] عرض اوکړهٔ ضرور او ښایئ - دوی[3] اوفرمائیل چه دغه کار اصلاح ذات البین دے - یعنې چه د دوه وګړو په مینځ کښې خفګان پیدا شی نو هغه لرے کړل او صلح کول او فساد ختمول -

داردلته نبي کريم صلے الله عليه وسلم فرمائيلي دي چه : فَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ هِيَ الْحَالِقَةُ : "يعنې دَخلقو په مينځ کښې جګړه او فساد خرڅونکے دے" بيا ئې دَدے وضاحت داسے او فرمايه چه دا جګړه سَر نه خرَوي بلکه دَانسان دين خروي"

دَ آيات په آخر کښې ئې يو اَهَم مضمون دا ارشاد او فرمايه چه دا نيکئ صدقه او امر بالمعروف ، او اصلاح بين الناس هغه وخت معتبر او مقبول کيدے شي هرکله چه دا په اخلاص سره محض دَ الله تعالىٰ دَ رضا حاصلولو دَ پاره اوشي په دے کښې څه خپل نفساني غرض شامل نه وي۔

## اِجماع دَ اُمت حُجت دے

؛ وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسُوْلَ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى الخ : (آيات ۱۱۵) په دے آيات کښې ئې دَدوه ووځيزونو لوئے اجر بيان کړو او دَجهنم دَ ننوتو سبب ئې اوخودو۔ يو مخالفت دَرسولﷺ او دا ښکاره خبره ده چه دَ رسولﷺ مخالفت کفر او لوئے وبال دے۔ دويم په کوم کار چه ټول مسلمانان متفق وي هغه پريښودل او دَ دوئي نه خلاف څانله بَل لار اختيارَ ول۔ دَدے نه معلومه شوه چه اجماع دَ اُمت حُجت دے۔ يعنې لکه څنګه چه دَ قرآن او حديث په بيان کړو حکمونو باندے عمل کول واجب دي دغه شان دَ اُمت اتفاق چه په کوم شي باندے اوشي په هغې هم عمل کول واجب دي او دَدے مخالفت کول لوئے ګناه دے لکه چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم په يو حديث کښې ارشاد فرمائيلے دے : يَدُ اللهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ مَنْ شَذَّ شُذَّ فِي النَّارِ : "يعنې دَجماعت په سر باندِ دَ الله لاس دے او کوم سړے چه دَمسلمانانو دَجماعت نه جدا شو دے به جُدا جهنم ته اوغورزَوَلے شي"۔

دَامام شافعيؒ نه چا پوښتنه اوکړه چه آيا دَ اجماع دَ امت دَحُجت کيدو دليل په قرآن شريف کښې شته؟ دوئي دَ قرآن نه دَدليل معلومولو دَ پاره درے ورځے پوره دَ قرآن شريف تلاوت معمول جوړ کړو هره ورځ به ئې درے ځله ورځے او درے ځله دَشپے قرآن شريف ختمولو، په آخر کښې هم دا ذکر شوے آيات ئې په ذهن کښې راغے او دَ علمانو په مخ کښې بيان کړو۔ ټولو اقرار اوکړو چه په اجماع دَ اُمت دا دليل کافي دے۔

---

إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ

بې شکه الله نه بخي هغهٔ لره چه د هغه سره شريک کړی شي او بخي د دې نه سوا

لِمَن يَشَاءُ ۚ وَمَن يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا

چا لره چه غواړي - او چا چه شريک جوړ کړو الله لره هغه ګمراه شو ډير

بَعِيدًا ﴿١١٦﴾ إِن يَدْعُونَ مِن دُونِهِ إِلَّا إِنَاثًا وَإِن

لرې لاره - د الله نه سوا نه بلي مګر ښځو لره - او نه

يَدْعُونَ إِلَّا شَيْطَانًا مَّرِيدًا ﴿١١٧﴾ لَّعَنَهُ اللَّهُ ۘ وَقَالَ

وقف لازم

بلي مګر شيطان سرکشي لره - په چا چه لعنت کړې دې الله - او وويې

لَأَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا ﴿١١٨﴾ وَ

شيطان چه البته وابه اخلم ستا د بندګانو نه حصه مقرره - او وويې

لَأُضِلَّنَّهُمْ وَلَأُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ آذَانَ

غولوم او دوی لره به ارزوګانې ورکوم او دوی ته به ښايم چه څيري کړي غوږونه

الْأَنْعَامِ وَلَآمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللَّهِ ۚ وَمَن

د څارو او دوی ته به ښايم چه بدل لوی صورتونه د الله جوړ شوي - او څوک چه

يَتَّخِذِ الشَّيْطَانَ وَلِيًّا مِّن دُونِ اللَّهِ فَقَدْ خَسِرَ

جوړ کړي شيطان لره دوست ماسوا د الله نه نو دې پرېوت په ښکاره

خُسْرَانًا مُّبِينًا ﴿١١٩﴾ يَعِدُهُمْ وَيُمَنِّيهِمْ ۖ وَمَا يَعِدُهُمُ

نقصان کښې - دوی ته وعده ور کوي او ارزوګانې ورکوي او څه وعده چه ورکوي

الشَّيْطٰنُ اِلَّا غُرُوْرًا ﴿۱۲۰﴾ اُولٰٓئِكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ز

او دوی ته شیطان یې تول فریب دے ۔ د داسې خلقو ځکانه ده دوزخ

وَلَا يَجِدُوْنَ عَنْهَا مَحِيْصًا ﴿۱۲۱﴾

نه به موندی د هغې نه چرته د تیښتې ځائے ۔

# لنډ تفسیر

بے شکه الله تعالیٰ دے خبرے لره (د سزا ورکولو نه پس هم) نه بخی چه د ده سره چا لره شریک جوړ کړے شي (بلکه په همیشه سزا کښے به ئے اخته ساتي) او د دے نه سوا نور چه څومره ګناهونه دي (که واړه وي او که لوئے) د چا د پاره چه ئے خوښه شي (بے سزا به) هغه ګناه به او بخي (البته که مشرک مسلمان شي نو بیا مشرک پاتے نه شو او س هغه همیشه سزا هم لا ره پاتے نه شوه) او ورو د دے شرک د نه بخلو داده چه) کوم سړے د الله تعالیٰ سره (چا لره) شریک جوړه وی دے (د حق کار نه) ډیر لرے په ګمراهئ کښے پریوت (د غه حق کار توحید دے چه عقلاً هم واجب دے، او د کارساز تعظیم د دے د حقونو نه دے، پس مشرک د حضرت صانع کارساز سپکاوے اوکړو، نو په دے وجه د داسې سزا به مستحق وي ۔ په خلاف د نورو ګناهونو نه چه هغه ګمراهي خو ده مګر د توحید خلاف او بعیده ترے نه ده، په دے وجه د مغفرت قابله مقرر شوه ۔ او د شرک په شان بل قسم کفر هم به نا قابلِ معافئ کښے شریک دے، ځکه چه په دے کښے هم انکار وی د خالق د یوے خوږلے شوے خبرے پس دے د ده د صِدق د صفت نه انکار کوی، او بعضے کافران پخپله د الله تعالیٰ د ذات نه منکر دی، بعض ئے د څه صفت نه منکر دی، او بعض ئے د ذات او صفات دواړو نه منکر دی، او په دے کښے چه د هر یو نه انکار وی نو دا د توحید نه انکار او د ده نه لرے والے دے، پس کفر او شرک دواړه د معافئ قابل نه دی وړاندے د مشرکانو بے وقوفي د دوی په مذهبي طریقه کښے بیا نوی چه) دا (مشرک)

خلق خدائے تعالیٰ پاتے کوی (یو خو) صرف دَ یو څو زنانه څیزونو عبادت کوی او (بل) صرف دَ شیطان عبادت کوی کوم چه د (خدائے تعالیٰ د) حکم نه باهر دے (او) چا لره چه (دَ دے بے حکمئ په وجه) خدائے تعالیٰ دَ خپل (خاص) رحمت نه لرے کړے دے او چا چه (کوم وخت دَ خاص رحمت نه لرے او ملعون شو) داسے وئیلی وُو (چه په دے سره دَ دهٔ دشمنی ښکاره معلومیګی) چه زهٔ (دَ پوره کوشش کولو اراده لرم چه) ضرور به ستا دَ بندګانو نه خپله حصه دَ عبادت اخلم او (دَ دے حصے تفصیل دا دے چه) زهٔ به دوی (په عقید وکښے) ګمراه کوم او زهٔ به دوی ته (په خیالاتو کښے) هَوَسونه ورکوم (چه په دے سره به ګناه ته میلان کوی او ضرور ته به ئے نه ګوری) او زهٔ به دوی ته (دَ بد وعملونو کولو) تعلیم ورکوم چه دوی به دَ ربتا نو په نوم دَ) څاروو غوږونه پرېکوی (او دا دَ کفر کار دے) او زهٔ به دوی ته (نور هم) تعلیم ورکوم چه دوی به په دے سره دَ الله تعالیٰ جوړ شوی صورتونه وړانوی (او دا دَ فسق کار دے لکه ږیره کټ کول (خرَوَل) په بدن کښے په ستنو سره خالونه وهل وغیره) او کوم سړے چه الله تعالیٰ پاتے کوی شیطان خپل ملګرے جوړه وی (یعنے دَ خدائے حکم نه منی او دَ شیطان حکم منی) دغه (سړے) په ښکاره نقصان (او زیان) کښے واقع شو (دغه زیان جهنم ته رسیدل دی) شیطان دَ دے خلقو سره (دَ عقید و متعلق دروغ) وعدے کوی (چه تا سو بے فکره اوسئ نه حساب شته او نه کتاب) او (په خیالاتو کښے) دوی ته هَوَسونه ورکوی (چه په دے ګناه کښے داسے خوند دے او په دے حرامه ذریعه کښے دومره آمدنی ده او دَ شیطانی کارونو وجود او عبث والے او ضرر خو بیخیله ښکاره دے) او شیطان دَ دوی سره صرف دروغ (او فریبناکے) وعدے کوی (ځکه چه په واقع کښے حساب او کتاب حق دے او دَ دهٔ دَ هوسونو فریب چیز ښکاره کیږی) دَ داسے خلقو (څوک چه دَ شیطان په لاره ځی) ټکانه جهنم دے (او دغه ښکاره تاوان دا دے) او دَ دے (جهنم) نه به چرته دَ بچ کیدو ځائے بیا نه موهی (چه هلته لاړشی پناه واخلی)۔

# معلومات او مسئلے

**دَ ایاتو نوټرون** | بره دَ جهاد په ذکر کښے اګرچه ټول دَ اسلام مخالفین داخل

دی، لیکن حالات ئې او سه پورې دَ یهودو او نصارا دَ اومنا فقانو بیانیدل
او په مخالفینو کښې یوه ډله بلکه دَ نورو نه زیاته دَ مشرکانو وه، وړاندې اوس
دَ دوی دَ عقیدې و حال او دَ بد والی طریقه او دَ دوی دَ سزا ذکر دے. او په
دے مقام باندې دا ځکه زیاته مناسب شوه چه پوره دَ کوم غل واقعه ذکر
ده په دغې کښې دا خبره هم ده چه دغه غل مرتد وُه، پس دَ دے نه دَ ده
دَ دائمی سزا حال معلوم شه. (بیان القرآن)

اوّلنے ایات یعنی: إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ
لِمَنْ يَّشَآءُ: دَ سورتِ نسآء په شروع کښې هم په دے الفاظو سره راغلے دے.
فرق صرف دا دے چه هلته په ختمید دَ ایات باندې: وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ
فَقَدِ افْتَرٰٓى اِثْمًا عَظِيْمًا: راغلے دے. او دلته: وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا
بَعِيْدًا: دے. وجه دَ فرق ئې دَ تفسیر دَ امامانو دَ وضاحتونو مطابق داده. چه
دَ اولنی ایات مخاطبین نیغ په نیغه یهود اهلِ کتاب وُو چه دوی ته دَ تورات په
ذریعه سره دَ توحید حق والے، او دَ شرک باطِلوالے او دَ نبی کریم صلے الله
علیه وسلم برحق نبی کیدل هر څهٔ معلوم وُو. او دَ دے باوجود دوی په
شرک کښې مُبتلا شو، نو گویا پخپل عمل سره دوی دا ښکاره کړه چه دَ تورات
دا تعلیم دے، او دا اسراسرا فتراء او بهتان دے. په دے وجه دَ دے ایات
په آخر کښې: فَقَدِ افْتَرٰٓى اِثْمًا عَظِيْمًا: ارشاد او شو. او دَ دویم ایات مخاطبین
نیغ په نیغه دَ مکے مشرکان وُو. چه دَ دوی سره دَ مخکښې نه نهٔ څۀ کتاب وه نه
پیغمبر، مگر دَ توحید دلیلونه بالکل واضح وُو. او دَ خپلو لاسو جوړ و شوُو
گټولره خپل معبود جوړه ول دَ یو ادنیٰ عقل لرونکی دَ پاره هم باطل
لغوه او گمراهی ده په دے وجه دلته ارشاد او شه: فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًا بَعِيْدًا:

دَ شرک او کفر دَ سزا همیشوالے

دلته بعضِ خلق دا شُبهٔ کوی چه سزا دَ عمل په قدر پکار ده. مشرک او کافر چه کوم دَ کفر او شرک کړے دے دا
ئې دَ عمر په یوه محدوده مُوده کښې کړے دے نو سزا ئې غیر محدوده او دائمی
وَلے شوه؟ جواب دا دے چه شرک کفر او شرک کوی نو هغه دے لره جُرم
نهٔ گنړی بلکه نیکی ئې گنړی. په دے وجه دَ دهٔ قصد او اراده دا وی چه همیشه

به پدے حال قائم وی، او چه کله ترموکه پورے دے په دے حال قائم پا تے
شه نو دخپل اختیار دحده پورے ده همیشه جرم اوکړو نو په دے وجه
ده ده سزا هم همیشه شوه -

**دَ ظلم درے قسمونه** دَ ظلم یو قسم هغه دے چه الله پاک به ئے چرته
او نه بخی، دویم قسم هغه دے چه دَ هغے بخا نه
به اوشی او دریم قسم هغه دے چه دَ هغے بدله الله تعالیٰ بغیر دَ اَغستو نه
نه پا تے کوی -

اوّل قسم ظلم شرک دے، دویم قسم ظلم دَ الله تعالیٰ په حقوقو کښے
کوتاهی کول دی- او دریم قسم ظلم دَ بندګانو دَ حقوقو خلاف ورزی
ده (ابن کثیر بحواله مسند بزار)

**دَ شرک حقیقت** دَ شرک حقیقت دَ الله تعالیٰ نه سِوا چا مخلوق لره
په عبادت یا محبّت یا تعظیم کښے دَ الله تعالیٰ برابر
ګڼړل دی- قرآنِ کریم دَ مشرکانو هغے خبرے لره کومه چه به دوی
جهنم ته په رسید وسوه وائی، نقل کړے ده -

| | |
|---|---|
| تَاللّٰهِ اِنۡ كُنَّا لَفِىۡ ضَلٰلٍ مُّبِيۡنٍۙ | "یعنی قسم دے په خدائے چه مونږ په ښکاره |
| اِذۡ نُسَوِّيۡكُمۡ بِرَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ؕ | ګمراهئ کښے وو کله چه مونږ تاسو لره |

دَ الله رب العلمین برابر مقرر دکړی وو"

ښکاره خبره ده چه دَ مشرکانو دا عقیده خو نه وه چه زمونږ دا
جوړے شوے کتے دَ دے جهان پیدا کونکے او ما لکان دی- بلکه دوی
دَ نورو غلط فهمو په وجه سره دوی لره په عبادت کښے یا محبّت او
تعظیم کښے دَ الله تعالیٰ سره برابر مقرر دکړی وو- دغه وجه وه چه دوی
ئے جهنم ته اورسول (فتح الملهم)

معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ په خاصو صفتونو خالق، رازق، قادر
مطلق، په پټو او ښکاره وو عالم وغیره چا مخلوق لره دَ الله تعالیٰ
برابر ګڼړل شرک دے- (یا الله مونږ دَ هر قسم شرک نه په امان کړے آمین)

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ

او کوم خلق چه ایمان راوړئ او عمل اوکړی نیک دوی لره به مونږ داخل کړو باغونو ته

تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَآ اَبَدًا ؕ وَعْدَ

چه لاندے به تړے بهیږی نهرونه او سی به په دے کښے همیشه وعده ده

اللّٰهِ حَقًّا ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ قِيْلًا ﴿۱۲۲﴾ لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ

دَ الله رښتونے - او دَ الله نه زیات رښتونے څوک دے - نه مدار ستاسو په امیدونو

وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ ؕ مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ ۙ

دے او نه دَ اهلِ کتابو په امید ونو دے - څوک چه بد کار اوکړی دَ هغے سزا به بیاموی

وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۲۳﴾ وَ

او بیا به نه موی دَ الله نه سوا خپل څوک حمایت کونکے او نه مدد ګار - او

مَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ

څوک چه اوکړی نیک کار سړے وی او که ښځه او دے

مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ

مؤمن وی پس دغه خلق به داخل شی جنت ته او دَ دوی حق به ضائع نه شی

نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ

دَ خسنړی هومره - او دَ دهٔ نه غوره دَ چا دین دے چا چه او سپاره ځان خپل

لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ

الله ته او دے نیک کارونه کوی او روان شه په دین دَ ابراهیمؑ چه یو طرف ته وه -

وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿۱۲۵﴾ وَ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

او الله جوړ کړے دے ابراهیمؑ لره خالص دوست - او خاص الله لره دی هغه چه په آسمانونو کښے دی

١٨ ع ١١ ١٥ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطًا ﴿۱۲۶﴾

او هغه چه په زمکه کښے دی - او تول څیزونه د الله په قابو کښے دی -

# لنډ تفسير

او کوم خلق چه ایمان راوړی او (دوی) نیک کارونه کوی مونږ به دوی چیر ژر داسے باغونو ته داخل کړو چه د هغے (د محلونو) لاندے به نهرونه بهیږی دوی به په دے کښے همیشه همیشه اوسی خدائے تعالیٰ د دے وعده فرمائیلے ده او د خدائے تعالیٰ نه زیا تصحیح به د چا خبره وی، نه ستاسو په ارزوګانو کار کیږی او نه د اهل کتابو په ارزوګانو (چه خالی په ډېره سره خیال غوره والے بیا نوئے بلکه کار په حکم منلو کیږی پس) کوم سړے چه (د په حکم منلو کښے کمی کوی او) څه بد کار او کړی (خواه په عقیده سره وی یا په عمل سره) ده لره به د دے په بدله کښے سزا ورکړے شی (که دغه بدی د عقیدے د کفر پورے وی نو سزائے همیشه او یقینی ده او که د دے نه کمه وی نو سزا به همیشه نه وی) او دے سړی ته به د خدائے نه سوا نه څوک یار ملاؤ شی او نه مددګار (چه د خدائے د عذاب نه دے خلاص کړی) او کوم سړے چه څه نیک کارونه کوی خواه دغه سړے وی او که ښځه په دے شرط چه مؤمن وی پس داسے خلق به جنت ته داخل شی او په دوی به یوه ذره هم ظلم نه وی (چه د دوی څه نیکی ضائعه کړے شی) او (دبره چه د مؤمن کوم قید لګولے شوے دے د دے مصداق هره فرقه نه ده بلکه صرف هغه فرقه ده د چا دین چه د خدائے تعالیٰ په نزد په قبلید وکښے د ټولو نه ښه وی او داسے فرقه صرف مسلمانان دی چه دلیل ئے دادے چه په دوی کښے دا صفتونه دی، مکمل حکم منل، اخلاص، د ابراهیمی دین پیروی کول او) د داسے سړی (د دین) نه زیات غوره

به دِ چا دین وی، چه خپل مخ الله طرفته خکته کړی (یعنی فرمانبرداری ئې اختیار کړی وی هیسے ظاهرداری نکوی) او دِ ملّت ابراهیم (یعنی اسلام) تابعداری کوی چه په دے کښے دِ کوږ کوالی نوم نیشتے او (ملتِ ابراهیمي خامخا دِ تابعدارئ قابل دے ځکه چه) الله تعالیٰ ابراهیم علیه السلام لره خپل خالص دوست جوړ کړے وُه (نو ښکاره خبره ده چه دِ دوست په طریقه تلونکے هم محبوب او مقبول وی، پس دِ اسلام طریقه مقبوله شوه، نو مؤمنانو لقب خاص دِ مسلمانانو شو، او نورو فریقو دِ حضرت ابراهیمؑ پیروی پریخوده چه اسلام ئې دا نه وُړو، نو په دے وجه صرف مسلمانان دا سے ثابت شو چه دوی محض آرزو کانے نکوی بلکه حکم منونکی دی، پس کار به دِ دوی چلیږی) او (دِ الله تعالیٰ مکمّله فرمانبرداری ضروری ده ځکه چه دِ هغهٔ حکومت او قدرت او دِ هغه هرڅهٔ لره قابو کونکے علم دواړه پوره او مکمل دی او داکارونه دِ اطاعت واجبونکی دی نو) دِ الله تعالیٰ په ملکیت کښے دی څهٔ چه په اسمانونو کښے دی او څهٔ چه په زمکه کښے دی (دا خوئې کمال دِ سلطنت شو) او الله تعالیٰ ټولو څیزونو لره (په خپل علم کښے) راګیر کړی دی (دائے دِ علم کمال شو) -

## مَعلومَات او مَسئلے

دِ مسلمانانو او اهل کتابو په مینځ کښے په یوبل دِ فخر خبرے

﴿لَيۡسَ بِأَمَانِيِّكُمۡ وَلَآ أَمَانِيِّ أَهۡلِ ٱلۡكِتَٰبِ﴾ الخ: په دے ایاتونو کښے اوّل دِ یو ے مکالمے او خبرواترو ذکر دے چه دِ مسلمانانو او اهلِ کتابو په مینځ کښے شوے وے - او بیا په دے خبرواترو باندے حاکمانه فیصله ده - دواړو فریقو ته دِ هدایت صحیح لاره اوخودے شوه - په اخر کښے ئے دِ الله تعالیٰ په نزد دِ مقبول کیدو او غوره کیدو یو معیار اوخودو چه که دا مخے ته کیخودے شی نو بیا به انسان په غلطئ او ګمراهئ کښے اخته نه شی -

حضرت قتاده رضی فرمائی چه یو وار دِ څهٔ مسلمانانو او اهلِ کتابو په مینځ کښے په یوبل دِ فخر خبرے شروع شوے اهلِ کتابو اُووے چه مونږ ستاسونه

غوره او شریف یو ځکه چه زمونږ نبي ستاسو کې نبي نه وړاندې دے او زمونږ کتاب ستاسو دَ کتاب نه وړاندې دے - مسلمانانو اووے چه مونږ ستاسو نه غوره یُو ځکه چه زمونږ نبي خاتم النبیین دے او زمونږ کتاب آخري کتاب دے چه مخکښي ټول کتابونه ئے منسوخ کړي دي، په دے باندې دا آیات نازل شو:

لَيْسَ بِاَمَانِيِّكُمْ وَلَآ اَمَانِيِّ اَهْلِ الْكِتٰبِ الخ: یعنی دا فخر او تعلق هیڅ لره نه ښائي او محض په خیالاتو او رزوګانو او دعوو باندې څوک ښځا غوره کیدے نه شي بلکه مدار په عملونو دے - دَ چا نبي که هر څومره افضل او شریف وي او کتاب ئے څومره غوره او شریف وي خو که دے عمل غلط کوي نو دا سے سزا به او مومي چه دَ دهٔ بچ کو لکے به هیڅوک نه وي -

دا آیات چه کله نازل شو نو په صحابه کرامو باندې ډیره ګرانه شوه - امام مسلم، ترمذي، نسائي او امام احمد رحمهم الله دَ حضرت ابوهریرهؓ نه دا روایت نقل کړے دے چه دےؓ فرمائي هر کله چه دا آیات نازل شو: مَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ: "یعني څوک چه څهٔ بدي کوي دَ هغے سزا به ورکولے شي" نو مونږ په سخت غم او فکر کښے پریوتو او نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته مو عرض اوکړو، چه دے آیات خو هیڅ پاتے نه کړه، که لږه شان بدي هم وي خو سزا به ئے ملاویږي - نبي کریم صلے الله علیه وسلم او فرمائیل چه فکر مکوئ دَ خپل طاقت او قدرت مطابق عمل کوئ ځکه دَ کومے سزا چه دلته ذکر دے ضروري نه ده چه دغه دے دَ جهنم سزا وي، تا سو ته په دنیا کښے چه هم څهٔ تکلیف یا مصیبت راپیخیږي دا ستاسو دَ ګناهونو کفاره او دَ بدیو جزا وي - تر دے چه که دَ چا پښو کښے ضغنه لاړه شي نو دغه هم دَ ګناه کفاره ده -

او په یو روایت کښے دي چه مسلمان ته په دنیا کښے چه هر څهٔ غم یا تکلیف یا بیماري یا څه فکر راپیخیږي دا دَ دهٔ دَ ګناهونو کفاره کیږي -

جامع ترمذي او تفسیر ابن جریر وغیره دَ حضرت صدیق اکبرؓ نه روایت کړے دے چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم کله دا آیات: وَمَنْ يَّعْمَلْ سُوْٓءًا يُّجْزَ بِهٖ: دهٔ ته واوروه دَ لو نو په دهٔ دا سے اثر اوشه لکه چه ملا ئے ماته شوے وي - نبي کریم صلے الله علیه وسلم چه دا اثر او لیده وا وئے فرمائیل څهٔ خبره ده؟

نو حضرت صدیق اکبرؓ عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ په موږ کښې څوک داسې دې چه هغهٔ په څهٔ بدی نه وی کړې او چه هر کله د هرې بدئ سزا ملاویږی نو په موږ کښې به څوک بچ شی؟ حضورؐ او فرمائیل اے ابوبکرؓ! تهٔ او ستا مؤمنان رونړه دې هیڅ فکر نه کوی ځکه چه د دنیا د تکلیفونو په ذریعه به ستاسو د ګناهونو کفاره اوشی۔

په یو روایت کښې دی چه حضورؐ اوفرمائیل ولې تاسو نا جوړه کیږئ نه؟ ولې تاسو ته څهٔ مصیبت او غم نهٔ رسی؟ صدیق اکبرؓ عرض اوکړو، بے شکه دا ټولې خبرې وارسی، نو حضورؐ اوفرمائیل بس دا سزاده ستاسو د ګناهونو۔

او د حضرت عائشےؓ په یو حدیث کښې دی چه ابوداؤد وغیره روایت کړې دے چه بنده ته تبه یا تکلیف رسی یائے غنه په خپه کښې ځی نو د دهٔ د ګناهونو کفاره کیږی تردے چه یو سړے خپل څهٔ شے په یو جیب کښې تلاش کوی مګر هغه په بل جیب کښې ملاؤ شی په دومره تکلیف هم د دهٔ د ګناهونو کفاره کیږی۔

لنډه دا چه دے آیات مسلمانانو ته هم دا خود نه کړے ده، چه محض په دعوو او آرزوګانو کښې مه لګیا کیږئ، بلکه د عمل فکر کوئ ځکه چه کامیابی صرف په دے سره نهٔ ده چه تاسو د فلانی نبی یا فلانی کتاب نوم اخستونکی یئ، بلکه... اصل کامیابی په دے کښې ده چه په دے صحیح ایمان راوړئ او د دے مطابق د نیکو عملونو پابند شئ۔ ارشاد دے؛

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى : تر نَقِيْرًا : پورے " یعنی کوم سړے یا ښځه چه نیک عمل اوکړی په دے شرط چه د دے عمل سره د دهٔ ایمان هم وی نو داسې خلق به جنّت ته ځی او دوئ ته به د عملونو بدله پوره پوره ملاویږی چه ذرّا کمی به پکښې نه شی کولے"

په دے کښې ئے اشاره اوفرمائیله چه اهلِ کتابو یا نورو غیرمسلمو که عملونه نیک هم وی، خو چونکه د دوی ایمان صحیح نهٔ دے په دے وجه هغه عمل مقبول نهٔ دے۔ او د مسلمانانو چونکه ایمان هم صحیح دے او عمل ئے هم نیک دے۔ په دے وجه دوی کامیاب دی او د نورو نه افضل دی۔

د الله تعالیٰ په نزد د مقبولیت یو معیار

په دریم آیات کښې ئے د الله تعالیٰ په نزد

دَ غوره والی او قبول والی یو معیار او خود وچه په دې سره دَ دې خبرې صحیح فیصله کیدې شي چه څوک مقبول دې او څوک مردود- دَ دې معیار دوه جزونه دی نو که په دې دواړو کښې په یو جز کښې خلل واشي نو ټول کوشش به عبث او ضائع شي- او که غور اوکړې شي نو په دنیا کښې چه څومره هم څهٔ ګمراهي یا غلط کاري ده هغه په دې دوه جزونو کښې دَ یو جز دَ خلل نه پیدا کیږي، که دَ مسلمانانو او غیر مسلمانانو موازنه کوې یا پخپله دَ مسلمانانو په فرقو، ډلو او پارټو کښې مقابله اوکړې نو معلومه به شي چه هم دا دوه نقطې دی چه په دوی کښې دَ یوې نه اخوا کیدل انسان لوه دَ ذلت او ګمراهۍ په کنده کښې اچوي-

ارشاد ئې اوفرمایه: وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ: یعنې دَ هغه سړي نه غوره دَ ښه طریقه نه شي کیدے چه یَکښې چه دوه خبرې موندې شي یو: اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ: یعنې خپل ذات الله ته اوسپارلی، دَ ریاکارئ یا دنیا سازئ دَ پاره نه بلکه په اخلاص سره دَ الله تعالیٰ دَ راضي کولو دَ پاره عمل کوي-

دویم: وَهُوَ مُحْسِنٌ: یعنې هغه عمل هم په ټیک طریقه کوي- امام ابن کثیر پخپل تفسیر کښې فرمائي چه په ټیک طریقه دَ عمل کولو مطلب دا دے-چه دَ دهٔ عمل محض دَ ځانه جوړ شوي طرز بانده نه وي- بلکه دَ پاک شریعت ښودلے شوې طریقه بانده وي- دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ خوښې مطابق وي-

دَ دینه معلومه شوه چه دَ الله تعالیٰ په نزد دَ یو عمل دَ قبلیدو دوه شرطونه دی- یو اخلاص او دویم دَ عمل دُرُست والے یعنې چه دَ شریعت او سنت مطابق وي په دې دوه شرطونو کښې دَ اولنی شرط اخلاص تعلق دَ انسان دَ زړهٔ سره دے او دَ دویم شرط یعنې دَ شریعت مطابق والی تعلق دَ انسان دَ ظاهر سره دے- هر کله چه دا دواړه شرطونه چا پوره کړه نو دَ دهٔ ظاهر او باطن ټیک شو او کله چه یو دې کښې یو شرط پوره نه شو نو عمل فاسد شو- که اخلاص نه وه نو عمل دَ منافق شو او که دَ شریعت تابعداري نه وه نو ګمراه شو- (مطلب دا شو چه دا دواړه شرطونه دَ الله تعالیٰ په نزد دَ غوره والی او مقبول والی دَ پاره لازمي دی)-

**دَ قومونو دَ ګمراهۍ سبب دَ اخلاص یا دَ عمل دَ ټیکوالي نشت کیدل دي**

دَ قومونو او مذهبونو په تاریخ نظر واچوئ نو معلومه به شي چه څومره بے لارے فرقے او قومونه په دنیا کښے دي په چا کښے اخلاص نیشتے او په چا کښے دَ عمل ټیکوالے نیشته۔ دا دوه ډلے دي چه دَ دوی ذکر په سورت فاتحه کښے دَ صراط مستقیم نه دَ بے لارے شوو په سلسله کښے دَ: مَغۡضُوۡبِ عَلَيۡهِمۡ: او: ضَآلِّيۡنَ: په لفظونو سره بیان شوے دے۔ مَغۡضُوۡبِ عَلَيۡهِمۡ: هغه خلق دي چه اخلاص پکښے نیشتے۔ او ضَآلِّيۡنَ: هغه دي دَ چا چه عمل ټیک نه دے۔ اوّلنی د لره په شهواتو خواهشاتو کښے ګیر ده او دویمه په شبهاتو کښے۔

دَ اولنی شرط یعنی دَ اخلاص ضرورت او دَ دهٔ دَ نشتوالي په صورت کښے دَ عمل په بے کاره کیدو خو عام طور سره هر سړے پوهیږی، لیکن دَ عمل ټیکوالي یعنی دَ شریعت دَ تابعدارۍ شرط ته ډیر مسلمانان هم و خیال هم نه کوی داسے ګنړی چه نیک عمل هر څنګه چه کوے کوه ئے۔ حال دا دے چه قرآن او سنّت بنهٔ واضحه کړے ده چه دَ عمل ټیکوالے صرف دَ نبی کریم صلے الله علیه و سلم په تعلیماتو او دَ سنّتو په تابعدارۍ باندے موقوف دے۔ دَ دینه کمول هم جُرم دے او زیاتول هم جرم دے، لکه دَ ماسپخین دَ څلورو رکعتونو پځائے درے کول جُرم دے دغه شان پنځه کول هم دغه شان جُرم او ګناه دے۔ په یو عبادت کښے چه کوم شرط الله تعالیٰ او دَ هغه رسول صلے الله علیه وسلّم لګولے وی په دے کښے دَ خپل طرفه دَ شرطونو زیاتول یا دَ هغوی دَ خود لی شوی شکل او صورت نه مخالف شکل او صورت اختیارول دا هول نا جائز او دَ بنهٔ والی دَ عمل نه خلاف ده۔ خواه که په ظاهر کښے هر څومره بنهٔ په نظر راشي، بدعتونه او نوی کارونه کوم ته چه نبی کریم صلے الله علیه وسلّم ګمراهی وئیلے ده او دَ دے نه ئے دَ ځان ساتلو تاکید فرمائیلے دے هغه ټول دَ دے قِسَم نه دی۔ جاهلان دے لره بنهٔ په اخلاص سره دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول صلے الله علیه وسلّم دَ خوشحالولو او عبادت او ثواب ګنړلو په جوړه سره کوی، مګر په شریعت محمّدیؐ کښے دَ دهٔ دا عمل ضائع بلکه واجبونکے دَ ګناه دی۔ په دے وجه قرآن کریم بار بار دَ ټیک عمل یعنی دَ سنتو دَ تابعدارۍ تاکید

فرمائیلي دي - په سورت ملک کښې دي: لِيَبْلُوَكُمْ اَيُّكُمْ اَحْسَنُ عَمَلًا: دلته ئې اَحْسَنُ عَمَلًا: اوفرمائیل ،اَكْثَرُ عَمَلًا ئې اونه فرمائیل - یعنې دعمل د ډیروالي ذکر نیشته بلکه د ښه عمل کولو ذکر دي - او ښه عمل هغه دي چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سنتو مطابق وي -

د قرآن کریم په یو بل ایات کښې ئې د ښه عمل او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سنتو تابعداري په دې الفاظو سره تعبیر فرمائیلي ده: وَمَنْ اَرَادَ الْاٰخِرَةَ وَسَعٰى لَهَا سَعْيَهَا: یعنې سعي او عمل د هغو خلقو مقبول دي چا چه نیت هم خالص د اٰخرت کړے وي او د هغې د پاره سعي هم کوي - او کومه سعي چه کوي هغه مناسب هم وي، او مناسب سعي هغه ده کومه چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم پخپل قول او عمل سره اُمت ته خودلې وي، د دینه اخوا ډیغواکید ل مناسب سعي نه ده - او مناسب سعي هغه ده چه کړے بل نوم حُسْنِ عمل (یعنې نیک عمل) دے کوم چه په دے ایات کښې ذکر دے -

لنډه دا ده چه د الله تعالی په نزد د یو عمل د مقبول کید و دوه شرطونه دي - اخلاص او حُسْنِ عمل، او حُسْنِ عمل نوم دے د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سنتو د تابعدارئ، په دے وجه د اخلاص سره د حُسْنِ عمل کولو داهم فرض دي چه د عمل کولونه اول دا معلومه کړي چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم داعمل څنګه کړے دے او د دے متعلق هغوئ څه خودنې کړي دي، ځوینې کوم یو عمل چه د سنت د طریقې نه وي، هغه نامقبول دے - په مانځه، روژه حج، زکوٰة، صدقو، خیراتو نو، د الله په ذکر او درود وسلام ټولو کښې د دے لحاظ ساتل ضروري دي - چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم داعمل څنګه کړے دے، او د څنګه کولو ارشاد ئې فرمائیلي دے - د ایات په اٰخر کښې ئې د اخلاص او حُسْنِ عمل یو مثال د حضرت ابراهیم خلیل الله علیه الصلوٰة والسلام پیش کړے او د هغوئ د تابعدارئ حکم ئې ورکړے دے او: وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا: ئې اوفرمائیل دے طرف ته ئې اشاره اوکړه چه د حضرت خلیل د دے اوچت مقام سبب دا دے چه هغه مُخلص هم د اعلیٰ درجې وه او د هغه عمل هم د الله تعالیٰ په اشارو سره صحیح او دُرست وه -

وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ وَمَا

او ستا نه رخصت غواړی د ښځو په نکاح کښے - او ووایه چه الله تا سو ته اجازت درکوی د دوی او هغه

يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْ

چه تاسو ته اوروه ولے شی په قرآن کښے پس حکم دے د دے یتیمانو ښځو په باره کښے کوم ته چه تاسو نه

تُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ

ورکوئ کوم څه چه د دوی د پاره مقرر شوی دی او غواړئ چه د دوی سره نکاح اوکړئ.

وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى

او حکم دے د کمزورو هلکانو او دا چه قائم اوسئ د یتیمانو په حق کښے

بِالْقِسْطِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا (۱۲۷)

په انصاف سره - او څه چه کوئ نیکی پس هغه الله ته معلومه ده -

وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا

او که یوه ښځه یریږی د خاوند د جنګړې نه یا د مخ اړولو نه

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ؕ وَالصُّلْحُ

نو هیڅ ګناه نیشته په دواړو چه اوکړی پخپل منځ کښے په څه شان صُلح - او صُلح ښه

خَيْرٌ ؕ وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ؕ وَاِنْ تُحْسِنُوْا

شے دے - او زړونو ته حرص ورکړے شوے دے او که تاسو نیکی کوئ

وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا (۱۲۸) وَ

او پرهیزګاری کوئ نو الله تعالیٰ ستاسو د ټولو کارونو نه خبر دے - او

لَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ

تاسو هرګز برابر نشئ ساتلے ښځو لره اګر که زړه ئے حرص کوئ

فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوْهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ط

پس بيا هم داسے مه کږيږئ چه پاتے کړئ يوے لره لکه آويزانده -

وَاِنْ تُصْلِحُوْا وَتَتَّقُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا

او که اصلاح کوئ او پرهيزګاري کوئ نو الله بخښونکے دے مهربان

رَّحِيْمًا ﴿۱۲۹﴾ وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ ط

دے - او که دواړه جدا شي نو الله به هر يو لره بے پرواکړي پخپله فراخئ سره -

وَكَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيْمًا ﴿۱۳۰﴾

او الله فراخئ راوستونکے تدبير والا دے -

**د آيا تو نوټ ون**

د سورت په شروع کښے د يتيمانو او ښځو خاص حکمونه او د دوی د حقونو ادا کولو واجبوالے ذکر وه، ځکه چه په جاهليت کښے خو به بعضو هم دوی ته ميراث نه ورکولو او بعضو به چه کوم مال د ويته په ميراث کښے يا په بل طور سره ملاويده هغه به ئے په ناجائز طور سره خوړو- بعضو به د دوی سره نکاح اوکړه او مهر به ئے پوره نه ورکاوو. پورته د دے تولو خبرو له منع شوے وه - په دے بانده مختلف واقعات ورانده راغله، د بعضو دا خيال شو چه د ښځو او بچو فی نفسه حق د ميراث اغستو نيشته د څه وقتی مصلحت په وجه د يو څو خلقو د پاره دا حکم شوے دے اُميد دے چه منسوخ به شی او بعضے د دے په انتظار کښے شو خو هر کله چه منسوخ نه شو نو دا مشوره ئے او کړه چه پخپله د نبی کريم صلے الله عليه وسلم نه تپوس کول پکار دی، او حاضر شو تپوس ئے اوکړو- ابن جرير او ابن منذر

د ایاتِ د نزول سبب دا سوال نقل کړے دے - او وړاندې نه په وروستو ایاتو نو
کښې د ښځو متعلق یو څو نورے مسئلے بیان شوی دی - (بیان القرآن)

# لنډ تفسیر

او خلق ستاسو نه د ښځو (د میراث او مهر) په باره کښې حکم معلوموی
تاسو ورته او فرمایئ چه الله تعالیٰ په دے باره کښې تاسو ته (هغه تیر)
حکم ورکوی او هغه ایاتونه هم (تاسو ته حکم کوی) کوم چه (د دینه مخکښې
نازل شوی دی او) په قرآن کښې تاسو ته اورولے شی (ځکه چه د قرآن
په تلاوت کښې ښکاره خبره ده چه د دوی تلاوت هم کولے شی) کوم چه د دے
یتیمانو ښځو په باره کښې (نازل شوی) دی کومو سره چه ستاسو دا معامله
ده چه کړ حقوی د مال خاوندانے او خائسته وی نو نکاح ورسره کوئ مکر دوی
ته کوم چه په شریعت کښې) د دوی حق (میراث او مهر) مقرر دے نه ورکوئ
او (کړ خائسته نه وی صرف د مال خاوندانے وی نو) د دوی سره (په وجه
د نه خائسته کیدو) د نکاح کولو نه نفرت کوئ (لیکن د مالدارئ په وجه
د دے ویرے نه چه دا مال بل ځائے ته لاړ نه شی د بل سره ئے نکاح کولو ته
نه پریدئ) او (کوم ایاتونه چه) د کمزورو بچو په باره کښې (دی) او
(کوم ایاتونه چه) په دے باره کښې (دی) چه د یتیمانو سره (ټول) سلوک
(کړ د مهر میراث متعلق وی یا نور څه وی) په انصاف سره کوئ (دا مضمون
دے د دغو تیرو ایاتونو پس دغه ایاتونه چیل مضمون اوس هم ستاسو په
ذمه واجبوی او حکم ئے بعینه باقی دے تاسو د هغے موافق عمل کوئ) او کوم
نیک کار چه کوئ (د ښځو د یتیمانانو په باره کښې یا په نورو کارونو کښې هم) پس بے شکه
الله تعالیٰ په دغے ښه پوهه دے (تاسو ته به د دغے غوره جزا ورکړی، اګر چے
خبره لره هم پیژنی لیکن دلته ترغیب خیر طرفته مقصود دے په دے وجه
ئے تخصیص اوکړو) او کړ یو ښځے ته (په قرائنو سره) د خپل خاوند نه غالب
احتمال د ید دماغۍ (او کوږوالی) یا د بے پرواهئ (او بے مخئ) وی پس (په دا سے
حالت کښې) دواړو لره په دے کار کښې هیڅ ګناه نیشته چه دواړه د یو بل سره

په څهٔ خاص طور سره صلح اوکړي (یعنې ښځه که ددا سے خاوند سره اوسیدل غواړي
چه هغه د دے پوره حقونه اداکول نه غواړي او په دے وجه د دے پر یخودل غواړي
نو ښځې لره جائز دي چه خپل څه حقونه پاتے کړي، مثلاً نان نفقه معاف کړي یائے
کمه کړي یا خپل وار معاف کړي د دے د پاره چه دے ئے پرے نه دي او خاوند لره هم
جائز دي چه دا معافي قبوله کړي) او (د جګړے یا جدائي نه خو) دا صلح (ډیره)
غوره ده او (د دا سے صلح کول څهٔ لرے خبره نه ده ځکه چه) نفسونو ته (طبعًا)
د حرص سره پیوست والے وي (هرکله چه د دهٔ حرص پوره کیږي نو راضي کیږي
پس هرکله چه خاوند اووینې چه ځما په مالي او جاني آزادي کښے چه د طبیعت حرص
دے خلل نه راځي او ښځه راته په مفتو کښے ملاویګې نو دے به ئے بیا په نکاح کښے
په پاتے کولو راضي وي۔ او د ښځے حرص په نکاح کښے د پاتے کیدو خواه په صوره
وجه سره چه وي خو ظاهر ده چه سبب اصلي د صلح دے۔ پس د جانبینو
په خاص حرص سره د صلح تکمیل کیږي) او (اے سړو) که تاسو (خپله
د ښځو سره) ښه سلوک ساتئ (او د دوینه د حقونو معاف کول نه غواړئ)
او د دوي سره (د کوږ والي او بے ځئ کولو نه) احتیاط ساتئ نو (تاسو ته به لوئے
ثواب ملاؤ شي ځکه چه) بے شکه الله تعالیٰ ستاسو د عملونو پوره خبر لري (او
په نیکو عملونو ثواب ورکوي) او (عادتًا) ستاسو نه دا خو چرته نشي کیدے
چه په ټولو بیبیانو کښے به (هرشان) برابري اوساتئ (حتی چه د زړهٔ په مینه کښے
هم) اګرچه (دا برابري) هرڅو مره ستاسو زړهٔ غواړي (او تاسو هرڅو مره کوشش
چه کوئ، لیکن د زړه مینه غیر اختیاري ده نو په دے ستاسو قدرت نیشتے۔ اګرچه
اتفاق طور چرته برابري اوشي هم نو ایت د دے نفي نه کوي۔ نو غرض دا دے چه
هرکله دا د زړهٔ مینه اختیاري نه ده نو تاسو په دے نیولي هم نه یئ، نو هسے نه
چه د دے غیر اختیاري کیدو په وجه ظاهري حقونه هم غیر اختیاري کړئ بلکه دغه
نور ظاهري حقونه اختیاري دي نو چه هرکله دوي اختیاري دي) نو (بیا ستاسو واجب
ده چه) تاسو بالکل یو طرف ته کانړهٔ نه شئ (د بالکل مطلب دا دے چه په زړهٔ سره
هم چه په هغے کښے معذور وئے او په ظاهر سره هم پکوم چه ستاسو اختیار دے
یعنې په شرعي حقونو کښے د دوي سره بد خوئي او ډیرهٔ ترے مکوئ) چه په دے

سره دا (مظلومه) داسې کړي لکه څوک چه نه ډیځوا وي او نه خاوند (یعني په منځ کښې) ځوړنده وي (یعني نه ئې حقونه ادا کولے شي چه خاوند والا او کنړلے شي او نه ورله طلاق ورکوي چه بې خاونده ورته او وئیلے شي، بلکه که ساتئ ئې نو په ښه شان سره ئې ساتئ) او (کهٔ تاسو تلو په صورت کښې چه په تیره زمانه کښې څه خراب سلوک درې شوے وي) که چرې (د دغې سلوک کولو فی الحال) اصلاح او کړئ او (په راتلونکي وخت کښې د داسې معاملو نه) احتیاط او لرئ نو (د دغه تیر کاروونه به معاف کړې شي ځکه چه) بې شکه الله تعالیٰ لوئې مغفرت والا لوئې رحمت والا دے (چونکه کوم ګناهونه چه د بندګانو د حقونو سره تعلق لري د دغې بندګانو په معاف کولو سره معاف کیږي نو په اصلاح کښې دا معافي هم راغله. نو چه روغه په منځ کښې او شوه نو تو به شرعًا صحیح شوه په دے وجه مقبوله شوه) او که دواړه ښځه خاوند (یعني د دواړو په منځ کښې موافقت نه راځي او دواړه) جدا شي (یعني خلع یا طلاق واقع شي) نو (په دوي کښې دے یو تن خواه که څومره زیاتے وي یا د ښځې کوتاهي وي داسې دے نه ګڼړي چه بغیر ځما نه به د دے بل کار او نه چلیږي ځکه چه) الله تعالیٰ به د خپل (قدرت) په فراخئ سره (د دواړو نه) هر یو لره (د بل نه) بې حاجته کړي (یعني د هر یو کار به بغیر د بل نه او چلیږي) او الله تعالیٰ لوئې فراخئ والا او لوئې حکمت والا دے (د هر یو د پاره مناسب لار او سیځي)

# معلومات او مسئلے

## د کورني ژوند متعلق د قرآن څو هدایتونه

وَاِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا: نه تر: وَاسِعًا حَكِيْمًا: پورے - په دے دریواړو آیاتونو کښې الله تعالیٰ د کورني ژوند د ترخو او سختو د دے متعلق هدایتونه ورکړي دي - چه کوم د اوګړ ژوند په مختلفو دورو نو کښې هرې جوړې ته کله ناکله مخې ته راځي، هغه ده د یو بل نه خفګان او د وړانه او دا یو داسې شے دے چه که په صحیح اُصولو سره د دے مخ نیوے او نه شي نو نه یوازې دا چه د ښځې خاوند د پاره دنیا جهنم کیږي بلکه ډیر کرته دا کورني خفګان د خاندانونو او قبیلو په منځ کښې جنګ جګړو او قتلونو ته نوبت رسوي.

قرآن کریم د ښځې او سړي د دواړو د جذباتو او احساساتو لحاظ اوساته هر یو فریق ته ئې د ژوند داسې نظام ورکړو چه په دې باندې د عمل کولو په نتیجه کښې د انسان کور د جنت نمونه جوړیدے شي. کورنۍ ترخوالي په محبت او راحت بدل شي. او که د ناچارۍ نه چرته جدا والي ته هم نوبت اورسي نو هغه به هم په ښه طریقه او د روغه او صلحه سره وي، د تعلقاتو قطع کول به هم داسې وي چه دشمني او عداوت به پکښې نه وي.

ایات ۱۲۸ د داسې حالاتو متعلق دے چه یو کوم کښې په غیر اختیاري طور سره د ښځې خاوند تعلقات کمزوري شي، او هر فریقه پخپل ځائے معذور ګڼړلے شي، او د یو بل سره د ورانې راتلو په وجه داګیره پیدا شي چه د یو بل په حقونو اداکولو کښې به کوتاهي راځي، لکه د یوے طرف سره د خاوند زړه نه لګي او د زړه نه لګیدو اسباب لوے کول د ښځې په اختیار کښې نه وي، مثلاً ښځه بدشکله یا بوډۍ ده او خاوند ځوان او ښائسته دے. نو ښکاره خبره ده چه په دے کښې نه ښځې ته ګناه شته او نه خاوند مجرم دے.

لکه چه د دے ایات په شانِ نزول کښې دغه شان شو واقعے په مظهري وغیره کښې نقل دي. په داسې حالاتو کښې د سړي د پاره یو عام قانون قرآن کریم دا خودلے دے چه: فَإِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوفٍ أَوْ تَسْرِيحٌۢ بِإِحْسَانٍ؛ چه که ساتے دا ښځه نو د دستور مطابق د دے ټول حقونه اداکوه او ساتې، او که په دے دے قدرت نه وي نو په غوره طریقه سره ئې آزاده کړه، او س که ښځه هم آزادید و ته تیاره وي نو معامله صفا ده چه تعلقات به په ډیر ښکلي انداز کښې قطع کړې شي. لیکن که یو داسې حالاتو کښې ښځه په څه وجه سره آزادي نه غواړي خواه د اولاد د فائدو د پاره یا په دے وجه چه بل ځائے ئې څه سهارا نشته، نو د لته یوه لاره چه خاوند دے په څه شي باندې راضي کړي. مثلا ښځه دے دخپلو ټولو یا بعضے حقونو مطالبه پاتے کړي، او خاوند دے دا خیال اوکړي چه د ډیرو حقونو د بارنه آزادیګم ښځه راته په مفتو کښې ملاویګي په دے دے صلح اوکړي.

قرآن کریم په دے ایات کښې خوږ د دے قسم مصلحت کولو ته په دے شان

سره رهنمائي فرمائيلې ده: وَاُحۡضِرَتِ الۡاَنۡفُسُ الشُّحَّ : يعنې ټولو نفسونو ته حرص راوړاندې شوې وي- په داسې مصلحت کښې خو ښځه دې حرص کوي چه که ماپريږدي نو اولاد به برباد شي، يا به بل ځائې ځائې ځاوند تريخ وي، او خاوند ته دا حرص دې چه هرکله ښځې خپل ټول مهريا بعضې معاف کړو او د نورو حقونو مطالبه ئې هم پاتې کړه نو اوس دې په ساتلو کښې ما ته هيڅ تکليف نيشته، نو په دې سره به په مينځ کښې صلح کول آسان شي- د دې سره ئې ارشاد اوفرمايه:

وَاِنِ امۡرَاَةٌ خَافَتۡ مِنۡۢ بَعۡلِهَا نُشُوۡزًا اَوۡ اِعۡرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَاۤ اَنۡ يُّصۡلِحَا بَيۡنَهُمَا صُلۡحًا: يعنې که يوه ښځه د خپل خاوند د جګړې يا بې مخې نه يريږي نو په دواړو کښې په هيڅ ګناه نيشته چه په خپل مينځ کښې په خپله خاصو شرطونو سره صلح اوکړي - او نه ګناه ئې ورته ځکه اووې چه د دې معاملې ظاهر د رشوت په شان دې- چه خاوند ته د مهر وغيره معاف کولو لالچ ورکوي او کوژدنې ژوند باقي پاتې کوي- ليکن د قرآن دې ارشاد ښکاره کړه چه دا په رشوت کښې داخل نه دې بلکه صلح ده- چه په دې کښې فريقين خپله خپله ځنې مطالبه پاتې کوي او يو بل سره رضا مند کيږي، او دا جائز دي-

| | |
|---|---|
| په تفسير مظهري کښې دي چه د الله تعالیٰ : اَنۡ يُّصۡلِحَا بَيۡنَهُمَا صُلۡحًا: فرمائيلې دي | د ښځې خاوند په جګړه کښې نورو لره بې ضرورته دخل کول مناسب نه دي |

يعنې ښځه خاوند دې په خپل مينځ کښې په خپله جوړ سره صلح اوکړي- په دې کښې د : بَيۡنَهُمَا : د لفظ نه دې طرف ته اشاره راوځي چه د ښځې خاوند په معاملو کښې غوره دا ده چه بل دريم دخل اونه کړي دا دواړه دې په خپل مينځ کښې په خپله خبره باندې جوړ شي - ځکه چه د دريم کس په مداخلت سره بعض وخت صلح کول ګران شي او که صلح اوشي هم نو د جانبينو عيبونه د دريم کس په مخ کښې بې لا وجه ښکاره شي او د دې نه ځان ساتل د دواړو د پاره مصلحت دې-

د ذکر شوي آيات په آخر کښې فرمائي: وَاِنۡ تُحۡسِنُوۡا وَتَتَّقُوۡا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرًا: يعنې په داسې حالت کښې چه ښځې له ستا زړه نه ورځي او د دې وجه سره ئې حقونه نشې اداکولې آزاده ول ئې غواړې- نو ستا ته دا حق هم

حاصل دے چه آزاده ئے کړے - او د ښځے د ځینے مطالبو په پاتے کولو ورسره صلح هم جائز ده د آیات د اولنی جملے په ذریعه سره - لیکن که د الله تعالیٰ یره ځان ته راوړاندے کړے او د احسان نه کار واخلے، او د ذړه نه لګید وباوجود ورسره تعلقات ښهٔ کړے او د دے ټول حقوق هم پوره کوے، نو ستا دا نیک عمل د الله تعالیٰ د دړاندے دے نو نتیجه به ئے داوی چه الله تعالیٰ به تا لره ستا د دے ښه سلوک او صبر بدله داسے نعمتونه او حقوق درکړی چه ته ئے تصوّر هم نشے کولے - او په دے وجه سره ئے صرف دلته دا اوخودل ..........

چه ستا دا نیک عمل زمونږ د وړاندے دے - او د دے ذکر ئے اونه کړه چه د دے بدله به مونږ څهٔ درکړو؟ په دے کښے اشاره دے طرف ته ده چه دغه بدله به ستا د وهم او خیال نه هم زیاته وی -

د دے آیات د مضمون خلاصه داشو چه خاوند کله داوینی چه د ده زړهٔ دے خپلے ښځے لره په هیڅ وجه سره نه ورځی او حقونه ئے نه پوره کیږی نو ترڅو مره پورے چه د ښځے د اختیاری معاملو تعلق دے د دے د اصلاح کوشش اوکړی د تنبیه د پاره په عارضی طور سره تربے مخ واړه وی په ئر به سره دے ئے پوهه کړی او په مجبورئ سره که معمولی وهلو ته ضرورت وی نو هم دے اوکړی لکه د سورت نساء د شروع په آیاتو نو کښے چه تیر شوی دی، او که د دے ټولو کوششونو باوجود د اصلاح نه نا امیده شی یامعامله داسے وی چه د هغے ټیک کول د ښځے په اختیار کښے نه وی نو اوس ده لره د شریعت قانون داحق ورکوی چه په ښهٔ طریقه سره بغیر د جنګ جګړے نه طلاق ورکړی او آزاده ئے کړی - لیکن که دے داسے اوکړی چه خپل حقونه نظر انداز کړی او د هغے حقونه پوره پوره اَدا کوی نو دا د ده د پاره غوره او ډیر اعلیٰ او لوئے عظیم ثواب دے - د دے په مقابله کښے که معامله بدلوی چه سړے واجب حقونه نهٔ اداکوی، په دے وجه ښځه آزادی غواړی نو په دے صورت کښے که خاوند هم په آزاده ولو راضی وی نو معامله صافه ده - ښځے ته هم داحق حاصل دے چه کله خاوند د حقونو د نهٔ اداکولو په بنا دے لره آزاده ول غواړی نو ښځه دے هم خپله آزادی اختیار کړی۔

او که خاوند ئې بغیر اختیار آزاده دَلو ته تیار نه وی نو ښځې ته دا حق حاصل دے چه په اسلامی عدالت کښې دَ خپلے آزادۍ مطالبه اوکړی او ځان آزاد کړی. لیکن که دا دَ خاوند په بے ځئ او بے تعلقۍ صبر کوی دَ خپلو حقونو مطالبه پاتے کړی او دَ خاوند حقونه ادا کوی نو دا دَ دے دَ پاره غوره او ډیره اعلیٰ او لوئے ثواب دے۔

لنډه دا چه یو طرف ته خپل تکلیف لرے کول او دَ خپل حق حاصلولو دپاره فریقو ته قانونی حق قرآنِ کریم ورکړو، دویم طرفته دواړو وته ئې دَلو یو اخلاقو او خپلو حقونو پریخودو باندے دَ صبر تلقین اوکړه، او دا هدایت ئې ورته اوفرمائیلو چه تر څو پورے کیدے شی دَ دے تعلق دَ قطع کولو نه ځان ساتل پکار دی۔ او پکار دی چه دَ جانبینو نه څهٔ څهٔ حقونه ترک کړے شی په څهٔ خاص صورت باندے صلح اوکړی۔

دَ دے آیات په شروع کښې ئې دَ ښځې خاوند دَ اختلاف په وخت کښې دَ صُلح صرف جائز والے خودَلے دے، او دَ آیات په آخر کښې ئې دَ صلح نه کیدو په صورت کښې ئې هم په صبر او تحمّل سره دَ تعلق پځائے پاتے کولو تلقین فرمائیلے دے په مینځ کښې ئې یوه داسے جمله ارشاد فرمائیلے ده چه دَ دے نه دَ صلح غوره والے او بهتر والے ثابتیږی ارشاد دے: وَالصُّلْحُ خَيْرٌ: یعنی دَ یو بل سره صلح کول غوره دی۔ او دا جمله ئې په داسے عام انداز سره بیان کړے ده چه زیرِ بحث دَ ښځې خاوند جګړے په کښے هم داخلے دی او نور قسم کور نی ځانات فی الخصلات هم۔ او دَ ټولے دنیا معاملے او جګړے او مقدمے هم۔ ځکه چه دَ قرآن الفاظ عام دی چه صلح غوره ده۔

دَ مضمون نچوړ دا دے چه دواړه وجانبو لره پوره په پوره بشپړو مطالبو دَ اړه کیدو نه دا غوره ده چه دواړه جانبه دَ خپلو ځنو مطالبونه دست بردار شی او په څهٔ میانه حل صورت باندے په رضامندۍ سره صلح اُو کړی۔ دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے:

كُلُّ صُلْحٍ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ إِلَّا صُلْحًا أَحَلَّ حَرَامًا أَوْ حَرَّمَ

یعنی دَ مسلمانانو په مینځ کښې په هر قسم سره صُلح کول جائز دی بغیر دَ هغے صُلحے نه

حَلَالًا وَالْمُسْلِمُوْنَ عَلٰى شُرُوْطِهِمْ إِلَّا شَرْطًا حَرَّمَ حَلَالًا۔

(رواه الحاكم عن كثير بن عبد الله، تفسير مظهري)

نه پکومه کښې چه حرام حلال یا حلال حرام شوې وی، او مسلمانا نو لره پخپلو منلو شوو شرطونو باندې قائم پاتې کیدل ایکار دی بغیر د هغو شرطونو نه پکومو کښې چه حلال حرام مقرر شوی وی "۔

مثلاً د یوې ښځې سره په دې شرط باندې صلح کول جائز نه دی چه د دې سره به د دې خور هم په نکاح کښې ساتی۔ ځکه چه د دوه وو خویاندو په یو نکاح کښې جمع کول شرعاً حرام دی۔ یا په دې صلح او کړی چه د بلې بی بی حقونه به نه ادا کوی، ځکه چه په دې کښې یو حلال لوه حرام مقرر کول دی۔

او په روایت کښې ئې هرې صلحې لوه په عام طور سره جائز مقرر کړې ده۔ د دې عاموالی نه امام اعظم ابوحنیفة رحمه الله دا مسئله راویستلې ده۔ چه د صلحې ټول اقسام جائز دی خواه په اقرار سره وی لکه په چا چه دعوه شوې وی هغه دا اقرار او کړی چه د دعوه کوونکی د دعوې مطابق ځما په ذمه د ده ذر روپئ واجب الأداء دی۔ بیا صلح په دې او شی چه دعوه کونکې دې په دې کښې څۀ رقم پاتې کړی یا دې د دې رقم په بدل کښې د ده نه څۀ شے واخلی، یا په چا چه دعوه شوې وی هغه د دعوې په باره کښې اقرار او انکار هیڅ اونه کړی او داوائې چه په حقیقت کښې هرڅۀ چه وی خو زۀ غواړم چه ته په دې صورت باندې صلح او کړې، یا په چا چه دعوه شوې وی هغه د دعوې نه قطعی انکار او کړی۔ لیکن د انکار سره د جګړې ختمولو د پاره څۀ ورکولو باندې راضی شی، او په دې صلح اوشی۔ دا درې واړه قسمونه د صلحې جائز دی۔ د چپ کیدو او انکار په صورت کښې د بعضې فقهاؤ اختلاف هم دې۔

په آخر کښې یوه مسئله د ذکر کولو قابل ده چه تعلق ئې د ښځې خاوند په مابین کښې د مصالحت سره دے چه ذکر ئې په دې آیات کښې شوې دے هغه دا چه کړیوې ښځې د خپلو بعضو حقونو په پرېښودلو باندې صلح او کړه نو دا صلح ځکه د ښځې د غه حق کوم چه د صلحې په وخت کښې په خاوند باندې وی په قطعی طور سره ختم کړی۔ لکه د مهر قرضه چه په خاوند باندې د دې صلحې نه مخکښې واجب

الا دا شوے دہ۔ نو په دے وجه چه کله دا پوره مهر یا د دے د څه حصے په معاف کولو باندے صلح اوکړی نو د غه مهر یا د غه حصه د مهر به ساقطه شی د دے نه پس به بیا د دے د مطالبے حق باقی نه وی لیکن کوم حقونه چه داسے دی چه د صلح په وخت کښے د هغے ادا کول په خاوند واجب نه وُو مثلًا د راتلونکے زمانے نان نفقه یا د شپے حق چه د دے واجب کیدل د راتلونکے زمانے سره تعلق لری بالفعل د دهٔ په ذمه واجب نه دی نو د دے حقونو په پاتے کولو که صلح اُوشوه نو د ښځے د مطالبے حق د همیشه د پاره نه ختمیږی۔ بلکه کله چه د دے زړهٔ اوغواړی نو وئیلے شی چه د آئنده د پاره زهٔ د خپل دے حق پاتے کولو ته تیاره نه یم نو په دے صورت کښے خاوند ته اختیار دے چه دے لره آزاده کړی (تفسیر مظهری وغیره)

آخری آیات یعنی په: وَإِن يَتَفَرَّقَا يُغْنِ اللَّهُ كُلًّا مِّن سَعَتِهِ ؕ کښے دواړو فریقو لره تسلّی ورکړے شوے ده چه که د اصلاح او صلح ټول کوششونه ناکامه شی او جدائی راشی نو په دے سره هم د خفه کیدو ضرورت نیشته الله تعالیٰ به هر یو د یل نه بے حاجته کړی د ښځے د پاره به بل خائے او بل سرپرست او سړی ته بله ښځه ورکړی۔ د الله تعالیٰ قدرت ډیر لوئے دے د هغهٔ نه د نا اُمیده کیدو هیڅ وجه نیشته۔ په دوی کښے دے دواړه په خپل هغه ژوند نظر واچوی کوم چه د نکاح نه وړاندے وه چه دوی یو بل پیژندهٔ هم نه او الله تعالیٰ دوی جوړه کړل۔ نن هم بیا داسے صورت پیدا کیدے شی۔

د آیات په آخر کښے ئے: وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ؕ او فرمائیل دے خبرے لره ئے نوره پخه کړه چه د الله تعالیٰ سره لویه فراخی ده او د دهٔ په هر یو کار کښے حکمت وی۔ ممکنه ده چه په دے جدا والی کښے حکمت او مصلحت وی۔ د جدائی نه پس دواړو ته داسے جوړے ملاؤ شی چه د دواړو ژوند به ئے ښهٔ شی۔

**په غیر اختیاری کارونو نیول نیشته**

د کورنی ژوند د ښهٔ کولو او همیشه پاتے کولو د پاره چه قرآنِ عظیم په دے ذکر شوو آیاتونو کښے کوم هدایتونه دواړو فریقو ته ورکړی دی په دے آیاتونو کښے یو آیات دا دے: وَلَن تَسْتَطِيعُوا أَن تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ ۱۲۹؛ یعنی فریقینو ته ئے یو خاص هدایت فرمائیلے دے۔

مخه داچه که د یو سړی په نکاح کښې د یوې نه زیاتې ښځې وی نو قرآن کریم د سورت نسآء په شروع کښې ده ته دا هدایت اوکړو چه د ټولو ښځو په مینځ کښې عدل او برابرے ساتل د ده په ذمه فرض دی۔ اوکه د چا دا خیال وی چه دا فرض به زه ادا نه کړے شم نو ده لره په کار دی چه د یوې نه زیاتې ښځې نه کوی۔ ارشاد دے ﴿فَاِنْ خِفْتُمْ اَلَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً﴾: "یعنی که ستاسو سره دا یره وی چه برابرے به اونه کړے شم نو بیا په یوه صبر کوئ"۔

او نبی کریم صلے اللہ علیہ وسلم په خپل قول او عمل سره په بیبیانو کښې د عدل او برابری ډیر په تاکید سره حکم کړے دے او د دے په خلاف کولو ئے د سخت عذاب وعده فرمائیلے ده۔ حضرت عائشہؓ فرمائی چه نبی کریم صلے اللہ علیہ وسلم به د خپلو پاکو بیبیانو په مینځ کښې د برابری او عدل ساتلو ډیر اهتمام فرمائیلو۔ او د دے سره به ئے د اللہ پاک په دربار کښې عرض کولو:

| | |
|---|---|
| اَللّٰهُمَّ هٰذَا قَسْمِیْ فِیْمَآ اَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِیْ فِیْمَا تَمْلِكُ وَلَآ اَمْلِكُ۔ | "یعنی اے اللہ دا ځما منصفانه تقسیم او مساوات په هغه شی کښې دے چه ځما په اختیار کښې دے نو په دے وجه کوم شے چه ستا په |

اختیار کښې ځما په اختیار کښې نه دے (یعنی د زړهٔ میلان) په دے کښې ما مه نیسے"۔

د نبی کریم صلے اللہ علیہ وسلم نه زیات په خپل ځان باندے قابو لرونکے څوک کیدے شی؛ لیکن د زړهٔ میلان دوئ هم د خپل اختیار نه باهر مقرر کړو۔ او د اللہ تعالیٰ په دربار کښې ئے عذر پیش کړو۔

د سورت نساء په شروع کښې چه کوم آیات دی د دے د الفاظو نه په ظاهر مطلق په بیبیانو کښې برابرے فرض معلومیګی چه د زړهٔ په میلان کښې هم برابرے کول پکښې شامل دی، او دا معامله د انسان په اختیار کښې نه ده۔ په دے وجه د سورت نساء په دے آیات کښې ئے د حقیقت وضاحت اوفرمایه چه پکو مو ځیزو نو ستاسو قدرت نیشته په دے کښې مساوات (برابرے) فرض نه دے۔ البته برابرے به په اختیاری معاملاتو کښې وی، مثلاً د شپے په وار کښې په طرز او سلوک کښې په نان نفقه وغیره کښې۔ اللہ تعالیٰ دا حکم په دا سے طرز سره بیان کړو چه په دے سره یو شریف انسان په عمل کولو مجبوره شی۔ فرمائی:

وَلَنْ تَسْتَطِيْعُوْٓا اَنْ تَعْدِلُوْا بَيْنَ النِّسَآءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ
فَتَذَرُوْهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ؕ "يعنى تاسو ته معلومه ده چه تاسو په ټولو ښځو نو كښې كه كوشش هم كوئ خو د زړه د ميلان په باره كښے برابرے نشئ كولے ځكه چه دا ستاسو په اختيار كښے نه ده، نو بيا داسے مه كوئ چه پوره يو طرفته كاږه شئ، يعنى د زړه ميلان خو هم دے طرفته وى او په اختيارى معاملو كښے هم دے طرف لره غوره كړئ چه نتيجه ئے داشى چه هغه بله ښځه آويزانه پاتے شى- يعنى خاوند ئے حقونه هم نه ادا كوى او آزاده وى ئے هم نه"۔

معلومه شوه چه په دے آيات كښے په عدل باندے چه د چا د قدرت نه راتلو كوم ذكر دے دا د زړه د مينے او ميلان برابرى ده چه د انسان په اختيار كښے نه ده، او د دے آيات په الفاظو: فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ؛ كښے پخپله د دے معنٰى قرينه موجوده ده - ځكه چه معنٰى د دے الفاظو داده، چه اګر چه د زړه په مينه كښے برابرے ستاسو په قدرت كښے نيشته ليكن بالكل يو طرف ته كيږئ مه. چه په اختيارى معاملو كښے هم دے لره ترجيح وركړئ-

په دے شان سره دا آيات د سورت نسآء د اولنى آيات تشريح شوه چه د هغے د ظاهرى الفاظو نه د زړه په مينه كښے هم د برابرۍ راوستو فرض والے معلوميده- دے آيات ښكاره كړه چه دا په وجه د غير اختيارى كيدو فرض نه دى- بلكه په اختيارى كارونو كښے برابروالے فرض دے -

**د دے آيات نه د ښځو د ډيروالى خلاف دليل نيول قطعاً غلط دے**

د دے تفصيل نه د هغے خلقو غلط فهمى هم په ډاګه شوه كوم چه دا دواړه آيات نه يو ځائے كوى دا نتيجه ترے راوېستل غواړى، چه د سورت نساء په شروع كښے آيات دا حكم اوكړو چه كه په څو ښځو كښے برابرے نه شئ كولے نو بيا په يو نكاح باندے صبر كوئ، دويم نكاح مه كوئ- او دے دويم آيات دا اوخوده چه په دوه ؤو بيبيانو كښے برابرے هډو ممكن نه دے- نو نتيجه ترے دا را اووته چه دوه ښځے هډو په نكاح كښے ساتل جائز نه دى- او عجيبه خبره داده چه الله تعالىٰ پخپله په دے دواړو آياتونو كښے د دے غلط فهمۍ د لرے كولو سامان كړے دے- د دويم آيات قرينه اوس تيره شوه.

چه دَ: فَلَا تَمِيْلُوْا كُلَّ الْمَيْلِ: الفاظ دی - او په اولنی ایات کښې ئې دا او فرمائیل: فَاِنْ خِفْتُمْ اَنْ لَّا تَعْدِلُوْا فَوَاحِدَةً: نو په دې کښې په طور دَ شرط سره دا فرمائیل چه "که تاسو یریږئ" دا خو ښکاره قرینه ده دَ دې خبرې چه په دوه ښځو کښې عدل او برابرې ناممکن یا دَ اختیار نه باهر نه دې - ورنه دومره اوګډ عبارت او هغه هم بیا په دوه ایاتونو کښې هیڅ ضرورت ورته نه وُه - لکه حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ اُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ والا ایات کښې دَ هغه ښځو تفصیل دې دَ کوموسره چه نکاح حرام دې او: وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ: ئې او فرمائیل دوه خویانده و لره په نکاح کښې جمع کول ئې حرام کړه دغه شان دا به ئې هم فرمائیلی وُو چه په یو وخت کښې دوه ښځې په نکاح کښې ساتل حرام دی او بیا به دَ: اَنْ تَجْمَعُوْا: سره قید دَ بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ: فضول شوې وه - په دغه یوه جمله کښې به ئې دا سې فرمائیلی وُو: وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ امْرَءَتَيْنِ: یعنی مطلق دوه ښځې په نکاح کښې جمع کول حرام دی، لیکن قرآن کریم دا لنډه خبره پاتې کړه نه یو ائې دا چه یوا وګډ عبارت ئې دا وړو بلکه په دوه وُوا ایاتونو کښې ئې دَ دې تفصیل بیان کړو - دَ دینه دا هم معلومه شوه چه ایات دَ: وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ: هم په یو حیثیت سره دَ دې جواز ښائی چه دَ یو نه زیاتې ښځې په نکاح کښې جمع کول حلال دی او جائز دی مګر شرط دا دې چه دغه دوا په پخپل مینځ کښې خویانده نه وی -

وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَلَقَدْ وَصَّيْنَا

او خاص الله لره دی څه چه په آسمانونو کښې او څه چه په زمکه کښې دی - او مونږ حکم کړې دې

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَاِيَّاكُمْ اَنِ اتَّقُوا

اولنو اهل کتابو ته او تاسو ته چه یره کوئ

اللّٰهَ ؕ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي

دَ الله نه - او که تاسو نه منئ نو الله لره دی هغه چه په آسمانونو کښې دی او هغه چه په

الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴿۱۳۱﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ

زمکه کښې دی - او دے الله بے حاجته ټولو صفتونو والا دے - او خاص الله لره دی هغه څه چه په اسمانونو

وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۱۳۲﴾ اِنْ يَّشَاْ

کښې دی او هغه چه په زمکه کښې دی - او کافی دے الله کارساز - که اوغواړی

يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ بِاٰخَرِيْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ

نو لرے به کړی تاسو اے خلقو او راوبه ولی نورو لره - او الله په دے

عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿۱۳۳﴾ مَنْ كَانَ يُرِيْدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا

باندے قادر دے - څوک چه غواړی ثواب د دُنیا

فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ؕ وَكَانَ

نو د الله سره دے ثواب د دنیا او د آخرت - او الله

اللّٰهُ سَمِيْعًا بَصِيْرًا ﴿۱۳۴﴾ ع ۱۹ ۸ ۱۶

هرڅه آوری او وینی ئی -

**د آیاتو تړون** د ښځو او د یتیمانو د حکمونو بیا نولو نه پس د قرآن د طرز مطابق ئے بیا د ترغیب او ترهیب مضمون ارشاد او فرمایه -

# لنډ تفسیر

او د الله تعالیٰ په ملکیت کښې دی څه څیز و نه چه په اسمانونو کښې دی او څه څیز و نه چه په زمکه کښې دی (نو د دا سے مالک حکمونه منل ډیر ضروری دی) او (د حکم منلو دا خطاب خاص تاسو ته نه دے بلکه) واقعی مونږ حغه خلقو ته

هم حکم کړے وه کوم چه ستاسو نه وړاندے ورته (آسمانی) کتاب (یعنی تورات او انجیل) ملاؤ شوے وه او تاسو ته هم (حکم دے) چه د الله نه یره کوئ (کوم ته چه تقوی وائی، چه د نولو حکمونو سره ئے موافقت دے، په دے وجه دا سورت ئے د تقوی نه شروع کړو او د دے په تفصیل کښے ئے مختلف حکمونه راوړی دی) او که دا هم دویته او تاسو ته داؤره وَلے شو چه) که تاسو ناشکری او کړه (یعنی د الله تعالیٰ د حکمونو نه مخالفت او کړئ) نو (د خدائے تعالیٰ هیڅ نقصان نیشته البته ستاسو نقصان دے ځکه چه) د الله تعالیٰ ملکیت دی څهٔ څیزونه چه په اسمانونو کښے دی او څهٔ څیزونه چه په زمکه کښے دی (نو د داسے لوئے بادشاه به څهٔ نقصان وی البته د داسے لوئے بادشاه مخالفت کول بے شکه چه مُضر دی) او الله تعالیٰ د چا (د عبادت) محتاجه نهٔ دے (او) پخپله پخپل ذات کښے صفت کړے شوے (په کاملو صفاتو) دے (پس د چا په مخالفت سره د هغهٔ په صفتو نو کښے څهٔ نقصان نه لا زمیږی) او د الله تعالیٰ ملکیت دی څهٔ څیز و نه چه په اسمانونو کښے دی او څهٔ څیز ونه چه په زمکه کښے دی او (هر کله چه هغه داسے قادر او مختار دے نو د خپلو عبادت کونکو بندګانو د پاره هغه) الله تعالیٰ کارساز دے (نو پس چه دے کارساز دے نو د دهٔ حکم منونکو ته به څوک ضرر اورسولے شی۔ نو د چا نه یره نه ده پکار او الله تعالیٰ چه تاسو ته د دین کار بنائی نو ستاسو د نیک بخت کولو د پاره ورنه هغه دا کار د نورو نه هم اغستے شی ځکه چه د هغه قدرت داسے دے چه) که الله تعالیٰ غوښتے نو اے خلقو تاسو ټول به ئے فنا کړی وے او نورو لره به ئے موجود کړی وُو (او د هغوی نه به ئے کار اغستے لکه په بل یو ایات کښے دی: إِنْ تَتَوَلَّوْا يَسْتَبْدِلْ الخ:) او الله تعالیٰ په دے پوره قدرت لری (ربیا چه داسے ئے او نه کړه نو د هغهٔ مهربانی ده د حکم منل غنیمت او ګنړئ خوش قسمتی حاصله کړئ او ګورئ د دین د کار اصل میوه په آخرت کښے ده په دنیا کښے که ملاؤ نه شی نو زړهٔ مه بَد وئ بلکه) د الله تعالیٰ سره (یعنی د هغهٔ په قدرت کښے) خو د دنیا او آخرت دواړه و بدله (موجوده) ده (هر چه اعلیٰ او ادنیٰ دواړه د هغه په قدرت کښے دی نو اعلیٰ شے ترے ولے نشی غوښتے) او الله تعالیٰ لوئے آؤریدُونکے لوئے لیدونکے دے (د ټولو خبرے او درخواستونه

که د دنیا وی او که د دین آوری او د تولو نیتونه ور ته معلوم دی پس د آخرت طلب کوونکو ته به ثواب ور کوی او د دنیا طلب کوونکی به د آخرت نه محروم او ساتی پس د آخرت نیت او درخواست کول پکار دی، البته د دنیا حاجت مستقل طور غوښتل ځۀ بد نه دی لیکن په عبادت کښې دې دا قصد نه کوی) -

## مَعلومَات او مَسئلې

**ضروری فائدې** :لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ: یعنی د الله تعالیٰ د پاره دی د "اسمانونو او زمکې ټول مخلوقات" دلته ئې دا الفاظ درې پیرے بیا بیا مکرر راوړی دی، په اول سره فراخی او وُسعت مقصود دے چه د هغۀ سره د هیڅ شی کمی نیشته - په دویم سره بے نیازی او بے حاجتی بیا نول مقصود دی چه هغه د هیچا پرواه نه کوی که تاسو منکو شئ - په دریم سره د رحمت او کارسازئ اظهار دے چه که تاسو تقویٰ او فرمانبرداری اختیار کړئ نو هغه به ستاسو ټول کارونه برابر کړی -

په دریم ایات کښې ئې دا خبره په ډاګه کړے ده چه الله تعالیٰ په دے قادر دے چه تاسو ټولو لره فنا کړی او د دنیا نه تاسو لره اُوچت کړی او نور حکم منونکی او فرمانبردار خلق پیدا کړی په دے سره هم د الله تعالیٰ استغناء او بے حاجتی ښۀ ښکاره شوه او نا فرمانو ته زور نه اوړه شوه -

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ

اے ایماندارو! قائم او سئ په انصاف سره کواهی کوئ

لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ ۚ اِنْ

د الله د طرفه اګرچه نقصان وی ستاسو یا د مور و پلار یا د خپلوانو - که څوک

يَّكُنْ غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا ۖ فَلَا تَتَّبِعُوا

مالدار دے یا محتاج دے نو د دوی خیر خواه الله دے ستاسو نه زیات - پس تاسو تابعداری مکوئ

الْهَوٰٓى اَنْ تَعْدِلُوْا ۚ وَاِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ

ذړۀ د خواهش په انصاف کولو کښې - او که تاسو ژبې واړه وئ یا ډډه او کړئ نو

اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿١٣٥﴾

الله تعالیٰ ستاسو د ټولو کارونو نه خبردار دے -

# لنډ تفسیر

اے ایمان دارو! (په ټولو معاملو کښې د حق ادا کولو په وخت کښې هم او د فیصلے په وخت کښې هم) په انصاف بنه قائم او سید ونکی راوچه د اقرار یا د ګواهۍ وخت راشی نو) د الله (د خوشحاله کولو) د پاره (رشتونے ګواهی ورکوونکی اوسئ اګر چه (دغه ګواهی او اقرار) د خپل ذات خلاف وی (چه اقرار دور ته وائی) یا د مور و پلار او رشته دارانو په مقابله کښې وی (او د ګواهۍ په وخت کښې دا خیال مکوئ چه کچا په مقابله کښې چه زه ګواهی ورکوم دا امیر دے دۀ ته نفع رسول پکار دی چه بے مروتی او نه شی یا غریب دے د دۀ نقصان ولے او کړم تاسو په ګواهۍ ورکولو کښې د چا امیرۍ، غریبۍ یا نفع نقصان ته مه ګورئ ځکه چه) دغه سړے (د چا خلاف چه ګواهی ورکول وی) که امیر دے او که غریب دے نو د دواړو سره د الله تعالیٰ زیات تعلق دے (د دومره تعلق ورسره ستاسو نیشته، ځکه دا ستاسو چه ورسره څومره تعلق دے دا هم د هغۀ درکړے شوے دے، او د الله تعالیٰ چه ورسره کوم تعلق دے دا ستاسو ورکړے شوے نه دے. نو بیا چه ورسره د الله تعالیٰ تعلق ستاسو د تعلق نه قوی دے او هغه ئے مصلحت په دے کښې ایخو دے دے چه په ګواهۍ کښې دے حقه خبره اوکړے شی لواه که وقتی طور پورے ئخۀ نقصان هم رسی، نو تاسو د خپل کمزوری تعلق په وجه په خپل شهادت کښې د هغۀ یو عارضی فائدے ته خیال ولے کوئ) پس تاسو (په دے شهادت کښې) د نفس د خواهش تابعداری مه کوئ چه د حق نه واوړئ، او که تاسو کوږ بیان اوکړئ (یعنی غلطه ګواهی ورکړئ) یا ترے ځا ن

ځان او ساتئ (یعنی شهادت او نه کړئ) نو (یاد ساتئ) بے شکه الله تعالیٰ ستاسو
د ټولو عملونو پوره خبر لری -

# معلومات او مسئلے

په دنیا کښے د پیغمبرانو او اسمانی کتابونو لیږلو اصل مقصد عدل او انصاف قائمول دی په دے سره د دُنیا اَمن قائمیدے شی۔

د سورتِ نساء په دے ایات کښے ټولو مسلمانانو ته په عدل او انصاف د قائم اوسیدلو او د رشتونے ګواهئ د ورکولو هدایت شوید ے او کوم څیزونه چه د عدل په قائمولو کښے یا د رشتونے ګواهئ په ورکولو کښے بندیز راولی هغه ئے ډیر په زړه راخکونکی انداز سره لرے کړی دی۔ د دے مضمون یو ایات په سورت مائده کښے هم راروان دے۔ د دواړو مضمون بلکه الفاظ هم تقریبًا یو شان دی۔ او د سورتِ حدید د ایات نه معلومیږی چه دنیا ته د آدم علیه السلام د خلیفه جوړولو ..... اوراليږلو او بيا د هٔ نه روستو نورو پيغمبرانو لره پر لپسے په حيثيت د الله د خليفه ګانو د راليږلو او د دوی سره د ډيرو کتابونو او صحيفو د نازلولو اهم مقصد داوه چه په دُنيا کښے انصاف او د دے په ذريعه امن او امان قائم وی۔ هر انسان د خپل اختيار په دائره کښے انصاف خپل شعار جوړ کړی۔ او کوم سرکشه خلق چه په وعظ نصيحت او تعليم او تبليغ عدل او انصاف ته نه راګرځی پڅپله سرکشئ اړوی، د دے د قانون او د سزا په ذريعه په انصاف باندے قائمو پاتے کيدو ته مجبوره کولے شی۔

د سورتِ حديد په پنځويشتم ايات کښے ئے دا حقيقت داسے واضحه کړے دے:

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلَنَا بِالْبَيِّنٰتِ وَاَنْزَلْنَا مَعَهُمُ الْكِتٰبَ وَ الْمِيْزَانَ لِيَقُوْمَ النَّاسُ ...... بِالْقِسْطِ وَاَنْزَلْنَا الْحَدِيْدَ فِيْهِ بَاْسٌ شَدِيْدٌ وَّمَنَافِعُ لِلنَّاسِ۔

"یعنی مونږ خپل پیغمبران د ښنو سره لیږلی دی او نازل کړے مو دے د دوی سره کتاب او تله چه خلق برابر شی په انصاف باندے او مونږ نازله کړے ده اوسپنه په دے کښے ډیر رُعب دے او په دے سره د خلقو کارونه چلیږی"۔

دَ دے نه معلومه شوه چه دَ پیغمبرانو دَ رالیګلو او دَ اسمانی کتابونو دَ نازلولو دا ټول نظام دَ انصاف قائمولو دَ پاره جوړ شوے دے - او په اخر کښے دَ اوسپنے نازلولو ذکر ئے او کړو دے طرف ته ئے اشاره او کړه چه دَ ټولو خلقو په انصاف باندِ دَ قائمولو دَ پاره به صرف وعظ او نصیحت پوره نۀ شی بلکه څۀ شویان خلق به داسے هم وی چه دَ اوسپنے په زنځیرونو او توروسلو سره به پرے رُعب اَچولے شی او په انصاف به قائمولے شی -

| | |
|---|---|
| په عدل او انصاف قائم پاتے کول صرف دَ حکومت فرض نۀ دی بلکه هر انسان په دے مېولے شوے دے | دَ سورتِ حدید دا ذکر شوے ایات او دَ سورتِ نسآء په دے ایات کښے دغه شان دَ سورتِ مائده په ایات: کُوْنُوْا قَوّٰامِیْنَ |

لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ ز وَلَا یَجْرِمَنَّکُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓی اَلَّا تَعْدِلُوْا اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰی ز اِنَّ اللّٰهَ خَبِیْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ ط، کښے ئے په واضح طور سره دا هدایت ورکړے دے چه انصاف قائمول او په دے قائم پاتے کیدل صرف دَ حکومت او عدالت فرض نۀ دی بلکه هر انسان په دے باندے مکلّف رشولے شوے) او مخاطب دے، چه دے به پخپله هم په انصاف باندے قائم وی او نورو لره به هم په انصاف باندے دَ قائمولو کوشش کوی - البته دَ انصاف صرف یوه درجه دَ حکومت او حاکمانو سره خاص ده هغه داده چه شریر او سرکشه خلق هرکله چه دَ انصاف خلاف ضد او نیسی نۀ پخپله په انصاف قائمیکی او نۀ نورو لره انصاف کولو ته پریدی نو دۀ لره دَ حاکمانۀ سزا ضرورت وی او داعدل او انصاف قائمول بیا دَ حکومت کار وی چه په لاس کښے ئے اقتدار وی، هغه به ورلره سزا ورکوی -

په نننئی دنیا کښے جاهل عوام خو پریده تعلیمیافته حضرات هم دا گنړی چه انصاف کول صرف دَ حکومت او عدالت فرض دی - عوام دَ دے ذمه وار نۀ دی او همدا وجه ده چه په هر حکومت او هر ملک کښے دے خبرے حکومت او عوام دوه جُدا جُدا ډلے جوړے کړی دی - دَ رعیت او دَ حاکم په مینځ کښے ئے دَ خلاف او اختلاف یو لوئے دیوال وهلے دے - دَ هر ملک عوام دَ خپل حکومت نه دَ عدل او انصاف مطالبے کوی - لیکن پخپله په انصاف قائم پاتے کیدو ته تیار نۀ دی -

او هم د دے نتیجه ده چه دنیا وینی هر ځائے قانون بے اثره دے جهونه ورځ په ورځ ترقی کوی. نن په هر ملک کښے د قانون جوړه ولو د پاره اسمبلئ قائم دی په کروړه ونو روپئ پرے خرچ کیږی، د نمائنده ګانو د منتخب کولو د پاره د خدائے تولو دُنیا خوزی، او بیا دوی د ټول ملک د ضرورتونو د خلقو د جذباتو او احساساتو په رنړا کښے په ډیر احتیاط سره قانون جوړه وی، او بیائے د خلقو د رائے اغستو د پاره شائع کوی او د خلقو د رائے معلومولو نه پس دغه قانون نافذ کړے شی. بیا د دے د نافذ کولو د پاره د حکومت بے شماره مشینرئ په حرکت کښے راځی چه د دے په زرګونو نو بلکه په لاکونو شعبے وی او په هره شعبه کښے د ملک د لویو لویو تجربه کارو خلقو محنتو نه په کار راځی لیکن که د حقیقت په سترګو ورته او کتے شی نو هر سړے به بے ساخته په دے ویلو مجبوره وی چه ے

نګاهِ خلق میں دنیا کی رونق بڑھتی جاتی ہے — میری نظروں میں پھیکا رنګ محفل ہوتا جاتا ہے

(یعنی د دنیا خلق وائی چه دُنیا ترقی کوی - لیکن زما په نظر کښے لا بنه تنزّل ته روانه ده)

د نن نه شل کاله وړاندے زمانے د اوس زمانے سره (یعنی د ۵۷، ۱۸ او نه ۱۹۵۷ سره) موازنه او کړئ اعلٰے د وشمار محفوظ دی نو هغه به ګواهی ورکړی چه څومره قانون سازی زیاتیږی او په قانون کښے د خلقو د مرضئ نمائشونه سوا کیږی او د قانون نافذ کولو د پاره مشینرئ زیاتیږی د یو پولیس په ځائے په قسمونو پولیس په کار راوستے شی دومره ورځ په ورځ جهونه سوا کیږی او خلق د انصاف نه بنځه لرے وځی. او په دے رفتار سره د دنیا بد امنی په مخه سوا کیږی.

**د دُنیا د امن ضمانت صرف د آخرت عقیده او د خدائے یره ورکولے شي**

یو نیک بخت سړے نیشتے چه په غمیدلوسترګو او ګوری او د دے چلید ونګو رسمونو د ابند ونه او شلوی لږ د رسولِ عربی صلے الله علیه وسلم را وړی پیغام ته سوچ او کړی او ځان پرے پوهه کړی. او په دے حقیقت غور او کړی چه د دُنیا امن او سکون په دے قانونی تعزیراتو سره نه چرته حاصل شوے دے او نه به حاصل شی. د دُنیا د امن و امان ضمانت صرف د آخرت عقیده او د خدائے یره ورکولے شی.

چه دده په ذريعه د راعي اورعيت عواموا وحكومت په مينځ كښې فرائض مشترك كيږي او هر سړی ته د خپلو ذمه دارو احساس را پيدا كيږي، او عوام بيا داسې نه شي وئيلې چه د قانون حفاظت او احترام د حكومت كار دے موږ ترې ازاد يو د قرآن كريم دا ذكرشوي ايا تونه چه د عدل او انصاف قائمولو په سلسله كښې دي د دے انقلابي عقيدے په تلقين باندے ختم كړې شوي دي۔

د سورة النسآء د دے ايات په ختميد وباندے: اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا؛ ارشاد دے۔ او د سورت مائده په اخر كښې اول د تقوىٰ هدايت فرمائي او بيا فرمائي: اِنَّ اللّٰهَ خَبِيْرٌۢ بِمَا تَعْمَلُوْنَ؛ او د سورت حديد د ايات په اخر كښې ارشاد دے: اِنَّ اللّٰهَ قَوِيٌّ عَزِيْزٌ؛

په دے درے واړه ايا تونو كښې حاكمانو او عواموو دواړو ته په عدل او انصاف د قائم اوسيدو او خلقو لره په دے د قائم ساتلو د هدايت كولو نه پس د ايا تونو په ختميدو باندے د ټولو نظرونه دے حقيقت طرف ته را اړول شوي دي كوم چه د انسان په ژوند خيالاتو او جذ باتو كښې يو لوئے انقلاب پيدا كونكے دے يعني د خدائے تعالىٰ قوت او سلطنت او د هغه په مخ كښې حاضري او د حساب كتاب او جزا سزا تصوّر او خيال۔ دا هغه شے چه دے د نن نه سل كاله وړاندے اُن پرے دُنيا ته د نن په نسبت ډير زيات اَمن او سكون بخلے وه، او دا هغه شے دے چه د دے په هيره ولو او نظراندازكولو سره د نن ترقي يافته د اسمانونو سره خبرے كونكے سيارے په فضاء كښې الوز ونكے دُنيا د امن او سكون نه محرومه ده۔

روشن خياله دُنيا دے واوري چه د سائنس په حيرانونكو ترقو سره دوي اسمان ته ختے شي سيارو ته رسيدے شي په سمندرونو باندے تلے شي ليكن امن وامان، سكون او اطمينان چه د دے ټولو سامانونو او ټولو كارخانو اصل مقصد دے هغه نه دوي ته په يوه سياره كښې په لاس راتلے شي او نه د يو نوي نه په نوي ايجاد كښې، هغه كه ملاويږي نو د رسول عربي (چه ما روح دے پرے قربان وي صلے الله عليه وسلم) په پيغام او د هغوي په تعليماتو كښې، د خدائے تعالىٰ په منلو او د اخرت په حساب كتاب باندے په عقيده

لر لو کښې ملاویږی: اَلَا بِذِکۡرِ اللّٰهِ تَطۡمَئِنُّ الۡقُلُوۡبُ؛ د سائنس حیرانونکی نوی نوی ایجادات ورځ په ورځ د الله تعالیٰ کامل قدرت او بې مثاله کاریګری نوره نوره په ډاګه کوی چه د الله د دغو قدرتونو په وړاندې د انسان هره یوه ترقی د خپل عجز او درماندګئ اعتراف کوی لیکن ؎

"چه سود چون دلِ دانا وچشم بینا نیست"

"هیڅ فائده نه کوی چه پوهه زړه او د عبرت سترګې نه لری":

قرآن حکیم یو طرف ته د دُنیا د دے ټول نظام منشا د عدل او انصاف قائمول خودلی دی، بل طرف ته ئے د دے یو بے مثاله انتظام په داسے عجیبه او غریبه طریقه سره او فرمایه چه که دغه پوره نظام خپل کړے شی او په دے عمل او کړے شی نو دا خونخواره او بدکاره دنیا به په یوه داسے صالحه معاشره کښې بدله شی چه د آخرت د جنّت نه وړاندے به نقد جنت په دنیا کښې جوړ شی او د قرآن دا ارشاد: وَلِمَنۡ خَافَ مَقَامَ رَبِّهٖ جَنَّتٰنِ؛ یو تفسیر دا هم دے ـ چه څوک د خدائے نه یریږی هغو ته به دوه جنتونه ملاؤ شی یو په آخرت کښې دویم نقد په دُنیا کښې ـ چه په سترګو به ئے او وینی ـ او دا څهٔ هسے فرضی خیال یا خیالی سکیم نه دے ـ د دے پیغام راوړونکی پاک پیغمبر صلے الله علیه وسلم دے لوه په عملی صورت کښې راوستے او پرېښودے دے ـ او د دوی نه روستو خلفائے راشدینؓ او نورو د شریعت او سنّت تابعدارو باد شاهانو چه تر څو پورے هم په دے عمل کولو نو د بیړے او شرح په یو کور د داوبو سکلو فرضی مثال یو جوړ شوے حقیقت خلقو په دنړا سترګو او لید لو ـ د امیر غریب، مزدور او سرمایه دار فرق د سره ختم شو ـ د قانون احترام کول هر سړی د خپلو کورونو په بند وکړو کښې د شپے په ټیرو کښې کولو ـ دا څه قصه نه وه د تاریخ حقیقتو نه دی چه غیر مسلمانان برے هم چاړه دی او هر یو صاف زړے غیر مُسلم ئے هم په منلو مجبوره شوے دے ـ

د آیات د مضمون نه پس د آیات تفسیر په تفصیل سره او کوو:

په ذکر شوی آیات کښې: کُوۡنُوۡا قَوّٰمِیۡنَ بِالۡقِسۡطِ؛ فرمائیلی دی ـ د: قِسۡط؛ په زیر د قاف سره معنیٰ ده عدل او انصاف ـ او د عدل او انصاف حقیقت دا دے،

په دَهر يو خاوند دَحق پوره حق ادا کړے شي، چه په دے کښې دَ الله تعالیٰ حقونه هم داخل دي او دَ هر قسم مخلوق حقونه هم۔ نو په دے وجه دَ قيام بالقسط په معنیٰ کښې دا هم داخله ده چه څوک دے په چا ظلم نه کوي او دا يکښې هم داخله ده چه ظالم دَ ظلم نه منع کړے شي دَ مظلوم ملګر تيا دے اوشي او دا يکښې هم داخله ده چه دَ ظالم دَ ظلم نه دَ منع کولو او دَ مظلوم دَ حق اَغستلو دَ پاره که دَ شهادت ضرورت پيښ شي نو دَ شهادت نه دے ډډه نکوي۔ او دا يکښې هم داخله ده چه په شهادت کښې دِے دَ حق او حقيقت اظهار کوي خواه که دَ چا په خلاف کښې وي او که په حق کښې، دا يکښې هم داخله ده چه دَ چا په لاسو کښې حکومت او انتظام دے، هر کله چه دَ دوه فريقو مقدمه دوی ته وړاندے شي نو دَ دواړو فريقو سره دے يو شان معامله کوي، يو فريق ته چه په هيڅ قسم سره څه ميلان تړے او نه شي۔ دَ ګواهانو بيانونه دے په غور سره آوري۔ او دَ معاملے په تحقيق دے پوره کوشش خرچ کوي بيا دے فيصله په پُوره پُوره عدل او انصاف سره کوي۔

**دَعدل او انصاف په قائمولو کښې بندېزدا وستونکي سببونه**

دَ سورت نساء او سورت مائده دا دواړه ايا تونه اګر چه دَ مختلفو سورتونو دي ليکن مضمون دَ دواړو تقريباً يو شان دے۔ فرق دومره دے چه دَ عدل او انصاف په لاره کښې بند يزداچونکي عام طور سره دوه څيزونه وي، يو دَ چا محبت خپلولي يا دوستي او تعلق چه دَ دے خواهش په زړه کښې داوي چه ګواهي دے دَ دوی موافق اوشي چه دوی دَ نقصان نه بچ شي يا ورته نفع اورسي۔ او دَ فيصله کونکي قاضي ياجج په زړه کښې دَ دے تعلق تقاضا داوي چه فيصله دَ دوی په حق کښې اوشي۔ دويم شے دَ چا سره وُرانه او دُشمني ده، چه دا سے ګواه ګره دَ دوه بخلاف ګواهئ ورکولو ته تياره وي۔ او قاضي او جج دَ دوه خلاف فيصلے وَر کولو ته۔ غرض دا دے چه محبت او دُشمني دوه داسے څيزونه دي چه انسان لره دَ عدل او انصاف دَ لارے نه اړه وي په ظلم او زياتي کښې ئے اخته کوي۔ دَ سورتِ نساء او سورتِ مائده په دواړو وا يا تونو کښې دا دواړه بند يزونه لوے کړے شوي دي۔ دَ سورت نساء په ايات کښې ئے دَ خپلولئ او تعلق دَ بند يز لرے کولو

هدایت فرمائیلے دے ارشاد دے: اَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ: یعنے اګر چه ستاسو ګواهی د خپل مور و پلار یا نزدے خپلوانو خلاف وَلے نه وی خو هم په حقه خبره ویئیلو او رشتونی شهادت ورکولو کښے به د دے تعلق لحاظ نه ساتئ۔

او د سورت مائده په ایات کښے ئے د دُرانے او دُشمنئ بند یز لرے کړے دے فرمائی: لَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓى اَلَّا تَعْدِلُوْا اِعْدِلُوْا هُوَ اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى: یعنی د یو قوم بغض او عداوت دے هم ستاسو د پاره د دے باعث جوړ نه شی چه د عدل لاره پاتے کړئ او د هغے خلاف ګواهی یا فیصله او کړئ د دواړو ایاتونو په عنوان کښے هم معمولی فرق دے د سورة نساء په ایات کښے قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ: فرمائیلے دے۔ او د سورة مائده په ایات کښے: قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ: فرمائیلے دے۔ یعنی په اوّل ایات کښے د دوه ؤو څیزونو هدایت دے یو: قیام بالقسط: دویم: شهادت لله: او په دویم ایات کښے هم د دوه څیزونو حکم دے خو عنوان ئے بدل کړو: قیام لله: او: شهادت بالقسط:

اکثر مفسرین حضرات فرمائی چه د عنوان د دے بدلولو نه معلومه شوه چه دا دواړه څیزونه په اصل کښے د یو حقیقت دوه تعبیرونه دی۔ چرته ئے تورے تعبیر په: قیام بالقسط: او: شهادت لله: سره تعبیر کړے دے او چرته ئے تورے په: قیام لله: او: شهادت بالقسط: سره۔ د دے دواړو ایاتونو د بیان په طرز کښے دا یوه خبره د غور قابله ده چه د: کُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ: یا د: قَوّٰمِيْنَ لِلّٰهِ: او ګډه جمله ئے اختیار کړے ده۔ حال دا دے چه د عدل او انصاف حکم صرف په یو لفظ د: اَقْسِطُوْا: سره هم ورکیدے شو خو په دے او ګډه جمله اختیارولو کښے دے طرف ته اشاره کول منظور دی. چه اتفاقی طور سره په یوه معامله کښے په عدل او انصاف کولو سره ذمواری نه شی پوره کیدے ځکه چه په څه نه څه معامله کښے انصاف کیدل خو داسے طبعی کار دے چه په هر بَدْ نه بَدْ او ظالم نه ظالم حاکم باندے هم صادق کیدے شی چه د دے نه به هم په څه معامله کښے انصاف خامخا کیږی۔ په دے جمله کښے ئے لفظ د: قَوّٰمِيْنَ: استعمال کړو دائے او خو ده چه په عدل او انصاف همیشه هر وخت په هر حال او هر دوست دشمن د پاره قائم او سیدل ضروری دی۔

بیا په دے دواړو وا یا تو نو کیږي چه پوره دنیا لره په انصاف او عدل دَ قائمولو او قائم لرلو کوم زرین اصُول اختیار کړی دی دغه هم دَ قرآن کریم دَ خاصو خصوصیا تو نه دی۔

په دے کښے یو اهم شے خو دا دے چه حاکمان او عوام ټول ته دَ خدائے تعالیٰ دَ غالب قدرت او دَ قیامت دَ حساب نه او یَرَول دَ دے دَ پاره ئے تیار کړه چه عوام پخپله هم دَ قانون احترام کوی' او حاکمان چه دَ قانون نافذ کولو ذمه وار دی دوی هم دَ قانون په نافذ کولو کښے خدائے او آخرت خا نته مخامخ کړی دَ خدائے دَ مخلوق خادمان جوړ شی۔ او دَ قانون نه دَ خلقو دَ خدمت او دَ ملک دَ اصلاح ذریعه جوړه کړی۔ او په دے سره دَ خلقو په پریشانو کښے زیاتوالے او مظلومانو دَ دفترو نو په چکرو کښے کیر نه کړی په یو ظلم دَ پاسه دَ بل ظلم سبب ئے جوړ نه کړی ، قانون پخپلو ذلیلو خواهشاتو یا یو څو ټکو څخ نه کړی: قَوّٰامِيْنَ لِلّٰهِ: یا: شُهَدَآءَ لِلّٰهِ: ئے او فرمائیل حاکمانو او عوامو دواړو ته ئے خاص دَ خدائے دَ پاره او په اخلاص سره دَ کار کولو دعوت ورکړو۔

دویم بنیادی شے دا دے چه دَ عدل او انصاف دَ قائمولو ذمواری ئے په ټولو افرادو دَ انسان غوړ زَولے ده۔ په سورت نسآء او سورت مآئده کښے خو ئے: يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: او فرمائیل ټول مسلمان اُمّت ئے مخاطب کړے دے۔ او په سورت حدید کښے ئے: لِيَقُوْمَ النَّاسُ بِالْقِسْطِ: او فرمائیل دا فرض ئے په ټولو انسانی افرادو غوړ زَولو - دَ سورت نسآء په ایات کښے ئے: وَلَوْ عَلٰٓى اَنْفُسِكُمْ: او فرمائیل دے طرف ته ئے اشاره او فرمائیله چه دَ انصاف مطالبه دے صرف دَ نورو نه نوی بلکه پخپل نفس باندے هم پکار ده۔ که دَ خپل نفس خلاف څۀ بیان یا اظهار کول وی نو هم دے دَ حق او انصاف خلاف څۀ نه وائی اگر چه دَ دے نقصان دَ دۀ په ذات باندے پرے وُځی ځکه چه دا نقصان ډیر لږ او عارضی دے۔ او چه په دروغو ویلو سره ځان بچ کړی نو دَ قیامت سخت عذاب به دَ ځان دَ پاره وا خلی۔

---

يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ

اے ایماندارو! یقین اوکړئ په الله او د هغهٔ په رسول او په هغې کتاب

الَّذِيْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ مِنْ

چه نازل کړے ئې دے په رسول خپل او په هغې کتاب چه نازل کړے ئې دے

قَبْلُ ۭ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰۗىِٕكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ

مخکښې - او څوک چه یقین نهٔ کوی په الله او د هغهٔ په فرشتو او د هغهٔ په کتابونو او رسولانو

وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًۢا بَعِيْدًا ﴿١٣٦﴾ اِنَّ

او په ورځې د قیامت نو دے ګمراه شه ډیر لرے لاره شو - کوم خلق

الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا

چه مسلمانان شو بیا کافر شو بیا مسلمانان شو بیا کافر شو بیا

ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَ

زیات شو په کفر کښې نو الله تعالیٰ هرګز دوی لره بخښونکے نهٔ دے او

لَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا ﴿١٣٧﴾

نهٔ به او ښائی دوی ته لاره -

### د ایاتونو تړون

پورته زیاته حصه د فرعی احکامو ذکر وه او د ایمان او د کفر بحثونه پکښې ځائے پځائے د مخالفینو سره د معاملو په ضمن کښې راغلی دی- اوس دغه بحثونه لږ په تفصیل سره بیانیګی او د سورت د ختمید و پورے تلی دی- د بیان په ترتیب کښې اول بیان د دے دے چه په شریعت کښې کوم ایمان معتبر دے- او بیا د کفارو د مختلفو فرقو

په عملونو او عقیدو کښې د بدۍ والی بیان دے۔

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو! (یعني کوم چه اجمالي ایمان راوړے دے د مؤمنانو په ډله کښې داخل شوی دی) تا سو (د ضروري عقیدو تفصیل واورئ چه) عقیده لرئ په الله (په ذات او په صفاتو) سره ئے او د هغهٔ په رسول (محمد صلی الله علیه وسلم په رسالت) سره ئے او د هغه په کتاب (په حقوالی) سره ئے کوم چه هغه (یعني الله تعالیٰ) پخپل رسول (یعني محمّد صلی الله علیه وسلم) باندے نازل کړو او په هغه کتابونو (د حق والی) سره ئے (هم) کوم چه (د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه) وړاندے (په نورو نبیانو) نازل شوی دی (او په نبي کریم صلی الله علیه وسلم او په تیرو کتابونو په ایمان راوړو کښې په ملائکو او په باقي پیغمبرانو او په ورځے د قیامت ایمان راوړل هم داخل شو) او کوم سړے چه د الله (د ذات یا صفاتو) نه انکار اوکړی او (دغه شان چه) د هغهٔ د فرښتو نه (انکار اوکړی) او (دغه شان چه) د هغهٔ د کتابونو نه (چه قرآن پکښې هم راغے انکار اوکړی) او (دغه شان څوک چه) د هغهٔ د رسولانو نه (چه په دوی کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم هم داخل دے انکار اوکړی) او (دغه شان څوک چه) د ورځے د قیامت نه (انکار اوکړی) نو دغه سړے په ګمراهۍ کښې ډیر لرے لاړ پریوت۔ بے شکه کوم خلق (چه اول) مسلمانان شو بیا کافر شو بیا مسلمانان شو (او دا ځلے هم په اسلام قائم پاتے نه شو ورنه او لنے مرتد والے به ورته معاف وه بلکه) بیا کافر شو بیا (هغه وسلمانان نه شو ورنه بیا به ئے هم ایمان قبول شوے وه بلکه) په کفر کښې زیات شو (یعني په کفر باندے تر مرګه پورے ثابت او قائم پاتے شو) الله تعالیٰ به دا سے خلق هیڅکله اونه بخښي او نه به دوی ته (د منزلِ مقصود یعني جنت) لار او ښائي (ځکه چه د بخښنے او جنت د پاره د مرګه پورے مؤمن پاتے کیدل شرط دی)۔

**معلومات او مسئلے ضروري فائدے**

د الله تعالیٰ قول دے: اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ کَفَرُوْا الخ: د دے نه مراد منافقان دی۔ او بعضے فرمائي چه دا آیات د یهودو په شان کښې دے چه اول ئے ایمان راوړو بیا ئے د سخي عبادت اوکړو کافر شو

بیا ئې توبه اوکړه مؤمنان شو، بیا د عیسیٰ علیه السلام نه منکر شوا و کافر شو د دینه پس ئې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د رسالت نه انکار اوکړو په کفر کښې ئې ترقي اوکړه (روح المعاني)

د الله تعالیٰ قول دے: لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا ؛ مطلب دا دے آیات دا دے چه د دوی په بار بار کفر ته واپس کیدو د دوی د حق توفیق ختم شی او آئنده د توبه کولو او ایمان راوړلو ورته هیڅ موقع نصیب نه شی - ورنه کومه قاعده چه د قرآن او سنتو د قطعي دلیلونو نه ثابته ده هغه دا ده چه هر څومره کافر یا مرتد چه وی خو چه رښتونې توبه اوکړی نو تیر ګناهونه ورته معاف کیږی - کرداخلق هم توبه اوکړی نو د معافۍ قانون او دروازه ورته پرانستے او پرته ده -

---

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٣٨﴾ الَّذِيْنَ

خوشخبری واوره ده منافقانو ته چه د دوی د پاره عذاب دردناک دے - هغه

يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ

چه جوړه وی کافرانو لره حیل ملګری (او) پاتے کوی مسلمانان -

اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ﴿١٣٩﴾

آیا دوی لټوی د هغوی سره عزت پس عزت د الله د پاره دے ټول

وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ

او حکم نازل شوے دے په تاسو په قرآن کښے چه کله تاسو اورئ چه د الله د ایاتونو

اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ

نه انکار کیدل او په دے پورے مسخرے کیدل نو مه کینئ د دوی سره

حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ ۫ۖ اِنَّكُمْ اِذًا

ترڅو چې مشغول شي په بله خبره کښې - ورنه تاسو به هم د دوی

مِّثْلُهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ وَالْكٰفِرِيْنَ

پشان شئ - الله به جمع کړی منافقانو لره او کافرانو لره

فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا ﴿١٤٠﴾ الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ

په دوزخ کښې یو ځائے - هغه منافقان چه ستاسو په انتظار کښې دی-

فَاِنْ كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ قَالُوْٓا اَلَمْ نَكُنْ

بیا که تاسو ته فتح ملاؤ شي د الله په اراده سره نو وائي ولے مونږ نه وو

مَّعَكُمْ ۫ۖ وَاِنْ كَانَ لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ قَالُوْٓا اَلَمْ

ستاسو سره - او که نصیب شي کافرانو ته - نو وائي ولے مونږ ستاسو

نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ فَاللّٰهُ

نه نه وو تاؤ شوی او بچ کړی مو نه وئ د مسلمانانو نه - پس الله

يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ وَلَنْ يَّجْعَلَ اللّٰهُ

به فیصله اوکړی په تاسو کښې د قیامت په ورځ - او هرګز به ورنه کړی الله

٢٠ ع ٧ ١٧ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ﴿١٤١﴾ ع

کافرانو لره په مسلمانانو باندے غلبه -

**لنډ تفسير** منافقانو ته خوشخبری واؤروه د دے خبرے چه د دوی د پاره (په اخرت کښې) لویه دردناکه سزا (تجویز کړے شوے) ده

دَچا چه دا حالت دے چه (عقیده ئے خو ئے دَمؤمنانو نه لرلے لیکن وَضع ئے هم دَ مؤمنانو او نه ساتلے شوه نو) کافرانو لره دوستان جوړه وی مسلمانان پاتے کوی آیا دَ دوی سره (مځی) عزت حاصلول غواړی پس (ښه پوهه شئ چه) عزت خو ټول دَ الله تعالیٰ په قبضه کښے دے (هغه چه چا لره ... غواړی ور کوی ئے، پس که خدائے تعالیٰ دوی لره یا دوی چه دَچا خواته ځی دوستی ور سره کوی دوی لره عزت ور نه کړی نو دَ کوم ځائے نه به عزتمند جوړ شی؟) او (اے مسلمانانو! تاسو دَ منافقانو پشان دَ کفارو سره خصوصیت مه ساتئ، خاصکر یکوم وخت کښے چه دوی دَ کفر خبرے کوی. چنانچه دَ دے مدنی سورت نه وړاندے هم) الله تعالیٰ تاسو ته دا فرمان (په سورت انعام کښے چه مکی دے) رالیږلے دے (چه دَ هغے حاصل دا دے) چه کله (په یوه ګنړه کښے) دَ الله تعالیٰ دَ حکمونو سره مسخرے او کفر کیدل آورئ نو دَ دغے خلقو سره مه کینئ ترڅو چه دوی څۀ بله خبره شروع نه کړی (او دا مضمون دَ دے آیات حاصل دے: وَإِذَا رَأَيْتَ الَّذِينَ يَخُوضُونَ الخ: پس دا مسخرے کونکی په مکه کښے مشرکان وو، او په مدینه کښے یهود وو اګر په دے اګه او منافقان صرف دَ غریبو مسلمانانو او کمزورو مسلمانانو مخ ئے، پس لکه څنګه چه هلته دَ مشرکانو سره کیناستل په دا سے وخت کښے منع وو دلته دَ یهودو او منافقانو سره منع دی او دا منع مونږ ځکه کوو) چه په دے حالت کښے به تاسو هم (په ګناه کښے) دَ دوی پشان شئ (اګرچه فرق به په قسمونو دَ دواړو کښے وی چه یو ګناه دَ کفر دے او بل دَ فسق، او په دے منع دَ کیناستو کښے کفار او منافقان ټول برابر دی، ځکه چه وجه دَ دے خبرو یوه ده چه خبرے دَ کفر دی او منشاء ئے کفر دے نو په دے کښے دواړه برابر دی نو دَ کفر په سزا کښے یعنی دَ اُور په خشاک کیدلو کښے به دواړه برابر وی ځکه چه) یقیناً الله تعالیٰ به منافقانو لره او کافرانو لره ټول په دوزخ کښے جمع کړی (او) دغه (منافقان) دا سے دی چه په تاسو دَ څه تکلیف پریوتو په انتظار (او آرزو) کښے دی بیا (دَ دے انتظار نه پس) که ستاسو فتح دَ الله دَ طرف نه نصیب شی نو (تاسو ته راشی) خبرے جوړه وی چه وَلے مونږ ستاسو سره (په جهاد کښے شریک) نه وُو (ځکه چه دَ توم نمائشی دَ پاره خو به په مسلمانانو کښے ننوتلی وُو، مطلب دا دے چه مونږ لره

هم په غنیمت کښې حصه ورکړئ) او که کافرانو ته (دَغلبې څۀ حصه ملاؤشي (یعني اتفاقي طور سره هغوی غالب راشي) نو (هغوی ته لاړشي) خبرې جوړه وي چه وَلې مونږ پتا سو غالب کیدونه (لیکن مونږ قصدًا ستا سو دَغالب کیدو له دَ پاره دَمسلمانانو مدد او نه کړه او داسې تدبیر مو اوکړه چه جنګ وران شو او وَلې مونږ ه (هرکله چه تا سو مغلوب کیدئ) دَمسلمانانو نه تا سو بچ نه کړئ داسې چه مونږ دَ هغوی مدد او نه کړو، او په تدبیر سره مونږ جنګ وران کړو، مطلب دا دې چه زمونږ احسان او منئ او څۀ چه ستا سو په لاس راغلی دي مونږ ته هم څۀ حصه تورې راکړئ۔ غرض دا دې چه دواړه طرف ته لاسو نه وهي) پس دَ په دنیا کښې اګر چه دَ اسلام ظاهر ولو په وجه او برکت دَمسلمانانو پټان ژوند تیر وي لیکن) الله تعالی به ستا سو او دَدوی په قیامت کښې (عملي) فیصله او فرمائي او دَ په دې فیصله کښې) هرګز به الله تعالی کافرانو له دَ مسلمانانو په مقابله کښې غالب او نه فرمائي (بلکه کفار به مجرمان مقرر شي دوزخ ته به لاړ شي او مسلمانان به اهلِ حق ثابت شي جنت ته به لاړ شي او عملي فیصله دا ده) -

# مَعلومَات او مَسئلے

په اول ایات کښې دَمنا فقانو دَ پاره دَ دردناک عذاب خبر ورکړے شوے دے، او دا دَ غم خبر ئې دَ زیری په لفظ سره تعبیر کړے دے، دے طرف ته ئې اشاره کړې ده۔ چه هر یو بنده دَ خپل راتلونکي وخت دَ پاره دَ خوشخبرئ په انتظار کښې وي۔ لیکن دَمنا فقانو دَ پاره دَ دې نه سوا بل هیڅ خبر نیشته: دَ دوی دَ پاره دَ زیری په بدله کښې هم دا خبر دے -

| عزت خاص دَ الله نه طلب کول بېکار دي |
|---|

په دویم ایات کښې دَ کفار او او مشرکانو سره دوستانه تعلقات ساتلو او یوځائې او سیدلو نه منع او دَ داسې کونکو دَ پاره دَ سزا وعده ذکر کړه۔ او دَ دې سره په دې مرض کښې دَ اخته کیدو اصل منشاء او سبب ئې بیان کړے دے او دَ دې لغوه او عبث والے ئې خود لے دے۔ ارشاد فرمائي: اَیَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ

لِلّٰهِ جَمِيْعًا: يعنې د کفارو او مشرکانو سره د دوستانه تعلقاتو ساتلو او د دوی سره د ملاویدو غرض عام طور سره داوی چه د دوی د ظاهري عزت او قوّت نه د متاثره کیدو په وجه دا خیال پیدا شی چه که د دوی سره دوستی او کړے شی نو مونږ ته به هم دا سے قوّت او عزّت حاصل شی د دوی نه، الله تعالیٰ د دے عبث خیال حقیقت دا سے واضحه کړو چه تاسو د دوی په ذریعه سره عزت حاصلول غواړئ او حال دا دے چه د دوی سره پخپله عزت نیشته، عزّت د کوم چه معنیٰ ده قوّت او غلبه هغه صرف د الله تعالیٰ د پاره خاص دے او په مخلوق کښې چه کله چا ته څۀ قوّت او غلبه ملاؤ یږی هغه ټول د الله تعالیٰ ورکړے شوی دی، نو دا به څومره بے عقلی وی چه د عزّت حاصلولو د پاره د عزت اصلي مالک او عزت ورکونکي خوخفه کړلے شی او د هغۀ د دشمنانو په ذریعه د عزّت حاصلولو کوشش کولے شی۔

د قرآن مجید په سورتِ منافقون کښې هم دا مضمون د یو بے اضافے سره دا سے راغلے دے۔

| | |
|---|---|
| وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُوْلِهٖ وَلِلْمُؤْمِنِيْنَ وَلٰكِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ لَا يَفْقَهُوْنَ - | " یعنې عزت خو صرف د الله د پاره دے او د هغۀ د رسول د پاره او د مسلمانانو د پاره لیکن منافقان په دے نه پوهیږی " |

په دے کښې ئے د الله تعالیٰ سره د رسول او مؤمنانو اضافه او کړه دا ئے هم او خوده چه اصل د عزت مالک صرف الله تعالیٰ دے هغه چه چا ته غواړی څۀ حصّه عزت ورکوی، او د الله تعالیٰ رسول او په هغۀ ایمان راؤړونکي چونکه هغۀ ته نزدے مقبول او محبوب دی په دے وجه هغوی ته عزّت او غلبه ورکولے شی، کفارو او مشرکانو ته پخپله عزت نصیب نه دے نو د دوی په تعلّق سره به بل ته څۀ عزت ملاؤ شی۔ په دے وجه حضرت فاروق اعظمؓ فرمائی:

| | |
|---|---|
| مَنِ اعْتَزَّ بِالْعَبِيْدِ اَذَلَّهُ اللّٰهُ، ( جصاص ) | " یعنې کوم سړے چه د مخلوقاتو او بندګانو په ذریعه عِزّت حاصلول غواړی نو الله تعالیٰ دۀ ته ذلیله کوی " |

په مستدرک حاکم کښې دی چه حضرت فاروقِ اعظمؓ دَشام دَ ملک گورنر ته اوفرمائیل:

كُنْتُمْ اَقَلَّ النَّاسِ وَاَذَلَّ النَّاسِ فَكَثَّرَكُمُ بِالْاِسْلَامِ وَاَعَزَّكُمُ اللّٰهُ بِالْاِسْلَامِ مَهْمَا تَطْلُبُوا الْعِزَّةَ بِغَيْرِ اللّٰهِ يُذِلُّكُمُ اللّٰهُ۔ (مستدرک ص۸۲)

"یعنی اے ابوعبیدهؓ تاسو په شمار کښې دَ ټولونه کم او دَ ټولونه زیات کمزوری وئ تاسو ته محض دَ اسلام په وجه عزت او شوکت ملاؤ شوے دے نو بیا که پوهه شه که تاسو دَ اسلام نه سوا دَ بل چا په ذریعه سره عزت حاصلول اوغوښتل نو خدائے تعالیٰ به تاسو له ذلیله کړي۔"

ابوبکر جصاص په احکام القرآن کښې فرمائي چه دَ دے ایات نه مراد دا دے چه دَ کافرانو او فاجرانو سره په دوستئ کولو کښې عزت مه لټوئ- البته که دَ مسلمانانو په ذریعه عزت او قوت طلب کړے شي نو دَ دے منع نیشتے ځکه چه دَ سورتِ منافقون ایات دا خبره ښکاره کړے ده چه الله تعالیٰ اَجَلّ رسولؐ او مؤمنانو ته عزت بخلے دے (جصاص ص۳۵۲ ج ۲)

دلته دَ عزت نه مراد که همیشه پاتے کیدونکے دَ آخرت عزت وی نو بیا په دنیا کښې دَ دے خاص کیدل دَ الله او دَ رسولؐ او دَ مؤمنانو سره ښکاره خبره ده- ځکه چه دَ آخرت عزت یو کافر و مشرک ته هرګز نشي حاصلیدے او که مراد ترے دَ دنیا عزت واخلے، نو بیا عبوری دورا و اتفاقی حادثے چه پاتے کړے شي نو دَ انجام په اعتبار سره دا عزت او غلبه آخر دَ اسلام او دَ مسلمانانو حق دے- تو څو پورے چه مسلمان په صحیح معنیٰ کښې مسلمان وی نو دُنیا پخپلو سترګو سره لیدلے ده- او بیا چه په آخر زمانه کښې چه کله دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په امامت او قیادت کښې مسلمانان په صحیح اسلام باندے قائم شي نو بیا به غلبه دَ دوی وی- په درمیانی او عبوری دور کښې دَ مسلمانانو دَ ایمان دَ کمزورئ او دَ ګناهونو دَ آزمائیش په وجه دَ دوی کمزور په نظر راتلل دَ دے منافی نه دی-

په ایات: قَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ الخ: کښې قرآن مجید دَ یو بل ایات چه په سورتِ انعام کښې دَ هجرت نه مخکښې په مکّه مکرّمه کښې نازل شوے وُه حواله وَرکړه

دائے خو دَ لے ده چه موږ دَ انسان دَ اصلاح دَ پاره اوّل دا حکم لیږلے وه چه دَ کافرانو او فاجرانو په مجلس کښے مه کینئ، او عجیبه ده چه دا غافلان خلق دَ دے نه هم وړاندے لاړل چه دوستی ئے ورسره شروع کړے او دوی لره ئے دَ عزت او قوّت خاوندان گنړل شروع کړه۔

دَ سورتِ نسآء دَ دے آیات او دَ سورت انعام دَ هغے آیات دَ کوم حوالے چه لے دَ سورتِ نسآء په دے آیات کښے ورکړے ده دَ دواړو مشترک مطلب دا دے چه کۀ په یو مجلس کښے څۀ خلق دَ الله تعالیٰ دَ آیاتونو انکار یا پورے مسخرے کوی نو ترڅو چه دوی په دے عبث شغل کښے مشغول وی دَ دوی په مجلس کښے کینا ستل او شرکت کول هم حرام دی، بیا دَ سورت انعام په آیات کښے لږ زیات تفصیل دے ځکه چه دَ دے الفاظ دا دی:

| | |
|---|---|
| وَاِذَا رَاَیْتَ الَّذِیْنَ یَخُوْضُوْنَ فِیْٓ اٰیٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْھُمْ حَتّٰی یَخُوْضُوْا فِیْ حَدِیْثٍ غَیْرِہٖ وَاِمَّا یُنْسِیَنَّکَ الشَّیْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّکْرٰی مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِیْنَ ○ | یعنی کله چه تاسو او وینئ هغه خلقو لره چه جګړے کوی په آیاتونو زمونږ کښے نو دَ دوی نه ډډه کوئ تر دے پورے چه دوی مشغول شی په څۀ بله خبره کښے او که هیر کړی تاسو لره شیطان نو مه کینئ دَ یاد یدو نه پس دَ ظالمانو سره ○ |

په دے کښے دَ الله تعالیٰ په آیاتونو کښے جګړه کول ذکر دی چه کفر او مسخرے پکښے داخلے دی، او دَ آیاتونو معنے بدلول یعنی دَ قرآن دَ آیاتونو نه داسے معنے را ویستل چه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او صحابه کرامؓ دَ تفسیر نه خلاف وی یا دَ اجماعِ دَ اُمّت نه خلاف وی دا هم په دے کښے داخل دی۔ په دے وجه دَ حضرت عبد الله بن عباسؓ نه په روایت دَ ضحاک نقل دے چه دَ دے آیات په مطلب کښے هغه خلق هم داخل دی چه دَ قرآن تفسیر غلط یا پکښے تحریف کونکی یا بدعات را ویستونکی وی: دَ دوی الفاظ دا دے: دَخَلَ فِیْ ھٰذِہِ الْاٰیَةِ کُلُّ مُحْدِثٍ فِی الدِّیْنِ وَکُلُّ مُبْتَدِعٍ اِلٰی یَوْمِ الْقِیٰمَةِ (مظهری ص۲۶۳ ج ۲)

| | |
|---|---|
| په دائے سره دَ تفسیر کونکی په مجلس کښے شرکت جائز نه دے | دَ دے نه معلومه شوه چه کوم سړے دَ قرآنِ کریم په درس یا تفسیر کښے دَ سلفو صالحینو پابند نه وی |

بلکه د دوی خلاف معاني بیانوي د دهٔ په درس او تفسیر کښې شرکت د قرآن په نص سره ناجائز او د ثواب په ځائې ګناه دے - په تفسیر بحر محیط کښې ابوحیانؒ فرمائي چه د دے آیاتونو نه معلومه شوه چه د کومے خبرے په ژبه سره وئیل ګناه دے د دے په غوږکونو سره بخپل اختیار آوریدل هم ګناه دے -

او په دے باندے ئے دا شعر نقل کړے دے:-

وَسَمْعَكَ صُنْ عَنْ سِمَاعِ الْقَبِيْحِ كَصَوْنِ اللِّسَانِ عَنِ النُّطْقِ بِهٖ

ریعني خپل غوږکو نه د بدے خبرے د آورید ونه بچ کړه - لکه څنګه چه ژبه د بدے خبرے نه بچ کوے )

د ویمه خبره د سورتِ انعام په آیات کښې دا ښائیلې شوې ده - چه که څهٔ وخت په هیره یا په بے خبرئ سره یو سړے په داسے مجلس کښې شریک شي - او بیا ئے خیال داشي نو فی الحال د دغې مجلس نه لرے کیدل پکار دي، د خیال را تلونه پس دے د ظالمانو سره نه کیني -

د سورتِ نسآء او سورتِ انعام په دواړو آیاتونو کښې ئے دا فرمائیلي دي چه ترڅو پورے دغه خلق په دے عبث خبرو کښې مشغول وي ترهغه وخته پورے د دوی په مجلس کښې کیناستل حرام دي -

د دے مسئلے دویم اړخ دا دے چه کله دوی دا خبرے ختم کړي څهٔ بلخبره شروع کړي نو دغه وخت د دوی سره مجلس او شرکت جائز دے او که نه ؟

قرآن کریم د دے وضاحت نه دے فرمائیلے - په دے وجه د عالمانو په دے کښې اختلاف دے بعضے فرمائي چه د منع وجه د الله د آیاتونو سپکاوے او تحریف وه چه هغه ختم شو نو منع هم ختم شوه نو چه نورے خبرے شروع شوے او س په دغه مجلس کښې کیناستل ګناه نه دے - او بعضے فرمائي چه د داسے کافرانو فاجرانو او ظالمانو خلقو په مجلس کښې بیا هم کیناستل جائز نه دي د حسن بصريؒ دا ارشاد دے - دوئ د سورتِ انعام دا جمله په دلیل کښې پیش کوي : فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ؛ یعني د یاد ید و نه پس د ظالمانو سره مه کینئ او دا ښکاره خبره ده چه ظالمان د دغې خبرے ختمولو نه پس هم ظالمان دي نو د دوی د مجلس نه ورُوستو هم ځان ساتل لازم دي (جصّاص)

اوپه تفسیر مظهری کښې قاضي صاحبؒ ددوارو تطبیق دا سې فرمائي چه هرکله د کفر او مسخرو او تحریف د قرآن خبرې بندې شي نو رې خبرې شروع شي نو دغه وخت هم د داسې خلقو په مجلس کښې شرکت کول بې ضرورته خو حرام دې او که څه شرعي یا طبعي ضرورت وي نو بیا جائز دې۔

**د بدانو د مجلس نه یوائې والې غوره دې**

امام ابوبکر جصاص په احکام القرآن کښې فرمائي چه د دې آیات نه ثابته شوه چه یکوم مجلس کښې څه ګناه کیږي نو په مسلمانانو د نهي عن المنکر په ضابطه سره دا لازم دی چه که د دې د بندولو قدرت ئې وي نو په قوت سره دې منع کړي او که دا قدرت ئې نه وي نو کم نه کم په دې ګناه دې د خپل خفګان اظهار او کړي چه د دې ادنیٰ درجه داده چه د دې مجلس نه دې پاڅي۔ داوجه ده چه حضرت عمر بن عبدالعزیزؒ یو ځل څو خلقو لره په دې جرم کښې او نیول چه د وی شراب سکل په دوی کښې د یو سړي په باره کښې دا ثابته شوه چه د ده روژه وه ده شراب نه وی سکلی لیکن د دوی په مجلس کښې شریک وه۔ حضرت عمر بن عبدالعزیزؒ ده لره هم سزا ورکړه چه دې ولې د دوی په مجلس کښې کیناستو (بحر محیط ص۲۴۵ ج۳)

په تفسیر ابن کثیر کښې ئې دلته دا حدیث نقل کړې دې چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي:

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَلَا يَجْلِسُ عَلٰى مَآئِدَةٍ يُدَارُ عَلَيْهَا الْخَمْرُ -
(ابن کثیر ص۵۶۷ ج۱)

" یعنی کوم سړې چه په الله او په ورځ د آخرت ایمان لري ده لره پکار دي چه په داسې دسترخوان یا د خوراک په میز نه کیني کوم ځائې چه د شرابو دور چلیږي"

په دې ذکر شوي بحث کښې چه کوم د مجلس نه د پاڅیدو ویلي دي د دې د پاره دا شرط دې چه په شرعي حیثیت سره د دې مجلس په پریښودو څه ګناه نه لازمیګي مثلاً په جمات کښې په جماعت کښې شریکیدل ضروري خبره ده " که هلته څه د شریعت نه خلاف کار کیږي نو جماعت د دې په وجه پریښودل نه دي پکار بلکه صرف د زړه په ناراضه کیدو دې اکتفا کوي۔ دغه شان څه بلاضرورۍ مجلس چه ضرورت ئې په شریعت سره ثابت وي که هلته څوک د شریعت خلاف کار کوي

نو د نورو د ګناه په وجه پخپله د مجلس پریښودو ګناه کول د عقل خبره او جائز نه دی۔ په دے وجه حضرت حسن بصریؒ فرمائي، چه که مونږ د خلقو د ګناه په وجه سره خپل ضروری کار پریږدو نو دا خو به مونږ د فاسقانو او فاجرانو د پاره د سنت او شریعت ما تولو لار هموار کړو۔

لنډه دا شوه چه د اهلِ باطلو سره د مجلس څو صورتونه دی:

اول د دوی په کفر یا تو با ندے د رضا سره، دا کفر دے۔ دویم د کفر یا تو د اظهار په وخت کښے د بد ګڼړلو سره بے د عذره نه، دا فسق دے۔ دریم د دنیوی ضرورت په وجه، دا مباح دے۔ څلورم د احکامو د تبلیغ د پاره، دا عبادت دے۔ پنځم په مجبوری او بے اختیاری سره، په دے کښے معذور دے۔

| | |
|---|---|
| د ایات په اخر کښے ئے ارشاد او فرمایه: إِذًا مِّثْلُهُمْ: یعني که تاسو په داسے مجلس کښے د زړه په مینه سره | په کفر با ندے راضی کیدل کفر دے |

شریک شوئ یکوم کښے چه د الله په ایا تونو با ندے کفر مسخرے یا تحریف کیږی، نو تاسو به هم په دغے ګناه کښے شریک شئ او د دوی په شان به شئ۔ مراد دا دے چه خدائے دِ نه کا که ستاسو خیالات او جذبات هم داسے وی چه دغه کفر یا ت خوښوئ او راضی ئې یږے نو په حقیقت کښے تاسو به هم کافر یئ۔ ځکه چه کفر خوښول هم کفر دے۔ او که داسے نه وی نو د دوی په شان د کیدو دا معنیٰ ده چه لکه څنګه دوی اسلام او مسلمانانو ته په نقصان رسولو او د دین په دروغژن کولو کښے لګیا دی تاسو د دوی سره د شریکیدو په ذریعه د دوی امداد کوئ معاذ الله د دوی په شان کیږئ۔

---

إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ۚ وَاِذَا

بے شکه منافقان دوکه کوی د الله سره او هغه به دوی لره سزا ورکړی۔ هر کله

قَامُوْٓا اِلَى الصَّلٰوةِ قَامُوْا كُسَالٰى ۙ يُرَآءُوْنَ النَّاسَ

چه او دریږی مانځه ته نو او دریږی په سستئ سره خلقو ته ځانونه ښائی

وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿١٤٢﴾ مُّذَبْذَبِيْنَ بَيْنَ ذٰلِكَ

او نه یادوي الله مګر لږ شان - ډوړ ندي د دواړو په منځ کښې

لَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ اِلٰى هٰٓؤُلَآءِ ؕ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَلَنْ

نه هغوی طرف ته دي او نه دوی طرف ته دي - او چا لره چه ګمراه کړي الله نو هرګز

تَجِدَ لَهٗ سَبِيْلًا ﴿١٤٣﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا

به بیا نه مومې ده لره لار - اے ایماندارو! مه جوړوئ

الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَتُرِيْدُوْنَ

کافرانو لره خپل ملګري چه مسلمانان پاتې کوئ - اے اخلئ تاسو

اَنْ تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿١٤٤﴾

پخپلو ځانونو باندے د الله الزام ښکاره -

## لنډ تفسیر

بے شکه منافقان خلق (د ایمان په ظاهرولو کښې) چالبازي کوي د الله سره (او د دوي دا چال د الله نه پټ نه شي پاتے کیدے، اګر که د دوي عقیده د الله تعالیٰ سره د چالبازئ کولو وي خو د دوي دا کارروائي مشابه ده د دے سره چه ګله د دوي دا عقیده وي) حال دا دے چه الله تعالیٰ به د دے چالبازئ سزا دوي لره ورکړي او (چونکه په زړه کښې خو د دوي ایمان د سره نیشتے نو په دے وجه مونځ فرض نه ګنړي او نه پکښې د ثواب عقیده ساتي په دے وجه) کله چه مانځه ته او دریږي نو ډیر په سستئ سره اودریږي (ځکه چه خوشي خو په عقیده او امید سره پیدا کیږي) صرف خلقو ته خپل ځانونه (مونځ کونکي) ښکاره وي (چه دوي مسلمانان او ګڼړي) او (چونکه هسے په نوم مونځ کوي په دے وجه په دے

مانځه کښې) دَ الله تعالیٰ ذکر (په ژبه سره) نه کوی مګر ډیر لږ (یعنی محض دَ مانځه صورت جوړه وی چه دَ مونځ نوم پکښې راشی او هسې کینا ستل پا سیدل دے هم وی ځکه چه په زوره قرأت خو په بعضې مونځونو کښې امام کوی او دوی ته امامت کله نصیب کیدے شی، دَ مقتدی په صورت کښې که څوک هسې شونډے خوزه وی او څه نه وائی نو څوک ترے څه خبریګی، نو داسې بد اعتقاده کیدے شی چه شونډے هم نه خوزه وی) زوړند وی دَ دواړو (یعنی کفارو او مؤمنانو) په مینځ کښې نه (پوره) دے خوانه (پوره) اَخوا (ځکه چه په ظاهر کښې مؤمنان نو دَ کفارو نه جُدا او په باطن کښې کافران نو دَ مؤمنانو نه جُدا) او چا لره چه خدائے تعالیٰ په ګمراهئ کښې واچوی (لکه چه عادت ئے دے چه دَ کار دَ قصد کولو په وخت کښې دغه کار لره پیدا کوی) دَ داسې سړی دَ (مؤمن کیدو) یاره به هیڅ لاربیا نه مومے (مطلب دا دے چه دَ دے منافقانو دَ پلارزے کیدو اُمید مه ساته په دے کښې دَ منافقانو دَ یاره زور نه ده او مسلمانانو ته تسلّی ده چه دَ دوی په شرارتونو مه خفه کیږئ) اے مؤمنانو! تاسو مؤمنانو لره پاتے کوئ کافرانو لره (خواه منافقان وی او که ښکاره وی) دوستان مه جوړه وئ (لکه چه دا دَ منافقانو خوئ دے ځکه چه تاسو ته دَ دوی حالت دَ کفر او دشمنئ معلوم شو) وَلے تاسو (دَ دوی سره دوستی کوئ) دا غواړئ چه پخپل ځان (یعنی پخپل جُرم او دَ عذاب په مستحق کیدو) دَ الله تعالیٰ ښکاره دلیل قائموئ (ښکاره دلیل دا دے چه مونږ منع کړی وئ بیا تاسو وَلے داسې کول)۔

## معلومات او مسئلے

**مسئله**:- دَ الله تعالیٰ دا قول: قَامُوْا كُسَالٰى الخ: دَ کومے سُستئ چه دلته کښې بدوالے بیان شوے دے، دا دَ عقیدے سُستی ده، او کومه چه سره دَ صحیح عقیدے نه سُستی وی هغه دَ دے نه باهر ده۔ بیا که په څه عذر سره وی لکه دَ مرض یا ستړی والی یا غلبے دَ خواب په وجه وی نو بیا دَ ملامت قابل هم نه ده او که بغیر دَ عذر نه وی نو دَ ملامت قابل ده۔

(بیان القرآن)

إِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ۚ

بے شکه منافقان دی د ټولو نه په لاندے درجه کښے د دوزخ

وَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ نَصِيْرًا ﴿١٤٥﴾ إِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا وَ

او هرګز به بیا نه مومے ته د دوی لره څوک مددګار - مګر چا چه توبه اُو کړه او

أَصْلَحُوْا وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ وَأَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ

خپله اصلاح ئے او کړه او مضبوط ئے او نیوو الله لره او خالص حکم منونکی شو د الله

فَأُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۖ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ

پس دغه دی د ایما ندارو سره - او زر به ورکړی الله

الْمُؤْمِنِيْنَ أَجْرًا عَظِيْمًا ﴿١٤٦﴾ مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ

ایما ندارو لره لوئے ثواب - څه کار دے د الله ستاسو په عذاب کولو

إِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ۖ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ﴿١٤٧﴾

که تاسو حق او منئ او یقین او کړئ - او الله قدردان دے په هر څه پوهیدونکے -

# لنډ تفسیر

بے شکه منافقان به د دوزخ د ټولو نه لاندے طبقے ته ځی (او ګڼړا ے ځما طبه) ته به هرګز دوی لره څوک مددګار بیا نه مومے (چه دوی لره د دے سزا نه بچ کړے شی) لیکن (په دوی کښے) کوم خلق چه (د نفاق نه) توبه او باسی او (مسلمانان نو تو چه کوم ضرر و نه رسوی د دغے معاملو) اصلاح او کړی (یعنے بیا دا سے خبرے نه کوی) او (د کفارو سره چه د دوی په پناه کښے د اوسید و د پاره دوستی کولې دغه پاتے کړی) په الله تعالیٰ یقین (او توکل) ساتی او (ریاء پریدی)

# تفسیر معارف القرآن

پښتو

## پاره (٦)


تالیف :- مُفتی اعظم پاکستان مولانا مفتی محمّد شفیع رحمة الله علیه

مجلس ترجمه و نظر ثانی

(١) ډاکټر قاضی محمّد مُبارک
سابق مدرس دارالعلوم سرحد و پروفیسر شعبه عربي پېښور یونیورسټی

(٢) ابوحسین مولانا گل برخان سواتی، فاضل علوم اسلامیه وعربیه

(٣) مولانا سیف الحنان حقّانی فاضل حقانیه و وفاق المدارس وجامعه بهاولپور
تلمیذ علامه شمس الحق افغانی و مولانا احمد علیؒ لاهوری.

باهتمام :- ډاکټر محمّد دین، فاضل وفاق المدارس، ایم اے عربي، ایم اے اسلامیات



تاج کُتب خانه ۰ محلّه جنگی قصّه خوانی پېښور،

فون : ٢١٢٣٥٤

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا

الله نه خوښوي څه بده خبره ښکاره کول مګر

مَنْ ظُلِمَ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۸﴾ اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا

هغه چه ظلم شوے وي - او الله آوريدونکے او پوهه دے - که تاسو ښکاره کوئ نيکي

اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا

او که پټه يې کوئ يا معاف کوئ بدي نو الله هم معاف کونکے لوئے

قَدِيْرًا ﴿۱۴۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَ

قدرت والا دے - کوم خلق چه منکر دي د الله نه او د هغه د رسولانو نه او

يُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ

غواړي چه فرق اوکړي په الله او د هغه په رسولانو کښے او وائي چه

نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ۙ وَّيُرِيْدُوْنَ

مونږ منو بعضو لره او نه منو بعضو لره او غواړي چه

اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ﴿۱۵۰﴾ اُولٰٓئِكَ

را اوباسي په دے مينځ کښے يوه لاره - دا خلق دي

هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ۚ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ

اصل کافران - او مونږ تيار کړے دے د پاره د کافرانو

عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۱۵۱﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ

د ذلت عذاب - او کوم خلق چه ايمان راوړي په الله او د هغه په رسولانو

وَلَمْ يُفَرِّقُوا بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ أُولَٰئِكَ سَوْفَ

او جدا نه کړي په دوی کښې يو تن لره دوی لره به زر ورکړي ورکړي

يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ ۗ وَكَانَ اللَّهُ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١٥٢﴾ ع ۲۱ ا

دوی ته اجر او دے الله بخښونکے والا مهربان

# لنډ تفسير

الله تعالیٰ بد ے خبرے لره په ژبه باندے راوړل (د هيچا د پاره) نه خوښوي بغير د مظلوم نه (چه د خپلو ظلمونو په باره کښے څه کله شکايت کوي نو دا گناه نه دے) او الله تعالیٰ (د مظلوم خبرے لره) ښه اوريدونکے دے (او د ظالم د ظلم حالت لره) ښه پيژني (په دے کښے اشاره ده دے خبرے ته چه مظلوم لره هم د واقعے نه خلاف د څه ويلو اجازت نشته، او هر څومره دا شکايت که جائز خو دے ليکن) که نيک کار ښکاره کوئ يا ئے په پټه کوئ (چه معاف کول پکښے هم داغله) يا (خاص کر د چا) څه بدئ لره معاف کړئ نو (ډيرا ته غوره ده ځکه چه) الله تعالیٰ (هم) لوئ معاف کونکے دے (سره د دے چه) پوره قدرت والا دے (چه د خپلو مجرمانو نه په هر شان بدله اغستے شي ليکن بيا هم اکثر معافي کوي، پس که تاسو دا سے اوکړئ نو اول خو د خدائ خويونو تابعداري ده او بيا به د الله تعالیٰ د طرف ستاسو سره هم دا سے معاملے کيدو اميد وي کوم خلق چه کفر کوي د الله تعالیٰ سره (کوم چه د دوی د عقيدے او قول نه کوم چه دپاندے راځي صاف طور سره لازميږي) او (کفر کوي) د هغه د رسولانو سره (يعني د بعضو سره ښکاره، ځکه چه د حضرت عيسیٰ عليه السلام او حضور صلی الله عليه وسلم د نبوت نه منکر دی - او د ټولو سره لازماً لکه چه وړاندے راځي) او دا سے غواړي چه د الله او د هغه د رسولانو په مينځ کښے (په اعتبار د ايمان راوړلو سره) فرق اوکړي (او خپله دا عقيده په ژبه سره هم وائي چه مونږ (په پيغمبرانو کښے) په بعضو خو ايمان راوړو او د بعضو نه منکر يو

(په دے قول او په دے عقیده باندے هم د الله سره کفر لازم شوا وهم د ټولو رسولانو سره، ځکه چه الله تعالیٰ او هر یو رسول ټولو رسولانو ته رسول وئیلی دی، نو هر کله چه د بعضو نه انکار اوشو نو د الله تعالیٰ او د باقی رسولانو وینا دروغژنه کړے شوه او دا د تصدیق او ایمان نه خلاف دے) او دا غواړی چه په مینځ کښے څۀ لار جوړه کړی (چه نۀ په ټولو باندے ایمان وی لکه مسلمانان چه په ټولو باندے لری، او نه د ټولو نه انکار وی لکه مشرکان چه کوی) پس دا سے خلق یقیناً کافر دی (ځکه چه په بعضو باندے کفر هم کفر دے، او د ایمان او د کفر په مینځ کښے څۀ واسطه نیشته نو چه په ټولو باندے ایمان نه شو نو کفر شو) او د کافرانو د پاره مونږ سپکوونکے سزا تیاره کړے ده (هغه به د دوی د پاره هم وی) او کوم خلق چه په الله تعالیٰ باندے ایمان لری او د هغهٔ په ټولو رسولانو هم او په دوی کښے په هیڅ کښے (د ایمان راوړو په اعتبار سره) فرق نه کوی دے خلقو ته به الله تعالیٰ خامخا د دوی ثواب ورکړی او (چونکه) الله تعالیٰ لوئے بخښونکے والا دے (نو په دے وجه کوم گناهونه چه د ایمان راوړونه وړاندے شوی دی ټول به معاف کړی او چونکه هغه) لوئے رحمت والا دے (په دے وجه د ایمان په برکت سره به د دوی نیکئ دوچند کړی بلکه ثواب به ورکړی) -

## معلومات او مسئلے

په دے آیاتونو کښے په اولنی آیات او دویم آیات کښے د دنیا نه د ظلم او زور ختمولو یو قانون دے - لیکن د عامے دنیا د قانونونو پشان نه دے چه حیثیت ئے صرف امیرانه وی بلکه د رغبت پیدا کولو او یرولو په انداز کښے یو قانون دے - چه په دے کښے ئے یو طرف ته د دے اجازت ورکړے دے چه یو کوم سړی څوک ظلم او کړی نو مظلوم د دغه ظلم شکایت یا یو عدالت ته رجوع کولے شی چه داعینِ عدل او د انصاف تقاضا ده او د جرمونو بندولو یو ذریعه ده - لیکن د سورتِ نحل په آیات کښے د دے سره یو قید هم ذکر دے: وَاِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوْا بِمِثْلِ مَا عُوْقِبْتُمْ بِهٖ ۖ وَلَئِنْ صَبَرْتُمْ لَهُوَ خَيْرٌ لِّلصّٰبِرِيْنَ ؛ یعنی که یو سړے

په تاسو ظلم او کړی نو تاسو هم د دهٔ نه د ظلم بدله اخستے شئ- مګر شرط دا دے چه څومره ظلم او زیاتے هغهٔ کړے وی په بدله کښې د هغې نه زیاتے او نشی ورنه تاسو به ظالمان شئ- چه د دے حاصل دا دے چه د ظلم په بدله کښې د ظلم اجازت نیشتے بلکه د ظلم بدله په انصاف سره اخستے شی- د دے سره دا هم خود نه د ه چه بدله اخستل اګرچه جائز دی مګر صبر کول او معاف کول غوره دی-

او د ذکر شوی ایات نه دا هم معلومه شوه چه په چا باندې چا ظلم کړے وی که هغه د ظلم شکایت، بیان خلقو ته کوی نو دا په غیبت او حرام کښې داخل نه دی ځکه چه دهٔ په خپله مظلوم ته د شکایت کولو موقع ورکړے ده- غرض دا دے چه قرآن حکیم یو طرفته مظلوم ته د ظلم د برابر بدلے اخستو اجازت ورکړو، او بل طرفته ئے د بنو اخلاقو تعلیم، عفوه درګذر او د دے په مقابله کښې ئے ورته د اخرت لویه فائده وړاندے کړه مظلوم ئے دے ته تیار کړو چه دے په دے خپل جائز حق کښې د قربانئ نه کار واخلی د ظلم بدله اخستل پاتے کړی- ارشاد فرمائی :

وَاِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا، یعنی که تاسو څهٔ نیکی په ښکاره کوئ یا په پټه ئے کوئ یا څهٔ ظلم او بدئ لره معاف کوئ نو دا غوره ده ځکه چه الله تعالیٰ ډیر معافی کونکے او لوئے قدرت والا دے"

په دے ایات کښې اصل مقصد خو د ظلم د معاف کولو متعلق دے لیکن د دے سره ئے د ښکاره او پټے نیکئ هم ذکر او کړو دے طرف ته ئے اشاره او کړه چه دا عفوه درګذر یو لویه نیکی ده څوک چه دا اختیار کړی نو د الله تعالیٰ د عفوے او رحمت مستحق به شی-

د ایات په اخر کښې ئے: فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا، او فرمائیل دا ئے او خودل چه الله تعالیٰ جل شانه قادر مطلق دے چا لره چه غواړی سزا ورکولے شی- خو د دے باوجود ډیر معاف کونکے دے، نو انسان چه قدرت او اختیار ئے هیڅ هم نیشتے دے که بدله اخستل هم او غواړی نو ډیره ممکنه ده چه قدرت ئے بر نه شی نو په دے وجه د ده لره خو عفوه درګذر نور هم زیات مناسب دی-

دے دَ ظلم لرے کولو او معاشرے جوړه ولو قرآنی اُصولو او تربیتی انداز چه یو طرفته دَ برابر بدل اغستو حق ورکړو وَ دَعدل او انصاف یو ډیر غوره قانون ئے جوړ کړو، بل طرفته ئے مظلوم ته دَ ښو اخلاقو تعلیم ورکړو عفوے او دَرګذر ته ئے تیار کړو - چه دَ دے لازمی نتیجه هغه ده کوم چه قرآن کریم په بل ځائے کښے دا سے ارشاد فرمائیلے ده -

"فَإِذَا الَّذِي بَيْنَكَ وَبَيْنَهُ عَدَاوَةٌ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ"؛ یعنی دَ کوم سړی او ستا په مینځ کښے چه دُشمنی ده په دا سے طرز عمل کولو سره به هغه ستا مُخلص دوست جوړ شی"

په عدالتی فیصله او دَ ظلم په بدل اَغستلو سره دَ ظلم بند یز خامخا را تلے شی لیکن دَ دواړو فریقو په زړونو کښے یو دا سے همیشه پاتے کیدونکے اثر کوی چه په راتلونکی وخت کښے بیا هم دَ جګړو ذریعه جوړیدے شی - او دا اَخلاقی درس کوم چه قرآنِ کریم ورکړو دَ دے په نتیجه کښے ډیرے جو رے او پخوانی دُشمنئ په دوستو او محبتو نو کښے بد لیدے شی -

په دریم خلورم او پنځم آیات کښے قرآن کریم دا ښکاره فیصله ورکړے ده چه کوم سړے الله تعالیٰ لره مَنِی، لیکن دَ هغهٔ په رسولانو ایمان نه راؤړی ی یا بعضے رسولان مَنِی او بعض نه مَنِی دَغه دَ الله تعالیٰ په نزد مؤمن نه دے بلکه ښکاره کافر دے چه په آخرت کښے دَ دهٔ دَ خلاصی هیڅ لار نیشتے -

| دَ نجات دارمدار په اسلام دے په مخالف مذهب کښے نجات نشی کیدے |

دَ قرآنِ حکیم دے ښکاره فیصلے دَ هغے خلقو بے لاری او کوږ والے په ښه ډول سره ښکاره کړے دے چه دَ نورو مذهبونو دَ خلقو سره دَ رواداری دَپاره خپل مذهب او مذهبی عقیدے په ډالئ او بخښش کښے پیش کول غواړی، او دَ قرآن او سنت دَ ښکاره فیصلو خلاف دَ نورو مذهبونو خلقو ته دا خودل غواړی چه دَ مسلمانانو په نزد نجات (خلاصے) صرف په اسلام پورے پیوست نه دے یهودی پخپل مذهب او عیسائی پخپل مذهب باندے په پاتے کیدو کښے هم نجات موندے شی، حال دا دے چه دغه خلق دَ ټولو رسولانو نه یا کم نه کم دَ بعضے رسولانو نه مُنکر دی. چه دَ دوی دَ کافر کیدو او دوزخی کیدو دے آیات اعلان کړے دے -

په دے کښے هیڅ شك نیشته چه اسلام دَ غیرمسلمانانو سره دَ عدل انصاف او همدردئ او خیرخواهئ، احسان او رواداری په معامله کښے خپل مثال نه لری لیکن احسان او سلوک خپل حقونه او خپل ملکیت وی، مذهبی اصول او عقیدے زمونږ ملکیت نه دے چه مونږ ئے چا ته په تحفه کښے پیش کړو- اسلام لکه څنګه چه دَ غیرمسلمانانو سره دَ رواداری او ښهٔ سلوک په معامله کښے انتهائی سخی او فیاض دے، دغه شان دے دَ خپلو سرحدونو په حفاظت کښے ډیر احتیاط کونکے او سخت هم دے، دے دَ غیرمسلمانانو سره دَ همدردئ خیرخواهئ او دَ ډیرے رواداری سره سره دَ کفر او دَ کفر دَ رسمونو نه په ښهٔ شان سره دَ بیزاره کیدو اعلان هم کوی، مسلمانانو لره دَ غیرمسلمانانو نه جدا یو قوم هم مقرر کوی - او دَ دوی دَ قومی نښو (شعائرو) په ښهٔ شان سره حفاظت هم کوی - دے دَ عبادت په شان دَ مسلمانانو معاشرتی ژوندهم دَ نورونه اوچت نساتل غواړی - چه دَ دے بے شماره مثالونه په قرآن او سنت کښے موجود دی -

که دَ اسلام او قرآن دا عقیده وے چه نجات (خلاصے) په هر ملت او مذهب کښے کیدے شی نو دهٔ لره بیا دَ اسلام دَ مذهب په تبلیغ با نه وے دَ دومره زور ورکولو څهٔ حق نه وهٔ او دَ دے دَ پاره په دا دومره سَرتوړ کوشش کول غلط او دَ عقل نه خلاف وو - بلکه په دے صورت کښے خو بچپله دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم رالیګل او دَ قرآن حکیم نازِلول معاذالله فضول او بے کاره به وو- او دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم او خلفائے راشدین ؓ ټول جهاد خو بے مطلبه او دَ ملک دَ نیولو خواهش ثابتیږی

په دے معامله کښے بعضِ خلق دَ سورتِ بقره په ایات نمبر ۶۲ باندِ دوکا کیږی چه په دے کښے ارشاد دے:

اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِيْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰى وَالصّٰبِـِٕيْنَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ؏ "یعنی هغه خلق چه ایمان راوړی او هغه خلق چه یهودیان دی او نصاری او صابئین دی په دوی کښے څوک چه هم په الله او په ورځ دَ اخرت

ایمان راوړی او نیک عمل اوکړی نو د دوی اجر د دوی د رب سره محفوظ دے
نه په دوی څهٔ یره شته او نهٔ به دوی غم ژن وی"۔

په دے ایات کښے ئے د ایمانو نو د پوره تفصیل بیانولو په ځائے صرف په ایمان باللّٰه یعنی په اللّٰه تعالیٰ باندے ایمان راوړل او په ورځ د اخرت باندے اِکتِفا کړے ده۔ نو کوم خلق چه صرف د قرآن د نیمګړے مطالعے نه ځان پوهه کول غواړی نو هغوی صرف دغه او پیژنی چه بس په اللّٰه تعالیٰ او قیامت باندِ ایمان لرل د نجات د پاره پوره دی په رسولانو باندے ایمان لرل د نجات د پاره شرط نه دی۔ او په دے ځان پوهه نه کړی چه د قرآن په اصطلاح کښے په اللّٰه تعالیٰ باندے هغه ایمان معتبر دے کوم چه په رسول باندے د ایمان سره وی او که دا سے نه وی نو صرف د خدائے د یو والی او شته والی اقرار خو شیطان هم کوی۔ قرآن کریم پخپله دا حقیقت په دے الفاظو کښے واضحه کړے دے۔

: فَإِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا وَإِنْ تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا هُمْ فِيْ شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ "یعنی د دوی ایمان به هغه وخت معتبر وی کله چه دوی د عامو مسلمانانو په شان ایمان اختیار کړی په کوم کښے چه د ایمان باللّٰه سره ایمان بالرّسول لازم دے که داسے نه وی نو بیا پوهه شئ چه دا خلق د لے د لے کیدل او اختلاف پیدا کول غواړی پس اللّٰه تعالیٰ ستا سو د طرف نه دوی له پوره دے او هغه ډیر آوریدونکے او ... پوهیدونکے دے"۔

او په ذکر شوی ایات کښے خو ئے د دے نه هم زیاته په وضاحت سره خودلے ده چه کوم سړے د اللّٰه تعالیٰ د چا یو رسول نه هم منکر شو هغه ښکاره کافر دے او د دهٔ د پاره د جهنم عذاب دے ایمان په اللّٰه هغه معتبر دے کوم چه د ایمان بالرّسول سره وی۔ د دے نه بغیر د دهٔ ته په اللّٰه تعالیٰ باندِ ایمان ویئل هم صحیح نه دی۔

په اخری ایات کښے ئے بیا په ایجابی طور سره فرمائیلی دی چه د اخرت نجات د هغو خلقو حصه ده کوم چه د اللّٰه تعالیٰ سره د دهٔ په ټولو رسولانو

هم ایمان لري. په دې وجه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي:
اِنَّ الْقُرْاٰنَ يُفَسِّرُ بَعْضُهٗ بَعْضًا. يعنې د قرآن شريف يوه حصه د بلې حصې تفسير او تشريح کوي؛
چنانچه د قرآني تفسير خلاف څهٔ تفسير د څانه کول د هيڅ د پاره هم جائز نه دي.

يَسْـَٔلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا

درخواست کوي تا ته اهل کتاب چه ته په دوي نازل کړې ليکلې شوې کتاب

مِّنَ السَّمَآءِ فَقَدْ سَاَلُوْا مُوْسٰٓى اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ

د آسمان نه پس غوښتلې دَه دوي د موسیٰؑ نه د دې نه هم لوئې شې

فَقَالُوْٓا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ

او وې وې موږ ته اوښايه الله بالکل ښکاره پس راګير و ته په دوي باندې تندر د

بِظُلْمِهِمْ ۚ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا

دوي د ګناه په وجه. بيا جوړه کړو دوي سخې لره د چې يې د ښُو

جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ ۚ وَاٰتَيْنَا

راتلو نه پس. بيا موږ دغه هم معاف کړه. او ورکړه موږ

مُوْسٰى سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۱۵۳﴾ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ

موسیٰؑ لره غلبه ښکاره. او موږ اوچت کړو په دوي باندې غر

بِمِيْثَاقِهِمْ وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا

د اقرار اخستو د پاره او موږ ورته اووې داخل شئ دروازې ته سجده کوونکي

وَ قُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوا فِي السَّبْتِ وَ اَخَذْنَا مِنْهُمْ

او مونږ اووې چه زیاتے مه کوئ دَ خالئ په ورځ کښے او مونږ دَ دوی نه

مِّيثَاقًا غَلِيظًا ﴿۱۵۴﴾

داغستو قول مضبوط۔

## دَ آیاتو ترون

په تیرو آیاتو کښے دَ یهودو دَ بد عقیدو ذکر کولو سره دَ دوی بد والی ذکر وُه۔ په دے آیاتو کښے هم دَ دوی دَ نورو خرابو حرکتو نو یو اوګډ فهرست او دَ دوی په دے قباحتو نو دَ دوی دَ عذاب او سزا ذکر دے او دا سلسله تر لرے پورے تلے ده۔

# لنډ تفسیر

(اے محمد صلے الله علیه وسلم) تا ته اهلِ کتاب (یهود) دا درخواست کوی چه تاسو دوی ته یو خاص لیکلی دَ آسمان نه راوغواړئ پس (تاسو دَ دے خلقو نه دا عیب مه ګڼړئ ځکه چه دا فریقه داسے عناد کوه ده چه) دوی (یعنی دَ دے فریقے کوم خلق چه دَ موسیٰ علیه السلام په وخت کښے موجود وو دوی) موسیٰ علیه السلام ته دَ دے نه هم دَ لوئے خبرے درخواست کړے وُه او دا سے ئے ووئیلی وُو چه مونږ ته الله په ډاګه (بے حجابه) او ښایه چه په دوی دَ دے بے شرمه خبرو په وجه دَ بجلئ کړس راپریوت بیا (دَ دے نه زیات دَ دوی نه دا حرکت شوے دے چه) دوی سخی لره (دَ عبادت دَ پاره) اونیوو پس دَ دے نه چه ډیر دلیلو نه (دَ حق او باطل دَ فرق دَ پاره) دوی ته رسیدلی وُو (مراد دَ دے دیلیلو نه معجزے دی دَ موسیٰ علیه السلام چه په دے کښے دَ فرعون غرقیدل ډیرو په سترګو سره لیدلی وو) بیا مونږ دوی ته معافی اوکړه او موسیٰ علیه السلام ته مونږ لوئے رُعب ورکړے وه (دَ دے رعب او زمونږ دَ معافی او مهربانئ په کیدو باندے دَ دے خلقو دا حال وُه چه نه پرے دَ مهربانئ شکیده او نه دَ رُعب)

# معلومات او مسئلې

د یهودو څهٔ سرداران د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او مطالبه ئې ترې اوکړه چه لکه څنګه په موسیٰ علیه السلام لیکلے شوے کتاب د آسمان نه نازل شوے وه، دغه شان یو کتاب ته هم د آسمان نه راوړه نو مونږ به ایمان راوړو۔ د دوی دا مطالبه د دے د پاره نه وه چه دوی په زړهٔ سره ایمان راوړل غوښتل او دا د دوی یو شرط وه۔ بلکه د ضد او عناد په وجه به ئې څهٔ نه څهٔ عذر پیش کولو۔ الله تعالیٰ دا آیات نازل کړو نبي کریم صلی الله علیه وسلّم ئې د اصل حقیقت نه خبر کړو۔ او تسلّي ئې ورلره اوکړه چه په حقیقت کښې دا قوم داسے دے چه د الله تعالیٰ رسولان آزاره وي۔ او د الله تعالیٰ خلاف د بغاوت کولو د پاره د لویو نه لوئې حرکتو نه هم کوي۔ د دوی پلرو نو نیکونو د موسیٰ علیه السلام نه د دے نه د لوئې خبرے مطالبه کړے وه چه مونږ ته الله تعالیٰ په ښکاره اوښایه د دوی په دے بے ادبۍ باندے د آسمان نه بجلۍ راغله او دوی ئې هلاک کړل، بیا د توحید او د خدائے پاک د بے شریکوالي د ښکاره دلیلونو راتلو او په دے د پوهیدو نه پس هم دوی د حقیقي خالق په ځائے سخي لره معبود جوړ کړو، لیکن د دے تعلو خبرو باوجود مونږ د عفوے او د درګذر نه کار واغستو، ورنه موقع خو د دے وه چه هم په دغه ځائے مونږ دوی ختم کړي وے۔ او خپل پیغمبر حضرت موسیٰ علیه السلام ته مونږ غلبه ورکړه۔

یوه موقع داسے هم راغلے وه چه دے خلقو د تورات د شریعت منلو نه صاف انکار کړے وه نو مونږ د کوهِ طور اوچت کړو او په دوی مو او نیولو چه دا شریعت به لازمًا منئ ورنه د غرهٔ لاندے به اوچقیږئ۔ مونږ دوی ته دا هم اووے چه کله د ایلیا ښهر دروازے ته داخلیږئ نو دیر په عاجزۍ سره د الله تعالیٰ د فرمانبردارۍ په شکل کښے سرونه خکته کوئ ننوځئ۔ او دا هم مونږ دوی ته وئیلي وُو چه د خالي په ورځ د مهو ښکار مه کوئ دا زمونږ حکم دے د دے نه مخ مه اړوئ۔

او دغه شان مونږ د دوی نه مضبوطه وعده اغستے وه لیکن اوشوه داسے

چه دوی د یو حکم خلاف ورزی اوکړه او زمونږ وعده ئې ماته کړه، نو مونږ په دنیا کښې هم دوی لوه ذلیل کړه او په آخرت کښې به هم دوی ته ناکاره سزا ورکړو -

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَ

دوی ته چه کومه سزا ملاؤ شوه دا د دوی په وعده ماتولو او په منکریدو د الله د آیاتونو نه او

قَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَّقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ؕ

په قتلولو د پیغمبرانو په ناحقه او په دے وینا چه زمونږ په زړونو غلاف دے

بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ اِلَّا قَلِيْلًا ۝١٥٥

پس دا نده بلکه الله مهر وهلے دے په زړونو د دوی د دوی د کفر په سبب پس ایمان نه راوړی مګر لږ -

وَّبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلٰى مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيْمًا ۝١٥٦

او د دوی په کفر او په مریمؑ باندے د لوئے طوفان تړلو په وجه -

وَّقَوْلِهِمْ اِنَّا قَتَلْنَا الْمَسِيْحَ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ رَسُوْلَ

او د دوی په دے وینا چه مونږ قتل کړه مسیح عیسیؑ د مریمؑ ځوئ چه رسول دے

اللّٰهِ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ وَلٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ؕ

د الله - او نه دوی هغه قتل کړے دے او نه ئې په سولئ کړے دے لیکن هغه په شکل جوړ شو دوی ته

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ؕ مَا لَهُمْ

او کوم خلق چه په دے کښې مختلفے خبرے کوی دغه خلق د لته په شبه کښې پریوتی دی - نیشته دوی لره

بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا ۝١٥٧

په دے هیڅ خبر صرف اټکل چلوی - او دے ئې په یقین سره نه دے قتل کړے -

بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ اِلَيْهِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا (۱۵۸) وَاِنْ

بلکه اوچت کړۀ الله دۀ لره خپل طرف ته - او الله دے زبردست حکمت والا - او نشته هيڅوک

مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ

چه دی د اهلِ کتابو پس په عيسیٰ؏ به يقين راوړی د دۀ د مرګ نه وړاندے.

وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا (۱۵۹)

او د قيامت په ورځ به وی په دوی باندے ګواه -

**د اياتونو تړون**

په تيرو اياتونو کښے هم د يهودو د شرارتونو ذکر وۀ او د دے شرارتونو په وجه په دوی د لعن طعن او سزا بيان وه - په دے اياتونو کښے هم د يهودو د بعضو جرمونو تفصيل ذکر دے. په دے باره کښے يې د حضرت عيسیٰ عليه السلام متعلق د دوی د باطل خيال رَدّ اوکړو - او دا خبره يې واضحه کړه چه حضرت عيسیٰ عليه السلام لره الله تعالیٰ د دوی د ظلم او زياتی نه بچ کړو ژوندے يې آسمان ته اوچت کړے دے - دا خلق چه کومه دعوه کوی چه مونږ عيسیٰ (عليه السلام) قتل کړے دے او په سولئ کړے دے دا دعوه سراسر دروغ ده - کوم سړے چه دوی قتل کړے وه هغه عيسیٰ عليه السلام نه وۀ - بلکه د دۀ په شکل يو بل سړے وۀ - چه دوی هغه قتل کړو نو دا يې اوګڼړل چه مونږ عيسیٰ عليه السلام قتل کړو -

## لنډ تفسير

پس مونږ (د دے حرکتونو په وجه سره) په سزا (د لعنت، غضب، ذلت او مسخ وغيره) کښے اخته کړه (يعنی) د دوی د وعدے ماتولو په وجه سره او د دوی د کفر (او انکار) په وجه د الله د حکمونو سره او د دوی د قتل کولو په وجه پيغمبرانو (عليهم السلام) لره (کوم چه د دوی په نزد هم) ناحق (وۀ) او د دوی

دَ دے دَوینا په وجه سره چه زمونږ ذړونه (داسے) محفوظ دی رچه په دی کښے دَ مخالف مذهب یعنی اسلام اثر نه کیږی، نو مونږ په مذهب باندے پاخهٔ یُو، الله تعالیٰ په دوی باندے دَ دفرمائي چه دا یو خولے نه دے) بلکه دَ دوی دَ کفر په سبب دَ دوی په ذړونو باندِ الله تعالیٰ بند لګولے دے رچه حقه خبره پرے اثر نه کوی) پس په دوی کښے ایمان نیشتے مګر لږ راو قدرے لږ ایمان مقبول نه دے پس کافر پاتے شو) او (مونږ دوی لره دَ لعنت وغیره په سزا کښے په دے وجه سره اخته کړی دی یعنی) دَ دوی دَ (یو خاص) کفر په وجه سره او (تفصیل دَ دے دا دے چه) حضرت مریم علیها السلام باندے دَ دوی دَ لوئے بهتان تړلو په وجه سره رچه دَ دینه دروغژن کول دَ عیسی علیه السلام هم لازمیږی ځکه چه عیسی علیه السلام په خپله معجزه سره دَ دے برآءت هم ښکاره کړے دے) او (دا رنګ په طور دَ فخر) دَ دوی دَ دے وینا په وجه سره چه مونږ مسیح عیسیٰ ځوئی دَ مریمے لره چه دَ الله تعالیٰ رسول دے قتل کړو ردا وینا پخپله دلیل دے دَ دُشمنئ، او دُشمنی دَ انبیاؤ سره کفر دے. دارنګ په دے کښے دعوه ده دَ قتل، او قتل دَ نبی هم کفر دے، او دعوه دَ کفر هم کفر دے) حال دا دے چه (علاوه دَ کفر نه پخپله دَ دوی دا دعوه هم غلطه ده ځکه چه) دوی (یعنی یهودو) نه دوی لره (یعنی عیسی علیه السلام لره) قتل کړے دے او نه ئے په سولئ کړے دے لیکن دوی ته (یعنی یهودو ته) اشتباه شوے ده او کوم خلق (دَ اهل کتابو نه) چه دَ دوی (یعنی عیسیٰ علیه السلام) په باره کښے اختلاف کوی دوی په غلط خیال کښے راختد، دی دَ دوی سره په دے خه (صحیح) دلیل (موجود) نیشتے بغیر دَ دے نه چه په اټکل خبره عمل کوی او دوی (یعنی یهودو) دوی لره (یعنی عیسیٰ علیه السلام لره) یقینی خبره ده چه قتل کړے نه دے (دَ کوم چه دوی دعوه کوی) بلکه دوی لره خدائے تعالیٰ خپل طرف ته (یعنی آسمان ته) اُوچت کړے دے (او یو بل سړے ئے دَ دهٔ په شکل کړو او هغه په سولئ شو او قتل شو او دا سبب شو دَ یهودو دَ اشتباه او دے اشتباه اهلِ کتابو کښے اختلاف پیدا کړو) او الله تعالیٰ لوئے زبردست (یعنی قدرت والا دے) حکمت والا دے رچه پخپل حکمت او قدرت سره ئے حضرت عیسیٰ علیه السلام لره بچ کړو

او پورته ئې کړو، او یهودو ته د تشبیه په وجه پته هم اونه لګیده) او (یهودو ته د خپلو دروغژن کولو او انکار د عیسی علیه السلام د نبوت نه به ویره زړه په دنیا ښکاره شي چه دوی په باطله وو، ځکه چه د وخت د نزول د آیات نه واخله په یو څو زمانه کښې به) یو سړے د اهل کتابو نه (یعنې د یهودو نه) پاتې نه شي مګر دے به د عیسیٰ علیه السلام (د نبوت) د خپل مرګ نه (دَ ترَه) وړاندې ضرور (دکله چه ورته عالم برزخ په نظر راشي) خامخا تصدیق اوکړي (اګر چه د دغه وخت تصدیق نفعمند نه دے لیکن د دوی د باطلو الی د پاره خو کافي دے نو که د پیته شه وداده چه اوس ایمان راوړی نو نفع به اوکړي) او (دکله چه عالم دنیا او عالم برزخ دواړه ختم شي یعنې) د قیامت په ورځ به هغه (یعنې عیسیٰ علیه السلام) په دوی (د دے منکرانو په انکار) ګواهي ورکړي -

# معلومات او مسئلے

د سورت ال عمران په آیات: یٰعِیْسٰۤی اِنِّیْ مُتَوَفِّیْكَ وَرَافِعُكَ اِلَیَّ الخ کښې الله تعالیٰ د حضرت عیسیٰ علیه السلام د دشمنانو یهودو اراده لوه د ناکامه کولو او عیسیٰ علیه السلام لره د دوی د لاسونو د بچ کولو په سلسله کښې پنځه وعدے فرمائیلے وے چه تفصیل او مکمله تشریح ئې هلته بیان شوے ده په دغې وعدو کښې یوه وعده دا هم وه چه یهودو لره به ستا د قتل کولو قدرت ورنه کړے شي - بلکه تا لره به الله تعالیٰ خپل طرف ته پورته کړي - په دے آیات کښې د یهودو د شرارتونو او د دروغو د دعوو په بیان کښې د الله تعالیٰ د هغه وعدے تکمیل او د یهودو د مغالطے په تفصیل سره بیان او د یهودو د دے قول مکمل رد دے چه دوی عیسی علیه السلام لره قتل کړے دے -

په دے آیاتونو کښې ئې دا خبره ښکاره کړه چه: وَمَا قَتَلُوْهُ وَمَا صَلَبُوْهُ: یعنې دوی حضرت عیسیٰ علیه السلام لره نه قتل کړے دے او نه ئې په سولئ کړے دے بلکه دا سے صورتِ حال پیښ شو چه معامله ئې په دوی باندے مشتبه کړه -

**یهود و ته اشتباه څنګه را پیښه شوه؟**

؛ وَلٰكِنْ شُبِّهَ لَهُمْ ؛ دَ دے ایات په تفسیر کښے دَ تفسیر امام حضرت ضحاک رحمة الله علیه فرمائی - چه قصّه داسے را پیښه شوه چه کله یهودو دَ حضرت مسیح علیه السلام دَ قتل اِرادہ اوکړه نو دَ دۀ حواریان یو ځائے ته جمع شو حضرت مسیح علیه السلام هم دَ دوی خوا ته تشریف راوړو ابلیس دَ یهودو هغه خلقو ته کوم چه دَ عیسیٰ علیه السلام دَ قتل دَ پاره تیار ولاړ وُو دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام پته او خوده او څلور زره سړو دَ مکان نه ګیره واچوله ، حضرت عیسیٰ علیه السلام خپلو حواریانو ته اوفرمائیل چه پتا سو کښے کوم سړے دے ته تیار دے چه باهر راوځی او قتل کړے شی او بیا په جنّت کښے ځما سره وی په دوی کښے یو کَسْ دَ دے غرض دَ پاره ځان پیش کړو نو دوئی هغهٔ له خپل قمیص او پټکے ورکړو او بیا په دغه سړی دَ دوئ مشابهت اوغورزه وَلے شو - او کله چه هغه باهر راوُوَتْ نو یهودو هغه اُونیوو، او په سولئ ئے کړو او عیسیٰ علیه السلام اُوچت کړے شو ( قرطبی )

په بعض روایتونو کښے دی چه یهودیانو یو سړے طیطالانوس دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ قتل دَ پاره لیګلے وُه ، حضرت عیسیٰ علیه السلام خو په مکان کښے ملاؤ نه شو ځکه چه الله تعالیٰ هغهٔ له پورته کړے وُه - او دا سړے کله چه دَ مکان نه راوُوَتْ نو دَ حضرت عیسیٰ علیه السّلام په شکل شوے وُه - یهودو دا اوګڼړله چه دا عیسیٰ دے - او دغه خپل سړے ئے بوتلو مړ ئے کړو - (مظهری)

په دوی کښے هر یو صورتِ حال چه وی تعول پکښے ځائیګی ، قرآن کریم څه خاص صورت نه دے خودَلے نو په دے وجه دَ اَصْلی حال علم خو الله ته دے البته دَ قرآن کریم دَ دے جملے او دَ نورو تفسیری روایتونو نه په شریکه دا اندازه خامخا راوځی چه یهودو او نصارا په زبردسته غلطیٔ کښے پریوتی وُو اصلی واقعه دَ دوی نه پته پاتے شوه او دَ خپل خپل ګمان او قیاس مطابق دوی قسم قسم دعوے اوکړے او دَ دوی په خپل مینځ کښے اختلافات پیدا شو، دے حقیقت ته قرآن کریم په دے الفاظو کښے اِشاره

کړے ده:

وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا: چه دَ دوی سره دَ صحیح علم په بنیاد څۀ یقینی خبره نیشته، کوم کوم خلقو چه دَ حضرت مسیح علیه السلام په باره کښے اختلافات اوکړو قسم قسم ګوټے یے کړے دی دا ټولے دَ شک او دَ اټکل خبرے دی. صحیح واقعه داده چه دوی حضرت مسیح علیه السلام لره یقیناً نه دے قتل کړے، بلکه الله تعالیٰ دے خپل طرف ته اوچت کړو۔

په بعضے روایتونو کښے دا هم دی چه څۀ خلق په دے پوهه شو نو دوی اووے چه دا خو مونږ خپل سړے قتل کړو ځکه چه دا قتل شوے په چهره کښے خو دَ حضرت مسیح (علیه السلام) په شان دے لیکن په باقی جسم کښے دَ دۀ په شان نه دے او دا چه که دا قتل شوے حضرت مسیح (علیه السلام) دے نو زمونږ سړے څۀ شو، او که دا زمونږ سړے وی نو حضرت مسیح (علیه السلام) څۀ شو؟

وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا: الله جل شانه زبردست قدرت او غلبے والا دے، یهود که دَ قتل منصوبے په لاکو نو جوړے کړی لکن کله چه الله تعالیٰ دَ حضرت مسیح علیه السلام دَ حفاظت ذمه اغستے ده نو دَ هغه دَ قدرت او غلبے په وړاندِ دَ دوی دَ منصوبو څۀ حیثیت دے، هغه قدرت والا دے که دا ظاهر بین انسان دَ عیسیٰ علیه السلام دَ پورته بوتلو په حقیقت پوهه نه شی نو دا دَ دۀ خپله کمزوری ده هغه حکمت والا دے دَ دۀ هر یو کار په حکمت او مصلحت باندے مبنی وی۔

په آخر کښے یے دَ دے مضمون دَ پوره کولو دَ پاره اوفرمائیل: وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ: دا خلق اګر که په دے وخت کښے دَ حقیقت په سترګو لتلو کوشش نه کوی دَ وجه دَ بغض او حسد نه، او دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په باره کښے باطل خیالات لری، او دا رنګ دَ حضرت محمد صلی الله علیه و سلم دَ نبوت نه هم انکار کوی، لیکن یو وخت دا سے راتلونکے دے چه دَ دوی سترګے به رنړا شی او دَ هغه وخت به دَ دوی یقین راشی چه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام او حضرت محمد صلی الله علیه وسلم متعلق چه زمونږ کوم خیال وو هغه ټول باطل وه دَ دے آیت یو تفسیر خو هغه دے کوم چه په لنډه تفسیر کښے تیر شوے دے.

چه دَ "مَوْتِه" ضمیر اهلِ کتابو ته راجع کړے شي، او دَ ایات مطلب په دے صورت کښے دا دے چه دا یهود به دَ خپل مرګ نه وړاندِ کله چه دَ عالمِ برزخ ننښے او وینی نو دَ عیسیٰ علیه السلام په نبوّت به ایمان راوړی، اګرچه دَ دغے وخت ایمان به دوی لره څۀ نفع نه ورکوی، لکه څنګه چه فرعون لره دَ دۀ ایمان دَ غرقید و په وخت کښے څۀ فائده نه وه ورکړے -

دویم تفسیر کوم چه دَ اصحابو او تابعینو یو لوئے جماعت اختیار کړے دے او دَ صحیح حدیث نه هم دَدے تائید کیږی دا دے چه دَ "مَوْتِهٖ" ضمیر حضرت مسیح علیه السلام ته راجع دے او دَ ایات مطلب دا دے چه دا اهل کتاب اګرچه دا وخت په عیسیٰ علیه السلام ایمان نه راوړی، یهودیان خو دے نبی هم نه مَنِیْ بلکه العیاذ بالله مفتری او کاذب ورته وائی، او نصارا اګرچه په دۀ دَ ایمان راوړو دعوه کوی لیکن بعضِ په دوی کښے دَ خپل جهالت نه دے حَدّ ته رسیدلی دی چه دَ یهودو پشان دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ قتل شوی او په سولئ شوی قائل دی، او بعضے په عقیده کښے دومره حد ته رسیدلی دی چه دے یئے خدائے او دَ خدائے ځوئے اوګڼړه - دَ قرآن کریم په دے ایت کښے یئے دا خودَلے دہ چه دا خلق اګرچه دا وخت دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په نبوّت صحیح ایمان نه لری لیکن هرکله چه قیامت ته نزدے زمکے ته بیا راکوزشی نو دا ټول اهلِ کتاب به په دۀ صحیح ایمان راوړی، نصارا خو به ټول په صحیح عقیده سره ایمان راوړی او په یهودو کښے چه څوک مخالفت اوکړی قتل به کړے شی او باقی به مسلمانان شی، دغه وخت به کفر دَ خپلو ټولو قسمونو سره دَ دُنیا نه فنا کړے شي- او په ټوله دُنیا به صرف دَ اسلام حکمرانی شي -

دَ حضرت ابو هریرهؓ نه یو روایت نقل دے چه:

عَنْ اَبِیْ هُرَیْرَۃَؓ عَنِ النَّبِیِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ قَالَ لَيَنْزِلَنَّ اِبْنُ مَرْيَمَ حَكَمًا عَدْلًا فَلَيَقْتُلَنَّ الدَّجَّالَ وَلَيَقْتُلَنَّ الْخِنْزِيْرَ وَلَيَكْسِرَنَّ الصَّلِيْبَ وَتَكُوْنَ السَّجْدَةُ

دَ حضرت ابو هریرهؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه عیسیٰ ابن مریم به دَ یو عادل حکمران په صورت کښے خامخا نازل شی هغه به دجّال او خنزیر قتل کړی صلیب به مات کړی او دغه وخت

وَاحِدَةً لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ۔
ثُمَّ قَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَؓ وَاقْرَءُوْا اِنْ شِئْتُمْ وَاِنْ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اِلَّا لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ قَالَ اَبُوْهُرَيْرَةَؓ قَبْلَ مَوْتِ عِيْسٰى، يُعِيْدُهَا ثَلٰثَ مَرَّاتٍ (قرطبی)

په عبادت صرف د پروردګار د عالم وي.
د دې نه پس ابوهريرهؓ اوفرمائيل که تاسو غواړئ نو د قرآن کريم دا آيات هم اولولئ چه په دې کښې د دې حقيقت ذکر شوې دې "چه د اهل کتابو نه به يو هم پاتې نه شي مګر دا چه دې به په ده باندې د مرګ نه وړاندې ايمان راؤړي- دوئ اوفرمائيل چه د عيسىٰ عليه السلام د مرګ نه وړاندې او دا الفاظ ئې درې ځلې اوفرمائيل"۔

د ذکر شوي آيات دا تفسير د يو لوئې مرتبې د صحابي حضرت ابوهريرهؓ نه په صحيح روايت سره ثابت دې چه په دې کښې د قَبْلَ مَوْتِهٖ نه مراد قَبْلَ مَوْتِ عِيْسٰى عليه السلام مقرر شوې دې چه د آيات معنىٰ ئې په ډاګه کړې ده چه دا آيات قيامت ته نزدې د حضرت عيسى عليه السلام د نازليدو متعلق دې۔

د دې تفسير په بنا باندې دا آيات ناطق دې چه حضرت عيسىٰ عليه السلام لاتراوسه وفات شوې نه دې، بلکه قيامت ته نزدې کله چه دې د آسمان نه نازل شي او د ده د نزول سره چه د الله پاک کوم حکمتونه تړلي دي هغه پوره شي نو بيا به دغه وخت په دې زمکه دې وفات کيږي۔

د دې تائيد د سورتِ زُخرُف د دې آيات نه هم کيږي: وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ فَلَا تَمْتَرُنَّ بِهَا وَاتَّبِعُوْنِ "يعنې عيسى عليه السلام د قيامت يو نښنه ده پس تاسو د قيامت په راتلو کښې شک مه کوه او زما خبره اُومَنه"۔ د تفسير ليکونکو يو لوئې جماعت په دې ځائې کښې ليکلي چه د اِنَّهٗ ضمير حضرت عيسىٰ عليه السلام ته راجع دې او معنىٰ دا ده چه عيسىٰ عليه السلام د قيامت يوه نښنه ده۔ د دې نه معلومه شوه چه په دې آيات کښې د حضرت مسيح عليه السلام د نازليدو خبر ورکړې شوې دې چه دې به قيامت ته نزدې نازليږي او د ده راتلل به د قيامت د نښنو نه وي۔

په دې آيات کښې يو بل قرأت "لَعَلَمٌ"، هم نقل دې، چه د دې نه دا معنىٰ ڀا

واضحه کیږی ځکه چه عَلَمٌ په زور د لام سره په معنی د نښې دے۔ د حضرت عبدالله ابن عباسؓ تفسیر هم د دے تائید کوی: عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِیَ اللّٰهُ عَنْهُ فِیْ قَوْلِهٖ تَعَالٰی وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ، قَالَ خُرُوْجِ عِیْسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ قَبْلَ یَوْمِ الْقِیٰمَةِ، "د حضرت ابن عباسؓ نه: وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ په باره کښې نقل دے چه د دے نه حضرت عیسیٰ علیه السلام مراد دے چه د قیامت نه وړاندې به تشریف راوړی"۔ (ابن کثیر)

لنډه دا ده چه د ذکر شوی ایات: قَبْلَ مَوْتِهٖ: سره د حضرت ابو هریرهؓ د صحیح حدیث تفسیر شامل کړے شی نو د دے نه په ښکاره طور سره د حضرت عیسیٰ علیه السلام ژوندے پاتے کیدل او بیا قیامت ته نزدے راکوزیدل او په یهودو مکمل غلبه موندل ثابتیږی۔ دغه شان د ایات: وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ نه د ابن عباس د تفسیر په مطابق هم دا مضمون یقینی کیږی۔

د تفسیر امام ابن کثیر د ایات: وَاِنَّهٗ لَعِلْمٌ لِّلسَّاعَةِ: په تفسیر کښې لیکی:

| | |
|---|---|
| وَقَدْ تَوَاتَرَتِ الْاَحَادِیْثُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهٗ اَخْبَرَ بِنُزُوْلِ عِیْسٰی عَلَیْهِ السَّلَامُ قَبْلَ یَوْمِ الْقِیٰمَةِ اِمَامًا عَادِلًا۔ (ابن کثیر) | "د نبی کریم صلی الله علیه وسلم احادیث په دے باره کښې متواتر دی۔ چه دوی د قیامت نه وړاندے د عیسیٰ علیه السلام دنیا ته د نازلیدو خبر ورکړے دے"۔ |

دے متواتر روایتونو لره زمونږ استاذ حجة الاسلام حضرت مولانا محمد انورشاه کشمیریؒ جمع کړی دی چه شمارئے د سلو نه زیات دے۔ د حضرت استاذ په حکم باندے دے ناچیز (مولانا مفتی محمد شفیعؒ) دغے مجموعے لره په عربی ژبه باندے جوړه کړے ده۔ حضرتؒ د دے نوم: اَلتَّصْرِیْحُ بِمَا تَوَاتَرَ فِیْ نُزُوْلِ الْمَسِیْحِ: تجویز کړے دے۔ چه هم په دغه وخت کښې شائع شوے وه۔ او دا وخت د حلب شام یو لوئے عالم: علامه عبدالفتاح ابوغده: د زیاتے شرحے او حاشئے سره په بیروت کښې په اعلیٰ کتابت شائع کړے ده۔

| | |
|---|---|
| په اخر زمانه کښې د عیسیٰ علیه السلام د نزول عقیده قطعی او اجماعی ده او د دے نه منکر کافر دے | دا مضمون په ذکر شوی ایات سره هم واضحه شوے دے او د دے پوره تفصیل په سورت ال عمران کښې تیر شوے دے هلته ئے اوګورئ۔ |

په دغه ځای کښې د دغو شبهو ذکر هم دے چه په دے زمانه کښې د بعضې ملحدینو د طرفه د دے عقیدے د شکمنې کولو د پاره پیش کړے شوی دی (الله ولی الهدایة)

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ

پس د یهودو د ګناهونو په وجه سره مونږ حرام کړه په دوی چیز پاک څیزونه چه په دوی

لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَثِيْرًا ﴿١٦٠﴾ وَّاَخْذِهِمُ

حلال وُو او په دے وجه چه منع کول بریئے د الله د لارے نه ډیر- او په دے وجه چه سود

الرِّبٰوا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ وَاَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ

به ئے اخستو او دوی ته د دے نه منع شوے وه او په دے وجه چه د خلقو مالونه بریئے خوړل

بِالْبَاطِلِ ۭ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿١٦١﴾

په ناحقه - او تیار کړے دے مونږ د کافرانو د پاره کوم چه په دوی کښې دی عذاب دردناک

**د ایاتونو ربط** په تیرو ایاتونو کښې د یهودو د شرارتونو او د دے شرارتونو په وجه د دوی د سزا ذکر وه - په دے ایاتونو کښې هم د دوی د ځینو نورو قباحتونو ذکر دے او د سزا د یو بل قسم هم ذکر دے او هغه دا چه په قیامت کښې خو به دوی لره عذاب وی وی، خو په دے دنیا کښې هم د دوی د ګمراهئ دا نتیجه شوه چه ډیر پاک څیزونه کوم چه د مخکښې نه حلال وُو په طور د سزا په دوی حرام کړے شو -

## لنډ تفسیر

پس د یهودو د دغے لویو لویو جرمونو په سبب (چه ډیر تیر په سورت بقره کښې ذکر شوی دی) مونږ ډیر پاکیزه (یعنی حلال او نفعمند او خوندور) څیزونه

کوم چه (د دوی نه اول نه) په دوی (هم) حلال وُو (لکه چه په ایات كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ

حِلًّا لِّبَنِیٓ اِسْرَآءِیْلَ کښې دي) په دوی (د موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې) حرام کړه (چه د دے بیان د سورتِ انعام په ایات: وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ الخ: کښې دے او هلته هم دا خودلې شوی دی چه دا حلال او پاک څیزونه په دوی باندے د دوی د ګناهونو په سبب او نافرمانو په وجه حرام شوی وُو: ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِبَغْيِهِمْ الخ) او (د موسیٰ علیه السلام په شریعت کښې هم هغه ټول حرام پاتے شو هیڅ یو کښې حلال نه شو) په سبب د دے چه (دوی اینده هم د داسے حرکتو نو نه منع نه شو مثلاً دا چه دوی (به په احکامو کښې ادل بدل کاوه یا به ئے د خدائے حکم پټاوه) ډیر خلق یه ئے د الله د لارے (یعنی حق دین د قبلولو) نه منع کول (ځکه چه د دوی په د ے کار سره به عوام خامخا په شک کښې پریوتل، اګرچه په رشتینی طلب سره خو دغه شک لرے کیدل ممکن وُو) او په سبب د دے چه دوی به سُود اغستو حال دا دے چه دوی (په تورات کښې) د دے نه منع شوی وُو او په سبب د دے چه دوی یه د خلقو مالونه په ناحقه طریقه (یعنی ناجائزه طریقه) سره خوړلو پس د حق په لاره کښې د بندیز جوړیدو، سُود اغستو او په ناجائزو طریقو سره د نورو د مالونو د خوړو په وجه سره ترڅو پورے چه دغه شریعت وه نو په دوی څهٔ سپکوالے او نه شو البته په نوی شریعت د عیسیٰ علیه السلام کښې څهٔ احکام بدل شوی وُو لکه د ایات: وَلِاُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِيْ حُرِّمَ عَلَيْكُمْ: نه معلومیګی او په شریعت محمدیؐ کښې ډیر سپکوالے او شو لکه: وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبٰتِ الخ: نه ثابته ده - دا خو دنیوی سزا وه) او (په اخرت کښې) مونږ د دغې خلقو د پاره کوم چه په دوی کښې کافری د دردناکے سزا سامان تیار کړے دے، (البته کوم چه د شرعی قاعدے مطابق ایمان راوړی د دهٔ تیر ګناهونه به ټول معاف شی) -

## معلومات او مسئلے

په شریعتِ محمدیؐ کښې هم بعضے څیزونه حرام دی لیکن هغه د څهٔ جسمانی یا روحانی ضرر په وجه سره حرام کړی شوی دی، په خلاف د یهودو نه چه په دوی کوم پاک څیزونه حرام شوی وُو په هغے کښې څهٔ جسمانی یا روحانی ضرر نه وُه -

بلکه د دوی د نافرمانو د سزا په طور سوه په دوی دا شیز ونه حرام کړی شوی دي.

لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُوْنَ

لیکن کوم چه پابنه دی په علم کښې په دوی کښې او ایمان والا دی

يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ

یس منی څه چه نازل شو پتا باندې او څه چه نازل شو ستا نه وړاندې

وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَ

او افرین دے په موڅ قائم ساتونکو او کوم چه ورکونکی دی د زکوٰة او

الْمُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ سَنُؤْتِيْهِمْ

یقین لرونکی دی په الله او د قیامت په ورځ پس دا سے خلقو لره به مونږ

اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۶۲﴾ ع ۲۳/۲

ورکړو لوئے ثواب -

**د ایاتو نو تړون** په بره ایاتو نو کښے د هغه یهودو ذکر وه چه په خپل کفر باندے قائم ده او په بره ذکر شو بد وعملو نو کښے آخته

ؤو- وړاندے د هغه صاحبانو بیان دے چه اهل کتاب ؤو او کله چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم مبعوث شو او هغه صفتونه کوم چه د دوی په کتابونو کښے د خاتم النبیین صلے الله علیه وسلم متعلق موجود ؤو په دوی کښے یې پوره پوره او لیدل نو ایمان ئے راوړو دلکه حضرت عبد الله بن سلام او اُسید او ثعلبه رضی الله عنهم- په دے ایاتو نو کښے د دے حضراتو تعریف او صفت ذکر شوے دے -

# لنډ تفسیر

لیکن په دوی (یهودو) کښې چه کوم خلق په علم (دین) کښې پاخهٔ (یعنې د دے په موافق عمل کولو کښې مضبوط) دی را او دے تیاری په دوی باندې حق بنکاره او د حق قبلول آسان کړل کوم چه وړاندې ئے اُصول او فروع ذکر دی) او کوم چه (په دوی کښې) ایمان راوړونکی دی چه په دے کتاب هم ایمان راوړی چه تاته را ولیګلے شو او په هغه کتاب هم (ایمان لری) کوم چه ستاند وړاندے (نبیانو ته) لیګلی شوی وُو (لکه تورات انجیل) او کوم چه (په دوی کښې) د مانځه پابندی کونکی دی او کوم چه (په دوی کښې) زکوٰة ورکونکی دی او کوم چه (په دوی کښې) په الله تعالیٰ او د قیامت په ورځې عقیده لرونکی دی (پس) داسے خلقو لره به مونږ ضرور (په اٰخرت کښې) لوئے ثواب ورکړو۔

# معلومات او مسئلے

په ایات کښې چه د کوم حضراتو د پاره د کامل اجر وعده ده دغه د دوی د ایمان او نیک عمل کولو په وجه سره ده۔ او ترڅو پورے چه صرف یوازے د نجات تعلق دے هغه په ضروری عقیده و تهیک کولو باندې موقوف دے۔ په دے شرط چه په ایمان سره د خاتمے سعادت (خوش بختی) ورته نصیب شی۔

إِنَّآ أَوْحَيْنَآ إِلَيْكَ كَمَآ أَوْحَيْنَآ إِلَىٰ نُوحٍ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ مِنۢ

مونږ وحئ او لیګله تا ته لکه چه وحئ لیګلے وه مونږ نوح ؑ ته او هغه نبیانو ته

بَعْدِهِۦ ۚ وَأَوْحَيْنَآ إِلَىٰٓ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْمَٰعِيلَ وَإِسْحَٰقَ

کوم چه د ده نه پس وُو او وحئ لیګلے وه مونږ ابراهیم ؑ او اسمٰعیل ؑ ته او اسحٰق ؑ ته

وَيَعْقُوبَ وَٱلْأَسْبَاطِ وَعِيسَىٰ وَأَيُّوبَ وَيُونُسَ

او یعقوب ؑ ته او د ده اولاد ته او عیسیٰ ؑ ته او ایوب ؑ ته او یونس ؑ ته

وَهٰرُوْنَ وَسُلَيْمٰنَ ۚ وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا ﴿١٦٣﴾ وَ

او هارون ته او سلیمان ته - او ورکړے وه موږ داؤد ته زبور - او

رُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا

او لیږلی دی موږ داسے رسولان چه حالات ئے موږ تا ته واوره ول د دے نه وړاندے - او داسے رسولان

لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۚ وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا ﴿١٦٤﴾ ۚ

چه حالات ئے موږ تا ته نه دی آوره ولی - او خبرے کړی دی الله د موسیٰ سره خبرے کول -

رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ

لیږلی دی موږ پیغمبران خوشخبری او یره آوره ونکی د دے د پاره چه پاتے نه شی د خلقو

عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌ ۢ بَعْدَ الرُّسُلِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا

په الله باندے څه الزام موقع د رسولانو نه پس - او الله زبردست دے

حَكِيْمًا ﴿١٦٥﴾ لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ اِلَيْكَ اَنْزَلَهٗ

حکمت والا - لیکن الله ګواه دے په دے چه څه ئې پتا نازل کړه چه دائې نازل کړیدی

بِعِلْمِهٖ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ

پخپل علم سره - او فرشتے هم ګواه دی - او الله کافی دے حق

شَهِيْدًا ﴿١٦٦﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ

ښکاره کونکے - کوم خلق چه کافر شو او بند ئے کړل د

سَبِيْلِ اللّٰهِ قَدْ ضَلُّوْا ضَلٰلًا ۢ بَعِيْدًا ﴿١٦٧﴾ اِنَّ

لارے د خدائے نه دوی ګمراه شو ډیر لرے - بے شکه

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَظَلَمُوْا لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ

کوم خلق چه کافر شو او حق ئې پټ کړ و خو هغوئ الله نه دے بخښونکے دوی لره

وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيْقًا ﴿١٦٨﴾ اِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ

اونه به او ښائي دوی ته لار برابره - مګر لار د دوزخ او سی به دوی

فِيْهَآ اَبَدًا ۭ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿١٦٩﴾

په دے کښے همیشه - او دا په الله پاک باندے آسان دے -

## د ایاتو نو تړون

د يَسْئَلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ: نه ئې د یهودو یو احمقانه سوال ذکر کړ و، د دے یو الزامی جواب ئې په تفصیل سره ورکړ و دلته په یو بل عُنوان سره هم دغه سوال باطلولے شی چه تاسو په نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ایمان راوړو د پاره کوم شرط لګوئ چه ته[۲] د اسمان نه لیکلے کتاب راوړه او ښایه - نو دا او وایئ چه دا د لوئے مرتبے پیغمبران کوم چه ذکر ئې په دے ایاتو کښے دے داخو تاسو هم منئ او د دوی په حق کښے تاسو دا قسم مطالبے نه کوئ - نو په کوم دلیل سره چه تاسو دا حضرات نبیان منئ ، یعنی په معجزو سره - نو د محمد صلی الله علیه وسلم سره خو هم معجزے شته ، نو په د ه[۲] باندے هم ایمان راوړئ - لیکن خبره دا ده چه ستاسو دا مطالبه د حق د پاره نه ده ، بلکه د عناد د پاره ده -

وړاندے ئې د انبیاؤ د رالیږلو حکمت هم بیان کړ و - او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ئې مخاطب کړ و او ئې خوده ورته چه دا خلق که ستا په نبوّت ایمان نه راوړی نو خپل اخرت خرابوی ستا په نبوّت خو خدائے هم ګواه دے او د خدائے فرښتے هم د دے ګواهی ورکوی -

## لنډ تفسير

مونږ رڅخهٔ تا لره یو ائے رسول نه دے جوړ کړے چه دا سے عبث فرمائیشونه کوی

بلکه) تا ته (هم داسے) وحی لیږلے ده لکه (حضرت) نوح (علیه السلام) ته مونږ لیږلے وه او د دۀ نه پس نورو پیغمبرانو ته (لیږلے وه) او (په دوی کښے د بعضو نومونه هم ښایو چه) مونږ (حضرا تو) ابراهیم او اسمٰعیل او اسحٰق او یعقوب او اولاد د یعقوب (کښے چه کوم نبیان تیر شوی دی) او عیسیٰ او ایوّب او یونس او هارون او سلیمان (علیهم الصلوٰة والسلام) ته وحی لیږلے وه او (دغه شان) مونږ داؤد (علیه السلام ته هم وحی لیږلے وه نو دۀ) ته (کتاب) زبور ورکړے وۀ او (د دوی نه علاوه) نور (بعضے) داسے پیغمبرانو لره (هم) د وحی خاوندان جوړ کړه چه حال ئے د دے نه مخکښے (په سورتِ انعام وغیره مکّی سورتونو کښے) مونږ تا ته بیان کړے دے او (بعضے) داسے پیغمبرانو لره (د وحی خاوندان جوړ کړه) چه د دوی حال (تر اوسه پورے) مونږ تا ته نه دے بیان کړے او (حضرت) موسیٰ (علیه السلام لره هم صاحب وحی جوړ کړه چنانچه د دۀ) سره الله تعالیٰ په خاص طور سره کلام او فرمایه (او) دے ټولو لره (په ایمان) خوشخبری (د خلاصی) ورکونکی او (په کفر د عذاب نه) یره ورکونکی پیغمبران جوړ کړه ځکه چه او لیږل چه د خلقو سره د الله تعالیٰ په وړاندے د دے پیغمبرانو (د راتلو) نه پس څه (ظاهری) عذر (هم) پاتے نه شی (ورنه په قیامت کښے به ئے داسے وے چه د خیر وشر ونو ښئ والے او بد والے خو په عقل سره نه شو معلومید ے نو زمونږ څۀ خطاء ده) او (همیشه خو) الله تعالیٰ د پوره زور (او اختیار) خاوند دے (چه که په غیر د پیغمبرانو د راليږلو نه ئے عذاب ورکولے نو په دے وجه چه حقیقی مالک دے یو ائے، نو دا به هم ظلم نه وۀ او په حقیقت کښے د عذر کولو حق هم هیڅ ته نه وۀ لیکن چونکه) لوئے حکمت والا (هم) دے (نو په را لیږلو کښے ئے حکمت وۀ چه ظاهری عذر هم پاتے نه شی، دا د حکمت بیان تبعًا په مینځ کښے راغلے وۀ، د ړاندے د نبوّتِ محمّدی د ثابتولو د جواب تکمیل فرمائی چه اګر که دوی د خپلے دے شبه چه رفع کیدو هم نبوّت او نه منی) لیکن (په واقع کښے خو ثابت دے او په دے ثبوت باندے صحیح دلیل قائم دے چنانچه) الله تعالیٰ په ذریعه د دے کتاب کوم چه ئے تا ته را لیږلے دے او لیږلے ئے هم (په څۀ شان) په خپل علمی کمال سره (چه په دے سره دا کتاب یو لویه معجزه شو

کوم چه د نبوّت دلیل قاطع دے، د دا سے معجز کتاب په ذریعه سره ستا د نبوّت) شهادت ورکوی (یعنی دلیل قائموی لکه چه اوس معلومه شوه چه معجز کتاب ئے نازل کړو او دا اعجاز دلیل د نبوّت دے نو پس په واقع کښے په دلیل سره نبوّت ثابت دے، اوس پاتے شو د چا منل او نه منل نو د دے خو خیال هیڅ نه دے) او (که چرے طبعاً زړه دا غواړی نو د دوی نه غوره مخلوق یعنی) فرښتے (ستا د نبوّت) تصدیق کوی (او د مؤمنانو تصدیق خو لیدے شی چه دے پس که یو څو احمقان ئے نه مني نو نه دې مني) او (اصل خبره خو دغه ده چه) د الله تعالیٰ شهادت کافی دے (چه دا واقعی دلیل دے د بل چا د تصدیق او منلو تا ته حاجت نیشته) کوم خلق (چه د دے مضبوطو دلیلو نه پس هم) چه منکر دی او (مزه دا ده چه نور و لره هم) د خدائی دین نه منع کوی دوی (د حق نه) چیر لرے په گمراهئ کښے پریوتی دی (دا خو په دنیا کښے د دوی د مذهب نتائج شوه او میوه ئے په اخرت کښے وړاندے وا وره چه) بے شکه کوم خلق چه (د حق نه) منکر دی او (د حق نه منع کوونکی هم پریکړی) د نورو هم نقصان کوی الله تعالیٰ دوی چرته هم او نه بخی او نه به دوی ته د جهنم د لارے نه سوا بله لار (یعنی د جنّت لار) او بنائی دغه شان چه په دے (جهنم) کښے به همیشه همیشه اوسی او دا الله تعالیٰ په نزد دا سے معمولی خبره ده (د دے د پاره څه سامان تیاره ول نه غواړی)

# معلومات او مسئلے

د: اِنَّآ اَوۡحَیۡنَآ اِلَیۡكَ كَمَآ اَوۡحَیۡنَآ اِلٰی نُوۡحٍ وَّالنَّبِیّٖنَ مِنۡۢ بَعۡدِهٖ: نه معلومه شوه چه وحی خاص د الله تعالیٰ حکم او د هغه پیغام دے چه پیغمبرانو ته لیګلے شی او په تیرو پیغمبرانو[ع] چه څنګه د الله تعالیٰ وحی نازل شوے ده دغه شان په حضرت خاتم الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم بانی الله تعالیٰ خپله وحی را لیګلے ده۔ نو څوک چه د دے لره مني دا به هم خامخا مني او چا چه د دے نه انکار اوکړه نو کو یا د دے ټولو نه منکر شو او د حضرت نوح علیه السلام او د دوئ نه د وړاندینو سره د مشابهت وجه شاید دا ده چه د حضرت آدم علیه السلام په وخت کښے کومه وحی شروع شوه

نو دغه وخت بالکل ابتدائي حالت وه، په حضرت نوح علیه السلام ددے تکمیل اوشو. ګویا اول حالت محض د تعلیم ابتدائي حالت وه د حضرت نوح علیه السلام په زمانه کښے دغه حالت پوره شو ددے قابل شو چه ددوی امتحان واغستے شی او فرمانبردارو ته انعام او نافرمانو ته سزا ملاؤ شی چنانچه د اولوا العزمو پیغمبرانو سلسله هم د حضرت نوح علیه السلام نه شروع شوه. او د الله تعالیٰ د وحی نه په مخ اړه وونکو باندے هم اول عذاب د حضرت نوح علیه السلام د وخت نه شروع شو.

لنډه داچه د نوح علیه السلام نه وړاندے د الله تعالیٰ په حکم او د انبیاؤ په مخالفت عذاب نه نازلیده، بلکه دوی به ئے معذور ګنړل صبر به ورته کولے شو او د پوهه کولو کوشش به ئے کولے شو. د نوح علیه السلام په زمانه کښے کله چه مذهبی تعلیم بنه ظاهر شو او خلقو ته د الله تعالیٰ د حکم په متابعت کښے څه پټ والے پاتے نه شو، نو اوس په نافرمانو عذاب نازل شو، اول د حضرت نوح علیه السلام په زمانه کښے طوفان راغے ددے نه پس حضرت هود، حضرت صالح، حضرت شعیب علیهم السلام وغیره انبیاؤ په زمانه کښے په کافرانو قسم قسم عذابونه راغلل. نو د حضرت نوحؑ په وحی او د ده نه د وړاندو د وحی سره د حضورؐ د وحی په مشابه کولو کښے د مکے مشرکانو ته پوره تنبیه رخبرداریه او کړے شو چه که څوک ستا سو وحی یعنی قرآن او نه منی دے به د لوئے عذاب مستحق شی (فوائد علامه عثمانیؒ)

د حضرت نوح علیه السلام ذات پخپله یو معجزه وه نه نیم سوه ۹۵۰ کاله عمر دوی ته ورکړے شوے وه، او د دوی یو غاښ نه وه غورزیدلے او نه ئے یو ویښته سپین شوے وه. د دوی په جسمانی طاقت کښے هم څه کمے نه وه راغلے او تمول عمر ئے د قوم آزار او تکلیف رسول په صبر سره زغملے وه (مظهری)

وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ؛ د حضرت نوح علیه السلام نه پس چه کوم انبیاءؑ راغلی دی د دوی ئے اجمالًا ذکر اوکړه په دوی کښے چه کوم اولوا العزم او لوئے مرتبے والا پیغمبرانؑ دی د دوی ئے په خاص طور سره ذکر اوکړه چه د دے مقصد دا خودل دی چه دا تول انبیاء دی او انبیاؤ ته په مختلفو طریقو سره وحی راتی.

کله فرښته پيغام راوړي. کله ليکلے کتاب ورته ملاويږي کله الله تعالیٰ نيغ په نيغه د
خپلو رسولانو سره خبرے کوي - غرض دا دے چه وحي په هره طريقه چه راشي خو عمل
پرے واجب دے - په دے وجه د يهوديانو دا وئيل چه که د تورات په شان ليکلے کتاب
نازل شي نو اوبه يے منو ورنه نه منو - دا خالص حماقت او کفر دے -
د حضرت ابو ذر غفاري رضي الله عنه نه روايت دے چه نبي کريم صلے الله عليه
وسلم فرمائيلي دي الله تعالیٰ يو لاک څلير يشت زره پيغمبران را ليږلي دي، چه
د دے سره ديارلس يکښے د شريعت خاوندان وو - ( قرطبي )
رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ : الله تعالیٰ پيغمبرانو لره برابر راواو ليږل چه
مؤمنانو ته خوشخبري واوره وي او کافرانو لره او يره وي د دے د پاره چه د
قيامت په ورځ د خلقو دا عذر باتے نه شي چه مونږ ته ستا مرضي او د بل مرضي معلومه
نه وه که معلومه وے نو خامخا به پرے مونږ عمل کولو، پس کله چه الله تعالیٰ پيغمبرانو
لره معجزے ورکړے راوئے ليږل او پيغمبرانو حقه لار او خودلو او س د حق دين په
نه قبلولو کښے د هيچا عذر نه شي اوريدے - د الله تعالیٰ وحي يو داسے قطعي دليل
دے چه د دے په وړاندے بل دليل نه شي چليدے بلکه ټول دليلونه ختم شي - او
دا د الله تعالیٰ حکمت او تدبير دے -
د حضرت ابن عباس نه روايت دے - چه د يهوديو يو جماعت د نبي کريم صلے الله عليه
وسلم په خدمت کښے حاضر شو دوي ورته او فرمائيل چه په خدائے قسم دے تاسو
يقينا پوهيږئ چه زه د خدائے حق رسول يم - نو دوي د دے نه انکار او کړو - نو
په دے باندے دا آيات نازل شو : لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَآ اَنْزَلَ اِلَيْكَ : - چه په دے
کښے نے دا او خوده چه الله تعالیٰ د دے معجز کتاب په ذريعه سره چه د ده علمي کمال د
ستا په نبوت ګواه دے هغه چه ستا دا کتاب نازل او ه نو په دے پوهه ده چه ته
د دے اهل يے - او فرښتے هم په دے ګواه دي - او د عليم او خبير ذات ګواهئ
نه پس د څه دليل حاجت باتے کيدے شي -
د قرآن کريم او د حضور صلے الله عليه وسلم د تصديق نه پس فرمائي چه او س
کوم خلق منکر دي، او په تورات کښے چه کوم ستا صفتونه او حالات موجود وو،
هغه پټوي او خلقو ته نورڅه ښکاره کوي د حق دين نه يے منع کوي، پس د داسے

خلقو به نه مغفرت نصیب شي نه هدایت- چه دَدے نه بښکاره معلومه شوه چه هدایت ستا په متابعت کښے دے- او ګمراهي ستا دَ مخالفت نوم دے-
په دے سره دَ یهودو ټول خیالات باطل او غلط کړے شو-

---

يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمُ الرَّسُولُ بِالْحَقِّ مِنْ
اے خلقو! تاسو ته رسول راغے دَ حقے خبرے راوړو سره ستاسو
رَبِّكُمْ فَآمِنُوا خَيْرًا لَكُمْ ۚ وَإِنْ تَكْفُرُوا فَإِنَّ لِلَّهِ
دَ رب نه- نو او ئے منئ چه تاسو لره ښه شي- او که تاسو او نه منئ نو دَ الله تعالیٰ دی
مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١٧٠﴾
څه چه په اسمانو نو کښے دی او په زمکه کښے او دے الله په هر څۀ پوهه حکمت والا-

**دَ آیاتونو ترون**

دَ یهودو دَ اعتراضونو دَ جواب او دَ نبوّت محمدی علیٰ صاحبها السلام دَ ثابتولو نه پس اوس دَ ټولے دنیا خلقو ته خطاب فرمائی- چه ستاسو نجات په دے کښے دے چه دَ محمد صلے الله علیه وَسلّم په نبوّت ایمان راوړئ-

## لنډ تفسیر

اے ټولو (دَ جهان) خلقو تاسو ته دے رسول (صلے الله علیه وسلم) رښتونے خبره (یعنی رښتونے دعوه رښتونے دلیل) راوړے ستاسو دَ رب دَ طرف نه تشریف راوړے دے پس (دَ دے صحیح دلیل چه په دعوه باندِ ثابت دے دا مقتضیٰ ده چه) تاسو (په دۀ او څۀ چه دے فرمائی په ټولو) یقین لرئ (کوم چه دَ ویرا نړے نه یقین راوړے دے هغوی دے په دے تمام اوسی او چا چه نه دے راوړے

اوس دے اختیار کړی) دا به ستاسو د پاره غوره وی (ځکه چه نجات به بیا مومئ) او که تاسو منکر شوئ نو (ستاسو نقصان دے د الله تعالیٰ هیڅ نقصان نه دے ځکه چه) د خدائے تعالیٰ ملکیت دے دا هر څه چه په اسمانونو او زمکه کښے (موجود دی (نو داسے لوئے عظیم الشان مالک ته به څه نقصان او رسولے شئ، خپل خیر غواړئ) او الله تعالیٰ (د ټولو د ایمان او کفر) پوره خبر لری (او په دنیا کښے چه پوره سزا نه ورکوی نو ځکه چه) کامل حکمت والا (هم) دے - (نو دغه حکمت د دے مقتضیٰ دے)

---

يٰٓاَهۡلَ الۡكِتٰبِ لَا تَغۡلُوۡا فِىۡ دِيۡنِكُمۡ وَلَا تَقُوۡلُوۡا عَلَى اللّٰهِ

اے اهلِ کتابو مبالغه مه کوئے د دین په خبره کښے او مه وایئ د الله تعالیٰ په

اِلَّا الۡحَـقَّ‌ ؕ اِنَّمَا الۡمَسِيۡحُ عِيۡسَى ابۡنُ مَرۡيَمَ رَسُوۡلُ اللّٰهِ

شان کښے مګر حقه خبره - بے شکه مسیح چه دے عیسیٰ د مریم ځوئے هغه رسول د الله دے

وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَ لۡقٰٮهَاۤ اِلٰى مَرۡيَمَ وَرُوۡحٌ مِّنۡهُ‌ فَاٰمِنُوۡا بِاللّٰهِ

او د هغه کلام دے چه غورزه ولے ئے دے مریم ته او د هغه د طرف نه روح دے - پس او منئ الله

وَرُسُلِهٖ‌ ۚ ۖ وَلَا تَقُوۡلُوۡا ثَلٰثَةٌ‌ ؕ اِنۡتَهُوۡا خَيۡرًا لَّـكُمۡ‌ ؕ

او د هغه رسولانو لره او مه وایئ چه خدایان دری دی - دا خبره پریدئ دا به غوره وی تاسو لره

اِنَّمَا اللّٰهُ اِلٰـهٌ وَّاحِدٌ‌ ؕ سُبۡحٰنَهٗۤ اَنۡ يَّكُوۡنَ لَهٗ

بے شکه الله معبود دے یو ائے - د دے لایق نه دے چه د دهٔ اولاد وی

وَلَدٌ‌ ۘ لَهٗ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الۡاَرۡضِ‌ ؕ وَكَفٰى

د هغهٔ دی څهٔ چه په اسمانونو کښے دی او څهٔ چه په زمکه کښے دی - او کافی دے

بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ع (۱۷۱) ع ۲۳ ۹ ۳

الله کار ساز -

**د ایاتونو تړون** په تیر و ایاتو نو کښې یهودو ته خطاب وُه او د دوی د ګمراهو تفصیل پکښې ذکر وه - په دے ایاتو نو کښې نصارا وُو ته خطاب دے او د دوی د بد وعقیده واو د حضرت عیسیٰ علیه السلام متعلق د دوی د باطلو خیالاتو رَد په کښې شوے دے -

## لنډ تفسیر

اے اہلِ کتابو (یعنی انجیل والو) تاسو د خپل دین (په باره) کښې د (رحقے عقیده ئے) حد نه مه اوړئ او د الله تعالیٰ په شان کښې غلط خبره مه کوئ (چه نعوذ بالله هغه صاحبِ اولاد دے لکه چه بعضے وائی : اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ؛ او باقی دوه جزونه یو بزئے حضرت عیسی علیه السلام ته وے او یو حضرت جبرئیل علیه السلام ته- لکه په راتلونکی ایات کښې د : وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ : د ذیاتو لو نه معلومیګی او بعضے حضرت مریم علیها السلام ته لکه د : اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ : نه معلومیګی- یا دے عینِ مسیح دے لکه چه بعضو به وے : اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ : غرض دا ټولے عقیدے باطلے دی) مسیح عیسی ځوئی د مریم خو بل څۀ نه دے البته د الله رسول دے او د الله تعالیٰ یو کلمه (د پیدائیش) ده چه الله تعالیٰ (رحضرت) مریم ته (د حضرت جبرئیل علیه السلام په ذریعه سره) رسولے وه او د الله تعالیٰ د طرف نه یو روح (لرونکے شے) دے (چه دا روح ئے د حضرت مریم جسم ته په واسطه د پوکی د حضرت جبرئیل علیه السلام رسولے وُه -باقی نه هغه ابن الله دے نه په دریو کښې یو دے لکه چه په دے ذکر شوو عقیده وبا ندے لازمیګی) پس (دا ټولے خبرے غلطے دی د ټولو نه توبه کړئ او) په الله تعالیٰ او د هغۀ په رسولانو ټو لـو (د هغوی د تعلیم او خو د دے مطابق) ایمان راوړئ (او دا ایمان راوړل موقوف دی په توحید پس عقیده د توحید ساتئ) او دا سے مه وائی چه (خدایان)

درے دی (مقصود منع کول دی دَ شرک نه او شرک په دے تهولو ذکر شو و تولو نو کښے شریک دے، دَ دے شرک نه) منع شئ ستاسو دَ پاره به غوره وی (او دَ توحید قائل شئ څکه چه) حقیقی معبود خو یو معبود دے (او) هغه دَ اولادنه پاک دے هرڅهٔ چه په آسمانو نو کښے او په زمکه کښے موجود دی تول دَ هغهٔ ملکیت دی (او دَ هغهٔ دا پا کول او مالک والے دلیل دے دَ توحید) او (یو دلیل دا دے چه) الله تعالیٰ په کارسازی کښے کافی دے (او دَ هغهٔ نه سوا نور تول په کارسازئ کښے نا کافی بل ته محتاج او ترڅه حده پورے عاجز دی - او دا پوره والے دَ صفتونو دَ کمال نه دے او دَ کمال صفتو نه دَ خدائی سره لازم دی نو کله چه دا صفتو نه په غیر الله کښے نیشتے نو خدائی (اُلوهیّت) په کښے هم نیشتے نو توحید ثابت دے)۔

# مَعلومَات او مَسَئلے

وَكَلِمَتُهُ: په دے لفظ کښے ئے دا خودَلے ده چه حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ کلمه ده - تفسیر لیکونکو دَ دے مختلفے مَعنے بیان کړی دی:

۱: امام غزالیؒ فرمائی چه دَ یو بچی په پیدائش دوه عَوامِل کارکوی یو عامل نطفه ده او دویم دَ الله تعالیٰ کلمه "کُنْ" فرمائیل دی چه دَ دے نه پس دغه بچے په وجود کښے راځی - دَ حضرت عیسی علیه السلام په پیدائش کښے چونکه اوّلنے عامل نشت دے په دے وجه ئے دویم عامل طرف ته نسبت او کړه دهٔ ته ئے کلمۃُ الله او وے - چه مطلب ئے دا دے چه دهٔ دے دَ مادی (ظاهری) اسبابو دَ واسطے نه بغیر صرف په کلمه دَ "کُنْ" سره پیدا شوے دے په دے صورت کښے دَ اَلْقٰهَا معنیٰ دا شوه چه الله تعالیٰ دا کلمه حضرت مریم ته او رسَولَه چه دَ دے په نتیجه کښے دَ حضرت عیسیٰ علیه السلامؑ پیدائش او شه -

۲: بعضے فرمائی چه کَلِمَۃُ الله دَ بَشَارۃُ الله په معنیٰ دے او مراد دَ دے نه حضرت عیسیٰ علیه السلام دے، الله جلّ شانهٔ دَ فرښتو په ذریعه حضرت مریم علیها السلام ته دَ حضرت عیسٰی علیه السلام کوم بَشارت (زیرے) چه ورکړے وو په دے کښے دَ "کلمے" لفظ استعمال شوے دے: "اِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ یٰمَرْیَمُ اِنَّ اللهَ یُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ"۔

۳ : بعض فرمائي چه "كَلِمَة" دَ ایات او نیئے په معنی دے لکه چه بل ځائے دالفظ دَ ایات په معنیٰ کښے استعمال شوے دے ؛ وَصَدَّقَتْ بِكَلِمٰتِ رَبِّهَا ؛ -

؛دَ رُوْحٌ مِّنْهُ ؛ په دے لفظ کښے دوه خبرے دَ غور قابلے دی، یوه دا چه حضرت عیسیٰ علیه السلام ته دَ روح وئیلو څهٔ معنیٰ ده ؟ - او دویم دا چه دَ الله جل شانهٗ طرف ته چه دَ دے نسبت شوے دے دَ دے نسبت څهٔ مطلب دے ؟ -

په دے سلسله کښے دَ تفسیر لیکونکو دیر قول نقل دی -

۱ : بعض فرمائي چه دَ عُرفِ قاعده چه کله دَ څهٔ شي پاکوالے او طهارت بیانول وی نو دَ مبالغے دَ پاره په دهٔ دَ روح اطلاق کولے شي - دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په پیدائش کښے چونکه دَ پلار دَ نطفے دخل نه وهٔ او دے صرف دَ الله جل شانهٗ په اراده او په کلمے دَ "كُنْ" سره پیدا شوے وه په دے وجه په خپل پاکوالی او صفائی کښے دَ کمال درجے ته رسیدلے وهٔ - په دے وجه دَ عُرف دَ محاورے په مطابق دهٔ ته روح او وئیلے شو - او الله طرف ته ئے نسبت دَ دهٔ دَ تعظیم او شرافت دَ پاره دے لکه دَ جما تونو دَ تعظیم دَ پاره چه دَ دوی نسبت الله طرفته کولے شي" دَ الله جماتونه" یا دَ کعبے نسبت الله طرف ته کوی " بیت الله" ورته وائي - یا دَ یو عبادت گذار بنده نسبت الله طرف ته کو " عبد الله" ورته وائي - لکه چه په سورتِ بني اسرآئیل کښے دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ پاره دا صیغه استعمال کړے ده ؛ اَسْرٰى بِعَبْدِهٖ ؛ -

۲ : بعضے حضرات فرمائي چه دَ عیسیٰ علیه السلام دَ رالیږلو مقصد دا وهٔ چه دَ خلقو په مړو زړو نو کښے روحاني ژوند واچوی بیا ئے ژوندی کړی - نو چونکه دے دَ روحاني ژوند سبب وه لکه څنګه چه روح دَ جسماني ژوند سبب وی، په دے وجه په دے اعتبار سره دهٔ ته روح او وئیلے شو، لکه چه په خپله دَ قرآن شریف دَ پاره هم دا لفظ استعمال شوے دے ؛ وَكَذٰلِكَ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ رُوْحًا مِّنْ اَمْرِنَا ؛ ځکه چه قرآن کریم هم روحاني ژوند بخښي -

۳ : بعض فرمائي چه دَ روح استعمال دَ راز په معنیٰ کښے وی - حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ خپل عجیبه او نا آشنا پیدائش په وجه چونکه دَ الله تعالیٰ جل شانهٗ یوه نښه او راز وه په دے وجه دهٔ ته "روح الله" او وئیلے شو -

۴ : بعضے وائي چه دلته مضاف محذوف دے او اصل عبارت دا سے وهٔ ؛ ذُوْ

رُوْحٌ مِّنْهُ : او چونکه په ذی روح کید وکښې ټول حیوانات برابردي په دے وجه دَعیسیٰ علیه السلام غوره والے ئې دا سے ښکاره کړو چه دَدهٔ نسبت الله جلّ شانهٔ خپل طرف ته اوکړه۔

۵ : یو قول داهم دے چه روح دَ پُوکې په معنی باندې دے۔ حضرت جبرئیل علیه السلام دَحضرت مریم په گریبان کښې دَ الله تعالیٰ په حکم سره پو کے کړے وُه او دَدے نه ئې حمل شو۔ چونکه حضرت عیسیٰ علیه السلام په طور دَ معجزے صرف په پوکې سره پیدا شوے وُه په دے وجه دهٔ ته روح الله او وئیلے شو۔ دَقرآن کریم په بل ایات : فَنَفَخْنَا فِيْهِ مِنْ رُّوْحِنَا : سره دے طرف ته اشاره شوے ده۔

دَدې نه علاوه نورهم ډیر احتمالات بیان شوی دی۔ په هرحال دَ دے مطلب دا هرګز نه دے چه حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ یو جُز دے او دغه روح دَحضرت عیسیٰ علیه السلام په انسانی شکل کښې ظاهر شوے دے۔

**لطیفه** علامه آلوسی یو واقعه لیکلے ده" چه دَ هارون الرشید په دربار کښې یو نصرانی طبیب دَحضرت علی بن الحسین واقدی سره مناظره اوکړه ، او ورته ئې اووے چه ستاسو په کتاب کښې داسے لفظ موجود دے چه دَ هغے نه معلومیګی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ خدائے جُزو دے۔ او په دلیل کښې ئې دا آیات اولوستو په کوم کښې چه دَ رُوْحٌ مِّنْهُ : الفاظ دی۔ علامه واقدی دَ دے په جواب کښې یو بل ایات اولوستو : وَسَخَّرَ لَكُمْ مَّا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا مِّنْهُ : ( په دے ایات کښې وئیلې شوی دی چه په اسمانونو او زمکه کښې چه څهٔ دی دا ټول دَ دغه الله نه دی۔ او دَ : مِنْهُ : په ذریعه سره دَ ټولو څیزونو نسبت الله طرف ته شوے دے ) او او ئې فرمائیل چه که دَ : رُوْحٌ مِّنْهُ : مطلب دا دے چه حضرت عیسیٰ دَ الله جُزو دے۔ نو دَدے ایات مطلب به بیا داوی چه په اسمانونو او زمکه کښې چه څهٔ دی دا هم دَ الله جُزو دی ؛ دا جواب چه واوریده نو نصرانی طبیب لا جوابه شو او مسلمان شه۔

وَلَا تَقُوْلُوْا ثَلٰثَةٌ : دَقرآن دَ نزول په وخت کښې چه نصارا پکو مولویو لو یو فریقو کښې تقسیم وُو دَ تثلیث متعلق دَدوی عقیده په درے جدا جدا اُصولو مبنی وه۔ یوے فریقے به وے چه مسیح عین خدا دے او خدائے په شکل

دَمسیح دنیا ته راکوز شوے دے، دَدویے فریقے وَئیناوه چه مسیح دَ خدائے ځوئے دے، او دریے فریقے دادعوه کَوله چه دَ یو والی راز په دریو کښے پټ دے، پلار ځوئے، مریم۔ په دے فریقه کښے هم دوه ډلے وے دویمے ډلے په دَحضرت مریم په ځائے روح القدس ته اقنوم ثالث وے۔ غرض دے خلقو په حضرت مسیح علیه السلام دریم په دریو کښے مَنلو، په دے وجه قرآن کریم دا درے واړه جُدا جُدا هم مخاطب کړی دی او یو ځائے هم او په نصاراؤ ته ئے دا ښکاره کړے ده چه حق یو دے او هغه دا چه مسیح علیه السلام دَمریم علیها السلام دَ ګیډے نه پیدا شوے انسان او دَخدائے رشتو نے رسول دے۔ دَ دے نه سوا چه هرڅۀ وئیلے شی ټول باطل او عبث دی خواه که تفریط (کمے) په کښے کړی لکه چه دَ یهودو عقیده ده چه دے یو ساحر او دروغ جوړه وُتلے وه۔ یا افراط (زیاتے) پکښے کړی لکه چه دَ نصاراؤ عقیده ده چه هغه خدائے دے، یا دَ خدائے ځوئے دے یا په دریو کښے دریم دے۔

قرآن کریم پرے شماره آیاتو نو کښے خپو طرف ته دَ نصاراؤ او یهودو کمراهی ښکاره کړه، او بل طرف ته ئے دَعیسیٰ علیه السلام اوچت شان او دَ الله په نزد دَ دۀ اوچت مقام ښکاره کړے دے۔ دَ دے دَ پاره چه دا افراط او تفریط دَ ګکولا رونه دَ حق درمیانه لار ښکاره شی۔

دَ عیسایانو په عقیده او دَ دوی په مختلفو اړخونو او دَ دے په مقابله کښے دَ اسلام په حقوالی که په تفصیل سره معلومات حاصلول غواړئ نو دَحضرت مولانا رحمة الله کیرانوی مشهور کتاب "اظهار الحق" مطالعه اوکړئ، چه دَ دے دَ عربی نه ترجمه سره دَشرح او تحقیق فی الحال دار العلوم کراچی په دریو جلد ونو کښے شائع کړے ده۔

لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا: یعنی په آسمانونو او زمکه کښے دَ بره نه ترلاندے پورے چه څۀ دی ټول دَ هغۀ مخلوق او مملوک او بندګان دی۔ نو بیا او وایئ چه دَ هغۀ شریک یا دَ هغۀ ځوئے څوک او څنګ کیدے شی، او الله تعالیٰ ټول کارونه جوړه ونکے دے او دَ ټولو دَ کارسازئ دَ پاره هغه کافی او بس دے، دَ بل چا څۀ حاجت نیشتے، بیا او بنایئ چه دَ هغۀ

شریک یا ځوئی ته حاجت څنګه کیدے شی -

لنډه دا شوه چه نه په چا مخلوق کښے د هغهٔ د شریک جوړیدو قابلیت او لیاقت شته او نه د هغهٔ په پاک ذات کښے د دے ګنجائش شته او نه ئے ورته حاجت شته - نو د دے نه معلومه شوه چه په مخلوقاتو کښے چا لره د خدائے شریک یا ځوئی جوړه ول د هغهٔ چا کار دے چه د ایمان او عقل دواړو نه محروم وی -

په دین کښے غلو یعنے مبالغه) حرامه ده- (د الله تعالیٰ قول دے) لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ : په دے ایات کښے ئے اهل کتاب په دین کښے د غلو یعنے د حد نه د تیریدو) نه منع کړل' د غلو لفظی معنیٰ د حد نه وتل دی او امام جصاص په احکام القرآن کښے فرمائی :

اَلْغُلُوُّ فِي الدِّيْنِ هُوَ مُجَاوَزَةُ حَدِّ الْحَقِّ فِيْهِ -

" یعنی په دین کښے غلو دا دهٔ چه د دین په څهٔ شی کښے کوم حد مقرر شوے وی د دے نه وړاندے تیر شی"

اهلِ کتاب یعنی یهود او نصارا دواړه د دے حکم مخاطب ځکه جوړ شو چه په دین کښے غلو په دے دواړو کښے مشترک وه- او دا دواړه فریقے په دین کښے غلو کونکے دی - ځکه چه نصاراؤ د عیسی علیه السلام په منلو او د هغهٔ په تعظیم کښے غلو اوکړه هغه ئے خدائے یا د خدائے ځوئی یا دریم خدائے جوړ کړه- او یهودو په نهٔ منلو او رد کولو کښے غلو اوکړه چه هغه ئے رسول هم او نه منهٔ بلکه معاذالله د هغه په مور بی بی مریم باندے ئے تهمت پورے کړو او په نسب ئے ورلره عیب او لګاوهٔ -

چونکه په دین کښے د غلو په وجه د یهودو او نصاراؤ ګمراهی او تباهی لیدلے شوے وه - په دے وجه نبی کریم صلے الله علیه وسلم خپل امت ته په دے معامله کښے پوره د احتیاط کولو تاکید او فرمایه - په مسند احمدؒ کښے د حضرت فاروقِ اعظمؓ نه روایت دے - چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی :

لَا تُطْرُوْنِيْ كَمَا اَطْرَتْ

"تاسو ما په ثنا صفت کښے دومره مبالغه

| | |
|---|---|
| النَّصَارٰى عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ فَاِنَّمَآ اَنَا عَبْدُهٗ فَقُوْلُوْا عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُوْلُهٗ - | مه کوئ لکه نصاراؤ چه دَعیسی ابن مریم په معامله کښې کړې ده بنهٔ پوهه شئ چه زهٔ دَ الله بنده یم نو تاسو ماته دَ الله بنده اورسول وا یئ" |

(دا روایت بخاری او ابن مدینی هم روایت کړے دے او صحیح ئے گڼلے دے)

لنډه دا ده چه زهٔ دَ الله په بنده ګیرئ او بشر کیدو کښې دَ ټولو سره شریک یم خُما دَ ټولو نه لویه درجه دا دهٔ چه زهٔ دَ الله تعالیٰ رسول یم دَ دے نه وړاندے لویه ول چه دَ خدا ئے تعالیٰ په صفا تو کښې ما شریك کړئ دا غلو ده، تاسو دَ نصاراؤ په شان چه ته په دے غلو کښې اخته نه شئ. او دَ یهودو او نصاراؤ دا غلو په دین کښې صرف دَا نبیاؤ دَ حده پورے نه وه بلکه دوی چه کله په دے عادت شو نو دَ انبیاء علیهم السلام دَ حواریانو او تابعدارانو او نائبانو په مقابله کښې ئے هم دا سلوک اختیار کړو دَ رسول نه خو ئے خدا ئے جوړ کړے وُه او دَ رسول تابعدارانو لره ئے هم دَ معصومانو درجه ورکړه او بیا ئے دا تحقیق هم نه کاوه چه دا خلق په حقیقت کښې دَ انبیاؤ تابعداران او دَ هغوی په تعلیما تو صحیح طورسره قائم هم دی اوکه محض میراثی عالمان یا شیخان ګڼلے شی، نو نتیجه دا شوه چه دَ دوی مشری دَ داسے خلقو په لاس کښې راغله چه پخپله هم ګمراه وُو او دَ دوی ګمراهی ئے هم نوره زیاته کړه - دَ دین او دینداری دَ طرفه دَ دوی دین برباد شو- قرآن حکیم دَ دغه خلقو دَ دے حالت بیان په دے ایات کښې فرمائیلے دے اِتَّخَذُوْٓا اَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ؛ یعنی دے خلقو خپلو مذهبی پیشوایانو لره هم دَ معبود درجه ورکړه - دغه شان دَ رسولانو نه ئے خدایان جوړ ول څه وُو چه دَ رسول دَ تابعدارانو په نوم ئے دَ تیرو مذهبی پیشوایانو هم عبادت شروع کړه -

دَ دے نه معلومه شوه چه غلو په دین کښې هغه تباه کونکے شے دے چه دَ تیرو امتونو دین ئے دَ دین په نوم سره برباد کړے دے ځکه زمونږ سردار حضرت محمد صلے الله علیه وسلم خپل امت لره دَ دے عظیمے وباء نه دَ بچ کولو دَپاره مکمل تدبیرونه او فرمائیل -

په حدیث شریف کښې دی چه دَ حج په موقع باندے نبی کریم صلے الله علیه وسلم

د رمی جمراتو د پاره حضرت عبد الله بن عباس ته اوفرمائیل چه دوی لره کیڼی جمع کړی داوړی هغهٔ متوسط قسم کیڼی جمع کړے راوړے نو دوی ډیرے وړه کړے اووه پیدے ئے اوفرمائیل: بِمِثْلِهِنَّ بِمِثْلِهِنَّ: یعنی په داسے متوسطو کیڼو د جمراتو رمی (ویشتل) په کار دی، بیا ئے اوفرمائیل:

اِيَّاكُمْ وَالْغُلُوَّ فِي الدِّيْنِ فَاِنَّمَا هَلَكَ مَنْ قَبْلَكُمْ بِالْغُلُوِّ فِيْ دِيْنِهِمْ -

"یعنی په دین کښے د غلو نه ځان ساتئ ځکه چه ستاسو نه وړاندِ اُمتونه په دین کښے د غلو په وجه هلاک او برباد شوی دی"

د دے حدیث نه یو څو اهم مسئلے معلومے شوے -

## ضروری فائدے

اول دا چه په حج کښے کومے کیڼی په جمراتو ویشتے شی د دوی سنت حد دا دے چه هغه دے درمیانه وی نه ډیرے وړے نه ډیرے لوئے په لویو لوکتو ویشتل غلو ده په دین کښے -

دویمه دا معلومه شوه چه د هر شی شرعی حد هغه دے کوم چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپل قول او عمل سره مقرر کړے دے د دے نه تجاوز کول غلو ده په دین کښے -

دریمه تره دا خبره په ډاګه شوه چه په دین کښے د غلو تعریف دا دے چه په یو کار کښے د سنتو د حد نه تجاوز اوکړے شی -

## د دنیا د محبت حد ونه

د ضرورت نه د زیاتے دنیا مال دولت او عیش عشرت طمع په اسلام کښے بده کنړلے شوے ده او د دے د ترک کولو هدایتونه هم په قرآن کښے په ډیر شمار سره راغلی دی لیکن نبی کریم صلی الله علیه وسلم چه کوم ځائے د دنیا د طمع او محبت نه منع فرمائیلے ده بچپله وئینا او عمل سره ئے د دے حد ونه هم مقرر کړی دی، چه نکاح کولو ته ئے خپل سنت وئیلی دی او د دے ترغیب ئے ورکړے دے - د اولاد پیدا کولو فائدے او درجے ئے خودلے دی، د اهل وعیال سره ښهٔ سلوک او د دوی حقونه ادا کول ئے فرض مقرر کړهٔ - د خپلو او د دوی د ضرورتونو پوره کولو د پاره ئے کار کسب کول فرض پس د فرضو نه مقرر کړهٔ - د تجارت زمینداری، کاریګری او مزدوری کولو ئے خلقو ته تاکید او فرمایه،

دَ اسلامي حکومت قائمول او دَ اسلامي نظام جاري کول ئې دَ نبوّت فرض مقرر کړه. پخپل عمل سره ئې په ټوله جزیره دَ عرب یو حکومتي نظام قائم کړو- او خلفائے راشدینو دے لړه دَ دنیا مشرق او مغرب ته خور کړه- دَ دے نه معلومه شوه چه په قدر دَ ضرورت دَ دے څیز ونو شغل نهٔ دَ دنیا په محبت کښے شمار دے او نه په حرص او طمع کښے-

یهودو او نصارائو دا حقیقت او نه پیژندو او په رهبانیّت کښے اخته شو قرآن حکیم دَ دوی دا بے لارے کیدل په دے الفاظو سره رَد او فرمائیل: وَرَهْبَانِيَّةَ نِ ابْتَدَعُوهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ إِلَّا ابْتِغَاءَ رِضْوَانِ اللَّهِ فَمَا رَعَوْهَا حَقَّ رِعَايَتِهَا: یعنے دے خلقو دَ خپل طرف نه دَ رهبانیت یعنے دَ دنیا دَ ترک کولو طریقے اختیار کړے چه مونږ په دوی نه وے لازمے کړے بیا کوم څیزونه چه ئې پخپله په ځان لازم کړي وه هغه ئې پوره هم نه کړه-

## دَ سنتو او دَ بدعاتو حدونه

نبي کریم صلی الله علیه وسلم په عباداتو او معاملو او دَ ژوند په ټولو طریقو کښے دَ خپلے وَیَنا او عمل په ذریعه کرمیانه روئ حدونه مقرر کړي دي چه دَ دے نه روستو کیدل کوتاهي او وړاندے کیدل گمراهي ده- په دے وجه دَ دوي بدعتونو او نوي کارونه چیرے په سختئ سره منع کړي دي- ارشاد فرمائی:

| | |
|---|---|
| كُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ وَ كُلُّ ضَلَالَةٍ فِي النَّارِ- | "یعنې هر یو بدعت گمراهي ده او د هرې گمراهئ انجام دوزخ دے" |

بدعت هغے شي ته وائي چه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په وَینا او عمل کښے ښکاره یا په اشاره سره موجود نه وي-

حضرت شاه ولی الله قدس سرهٔ لیکلي دي چه په اسلام کښے بدعت ځکه سخت جرم مقرر شوے دے چه دا دَ دین دَ بدلیدو لاره ده، په تیرو امتونو کښے دا سے اوشوه چه دوي پخپل کتاب او دَ رسول په تعلیماتو کښے دَ خپل طرف نه زیاتي او کړل او هر یو راتلونکي نسل په دے کښے په مخه زیاتي کول تو دے چه بیا پته نهٔ لگیده چه اصل دین کوم یو دے او دَ خلقو اضافے پکښے کومے دي-

شاه صاحب په خپل کتاب "حجة الله البالغه" کښے دا بیان کړي دي چه دَ دین دَ بدلولو

په دنیا کښې څۀ څۀ اسباب را پیښ شوي دي او اسلامي شریعت په دې ټولو
دروازو باندې څنګه پهره کینولې ده چه چرته ډیو طرف نه دا وُبا په دې
امّت کښې خوره نه شي -

دَ عالمانو او شیخانو په تعظیم او تابعدارۍ کښې درمیانه لاره

په دې سببونو کښې ئې دَ دین په باره کښې جوړ والې او سختي یعني په دین کښې غلو لوئې سبب مقرر کړې دې - لیکن افسوس دې چه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم دَ دومره اهتمام او دَ شریعت دَ دومره پابند و سره سره نن مسلمانان اُمّت په دې غلو کښې چیر په ناکاره طریقه سره اخته دې - دَ دین په ټولو اړخونو کښې دَ دې نښې ښکاره دي - په دې کښې په خاص طور سره کوم شے چه دَ ملّت دَ پاره هلاکونکے او ډیر ضررناک ثابتیږي هغه دَ دیني پیشوایانو معامله ده، دَ مسلمانانو یوه ډله خو دې طرف ته تلې ده چه پیشوایان، عالمان، عارفان هیڅ نه دي دَ الله کتاب زمونږ دَ پاره پوره دې لکه څنګه چه دوی دَ الله په کتاب پوهیګي دَ غسې پرمونږ هم پوهیګو : هُمْ رِجَالٌ وَّ نَحْنُ رِجَالٌ ؛ یعني دوی هم بني آدم دي او مونږ هم بني آدم یو، نو دَ دې نتیجه دا شوه چه هر یو هوسناک چه نه په عربۍ ژبه پوهیګي او نه دَ قرآن په حقیقت او معرفت او نه دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم په بیان او تفسیر، محض دَ قرآن په ترجمه کتو سره ځان ته دَ قرآن عالم وائي - دَ قرآن کریم کوم تفسیر او تشریح چه پخپله دَ نبي کریم صلے الله علیه وسلم یا دَ دوی بے واسطے شاګردانو یعني صحابه کرامو نه نقل ده دَ دې ټولو نه قطع نظر کومه خبره چه ئې په ذهن کښې راشي په قرآن ئې وړاوړي - حال دا دې چه که صرف کتاب بغیر دَ معلّم نه کافي کیدے نو دَ الله تعالیٰ دا قدرت وو چه دَ کتاب نسخے ئې لیکلي خلقو ته رسولې، دَ رسول نه معلّم جوړه ول او خلقو ته ئې دَ لیکلو ضرورت به نه وو - او که غور او کړے شي نو معلومه به شي چه دا خبره صرف دَ کتاب الله سره خاص نه ده - دَ هیڅ یو علم او فن دَ کتاب په کتلو باندې او یوائځې په ترجمه لیدو باندې ئې یو سړے هم دَ دې فن عالم نه شي جوړیدے - دَ ډاکټرۍ یا دَ یوناني طب دَ کتابونو په ترجمه کتلو سره ترا و سه نو ورے یو حکیم یا ډاکټر نه دے جوړ شوے، دَ انجنیرۍ په کتابو کتلو څوک انجنیر نه دے جوړ شوے

دَ کپړو وګنډلو یا اَخلی پخلی دَکتا بونو پکتلو سره هیڅ څوک دَ دنړی یا باورچی نه دے جوړ شوے بلکه په دے ټولو څیز ونو کښې دَ تعلیم او تعلّم او استاد ضرورت خو دَ هرچا په نزد منلے شوے خبره ده- لیکن افسوس دے چه قرآن او سنّت دا سے سوسورې ګڼلی شوی دی چه دَ دے دَ پاره هډو دَ استاد ضرورت ګڼلے نه شی او په دے وجه دَ تعلیمیافته وُ یوه لویه ډله دے طرف ته په غلو کښې تلے ده چه صرف دَ قرآن مطالعه کافی ګڼړی دَ تیرو عالمانو تفسیرونه او دَ لغوی راولیستلے معانے او تعبیرونه او په ددوی پسے ورپسے کیدل او تابعه اری ئے کول خو ئے دَ سترګه نظر انداز کړی دی-

دویم طرف ته دَ مسلمانانو یو لوئے جماعت په دے غلو کښې اخته شوے دے چه اَندها دُهند یعنی په ړندو سترګو چا لره چه غواړی خپل مقتدا او پیشوا جوړ وی او دے ته نه ګوری چه دا چا لره مونږ پیشوا جوړه وُ په ده کښې دا ځائے شتے او که نه، او نه بیا دے ته ګوری چه کوم تعلیم دے ورکوی دا دَ قرآن او سنّت مخالف خو نه دے- شریعت اسلامی دَ غلو نه دَ بچ کولو دَ پاره دَ دے دواړو په مینځ کښې دا طریقه کاراو خودو چه کتاب الله لره دَ خدائی خلقو نه اِزده کوئ، او خدائی خلقو لره په کتاب الله سره پیژنئ- یعنی دَ قرآن او سُنّت دَ مشهورو تعلیماتو په ذریعه باندِ اول دغه خلق او پیژنئ کوم چه دَ قرآن او سُنّت په علمونو کښې مشغول دی او ټرونه ئے دَ کتاب او سُنّت په رنګ کښې رنګ شوے وی بیا دَ کتاب او سُنّت په هره مشکله او کړکیچنه مسئله کښې دَ دوی تفسیر او تشریح پخپله رائے مقدم ګڼړئ او دَ دوی تابعداری کوئ-

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ

مسیح ته هرګز به دے شرم نیشتے چه دے بنده شی دَ الله او نه فرښتو ته

الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ

چه مقرب دی- او څوک چه شرم کوی دَ الله دَ بندګئ نه او تکبر کوی

فَسَيَحْشُرُهُمْ إِلَيْهِ جَمِيعًا ﴿۱۷۲﴾ فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا

پس راجمع به کړي دوی لره خپل ځان ته جمع سره - پس کوم خلقو چه ایمان راوړے او عمل ئے کړے

الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ وَيَزِيدُهُمْ مِنْ فَضْلِهِ

دی نیک نو دوی لره به پوره ورکړي د دوی ثواب او زیات به ورکړي د خپل فضل نه -

وَأَمَّا الَّذِينَ اسْتَنْكَفُوا وَاسْتَكْبَرُوا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا

او چا چه شرم اوکړو او تکبر ئے اوکړو نو دوی لره به عذاب ورکړي عذاب

أَلِيمًا ۙ وَلَا يَجِدُونَ لَهُمْ مِنْ دُونِ اللَّهِ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿۱۷۳﴾

دردناک - او بیا به نه مومي د خپل ځان د پاره د الله نه سوا څوک حمایتي او نه مدد ګار د -

## لنډ تفسیر

(نصارا خامخا حضرت مسیح علیه السلام لره اِلٰه یا جز د اِلٰه جوړه وي، پخپله د حضرت) مسیح (دا حال دے چه د زمکے د اوسیدو په حالت کښے خو د هغه اقرار د بندګۍ چه با طلو نکے د اُلوهیت دے مشهور او ټولو ته معلوم دے، لیکن او س هم چه په آسمان کښے اوسي چه د زمکے د اوسیدو نه ډیر اوچت مقام دے، یا د قیامته پورے چه هغه په کوم حالت کښے وي د ده نه دے څوک تپوس اوکړي او دے کوري په دغے حالت کښے هم) هرګز د خدائے د بنده جوړیدو نه شرم (او انکار) به او نه کړي او نه مقربے فرشتے (به چرته شرم اوکړي چه په دوی کښے حضرت جبرئیل علیه السلام هم دے، کوم چه دوی د اِلٰه یو جز مَنی پخپله د ده نه دے څوک تپوس اوکړي او دِ کوري) او (د دوی به شرم څنګه اوکړي د دے شرم کول خو د ومره بد انجام دے چه) کوم سړے چه د الله تعالیٰ د بندګۍ نه شرم اوکړي او تکبر اوکړي نو (انجام ئے واؤرئ) خدائے تعالیٰ به خامخا ټولو خلقو لره خپل ځان ته (یعني د حساب موقع ته) جمع کړي بیا کوم خلقو چه (په دنیا کښے) ایمان راوړے وي او دوی

ښۀ کار کړے وی نو یعنې ښه کاران او سیدلی وی ځکه چه حاصل د بندګۍ هم ایمان
او نیک عملونه دی) نو دوی له به د دوی پوره ثواب (رسی) او کوم خلق چه د ایمان او
نیکو عملونو بدله ده) او (د دے نه علاوه) دوی له به د خپل فضل نه نور زیات
(رسی) او کوم خلق چه د هغې د تفصیل ځنے مقرر نه دے) او کوم خلقو چه (د بنده
جوړیدو نه) شرم کړے وی او تکبر ئے کړے وی دوی ته به سخته دردناکه
سزا ورکړی او دغه خلق به د الله نه پغیر بل څوک خپل یار او مددګار نه مومی.

## معلومات او مسئلے

د الله بنده کیدل د اعلیٰ درجے شرافت او عزت دے

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ الخ: یعنې مسیح علیه السلام له د الله تعالیٰ په بنده کیدو کښې څه شرم نیشته
او نه د الله تعالیٰ مقربو فرشتو ته شرم دے. ځکه چه د الله تعالیٰ بنده کیدل او د
هغۀ عبادت کول او د هغه حکمونه په ځائے کول خو د اعلیٰ درجے شرافت او عزت
دے، حضرت مسیح علیه السلام او مقربو فرشتو نه د دے نعمت د قدرو قیمت
تپوس او کړئ دوی له په دے سره څنګه شرم او عار راتلے شی. البته ذلت او
عبرت خو د الله نه سوا د بل په بندګۍ کښې دے. لکه نصاراؤ چه حضرت مسیح له
د الله ځوئے او معبود او مانه او مشرکینو فرشتو له د الله تعالیٰ لوڼړه او منلے
د دوی او د بتانو عبادت ئے شروع کړه پس دوی له د همیشه عذاب او ذلت
دے (فوائد عثمانی)

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَ

اے خلقو! تاسو ته اورسید ستاسو د رب د طرف نه دلیل او

اَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا ﴿۱۷۴﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

نازل کړه مونږ په تاسو رنړا ښکاره - پس کوم خلقو چه ایمان راوړو

بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ

په الله او دهٔ له ئے مضبوط اونیوه نو داخل به کړی دوی له په خپل رحمت کښې

وَفَضْلٍ ۙ وَّيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ۝۱۷۵

او په فضل کښې او او به رسوي دوئ لوره د خپل طرف ته نیغه لار ے ته۔

# لنډ تفسير

اے (ټولو) خلقو! یقیناً تاسو ته ستاسو د پروردګار د طرف نه یو (کافي) دلیل راغلے دے (دغه ذات مبارک دے د نبي کریم صلے الله علیه وسلم) او مونږ تاسو ته یو صاف نور رالیګلے دے (دغه قرآن مجید دے، پس د نبي کریم صلے الله علیه وسلم او د قرآن په ذریعه چه تاسو ته څۀ خود ے شي دا ټول حق دے چه دا ذکر شوی مضامین پکښې هم داخل دي) پس کوم خلق چه په الله ایمان راوړي (چه د دے سره د توحید او پاکۍ عقیده لازمه ده) او دوی الله (یعنې دین لوره (یعنې اسلام لوره) مضبوط اونیوه (چه د دے د پاره د رسول او د قرآن تصدیق لازم دے) پس دا سے خلقو لوره به الله تعالیٰ په خپل رحمت کښې (یعنې جنت کښې) داخل کړي او په خپل فضل کښې (به ئے داخلې یعنې د جنت د داخلیدو نه په علاوه نور نعمتونه هم ورلوئے لوئے ورکړي چه د الله تعالیٰ دیدار پکښې هم داخل دے) او خپل طرف ته به (د رسیدو) دوی ته نیغه لار او ښائي (یعنې په دنیا کښې ئے په لار ے د رضا ها نده ے ثابت قدم او قائم اولري، او په دے سره د بے ایمانه او بے عمله حالت معلوم شو چه دوی ته به دا فائده ملاؤ نه شي)۔

# معلومات او مسئلے

د بُرهان نه څۀ مراد دے؟ (دا قول د الله تعالیٰ) قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؛ د بُرهان لفظي معنی د دلیل دے، د دے نه مراد د نبي کریم صلے الله علیه وسلم پاک ذات دے (روح)

حضرت ابن عباسؓ فرمائي چه د نبي کریم صلے الله علیه وسلم د پاک ذات نه ئے په لفظ د برهان سره څکه تعبیر اوفرمایه چه د دوی ذات مبارک او د دوی کریمانه اخلاق او د دوی معجزے او په دوی د کتاب نازلیدل دا ټول ثبوت نه د دوی د نبوت

او دا دوی د رسالت ښکاره دلیلونه دي چه د دې په لیدو سره بل دلیل ته حاجت نه پاتې کیږي۔ نو داسې ګڼل پکار دي چه د دوی ذات بیخپله یو مجسم دلیل دے۔

او د نور نه مراد قرآن مجید دے (روح) لکه چه د سورت مائده د دې آیات نه هم معلومیږي؛ قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ؛ یعني تاسو ته د الله تعالیٰ د طرف نه یو روښنا نه شے راغلے دے او هغه یو "کتاب واضح" یعني "قرآن" دے (بیان القرآن) په دې آیت کښې چه څهٔ ته "نور" ویلے شوے دے وړاندې ئې دهٔ ته "کتاب مبین" ویلے دے، دلته دې دا شبه نه شي کولے چه عطف خو تغائر غواړي نو په دې وجه "نور" او "کتاب" یو شے نه شي کیدے، ځکه چه تغائر د عنوان کافي دے اګرچه مصداق او معنون یو دے (روح)

او که د نور نه مراد د نبي کریم صلی الله علیه وسلم ذات مبارک وي او د کتاب نه مراد قرآن مجید وي نو دا هم صحیح ده (روح) لیکن د دې نه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د ذات مبارک دا سې نور محض والے نه ثابتیږي چه د بشریت او جسمانیت سره منافي وي۔

---

يَسْتَفْتُوْنَكَ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ ؕ اِنِ امْرُؤٌا

د حکم پوښتنه کوي ستا نه پس او وایه چه الله حکم ښائي تاسو ته د کلاله - که سړے مړ شو

هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَهٗٓ اُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ

او د دهٔ ځوئ نه وي او د دهٔ یوه خور وه نو د دې ته به رسي نیمه د هغې چه مړی پاتې

وَهُوَ يَرِثُهَآ اِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهَا وَلَدٌ ؕ فَاِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ

کړې وي او هغه ورور وارث وي کهٔ د دې خور که نه وي د دې ځوئ - بیا که دوه خویندې وي

فَلَهُمَا الثُّلُثٰنِ مِمَّا تَرَكَ ؕ وَاِنْ كَانُوْٓا اِخْوَةً رِّجَالًا وَّ

نو دوی ته به رسي دوه ثلثه (⅔) د هغه مال چه مړی پاتې کړی - او که څو تنه وي په ګډه رشته کښې سړي او ښځې

نِسَآءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ ؕ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اَنْ

وی نو د یو سړی حصه د دوه ؤو ښځو برابر ده - بیان کوی الله ستاسو د پاره چه

تَضِلُّوْا ؕ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ﴿١٧٦﴾

تا سو گمراه نه شئ - او الله تعالیٰ په هر څه باندے پوهه دے -

**د آیاتو نوټرون**

د سورت د شروع نه لږ پس د میراث حکمونه ذکر ؤ و- بیا تقریبا یوه پاره وروستو د نورو احکامو سره د میراث حکم ته بیا واپسی شوے وه، او س د سورت په ختمیدو باندے بیا میراث ته واپسی ده- شا ئید په درے ځایه ځکه داجُدا جُدا شو چه د اسلام نه اول د میراث په باب کښے ډیر ظلم ؤو- پس د سورت په اول کښے په مینځ کښے او په آخر کښے د دے ذکر کو لو کښے حکمت دا دے چه آورید ونکو ته د دے لوئے اهتمام معلوم شی او دوی د دے زیات اهتمام کوی -

## لنډ تفسیر

خلق ستا نه (د کلاله د میراث په باره کښے، یعنی د چا چه نهٔ اولاد وی او نه مور او پلار وی) حکم معلوموی تاسو (په جواب کښے) او فرمایئ چه الله تعالیٰ تاسو ته د کلاله په باره کښے حکم کوی (هغه دا دے چه) که یو سړے مړ شی چه اولاد ئے نه وی (یعنی نه مذکر نه مؤنث او نه ئے مور او پلار وی) او د دهٔ یوه (یعنی یا علاتی) خور وی نو د ے (خور) ته به د دهٔ د دے ټولے ترکے نیمه ملاویگی (یعنی پس د تیرو شوو حقونو نه، او باقی نیمه به که نور عصبه وُو نو هغوی له ورکړے شی او که نه وُو نو هغه به هم بیا دے ته واپس شی) او دغه سړے به (د دے خپلے خور) وارث (د ټولے ترکے) وی که (دغه خور مړه شی او) د دے اولاد نه وی (او مور و پلار ئے هم نه وی) او که (دا سے خویاندے) دوه وی (یا زیاتے) نو دوی ته به د ټولے ترکے نه دوه ثلثه ملاوِ یگی (او یو ثلث به د عصبه وُو وی او که عصبه نه وی نو دوی ته به واپس کیږی) او که (دا سے مړی چه نه ئے اولاد وی او نه مور و پلار (خواه دغه مړے مذکر وی او که

مؤنث ) وارثان خو یعنې ډیو نه زیات وي ) دو ننه خو یا نڼۍ وي سړي او ښځې نو د ترکه په وا سې تقسیمیږي چه ) یو سړي په کړ دوه ښځو کر حصې برابر ( یعنې نو دو چند خو رته یو چند، لیکن په عیني خو رسره علاتي رو ننه خو یا نڼۍ ټول ساقطیږي او په عیني خو رسره کله دوي ساقط او کله ئې حصه کمیږي چه دړې تفصیل د میراث په کتابونو کښې دې ) الله تاسو ته ( دین خبرې ) څکه بیا نوي چه تاسو ر په نا پوهئ سره ) په ګمراهۍ کښې پرې نه وځئ ( دا خو یاد کیږه نه او احسان دي ) او الله تعالیٰ هر شي بنه پیژني ( پس د احکامو په مصلحتونو با ندې هم خبر دې او په احکامو کښې د دې رعایت کولے شي ، دا د حکمت بیان دی ) -

# معلومات او مسئلے

## ضروري فائدے

۱ : د الله تعالیٰ دا قول چه : يَسْتَفْتُونَكَ ط قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ : دلته کښې د کلاله د حکم او د دې د سبب د نزول بیا نولو نه څو خبرې معلومے شوي - اول دا چه لکه څنګه چه اول ئې : وَ اِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ : او فرما ئیل کړې نه پس ئې په طریقه د مثال د اهل کتابو حال ذکر فرما ئیلے وه - دغه شان ئې د ارشاد : فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ الخ : نه پس ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اصحابو رضوان الله علیهم اجمعین حال په طور د مثال سره ذکر کړو - د دې د پاره چه د وحې نه د مخ اړو ونکو ګمراهي او بدي او د وحې د تابعدارۍ کو ونکو حقوا لے او ښه والے په ښه شان سره ښکاره شي -

۲ : د دې په تحت کښې دویمه خبره دا ښکاره شوه چه اهل کتابو خو دا غضب او کړه چه د الله تعالیٰ د پاک ذات سره ئې شریک او د او لاد په شان نامناسبه کار خیل ایمان جوړ کړه او د الله تعالیٰ د وحې نه ئې خلاف او کړه - او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اصحابو دا حالت دې چه د ایمان او عباداتو اصول خو پریږده په جزئي معاملو او معمولي مسئلو د میراث متعلق او د نکاح وغیره کښې هم د وحې په لټون او انتظار کښې وي او په هر کار کښې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم طرف ته ګوري - خپل عقل او خواهش حاکم نه ګڼړي - که په یوه پیره ئې تسلي او نه شي

نو بیا په خدمت کښې حاضریدلی او تپوس کوی - سه بہ بیں تفاوتِ ره از کجاست تا بکجا ؛

؛ او گوره چه دَ دواړو ډلو په مینځ کښې څومره تفاوت دے ؛

او دا هم معلومه شوه چه حضرت خاتم المرسلین صلی الله علیه وسلم به بے دَ وحئ دَ حکم نه دَ خپل طرف نه حکم نه فرمایه - که پکوم کار کښې به دَ وحئ حکم موجود نه وُه نو په حکم فرمائیلو کښې به ئے دَ وحئ دَ راتلو پورے انتظار فرمائیلو - کله چه به وحئ راغله نو حله به ئے حکم کاوُه - دالك اشاره ده دے طرف ته چه په یو دار په نزول کتاب نازلیدو کښې لکه چه اهل کتابو درخواست کاوه هغه خوبي به نه وه کومه چه په وخت دَ حاجت او دَ موقع موافق په ځان ځانله نازلیدو کښې ده - ځکه چه هرڅوک دَ خپل ضرورت مطابق په دے صورت کښې سوال کولے شی او په ذریعه دَ وحئ ورته جواب ملاویدے شی - لکه چه په دے موقع او دَ قرآن شریف په ډیرو موقعو کښې موجود ده - او دا صورت که یو طرف ته زیات فائده مند دے نو بل طرف ته په کښې دَ خداوند قدوس دَ یاد دَ لو او دَ خطاب کولو دَ عزت یو داسے لوئے فخر موجود دے چه دَ دَغه امت ته ئے نصیب شوے - وَاللهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِیْمِ ؛ دَ کوم صحابی دَ خیالونو یاد دُه دَ سوال په جواب کښې چه کوم آیات نازل شوے دے هغه دَ هغه په مناقبو کښې شمارېږی - او دَ اختلاف په موقع کښې چه دَ چا دَ رائے یا دَ چا دَ قول موافق وحئ نازله شوے ده دَ قیامته پورے ورسره دَ هغه نیك نوم باقی پاتے دے - پس دَ کلاله متعلق ئے دَ سوال او جواب ذکر او فرمایه دغه شان دَ عامو سوالاتو او جواباتو طرف ته ئے اشاره او فرمائیله (فوائد عثمانی)

؛ تَمَّتْ سُوْرَةُ النِّسَآءِ وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ اَوَّلَهٗ وَاٰخِرَهٗ ؛

## سورة النساء ختم شو

# سورة المائدة

داسورة مدني ده په دې کښې شپږ ۱۲۰ شلې آيا تونه او شپاړس ۱۶ رکوع گانې دي

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ ؕ اُحِلَّتْ لَكُمْ

اے ایمان والو! پوره کوئ وعدو لره - حلال شوی دي تاسو لره

بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّى

چارپایان خاروی سوا د هغې نه چه تاسو ته وی اندې اوره کولے شي مگر حلال مه گنړئ

الصَّيْدِ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ ①

ښکار د احرام په حالت کښے - الله حکم کوی څۀ چه غواړی -

**د سورت شان نزول او د مضامينو لنډ بيان -**

دا د سورت مائده اول ايت دے - سورت مائده په اتفاق سره مدنی سورت دے، او په مدنی سورتونو کښے هم اخری سورت دے، تردے چه بعضے حضراتو دے ته د قرآن اخری سورت ویلے دے، په مسند احمدؒ کښے په روایت د حضرت عبد الله بن عمرؓ او اسماء بنت یزید نقل دی چه سورت مائده په نبی کریم صلے الله علیه وسلم په داسے وخت کښے نازل شو کله چه دوی په سفر کښے په عضباء نومی اوښه باندې سواره وُو - د وحی د نزول په وخت کښے چه کوم غیر معمولی درووند والے او بوج به وُه د قاعدے موافق دغه وخت هم وُه، تردے چه اوښه عاجزه شوه نو دوی ترے کوز شو،

دا سفر په ظاهر کښې د حجة الوداع سفر دے لکه چه بعضے روایتونه د دے تائید کوي حجة الوداع د هجرت په نهم کال شوے وُه او د دے نه د واپس کید و نه بعد د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دنیوی ژوند تقریبا اتیا ورځے وُه - ابن حبان په بحر محیط کښې فرمائی چه د سورت مائده بعض اجزاء د حدیبیې په سفر کښې او بعض د فتح مکے په سفر کښې او بعض د حجة الوداع په سفر کښې نازل شوے دے - د دے نه معلومه شوه چه داسورت د قرآن د نزول په آخری مرحلو کښې نازل شوے دے خواه که بالکل آخری سورت نه وی -

په روح المعانی کښې په حواله د ابوعبیده حضرت حمزه بن حبیب او عطیه بن قیس دا روایت د رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه نقل دے: اَلْمَائِدَةُ مِنْ اٰخِرِ الْقُرْاٰنِ تَنْزِیْلًا فَاَحِلُّوْا حَلَالَهَا وَحَرِّمُوْا حَرَامَهَا: یعنی سورت مائده د هغه ځیزونو نه دے چه د نزول د قرآن په آخری دور کښې نازل شوے دے په دے کښې چه کوم ځیزونه حلال شوی دی دغه د همیشه د پاره حلال او کوم ځیزونه چه حرام شوی دی دغه د همیشه د پاره حرام گڼئ -

د دے قسم یو روایت ابن کثیر د مستدرک حاکم په حواله سره د حضرت جبیر بن نفیرؓ نه نقل کړے دے چه دے د حج نه پس د حضرت عائشے صدیقےؓ خوا ته حاضر شو نو دےؓ او فرمائیل جبیره! تا سوسورت مائده لولے؟ دهٔ عرض او کړو چه هاں لولو، حضرت صدیقےؓ او فرمائیل چه دا د قرآن پاک آخری سورت دے په دے کښې چه کوم احکام د حلالو حرامو راغلی دی هغه محکم دی په دے کښې د نسخ احتمال نیشتے د دے خاص اهتمام کوئ - په سورت مائده کښے هم د سورت نساء په شان فروعی احکام معاملات، معاهدات وغیره زیات بیان کړی شوی دی - په دے وجه روح المعانی فرمائی چه سورت بقره او سورت آل عمران په اعتبار د مضامینو سره یو دی ځکه چه په دے کښې زیات احکام د اصولو د عقیدو، توحید، رسالت قیامت وغیره راغلی دی - فروعی احکام په کښې ضمنی دی - او سورت نساء او مائده په اعتبار د مضامینو سره یو دی - چه په دے دواړو کښې فروعی احکام بیان شوی دی - د اصولی احکامو بیان ضمنی دے - په سورت نساء کښې په باهمی معاملو او حقوق العباد باندې زور ورکړے شوے دے، د خاوند ښځے حقونه د یتیمانانو حقونه، د مور و پلار او نورو رشته دارانو

حقونه په تفصيل سره بيان شوي دي. د سورت مائده په اول ايات کښې هم د دے ټولو معاملو او معاهدو د پابندۍ او د هرې د پوره کولو هدايت راغلے دے.

يَآ اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ: په دے وجه د دے سورت مائده دويم نوم "سورة عقود" هم دے (بحر محيط)

د معاهدو او معاملو په باره کښې دا سورت اوخاص کر د دے دا اولنۍ ايات يو خاص حيثيت لري، په دے وجه نبي کريم صلے الله عليه وسلم کله چه عمرو بن حزم لره د يمن عامل (گورنر) جوړ کړه او ليږه او يو فرمان ئے ورته حواله کړو نو د دے فرمان په سر نامه ئے دا ايات اوليکلو.

# لنډ تفسير

اے ايمان دارو! (ستاسو د ايمان مقتضىٰ دا ده چه) خپلو معاهدو لره (کومے چه د ايمان تحت تاسو د خدائے تعالىٰ سره کړي دي) پوره کړئ (يعني شرعي حکمونه په ځائے کوئ ځکه چه په ايمان راوړو سره دا ټول لازم شو او د لازميدو مقتضىٰ پوره کول دي) ستاسو د پاره ټول چارپايان کوم چه مشابه د (دے) څارو (يعني اوښ، بيزه غوا) وي (د) کومو حلال والے چه د دے نه وړاندے په سورت انعام کښې چه مکي دے معلوم شوے دے پس د دوي په شان چه څومره څاروي دي ټول) حلال کړے شوي دي (لکه هوسۍ، صحرائي غوائي وغيره چه د اوښ بيزے غوا مشابه دي په دے خبره کښې چه درنده ځناور او ښکاريان نه دي بغير د هغه څارو ونه چه په نورو شرعي دليلونو حديث وغيره سره مخصوص او مستثنىٰ شوي دي لکه خر، قچر وغيره د دے مستثنىٰ شو ونه سوا ټول څاروي کورني او وحشي حلال دي) مگر د کوم ذکر چه وړاندے په ايت: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ الخ کښې) راځي (چه دغه سره د دے نه چه په بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ کښې داخل دي او د حديث د خاص شو و نه هم خارج دي خو د دے سره بيا هم حرام دي او باقي تاسو لره حلال دي) ليکن (په دے کښې چه کوم ښکار (دے هغه) حلال مه گڼئ په کوم حالت کښې چه تاسو په احرام (يا حرم) کښې يئ (مثلاً د حج او عمرے احرام موتړلے وي د حرم نه باهر وي يا په حرم کښې دننه چه غالباً ښکار هم په حرم کښې دننه وي ځکه چه اصل مدار د حکم د ښکار په حرم کښې دننه والے دے اگر چه احرام ئے نه وي تړلے.

په دواړو حالتونو کښې ښکار یعنې بڼړي او وحشي حرام دے) بے شکه الله تعالیٰ څه چه غواړي حکم کوي (یعني ښه مصلحت وي، پس کوم څاروي لره چه ئې غوښته دَ هیشه دَپاره ئې في نفسه په غیر دَحالت دَ اضطرار نه حرام کړو او کوم لره چه ئې غوښته دَ همیشه دَپاره ئې حلال کړو، کومو لره چه ئې غوښته په څه حالت کښې ئې حلال کړو په څهٔ حالت کښې ئې حرام کړه، په تاسو دَ دے ټولو حالتونو رعایت واجب دے۔

# معلومات او مسئلے

دَ دے سورت دَ اولنۍ ایات اولنۍ جمله یو داسے جامعه جمله ده چه دَ دے په تشریح او تفسیر کښې په زرګونو صفحے لیکلے شي او لیکلے شوي دي ارشاد دے: یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ؛ یعني اے ایماندارو خپلے معاهدے پوره کوئ۔ په دے کښے اول په: یَآ اَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا؛ سره خطاب اوکړه دَ مضمون دَ اهمیت طرف ته ئې توجه راواګرځوله چه په دے کښې کوم حکم دے داعین دَ ایمان تقاضا ده۔ دَ دے نه پس ئې حکم اوفرمایه: اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ؛ لفظ دَعقود دَ عقد جمع ده چه لفظي معنیٰ ئې تړل دي۔ او کومه معاهده چه دَ دوه ډلو یا دوه ذوو ترمینځ کښے او تړلے شي دے ته هم عقد وئیلے شي په دے وجه په معنیٰ دَ وعده (و عهود) بانده شو۔

دَ تفسیر امام ابن جریرؒ دَ مفسرینو صحابوؓ او تابعینو په دے بانداجماع نقل کړے ده۔ امام جصاص فرمائي چه عقد او وئیلے شي یا عهد او معاهده دَ دے اطلاق په یو داسے معامله بانده کیږي په کومه کښے چه دوه فریقو په راتلونکے زمانه کښې دَ یو کار دَ کولو یا پاتے کولو پابندي په یو بل بانداچولي وي۔ او دواړه په اتفاق سره دَ دے پابند شوي وي۔ زمونږ په عرف کښې دَ دے نوم معاهده ده په دے وجه دَ دے جملے څخوړدا شوچه دَ یو بل سره دَ معاهده وپوره کول لازمي او ضروري اوګڼړئ۔

او س دے ته کتل دي چه دَ دے معاهدو نه څنګه معاهدے مراد دي په دے کښې دَ تفسیر لیکونکو حضراتو دَ ویناګانے مختلفي دي په ظاهره بانده۔ چاوئیلي دي چه دَ دے نه مراد هغه معاهدے دي کومے چه الله تعالیٰ دَ خپلو بندګانو نه دَ ایمان

او فرمانبردارئ متعلق اغستی دی۔ یا هغه معاهدے کومے چه الله تعالیٰ دَخپلو نازلو کړو احکامو دَحلالو او حرامو متعلق دَخپلو بندګانو نه اغستی دی، دَحضرت عبدالله ابن عباسؓ نه دا نقل دی۔ او بعضے فرمائی چه دَمعاهدو نه دلته هغه معاهدے مراد دی کومے چه خلق په خپل مینځ کښے دَیو بل سره کوی لکه معاهده دَنکاح معاهده دَاغستلو خرڅولو وغیره۔ په مفسرینو کښے ابن زید او زید بن اسلم دے طرف ته تلی دی۔ او بعضے فرمائی چه دَمعاهدونه هغه قسمونه او معاهدے مراد دی کومے چه دَجاهلیت په زمانه کښے دَیو بل دَامداد دَپاره اغستے شوے دی مجاهد، ربیع، قتاده وغیره مفسرین هم دا فرمائی۔ لیکن صحیح خبره دا ده چه په دوی کښے هیڅ تضاد یا اختلاف نیشته بلکه دا ټول قسم معاهدے په لفظ دَ عقود کښے داخلے دی۔ او دَټولو دَپوره کولو دَپاره قرآن حکیم خود ته کړے ده۔

په دے وجه امام راغب اصفهانی فرمائی چه دَمعاهدو څومره قسمونه دی ټول دَ دے لفظ په حکم کښے داخل دی۔ او بیا فرمائی چه دَدے معاهدو ابتدائی درے قسمونه دی، یو هغه معاهده ده چه دَانسان دَربّ العٰلمین سره ده مثلاً دَایمان او طاعت عهد یا دَحلالو او حرامو دَپابندئ عهد۔

دویم هغه معاهده چه دَیو انسان دَخپل نفس سره ده لکه دَڅهٔ شی نذر په ځان منل یا قسم او کړی څهٔ شے په ځان لازم کړی۔ دریم هغه معاهده چه دَیو انسان دَبل سره ده، او په دے دریم قسم کښے هغه ټولے معاهدے شامل دی کومے چه دَدوه سړو یا دوه ډلو یا دوه حکومتونو په مینځ کښے وی۔

دَحکومتونو عالمی معاهدے یا دَیو بل سره سمجوتے دَډلو په مینځ کښے معاهدے او ټولونه او دَدوه انسانانو په مینځ کښے هر قسم معاملے نکاح، تجارت، شرکت، اجاره، هبه وغیره دا ټولے معاهدے چه په جائز و شرطونو سره په مینځ کښے مقرر شی دَدے آیت په رو سره دَدوی پابندی په هر فریق بانډے لازم او واجب ده۔ او دَجائز قید ځے په کښے ځکه او لګاؤ، چه دَشریعت نه خلاف شرط لګول یا ئے قبلول هیچا لره جائز نه دی۔

دَدے نه پس دَآیات په دویمه جمله کښے دَدے عامے ضابطے دَخاصو جزئو ذکر ئے فرمائیلے دے۔ ارشاد دے: اُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ: لفظ دَ "بهیمه"

هغه ځناور و ته وئیلے شی کوم چه عادةً بے عقله (غیر ذوی العقول) گڼړلے شی ځکه چه خلق عادةً دَ دوی په خبرو نه پوهیګی نو مراد ئے مُبۡهَمۡ وی - او امام شعرانیؒ فرمائی چه بهیمه ته بهیمه په دے وجه نه وائی چه دَ دوی عقل نیشته او دَ عقل خبرے په دوی مبهمے وی لکه دَ خلقو عام خیال چه دے - بلکه حقیقت دا دے چه دَ عقل او ادراک نه یو ځناور نه بلکه کا نړی بوټی هم خالی نه دی البته دَ درجو فرق ضرور شته په دے ځیزونو کښے دومره عقل نیشته لکه څومره چه په انسان کښے دے نو په دے وجه ئے انسان دَ احکامو مکلّف کړے دے او ځناور ئے نه دی مکلّف کړی ورنه دَ خپل ژوند دَ ضرورتونو ترحده پورے هر ځناور بلکه هر کا نړے او بوټی ته خدائے پاک عقل او ادراک ورکړے دے دغه خو وجه ده چه هر شے دَ الله تعالیٰ تسبیح وائی (وَاِنۡ مِّنۡ شَیۡءٍ اِلَّا یُسَبِّحُ بِحَمۡدِهٖ) چه عقل ئے نه وے نو خپل خالق او مالک به ئے څنګه پیژندلو او څنګه به ئے تسبیح کوله -

دَ امام شعرانی دَ فرمائیلو مطلب دا شو چه بهیمه ته بهیمه په دے وجه نه وائی چه دَ دوئ دَ بے عقلئ په وجه معلومات په دوئ باندے مُبۡهَمۡ وی بلکه په دے وجه چه دَ دوئ په خبرو خلق نه پوهیږی دَ دوئ خبرے په خلقو باندے مُبۡهَمے وی - په هر حال لفظ دَ بهیمه دَ هر جانداردَپاره استعمالولے شی - او بعضے حضرات فرمائی چه دَ ... چارپایانو ځناورو دَپاره دا لفظ استعمالولے شی -

او لفظ دَ انعام دَ نعم جمع ده سا تلو ځناورو لکه اوښ، غوا، میښه، بیزه وغیره چه اَته قسمونه ئے په سورتِ انعام کښے بیان شوی دی - دوی ته انعام وئیلے شی - دَ بهیمه لفظ عام وُه دَ انعام لفظ دهٔ لوه خاص کړو - دَ آیات مراد دا شو چه دَ کورنو ځارو و آته قسمونه ستاسو دَپاره حلال شوی دی -

په لفظ دَ عقود کښے اوس تاسو او لوستل چه ټولے معاهدے په کښے داخلے دی په دے کښے یوه معاهده هغه هم ده کومه چه الله تعالیٰ دَ خپلو بندګانو نه دَ حلالو او حرامو دَپابندئ متعلق اغستے ده په دے جمله کښے دَ دے خاص معاهدے بیان راغلے دے چه الله تعالیٰ ستاسو دَپاره اوښ، بیزه، غوا، میښه وغیره حلال کړی دی دوی لره دَ شریعت دَ قاعدے موافق ذبح کولے شئ او خوړے شئ -

د الله تعالی دے حکم لره په دے حدونو کښے دننه ساتي پابندي ئے کوي، نه خو د مجوسیانو او بت پرستو په شان مطلق د دے ځناورو ذبح حرامه کنړي چه د الله تع په دے حکمت بانې اعتراض او د هغهٔ د نعمتونو ناشکري ده، او نه د نورو غوښې خوړونکو فرقو په شان بے قیده شئ چه هر قسم ځناور حلال کنړي - او خوري ئې، بلکه د الله تعالی د درکړی شوی قانون لاندے کوم ځناور ولره چه هغهٔ حلال کړی دی هغه خوري او کوم لره چه ئے حرام کړی دی د هغې نه ځان ساتي - ځکه چه الله تعالی خالق د کائناتو دے هغه د هر ځناور به حقیقتا و خواصو او په انسان کښے د هغه نه د پیدا کیدونکو اثراتو نه خبر دے - هغه پاک او ستره څیزونه د انسان د پاره حلال کړی دی چه د هغې په خوړو سره د انسان په جسماني صحت یا روحاني اخلاقو باندے بد اثر نه پریوځي - او د گنده او ناپاکو ځناورو نه ئے منع کړے ده - کوم چه د انسان د صحت د پاره هلاکونکی دی یائے په اخلاقو باندے خراب اثر کونکی دی - په دے وجه د دے عام حکم نه ئے د یو څو څیزونو استثناء او فرمائیله -

اوله استثناء داده: اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ: یعنی په غیر د هغه ځناورونه چه حرمت ئے په قرآن کښے بیان شوے دے مثلاً مردار ځناور یا خنزیر وغیره - دویمه استثناء: غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ؛ سره ئے او فرمائیله - مطلب ئے داد ے چه کوم ځناور ستاسو د پاره حلال دی او د ځنگل ښکار هم حلال دے مگر کله چه تاسو د حج یا د عمرے احرام تړلے وی نو د غه وخت ښکار کول جرم او گناه دے کړدے نه ځان سا تئ

د آیات په آخر کښے ئے ارشاد او فرمایه: اِنَّ اللّٰهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيْدُ: یعنی الله تعالی چه څهٔ غواړي حکم کوي د هیچا دا حق نیشته چه د هغه په وړاندے چون وچرا اوکړي، په دے کښے شاید دے حکمت طرف ته اشاره ده چه د انسان د پاره د بعضے ځناورو ذبح کولو او خوړلو اجازت څه ظلم نه دے کوم مالک چه دا ټول روځو نه جوړ کړی دی هغه په پوره حکمت او پوهے سره دا قانون هم جوړ کړے دے چه اَدنٰی ئے د اَعلیٰ د پاره خوراک جوړ کړے دے، د زمکے خاوره د وُنو خوراک دے او وُنے د ځناورو خوراک دے او ځناور د انسان خوراک دے - د انسان نه اعلیٰ هیڅ مخلوق په دے دنیا کښے نشته په دے وجه انسان کیچا غذا نه شي جوړیدے -

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحِلُّوْا شَعَآئِرَ اللّٰهِ وَلَا الشَّهْرَ

اے ایماندارو حلال مه ګڼئ د الله نښنو لره او نه د ادب

الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْیَ وَلَا الْقَلَآئِدَ وَلَآ اٰمِّيْنَ الْبَيْتَ

میاشتو لره او نه هغه ځناورو لره چه د کعبے نیاز وی او نه د کوم پټاړه کینے چه پته اچولے شوے وی او نه د اتلونکی

الْحَرَامَ يَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا ؕ وَاِذَا

حرمت والا کور طرفته کوم چه لټوی فضل د خپل رب او د هغه خوشحالی - او کله چه د

حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا ؕ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ

احرام نه اوځئ نو ښکار کوئ - او باعث دے نه شی پتاسو پاندے د هغه قوم دشمنی کوم

اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ

چه تاسو ئے منع کړلئ د حرمت والا جمات نه په دے باندے چه زیاتے او کړئ -

وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى ۪ وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ

او یو بل مینځ کینے مدد کوئ په نیک کار او پرهیزګارئ باندے - او مدد مه کوئ په ګناه

وَالْعُدْوَانِ ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲﴾

او په ظلم باندے - او ویریږئ د الله نه بے شکه د الله عذاب سخت دے -

وقف لازم

### د ایاتونو تړون

د سورت مائده په اول ایات کینے د معاهدو د پوره کولو تاکید وه - په دے معاهدو کینے یوه معاهده داهم ده چه د الله تعالیٰ مقرر کړی حلال او حرام و پابندی او شی - په دے دویم ایت کینے د دے معاهدے د دوه وړو اهمو دفعو بیان دے یو د شعائر الله (د الله د نښنو) تعظیم او د دوی د بے ادبئ نه د بچ کیدو هدایت - دویم د خپل او پردی دوست او دشمن ټولو سره د عدل او انصاف

معامله او د ظلم بدله په ظلم سره د ښځه سره اغستو ما نعت -

د دے ایات د نزول سبب څو واقعات دی اول دا واورئ چه د ایات مضمون په ښۀ شان سره زړۀ ته پورے وځی - یوه واقعه د حدیبیځ ده چه تفصیل ئے قرآن حکیم په بل ځائے کښے بیان کړے دے - هغه دا چه د هجرت په شپږم کال نبی کریم صلے الله علیه وسلم او صحابه کرامو اراده اوکړه چه عمره اوکړی - نبی کریم صلے الله علیه وسلم د یو زر صحابه کرامو سره د عمرے احرام اوتاړه مکے معظمے ته روان شو چه مکے ته نزدے د حدیبیځ مقام ته اورسیدل مکے والو ته ئے خبرا وکړه چه مونږ د څۀ جنګ د پاره نه بلکه د عمرے کولو د پاره راغلو مونږ لره اجازت راکړئ د مکے مشرکانو اجازت ورنه کړو او په ډیرو سختو او مشکلو شرطونو سره ئے دا سے معاهده اوکړه چه دا وخت به ټول خپل احرامونه اوسپړئ واپس به شئ، په راتلونکی کال به عمرے له دا سے راشئ چه وسله به در سره نه وی، صرف درے ورځے به حصار نیځ او عمره به کوئ واپس کیږئ یه، او نور هم دا سے ډیر شرطونه وو چه د هغے منل په ظاهره سره د مسلمانانو د وقار او عزت نه خلاف وو - د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په حکم باندے ټول مطمئن شو او واپس شو، بیا په سنه ۷ کښے دوباره د د غے شرطونو د پابندئ سره ئے دغه قضا عمره ادا کړه -

په هر حال د حدیبیځ واقعه او دے ناخوښه شرطونو د صحابه کرامو په زړونو کښے د مکے د مشرکانو د طرف نه ډیره د نفرت او بغض کړوندنه کړے وه - دویمه واقعه دا سے اوشوه چه د مکے د مشرکانو نه حطیم بن هند خپل د تجارت مال مدینے ته راوړو، او د مال خرڅولو نه پس ئے خپل سامان او سړی د مدینے نه باهر پاتے کړل او بچیله د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شو، او د منافقانو په شان ئے خپله اراده د اسلام راوړو ظاهره کړه چه مسلمانان د ده نه مطمئن شی لیکن نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ده د راتلو نه اول د وحی په ذریعه خبر مونده وه صحابهؓ ته ئے اوویل چه مونږ لره یو سړے راتلونکے دے چه د شیطان په ژبه سره به خبرے اوکړی، او کله چه دے واپس شو نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دا سړے د کفر سره راغے او د دوکے او غدارئ سره واپس شو، دا سړے چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د مجلس نه اووت نو د مدینے نه باهر هغه ځائے ته

اورسید وکوم ځائے چه د مدینے والو څاروی څریدل، هغه ئے اوشړل او دځان سره ئے روان کړل صحابه کرامو ته د دے اطلاع لږه پس اوشوه هغوئی پسے او وتل خو دے د دوی د قابو نه باهر شوے وه ، بیا چه کله د هجرت په اووم کال نبی کریم صلی الله علیه وسلم د صحابه کرامو سره د حدیبیے د قضا عمرے د پاره تلل نو د لرے نه ئے د تلبیے آواز واؤریدو او اوئے لیدو چه هم دغه حطیم بن هند د مدینے د خلقو دغو څارو ولره کوم چه ئے د مدینے والو نه راوستی وو په طور د قربانئ د ځان سره راروان کړی دی عمرے له ځی دغه وخت صحابه کرامو قصد اوکړو چه په ده حمله اوکړی او څپل څاروی ترے نه واخلی او دے په دے ځائے ختم کړی۔

دریمه واقعه دا اوشوه چه د هجرت په اتم کال په رمضان المبارک کښے مکه فتح شوه او تقریبًا په ټول عرب اسلامی قبضه شوه او د مکے مشرکانو لره رسول کریم صلی الله علیه وسلم بغیر د څهٔ بدل اغستو نه آزاد کړه - دوی به په آزادئ سره څپل ټول کارونه کول تر دے چه په څپل جاهلانه طرز باندِ به ئے د حج او عمرے رسمو نه هم ادا کول ، دغه وخت د بعضے صحابه کرامو په زړونو کښے د حدیبیے د واقعے د بدل اغستو خیال راغے چه دوی مونږ په جائزه او حقه طریقه سره د عمرے کولو نه بند کړے وو، نو مونږ د دوی ناجائزه او په غلط طریقه باندے عمره او حج څنګه آزاد پریدو و په دوی حمله کړو څاروی ترے اخلو او ختمو ئے۔

دا واقعات ابن جریر په روایت د عکرمه او سدی نقل کړی دی - دا یو څو واقعات وو چه د دوی په بنا دا آیات نازل شو چه په دے کښے مسلمانانو ته دا هدایت شوے دے چه د الله تعالیٰ د نښنو تعظیم ستاسو څپل فرض دی - د چا دشمن د بغض او عداوت په وجه سره په دے کښے د خلل غورزه ولو قطعًا اجازت نیشته د حرمت په میاشتو کښے قتل او قتال هم جائز نه دے ، د قربانئ څاروو لره د حرم د تلو نه منع کول او یائے تختول هم جائز نه دی ، او کوم مشرکان چه احرام اوتړی د څپل خیال مطابق د الله تعالیٰ د فضل او رضا حاصلولو په اراده سره روان وی (اګر چه په وجه د کفر د دوی دا خیال باطل دے خو بیا هم) د الله تعالیٰ د نښنو د حفاظت او احترام تقاضا دا ده چه د دوی سره د چیړ چاړ نه شی کولے ، دا رنګ هغه خلقو چه تاسو ئے د عمرے نه منع کړی وئ د دوی نه د بغض او عداوت د بدل اغستو د پاره داسے کول

نه دی جائز چه تاسو دوی منع کړئ- ځکه چه دا د دوی د ظلم په بدله کښې به زموږ د طرف نه ظلم شی کوم چه په اسلام کښې روا نه دے، او س د آیت پوره تفسیر اوګورئ-

## لنډ تفسیر

اے ایماندارو بے حرمتی مه کوئ د الله تعالیٰ د (دین د) نښو (یعنی د کوموشیزو نو د ادب د پاره چه الله تعالیٰ څۀ احکام مقرر کړی دی د دغے احکامو خلاف کولو سره بے ادبی مه کوئ، مثلاً د حرم او د احرام ئے دا ادب مقرر کړے دے چه په دے کښې ښکار مکوئ نو ښکار کول په کښې بے ادبی او حرام دی) او مه د حرمت د میاشتو (بے ادبی کوئ چه په دے کښې د کافرانو سره جنګ اوکړئ) او مه په حرم کښې د قربانئ کید و نکی ځاروی (بے ادبی کوئ چه چیړ و رسره کوئ) او مه د هغه ځاروو (بے ادبی کوئ) د چا په غاړه کښې چه (د دے نښے د پاره) پټے پر تے وی (چه دا د الله تعالیٰ نیاز دے په حرم کښې به ذبح کیږی) او مه د هغو خلقو (بے حرمتی کوئ) کوم چه د بیت الحرام (یعنی بیت الله) په نیت سره روان وی (او) د خپل رب د فضل او رضامندئ طلب ګار وی (یعنی د دے شیز و نو په ادب سره د کافرانو سره هم چیړ مکوئ) او (په پره نی آیات کښې چه ئے د احرام په ادب سره ښکار حرام فرمائیلے دے دغه د احرام په پورے دے ورم) کوم وخت چه تاسو د احرام نه باهر راشئ نو (اجازت دے چه) ښکار کوئ (په دے شرط سره چه دغه ښکار په حرم کښې نه وی) او (ښره چه د کوموشیزو نو د چیړ لو نه منع شوی وئ په دے کښې) دا سے دے او نه شی چه تاسو د یو قوم سره په دے وجه بغض ساتئ چه دوی (تاسو له د حدیبئ په کال د تلو) د مسجد حرام نه منع کړی وئ (د قریشو کفار تے مطلب دی) دغه (بغض) ستاسو د پاره د دے سبب جو ړ شی چه تاسو د (شریعت د) حد نه اوځئ (یعنی د ذکرشو و حکمو نو نه خلاف اوکړئ، دا سے مکوئ) او د (په خبرو د) نیکئ او تقوی کښې د یو بل سره مدد کوئ (مثلاً دا احکام دی چه په دے کښې نورو ته هم د نیک عمل کولو ترغیب ورکوئ) او د ګناه او زیاتی (په خبرو) کښې د یو بل سره مدد مکوئ (مثلاً دا احکام دی که څوک د دے خلاف کوی نو تاسو د هغۀ مدد مکوئ) او د الله تعالیٰ نه یریګئ (چه په دے سره د ټولو احکامو پابندی آسانیګی) بے شکه الله تعالیٰ (د حکمونو مخالفت کونکو ته) سخته سزا ورکونکے دے-

# معلومات او مسئلې

دا ایت په اول جمله کښې ارشاد دے: يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ: یعنی اے ایماندارو د الله تعالیٰ د نښنو بے حرمتي مه کوئ. په دے کښې لفظ د شعائر چه ترجمه ئے په نښنو سره شوے ده د شعیره جمع ده چه معنیٰ ئے ده نښنه. په دے وجه شعائر او شعیره هغه محسوس شی ته وئیلے شی چه د یو شی علامه (نښنه) وی شعائر اسلام هغه عملونو او کارونو ته وئیلے شی چه په عرف کښې د مسلمانید و نښنه ګڼړلے شی او محسوس او ښکاره وی. لکه مونځ، اذان، حج، ختنه او د سنتو مطابق ګیره وغیره. د شعائر الله: تفسیر په دے ایت کښې په مختلفو الفاظو سره نقل دے لیکن صاف خبره هغه ده کومه چه په بحر محیط او روح المعانی کښې د حضرت حسن بصریؒ او عطاءؒ نه نقل ده، او امام جصاص دے ته د ټولو قولونو جامع وئیلے دے او هغه دا دے چه د شعائر الله نه مراد ټول شریعتونه او د دین مقرر کړی واجبات، فرائض او د دوی حدود دی. په دے ایت کښې د: لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ: د ارشاد هم دا مطلب دے چه د الله تعالیٰ د شعائرو بے حرمتي مکوئ. او د الله تعالیٰ د شعائرو بے حرمتي یوه خو دا ده چه د سره دا احکام پاتے کړے شی، دویمه دا ده چه په دے عمل خو کوی لیکن نیمګړے کوی پوره نه کوی. دریم دا چه د مقرر شو حدودو نه تجاوز اوکړی وړاندے تیر شی په: لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ: کښے د دے دریے واړه صورتونو نه منع فرمائیلے شوے ده.

دا هم ایت قرآن کریم په بل عنوان سره داسے ارشاد فرمائیلے دے: وَمَنْ يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوبِ: یعنی کوم سړے چه د الله تعالیٰ د محرماتو تعظیم کوی نو دا د زړونو د تقوای اثر دے. د ایات په دویمه جمله کښے ئے د شعائر الله د یو خاص قسم یعنی د شعائرو د حج څه تفصیلات خودلی شوی دی.

ارشاد دے: وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَائِدَ وَلَا آمِّينَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ يَبْتَغُونَ فَضْلًا مِنْ رَبِّهِمْ وَرِضْوَانًا: یعنی په میاشتے د حرمت کښے په قتل قتال کولو سره د دے بے حرمتي مکوئ. د حرمت میاشتے څلور دی چه په دوی کښے جنګ کول شرعًا حرام وو

ذی قعده، ذی الحجه، محرم، او رجب، د دې څلورو میاشتو احکام د جمهورو علماؤ په نزد منسوخ شو، دا رنګې په حرم د مکې کښې قربانېږي وکې څاروې او خاص هغه چې په غاړه کښې یې ورته د قربانۍ د نښې په جوړ پټه اچولې وي د دوی بې حرمتي مه کوئ، د دې څاروي د بې حرمتۍ یو صورت خو دا دې چې دې حرم ته ورسیدو نه منع کړې شي یا او تختولې شي دویم صورت ئې دا دې چې د دوی نه د قربانۍ نه علاوه بل کار د سوارلۍ یا پیو واغستلې شي۔ اٰیت دا ټول صورتونه ناجائز مقرر کړه۔

بیا فرمائي: وَلَاۤ اٰمِّیْنَ الْبَیْتَ الْحَرَامَ یَبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنْ رَّبِّهِمْ وَرِضْوَانًا: یعنې د هغو خلقو بې حرمتي مکوئ چې د حج د پاره د مسجد الحرام قصد او کړي او کور ه او څي او د دې سفر نه د دوی مقصد دا وي چې د خپل رب فضل او رضا حاصل کړي د دې خلقو د بې حرمتۍ نه کولو مطلب دا دې چې په دې سفر کښې د دوی سره چیړ او نه کړې شي، او نه ورته څۀ تکلیف او رسولې شي۔

د دینه پس ارشاد فرمائي: وَاِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا: یعنې په اولنې اٰیات کښې چې د احرام په حالت کښې د ښکار کوم ممانعت شوې وه، د دې حد او خودلې شو چې کله تاسو د احرام نه فارغ شئ نو د ښکار کولو ممانعت ختم شو، او س ښکار کولې شئ۔

په ذکر شوي اٰیت کښې د دې معاهدې د اهم جز بیان کیږي چې د هر یو انسان او رب العلمین په مینځ کښې ده۔ د دې د یو څو جزونو بیان دلته شوې دې چې په دې کښې اول مطلق د شعائر الله د تعظیم او د دوی د بې حرمتۍ نه د ځان ساتلو خوړ نه ده۔ او بیا خاص طور سره د دغې شعائر الله نه تفصیلا ذی چې تعلق ئې د حج سره دې۔ په دوی کښې د حج په قصد سره د راتلو نکو مسافرو او د دوی سره د راتلونکو قربانۍ د څاروو سره د څۀ قسم چیړ کو لو نه منع او د دوی د بې حرمتۍ کولو نه د ځان ساتلو هدایت دې۔

د دې نه پس د معاهدې دویم جز دا سې ارشاد فرمائي: وَلَا یَجْرِمَنَّکُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْکُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا: یعنې کوم قوم چې د حدیبیه په واقعه تاسو د عمرې نه او مکې ته د داخلید و نه منع کړي وو او تاسو د ډېر سخت غم او غصې سره ناکامه واپس راتلئ، او س هر کله چې تاسو ته قدرت او قوت

عامل دے، نو دا سے نه ده پکار چه د تیرے واقعے د غم او غصے او بغض بدل دا سے وانخستے شي چه تاسو دوی لوه د بیت الله او مسجد حرام د داخلید و نه منع کړئ ځکه چه دا ظلم دے، او اسلام د ظلم بدل په ظلم سره اخستل نه غواړی- بلکه د ظلم په بدل کښے انصاف کول او په انصاف قائم پاتے کیدل ښائي- دوی د خپل قوّت او اقتدار په وخت کښے مسلمانانو لوه د مسجد حرام د داخلید و نه او د عمرے کولو نه په ظلم سره منع کړی وُو- نو د هغے جواب دا نه دی کول پکار چه اوس مسلمانان د خپل اقتدار په وخت کښے دوی د حج د کارو نو نه منع کړی-

د قرآن کریم تعلیم دا دے چه په عدل او انصاف کښے ټول دوست دشمن برابر پکار دی- ستا سو دشمن که هر څومره سخت وی او دهٔ تا سو ته هر څومره ازار چه رسولے وی که دوی سره معامله هم په انصاف بان دے کول ستا سو فرض دی-

دا د اسلام د خصوصیا تو نه دی چه دے د دشمن د حقو نو حفاظت کوی او د دهٔ د ظلم جواب په ظلم سره نه بلکه په انصاف سره ورکول ښائي-

## د یو بل سره د تعاون او مدد کولو قرآني اصول

وَتَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ؛ دا د سورتِ مائده د دویم ایات اخری جمله ده په دے کښے قرآن حکیم د یو دا سے اصولی او بنیادی مسئلے متعلق یو عکیمانه فیصله کړے ده چه د ټول عالم د نظام روح دے، او په کوم چه د انسان د هرے اصلاح او کامیابئ بلکه بچپله د دهٔ ژوندا و بقاء موقوف ده دغه مسئله ده د یو بل سره د تعاون او مدد- هر د عقل خاوند انسان پوهیګی چه که دے دنیا ټول انتظام د مخلوق د یو بل سره په تعاون او مدد قائم دے- که یو انسان د بل انسان مدد او نه کړی نو یو انسان که هر څومره عقلمند او زور آور یا مالدار وَلے نه وی خپل د ژوند ضروریات یواځے نه شي پوره کولے، یواځے یو انسان د خپل خوراک د پاره د غلے حاصلولو د کَرَ لو نه واخله تر خوراک قابلید و پورے ټولے مرحلے نه شي سرته رسولے او نه د جامو د پاره د پنبے کولو نه واخله د کپړے تیاره ولو پورے بے شماره مسئلے حل کولے شي- او نه خپل بوج د یو ځائے نه بل ځائے ته وړے شي- غرض دا دے چه هر انسان د خپل

ژوند په هره شعبه کښې د نورو زرګونو لاکونو انسانانو محتاج دے - د دوی د یو بل سره په تعاون او مدد د ټوله دنیا انتظام چلیږی - او که غور اوکړے شی نو دا تعاون او مدد د دُنیا په ژوند کښې یوائے ضروری نه دے بلکه د مرګ نه واخله په قبر کښې بنخه ولو پورے ټولے مرحلے هم د دے تعاون محتاجه دی. بلکه د دے نه پس هم د پس مانده ګانو د عاګانو او ثواب رسولو ته محتاجه وی،

الله تعالیٰ خپل لوئے او کامل قدرت سره د دے دنیا نظام داسے محکم جوړ کړے دے چه هر یو انسان ئے د بل محتاج جوړ کړے دے، غریب د پیسو د پاره د مالدار محتاجه دے، نو مالدار هم د محنت مشقت د پاره د غریب مزدور محتاجه دے، سوداګر د ګاهک محتاجه دے او ګاهک د سوداګرو، مکان جوړه وُنکے د کیلکار، ترکانړ او لوهار محتاجه دے، او دا ټول د ده محتاجه دی، که دا سرا سر احتیاج نه وے او تعاون صرف د اخلاقو په بنا وے نو هیچا به د بل کار نه وه کړے او د دے به هم هغه حشر وه کوم چه په دے دنیا کښې د عام اخلاقی قدرو نو دے، او که دا د کارونو تقسیم د حکومت یا بین الاقوامی څه ادارے د طرف نه په صورت د قانون نافذ کیدے نو د دے به هم هغه انجام وه کوم چه نن په ټوله دنیا کښې د قانون انجام دے - چه قانون صرف په ایکټونو کښې محفوظ دے او په بازار او دفترونو کښې د رشوت، بے ځایه رعایت، فرض نه پیژندو او بے کارئ قانون چلیږی - دا محض د احکم الحاکمین قادر مطلق الله پاک نظام دے چه د مختلفو خلقو په زړونو کښې ئے د مختلفو کارونو شوق او صلاحیت پیدا کړے دے او دوی د خپل خپل ژوند محور د غه کار جوړ کړے دے ؎

هر یکے را بهر کارے ساختند میل او را در دلش انداختند

(هر یو ئے د یو کار د پاره پیدا کړے وے - او د هغے کار مینه ئے د هغه په زړه کښې اچولے ده) -

او که داسے نه وے د یو حکومت یا بین الاقوامی ادارے د طرف نه د دے کارونو تقسیم کیدے او چا ته ئے د ترکانړ، چا ته ئے د لوهارئ چا ته ئے د جارو کولو کار او چا ته ئے د او بو رسولو کار چا ته ئے د خوراک انتظام حواله کولے نو هیچا به هم به په ځان سپه او ورځ نه وو یو کړے (د کار کولو د پاره) او نه به ئے پوره حکم منلو -

الله تعالیٰ جل شانهٗ چه کوم انسان دَ کوم کار دَ پاره پیدا کړے دے دَ هغې کار مینه ئې دَ هٔغهٔ په زړهٔ کښے اچولے ده، دے بغیر دَ څهٔ قانونی مجبورئ نه دَ غه خدمت دَ خپل ژوند کار گرځوی، او دَ دغے په ذریعه خپل رزق حاصلوی، دَ دے محکم نظام دا نتیجه ده چه دَ انسان ټول ضرورتونه دَ یو څو پیسو په خرچ کولو په اسانئ سره ملاویږی۔ تیار پوخ خوراک، گنډلے تیاره شوے کپړه، تیار دَ لرگی سامان، تیار دَ اوسپنے سامان، تیار دَ اوسیدلو کور انسان په یو څو پیسو خرچ کولو سره حاصلولے شی۔ که دا نظام نه وے نو یو کروړ پتی انسان که په کروړونو روپئ خرچ کولے یوه دانه دَ غنم ہم ئې نه وه حاصله کړے۔

دَ دے قدرتی نظام دا نتیجه ده چه که تاسو په یو هوټل کښے دیره شئ او دَ کومو کومو څیزونو نه چه تاسو فائده اخلئ او دَ دے تجزیه او کړئ نو معلومه به شی چه او به دَ امریکے، غوړی دَ پنجاب، غوبنه دَ سندهـ نه، مثالے دَ مختلفو ملکونو نو لوښی او دَ لرگی سامان دَ مختلفو ملکونو نه، کارکونکی بیره کان باورچیان دَ مختلفو ښهرونو نه ستاسو په خدمت کښے لگیدلی دی، او یوه غړئ چه کومه ستاسو خولے ته رسی په دے کښے په لاکونو مشینانو څارو، او بنی آدمو کار کړے دے او دَ دے نه پس ستاسو دَ خولے خوند بنه کوی۔ تاسو چه سحر دَ کوره او ځئ درے څلور میله مزل کوئ، او دَ دے وخت یا طاقت ستاسو سره نیشتے، او تاسو ته ټیکسی، رکشه، یا بس ملاوُ شی چه او سپنه ئې دَ آسټریلیا، لرگی دَ برما، مشینری دَ امریکے وی، ډرائیور دَ فرنټیر، کنډیکټر دَ یو۔ پی، دا دَ کوم کوم ځائے سامان او دَ کوم کوم ځائے مخلوق ستاسو دَ خدمت دَ پاره ولاړ دے، چه صرف یو څو پیسے ورکړے او په دے ټولو باندے خدمت اوکړے، دوی کوم حکومت مجبور کړی دی یا چا پابند کړی دی چه دا ټول هرڅه ئې تاله تیار کړی دی، پس دے قدرتی قانون چه دَ زړونو مالک دے دَ دے ټولو زړونو نه دے طرفته جاری کړی دی۔

ننَ صبا سوشلسټو ملکونو دا قدرتی نظام بدل کړے دا څیزونه ئې دَ حکومت ذموارئ جوړه کړے ده، چه کوم سړے به کوم کار کوی۔ دَ دے دَ پاره ئې دَ ټولو نه اول دَ زور او ظلم په ذریعه دَ انسان آزادی ختمه کړه، چه دَ دے په نتیجه کښے په زرگونو انسانان قتل شو، په زرگونو قید کړے شو، او پاتے انسانانو لره ئې دَ سخت زور ظلم په ذریعه دَ مشین دَ پرزو پشان استعمال کړل، چه دَ دے په نتیجه کښے که یو ځائے دَ

څخه خېژونو پیدا اوارزیات هم شو نو د انسانانو انسانیت ئې ختم کړو زیات شو نو دا سودا ارزانه پرې نۀ وته - په قدرتي نظام کښې هر انسان ازاد هم دے او په قدرتي تقسیم سره د خاصو خاصو کارونو دپاره طبیعتونه مجبور هم دي او دغه مجبوري د دۀ طبیعت هم غواړي نو په دے وجه دے څه جبر هم نۀ محسوسوي د سخت نه د سخت محنت او د ذلیل نه د ذلیل کار دپاره پخپله وړاندے کیدونکي او کوشش کونکي هر وخت په هر زمانه کښې ملاویګي - او که څوک حکومت دوي لره د دے کار دپاره په مجبوره کولو او لګي نو ټول به ترے بیا تختي -

لنډه دا ده چه د تعالٰے دنیا نظام د یو بل په تعلق سره قائم دے - لیکن د دے تصویر یو بل رخ هم دے چه که د جرمونو، غلاګانو، ډاکو، قتلونو او لوټ مار دپاره دا د یو بل سره تعاوُن شروع شي د غلو ډاکوانو لوئے لوئے منظمے ډلے جوړے شي نو دا تعاوُن او مدد بیا د دے دنیا ټول نظام درهم برهم کولے هم شي - معلومه شوه چه دا د یو بل سره تعاوُن دوه دارے توره ده چه په خپل ځان هم چلیدے شي او د دنیا نظام هم برباد ولے شي - او دا دنیا چونکه د خیر او شر، ښۀ او بد یو مرکب معجون دے - په دے وجه په دے کښې دا سے کیدل هم څه لرے خبره نه وه چه د جرمونو او قتل وغارت یا نقصان رسولو دپاره په کښې د یو بل سره د تعاوُن قوت استعمالول شروع شي او دا صرف احتمال نۀ بلکه واقعه جوړه شوه او مخے ته راغله - نو د دے د ردِ عمل په طور د دُنیا هوښیارانو د خپل حفاظت دپاره په مختلفو نظریو باندے د خاص خاص جماعتونو یا قومونو بنیاد او غورزاوه - چه د یو جماعت یا یو قوم خلاف که چه بل جماعت یا قوم حمله اوکړي نو دوي ټول به د هغوي د مقابلے دپاره د یو بل سره د تعاوُن قوت استعمال کړي خپل مدافعت به اوکړے شي -

## دَ قومونو تقسیم

د عبد الکریم شهرستاني په ''ملل ونحل'' کښې دي چه په اول کښې کله انساني آبادي زیاته نه وه نو د دنیا د څلورو طرفونو په اعتبار سره څلور قومونه جوړ شو، مشرقي، مغربي، شمالي، جنوبي، په دوي کښې د هر طرف خلقو به خپل ځان ته یو قوم او نورو ته نور قومونه وئے - او په دے بنیاد ئې تعاوُن او د یو بل سره مدد کولو - د دے نه پس کله چه آبادي زیاته خوره شوه نو د هر طرف

په خلقو کښې په نسبي او خانداني بنيادونو د قوميت او اجتماعيت تصور يو اصول جوړ شو۔ د عرب ټول نظام په دې نسبي او قبائلي بنيادبانډې وو، په دې به جنګونه کيدل، بنوهاشم يو قوم، بنوتميم بل قوم، بنوخزاعه دريم قوم۔ د هندوستان په هندوانو کښې خو ترننه پورې د اوچت ذات او لاندې ذات جدا والې دغه شان چليږي۔

د يورپ قومونو نوي دورنه خپل نسب باقي پاتې کړو او نه ئې د دنيا نسبو ته اوکنټرول هر کله چه په دنيا کښې د دوي ترقي شوه نو نسبي او قبائلي قوميتونه او تقسيم ئې ختم کړو بيائې علاقائي او صوبائي وطني او لساني بنيادونو بانډې انسانيت ټکړې ټکړې کړو جدا جدا قومونه ئې اوډره ول۔ او نن هم دغه سکه تقريبًا په ټوله دُنيا چليږي۔ ترڅو چه دا جادو په مسلمانانو بانډې هم اُو چليده۔ او يو اځې په عربي، ترکي، عراقي، سندهي کښې تقسيم نه شو بلکه په دې کښې هم تقسيم در تقسيم شو مصري، شامي، حجازي، نجدي او پنجابي، بنګالي، سندهي هندي وغيره جدا جدا قومونه جوړ شو۔ د حکومت ټول کاروبار ئې په دې بنيادونو اوچلاؤ ترڅو چه دا صوبائي دشمنئ د دوي په زړونو کښې اوچليده او د هرې صوبې د خلقو تعاون او د يو بل سره مدد کول هم په دې بنيادونو شروع شو۔

## دَ قوميت او اجتماعيت دَپاره قرآني تعليم

قرآن کريم انسان ته بيا هير شوې سبق را ياد کړو۔ د سورت نساء د شروع په ايات کښې ئې دا ښکاره کړه چه تاسو ټول انسانان د يو مور و پلار اولاد يئ۔ نبي کريم صلی الله عليه وسلم د دې تشريح د حجة الوداع په خطبه کښې داسې اوکړه چه يو عربي لره په يو عجمي يا سور لره په تور هيڅ فضيلت نيشته، د فضيلت مدار صرف په تقوی او د خدائې په حکم منلو بانډې دې۔ دې قرآني تعليم د ‹إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ› اعلان اوکړه د حبشو تورئې د سُور ترکي او رومي سره د عجمو د لاندې ذات انسانانئې د عرب د قريشو او هاشميانو سره رورونه کړل۔ قوميت او رورولي ئې په دې بنياد قائمه کړه چه د الله او د هغهٔ د رسول منونکي يو قوم او نه منونکي بل قوم دې۔

داهغه بنیاد وُه چه دَ ابوجهل او ابولهب خاندانی رشتې ئې دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه پرې کړې او دَ حبشی بلال او صُهیب رُومی سره ئې اوتړلې ـه

حسن ز بصره بلال از حبش صهیب از روم ... زخاک مکّه ابوجهل این چه بوالعجبی است

(دا څومره عجیبه خبره ده چه په بصره کښې حسن او په حبشو کښې بلال او په روم کښې صهیب پیدا کیږی او دَ مکې په پاکه خاوره کښې ابوجهل پیدا کیږی)

تو دې چه قرآن کریم اعلان اوکړه: خَلَقَكُمْ فَمِنْكُمْ كَافِرٌ وَّمِنْكُمْ مُّؤْمِنٌ؛ "یعنی الله تعالیٰ تاسو ټول پیدا کړئ بیا تاسو په دوه ؤو حصو کښې تقسیم شوئ څهٔ کافر شوئ څهٔ مؤمنان" په بدر او اُحد او احزاب او حُنین جنګونو کښې دَ دې قرآنی تقسیم عملی مظاهره شوې وه، چه نسبی رور هکله چه دَ الله تعالیٰ او دَ هغهٔ دَ رسول دَ اطاعت نه باهر شو نو دَ مسلمان رور دَ رورولۍ رشته او دَ تعاون دَرجه نه کټ شوه او هغهٔ دَ دهٔ دَ توره دَ ګذار لاندې را غے نسبی رور، توره را واخِسته مقابلے ته راغے نو مسلمان رور ئې امداد ته او رَسید دَ بدر، اُحد، او خندق دَ غزاګانو واقعات په دے باندِ ګواه دی ـه

هزار خویش که بیگانه از خدا باشد ... فدائے یک تنِ بیگانه که آشنا باشد

(په زرګونو خپلوان چه دَ خدائے نه پردی وی دَ هغې یو پردِی نه قربان شه چه دَ خدائے سره آشنا وی)۔

په ذکر شوی ایات کښې قرآنِ حکیم دَ تعاوُن او یو بل سره دَ امداد کولو هم دا معقول او صحیح اصول مُخو دلی دی۔: تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ؛ "یعنی په نیکۍ او خدا ترسۍ باندِ تعاوُن کوئ په بدۍ او ظلم باندے تعاوُن مکوئ"

فکر اوکړئ چه په دے کښې قرآن کریم دا عنوان هم اختیار نه کړو چه دَ مسلمانانو رورونړو سره تعاوُن کوئ او دَ غیر مسلمانانو سره مکوئ، بلکه دَ مسلمانانو سره دَ تعاوُن کولو چه کوم اصل بنیاد دے یعنی نیکی او دَ خدائے نه یَرَه هغه ئې دَ تعاوُن کولو بنیاد مقرر کړو۔

چه دَ دے صاف مطلب دا دے چه مسلمان رور هم که دَ حق خلاف یا ظلم او زیاتی طرف ته روان وی۔ نو په ناحقه او په ظلم کښې دَ دهٔ هم مدد مکوئ،

بلکه دا دې کوشش کوئ چه د ناحقو او ظلم نه د دهٔ لاسونه اونیسئ ځکه چه په حقیقت کښې دا د دهٔ صحیح امداد دے چه په ظلم او زیاتی کولو سره د ده دنیا او آخرت تباه نهٔ شی۔

په صحیح بخاری او مسلم کښې د حضرت انسؓ نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی: اُنْصُرْ اَخَاکَ ظَالِمًا اَوْ مَظْلُوْمًا ؛ یعنی د خپل رور مدد کوه خواه دے ظالم وی او که مظلوم وی۔ صحابه کرامؓ چه په قرآنی تعلیم باندې رنګ شوی دو تپوس کوی په حیرانتیا سره چه یا رسول الله د مظلوم رور په مدد کولو خو مونږ پوهه شو، لیکن د ظالم د امداد څهٔ مطلب دے دوی او فرمائیل چه دے د ظلم نه منع کړئ دا د دهٔ امداد دے۔

د قرآن کریم دې تعلیم د نیکئ او تقوی (یعنی نیک کار او د خدائے نه ډیرے) اصل معیار جوړ کړه او په دے ئے د مسلمان قوم تعمیر او دروُلو۔ او په دے ئے د یو بل سره د تعاون او مدد کولو بلنه ورکړه۔ او د دے په مقابله کښې ئے اثم او عُدوان (یعنی ګناه او زیاتے) سخت جُرم مقرر کړو۔ او په دے ئے د تعاون نه منع اوکړه۔ د بِرّ او تقوٰی، دوه لفظونه ئے اختیار کړه۔ جمهور مفسرین د بِرّ معنی دلته کښې "فعل الخیرات" یعنی نیک عمل مقرر کړے دے او د تقوٰی معنیٰ "ترک المنکرات" یعنی د بد و یاتے کول دی۔ او لفظ د "اِثم" مطلق د ګناه او معصیت په معنی دے، خواه د حقونو متعلق وی او که د عبادتونو۔ او د "عدوان" لفظی معنی د حد نه تجاوز کول دی، مراد ترے ظلم زیاتے دے۔

په بِرّ او تقوی باندے د تعاون کولو او امداد کولو د پاره نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد فرمائیلے دے: اَلدَّالُ عَلَی الْخَیْرِ کَفَاعِلِه ؛ یعنی کوم سړے چه د نیکئ لار ښائی نو د دهٔ دومره ثواب دے لکه دغه نیکی چه دهٔ پخپله کړے وی، دا حدیث ابن کثیر په حواله د بزار نقل کړے دے۔ او په صحیح بخاری کښې دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کوم سړے خلقو ته هدایت او نیکئ طرف ته بلنه ورکوی نو څومره خلق چه په دغه بلنه باندے نیک عمل کوی د دے ټولو هومره دهٔ ته هم ثواب ملاویګی بغیر د دے نه چه د دغو خلقو د ثواب نه څهٔ کم کړے شی۔ او کوم سړے چه خلق ګمراهئ یا ګناه طرف ته رابلی

نوخو مره خلق چه د ده په را بللو په ګناه کښې اخته شول د دے ټولو د ګناهونو برابر به د ده ګناه هم وی بغیر د دے نه چه د دوی په ګناهونو کښې څه کمے اوکړے شی۔

او ابن کثیر په روایت د طبرانی نقل کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کوم سړے د یو ظالم سره د ده د مدد د پاره تلے وی، د دے، د اسلام نه اووت په دے بنا بانډې سلفو صالحینو د ظالمانو بادشاهانو د نوکرۍ او څه عهدے قبلولو نه ځانونه په سختۍ سره ساتلی دی – چه په دے کښې د دوی د ظلم مدد او اعانت دے۔ په تفسیر روح المعانی کښې ئے د دے آیات کریمه: فَلَنْ أَكُونَ ظَهِيرًا لِلْمُجْرِمِينَ: د لاندے د احدیث نقل کړے دے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د قیامت په ورځ به آواز اوشی چه کوم ځائے دی ظالمان خلق او د دوی مددګاران تر دے چه هغه خلق چا چه ظالمانو لره دوات قلم برابر کړے دے هغه به هم ټول د او سیننی په یو تابوت کښې جمع کړی جهنم ته به اوغورزولے شی۔

دا دے د قرآن او سنت هغه تعلیم چا چه په دنیا کښې د نیکۍ ''الضاف'' هم د ردئ'، او خوځویونو د خوره ولو د پاره د ملت هر فرد یو بلو نکے جوړ کړے او دروَلے وه۔ او د ظلم زیاتی د بندولو د پاره ئے د ملت هر یو فرد یو داسے سپاهی جوړ کړے وه چه په پټه او په ښکاره د خدائے د ویرے نه په خپله ډیوټۍ پوره کولو مجبوره دے۔ د دے حکیمانه تعلیم او تربیت نتیجه وه چه دنیا د اصحابو او تابعینو په دور کښې اولیده۔ نن هم که په یو ملک کښې د جنګ خطره پیدا شی نو د شهری دفاع محکمے قائمولے شی او هر سړی ته د دفاع د چلولو خود لو تعلیم ورکولے شی لیکن د جرمونو د بنده ولو د پاره د دے چرته هم څه اهتمام نیشته چه خلقو لره د خیر طرفته بلونکی او د شر منع کونکی سپاهیان جوړه ولو کوشش اوکړی۔ او ښکاره خبره ده چه د دے مشق نه په فوجی پریډ ونو سره کیدے شی او نه د شهری دفاع په طریقو سره۔ دا تعلیم په درسګاهونو کښې د زده کولو دے چه خلقن صبا د بد قسمتۍ نه د دے څیزونو نه نا آشنا دی = د برّ و تقوی: او د دے د تعلیما تو داخله نن صبا په عامو درسګاهونو کښې ممنوع ده – او د: إِثْمُ وَعُدْوَانَ: هر یو ه لاره کهلاؤ ده – بیا دلبے چا ده

پولیس به تر کومه دَجرمونو بندیز کوی چه ټول قوم دَحلالو او حرامو حق اوناحقو نه بیګانه شوی جرم پیشه شوی دی ـ نن صباچه کوم دَجرمونو زیاتوالے غلاګانے داکے، قتلونه، فحاشیانے هرځائے او په هر ملک کښے ورځ په ورځ زیاتیګی ـ او قوی مشینریانے ئے دَ بندولو نه عاجزه دی ـ

دَدے هم دا دوه سببونه دی چه یو طرف ته حکومتو نه دَدے قرآنی نظام نه لرے دی ـ دَا قتدارخاوندان دَ؛ بر وتقوی: په اصُولو باندے دَعمل کولو نه تر هیګی اګرچه په نتیجه کښے پرے بے شماره سختی راځی ـ افسوس چه دوی دا تریخ ګوټ یوه پیره دَتجربے دَپاره او سکلے، او دَخدائے دَقدرت تماشائے اولیدے چه څه رنګے دوی ته او عوامو ته دَامن سکون آرام او راحت پاک ژوند نصیب کیږی ـ

دویم طرف ته عوامو داګنړلے ده چه جرمونه بندول صرف دَحکومت کاردے ـ دوی دَهر مجرم په جرم باندے دَپردے اچولو سره عادت شوی دی ـ محض دَحق ثابتولو او جرمونو بندولو دَپاره دَرشتونے ګواهئ ورکولو هم ورواج په دوی کښے ندے پاتے شوے ـ دوی لوه ځان په دے پوهه کولی په کاردی چه دَمجرم په جرم پرده اچول او دَشهادت نه ځان ساتل دَجرم مدد کول دی چه دَقرآنِ کریم په رُو سره حرام او سخت ګناه دے: او دَ: وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ: دَحکم نه بغاوت دے ـ

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ

حرام شوی تاسو باندے مړجانور او وینه او غوښه دَ سوُر

وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوْذَةُ

او په کوم جانور چه آواز او شی دَغیرالله او کوم چه مړشی دَمړی خفه کید ونه یا دَ ویشتلو نه

وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا

یا دَدارغړید ونه یا دَښکر وهلو نه او هغه چه او ئے خوری دَرنده مګر کوم چه

ذَكَّيْتُمْ قف وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَاَنْ تَسْتَقْسِمُوْا

تاسو ذبح کړئ - او حرام دے هغه چه ذبح شي په ستانو باندې او دا چه تقسيموئ په غشو

بِالْاَزْلَامِ ۭ ذٰلِكُمْ فِسْقٌ ۭ اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

د جوارئ - دا د ګناه کار دے - نن نا اُمیده شو کافران ستاسو

مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ۭ اَلْيَوْمَ

د دين نه پس د دوی نه مه يرېږئ ځما نه اويرېږئ - نن ما پوره

اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ

کړ ستاسو د پاره دين ستاسو او پوره مې کړ په تاسو باندې احسان خپل

وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ۭ فَمَنِ اضْطُرَّ فِيْ

او خوښ مې کړ و ستاسو د پاره د اسلام دين - بيا چه څوک ناچاره شي په

مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ③

لوږه کښې ليکن ګناه ته مائل نه وي - نو الله بخښونکے والا مهربان دے -

# لنډ تفسير

په تاسو (دا خاروي وغيره) حرام کړی شوي دي مردار (خاروی کوم چه سره له دے چه ذبح ئے واجب وي او بے د شرعي وجه نه مړشي) او وينه (بهيدونکے) او د خنزير غوښه (دغه شان د دهٔ ټول اجزاء) او کوم خاروے چه (په قصد د نزديکت د غير الله په نوم کړے شوے وي او کوم چه د مړئ خپه کيدو نه مړشي او کوم چه د ګذار نه مړشي او کوم چه د او چت ځائے نه ارتاؤ شي مړشي (مثلاً د غره يا کوهي ته) او کوم چه د بل د ښکر وهلو نه مړشي او کوم چه يو درنده (راونيسي) او خوری ئے (او د دے نه

مړ شي) لیکن (د منخنقة تر ما اکل السبع پورې چه د کومو ذکر دے د دوئ نه چه) کوم چه تاسو (د ساه ختو نه اول په شرعي طریقه سره) ذبح کړئ (هغه د دے حراموالي نه مستثنیٰ دے) او (دا رنګه) کوم څاروے چه (د غیر الله عبادت کاهونو باندے ذبح کړے شي (حرام دے اګر که په ژبه د غیر الله نوم وا نخلي ځکه چه مدار د حرمت په نیت خبیث باندے دے او دا کله په وینا سره بنکاره کیږي چه نوم پرے واخلي او کله په کار سره چه په داسے ځایونو ئے ذبح کړي) او دا (هم حرام دے) چه (غوښه وغیره) تقسیموئ په ذریعه د غشو د خسړي دا ټول ګناه (او حرام) دے نن ورځ (یعني اوس) کافران خلق نا امیده شو ستاسو د دین (د مغلوب کیدو او ختمیدو) نه (ځکه چه ما شاء الله اسلام ښه خور شو پس د دوی (کفارو) نه مه یریږئ (چه ستاسو دین به ورک کړي) او ځما نه یریږئ (یعني ځما د حکمونو مخالفت مه کوئ) نن ورځ ستاسو د پاره ستاسو دین لره مار به هر شان) کامل کړو (په قوت کښے هم چه کفار ترے مایوسه شو او په احکامو او قاعدو کښے هم) او (په دے کاملولو سره) ما پتا سو خپل انعام تمام کړو (دیني انعام هم چه حکومته پوره شو او دنیوی انعام هم چه قوت حاصل شو او د دین په کاملوالي کښے دواړه راغلل) او ما اسلام لره ستاسو د دین جوړیدو د پاره (همیشه لره) خوښ کړو (یعني تر قیامته پورے به ستاسو دا دین وی د دے منسوخ کول او د بل دین تجویز کول به نه وي، پس تاسو لره پکار دی چه ځما د نعمت شکر اوکړئ او په دے دین پوره پوره قائم شئ) بیا (د ذکر شوو څیزونو د حراموالي معلوم ولو نه پس دا هم معلومه کړئ چه) کوم سړے د ډیرے لوږے نه بے آرامه شي (او په دے وجه سره دا بره ذکر شوی څیز ونه اوخوري) په دے شرط چه د څه ګناه طرف ته د ده میلان نه وی (یعني نه د ضرورت د قدر نه زیاتے اوخوري او نه ئے خوند اغستل مقصود وی کوم چه په سورت بقره کښے په: غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ سره ئے تعبیر فرمائیلے دے) نو یقیناً الله تعالیٰ معاف کونکے دے (او که د ضرورت اندازه ورته پوره نه وی او یو څو ګوټه زیاتے اوخوري او هم) رحمت والا دے (چه په داسے حالت کښے ئے اجازت ورکړو) -

# معلومات او مسئلے

دا دَ سورت مائده دریم اٰیت دے چه په دے کښے ډیر اصُول او فروعی احکام او مسئلے بیان شوی دی. اول مسئله دَ حلالو او حرامو جانورانو ده. دَ کومو جانورانو غوښه چه دَ انسان دَ پاره ضرورناکه ده په جسمانی طور سره چه دَ انسان په بدن کښے ترے دَ بیمارئ یره ده، یا په روحانی طور چه په دے سره دَ انسان دَ اخلاقو او زړهٔ دَ خرابیدو یره ده هغه قرآن خبیث مقرر کړل او حرام ئے کړل، او په کومو جانورانو کښے چه څه جسمانی یا روحانی ضرور نیشتے هغه ئے پاک او حلال مقرر کړل.

په دے اٰیت کښے فرمائی چه حرام شوی دی پتا سو باندے مردار جانوران، دَ مردار نه مراد هغه جانور دے چه بغیر دَ ذبحے نه دَ څهٔ بیمارئ په سبب یا په خپله طبعی موت مړ شی. دَ داسے مردار جانور غوښه په "طبی" طور سره هم دَ انسان دَ پاره سخته مُضره ده او په روحانی طور سره هم.

البته په حدیث شریف کښے دوه څیزونه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ دے نه مستثنیٰ کړی دی یو مهے دویم مُلخ، دا حدیث مسند احمد، ابن ماجه، دارقطنی بیهقی وغیره روایت کړے دے.

دویم شے کوم چه ئے په دے اٰیات کښے حرام کړے دے هغه وینه ده، او دَ قرآن کریم په بل اٰیت کښے: اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا: ئے فرمائیلی دی دائے خوَلے ده چه دَ دے وینے نه مراد وینه بهیدونکے ده په دے وجه ځیګر او تورے سره دَ دے چه وینه ده خو دَ دے حکم نه مستثنیٰ دی. په ذکر شوی حدیث کښے چه ئے کوم ځائے مهے او مُلخ دَ مُردارے نه مستثنیٰ کړی دی هلته ئے ځیګر او تورے هم دَ وینے نه مستثنیٰ کړی دی.

دریم څیز غوښه دَ خنزیر ده، چه حرامه کړے ئے ده، دَ غوښے نه مراد دَ دهٔ ټول بدن دے چه په هغے کښے وازده او پلے هرڅه شامل دی.

څلورم هغه څاروے دے چه دَ غیر الله دَ نوم دَ پاره مقرر کړے شوے دی بیا که دَ ذبح په وخت کښے په دهٔ هم دَ غیر الله نوم واغستلے شی نو دا بنکاره شرک دے

او دا جانور په اتفاق سره د مردار په حکم کښې دے۔

لکه چه د عربو مشرکانو به د خپلو بتانو په نوم باندې ذبح کول، یا به جاهلانو د پیرو فقیرو په نوم باندې ذبح کول، او که په وخت د ذبح ئې نوم د الله تعالی واخستو لیکن جانور ئې د غیر الله په نوم نذر کړے وه او د غیر الله د رضا د پاره ئې ذبح کړی نو جمهورو فقهاؤ د احمد د: مَا اُهِلَّ بِهٖ لِغَیْرِ اللّٰهِ: لاندې حرام مقرر کړے دے۔

پنځم "مُنْخَنِقَةُ" یعنی هغه جانور حرام دے چه د مرئ خپه کیدو په وجه مړ شی یا پخپله په څه کښې اونخلی او په ساه بندئ سره مړ شی، اګر چه "مُنْخَنِقَة" او "مَوْقُوْذَة" هم په مرداره کښې داخل وی لیکن په جاهلیت کښې به ئې دا حلال ګنړل نو ځکه د دوی ذکر ئې جدا اوکړه۔

شپږم "مَوْقُوْذَة" یعنی هغه جانور چه د سخت ګذار نه مړ شی۔ لکه په همسا یا کټه وغیره او ویشتے شی۔ او کوم غشے چه په ښکار داسے او لګی چه تیره سرئې پرے اونه لګی او هغه ښکار مړ شی نو هم په "موقوذه" کښې داخل دے او حرام دے۔

حضرت عدی بن حاتم رض نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته عرض اوکړه چه زه بعض وخت په غشی ښکار کوم نو که ښکار د دے نه مړ شی نو آیا زه ئې خوړے شم؟ دوی او فرمائیل چه که هغه جانور د غشی په پلنو اولګی او مړ شی نو په "موقوذه" کښې داخل دے هغه مه خوره او که په تیره طرف لګیدلے وی، او زخم ئې کړے وی نو خوړے ئې شے۔ دا روایت جصاص په "احکام القرآن" کښې په خپل سند سره ذکر کړے دے، په دے کښې شرط دا دے چه د غشی ویشتلو په وخت کښې ئې بسم الله وئیلی وی۔

کوم ښکار چه د ټوپک په ګولئ اولګی او هلاک شی هغه هم فقهاؤ د "موقوذه" په حکم کښې داخل کړے او حرام کړے دے۔ امام جصاص د حضرت عبد الله ابن عمر رض نه نقل کړے دے چه هغه به فرمائیل: اَلْمَقْتُوْلَةُ بِالْبُنْدُقَةِ تِلْكَ الْمَوْقُوْذَةُ: یعنی د ټوپک په ذریعه چه کوم جانور قتل کړے شو هم هغه "موقوذه" دے او حرام دے۔ امام ابو حنیفه، شافعی، مالک وغیره

ټول په دے متفق دی (قرطبی)

• اووم "مُتَرَدِّيه" یعنی هغه جانور چه دَ غرۀ کمر یا بل دَ لوړ ځائے نه ارتاؤ شی یا کوهی ته اوغورزیګی او مړ شی دغه هم حرام دے۔ په دے وجه دَ حضرت عبدالله ابن مسعودؓ نه روایت دے چه که یو ښکار په غر باندِ ولاړ وه او تا په غشی بسم الله اووے او دِ ویشتو او هغه دَ غشی دَ ګذار نه خکته ارتاؤ شو مړ شو نو دغه مه خوره۔

ځکه چه په دے کښے احتمال دے چه دَ دۀ مرګ دَ غشی دَ ګذار نه نه وی شوے دَ غورزیدو په وجه مړ شوے وی۔ نو دے به په "متردّیه" کښے داخل وی۔ دغه شان که په یو مرغۍ ئے دَ غشی ګذار اوکړه او هغه اوبو ته ارتاوه شوه نو دَ دے دَ خوراک نه ئے هم په دے وجه منع فرمائیلے ده چه دا احتمال دے چه دَ دۀ مرګ دَ ډوبیدو په وجه شوے وی (جصّاص)

او حضرت عدی بن حاتمؓ دا مضمون دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نه هم روایت کړے دے (جصّاص)

اتم "نطیحه" یعنی هغه جانور چه دَ ټکر او ښکر وهلو نه مړ شی۔ لکه دَ ګاډی موټر وغیره لاندے راشی مړ شی یا ئے بل جانور په ښکرو ونوا او وهی مړ شی۔

نهم هغه جانور چه بل درنده جانور ئے اوشلوی او مړ شی۔

دَ دے نهو قسمونو دَ حراموالی بیانولو نه پس دَ یو استثناء ذکر شوے دے فرمائی: اِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ: یعنی که په دے جانورانو کښے تاسو یو ژوندے بیامونده او ذبحه مو کړو نو حلال شو او خوړل ئے جائز دی۔

دا استثناء دَ اولنو څلورو قسمونو سره نه شی متعلق کیدے، ځکه چه په مُردار او وینه کښے خو دَ دے امکان نیشته او خنزیر او "مَا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللهِ" بچپل ذات کښے حرام دی ذبح کول او نه ذبح کول په دوی کښے برابر دی۔ په دے وجه حضرت علیؓ، ابنِ عباسؓ، حسن بصریؒ، قتادهؒ وغیره سلفو صالحینو په دے اتفاق دے چه دا استثناء دَ اولو څلورو نه پس یعنی دَ منخنقه او دَ دینه دَ وروستنو سره تعلق لری۔ نو په دے وجه مطلب دَ دے دا شو چه په دے ټولو صورتونو کښے که جانور ژوندے بیامونده شو دَ ژوند نښے په کښے وی۔

او په دے حالت کښے دَ الله په نوم ذبح کړے شو نو هغه حلال دے، خواه منخنقه وی یا موقوذه یا متردّیه او نطیحه یا کوم چه بل جانور خیرے کړے وی په دوی کښے په هر یو کښے چه دَ ژوند نښه وے او ذبحه شو نو حلال دے۔

نهم هغه جانور حرام دے چه په نُصُب ذبح کړے شوے وی۔ نُصُب هغه کاڼی دی کوم چه دَ کعبے نه چاپیره اودرَولے شوے وے او په جاهلیت کښے به دَ دوی عبادت کیده او جانوران به ئے را وستل دَ دوی په خوا کښے به ئے دَ دوی دَ پاره قربانول او دا به ئے عبادت ګڼړلو۔

دَ جاهلیت خلق دَ دے ټولو قسمو نو جانورانو دَ خوړلو عادیان وو کوم چه په خبائثو کښے داخل دی۔ قرآن کریم دا ټول حرام کړل۔

یولسم شے کوم چه دے آیت حرام کړے دے هغه "اِسْتِقْسَامْ بِالْاَزْلَامِ" دے۔ اَزْلَامْ؛ زَلَمْ؛ جمع ده؛ زلم؛ هغه غشی ته وئیلے شی کوم چه په جاهلیت کښے عربو دَ دے کار دَ پاره مقرر کړی وُو چه قسمت آزمائی به ئے پرے کوله۔ او دا اُوه غشی وُو چه په یو ئے "نَعَمْ" په بل ئے "لَا" او دغه شان نور الفاظ لیکلی وُو او دا غشی به دَ بیت الله دَ خادم سره وُو۔

کله چه به یو سړی خپل قسمت معلومولو یا دَ آئنده دَ پاره به ئے دَ یو کار فائده مند کیدل یا مُضِر کیدل معلومولو نو دَ کعبے خادم لره به لاړ شو او سل روپئ به ئے هغهٔ ته نذرانه ورکړه هغهٔ به دغه غشی دَ ترکش نه یو یو را ویستل که لفظ دَ "نعم" به پرے راو وتلو نو ګڼړل به ئے چه دا کار فائده مند دے۔ او که "لا" به را او وت نو ګڼړل به ئے چه دا کار نه دی کول په کار۔ دَ حرامو جانورانو په سلسله کښے دَ دے دَ ذکر کولو وجه دا ده چه دَ عربو دا هم عادت وُه چه یو څو کسان به شریک شو څهٔ اوښ وغیره به ئے ذبح کړو خو دَ غو ښے تقسیم به ئے دَ شرکت مطابق نه کولو بلکه دَ دے جوارئ په غشو به ئے تقسیم کولو۔ چه څوک به پکښے بالکل محرومه شو چا ته به ډیره زیاته او چا ته به دَ حق نه کمه ملاویده۔ په دے وجه دَ جانورانو دَ حرامولی سره ئے دَ دے کار حرامولے بیان کړو۔

عالمان فرمائی چه دَ راتلونکے زمانے حالات او دَ غیبو دَ څیزونو معلومولو

چه دَ قومو طريقو رواج دے خواه دَ جفر په ذريعه وي يا دَ لاس په كتو يا دَ فال ويستلو په ذريعه وي دا ټولے طريقے دَ "استقسام بالازلام" په حكم كښے دي۔

او دَ "استقسام بالازلام" لفظ كله دَ جوارئ دَ پاره هم وئيلے شي يكوم كښے چه دَ خسترى يا لاټرئ په طريقو سره حقونه مقرر كولے شي۔ دا هم دَ قرآن په نص باندې حرام دي۔ كوم چه قرآن كريم دَ ميسر په نوم سره منع كړي دي په دے وجه حضرت سعيد بن جبير، مجاهد، شعبي فرمائي چه څنګه رنګه عرب دَ ازلام په ذريعه حصے ويستلے، دغه شان په فارس او روم كښے په شطرنج چو سر وغيره مهرو سره دا كار اخستے شي، دا دَ ازلام په حكم كښے دي۔ (مظهري) دَ استقسام بالازلام دَ حرمت سره ارشاد فرمائي:

ذٰلِكُمْ فِسْقٌ: يعنے په دے طريقه قسمت معلومول يا حصے مقرر كول فسق يعنے ګمراهي ده دَ دے نه پس ارشاد فرمائي:

اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ۔

يعنې نن ورځ كفار ستاسو په دين دَ غالب راتلو نه مايوسه شوي دي ځكه اوس تاسو دَ دوي نه څه يره مه كوئ البته دَ الله تعالىٰ نه يره كوئ"

دا ايات دَ هجرت په لسم كال په حجة الوداع كښے دَ عرفے په ورځ په نبي كريم صلے الله عليه وسلم نازل شو، په دا سے وخت كښے چه مكه مكرمه او تقريبًا ټول عرب فتح شوي وُو، په ټول جزيرة العرب باندې اسلامي قانون جاري وُه۔ په دے وجه ئے او فرمائيل چه اوس نه وړاندے كفار دَ كومے منصوبے جوړه وَلے چه دَ مسلمانانو جماعت زموږ په مقابله كښے كم هم دے او كمزورے هم دے دا به ختم كړے شو۔ اوس په دوي كښے نه دغه حوصلے پاتے دي او نه پكښے دغه طاقت پاتے دے۔ نو مسلمانان دے دَ دوي دَ طرف نه مطمئن شي دَ خپل رب په اطاعت او عبادت كښے دے شروع شي۔

اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا:

دَ دے ايات دَ نزول خاص شان دے، دَ عرفے ورځ ده چه دَ ټول كال په ورځو كښے سرداره ده او اتفاقًا دا عرفه دَ جمعے په ورځ راغلے ده، چه دَ دے

فضيلتونه معلوم دی، مقام ميدانِ عرفات جبلِ رحمت ته نزدے دے - چه دعرفے په ورځ دَ الله تعالیٰ دَطرف نه دَرحمت دَ نزول خاص مقام دے - وخت ئے دماذ ئيگرنه پس دے چه په عامو ورځو کښے هم مبارک وخت دے - او خاص بيا دَجمعے په ورځ چه دَ دُعا دَ قبليد و ساعت دَ ډير و روايتونو مطابق په دے وخت کښے راځی - او دَعرفے په ورځ نور هم زيات په خصوصيّت سره دَ دُعا گانو دَ قبليد و خاص وخت دے -

دَحج دَ پاره دَمسلمانانو دَ ټولو نه لويه اوّله اجتماع ده چه تقريبًا يو نيم لاک صحابه کرامؓ په کښے شريک دی - رحمة للعٰلمينؐ دَصحابه کرامو سره دَ جبلِ رحمت لاندے په خپله اوښه "عَضباء" سور دے او دَحج په لوئے رکن يعنی وقوفِ عرفات کښے مشغول دے -

دَدے فضيلتونو برکتونو او رحمتونو په سورې کښے دا اياتِ کريمه په نبی کريم صلے الله عليه وسلم نازليږی - دَصحابه کرامو بيان دے چه کله په دوی دا آيت په ذريعه دَ وحی نازل شو نو دَ دستور مطابق دَ وحی درُوند والے او بوج دومره محسوس شو چه اوښه ئے ټيټه کړه تر دے چه مجبوره شوه او کيناسته -

حضرت عبد الله بن عباسؓ فرمائی چه دا آيت تقريبًا دَ قرآن آخری آيت دے - دَدے نه پس يو آيت هم دَ احکامو متعلق نه دے نازل شوے، صرف دَ ترغيب او ترهيب يو څو اياتونه دی چه نزول ئے دَدے اياتو نه پس خودَ لے شوے دے، دَ دے ايات دَ نازليد و نه پس نبی کريم صلے الله عليه وسلم په دے دنيا کښے صرف يو اتيا ورځے حيات وه ځکه چه دَسنه ۱۰ هجری په نهمه ذی الحجه دا آيت نازل شو او په سنه ۱۱ هجری دولسم دَ ربيع الاوّل نبی کريم صلے الله عليه وسلم وفات شو -

دا آيت چه په دے خاص شان او اهتمام سره نازل شو دَ دے منشاء هم دَملّتِ اسلام او مسلمانانو دَ پاره يو ډيره لويه خوشخبری او لوئے انعام او دَ اسلام يو امتيازی نښه او شان دے - چه خلاصه ئے دا ده چه حق دين او دَ الله تعالیٰ دَ نعمت اوچته درجه چه په دے دنيا کښے مخلوق ته

ورکید ونکے وه هغه نن مکمله کړے شوه - ګویا چه د حضرت آدم علیه السلام
د پیدا کیدونه پس د هغے وخت نه د کوم حق دین او الله تعالیٰ د نعمت نازلیدل
او رواج کیدل شروع شوی وُو، او په هره زمانه او هره حصه د زمکے چه د
حال مناسب دَدے نعمت یوه حصه د آدم اولادته ورکولے کیده نن هغه
دین او نعمت په مکمل صورت کښے په خاتم الانبیاء رسول الله صلے الله علیه وسلم
او د هغه امت ته ورکړے شو-

په دے کښے د ټولو انبیاوُ او رسولانو په ټولی کښے د سید الانبیاء صلے الله علیه وسلم د سعادت او لوئے شان اظهار خو دے سره سره د ټولو امتونو په مقابله کښے د امتِ مرحومه هم د یو خاص او اوچت شان بکاره ثبوت دے -

هم دا وجه ده چه یو وارے د یهودو یو څو عالمان د حضرت فاروقِ اعظمؓ په خدمت کښے حاضر شو او عرض ئے او کړو چه ستاسو په قرآن کښے یو داسے آیت دے چه که دا په یهودو باندِ نازل شوے وے نو دوی به د دهٔ د نزول د ورځے د خوشحالئ یو جشن منا واهه، فاروق اعظمؓ تپوس او کړو چه هغه کوم آیت دے؟ دوی دا آیت: اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ؛ اولوستو-

حضرت فاروقِ اعظمؓ ورته په جواب کښے او وے چه هاں مونږ پوهه یُو چه دا آیات په کوم ځائے کښے او په کومه ورځ نازل شوے دے-اشاره دے خپل طرف ته وه- چه دغه ورځ زمونږ د پاره د دوچندے خوشحالئ (عید) ورځ وه یعنی دوه اخترے وے په دغه ورځ چه یوه عرفه وَه او دویمه جمعه وه -

## د اخترا و خوشحالئ منا وهلو اسلامی اُصول

د فاروقِ اعظمؓ په دے جواب کښے د یو اسلامی اُصول طرف ته هم اشاره ده چه د ټولے دنیا په قومونو کښے صرف د اسلام یو امتیازی نښه ده - هغه دا چه په دنیا کښے هر قوم او د هر مذهب او ملّت خلق د خپلو حالاتو او خصوصیاتو لاندے د خپلو

خاصو خاصو تاریخي واقعاتو یادګارونه منا وهي - او دغې تاریخونو ته د دوی په نزد د یو اختر یا خوشحالۍ حیثیت حاصل وی -

چرته د یو لوئې سړی د پیدا ئښت یا مرګ یا په تخت د کېنا ستو ورځ منا وهلې شي او چرته د یو خاص ملک یا ښهر د فتح، یا د یو بل لوئې تاریخي واقعې چه مطلب ئې تېچا خاصو خلقو د عزت زیاتولو نه سوا نور هیڅ نه وی - اسلام د شخص پرستۍ قائل نه دے، اسلام د جاهلیت رسمونه او د سړو یادګارونه پاتې کړی دی د اصولو یعني په دین کښې د بنیادی خبرو او مقصد ونو یادګارونو قائمولو اصول ئې جوړ کړی دی -

حضرت ابراهیم علیه السلام ته ئې "خلیل الله" خطاب ورکړو او په قرآن حکیم کښې ئې د دهٔ د امتحانونو او د دهٔ د مکملې کامیابۍ ستائینه او کړه ﴿وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ﴾ مطلب دا دے - لیکن نه ئې د دهٔ د پیدائښت ورځ منا ؤ کړه نه د مرګ، او نه ئې د دهٔ د بچی حضرت اسمٰعیل علیه السلام او د دهٔ د مور بي بي د پیدائښت او مرګ یا نورو حالاتو څهٔ یادګار قائم کړو -

البته د دوی په کارونو کښې چه کوم څیزونه د دین د مقصد ونو سره متعلق وو د هغوی یادګارونه ئې نه صرف محفوظ پاتې کړه بلکه د راتلونکو نسلونو د دین او منهب جزو نه او فرض او واجب ئې مقرر کړه - قرباني، خُتنه (سُنتول) د صفا مروه په مینځ کښې منډه، په منیٰ کښې درے ځایه کیڼو ویشتل دا ټول د دغې بزرګانو د داسے کارونو یادګارونه دی چه دوی خپل نفساني جذبات او خپل طبعي خواهشونه د الله تعالیٰ د رضا حاصلولو د پاره پرېښول او دا کول ئې - او پکو موکښې چه د هرے زمانے او هر وخت خلقوته د دے خبرے سبق ملاؤ شي چه مخلوق لره د خدائے د رضا حاصلولو د پاره د خپل خوښ نه خوښ شے قربانول پکار دی -

دغه شان اسلام د لوئې نه د لوئې سړی د مرګ او ژوند یا د دهٔ د شخصی حالاتو د څهٔ ورځے منا وهلو په ځائے د دوی د عملونو ورځے منا ؤ کړی دی چه د څهٔ خاص عبادت سره ئې تعلق دے . لکه شب برات، رمضان المبارک، شبِ قدر، یومِ عرفه، یومِ عاشوره وغیره ، اختر و نه ئې صرف دوه مقرر کړه،

او هغه هم خاص په دیني لحاظ سره- او لنبې اختر د روژې په ختمېدو بانديې او د حج د میاشتو په شروع کېدو، او دویم اختر د حج د عبادت نه په فارغ کېدو باندې مقرر شو-

لنډه دا ده چه د حضرت فاروق اعظم رض د دې جواب نه دا معلومه شوه چه د یهودو او نصاراؤ په شان زمونږ اخترونه د تاریخي واقعاتو تابع نه دي- چه یکوم تاریخ څهٔ اهمه واقعه شوې ده د هغې مونږ اخترمناؤ کړو لکه چه د جاهلیت رسم وُه، او د نن صبا جاهلیت دا نور هم زیات خور کړې دې- تر دې چه د نورو قومونو نه ئې نقل اوکړه مسلمانان هم په دې کښې اخته شو-

عیسایان د حضرت عیسیٰ علیه السلام د پیدائش د ورځې اخترمناوُ حي نو مسلمانانو هم د دوی نه نقل اوکړه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د پیدائش په ورځې بانديې د عید میلاد النبي په نوم سره عید میلاد جوړ کړو په دې ورځې په بازارونو کښې جلوسونه اوباسي او قسم قسم خرافات په کښې کوي او د شپې چراغان کوي او دا هر څهٔ عبادت ګنړي- چه د دې هیڅ اصل د اصحابو تابعینو او د امت د نورو مشرانو په عمل کښې نه ملاویګي-

او حقیقت خو دا دې چه د ورځو مناو هلو طریقه په هغه قومونو کښې چلیدې شي چه د باکماله افرادو او د دوی د حیرانونکو کارنامو په لحاظ سره مُفلسان وي دوه څلور کسان په ټول قوم کښې د دې قابل وي او د دوی هم څه مخصوص کارونه داسې وي چه یادګار مناو هل ئې قومي فخر ګنړلې شي-

په اسلام کښې که د دې ورځو مناو هلو رسم شروع شي نو د یو لاک شلو زرو نه زیات خو انبیاء علیهم السلام دي چه په دوی کښې د هر یو نه صرف پیدائش بلکه د دوی د حیرانونکو کارنامو یو اوږد فهرست دې چه ورځې مناو هل بهرئې پکار وي- د انبیاؤ نه پس چه د خاتم الانبیاء "صلی الله علیه وسلم پاک ژوند ته اوکتلې شي- نو د دوی د ژوند شائد یوه ورځ د داسې کارنامو نه خالي نه ده- د دوی به هم دا ورځې مناو هل پکار وي- د ورکوتوالي نه واخله ترځوانئ پورې د دوی هغه کمالات چه ټولو عربو پرې ورلوه د امین لقب ورکړې وُه

وَلې هغه داسې نه دي چه مسلمانان دې يادګار ونه مناؤ کړي - بيا دَ قرآن نزول هجرت، غزوه بدر، احد، خندق، فتح مکه، حنين، او تبوک او ټولې غزاګانې دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم دي، يوه هم داسې نه ده چه يادګار ونه ئې مناؤ نه شي. دغه شان دَ دوئ په زرګونو معجزات دَ يادګارونو منا وهلو خيز وُ نه دي - او که په غور سره دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم په ژوند نظر واچوَلې شي نو دَ دوئ دَ پاک ژوند هره ورځ هره ګنټه دَ يادګار منا وهلو قابله ده -

دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم نه پس دَ دوئ يو نيم لاک صحابه کرام رض هغهٔ دي چه په دوی کښې هريو په حقيقت کښې دَ نبي کريم صلی الله عليه وسلم ژوندې معجزه ده - نو دا به بيا بے انصافي نه وي چه دَ دوي يادګار ونه مناؤ نه شي - او که دا رسم او چليګي نو بيا دَ امت په مشرانو، اولياؤ، علماؤ، مشائخو، نظر واچوئ چه دَ کروړونو په شمار کښې دي نو که يادګاري ورځې مناو هل وي نو دَ دوی ياتے کول به دَ دوی په حق کښې بے انصافي او قدرنا شناسي وي - او که دا مقرر کړې شي چه دَ ټولو ورځې دې منا وېګي نو په ټول کال کښې به يوه ورځ هم بيا موبرته دَ يادګار منا وَهلو نه خالي پاتې نه شي، بلکه دَ هرې ورځې په هره يو ګنټه کښې به څو څو يادګار ونه او څوڅو اختر ونه منا وهل وي -

په دې وجه بني کريم صلی الله عليه وسلم او صحابه کرامو رض دې رسم لوه دَ جاهليت رسم مقرر کړو نظر انه انځئ کړو- دَ حضرت فاروق اعظم رض په دې فرمان کښې دې طرف ته اشاره ده -

اوس دَ آيات معنی او مطلب په تفصيل سره واوُرئ - په دې کښې الله جل شانهٗ نبي کريم صلی الله عليه وسلم او دَ هغوی امت مرحومه ته دَ درې خصوصي انعامونو ورکولو زيرے ورکړے دے. يو دَ دين دَ مکمل کولو، دويم دَ نعمت پوره کولو، دريم دَ اسلامي شريعت دَ دې امت دَ پاره دَ منتخب کولو -

دَ دين دَ مکمّل کولو معنی ترجمان القرآن دَ حضرت عبد الله بن عباس رض وغيره نه دا بيان کړې ده چه " نن دَ حق دين ټول حدونه فرض او احکام او آداب مکمّل کړې شو اوس په دې کښې نه دَ څهٔ زياتي او اضافې کولو ضرورت پاتے دے او نه په کښې دَ کمي کولو څهٔ احتمال شته" (روح) دا وجه ده چه دَ دې نه پس دَ اسلامي

شریعت څه نوے حکم نازل نه شو۔ یو څو آیاتونه دَدے نه پس نازل شوی دی چه په دوی کښې یا دَ ترغیب او ترهیب بیان دے او یا دَ مخکې احکامو تاکید دے دَ کومو ذکر چه وړاندے شوے وُه۔

او دا خبره دَ دے منافی نه ده چه دَ اصولو او اجتهاد په ذریعه امامانِ مجتهدین دَ نوی نوی پېښ شوو واقعاتو او حالاتو متعلق دَ خپل اجتهاد نه شرعی احکام بیان کړی۔ ځکه چه قرآن مجید څنګه چه دَ شرعی احکامو حدونه او فرائض وَ غیره بیان کړی دی۔ دغه شان دَ اجتهاد اُصول هم قرآن کریم مقرر کړی دی دَ دے په ذریعه چه کوم احکام دَ قیامته پورے را وړاندې شی هغه ټول په یو حیثیت سره دَ قرآن بیان کړی شوی احکام دی۔ ځکه چه دَ دغې اُصولو لاندې دی کوم چه قرآن بیان کړی دی۔

لنډه دا ده چه دَ: دین مکمل کولو: مطلب دَ حضرت عبد الله بن عباس رض دَ تفسیر مطابق دا دے چه "دَ دین ټول احکام مکمل کړے شو او س نه په دے کښې دَ څهٔ زیاتی کولو ضرورت پاتے دے او نه دَ منسوخ کولو او کمی احتمال" ځکه چه دَ دے نه پس متصل دَ وحی سلسله دَ نبی کریم صلے الله علیه و سلم دَ وفات سره قطع کیدونکے وه۔ او بغیر دَ وحی الٰهی نه دَ قرآن څهٔ حکم نه شی منسوخ کیدے۔ او کوم چه په ظاهره په احکامو کښې زیاتے دَ اجتهاد دَ اصولو لاندے دَ فقهاؤ مجتهدینو دَ طرف نه او شو۔ هغه په حقیقت کښې زیاتے نه دے بلکه دَ قرآن دَ حکمونو وضاحت او بیان دے۔

او دَ: نعمت پوره کولو نه: مراد دَ مسلمانانو غلبه او اوچت والے دے او دَ دوی دَ مخالفینو مغلوب کیدل او فتح کیدل دی۔ چه دا دَ مکے مکرمے په فتح کیدو او دَ جاهلیت دَ رسمونو په ورانولو او په دے کال په حج کښې دَ یو مشرک په نه شریکیدلو سره ښکاره شو۔

دلته په الفاظو دَ قرآن کښې دا یوه خبره هم دَ کتو قابله ده چه دَ دین سره ئې لفظ دَ اکمال او دَ نعمت سره ئې لفظ دَ اتمام استعمال کړو۔ حال دا دے چه دا دواړه لفظونه په ظاهره سره په معنیٰ کښې یو شان او دَ یو بل مرادف ګڼړلے شی۔

لیکن په حقیقت کښې دَ دے دواړو په مطلب کښې یو فرق دے چه په مفردات القرآن کښې امام راغب اصفهانیؒ دا سے بیان کړے دے چه دَ یو شی: اِکمَال او تکمیل: دے ته وائي چه دَ دغه شی سره کوم غرض او مقصود وُه هغه پوره شو- او دَ لفظ دَ اتمام: معنی دا ده چه اوس بل شی ته ضرورت او حاجت نه دے پاتے-

په دے وجه دَ اکمال دین: مطلب دا شو چه دَ الله تعالیٰ دَ دین دَ احکامو او قانون چه دے دنیا ته دَ لیږلو کوم مقصد وُه هغه نن پوره کړے شو- او دَ نعمت تمام کولو مطلب دا شو چه اوس مسلمانان هیڅ ته محتاجه نه دی دوی لره پخپله الله تعالیٰ جل شانه غَلَبَه قوّت او اقتدار ورکړو چه دَ دے په ذریعه به دوی دَ حق دین حکمونه جاری او نافذ کړے شی۔

دلته دا خبره دَ غور قابل ده چه په دے ایات کښې ئے دَ دین نسبت مسلمانانو ته کړے دے او دَ نعمت نسبت حق تعالیٰ طرف ته، وجه دا ده چه دَ دین ښکاره کیدل دَ هغو عملونو او کارونو په ذریعه کیږی کوم چه دَ اُمّت افراد کوی او دَ نعمت تکمیل براه راست دَ الله تعالیٰ دَ طرفه دے (ابن قیم، تفسیر القیم)

دَ دے تقریر نه دا هم ښکاره شوه چه نن دَ دین دَ مکمّل کیدو دا مطلب نه دے چه دَ تیرو پیغمبرانو دین ناقص وُه، بلکه لکه څنګه چه په تفسیر بحر محیط کښې په حواله دَ قفال مروزی رحمة الله علیه نقل کړے دے چه دین دَ هر نبی او رسول دَ هغهٔ دَ زمانے په اعتبار سره کامل او مکمّل وُه- یعنی په کومه زمانه کښې چه کوم پیغمبر ته شریعت او دین دَ الله دَ طرفه نه نازل کړے شو، دَ هغه زمانے او دَ هغه قوم په لحاظ سره هغه کامل امکمّل وُه لیکن دَ الله جل شانه په علم کښې دا تفصیل دَ مخکښې نه وُه چه کوم دین دَ دے زمانے او دَ دے قوم دَ پاره مکمّل دے هغه به دَ راتلونکے زمانے او راتلونکو قومونو دَ پاره مکمّل نه وی، بلکه دا به منسوخ کړے بل دین او شریعت به نافذ کولے شی په خلاف دَ اسلامی شریعت نه چه دَ ټولو په اخر کښې نازل شو چه دے دَ هر طرف او هر لحاظ نه کامل او مکمّل دے نه دے دَ څهٔ خاص زمانے سره مخصوص دے او نه دَ څهٔ خاصے تکړے، مُلک یا قوم سره، بلکه تر قیامته پورے دَ هرے زمانے هرے تکړے هر قوم دَ پاره دا شریعت کامل او مکمّل دے۔

دریم انعام چه ئې دې امت مرحومه ته په دې آیات کښې بیان کړے دے هغه دا دے چه دې اُمّت د پاره الله جلّ شانهٗ د اسلام دین منتخب کړو چه په هر حیثیت سره کامل او مکمّل دے او په کوم چه د نجات یعنی د عذاب نه د خلاصی انحصار دے۔

نجوړ د خبرے دا دے چه دے آیات دا او خوده چه د اُمّتِ مرحومه د پاره دین د اسلام یو لوئے نعمت دے چه دوی ته بخلے شوے دے او دا دین دے چه په هر حیثیت او جهت سره کامل او مکمّل دے۔ نه به د دهٔ نه پس څهٔ نوے دین راشی او نه به په دے کښې څهٔ کمے زیاتے اوشی۔

دا وجه ده چه کله دا آیات نازل شو نو عام مسلمانان د دے په آوریدو خوشحالیدل لیکن حضرت فاروق رضی الله عنه جړل۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دهٔ نه د ژړا پتوس اوکړو نو دهٔ عرض اوکړو چه د دے آیات نه دے طرف ته اشاره معلومیګی چه اوس ستاسو پاتے کیدل په دے دنیا کښې ډیر کم دی ځکه چه د مکمّل کیدو سره د رسول د لیګلو ضرورت هم پوره شو۔ نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دوئ تصدیق او فرمایه ۔ (تفسیر بحر محیط وابن کثیر وغیره)

چنانچه د اتلو نکی وخت دا او خوده چه د دے نه صرف یو اتیا ورځے پس نبی کریم صلے الله علیه وسلم د دے دنیا نه رخصت شو۔

د آیات په آخر کښې د: فَمَنِ اضْطُرَّ فِيْ مَخْمَصَةٍ: تعلّق د هغه جانورانو سره دے د کومو د حرام والی بیان چه د آیات په شروع کښې راغلے دے۔ او د دے جملے مطلب یو خاص حالت د عامے قاعدے نه مستثنیٰ کول دی چه که یو سړے د ډیرے لوګے نه بے آرامه شی او د مړکیدو خطره ورته راوړاندې شی نو په داسے حالت کښې که دے د دغه بره ذکر شو حرام جانورانو نه څهٔ اوخوری نو د دهٔ د پاره ګناه نه دے۔ مګر شرط دا دے چه کیدهٔ چکول او مزهٔ حاصلول ئې مقصود نه وی بلکه صرف دومره او خوری چه قدرے لوګه ئې پرے دفع شی۔

په آیات کښې د: غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ: دا مطلب دے چه په دے خوراک سره د دهٔ میلان ګناه طرف ته نه وی بلکه صرف لوګه دفع کول وی۔

په اخر کښې د: إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ: نه دے ته اشاره ده چه د احرام شوي د غه وخت هم په څېل ځائے حرام دي صرف د دې د لوګے په وجه معاف شوده ته -

يَسْئَلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ ط قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ

پتوس کوي ستا نه چه څه شے د دوی د پاره حلال دے - او وایه چه تاسو لره حلال دي

الطَّيِّبٰتُ لا وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ

پاک څیزونه او کوم چه عادت کړی تاسو ښکاري جانور په ښکار د رپښودو باندې چه دوي ته

تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللَّهُ ز فَكُلُوْا مِمَّآ أَمْسَكْنَ

ازده کوئ د هغې نه چه الله تعالی تاسو ته ازده کړی دي، پس خورئ د هغې نه چه اونیسي دوی

عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللَّهِ عَلَيْهِ ص وَاتَّقُوا

ستاسو د پاره او د الله نوم اخلئ په دے باندې - او ویره کوئ

اللَّهَ ط إِنَّ اللَّهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ۝

د الله نه - بے شکه الله ډیر زر حساب اغستونکے دے -

د ایاتو نوټرون

په تیرو ایاتو نو کښې د حلالو حرامو جانورانو ذکر وه په دے ایات کښې د دے معاملے متعلق د یو سوال جواب ذکر دے - بعضے صحابه کرامو د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه د ښکاري سپي او باز د ښکار کولو د حکم پتوس کړے وه په دے ایات کښې د دے سوال جواب ذکر دے -

## لنډ تفسير

خلق ستا نه پتوس کوی چه (د سپي او باز په ښکار شوو جانورانو کښې) کوم کوم

جا نوران دَ دوی دَ پاره حلال شوی دی (یعنی څومره حلال ښکار چه په ذبح سره حلالیګی نو آیا دَ سپی او باز په ښکار کولو سره دغه ټول حلال وی یا په دوی کښې څۀ خاص جا نوران حلالیګی یا مطلق یو هم حلال نه دے؟ او کوم چه حلال وی نو آیا دَ دوی دَ پاره څه شرط هم شته؟) تاسو (په جواب کښې) اُووایئ چه ستاسو دَ پاره ټول حلال جا نوران (چه دَ ښکار دَ قسم نه دَ ووړاندِ نه حلال دی هغه ټول دَ سپی او باز په ذریعه په ښکار کولو سره هم) حلال کړی شوی دی، (دا دَ سوال دَ اول جُز جواب دے، وړاندِ دَ بل جُز جواب دا دے چه دَ سپی او باز دَ ښکار دَ حلالیدو دَ پاره څه شرائط دی هغه دا چه) کوم ښکاری جانوران ته (مثلاً سپی باز وغیره ته) تاسو (په خاص طور چه بیان ئے وړاندِ راځی) تعلیم ورکړئ (دا یو شرط دے) او تاسو هغۀ له (په ښکار پسے) ورخلاص هم کړئ (دا دویم شرط دے) او دوی له (کوم تعلیم ورکول چه بره ذکر شو) په دغه طریقه سره تعلیم ورکړئ کوم چه تاسو ته الله تعالیٰ (په شریعت کښې) تعلیم دَرْ کړے دے (هغه طریقه دا ده چه سپی ته داسے تعلیم ورکړے شی چه هغه ښکار کوی خو خوری ئے نه، او باز ته داسے تعلیم ورکړے شی چه کله هغه را بلی نو فوراً راځی اګرچه په ښکار پسے روان وی دا دَ اول شرط بیان دے)

نو داسے ښکاری جا نور چه کوم ښکار ستاسو دَ پاره او نیسی هغه خو رئ، (دا دریم شرط دے چه نښنه ئے دَ تعلیم په طریقه کښې بیان شوے ده. پس که سپے دے ښکار له خوری یا باز په رابللو سره واپس نه راځی نو ګنړلے به شی چه هر کله دا جا نور دَ دۀ خبره نه مَنِی نو ښکار هم دۀ ځانله کړے دے دۀ له ئے نه دے کړے) او (کله چه په ښکار باندے دغه ښکاری جا نوَرْ وَرْ پریدئ نو دَ هغه جانور په ورپریښودو دَ الله تعالیٰ نوم پورے اخلئ (یعنی دَ ورپریښودو په وخت کښې بسم الله وایئ، دا څلورم شرط دے) او (په ټولو کارونو کښې) دَ الله تعالیٰ نه ویره کوئ (مثلاً په ښکار پسے دومره مه ورپسے کیږئ چه مونځ وغیره درنه پاتے شی یا دومره حرص مکوئ چه دَ حلال والی دَ شرطونو پوره کولو بغیر دغه جا نورا وخورئ) بے شکه الله تعالیٰ زر حساب اَخستو نکے دے.

۲

# معلومات او مسئلې

په دې ذکر شوی سوال جواب کښې د ښکاري سپي باز وغیره په ذریعه د ښکار حلالیدو د پاره څلور شرطونه ذکر شوي دي -

اوّل دا چه سپے یا باز پوهه کړې شوې وي او تعلیم ورته ورکړې شوې وي، او د پوهه کولو یئ دا اصول مقرر کړي دي چه کله تا سو سپے په ښکار پسې ور پریدئ نو هغه ښکار نیسي او تا سو لره ئې راوړي پخپله ئې نه خوري - او د باز د پاره یئ دا اُصول مقرر کړي دي چه کله تا سو دې واپس راغواړئ نو دې فورًا راځي اګرچه په ښکار پسې روان وي - نو کله چه دا ښکاري جانوران داسې برابر شي نو دا دې نه ثابته شوه چه دوي کوم ښکار کوي دا ستاسو د پاره کوي د خپل ځان د پاره ئې نه کوي - او س د دې ښکاري جانورانو ښکار به ستاسو ښکار ګڼړلے شي - او که څهٔ وخت دوي د دې تعلیم نه خلاف اوکړي مثلًا سپے پخپله د خپل ښکار په خوراک شروع اوکړي یا باز ستاسو په راغوښتو رانه شي نو اوس دغه ښکار ستاسو ښکار نه شو - نو په دې وجه د دې خوړل جائز نه دي -

دویم شرط دا دې چه تا سو فورًا سپے یا باز پخپله اراده سره په ښکار پسے پریښئ دا سې نه چه هغهٔ پخپله په څهٔ ښکار پسے اونغلی او ښکار ئې کړي په ذکر شوي ایات کښې ئې د دې شرط بیان په لفظ د: مکلبین: سره کړې دے دالفظ په اصل کښې د تکلیب نه مشتق دے چه اصلي معنی ئې سپو ته ازده کول دي بیا د عامو ښکاري جانورانو د پوهه کولو په ښکار د ورپځولو د پاره هم استعمالیږي د جلالین صاحب د لته د مکلبین تفسیر په ارسال سره کوي چه معنی ئې په ښکار باندې پرېښودل دي - او په تفسیر قرطبي کښې هم دا قول نقل شوې دے -

دریم شرط دا دې چه ښکاري جانور ښکار پخپله نه خوري بلکه تا لره ئې راوړي د دې شرط بیان په : مِمَّآ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ : سره شوې دے -

څلورم شرط دا دې چه کله ښکاري سپے یا باز په ښکار پریدې نو بسم الله وایه ورپریده ئې - هر کله چه دا څلور شرطونه پوره شو نو که ښکار تا سو تـه

دَ دا رسیده و نه و پهاند ے ساه ور کړے وی نو هم حلال دے دَ ذبح کولو ضرورت ئے نیشته، او که ژوندے نه وی نو بغیر دَ ذبح کولو نه به تاسو لره حلال نه وی۔

دَ امام اعظم ابو حنیفه رح په نزد یو بل هم شرط دا هم دے چه دا ښکاری جانور ښکار زخمی هم کړی۔ دَ دے شرط طرف ته په لفظ دَ جَوَارِحِ کښے اشاره موجوده ده۔

**مسئله:** دا حکم دَ هغه وحشی جانورانو دے چه په خپله قبضه کښے نه وی، او که یو وحشی جانور ئے په خپل قابو کښے راوستے وی۔ نو دے بیا بغیر دَ باقاعده ذبحے نه نه حلالیږی۔

دَ آیات په آخر کښے ئے دا هدایت هم کړے دے چه ښکار خو دَ جانور په ذریعه الله تعالیٰ حلال کړے دے، مګر په ښکار پسے وَرپسے کیدل موږ او ضروری شرعی احکام پاتے کول جائز نه دی۔

اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ؕ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ

نن حلال شو تاسو لره ټول پاک څیزونه۔ او دَ اهلِ کتابو خوراک

اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ۪ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ۫

تاسو لره حلال دے - او ستاسو طعام دوی لره حلال دے۔

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ

او حلالے دی تاسو لره پاکدامنے ښځے مسلمانانے او پاکدامنے ښځے دَ هغو نه

الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ

چه ورکړے شوے دے ورته کتاب دَ مخکښے ستاسو نه کله چه ورکړئ دوی ته

اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ وَلَا مُتَّخِذِيْٓ

مهرونه دَ دوی۔ په قید کښے راوستو لره نه مستی ویستلو لره او نه پټه یارانه

أَخْدَانٍ ۗ وَمَن يَكْفُرْ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهُ

کونکے - اوخوک چه منکرشو د ایمان نه نو ضائع شو محنت د ده

وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ ۝٥ ع ٥

او په اخرت کښے به دے د تاوان کونکو نه وی -

# لنډ تفسير

نن (په تاسو لکه څنګه چه دینی ابدی انعام اوشو چه په کاملیدو د دین سره مشرف کړے شوئے دغه شان یو غوره ابدی دینوی انعام د بانده هم اوشو چه) ستاسو د پاره حلال څیزونه (چه د دے نه وړاندے حلال کړی شوی وو د همیشه د پاره) حلال کړے شو (چه چرته به منسوخ نه شی) او کوم خلقو ته چه (ستاسو نه مخکښے اسمانی) کتاب ورکړے شوے دے (یعنی یهودو و نصارا) د دوی ذبیحه (هم) تاسو لره حلاله ده او (د دے حلال والے داسے یقینی دے لکه چه) ستاسو ذبیحه دوی لره حلاله ده او پاکدامنے ښځے هم کومے چه مسلمانانے وی (تاسو لره حلالے دی) او (لکه څنګه چه د مسلمانو ښځو حلالوالے یقینی دے دغه شان) پاکدامنے ښځے د دغو خلقو نه هم کوم چه ستاسو نه ورته اول کتاب (اسمانی) ورکړے شوے دے (تاسو لره حلالے دی) کله چه تاسو دوی ته د دوی مهرونه ورکړئ (یعنی مهر ورکول اګر چه شرط نه دی مګر واجب دی او ذکر شوے ښځے کومے چه حلالے شوے دی نو) داسے چه تاسو (دوی لره) ښځے جوړه وئ (یعنی په نکاح کښے ئے راولئ چه د دے شرطونه په شریعت کښے معلوم دی) نه چه ښکاره بدکاری کوئ او نه پټه اشنائی کوئ (دا ټول د شریعت احکام دی چه ایمان پرے راوړل فرض دی) او کوم سړے چه د ایمان (راوړلو) د وړ څیزونو (نو) سره کفر کوی (یعنی د قطعی حلالو د حلالوالی نه یا د قطعی حرامو د حرام والی نه انکار اوکړی) نو د داسے سړی (ټول نیک) عمل خراب شو او دغه سړے به په اخرت کښے بالکل زیان کاروی (پس حلال حلال او حرام حرام اوګڼئ) -

# معلومات او مسائل

د سورتِ مائده په اولنی آیات کښے ئے د ساتونکو څاروو بیزے غوا، مینبے وغیره د حلال والی بیان کړے وه په دریم آیات کښے د نهٔ قسمو حرامو ځناورانو تفصیل ذکر دے تفصیل په اولنۍ جمله کښے ئے د دے ټول باب یوځوړ داسے بیان کړے دے چه په دے سره د ځناورانو د حلال والی او حرام والی خاصیت هم معلوم شو او د دے معیار او اُصول هم۔

ارشاد دے: "اَلْیَوْمَ اُحِلَّ لَکُمُ الطَّیِّبٰتُ" یعنی نن ستاسو د پاره حلال شو ټول پاک صاف څیزونه" د نن نه مراد هغه ورځ ده پکومه کښے چه دا آیات او د دینه اولنی آیاتونه نازل شوی دی یعنی د حجة الوداع سنه ۱۰ھ ورځ د عرفے، مطلب دا دے چه لکه څنګه ستاسو د پاره نن ستاسو دین مکمّل کړے شو او د الله تعالیٰ نعمت په تاسو پوره شو۔ دغه شان د الله تعالیٰ پاکیزه څیزونه چه د مخکښے نه هم ستاسو د پاره حلال وُو د همیشه د پاره حلال مقرر شو، او د دے د منسوخ کید و احتمال ختم شو، ځکه چه د وحئ سلسله په ختمید و بانده ده۔

په دے جمله کښے د طیبا تو د حلال لید و بیان دے، او په یو بل آیات کښے دا ارشاد دے: "یُحِلُّ لَهُمُ الطَّیِّبٰتِ وَ یُحَرِّمُ عَلَیْهِمُ الْخَبٰٓئِثَ"، یعنی حلالوی د دوی د پاره "طیبات" او حراموی په دوی بانډ "خبائث" په دے کښے د طیبات په مقابله کښے ئے خبائث ذکر کړه د دواړو لفظونو حقیقت ئے ښکاره کړو۔

په لغت کښے طیبات پاک صاف او خوندناکو څیزونو ته وئیلے شی۔ او خبائث د دے په مقابله کښے ګنده او د کرکے څیزونو ته وئیلے شی، نو په دے وجه د آیات د دے جملے دا او خوره چه څومره څیزونه پاک صاف فائده مند او پاکیزه دی هغه د انسان د پاره حلال شو، او کوم چه ګنده او د کرکے څیزونه دی او ضررناک دی هغه حرام کړے شو۔ وجه دا ده چه انسان د نورو ځناورو نو پشان نه دے چه د دهٔ د ژوند مقصد په دنیا کښے خوړل، سکل، او ده کیدل او ویخیدل تر مرګه پورے محدود دی۔ دهٔ له الله پاک د کائنا تو مخدوم جوړ کړے دے

دَ یو خاص مقصد دَپاره، او دغه لوئ مقصد دَ پاکیزه اخلاقو نه بغیر نه حاصلیږي
په دے وجه به اخلاقه انسان په حقیقت کښې دَ انسان ویلو قابل نه دے۔

لکه قرآن کریم دَ داسے خلقو په باره کښې فرمائي: بَلْ هُمْ اَضَلُّ: یعني دوی دَ
څاروُو نه هم زیات ګمراه دي، او هر کله چه دَ انسان دَ انسانیت مدار دَ اخلاقو
په اصلاح باندے دے نو ضروري ده چه څو مره څیزونه دَ انسان اخلاق ګنده او خراب
کونکي دي دَ دوی نه دَ ده مکمل پرهیز پکار دے۔ دَ انسان په اخلاقو باندے دَ ده
دَ ماحول دَ څیزونو او دَ ده دَ سوسائټۍ اثر کیدل هر سړے پیژني۔ نو هر کله
چه دَ ماحول څیزونه دَ انسان په اخلاقو اثر اچوي نو کوم شے چه دَ ده دَ بدن
جز و جوړیږي دَ هغے نه به دَ ده اخلاق څو مره متأثره کیږي، په دے وجه دَ خوراک
څکاک په ټولو څیزونو کښے دَ دے احتیاط لازمي شو۔ دَ غلا، ډاکے، رشوت،
سُود، جوارئ وغیره حرامے آمدنئ دَ رزق نه چه کوم بدن جوړیږي هغه به لازمي
طور دَ انسانیت نه لرے او شیطنت ته نزدے وي۔

په دے وجه دَ قرآن کریم ارشاد دے: يَاۤ اَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوْا مِنَ الطَّيِّبٰتِ
وَاعْمَلُوْا صٰلِحًا: په حلال خوراک سره دَ نیک عمل کولو حکم ورکړے شوے دے
ځکه چه دَ حلال خوراک نه بغیر دَ نیک عمل هیڅ و تصوّر نشي کیدے۔

او خاص بیا غوښه چه دَ انسان دَ بدن اهم جز و جوړیږي په دے کښې دَ دے
احتیاط دَ ټولو نه زیات ضروري دے، چه څه داسے غوښه دَ ده په خوراک کښې
داخله نشي چه دَ ده اخلاق خراب کړي۔ دغه شان هغه غوښه چه په جسماني
طور سره دَ انسان دَ پاره مضره ده چه دَ بیمارئ او هلاکت جراثیم په کښې دي۔ دَ
دے نه دَ انسان پرهیز ضروري کیدل خو هر سړے پیژني۔ څو مره څیزونو ته
چه شریعت خبائث ویلي دي هغه به یقیني طور سره دَ انسان جسم یا روح
یا دواړه ورله خرابونکي او دَ انسان روح یا اخلاقو لره تباه کونکي دي۔ په دے
وجه ئے دا حرام کړه۔ دَ دے په مقابله کښې په طیّبٰتو سره دَ انسان دَ جسم او روح
تربیت او دَ ښو اخلاقو پرورش کیږي دائے حلال کړه، غرض دا دے چه دَ قرآن
کریم جملے: اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ: دَ حلالو او حرامو فلسفه هم او خودله او دَ دے
اُصول ئے هم او خودل۔

اوس دا خبره چه کوم څیزونه طیّبات یعنی پاک صاف فائده منده او خوندناک دی، او کوم خبائث یعنی گنده مُضر او ورکړکے دی، ددے اصل فیصله د روغ او سلیم طبیعت په مینه او نفرت باندے ده۔ دا وجه ده چه کوم څیزونه جانوران اسلام حرام کړی دی د هرے زمانے سلیم طبع انسان دغے لره گنده او ورکړکے گنړلی دی لکه مردار جانور، وینه، البته بعضے وخت جاهلانه رسمونه په طبیعت باندے غالب راشی نو د مینه او بد تمیز ورک شی، یا د بعضے څیزو نو خبیثوالے پټ وی نو په داسے معاملو کښے د انبیاؤ علیهم السلام فیصله د ټولو د پاره دلیل دے ځکه چه په افرادو د انسان کښے د ټولو نه زیات سلیم طبع انسان انبیاء علیهم السلام دی چه دوی لره الله تعالیٰ په خاص طور سره فطرت سلیمه ورکړے دے او بیخیله ئے ورلره تربیت ورکړے دے او چاپېره ئے تر دے د فرښتو پهره لګولے ده چه د دوی زړه او دماغ او اخلاق د څهٔ غلط ماحول نه متأثره کیږی نه۔ دوی چه کوم څیزونو ته خبائث وئیلی دی هغه په حقیقت کښے خبائث دی۔ او کوم ته چه ئے طیّبات وئیلی دی هغه په حقیقت کښے طیّبات دی۔

چنانچه د نوح علیه السلام د زمانے نه د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلّم د زمانے مبارکے پورے هر پیغمبر مردار جانور او خنزیر وغیره د حراملو بیخیل خپل وخت کښے اعلان فرمائیلے دے چه ددے نه معلومه شوه چه دا شیونه داسے خبائث دی چه د هرے زمانے سلیم طبع حضراتو دوی لره گنده او مُضر گنړلی دی۔

حضرت شاه ولی الله قدس سرهٔ په حجة الله البالغه کښے فرمائیلی دی چه څومره جانوران اسلامی شریعت حرام کړی دی په دے ټولو چه غور د اوکړے شی نو ښکاره ئے د دوه اُصولو لاندے راځی یو دا چه یو جانور د خپل او د طبیعت په اعتبار سره خبیث وی، دویم دا چه د دهٔ ذبح په غلطه طریقه وی چه نتیجه به ئے دا وی چه دے به د ذبحے په ځائے یعنی د ذبحه کیدو په ځائے میته یعنی مردار ره شی۔

د سورت مائده په دریم آیات کښے ۱۰ څیزونه حرام خودلی شوی دی په دوی کښے خنزیر په اول قسم کښے داخل دے، باقی آتهٔ قسمونه په دویم کښے

قرآن کریم: وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ: او فرمائيل په اجمالي طور سره ئے د ټولو
خبيثو جانورانو د حراموالي حکم اوکړه - او د دوی په تفصيل کښے څو څيزونه
قرآن کريم په وضاحت سره بيان کړه لکه: لَحْمُ الْخِنْزِيرِ: او: دَمٍ مَسْفُوحٍ:
وغيره - د باقي څيزونو بيان ئے نبي کريم صلے الله عليه ته اوسپاره - نبي کريم
صلے الله عليه وسلم د يو جانور د خبيث کيدو يوه نښه دا او خوده چه د يو
قوم چه په طور د عذاب سره د کوم جانور په شکل باندے مسخ او بدلون
شوے وی نو دا نښه د دے ده چه دا جانور طبعاً خبيث دے نو په کومو
خلقو چه د الله تعالیٰ غضب شو نو د دغے جانور په شکل ئے کړهٔ - مثلاً په
قرآن کريم کښے دی: وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ: يعني بعضے قومونه
ئے په مثل د خنزير او شادوګانو په طور د عذاب مسخ کړی دی - د دينه ثابته
شوه چه د جانورانو دا دوه قسمونه په طبع سره په خبائثو کښے داخل دی - که دا
با قاعده ذبح هم کړے شی خو نه حلال ليږی - او د يو جانوران دا سے هم دی چه
د افعالو او آثارو نه د دوی خبيث والے عام طبيعتونه هم محسوس کولے شی
لکه درنده جانوران چه کار ئے د نورو جانورانو زخمی کول دی - او سخت دلی
ده يعني زړونه ئے سخت دی -
په دے وجه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم نه چا د شرخ متعلق تپوس اوکړو
نو وئے فرمائيل چه آيا څوک دے خوړے شی - دغه شان چير دا سے جانوران دی
چه طبيعت ئے آزار رسول څيزونه تختول دی لکه مار، لړم، سمساره، ماشی مُوچَی
قارغه، باز وغيره -
په دے وجه نبي کريم صلے الله عليه وسلم د يو ضابطے په طور فرمائيلي دی چه
هر يو درنده جانور چه په غاښونو سره ښکار کوی لکه منرے، شرخ وغيره
او په مرغو کښے هغه جانور چه په پنجو سره ښکار کوی لکه باز، شکرے وغيره دا
ټول حرام دی، يا دا سے جانور چه په طبيعت کښے ئے خساست او ذلت، يا په کندګئ
سره ککړ کيدل وی لکه منګک يا مردار خور جانور لکه تپوس وغيره دا ټول دا سے
دی چه د دوی نه هر سليم طبع انسان لره کرکه ورځی او ضررا و نقصان ئے معلوم
دے هر معمولی سليم طبع انسان پرے پوهيګی -

لنډه دا ده چه کوم جانورانو لره اسلامي شريعت حرام کړی دي په دوی کښې يو قسم خو هغه دي چه ذاتي طور پکښې خباثت موندے شي، دويم قسم هغه دي چه په خپل ذات کښې خبيث نه دي خو د جانورانو د ذبح چه کوم طريقه الله تعالی مقرر کړے ده په هغه طريقه ذبح نه شي. خواه د سرے نه ذبح نه شي مثلاً په مرئ خپه کيدو يا غوزيدو سره مړ شي يا ذبح شي مګر د الله د نوم ځائے پرے د چا غير الله نوم واغستے شي. يا پرے د هيچا نوم هم وانخلي او قصداً د الله تعالی نوم په وخت د ذبح پاتے کړي، نو دا ذبح هم شرعاً معتبره نه ده بلکه داسے ده لکه چه بغير د ذبح نه ئے هلاک کړي.

دلته يوه خبره په خاص طور سره د فکر قابل ده چه انسان څه خوري څکي دا ټول د الله تعالی ورکړي شوي نعمتونه دي مګر د جانورانو نه سوا د بل شي په خوړلو څښلو د لوبانديے دا پابندي نشته چه: اَللّٰهُ اَكْبَرُ: يا: بِسْمِ اللّٰهِ: دے پرے د څښلو يا خوړلو په وخت ووئيلے شي او د دے نه بغير نه حلالېږي، د زيا تو نه زياته دا خبره ده چه د هر شي د خوړلو سکلو په وخت کښې: بِسْمِ اللّٰهِ: وئيل مستحب شوي دي. او د جانورانو د ذبح په وخت کښې د الله نوم اغستل واجب شوي دي، او قصداً که څوک په دغه وخت کښې د الله نوم پاتے کړي نو جانور به مردار او حرام شي، په دے کښې حکمت څه دے؟

چه فکر پکښې اوکړے شي نو فرق ښکاره دے چه د جاندارو د روحونه په يو حيثيت سره ټول برابر دي، نو په دے وجه د يو جاندار د ياره بل جاندار فنا کول او ذبح کول خو هډ په ظاهره خو جائز نه دي ښکار. خو او س د چا د پاره چه ئے دا جائز کړي دي نو دا په دوی د الله تعالی يو لوئے انعام دے، په دے وجه د جانور ذبح کولو په وخت کښې د الله تعالی د دے نعمت اقرار او شکر ادا کول ضروري شو، په خلاف د غلے، دانے، ميوے وغيره نه، چه د دوی پيدائش خاص د دے د پاره دے چه انسان دے لوه فنا کړي او خپل ضرورتونه پرے پوره کړي، په دے وجه په دے باندے صرف بسم الله وئيل د مستحبو په درجه کښې شوه واجب او ضروري نه کړے شوه.

د دے نه علاوه يوه وجه دا هم ده چه د جاهليت د زمانے نه دا رسم جاري وُه چه مشرکانو به د جانورانو د ذبح په وخت کښې د خپلو بتانو نوم اَغستو، اسلامي

شریعت دَ دوی دا کافرانه رسم په یو بنکلی او غوره عبادت کښې بدل کړو چه دَ الله نوم اغستل ئې ضروری کړه، او دَ دے مشرکانه رسم دَ ورانولو صحیح او مناسب صورت داوَه چه دَ غلط نوم په ځائې څۀ صحیح نوم تجویز کړے شي - ورنه چلیدلے رسم او عادت پاتے کول څۀ اسان کار نه وُه - تو دے ځائې پورے دَ ایات دَ اولے جملے تشریح وه -

دویمه جمله داده: وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ: "یعنی دَ اهلِ کتابو خوراک ستا سو دَ پاره حلال دے او ستاسو خوراک اهلِ کتابو لره حلال دے"۔

دلته دَ جمهور صحابو او تابعینو په نزد دَ خوراک نه مراد ذبیحه ده، حضرت عبد الله بن عباسؓ، ابو درداءؓ، ابراهیم، قتاده، سدی، ضحاک، مجاهد رضی الله تعالیٰ عنهم اجمعین نه دا نقل دے - (روح المعانی، جصاص) ځکه چه په نور قسم خوراکو نو کښې اهلِ کتاب، او بُت پرست، مشرکین ټول برابر دی - چه روټئ، ډوډۀ دال، میوه وغیره چه دَ ذبح ضرورت پکښې نیشتے دا چه په هر جائز طریقه سره حاصل شوی وی نو مسلمان لره دَ دے خوړل جائز دی - او که دَ مسلمانانو نه دوی ته ملاؤ شي نو دوی لره حلال دی، په دے وجه دَ دے جُملے دَ مضمون نچوړ دا شو چه دَ اهلِ کتابو ذبیحه دَ مسلمانانو دَ پاره او دَ مسلمان ذبیحه دَ اهلِ کتابو دَ پاره حلال ده -

اوس په دے ځائې کښې یو څو مسئلے دَ غور قابلے دی - اوّل دا چه اهلِ کتاب دَ قرآن په اصطلاح کښې کوم خلق دی، دَ کتاب نه څۀ مراد دے؟ او آیا دَ کتابی کیدو دَ پاره دا هم ضروری ده چه دغه خلق بچپل کتاب په صحیح طور سره دے ایمان او عمل لرونکی وی - په دے کښې خو دا خبره ښکاره ده چه دَ کتاب نه مراد هر یوه لیکلے شوے یا نړه نه شي کیدے، هغه کتاب مراد کیدے شی کوم چه دَ الله دَ طرفه راغلے وی - په دے وجه په اتفاق دَ اُمت دَ کتاب نه مراد هغه آسمانی کتاب دے چه دَ قرآن په تصدیق سره هغه دَ الله کتاب منلے شوے وی، لکه تورات، انجیل، زبور، دَ موسیٰ علیه السلام او ابراهیم علیه السلام صحیفے وغیره - په دے وجه هغه قومونه چه په څۀ دا سے کتاب

ایمان لري او وحئ الهئ ئې کنړي چه په قرآن او سنت سره هغه یقیني د الله کتاب نه وي ثابت نو هغه قومونه په اهلِ کتابو کښې نه شي داخلیدے- لکه د مکې مشرکان، مجوسیان، بت پرست، هندو، بُدهـ، اریه، سِکهـ وغیره-

د دے نه معلومه شوه چه یهود او نصارا چه په تورات او انجیل ایمان لرونکي دي دوي د قرآن په اصطلاح په اهلِ کتابو کښې داخل دي، دریم یو قوم چه دوي ته صابئین وائي د دوي حالات شک من دي، د کوموصاحبانو په نزد د داؤد علیه السلام په زبور ایمان لري هغوي دوي لره هم په اهلِ کتابو کښې شاملوي، او د کوموصاحبانو تحقیق چه داوي چه د زبور سره د دوي هیڅ تعلّق نیشته، دوي د ستورو عبادت کونکي دي، هغوي دوي لره د بت پرستو او مجوسیانو سره شریکوي، په هر حال په یقیني طور سره چه په اتفاق بانې ئے کوم خلقو ته اهلِ کتاب وئیلے شي هغه یهود او نصارا دي، نو د قرآن کریم د دے حکم حاصل دا شو چه د یهودو او نصاراؤ ذبیحه د مسلمانانو د پاره او د مسلمانانو ذبیحه د دوي د پاره حلال کړه-

او س پاتې شوه دا معامله چه یهودو او نصاراؤ ته د اهلِ کتاب وئیلو د پاره آیا دا شرط دے چه دوي په صحیح طور سره په اصلي تورات او انجیل عمل کوي، او که د بدل شوي تورات او انجیل تابعداري کونکي او عیسیٰ او مریم علیهما السلام لره د خدائے سره شریک جوړه ونکي هم په اهلِ کتابو کښې داخل دي؟ پس د قرآن کریم د بے شماره وضاحتو نو نه ښکاره ده چه د اهلِ کتاب وئیلو د پاره صرف دومره خبره پوره ده چه دوي د یو آسماني کتاب قائل وي او د دے د تابعدارئ کولو دعوه کوي- اګر که په دے تابعدارئ کولو کښې دوي په هرڅومره ګمراهو کښې پریوتي وي-

قرآن کریم چه چا ته د اهلِ کتابو لقب ورکړے دے د هغوي په باره کښې ئے دا هم ځائے په ځائے ارشاد فرمائیلے دے چه دا خلق پخپلو آسماني کتابونو کښې ادل بدل کوي: يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ، او دا هم فرمائي چه یهودو حضرت عزیر علیه السلام لره د خدائے ځوئې ګنړلے دے او نصاراؤ حضرت عیسیٰ علیه السلام لره: وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ عُزَيْرُ ابْنُ اللهِ وَقَالَتِ النَّصٰرَى الْمَسِيْحُ

اَبْنُ اللّٰهِ: دَدے حالاتو او صفاتو با وجود قرآن کریم دوی ته اهلِ کتاب وئیلی دی نو معلومه شوه چه یهود او نصارا چه ترڅو پورے یهودیت او نصرانیت بالکل پاتے نه کړی دوی په اهلِ کتابو کښے داخل دی، اګر که هرڅومره په خرابو عقیدو او بدو عملونو کښے اخته وی۔

امام جصاص په احکام القرآن کښے نقل کوی چه دَحضرت فاروق اعظمؓ په خلافت کښے دوئ ته یو عامل یا ګورنر خط اولیکه چه دلته څښے خلق داسے دی چه تورات لولی او دَخالی دَورځے تعظیم هم دَ یهودو په شان کوی مګر په قیامت دَ دوی ایمان نیشته، دَداسے خلقو سره څه معامله کول په کار دی؟ حضرت فاروق اعظمؓ ورته اولیکل چه دوی دَاهلِ کتابو یو فریقه ګڼړل پکار دی۔

صرف دَ قوم یهودی او نصرانی چه په حقیقت کښے دهریان دی په دے کښے داخل نه دی

نن صبا دَ یورپ په عیسایانو او یهودیانو کښے ډیر شمار دَداسے خلقو هم دے چه په مردم شمارئ کښے ځان ته یهودی یا نصرانی وائی مګر په حقیقت کښے دوی دَخدائے دَ وجود او دَهیڅ مذهب قائل نه دی نه تورات او انجیل دَخدائے کتابونه منی او نه موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام لره دَخدائے نبی او پیغمبر منی۔ نو دا ښکاره خبره ده چه دَ ښے سرے دَمردم شمارئ دَ قوم په وجه سره دَاهلِ کتابو په حکم کښے نه شی داخلیدے۔

دَ نصاراؤ په باره کښے کوم چه حضرت علی کرم الله وجههٗ فرمائیلی دی چه دَدوی ذبیحه حلال نه ده وجه ئے ورلره دا خودَلے ده چه داخلق په نصرانی دین کښے بغیر دَ شرابو سکلو نه دَبل هیڅ شی قائل نه دی۔

دَحضرت علی کرم الله وجهه ارشاد دا دے چه:

رَوَی ابْنُ الْجُوْزِیْ بِسَنَدِہٖ عَنْ عَلِیٍّ قَالَ لَاتَاکُلُوْا مِنْ ذَبَائِحِ نَصَارٰی بَنِیْ تَغْلِبَ فَاِنَّهُمْ لَمْ یَتَمَسَّکُوْا مِنَ النَّصْرَانِیَّةِ بِشَیْءٍ اِلَّا شُرْبُهُمُ الْخَمْرَ، وَرَوَاهُ الشَّافِعِیْ بِسَنَدٍ صَحِیْحٍ

"ابن جوزیؒ په صحیح سند سره دَحضرت علیؓ دا قول نقل کړے دے چه دَبنی تغلب دَنصاراؤ ذبیحه مه خورئ ځکه چه دوی دَ نصرانیت په مذهب کښے دَشراب نوشئ نه سوا نور هیڅ نه دی اخستی، امام شافعیؒ هم

عنه (تفسیر مظهری ص۳۲ ج۳ سورة مائده)

په صحیح سند سره دا روایت نقل کړے دے".

حضرت علی کرم الله وجهه ته د بنی تغلبو متعلق دا معلومات وُو چه دوی بے دینه دی نصرانیان نه دی اګرچه ځان ته نصرانیان وائی په دے وجه ئے د دوی د ذبیحے نه ئے منع اوکړه - د جمهورو صحابوؓ او تابعینوؒ تحقیق دا وُه چه دا هم د عامو نصرانیانو په شان دی، بالکل د دین نه منکر نه دی په دے وجه ئے د دوی ذبیحه هم حلاله مقرر کړه -

وَقَالَ جُمْهُوْرُ الْاُمَّةِ اَنَّ ذَبِيْحَةَ كُلِّ نَصْرَانِيٍّ حَلَالٌ سَوَاءٌ كَانَ مِنْ بَنِيْ تَغْلِبَ اَوْ غَيْرِهِمْ وَكَذٰلِكَ الْيَهُوْدُ (تفسیر قرطبی ص۷۸ ج۶)

" او جمهور امت وائی چه د نصرانی ذبیحه حلاله ده خواه د بنی تغلبو وی او که نور وی د دوی نه سوا، دغه شان د هر یو یهودی ذبیحه هم حلاله ده".

لنډه دا ده چه د کومو نصرانیانو متعلق دا خبره په یقینی طور سره معلومه شی چه دے د خدائے وجود نه منی یا حضرت موسیٰ علیه السلام لره د الله نبی نه منی دغه د اهل کتابو په حکم کښے نه دی -

د طعام د اهل کتابو نه څه مراد دے؟

د طعام لغوی معنیٰ د خوراک څیز دے، چه د عربی لغت په بنا سره هر یو د خوراک څیز پکښے داخل دے، لیکن د جمهور امت په نزد دلته د طعام نه مراد صرف د اهل کتابو ذبیحے غوښه ده، ځکه چه د غوښے نه سوا د خوراک په نورو څیزونو کښے کوم چه د خوراک دی په اهل کتابو او نورو کفارو کښے څه فرق نیشته، د خوراک سکاک اُوچ څیزونه غنم، چنړه، وریجے، میوه وغیره د هر کافر د لاس حلال اوجائز دی، په دے کښے د هیچا څه اختلاف نیشته، او یکوم خوراک کښے چه د انسان د کار کولو څه دخل دی په دے کښے چونکه د کفارو د لوښو او لاسونو د پاکوالی څه یقین نه وی په دے وجه احتیاط په دے کښے دے چه ځان ترے اُو ساتلے شی، بے د سخت ضرورت نه دے نه استعمالوی - لیکن په دے کښے چه کوم حال د مشرکانو بت پرستو دے هغه د اهل کتابو هم دے - چه د پلیتئ احتمال په دواړو کښے برابر دے -

لنډه دا ده چه د اهلِ کتابو او نورو کافرانو په طعام کښې چه کوم فرق شرعًا کیدے شی هغه صرف د دوی په ذبح شوے غوښه کښې دے، په دے وجه په ذکر شوی آیات کښې په اِتفاق د اُمّت د طعام د اهلِ کتابو نه مراد د دوی ذبحې دی۔ د تفسیر امام قرطبی لیکلی دی:

وَالطَّعَامُ اِسْمٌ لِّمَا يُؤْكَلُ وَالذَّبَائِحُ مِنْهُ وَهُوَ هٰهُنَا خَاصٌّ بِالذَّبَائِحِ عِنْدَ كَثِيْرٍ مِّنْ اَهْلِ الْعِلْمِ بِالتَّاْوِيْلِ وَاَمَّا مَا حَرَّمَ مِنْ طَعَامِهِمْ فَلَيْسَ بِدَاخِلٍ فِيْ عُمُوْمِ الْخِطَابِ۔
(قرطبی ص۷۷ ج ۶)

"لفظ د طعام هر د خوراک شی ته وئیلے شی چه ذبحې پکښې هم داخلے دی او په دے آیات کښې ئے د طعام لفظ خاص د ذبحې د پاره استعمال کړے دے د اکثرو عالمانو د تفسیر په نزد، او د اهلِ کتابو په طعام کښې چه کوم څیزونه د مسلمانانو د پاره حرام دی هغه په دے عموم کښې نه دی داخل"

د دینه پس زیات تفصیل امام قرطبی داسے فرمائیلے دے:

لَاخِلَافَ بَيْنَ الْعُلَمَآءِ اَنَّ مَالَا يَحْتَاجُ اِلٰى ذَبْحٍ كَالطَّعَامِ الَّذِيْ لَا مُحَاوَلَةَ فِيْهِ كَالْفَاكِهَةِ وَالْبُرِّ جَائِزٌ اَكْلُهٗ اِذْ لَا يَضُرُّ فِيْهِ تَمَلُّكُ اَحَدٍ وَالطَّعَامُ الَّذِيْ تَقَعُ فِيْهِ الْمُحَاوَلَةُ عَلٰى ضَرْبَيْنِ اَحَدُهُمَا مَا فِيْهِ مُحَاوَلَةُ صَنْعَةٍ لَا تَعَلُّقَ لَهَا بِالدِّيْنِ كَخُبْزَةِ الدَّقِيْقِ وَعَصْرِهِ الزَّيْتَ وَنَحْوِهٖ، فَهٰذَا اِنْ تُجُنِّبَ مِنَ الذِّمِّيْ فَعَلٰى وَجْهِ التَّقَذُّرِ، وَالضَّرْبُ الثَّانِيْ اَلتَّذْكِيَةُ الَّتِيْ ذَكَرْنَا اَنَّهَا هِيَ الَّتِيْ تَحْتَاجُ اِلَى الدِّيْنِ وَالنِّيَّةِ فَلَمَّا كَانَ الْقِيَاسُ اَنْ لَّا تَجُوْزَ ذَبَائِحُهُمْ كَمَا نَقُوْلُ اَنَّهُمْ لَا صَلٰوةَ لَهُمْ وَلَا

"د عالمانو په مینځ کښې په دے کښې هیڅ اختلاف نیشته چه هغه څیزونه پکو مو کښې د ذبحې ضرورت نیشته مثلًا هغه خوراک چه تصرف کول په کښې نه غواړی لکه میوه او غنم وغیره د دے خوړل جائز دی ځکه چه په دے کښې د چا ملکیت جوړیدل دومره ضرورناک نه دی۔ البته هغه خوراک چه په هغے کښې انسان څه عمل کوی نو د هغے دوه قسمونه دی یو هغه چه څه داسے کار پکښې کول وی چه د دین سره ئے څه تعلق نه وی لکه د اوړو نه ډوډئ جوړول یا د زیتون نه تیل ویستل وغیره نو د ذمی کافر د داسے څیزونو نه د ځوک ځان ساتی نو هغه محض د طبعی کرکے په بنا به وی۔ او دویم قسم

عِبَادَةً مَقْبُوْلَةً لَّهٗ رَخَّصَ اللّٰهُ تَعَالٰی فِیْ ذَبَائِحِهِمْ عَلٰی هٰذِهِ الْاُمَّةِ وَاَخْرَجَهَا النَّصُّ عَنِ الْقِیَاسِ عَلٰی مَا ذَکَرْنَا مِنْ قَوْلِ ابْنِ عَبَّاسٍ -
(قرطبي سورهٔ مائده ص۷۷، ج۶)

هغه دے، چه د ذبحے عمل به پکښے کیږی چه د دے د پاره د دین او نیت ضرورت دے نو اګرچه د قیاس تقاضا داوه چه د کافر د مونځ او عبادتونو پشان د ده عمل د ذبحے دے هم قبول نه شی لیکن الله تعالیٰ د دے امت د پاره په خاص طور سره د دوی ذبحے حلالے کړے او د حضرت ابن عباسؓ نص دے مسئلے لره خلافِ قیاس ثابته کړے ده۔

لنډه دا چه د طعام د اهلِ کتابو نه مراد په دے ایات کښے په اتفاق د علماؤ د تفسیر هغه طعام دے چه حلالوالے ئے په مذهب او عقیده باندے موقوف دے یعنی ذبیحه، په دے وجه په دے طعام کښے د اهلِ کتابو سره په فرق معامله اوکړے شوه ځکه چه دوی هم د الله تعالیٰ د لیکلی شوی کتابونو او پیغمبرانو باندے د ایمان دعوه کوی، اګرچه د دوی تحریفاتو (اَدلُوْنَ بَدلُوْن) دے دعوے لره زخمی کړے (یعنی نقصانی) کړے ده - تر دے چه په شرک او کفر کښے اخته شوی وی، په خلاف د بت پرستو مشرکانو نه چه دوی په هیڅ آسمانی کتاب یا نبی یا رسول د ایمان راوړو دعوه هم نه کوی، او په کو مو کتابونو یا سرو چه د دوی ایمان دے هغه نه د الله پاک لیکلی شوی کتابونه دی او نه د دوی رسالت او نبوت د الله پاک د طرفه کلام نه ثابت دے۔

**د اهلِ کتابو په ذبیحه کښے د حلالوالی حکمت او وجه**

د زیر بحث مسئلے دا دریم سوال دے د دے جواب د اکثرو صحابوؓ تابعینوؒ او د تفسیر د امامانوؒ د طرف نه دا دے، چه په ټولو کفارو کښے د اهلِ کتابو یهودو او نصاراؤ د ذبیحے او د دوی د ښځو سره د نکاح حلالید و وجه دا ده چه د دوی په دین کښے اګرچه دوی ډیر په سوؤنو بدلیانے کړی دی خو په دے دوه ؤو مسئلو کښے د دوی مذهب هم د اسلام سره بالکل مطابق دے، یعنی دوی په ذبحے باندے د الله نوم اخستل په عقیده سره ضروری ګڼړی د دے نه بغیر جانور مردار او حرام ګڼړی۔

دغه شان د نکاح په مسئله کښے چه د کومو ښځو سره په اسلام کښے نکاح

حرام دے دَ دوی په مذهب کښے هم حرام دے - او لکه څنګه چه په اسلام کښے دَ نکاح اعلان او دَ ګواهانو په وړاندے کول ضروری دی دغه شان دَ دوی په موجوده مذهب کښے هم دا حکمونه دی -

دَ تفسیر امام ابن کثیر دا قول دَ اکثرو صحابوٴ او تابعینو نه نقل کړے دے دَهغه عبارت دا دے :

(وَطَعَامُ اَهْلِ الْكِتٰبِ) قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ وَ اَبُوْ اُمَامَةَ وَمُجَاهِدٌ وَسَعِيْدُ بْنُ جُبَيْرٍ وَعِكْرِمَةَ وَعَطَاءٌ وَالْحَسَنُ وَمَكْحُوْلٌ وَابْرٰهِيْمُ النَّخَعِيْ وَالسُّدِّيْ وَمُقَاتِلُ بْنُ حَيَانٍ يَعْنِيْ ذَبَائِحُهُمْ حَلَالٌ لِّلْمُسْلِمِيْنَ لِاَنَّهُمْ يَعْتَقِدُوْنَ تَحْرِيْمُ الذَّبْحِ لِغَيْرِ اللّٰهِ وَلَا يَذْكُرُوْنَ عَلٰى ذَبَائِحِهِمْ اِلَّا اِسْمُ اللّٰهِ وَاِنِ اعْتَقَدُوْا فِيْهِ تَعَالٰى مَا هُوَ مُنَزَّهٌ عَنْهُ تَعَالٰى وَتَقَدَّسَ -

(ابن کثیر مائده ص۱۹ ج۳)

" ابن عباس، ابوامامهؓ مجاهدؒ سعید بن جبیرؒ عکرمهؒ عطاءؒ حسنؒ مکحولؒ ابراهیم نخعیؒ سدیؒ او مقاتل بن حیانؒ دَ طعام دَ اهل کتابو تفسیر دَ دوی په ذبیحو سره کړے دے او دا مسئله دَ مسلمانانو دَ پاره دلته اجماعی ده چه دَ دوی ذبیحے دَ مسلمانانو دَ پاره حلالے دی ځکه چه دوی دَ غیر الله دَ پاره ذبح کول حرام ګڼړی او پخپلے ذبیحے باندِ دَ خدائے نه سوا دَ بل چا نوم نه اخلی اګرچه دوی دَ الله په باره کښے دَ دا سے خبرو عقیده لری دَ کوم نه چه الله تعالی پاک او لوئے دے "

دَ ابن کثیر په دے بیان کښے خو یوه دا خبره معلومه شوه چه دَ دے تو لو ذکر شوو حضراتو اصحابو او تابعینو په نزد دَ طعام دَ اهلِ کتابو نه دَ دوی ذبیحے مراد دی او دَ دوی په حلالوالی دَ امت اجماع ده -

دویمه خبره دا معلومه شوه چه دَ دے ټولو حضراتو په نزد دَ اهلِ کتابو دَ ذبح دَ حلالید و وجه داده چه دَ یهودو او نصاراؤ په مذهب کښے دَ ډیرا دلون بدلون سره بیا هم دَ ذبح مسئله دَ اسلامی شریعت مطابق باقی ده، چه دَ غیر الله په نوم ذبح شوے جانور ته دوی هم حرام وائی - او په ذبح دَ الله نوم اخستل ضروری ګڼړی، او دویمه خبره ده چه دَ الله تعالی په شان کښے دوی دَ دے خدایانو دَ مشرکانه عقیدے قائل شوی دی او الله او مسیح بن مریم ته یو وائی چه قرآن کریم ئے په دے الفاظو کښے ذکر کړے دے:-

| | |
|---|---|
| لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ـ | "بے شکه کافر شو هغه خلق چا چه اووے چه الله خو مسیح ابن مریم دے۔" |

دَ دے بحث پیدا شو چه دَ ذبیحے متعلق ټول قرآنی آیاتونه کوم چه په سورهٔ بقره او سورهٔ انعام کښے راغلی دی چه دَ غیر الله په نوم ذبح شوے جانور حرام او هغه جانور هم چه دَ الله نوم پرے نه وی اخستے شوے حرام شوے دے، دا ټول آیاتونه پخپل ځائے محکم او عمل پرے کول دی، دَ سورتِ مائده آیات په کوم کښے چه دَ طعام دَ اهلِ کتابو حلال کړے دے هغه هم دَ دغے آیاتونو دَ حکم نه مخالف نه دے۔ ځکه چه دَ اهلِ کتابو دَ طعام حلالیدو وجه دا ده چه دَ دوی په موجوده مذهب کښے هم دَ غیر الله په نوم ذبح شوے جانور او هغه جانور چه دَ الله نوم پرے نه وی اغستے شوے حرام دے۔ په موجوده زمانه کښے چه دَ تورات او انجیل کومے نسخے اوس هم موجودے دی په هغوی کښے هم دَ ذبیح او نکاح احکام تقریبًا هغه دی کوم چه په قرآن کریم او اسلام کښے دی چه تفصیل به ئے ډیر زر ذکر کړے شی۔

هاں دا کید ے شی چه بعضے جاهل عوام دَ خپل مذهب دَ دے حکم خلاف څهٔ عمل کوی لکه چه پخپله دَ مسلمانانو په جاهلو عوامو کښے بعضے جاهلانه رسمونه شامل شوی دی۔ چه دغے ته دَ اسلام مذهب نه شی ویلے، دَ نصاراؤ دَ جاهلو عوامو دا کار روانی چه او لیده نو بعضے تابعینو حضراتو دا او فرمائیل چه کله الله تعالیٰ دَ اهلِ کتابو طعام حلال کړو او الله تعالیٰ ته معلومه وه چه دوی به دَ خپلو ذبحو سره څهٔ معامله کوی، څوک به پرے دَ عزیر یا مسیح نوم اخلی او څوک به ئے بغیر دَ بسم الله نه ذبح کوی، نو معلومه شوه چه دَ مائده آیات چه طعام دَ اهلِ کتابو ئے په کښے حلال کړے دے۔ دے آیات دَ اهلِ کتابو دَ ذبح په حق کښے دَ سورتِ بقره او سورتِ انعام په دغه آیاتونو کښے تخصیص یا یو قسم نسخ او فرمایه په کوم کښے چه دَ غیر الله په نوم ذبحه کولو یا بغیر دَ الله دَ نوم نه ذبح کولو لره حرام مقرر کړے ده۔

دَ بعضے لویو عالمانو دَ خبرے نه معلومیګی چه کوم تابعینو حضراتو دَ اهلِ کتابو بغیر دَ تسمیئے نه ذبیحه او دَ غیر الله په نوم ذبیحه حلال فرمائیلے ده،

دَدوی په نزد هم دَ اهلِ کتابو دَ اصل مذهب احکام اَو دَ اسلام احکام نه مختلف نه دی.
لیکن دَدوی جاهلانو عوامو دا غلطئ کړی دی دَ دے باوجود بیا هم دے
حضراتو جاهلوا هلِ کتابو لره هم دَ عامو اهلِ کتابو دَ حکم نه جدا نه کړل.
او دَ ذبیحے او نکاح په معامله کښے ئے دَدوی هم هغه حکم مقرر کړو کوم
چه دَ دوی دَ پلرونو نیکونو او اصل مذهب والو دے. چه دَدوی ذبیحه
او دَ دوی دَ ښځو سره نکاح جائز دے.

ابنِ عربي په احکام القرآن کښے لیکلی دی چه ما دَ خپل اُستاد اَبُو الفتح
مقدسی نه سوال اوکړو چه موجوده نصارا خو دَ غیر الله په نوم باندے
ذبح کوی، مثلاً دَ عزیر یا مسیح نوم دَ ذبح په وخت کښے اَخلی نو دَ دوی
ذبیحه څنګه حلال لیدے شی. نو په دے باندِ ابوالفتح مقدسی او فرمائیل:-

هُمْ مِّنْ اٰبَآئِهِمْ وَ قَدْ جَعَلَهُمُ اللّٰهُ تَعَالٰی تَبْعًا لِّمَنْ كَانَ قَبْلَهُمْ مَعَ عِلْمِهٖ بِحَالِهِمْ -
(احکام ابن عربي ص۲۲۹ ج ۱)

"دَ دوی حکم دَ پلرونو نیکونو پشان دے دَ دَن ورځ دَ دے اهلِ کتابو داحال الله ته معلوم وُه، لیکن الله تعالیٰ دوی د پلرو نو نیکونو تابع کړی دی"

دَ دے بیان نه خو په دا شو چه په تیرو مشرانو دَ اُمت کښے چه کوم عالمانو صاحبانو
دَ اهلِ کتابو دَ داسے ذبحو اجازت ورکړے دے چکوم چه دَ الله نوم نه وی اغستے
شوے بلکه دَ غیر الله پرے اغستے شوے وی، دَ دوی په نزد هم اصل مذهب
دَ اهلِ کتابو دا دے چه دا ځیزونه دَ دوی په مذهب کښے هم حرام دی مګر دے
حضراتو غلط کار عوام هم په دے حکم کښے شامل کړه کوم چه دَ اصل اهلِ کتابو
دے په دے وجه ئے دَ دوی ذبیحه هم حلاله کړه، او جمهور و صحابو او تابعینو
او مجتهد ینو امامانو په دے نظر اوکړو چه دَ اهلِ کتابو جاهل عوام چه
دَ غیر الله په نوم یا بغیر دَ الله دَ نوم نه ذبح کوی دا دَ اسلامی حکم خلاف
خو دَه ده. بچیله دَ نصارا و دَ موجوده مذهب نه هم خلاف ده، په دے
وجه دَ دوی دَ عمل په احکامو باندے هیڅ اثر نه دی کیدل پکار، دوی دا
فیصله ورکړه چه دَ دے خلقو ذبیحه په طعام دَ اهلِ کتابو کښے دَ مسره داخله
نه ده په دے وجه دَ دے دَ حلال لید وهیڅ وجه نیشته او نه دَ دوی دَ غلط

عمل په وجه سره د قرآن په ایاتو کښې د نسخ یا د تخصیص قول اختیاره و ل په هیڅ شان صحیح نه دی۔

په دې وجه تول د تفسیر امامان ابنِ جریرؒ، ابن کثیرؒ، ابوحیانؒ وغیره په دې باندې متفق دی چه د سورتِ بقره او انعام په ایاتو کښې څه نسخ نه دې شوې دا د جمهورو صحابوؓ او تابعینو مذهب دې۔ لکه چه په حواله د ابنِ کثیرؒ بره نقل شوې دې۔ او په تفسیر بحرِ محیط کښې په دې لاندې الفاظو سره ذکر دې۔

وَ ذَهَبَ اِلٰى اَنَّ الْكِتَابِيَّ اِذَا لَمْ يَذْكُرِ اللّٰهَ عَلَى الذَّبِيْحَةِ وَ ذَكَرَ غَيْرَ اللّٰهِ لَمْ تُؤْكَلْ وَ بِهٖ قَالَ اَبُو الدَّرْدَاءِ وَعُبَادَةُ بْنُ الصَّامِتِ وَجَمَاعَةٌ مِّنَ الصَّحَابَةِ وَ بِهٖ قَالَ اَبُوْ حَنِيْفَةَ وَاَبُوْ يُوْسُفَ وَ مُحَمَّدٌ وَ زُفَرُ وَ مَالِكٌ وَكَرِهَ النَّخَعِيُّ وَ الثَّوْرِيُّ اَكْلَ مَا ذُبِحَ وَ اُهِلَّ بِهٖ لِغَيْرِ اللّٰهِ۔

(بحر محیط ص۴۳۱ ج ۴)

او د دوی مذهب دا دې چه کتابی کم په ذبیحه باندې د الله نوم وانخلی او د الله نه سوا بل نوم واخلی نو خوړل ئې جائز نه دی دا قول دې د ابو درداء، عباده بن صامت او د صحابه کرامو د یو جماعت، او دا د ابو حنیفه ابو یوسف، محمد، زفر، او مالک مذهب دې۔ نخعی او ثوری د دې خوړل مکروه ګنړی چه د غیر الله نوم پرې اغستلې شوې وی۔

نو ددې خبرې دا دې چه د صحابوؓ او تابعینو او د اُمت د تیرو مشرانو په دې کښې هیڅ اختلاف نیشته چه د اهلِ کتابو اصل مذهب د قرآن د نزول په زمانه کښې هم دا وُه، چه یکوم جانور د غیر الله نوم واغستلې شی یا قصداً د الله نوم پاتې کړې شی هغه حرام دې۔ دغه شان د نکاح په حلالوالی او حراموالی کښې هم د اهلِ کتابو اصل مذهب د موجوده زمانې پورې په اکثرو څیزونو کښې د اسلامی شریعت مطابق دې۔ که د دې خلاف چه په اهلِ کتابو کښې څهٔ موندې شی دغه د جاهلو عوامو غلطیانې دی د دوی مذهب نه دې۔

موجوده تورات او انجیل چه په مختلفو ژبو کښې چاپ شوی ملاویګی۔

د دے نه هم د دے خبرے تائید کیږی - د تورات او انجیل تولو نه دالاندے او
سوری کوم چه د بائبل په پخوانۍ عهد نامه کښے دی او د موجوده زمانے د یهودو
او نصارا دواړو په نزد مسلمه (منلے شوے) ده -

د ذبحے متعلق دا احکام دی :-

(۱) کوم جانور چه پخپله مړ شی او کوم لره چه درنده کان خیرے کړی د دے
چرګی که په بد څۀ کار کښے راولی نو راولی خو تاسو دا په هیڅ حال کښے مه خورئ -
(احبار ۲۴)

(۲) هر ګوشت لره خو د خپلو ټولو پاتکونو د ننه د خپل زړۀ په رغبت او خداوند
د خپل ورکړی برکت موافق ذبح کړے خوړے شی --- - لیکن تاسو وینه بالکل
مه خورئ - ( استثناء ۱۲ - ۱۵ )

(۳) تاسو د بتانو د قربانۍ غوښے او وینے، او مړۍ خپه شوی جانوره
او د حرام کارۍ نه پرهیز کوی - (عهد نامه جدید کتاب اعمال ۱۵ - ۲۹)

(۴) د عیسایانو د ټولونه لوئے پیشوا پولس کرنتهیون په نوم په اولنی خط کښے
لیکی چه کوم قربانی غیر قومونه کوی د شیطانانو د پاره قربانی کوی
نه د اچه د خدائے د پاره او زۀ نه غواړم چه تاسو د شیطانانو شریکان شئ
تاسو د خداوند د پیالے او د شیطانانو د پیالے دواړه نه شئ سکلے ......
( کرنتهیون ۱۰ - ۲۱ - ۲۰ )

(۵) په کتاب اعمال حواریین کښے دی "مونږ دا فیصله کړے لیکلے وه چه دوی دے
صرف د بتانو د قربانۍ د غوښے نه او د وینے نه او د مړۍ خپه شوی جانورونو
نه او د حرام کارۍ نه دے ځان ساتلی لری - (اعمال ۲۱ - ۲۵)

دا د تورات او انجیل هغه وضاحتونه دی چه نن صبا د بائبل سوسائټو
چاپ کړی دی چه د سوونو بد لونونو نه پس بیا هم بعینه د قرآن حکیم
د احکامو مطابق په کښے دا ځیزونه باقی دی "-

د قرآن کریم ایات دا دے :-

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ

پتا سو حرام شوے دے مرداره او وینه او د خنزیر غوښه او په کوم چه د الله نه سوا د بل

وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوْذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ الخ - (المائده)

چا نوم واغستلے شی او چه مړئ ئے خپه شی او هغه چه او ویشتلے شی او مړ شی او هغه چه ارتاو شی مړ شی او کوم چه درنده خوړلے وی مګر دا چه تاسو ئے ذبح کړئ او هغه چه دبتانو په نوم ذبح کړے شی "

په دے ایات کښے د مردارے وینے او خنزیر د غوښے او په کوم چه د غیر الله نوم اغستے شوے وی او د مړئ خپه شوے او په ګذار سره مړ یا د دنګ ځائے نه په غورزید و مړ یا د ښکرو نو په وهلو مړ او کوم چه درندګا نو څیرے کړے وی د ټولو د حرام والی حکم دے - د تورات انجیل په ذکر شوی بیا نو نو کښے هم د خنزیر د غوښے نه علاوه تقریبًا نور ټول حرام شوی دی، صرف د ګذار نه او د غورزید و نه او د ښکرو نو د وهلو نه د مړ ذکر پکښے نیشتے لیکن دا ټول تقریبًا د بچیله مړ او مړئ خپه کید و نه د مړ په حکم کښے داخل دی -

دغه شان قرآن کریم په ذبحه باندے د الله د نوم اغستو تاکید فرمائیلے دے كُلُوا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ او پکوم چه ئے د الله تعالیٰ نوم نه وی اغستے هغه ئے حرام کړے دے وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ : د بائبل په ذکر شوی عبارت ۲ د استثناء کښے هم د دے تاکید معنیٰ موجوده ده - چه چا نور د الله په نوم سره ذبح کوئ - دغه شان د نکاح په معامله کښے هم د اهل کتابو من حيث الکثرو خيز و نو کښے د اسلامی شریعت مطابق دے -

۰ او کورئ احبار - ۱۸ - ۶ تا - ۱۹ - چه په دے کښے یو اوګد فهرست د محرماتو ورکړے شوے دے چه په دے کښے تیر هغه دی کوم چه قرآن حرام کړی دی تر دے چه دوه خویاند ولره په یو نکاح کښے د جمع کولو حرمت او په حالت د حیض کښے د کور والی حرمت هم ذکر دے - دا رنګ په بائبل کښے د دے هم وضاحت شوے دے چه د بت پرستو او مشرکو قومونو سره نکاح ناجائز دے - د موجوده تورات الفاظ دا دی :

تو د دوی سره کوژدن وادهٔ مکوئ مه د دوی ځامنو لره خپلے لونړه ورکوئ او نه د دوی لونړه خپلو ځامنو لره، ځکه چه دوی ځامنو لره ځما د پیروئ نه اړه وی چه دوی د نورو عبادات اوکړی (استثناء - ۷ - ۳ - ۴)

## څلورمه خبره

دا دے چه په قرآن کښے د اهلِ کتابو ذبیحے او د دوی د ښځو سره نکاح حلال او د نورو کفارو ذبیحے او ښځو د حراملو وجه داده چه په دے دواړو مسئلو کښے د اهلِ کتابو اصل مذهب ترننه پورے د اسلامی قانون مطابق دے او کوم خلاف چه د دوی په عوامو کښے مونده شی دغه د جاهلانو غلطئ دی۔ مذهب ئے نه دے، په دے وجه جمهورو صحابو، تابعینو او مجتهدینو اماما نو په نزد د سورت بقره انعام او مائده په تهولو آیاتونو کښے تضاد یا نسخ یا تخصیص نیشتے، او کومو عالمانو او تابعینو چه د غلط کارو عوامو عمل هم تبعًا د اهلِ کتابو په حکم کښے شامل کړے دے او په آیاتونو د بقره او انعام کښے ئے د نسخ یا تخصیص قول اختیار کړے دے د دے هم بنیاد دا دے چه نصارا د کومو چه قول دا دے چه: اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ: یعنی الله خو عیسیٰ ابن مریم دے' د اخلق که د الله نوم هم واخلی نو د دے نه مراد عیسیٰ ابن مریم اَخلی' په دے وجه د دوی په ذبیحه کښے د الله نوم اَغستل یا د مسیح نوم اغستل برابر شو۔ په دے بنا بانندے حضرا تو تابعینو د اهلِ کتابو په ذبیحه کښے د دے اجازت ور کړے دے۔ ابن عربی په احکام القرآن کښے د دے بنیا د وضاحت فرمائیلے دے۔ (احکام ابن عربی ص۲۲۹۔ ج۱)

لیکن جمهورامت دا نه دے قبول کړے لکه چه په حواله د تفسیر ابن کثیر او تفسیر بحر محیط اوس تیر شوی دی۔ او په تفسیر مظهری کښے د مختلفو قوالو نقل کولو نه پس لیکی:-

وَالصَّحِيْحُ الْمُخْتَارُ عِنْدَنَا هُوَ الْقَوْلُ الْاَوَّلُ. يَعْنِيْ ذَبَائِحَ اَهْلُ الْكِتَابِ تَارِكًا لِلتَّسْمِيَةِ عَامِدًا اَوْ عَلٰى غَيْرِ اِسْمِ اللّٰهِ تَعَالٰى لَا يُؤْكَلُ اَنَّ عَلَيْهِ ذٰلِكَ يَقِيْنًا اَوْ كَانَ غَالِبُ حَالِهِمْ ذٰلِكَ وَهُوَ مُحْمَلُ النَّهْيِ عَنْ اَكْلِ ذَبَائِحِ نَصَارَى الْعَرَبِ وَمُحْمَلُ قَوْلِ عَلِيٍّ رض لَا تَاْكُلُوْا مِنْ ذَبَائِحِ نَصَارٰى بَنِيْ تَغْلِبَ فَاِنَّهُمْ لَمْ يَتَمَسَّكُوْا مِنَ النَّصْرَانِيَّةِ بِشَيْءٍ

او صحیح او مختار زمونږ په نزد هغه اوّلنے قول دے یعنی دا چه د اهلِ کتابو ذبیحه چه قصدًا پرے د الله نوم پاتے کړی یا د غیرالله په نوم ئے ذبح کړی وی هغه حلال نه دی که په یقینی طور سره د دے علم اوشی چه په دے د الله تعالیٰ نوم نه دے اغستے شوے یا د غیرالله پرے اغستے شوے دے' یا د اهلِ کتابو عام عادت دا شی، کومو بزرګانو چه د عرب د نصارا د ذبیحو نه منع کړے ده د دوی د قول

اِلَّا بِشُرْبِهِمُ الْخَمْرَ فَلَعَلَّ عَلِيًّا عَلِمَ مِنْ حَالِهِمْ اَنَّهُمْ لَا يُسَمُّوْنَ اللّٰهَ عِنْدَ الذَّبْحِ اَوْ يَذْبَحُوْنَ عَلٰى غَيْرِ اِسْمِ اللّٰهِ هٰكَذَا اَلْحُكْمُ نَصَارٰى الْعَجَمِ اِنْ كَانَ عَادَتُهُمُ الذَّبْحَ عَلٰى غَيْرِ اِسْمِ اللّٰهِ تَعَالٰى غَالِبًا لَا يُؤْكَلُ ذَبِيْحَتُهُمْ وَلَا شَكَّ اَنَّ النَّصَارٰى فِيْ هٰذَا الزَّمَانِ لَا يَذْبَحُوْنَ بَلْ يَقْتُلُوْنَ بِالوَقْذِ غَالِبًا فَلَا يَحِلُّ طَعَامُهُمْ -

(تفسیر مظهري ص۳۷، ج ۳)

مقصد هم دا دے - دغه شان حضرت علی کوم چه دا سے فرمائیلی دی چه دَ نصارا وُ دَ بنی تغلب ذبیحه خوړل جائز نه دی ځکه چه دوی دَ نصرانیت دَ مذهب نه بغیر دَ شرابو څکلو نور څه نه دی اَخستی، دَ دے محمل هم دغه دے - حضرت علیؓ ته به دا ثابته شوی وی چه بنی تغلب پخپلو ذبیحو با ندے دَ الله تعالیٰ نوم نه اخلی او یا پرے دَ غیر الله نوم اخلی، پس دا حکم دَ عجمی نصارا وُ هم دے چه که دَ دوی عادت دا شی چه په عام طور سره دَ غیر الله په نوم ذبح کوی نو دَ دوی ذبیحه خوړل جائز نه دی - او په دے کښے شك نیشته چه ننی صبا خو نصارا دَ سره ذبح نه کوی بلکه عام طور سره ئے په ویشتلو حلالوی په دے وجه دَ دوی ذبیحه حلال نه ده -

دا تفصیلی بحث د لته ځکه نقل کړے شو چه په دے مقام با ندے دَ مصر دَ مشهور عالم مفتی عبده نه سخت لغزش شوے دے چه دَ هغے دَ غلطوالی او دَ کتاب او سنت او جمهور امّت نه په خلاف والی کښے ئے هیڅ شك او شبه نیشته - دَ دے موصوف نه په تفسیر منار کښے دلته دوه څو چند غلطی شوے ده -

اوّل خو ئے دَ اهلِ کتابو په معنیٰ کښے دَ دنیا کفار مجوسیان، هندوان سکهان وغیره ټول داخل کړی او دا معنیٰ ئے دومره عامه کړے ده چه په ټول قرآن کښے چه کوم دَ کفارو اهلِ کتابو او غیر اهلِ کتابو تقسیم او جدا والے شوے دے هغه بالکل بے معنی او بے حقیقته کیږی -

او دویمه غلطی ترے دَ دینه لویه دا شوے ده چه دَ طعام دَ اهلِ کتابو په معنیٰ کښے ئے دَ اهلِ کتابو هر یو خوراک بے دَ څهٔ شرط نه حلال کړے دے خواه که دوی جانور ذبح کړی او که نه او دَ الله نوم پرے واخلی او که نه، په هر حال دوی چه هر څنګه جانور خوری هغه ئے دَ مسلمان دَ پاره حلال کړے دے -

څهٔ وخت چه دَ ده دا فتویٰ په مصر کښے شائع شوه دغه وخت پخپله دَ مصر او دَ دُنیا ټولو لویو عالمانو دا غلط کړه - او په دے ډیرے رسالے او مقالے

اولیکلے شوے، مفتی عبدهٔ لره دَ فتوای دَ عهدے نه دَ معزولو لو مطالبے دَ هرطرف نه اوشوے، بل خوا دَ مفتی صاحب شاګردانو او ځینې هغو خلقو چه دَ مغربي معاشرے اثر پرے شوے وه پخپله اوچلول ځکه چه دا فتوای دَ دوی دَ لارے دَ ټولو مشکلا تو حل وهٔ، چه دَ یورپ دَ یهودو و نصاراؤ بلکه دَ دهریانو هریو خوراک دَ دوی دَ پاره حلال شو.

لیکن دَ اسلام دا هم معجزه ده چه دَ شریعت نه خلاف کار خواه څو مره دَلوئے عالم نه دَ لے اونه شی خو دَ عامو مسلمانانو زړونه چرته په دے سره نه مطمئن کیږی - په دے معامله کښے هم دا سے اوشوه او دَ ټولے دنیا مسلمانانو دے ته ګمراهي اووے، او دغه وخت دا معامله سړه پاتے شوه، لیکن دَ اوسنۍ زمانے مُلحدان چه دَ دوی مقصد صرف دا دے چه دَ اسلام نوے ایډیشن تیار کړے شی او دَ یورپ هر یوه لغوه او عبث خبره پکښے ځائے کړے شی او دَ نوی ځوانانو نفساني خواهشات پوره کړی، دوی بیا دے بحث لره په نوی انداز کښے دا سے راؤ ویست چه لکه ګو یا دوی خپل څهٔ تحقیق پیش کوی حال دا دے چه دغه ټول دَ مفتی عبدهٔ دَ ذکر شوے مقالے نقل دے - په دے وجه ضروری شو ه چه دا بحث لږ په تفصیل سره اولیکلے شی -

او س الحمد لله دَ ضرورت مناسب دَ دے بیان اوشو او دَ دے پو ره تفصیل ځما په رساله "اسلامی ذبیحه" کښے دے - که څوک غواړی هلته ئے کتے شی او دے کوری -

دویمه مسئله: دلته کښے دا ده چه دَ قرآن کریم په دے ارشاد کښے یو حکم کوم چه دَ مسلمانانو دَ پاره بیان شوے دے چه دَ اهلِ کتابو طعام ستاسو دَ پاره جائز دے دا خو ښکاره خبره ده، مګر دَ دے دَ دویم جُز چه دَ مسلمانانو خوراک دَ اهلِ کتابو دَ پاره جائز دے، دَ دے څهٔ مقصد دے ځکه چه اهلِ کتاب کوم چه دَ قرآني احکامو قائل نه دی دَ دوی دَ پاره څهٔ حلال او څهٔ حرام، دَ دے دَ بیان نه فائده څهٔ ده -

په تفسیر بحر محیط وغیره کښے دَ دے متعلق فرمائي چه په اصل کښے دا حکم هم مسلمانانو ته خودنه ده، چه ستاسو ذبیحه دَ دوی دَ پاره جائز ده - په دے

واسطے سوه کہ تاسو پخپله ذبیحه کښے چا غیر مسلم کتابی لره خوراک ورکړئ نو څۀ گناه نیشتے۔ یعنی پخپله قربانۍ کښے چا کتابی سړی لره ورکولےشئ۔ او که زمونږ ذبیحه دوی لره حرامه وے نو مونږ لره به جائز نه وُو چه مونږ به دوی خوره وَلے، په دے وجه حکم په ظاهره دَ اهلِ کتابو دے مګر په حقیقت کښے دَ دے مخاطب مسلمانان دی۔

او په تفسیر روح المعانی کښے په حواله دَ سدی ئے دَ دے جملے یوه بله منشاء ذکر کړے ده۔ هغه دا چه دَ اهلِ کتابو یهودو او نصاراؤ په مذهب کښے بعضے حلال جانور یا دَ دوی څۀ حصے دَ سزا په طور حرام شوے وے په دے وجه هغه جانور یا دَ جانور هغه حصه په طعام دَ اهلِ کتابو کښے په ظاهر داخله نه ده۔ لیکن دَ آیات دے جملے او خوده چه کوم جانور ستا سو دَ پاره حلال دے اګرچه اهلِ کتاب دے لره حلال نه ګنړی که دَ اهلِ کتابو دَلاس ذبحه شوے ملاؤ شی نو هغه هم دَ مسلمانانو دَپاره به حلال ګنړلے شی۔ په: وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ؛ کښے دے طرف ته اشاره شوے ده۔ په دے تقریر باندے بیا هم دَ دے جملے تعلق پخپله دَ مسلمانانو سره شو۔

او په تفسیر مظهری کښے فرمائی چه فائده دَ دے جملے فرق بیانول دی دَ ذبیحو په معامله کښے او دَ نکاح په معامله کښے هغه فرق دا دے چه ذبیحے خو دَ دواړو طرف نه حلالے دی دَ اهلِ کتابو ذبیحه دَ مسلمانانو دَپاره او دَ مسلمانانو ذبیحه دَ اهل کتابو دَپاره۔ لیکن دَ ښځو په نکاح کښے دا معامله نه ده دَ اهل کتابو ښځے دَ مسلمانانو دَپاره حلالے دی مګر دَ مسلمانانو ښځے اهلِ کتابو لره حلالے نه دی۔

درېمه مسئله: دا ده چه که معاذ الله یو مسلمان مرتد شی یهودی یا نصرانی جوړ شی نو دے په اهلِ کتابو کښے داخل نه دے، بلکه دے مرتد دے دَ دهٔ ذبیحه په اجماع دَ امت سره حرامه ده۔ دغه شان کوم مسلمان چه دَ دین دَ ضروریات او قطعی احکامو کښے دَ یو شی نه دَ انکار په وجه سره مرتد شوے دے، اګرچه دے دَ قرآن او دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ منلو دعوه هم کوی خو دے مرتد دے ذبیحه ئے حلاله نه ده۔ محض په

قرآن لوستو یا په قرآن دَ عمل کولو په دعوه کولو سره دے په اهلِ کتابو کښے نه شی داخلیدے - البته دَ یو بد مذهب او دین سرے که څپل مذهب پاتے کړی یهود دی یا نصرانی جو رشما نو دے به په اهلِ کتابو کښے شمار وی او دَ دهٔ ذبیحه به حلاله وی -

دَ ا یات دریمه جمله داده :-

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْکِتٰبَ مِنْ قَبْلِکُمْ الاٰیة:

"یعنی ستا سو دَ پاره دَ مسلمانو پاکدامنو ښځو سره نکاح حلال دے دغه شان دَ اهلِ کتابو دَ پاکدامنو ښځو سره هم نکاح حلال دے"

په دے کښے دوا ړه ځایه دَ : مُحْصَنٰت : لفظ راغلے دے چه معنیٰ ئے دَ عربو لغت او محاورے په اعتبار سره دوه کیدے شی یوه آزاده چه په مقابله کښے ئے وینځه ده - دویم عفیف او پاکدامنے ښځے دی - دَ لغت په اعتبار سره دلته هم دواړه معنے مراد کیدے شی -

په دے وجه دَ تفسیر په عالمانو کښے مجاهد دلته دَ : محصنٰت : تفسیر په "آزادو" سره کړے دے - چه مطلب ئے دا شو چه دَ اهل کتابو آزادے ښځے دَ مسلمانانو دَ پاره حلالے دی وینځے حلالے نه دی - (مظهری)

لیکن دَ جمهورو عالمانو صحابهؓ او تابعینوؒ په نزد دلته دَ "محصنٰت" معنیٰ عفیفے او پاکدامنے ښځے دی - او مراد دَ آیات دادے چه څنګه عفیفے او پاکدامنے او مسلمانے ښځے تا سو لره حلالے دی، دغه شان دَ اهل کتابو عفیفے او پاکدامنے ښځے هم تا سو لره حلالے دی - (احکام القرآن حصاص و مظهری)

لیکن په اتفاق دَ جمهورو باندے دلته دَ عفیفو او پاکدامنو ښځو دَ قید دا معنیٰ نه ده چه دَ غیر عفیفو سره نکاح حرام دے بلکه دَ دے قید فائده دَ ښو او مناسبو ښځو طرف ته ترغیب دے، چه که دَ مسلمانو ښځو سره نکاح کوئ او که دَ اهلِ کتابو سره په هر حال دا خبره په نظر کښے ساتل په کار دی چه دَ پاکدامنے عفیفے ښځے سره دے نکاح کوی - دَ بدکارو فاسقو ښځو سره دَ نکاح رشته تړل دَ یو شریف مسلمان کار نه دے (مظهری وغیره)

په دے وجه بخوړ دَ مضمون دَ دے جملے دا شو چه دَ مسلمان دَ پاره حلال دی چه دَ یوے مسلمانے ښځے سره نکاح اوکړی یا دَ اهل کتابو دَ ښځے سره ئے اوکړی.

البته په دواړه و صورتونو کښې د دې خبرې لحاظ ساتل پکار دی چه د عفیفې او پاکدامنې ښځې سره نکاح اوشي۔ د بدکارې او بې اعتبارې ښځې سره نکاح کول د دین او دنیا دواړه وتباهي ده، د دې نه ځان ساتل پکار دی په دې آیات کښې د اهلِ کتابو د قید ذکر کولو نه په اجماع د امت سره دا خبره ثابته ده چه کوم غیرمسلم په اهلِ کتابو کښې داخل نه دی د دوی د ښځو سره نکاح حلال نه دے۔

په تیر بیان کښې دا خبره ښکاره شوه چه په دې زمانه کښې څومره فریقې او ډلې د غیرمسلمو موجود دی په دوی کښې صرف یهود او نصارا دوه قومونه داسې دی چه په اهلِ کتابو کښې شماریدے شي باقي په موجوده مذهبونو کښې یو هم په اهلِ کتابو کښې داخل نه دے۔ اَتش پرست یا بُت پرست هندو یا سِکه، آریه، بُدهه وغیره ټول په دې عموم کښې داخل دی۔ ځکه چه دا خبره بیان شوې ده چه د اهلِ کتابو نه مراد هغه خلق دی کوم چه د څه داسې کتاب منونکی او د تابعدارئ دعوه کوُنکی وی چه د دغه کتاب د آسماني کیدو او وحئ الٰهي کیدو ثبوت په قرآن او سنّت سره ثابت وی او ظاهره خبره ده چه دغه تورات او انجیل دی۔ چه د دوی منوُنکی څهٔ قومونه دا وخت په دنیا کښې موجود دی۔ باقي زبور او صحیفې د ابراهیمؑ نه چرته محفوظې او موجود دی او نه څوک قوم د دې د تابعدارئ کولو دعوه کونکی شته۔ او "وید" او "گرنتهه" یا "زردشت" وغیره کتابونه کوم چه په دنیا کښې مقدس گڼلے شي د دې د وحئ الٰهي کیدو او آسماني کیدو څهٔ ثبوت په هیڅ شرعي دلیل سره نیشته۔ او صرف دا امکان چه شاید د "زبور" او ابراهیمؑ د "صحیفو" مسخ شده هغه صورتونه وی کوم ته چه د بد مت کتاب یا "وید" یا "گرنتهه" وغیره وائی، دا محض امکان او احتمال دے چه د ثبوت د پاره پوره نه دے، په دې وجه په اجماع د امت سره ثابته شوه چه د موجوده زمانې په مختلفو مذهبونو کښې صرف د یهود او نصارا د ښځو سره د مسلمانانو نکاح حلال دے۔ د بل یو قوم د ښځې سره ترڅو چه مسلمانه شوې نه وی نکاح ورسره حلاله نه دے حرام دے۔

دَ قرآن کریم آیات: وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ؛ دَ دے مضمون دَ پاره راغلے دے۔ چه معنیٰ ئے دا ده چه دَ مشرکانو ښځو سره ترهغے پورے نکاح مکوئ ترڅو چه دوی مسلمانانے نه شی۔ او دَ اهلِ کتابو ښځو نور ټول قومونه په مشرکانو کښے داخل دی۔

غرض دا دے چه دَ قرآن شریف صرف دوه آیاتونه په دے مسئله کښے وارد شوی دی په یو کښے دادی چه دَ مشرکو ښځو سره ترهغه وخته پورے نکاح حلال نه دے ترڅو چه دوی مسلمانانے نه شی، دویم دا آیات دَ سورت مائده چه دَ دے نه معلومه شوه چه دَ اهلِ کتابو دَ ښځو سره نکاح جائز دے۔

په دے وجه جمهورو علماؤ صحابه او تابعینو دَ دواړو آیاتو نو نه مطلب دا دا او ویستو چه اصولی طور دَ غیر مُسلمے ښځے سره دَ مسلمان نکاح کول نه دی پکار۔ لیکن دَ سورتِ مائده دے آیات دَ اهلِ کتابو ښځو له دَ دے عُموم نه مستثنیٰ کړی دی۔ په دے وجه دَ یهودوا و نصاراؤ دَ ښځو نِسوا دَ بل کافر قوم دَ ښځے سره بغیر دَ اسلام راوړو دَ مسلمان نکاح نه شی کیدے۔

او س پاتے شوه مسئله دَ اهلِ کتابو یعنی دَ یهودوا و نصاراؤ دَ ښځو نو دَ بعضے صحابه کرامو په نزد دا هم جائز نه دے۔

دَ حضرت عبد الله ابن عمرؓ دا مذهب دے دَ دوی نه چه به چا تپوس کاوه نو فرمائیل به ئے چه دَ الله تعالیٰ ارشاد په قرآن کریم کښے واضح دے : وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكٰتِ حَتّٰى يُؤْمِنَّ ؛ یعنی دَ مشرکو ښځو سره ترهغه وخته پورے نکاح مکوئ ترڅو چه دوی مسلمانانے نه شی او ما ته نه ده معلومه چه دَ دے نه لوئے شرک به کوم وی چه دوی عیسیٰ ابنِ مریم یا بل بنده دَ ربّ خپل ربّ او خدائے اوگڼړی۔ (احکام القرآن جصاص)

یو وارے میمون بن مهران دَ حضرت عبد الله ابن عمرؓ نه تپوس اوکړو چه مونږ په یو داسے ملک کښے آباد یُو چه هلته اهلِ کتاب زیات اُوسی۔ نو آیا مونږ دَ دوی دَ ښځو سره نکاح کولے شو او دَ دوی ذبیحه خوړے شو؟ حضرت عبد الله ابن عمرؓ ورته په جواب کښے دا دواړه آیاتونه واوَره وَل یو هغه چه دَ مشرکانو ښځو

سره په کښې نکاح حرام شوې دے دویم دا دَ سورت مائده ایات چه دَ اهلِ کتابو دَ ښځو سره په کښې دَ حلالوالي بیان دے۔

میمون بن مهران اووے چه دا دواړه ایاتونه خوزهٔ هم په قرآن کښې او معلوم دی راته۔ ځما سوال خو دا دے چه دَ دے دواړو ایاتونو په بنا باندے ځما دَ پاره شرعي حکم څهٔ دے؟ دَ دے په جواب کښې حضرت عبدالله ابن عمرؓ بیا ورته دا دواړه ایاتونه اولوستل او دَ خپل طرف نه ئې هیڅ اونه وئیل چه دَ دے مطلب دَ امت عالمانو دا مقرر کړو چه حضرت عبدالله ابن عمرؓ ته دَ اهلِ کتابو دَ ښځو سره دَ نکاح په حلالیدو باندِ اطمینان نه وُه۔

او دَ جمهورو صحابوُو او تابعینو په نزد اګرچه دَ قرآن په رو سره دَ اهلِ کتابو دَ ښځو سره فی نفسهٖ نکاح حلال دے۔ لیکن دَ دوی سره په نکاح کولو کښې چه کوم نور فسادونه او خرابۍ دی دَ خپل ځان او دَ خپل اولاد دَ پاره بلکه دَ ټول اُمّتِ اسلامی دَ پاره په تجربه سره خامخا پیدا کیګی۔ دَ دے خرابو په بنا باندِ دَ اهلِ کتابو دَ ښځو سره نکاح دوی هم مکروه ګنړلو۔

جصاص په احکام القرآن کښې د شقیق بن سلمه په روایت سره نقل کړے دے چه حضرت حذیفه بن یمانؓ هرکله چه مدائن ته اورسید و نو هلته دَ یوې یهودی ښځې سره ئې نکاح اوکړه۔ حضرت فاروقِ اعظمؓ ترے خبر شو، نو خط ئې ورته اولیکه چه دے لره طلاق ورکړه۔ حضرت حذیفهؓ ورته جواب کښې اولیکل چه دَ لے دا ځما دَ پاره حرامه ده، نو بیا ورته امیرالمؤمنین فاروق اعظمؓ په جواب کښې اولیکل چه زهٔ ورته حرامه نه وایم لیکن دَ دے خلقو په ښځو کښې عام طور سره عفت او پاکدامنی نیشتے په دے وجه ځما یره ده چه هسے نه ستاسو خلقو په کور رونو کښې دَ دوی دَ وجې نه فحش او بدکارۍ داخله نه شي۔ او امام محمد بن حسن رحمة الله علیه په کتاب الآثار کښې دا واقعه په روایت دَ امام ابوحنیفهؒ داسے نقل کړے ده چه دویمه پیره چه فاروقِ اعظمؓ کله حضرت حذیفهؓ ته خط اولیکه نو دَ هغې الفاظ دا دی :-

| | |
|---|---|
| اَعْزِمُ عَلَيْكَ اَنْ لَّا تَضَعَ كِتَابِىْ حَتّٰى تُخَلِّىْ سَبِيْلَهَا فَاِنِّىْ اَخَافُ اَنْ | " یعنی تا لره قسم درکوم چه ځما دَ دے خط په خپلو لاس کښې دَ کیخودو نه اول دے لره طلاق |

يَقْتَدِيَ بِكَ الْمُسْلِمُوْنَ فَيَخْتَارُوْا نِسَآءَ اَهْلِ الذِّمَّةِ لِجَمَالِهِنَّ وَكَفٰى بِذٰلِكَ فِتْنَةً لِنِسَآءِ الْمُسْلِمِيْنَ -

(كتاب الآثار ص۱۵۶)

ورکړه ا اراده ئے کړه، ځکه چه ځما سره یره ده چه نور مسلمانان به هم ستا نه عبرت واخلی او د ذمیا نو کتابیانو ښځو لره به د دوی د ښائست په وجه سره په مسلمانانو ښځو باندے ترجیح ورکړی نو د مسلمانانو ښځو د پاره به د دے نه لوئے مصیبت څه وی"

د دے واقعے نقل کولو نه پس حضرت محمد بن حسن رح فرمائی چه حنفیانو فقهاء دے لره اختیار دی چه دے نکاح ته حرام خو نه وائی لیکن د نورو فسادونو او خرابو په وجه سره ئے مکروه ګنړی -

او علامه ابن همام رح په فتح القدیر کښے نقل کوی چه د حذیفه رض نه علاوه طلحه رض او کعب بن مالک رض ته هم داسے واقعه راپیښه شوه چه دوی د ما ئده د آیات په بنا باندے د اهلِ کتابو د ښځو سره نکاح اوکړه نو کله چه ترے فاروقِ اعظم رض خبر شو نو سخت خفه شو او دوی ته ئے حکم ورکړو چه طلاق ورکړئ (مظهری)

د فاروقِ اعظم رض زمانه د خیرالقرون زمانه ده چه د دے خبرے هډو احتمال یکښے نه وه چه یو یهود نړه یا نصرانئ ښځه به د یو مسلمان ښځه شی او د اسلام او مسلمانانو خلاف به څه سازش اوکړے شی - دغه وخت خو صرف دا یره وه چه که چرته په دوی کښے بدکاری وی نو د دوی په وجه به زمونږ کورنئ ګنده شی، یا د دوی د ښائست په وجه به خلق دوی لره غوره کوی چه نتیجه به ئے داوی چه مسلمانانے ښځے به په تکلیف کښے اخته شی لیکن حضرت فاروق رض چه ډیر لرے نظر کونکے وه صرف د دغے فسادونو د مخ نیوی د پاره دا حضرات په طلاق مجبوره کوی - که دا ننني نقشه د دغے حضراتو په مخ کښے وے نو اندازه او لګوئ چه دوی به د دے متعلق څه عمل کولو - اول خو دغه خلق کوم چه نن د مردم شمارئ په رجسټرونو کښے د خپل نوم سره یهودی یا نصرانی لیکی - په دوی کښے ډیر هغه خلق دی چه د خپلے عقیدے په بنا سره یهودیت یا نصرانیت یو لعنت ګنړی، نه د دوی

په تورات او انجیل عقیده ده - او نه په حضرت موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام۔ ددوی د عقیدے په اعتبار سره بالکل بے مذهبه او دهریان دی صرف په قومی یا رسمی طور باندې خپل ځان ته یهودی یا نصرانی وائی -

ښکاره خبره ده چه داسے خلقو ښځے د مسلمانانو د پاره په هیڅ شان حلالے نه دی - او که فرض کړه که ددوی د خپل مذهب پابند هم وی نو ددوی لره په یوه مسلمانه کورنۍ کښے ځائے ورکول د خپل ټول خاندان د پاره دینی او دنیاوی تباهۍ لره بلنه ورکول دی - د اسلام او مسلمانانو خلاف کوم سازشونه چه د دے طرف نه په دے اخری دور کښے اوشوا و کیږی او د دے عبرتناکے ورځے د ستوګو د وړاندے راځی چه یوے جینۍ پوره مسلمان قوم او حکومت لره تباه کړو - دا داسے څیزونه دی چه د حلالو او حرامونه قطع نظر یو د عقل خاوند به هم دے ته نزدے کیدو ته تیار نه شی -

غرض دا دے چه د قرآن او سنت او د صحابه ؓ د عمل مطابق په مسلمانانو لازم دی چه د ننه ورځے د کتابیانو ښځو د نکاح نه په مکمل طور سره ځانونه اوساتی - د ایات په اخر کښے ئے دا خو دنه هم کړے ده ؒ چه که د اهل کتابو ښځے د ځان سره ساتل غواړئ نو باقاعده نکاح ورسره کوئ د ښځے په حیثیت سره ئے ساتئ، د دوی د مهر وغیره حقونه ورکوئ ددوی لره د لونډو په شکل ساتل او ښکاره بدکاری کول دا ټول څیزونه حرام دی -

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا

اے ایماندارو! هر کله چه تاسو پورته شئ مانځه ته نو او وینځئ

وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا

خپل مخونه او لاسونه خپل ترڅنګلو پورے او مسح کړئ

بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ط وَإِنْ كُنْتُمْ

خپل سرونه او خپے خپلے تر بجو کو پورے - او که تاسو

جُنُبًا فَاطَّهَّرُوْا ۭ وَاِنْ كُنْتُمْ مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ

په جنابت کښې یئ نو ښه ځان پاک کړئ - او که تاسو بیمار یئ یا په سفر کښې یئ

اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآئِطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ

یا راشی ستاسو نه څوک د ضروری حاجت نه یا ورشئ تاسو ښځو ته

فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا

پس نه مومئ اوبه نو قصد کوئ د خاورو پاکو او مسح کوئ

بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ مِّنْهُ ۭ مَا يُرِيْدُ اللّٰهُ

خپل مخونه او لاسونه په دے سره - الله اراده نه لری

لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ حَرَجٍ وَّلٰكِنْ يُّرِيْدُ لِيُطَهِّرَكُمْ

چه پتا سو تنګی راولی او لیکن اراده لری چه تاسو لره پاک کړی

وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهٗ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝۶

او پوره کړی خپل احسان پتاسو باندِ چه تاسو احسان او منئ

وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِيْ

او یاد کړئ احسان د الله پخپل ځان او وعده د هغه چه ستاسو

وَاثَقَكُمْ بِهٖٓ ۙ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۡ وَاتَّقُوا

سره ئے کړے وه هر کله چه تاسو ویلی وو چه مونږ واورېده او ومنلو مونږ - او ویریږئ

اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ۝۷

د الله نه - الله ښه پوهه دے د زړونو په خبرو باندے -

**د آیاتونو تړون** په تیرو آیاتونو کښې هغه شرعي احکام ذکر شوي وُو چه تعلق ئې د انسان د دنیوي ژوند او خوراک سکاک سره دے او په دے آیات کښې خو شرعي احکام د عباداتو متعلق ذکر شوي دي۔

# لنډ تفسیر

اے ایماندارو کله چه تاسو مانځه ته پورته شئ (یعنې د مانځه کولو اراده اوکړئ او ستاسو دغه وخت اودس نه وي)، نو (اودس کوئ یعنې) خپل مخونه اووینځئ او خپل لاسونه تر څنګلو پورے (اووینځئ) او پخپلو سرونو باندې (لوند لاسونه) واکاږئ او خپلو خپو لره هم تر بڼړکو پورے (اووینځئ) او که تاسو د جنابت په حالت کښې یئ نو (د مانځه نه اول) ټول بدن پاک کړئ او که تاسو بیمار یئ (او د اوبو استعمال درلره بد وي) یا په حالت د سفر کښې یئ (او اوبه نه ملاویږي لکه چه وړاندې راځي نو دا د عذر حالت شو) یا (که د مرض او سفر عذر هم نه وي بلکه دغسے اودس یا غسل مات شي داسے چه مثلاً) په تاسو کښې څوک سړے (د تشو بولو یا د ډکو بولو) د حاجت نه فارغ شي (راشي (چه په دے سره اودس ماتیږي) یا تاسو خپلو ښځو ته نږدے شئ (چه غسل پرے اوړي او) بیا (په دے ټولو صورتونو کښې) تاسو ته اوبه (د استعمال د پاره) ملاؤ نه شي (خواه د ضرر په وجه یا د اوبو نه موندو په وجه) نو (په دے ټولو حالتونو کښې) تاسو په پاکه زمکه سره تیمم کوئ یعنې خپل مخونه او لاسونه مسح کوئ په دے زمکے (په جنس) سره (لاسونه اووهئ) الله تعالیٰ ته (د دے احکامو په مقرر کولو سره) دا منظوره نه ده چه په تاسو څه تنګي راولي (یعنې دا ور ته منظوره ده چه په تاسو څه تنګي نه وي لکه چه په ذکر شوو احکامو کښې خصوصاً او په ټولو شرعي احکامو کښې عموماً د آسانۍ رعایت ظاهر دے) لیکن الله تعالیٰ ته دا منظوره ده چه تاسو پاک صاف کړي (په دے وجه د پاکۍ قاعدے او طریقے ئې جاري کړے او په یوه طریقه ئې بس والے اونه کړه چه که دا نه وے نو بیا به پاکوالے ممکن نه وه، مثلاً که صرف اوبه ئې د پاکوالي د پاره خاص کړے وے نو چه اوبه نه وے پاکوالے به نه شو کیدے۔ دا د بدنونو پاکوالے خو

خاص د احکامو د طهارت نه دی، او طهارت د زړونو په ټولو عباداتو نو کښې عام دے پس دا پاکوالے دواړو لره شامل دے، او که دا احکام نه وے نو هیڅ پاکی به نه حاصلیده) او دا (ورته منظوره ده) چه پتاسو خپل انعام پوره کړی. (په دے وجه ئے احکام مکمل کړه چه په هرحال کښې پاکوالے بدنی او قلبی چه فائده ئے رضا او قرب دے چه د ټولو نعمتونو نه لوئے نعمت دے حاصل کړئ) د دے دپاره چه تاسو (د دے مهربانئ) شکر ادا کړئ (په شکر کښې امتثال هم داخل دے) او تاسو خلق د الله تعالیٰ انعام چه پتاسو باندے ئے کړے دے یاد کړئ (چه په دے کښې لوئے انعام دا دے چه ستاسو د فلاح طریقے ئے ستاسو د پاره روا کړے) او د هغهٔ دا عهد هم (یاد کړئ) د کوم چه ستاسو سره معاهده شوے ده کله چه تاسو (د دے التزام هم کړے وه چه د عهد اغستو په وخت کښې تاسو) وئیلی وُو چه مونږ (د دے احکامو لره) واؤرید ه او او منل (ځکه چه د اسلام راوړو په وخت کښې هر سړے د دے خبرے عهد کوی) او د الله تعالیٰ (د مخالفت) نه او یرېږئ بے شکه الله تعالیٰ د زړونو د خبرو نه پوره خبر لری. (په دے وجه چه کوم کار کوئ نو په اخلاص او عقیده سره ئے کوئ صرف د منافقانو پشان هسے شکل مه جوړه وئ - مطلب دا دے چه په دے احکامو کښې اول خو ستاسو نفع ده او بیا تاسو هم پخپله ځان لازم کړی دی - بیا په مخالفت کښې ئے ضرر په دے وجه سره امتثال (یعنی بعینه هم دغسے کول) ضروری شو او هغه هم په زړهٔ سره ئے کول پکار دی ورنه کار د منافقو په شان جوړیږی -

---

یَاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا کُوْنُوْا قَوّٰمِیْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ

اے ایماندارو شئ ولاړ د الله تعالیٰ د پاره ګواهئ ورکولو لره

بِالْقِسْطِ ؗ وَلَا یَجْرِمَنَّکُمْ شَنَاٰنُ قَوْمٍ عَلٰٓی اَلَّا

په انصاف سره او د چا قوم د دشمنئ په وجه انصاف مه پاتے کوئ

تَعۡدِلُوۡا ؕ اِعۡدِلُوۡا ۟ هُوَ اَقۡرَبُ لِلتَّقۡوٰی ۫ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ؕ

عدل کوئ - دا خبره زیاته نز دے ده تقوٰی ته - او ویرېږئ د الله نه

اِنَّ اللّٰهَ خَبِیۡرٌۢ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۸﴾ وَعَدَ اللّٰهُ الَّذِیۡنَ

الله بنهٔ خبر دے د هغه څهٔ نه چه تاسو کوئ - وعده کړے ده الله د ایماندارو

اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ۙ لَهُمۡ مَّغۡفِرَةٌ وَّاَجۡرٌ

سره او څوک چه نیک عمل کوی - چه د دوی د پاره بخنه او لوئے

عَظِیۡمٌ ﴿۹﴾ وَالَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا وَكَذَّبُوۡا بِاٰیٰتِنَاۤ

ثواب دے - او کومو خلقو چه کفر اوکړه او دروغژن ئے کړه زمونږ ایاتونه

اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ الۡجَحِیۡمِ ﴿۱۰﴾

دغه دی دوزخیان -

# لنډ تفسیر

(د بیان القرآن نه)

اے ایماندارو د الله تعالیٰ د رضا لپاره د الله تعالیٰ د (خوشحالیدو د) پاره (د احکامو) پوره پابندی کوونکی (او چه د گواهئ وخت راشی نو) د انصاف گواهی ورکوونکی اوسئ او د یو خاص خلقو دشمنی دے تاسو لره دے ته جوړه نه کړی چه تاسو (د دوی په معاملو کښے) عدل او نه کړئ (بلکه ټولو سره په هره معامله کښے) عدل کوئ (یعنی عدل کول) د تقوٰی نه زیات نزدے دی (یعنی په دے سره تقوٰی دار بللے کیدے شی) او (تقوٰی کول په تاسو فرض دی نو حکم شوے دے چه) د الله تعالیٰ (د مخالفت) نه ویره کوی (دا حقیقت دے د تقوٰی پس عدل چه په تقوٰی باندے موقوف دے هم فرض شو) بے شکه الله تعالیٰ ستاسو د ټولو عملونو نه پوره خبر دے (پس

کړی احکامو نه خلاف کوي نوکو ته سزا ملاؤ نو لری نه ده) الله تعالیٰ د دا سے خلقو د پاره چه ایمان راؤړی او (دوی) نیک کارکوی وعده کړے ده چه د دوی د پاره مغفرت او لوئے ثواب دے او کوم خلق چه کفر او کړه او زمونږ احکام ئے دروغ ګڼل کړل دا سے خلق به دوزخ کښے او سیدونکی دی۔

# معلومات او مسئلے

په ذکر شوو ذړے آیا تونو کښے په اوّل آیات کښے چه کوم مضمون بیان شوے دے تقریبًا هم په دے الفاظو سره په سورتِ نساء کښے هم تیر شوے دے، فرق دومره دے چه هلته: كُونُوا قَوَّامِينَ بِالْقِسْطِ شُهَدَاءَ لِلّٰهِ: بیان شوے وه او دلته: كُونُوا قَوَّامِينَ لِلّٰهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ: فرمائیلے شوے دے۔ په دے دواړو آیا تونو کښے د الفاظو د وړاندے والی او روستو والی یوه باریکه وجه ابو حیان په تفسیر بحرِ محیط کښے ذکر کړے ده۔ چه د هغے نچوړ دا دے:-

انسان لره د عدل او انصاف نه منع کونکی او په زور ظلم کښے اخته کونکی عادتًا دوه سببونه وی، یو د خپل نفس یا خپلو دوستانو او خپلو انو طرفداری، دویم د چا سره دشمنی او عداوت، د سورتِ نساء د آیا تونو د خبرے مخ اول مضمون (سبب) طرف ته دے۔ او د سورتِ مائده کړے آیات د خبرے مخ دویم مضمون (سبب) طرف ته دے۔

په دے وجه په سورتِ نساء کښے د دے نه پس ارشاد دے، وَلَوْ عَلٰی أَنْفُسِكُمْ أَوِ الْوَالِدَيْنِ وَالْأَقْرَبِينَ: یعنی په عدل او انصاف باندے قائم اوسئ خواه د دغے عدل او انصاف دا حکم پخپله ستاسو په نفسو نو یا ستاسو په مور و پلار یا د خپلوانو دوستانو خلاف د ولے نه وی۔ او د سورتِ مائده په آیات کښے د دے جملے نه پس دا ارشاد دے: وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلٰى أَلَّا تَعْدِلُوا: یعنی د یو قوم سره دشمنی او وران دے تاسو دے ته تیار نه کړی چه تاسو د انصاف نه خلاف اوکړئ۔

په دے وجه د سورتِ نساء د آیات مطلب دا شو چه د عدل او انصاف په

معامله کښې دَخپل نفس او مور وپلار او خپلوانو هم پرواه مکوئ، که دَ انصاف حکم دَدوی خلاف وی نو هم په خلاف قائم اوسئ۔ او دَ سورتِ مائده دَ آیات مطلب دا شو چه دَعدل او انصاف په معامله کښې دَچا دشمن دَدشمنئ په وجه سره لغزش نه دی راتلل پکار چه دهٔ ته دَ نقصان رسولو دَپاره دَ انصاف نه خلاف کار اوکړے۔

دا وجه ده چه دَسورتِ نسآء په آیات کښې: قِسط: یعنی انصاف وړمبے کړو ارشاد ئے اوفرمایه: کُوْنُوْا قَوّٰامِیْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ: او دَسورتِ مائده په آیات کښې: لِلّٰهِ؛ وړمبے کړو ارشاد ئے اوفرمایه: کُوْنُوْا قَوّٰامِیْنَ لِلّٰهِ شُهَدَآءَ بِالْقِسْطِ؛ اګرچه دَانجام او نتیجے په اعتبار سره دا دواړه عنوانونه یو مقصد اداکوی ځکه چه کوم سړے په انصاف ولاړ وی هغه دَالله دَ پاره ولاړ وی، او کوم سړے چه دَالله دَ پاره ولاړ وی هغه به خامخا انصاف کوی۔ لیکن دَخپل نفس او دوستانو خپلوانو دَ رعایت په مقام کښې داخیال راتلے شی چه دَدے تعلقاتو ساتنه کول هم دَالله دَپاره ده په دے وجه ئے هلته لفظ دَقسط؛ وړاندے راوړی دے طرف ته ئے خودنه اوکړه چه دغه رعایت دَالله دَپاره نه شی کیدے کوم چه دَعدل او انصاف نه خلاف وی۔ او په سورتِ مائده کښې دَدشمنانو سره دَعدل او انصاف کولو حکم ورکول وو نو هلته ئے لفظ دَالله: وړاندے راوړو انسانی فطرت او جذباتو ئے دَمغلوب کیدو نه اوویستل چه تاسو خلق دَالله دَپاره ولاړ یئ چه دَدے لازمی نتیجه دا ده چه دَدشمنانو سره هم انصاف کوئے۔

لنډه دا ده چه دَسورتِ نسآء او مائده په دواړو آیاتونو کښې دوه دَوو څیزونو طرف ته خودنه ده۔ یوه دا چه خواه معامله دَدوستانو سره وی او که دَدشمنانو سره دَعدل او انصاف په حکم باندِ قائم اوسئ نه دَچا تعلق ساتنے په وجه په دے کښې کمزوری راتلل پکار دی او نه دَچا په دشمنئ او وراندے سره۔

دویم خودنه په دے دواړو آیاتونو کښې دا هم ده چه دَ بشتو ے

ګواهۍ او حقې خبرې د بیانولو نه ډډه نه دی کول پکار. د دې د پاره چه فیصله کوونکو ته په حق او صحیح فیصله کولو کښې کرانوالے راپیښ نه شی.

قرآن کریم په دے مضمون په ډیر وا یاتو نو کښې په مختلفو عنوانونو سره زور ورکړے دے او تاکید ئې کړے دے چه خلق دے په رشتو نے ګواهۍ ورکولو کښې کوتاهي او سستی نه کوی. په یو ایات کښې ډیر په وضاحت سره دا حکم ورکوی چه:

وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَنْ يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ:

"یعنی ګواهي مه پټوئ او کوم سړے چه ئې پټه کړی د ده زړه به ګناهګار وی." چه د دے نه رشتونے ګواهي ورکول واجب او پټول ئې سخت ګناه ثابت شو.

لیکن د دے سره قرآن حکیم په دے هم نظر ساتلے دے چه خلقو له د رشتونے ګواهۍ ورکولو نه منع کونکے شے په اصل کښې دا دے چه ګواهانو ته بار بار د عدالتو حاضری او فضول قسم وکیلانه جرحو سره مخامخ کیدل وی چه د دے نتیجه دا وی چه د چا نوم په ګواهۍ کښې راشی دے په یو مصیبت کښې اخته شی د خپل کاروبار نه پاتې شی او د مفتو په تکلیف کښې پریوځی.

په دے وجه قرآن کریم چه یو طرف ته ګواهي لازم او واجب مقرر کړه بل طرف ته ئې دا هم او فرمائیل: وَلَا يُضَارَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيدٌ: یعنی د معاملے لیکونکو او ګواهانو ته دے نقصان نه شی د رسولے.

د نن ورځے عدالتونو او په دے کښې د پیش کیدونکو مقدمو که صحیح تحقیق اوکړے شی نو معلومه به شی چه د موقعے او رشتونی ګواهان به شاذو نادر چرته ملاویګی. یو هه او شریف سړے چه څۀ داسے واقعه وینی نو تختی ترے چه هسے نه په ګواهۍ کښې م نوم را نه شی. پولیس د اخوا دیخوا ګواهانو نه خانه پُری کوی او نتیجه ئې هم دغه وی کو مه چه شپه او ورځ لیدے شی چه په سلو کښې د لسو یا پنځو مقدمو هم په حق او انصاف سره فیصله نه شی کیدے او عدالتونه هم مجبور دی

دوی ته چې څنګه شهادت اورسي دوی د هغې په ذریعه څه نتیجه راؤباسي او د هغې په بنیاد فیصلې کوي۔

لیکن د دې بنیادي غلطۍ ته هیڅ څوک نه ګوري چې که د ګواهانو سره شریفانه معامله اوشي او دوی بار بار نه پریشانه کړی شي۔ نو بنه نیکان او رښتوني خلق به د قرآني تعلیماتو په رڼا کښې د ګواهۍ نه ځانونه نه پټنلی کوي۔ لیکن څهٔ چې کیږي هغه دا دي چې د معاملې اوّلني تحقیق کوم چې پولیس کوي هغه هم بار بار په راغوختو باندې ګواهان دومره پریشانه کړي چې هغوی آئنده هم خپل اولاد له لیکلی ورکوي چې چرته هم په څهٔ معامله کښې ګواهان جوړ نه شئ۔ بیا چې معامله عدالت ته اورسي نو هلته بیا په څه تاریخونه لګي په هر تاریخ باندې دې بې ګناه ګواه له د حاضرۍ سزا ملاویږي۔ دې اوږدې عدالتي کارروائۍ کومه چې انګریزانو خپل یادګار پاتې کړې دې۔ زمونږ ټول عدالتونه او محکمې ګنده کړې دي۔ په پخواني ساده طرز کوم چې نن هم په کلیو او بعض نورو ملکونو کښې رواج دې نه مقدمې دومره ډیرېدې شي او نه پکښې دومره اوږده والې راځي او نه ګواهانو ته ګواهي ورکول مصیبت جوړېدې شي۔

لنډه دا چې که د ګواهۍ او کارروائۍ طریقې د قرآن د تعلیماتو مطابق شي نو د دې برکتونه به نن هم سترګې اووینې۔ قرآن کریم یو طرف ته د واقعې نه په خبردارو خلقو رښتوني ګواهي ورکول لازم او واجب کړي دي نو بل طرف ته ئې خلقو ته دا سې خوندي کړي دي چې ګواهان به بې وجې نه پریشانه کوئ، د کمو نه په کم وخت کښې دې د دوی نه بیان واخستې شي او دوی دې فارغ کړې شي۔

**د امتحانانو نمبرې، سرټیفیکټونه او د انتخاباتو ووټونه ټول د شهادت په حکم کښې داخل دي**

په آخر کښې یو اهمه خبره هم دلته پېژندل ضروري دي هغه دا چې د لفظ د شهادت او ګواهۍ چې کوم مطلب نن صبا په عُرف کښې مشهور شوې دې هغه صرف په مقدمو او جګړو کښې د حاکم په وړاندې د ګواهۍ ورکولو د پاره مخصُوص ګنړلې شي۔ لیکن د قرآن او سُنّت په اصطلاح کښې

لفظ د شهادة: د دینه زیاته وسیعه معنی لري - مثلاً یو بیمار لره ډاکټري سرټیفکیټ ورکول چه دے د ډیوټئ اداکولو قابل نه دے یا د نوکرئ کولو قابل نه دے داهم یو شهادت دے که په دے کښې ئے د واقعې نه خلاف څه اولیکل نو د دروغو شهادت او ګناه کبیره (لوئے ګناه) دے۔

دغه شان په امتحانا تو کښې د طالب علمانو په پرچو باندے نمبرے لګول هم یو شهادت دے که قصداً یا په بے پرواهئ سره په نمبرو کښې کے زیاتے او کړی نو دا هم د دروغو شهادت دے او حرام او سخت ګناه دے۔

کامیابو او فارغ شوو طالب علمانو لره سند یا سرټیفیکیټ ورکول د دے خبرے ګواهي ده چه دے د دے متعلقه کار اهلیّت او صلاحیّت لري - که دغه سړے په واقع کښې داسے نه وی نو په دے سرټیفیکیټ یا سند دستخط کونکی ټول د دروغو د ګواهئ مجرمان شو۔

دغه شان د اسمبلیانو او کونسلونو وغیره په انتخاب کښې یو امیدوار لره ووټ ورکول هم یو شهادت (ګواهي) ده، چه د ووټ ورکونکی د طرف نه د دے خبرے ګواهي ده چه ځما په نزد دا سړے د خپل طاقت او قابلیّت په اعتبار سره هم او د امانت او دیندارئ په لحاظ سره هم د قوم نمائنده جوړیدو قابل دے۔

اوس غور او کړئ چه زمونږ په دے نمائنده ګانو کښې څومره داسے دی چه د هغوی په حق کښې به داګواهي رشتونے او صحیح ثابته شي، مګر زمونږ عوام دی چه هغوی دے لره د کښې بیلات یولوبه ګنړلے ده - په دے وجه د ووټ حق کله په پیسو خرڅیګی او کله د چا د باؤ لاندے استعمالیږی او کله د بے ځائے دوستانو او ذلیلو وعدو په اُمید باندے استعمالولے شي۔

او نور لا دا چه بنه تعلیمیافته دیندار مسلمانان هم نااهلو خلقو لره د ووټ ورکولو په وخت کښې چرته هم دا نه ګنړی چه مونږ دا د دروغو ګواهي ورکوو، ځان د لعنت او عذاب مستحق کوو۔

نمائنده ګانو لره د انتخاب په وخت کښې د ووټ ورکولو د قرآن په رڼا کښې یو بل حیثیت هم دے چه شفاعت یا سفارش ورته وئیلے شي - چه د وو ټا

ورکوونکے کو یا دَ دے خبرے سفارش کوی چه فلانی امید وار دے نمائندګی ورکړے شی دَ دے حکم دَ قرآن شریف په الفاظو کښے مخکښے بیان شوے دے. ارشاد دے:-

وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا :

"یعنی کوم سړے چه ښه او رښتونے شفارش کوی نو دَ چا په حق کښے چه ئے سفارش کړے دے دَ دهٔ دَ نیک عمل حِصّه به دهٔ ته هم ملاویګی- او کوم سړے چه ناکاره سفارش کوی یعنی دَ یو نا اهل او ناکاره سړی دَ کامیاب کولو کوشش کوی دهٔ ته به دَ هغهٔ دَ بد عمل حصّه ملاویګی"-

دَ دے نتیجه دا ده چه دا امید وار دَ خپلے کارکردګۍ په دے پنځه کلیزی دَور کښے چه هرڅومره غلط کارونه اوکړی دَ دے ټولو وبال به ووټ ورکوونکی ترهم رَسی-

دَ ووټ یو دریم شرعی حیثیت دَ وکالت دے- چه ووټ ورکوونکے دے امیدوار لره دَ خپلے نمائندګۍ دَ پاره وکیل جوړوی- لیکن که دا وکالت صرف هم دَ دغے سړی دَ حق سره متعلق وے او نفع نقصان ئے صرف دَ دهٔ ذات ته رسیدے نو دَ دے به دے پخپله ذمه وار وو مګر دلته داسے نه ده ځکه چه دا وکالت دَ داسے حقوقو متعلق دے په کوموکښے چه دَ دهٔ سره پوره قوم شریک دے- په دے وجه که یو نااهل لره ئے دَ خپلے نمائندګۍ دَ پاره ووټ ورکړو او کامیاب ئے کړو نو دَ ټول قوم دَ حقوقو پائمال کولو ګناه هم دَ دهٔ په غاړه شو-

لنډه دا چه زمونږ ووټ درے حیثیتونه لری، یو شهادت، دویم شفاعت دریم په مشترکو حقوقو کښے وکالت- په درے واړو حیثیتونو کښے چه لکه څنګه نیک صالح او قابل سړی لره ووټ ورکول لوئے ثواب دے او فائدے به ئے دهٔ ته ملاویګی- دغه شان نا اهل یا بے دینه سړی لره ووټ ورکول دَ دروغو ګواهی هم ده او ناکاره سفارش هم دے او ناجائزه وکالت هم دے- او دَ دے تباه کوونکی ګناهونه به دَ دهٔ په عمل نامه کښے هم لیکلے شی-

په دے وجه هر مسلمان ووټر لره دا فرض دی چه دَ ووټ ورکولو نه اوّل

دَ دے خبرے پوره تحقیق اوکړئ چه چا لره دے ووټ ورکوی په هغهٔ کښے دَ کار صلاحیت شته او که نه او ویندار دے یا نه، هسے نه چه بے وجې په دے لوئے گناه کښے اخته شئ۔

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَتَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ

اے ایماندارو یاد ساتئ احسان دَ الله تعالیٰ پخپل ځان باندے

إِذْ هَمَّ قَوْمٌ أَنْ يَبْسُطُوا إِلَيْكُمْ أَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ

هر کله چه قصد اوکړو خلقو چه پتاسو لاسونه اوچلوی بیا ئے بند کړهٔ ستاسو

أَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ

نه دَ هغوی لاسونه - او یره کوئ دَ الله نه - او په الله تعالیٰ پکار ده بهروسه

الْمُؤْمِنُونَ ﴿١١﴾ وَلَقَدْ أَخَذَ اللَّهُ مِيثَاقَ بَنِي إِسْرَائِيلَ ع۲

ایماندارو لره - او اغستے دے الله پاک عهد دَ بنی اسرائیلو نه

وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيبًا ۖ وَقَالَ اللَّهُ إِنِّي

او مقرر کړی دی مونږ په دوی کښے دولس سرداران - او اُووئے الله زهٔ پتاسو

مَعَكُمْ ۖ لَئِنْ أَقَمْتُمُ الصَّلَاةَ وَآتَيْتُمُ الزَّكَاةَ

سره یم - که تاسو قائم کړو مانځه لره او ورکا وهٔ تاسو زکوٰة لره

وَآمَنْتُمْ بِرُسُلِي وَعَزَّرْتُمُوهُمْ وَأَقْرَضْتُمُ اللَّهَ

او یقین مو راوړو ځما په رسولانو او مدد اوکړه تاسو دَ دوی او قرض ورکړه تاسو الله

قَرْضًا حَسَنًا لَأُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَلَأُدْخِلَنَّكُمْ

لره قرض ښهٔ نو البته لرے به کړم زهٔ ستاسو نه گناه ستاسو او داخل به کړم تاسو

جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ ۚ فَمَنۡ كَفَرَ بَعۡدَ

باغونو ته چه بهیږی به لاندے د هغوی نه ولے - بیا چه څوک کافر شو پاسو

ذٰلِكَ مِنۡكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِیۡلِ ﴿۱۲﴾

کښے ودے نه پس نو دے بے شکه گمراه شو د نیغ لارے نه -

# لنډ تفسیر

(د بیان القرآن نه)

اے ایماندارو د الله تعالیٰ انعام یاد کړئ چه پتاسو شوے دے کله چه یو قوم (یعنی کافرانو د قریشو په اول د اسلام کښے چه مسلمانان کمزوری وُو) په دے فکر کښے وُو چه پتاسو (داسے) لاس وغزوی (کده کړی چه تاسو ختم کړی) پس الله تعالیٰ د دوی قابو پتاسو باندے (دومره) اونه چلاوُه (او په آخر کښے ئے تاسو غالب کړئ پس دا نعمت یاد کړئ) او (د احکامو په اداکولو کښے) د الله تعالیٰ نه یره کوئ (چه دا دے نعمت دا شکریه ده) او (اے ایماندارو لره په الله تعالیٰ اعتماد ساتل پکار دی (چاچه د اول نه ستاسو ټول کارونه جوړ کړی دی او اُئنده هم د اخرت پورے امید ساتئ په اِتَّقُوا الله سره ئے اویره ول او د توکل په امر کولو سره ئے ورلره امید ورکړه او هم دا دوه خبرے دی چه د عمل کولو مددګاری کوی) او الله تعالیٰ د (حضرت موسیٰؑ په ذریعه سره د) بنی اسرائیلو نه (هم) عهد اخستے وه (چه بیان ئے نن دے را روان دے) او (د دے وعدو د تاکید د پاره) په دوی کښے مونږ (د دوی د قبیلو د شمار موافق) دولس سرداران مقرر کړه (چه په هر یوه قبیله یو یو سردار دے چه پخپلو ماتحتانو باندے به همیشه د وعدے پوره کولو تاکید ساتی) او (د دے نه سوا د عهد د تاکید د پاره دوی ته) الله تعالیٰ دا سے هم او فرمائیل چه زهٔ ستاسو سره یم (ستاسو د ښو بدو هر څه خبر لرم، مطلب دا دے چه عهد ترے واخستے شو بیا ئے د دے بار بار تاکید او فرمایه او د دے عهد د مضمون پخوړ دا وُه چه) که تاسو

دَمانځهٔ پابندی ساتئ او زکوٰة ورکوئ او ټولو رسولانو (چه اشند د به هم نوی نوی راځی) ایمان راوړئ او (دَ دشمنانو په مقابله کښے) دَ دوی مدد کوئ او (علاوه دَ زکوٰة نه نور هم دَ خیر په کارونو کښے صرف کوئ) الله تعالیٰ لره په ښهٔ طور سره (یعنی په اخلاص سره) قرض ورکوئ نو زهٔ به خامخا ستاسو گناه ستاسو نه لرے کړم او خامخا به تاسو لره (دَ جنت) په باغونو کښے داخل کړم چه دَ (محلونو) لاندے به ئے نهرونه بهیږی او کوم سړے چه دَ دے (عهد او وعدے کولو) نه پس هم کفر اوکړی نو هغه بے شکه دَ نیغے لارے نه لرے لاړ شو-

# مَعلومَات او مَسئلے

دَ سورتِ مائده اُووم ایات چه څلکښے تیر شوے دے په دے کښے الله تعالیٰ دَ مسلمانانو سره دَ یو عهد او وعدے کولو او منلو او تسلیم کولو ذکر دا سے فرمائیلے دے: وَاذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ وَمِيْثَاقَهُ الَّذِىْ وَاثَقَكُمْ بِهٖٓ اِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا - وَاتَّقُوا اللهَ - دا میثاق دَ الله او دَ رسول دَ حکم منلو او دَ شرعی حکمونو دَ تابعدارئ میثاق (عهد) دے- او هر کلمه وَیونکے مسلمان دَ دے میثاق پابند دے- دَ دینه پس په ایات کښے دَ میثاق دَ بعضے اهمو دفعو یعنی خاص شرعی احکامو بیان دے- چه په دے کښے دَ دوست دشمن ټولو دَ پاره دَ عدل او انصاف دَ قائمولو او دَ اقتدار حاصلولو نه پس دَ دشمنانو نه دَ بدل اَغستو په ځائے دَ انصاف او روا دارئ تعلیم ورکړے شوے دے- دا میثاق پخپله هم دَ الله تعالیٰ یو لوئے انعام دے په دے وجه ئے دا په: اُذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللهِ: سره شروع کړے دے-

دا ذکر شوے ایات ئے بیا دَ دے جملے: اُذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللهِ عَلَيْكُمْ: سره شروع کړه دائے او خودَله چه مسلمانانو دَ دے خپل عهد او میثاق پابندی اوکړه نو الله تعالیٰ دوی لره په دنیا او په آخرت کښے قوّت او لوئے درج ورکړه او دَ دشمنانو په مقابله کښے ئے دَ دوی امداد اوفرمائیه او دَ دشمنانو په هره یوه قابو ئے په دوی او نه چلاوهٔ-

په دے آیات کښے خاص طور ذکر دے چه دشمنانو بار بار دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم او دَ مسلمانانو دَ ورکولو او دَ قتل کولو منصوبے جوړے کړے او تیاریانے ئے اوکړے لیکن الله تعالیٰ په ټولو کښے نامراده او زیانکاره کړه - ارشاد دے چه" یو قوم په دے فکر کښے وه چه پتاسو لاسونه اوکږدی لیکن الله تبارک و تعالیٰ دَ دوی لاسونه ستاسو نه منع کړل "-

په مجموعی حیثیت سره خو داسے واقعات په اسلامی تاریخ کښے بے شماره دی چه دَ کفارو منصوبے دَ خدائے په فضل سره په خاؤرو کښے ملاؤ شوے لیکن بعض خاص خاص اهم واقعات هم دی چه مفسرینو حضراتو دَ دے آیات مصداق گرځولی دی - مثلاً په مسند عبدالرزاق کښے دَ حضرت جابرؓ نه روایت دے چه :-

په یو جهاد کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم او صحابه کرامؓ په یو منزل باندے ایسار شو - صحابه کرام خواره واره پخپلو خپلو ځایونو په آرام شو - نبی کریم صلے الله علیه وسلم یوا ځے دَ یوے اونے لاندے په آرام شو، او خپله وسله ئے یوے اونے ته زوړنده کړه - په دشمنانو کښے یو کلی وال موقع غنیمت اوګڼڵه او په پټه راغے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم په توره ئے قبضه اوکړه او توره ئے پورے راښکله، او ویستله او ئے وئیل چه : مَنْ يَّمْنَعُكَ مِنِّيْ : وایه چه اوس به دے څوک زما نه خلاص کړی ؟
نبی کریم صلے الله علیه وسلم فوراً اوفرمائیل : اَللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ : کلی وال بیا هغه کلمه او وے : مَنْ يَّمْنَعُكَ مِنِّيْ : دوی بیا پرے فکر ئے سره اوفرمائیل : اَللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ : دوه درے پیرے دغسے خبرے اوشوے چه غیبی قدرت په هغه سړی دومره رُعب واچاؤ چه دے مجبوره شو او توره ئے په تیکی کښے دَننه کړه، دغه وخت نبی کریم صلے الله علیه وسلم صحابه را اوغوښتل او دا واقعه ئے ورته بیان کړه - دغه کلی وال لا تراوسه دَ دوی په څنګ کښے ناست وه ، دوی هغه ته هیڅ هم اونه وئیل - (ابن کثیر)
دغه شان دَ بعضے صحابوؓ نه دَ دے آیات په تفسیر کښے نقل دے،

چه کعب بن اشرف یهودی یو وار نبی کریم صلے الله علیه وسلم خپل کورته را اوغوښتو د دوئ د قتل کولو سازش ئے جوړ کړے وه الله تعالیٰ دوئ ته په وخت خبر ورکړو او د هغه ټول سازش د خاورو سره ملاؤ شو- (ابن کثیر)

او د حضرت مجاهد، عکرمه وغیره نه نقل دے چه یو ځل نبی کریم صلے الله علیه وسلم په څهٔ معامله کښې د یهودیانو د بنی نضیر خوا له تشریف یوړو - هغوی نبی کریم صلے الله علیه وسلم د یو دیوال لاندے کینول او په خبرو کښې ئے مشغول کړل، او بل خوا ئے عمرو بن جحش په دے کار مقرر کړو چه د شا طرفنه دیوال ته اوخیژی او یو لویه تیګه د دوئ په سر را اوغورزوی الله تعالیٰ خپل رسول صلے الله علیه وسلم د دوی په اراده خبر کړو او دوئ فوراً د هغه ځائے نه پاسیدل - (ابن کثیر)

په دے واقعاتو کښې څهٔ تضاد نیشته دا ټول د ذکر شوی ایات مصداق جوړیدے شی، په ذکر شوی ایات کښې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم او د مسلمانانو د غیبي حفاظت د ذکر کولو نه پس فرمائی: اِتَّقُوا اللّٰهَ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ:

په دے کښې یو ارشاد خو دا دے چه دا خدائی انعام صرف د نبی کریم صلّی اللهُ عَلَیْهِ وسلّم سره خاص نه دے بلکه د دے نصرت او امداد او غیبي حفاظت اصل سبب تقویٰ او توکّل دے - کوم قوم یا فرد چه په کوم زمانه او کوم ځائے کښې چه دا دوه صفتونه اختیار کړی د هغهٔ به هم دغه شان د الله تعالیٰ د طرف نه حفاظت او مدد وی - چا څهٔ ښهٔ ویلی دی ؎

فضائی بدر پیدا کر فرشتے تیری نصرت کو		اُتر سکتے ہیں گردوں سے قطار اندر قطار اب بھی

(د بدر د میدان فضاء (یعنی حالات) پیدا کړه نو اوس هم ستا مدد د ته د آسمان نه په قطارونو کښې فرښتے راکوزیدے شی) -

او دا هم کیدے شی چه دا جمله د تیرو ایات د مجموعے سره اولګولے شی په کوم کښې چه ئے د ناکاره دشمنانو سره د ښهٔ سلوک او عدل او انصاف احکام ورکړی دی - نو بیا به په دے جمله کښې دے طرف ته اشاره وی چه د دا سے سختو دشمنانو سره د ښهٔ سلوک او رواداری تعلیم په ظاهره یوه سیاسی

غلطي او دښمنانو لره زیره ورکول دي- په دے وجه په دے جمله کښے مسلمانانو
په دے باندے پوهه کړل چه که تاسو تقوٰی اختیار کړئ او په الله تعالیٰ
بهروسه کوئ نکی شئ نو رواداری او ښۀ سلوک به ستاسو دپاره قطعًا مُضر
نۀ وی او په دے سره به ستاسو دشمنان پټاسو کښې زیره ورکیدو په ځائے ستاسو
د اثر لاندے راشی او اسلام ته د نزدے کیدو سبب به ئے جوړ شی- دا د تقوٰی
تقوٰی او دخدائے نه یَره هغه شے دے چه یو انسان لره دَعهد ومیثاق
په پابندکولو مجبوره کوی، کوم ځائے چه تقوٰی یعنی دَ خدائے یَره نه وی
هلته دَعهد ومیثاق هغه حشر وی لکه نن صبا چه په عامو خلقو کښے لیدے
شی- په دے وجه په بَدنی کوم آیات کښے چه دَ میثاق ذکر دے هلته ئے دَ آیات
په آخر کښے: وَاتَّقُوا اللّٰهَ: فرمائیلی وه- او دلته ئے دوباره بیا راوړو- دا د
په دے پوره آیات کښے دے طرف ته هم اشاره فرمائیلے ده چه دَ مسلمانانو
فتح صرف په ظاهری سازوسامان باندِ نه ده بلکه دَ دوی دَ اصل طاقت راز
په تقوٰی او توکّل کښے دے -

په دے آیات کښے دَ مسلمانانو دَعهد ومیثاق اَغستو او دَ دوی په وعدے
پوره پوره کولو باندے د دنیا او آخرت دَ دے بے شماره فائدہ مند ونتیجو
ذکر کولو نه پس دَ معاملے دَ دویم مخ مخے ته دَ راوړو دَپاره په دویم آیات کښے
داخوولے ده چه دا عهد او میثاق اغستل صرف دَ مسلمانانو دَ پاره مخصوص
نۀ دی بلکه دَ دوی نه وړاندے دَ نورو امتونو نه هم داسے قسم وعدے
اغستے شوے وے- مګر دوی پخپل عهد ومیثاق کښے پوره او نه ختل
په دے وجه په دوی قسم قسم عذابونه مسلّط کړے شو- ارشاد فرمائی
چه الله تعالیٰ دَ بنی اسرائیلو نه هم یو عهد اغستے وه- او دَ دوی نه ئے عهد
په داسے صورت سره اغستے وه چه ټول قوم دَ بنی اسرائیلو چه په دولسو
خاندانونو باندے مشتمل وُو- دَ دوی دَ هر یو خاندان نه ئے یو یو سردار
واغستو- او دے سردارانو هر یو دَ خپل خپل خاندان دَ طرف نه دا ذمواری
قبول کړه چه زۀ او زما ټول خاندان به دَ الله تعالیٰ دَ دے میثاق پابند ی
کوی، دغه شان دے دولسو سردارانو دَ بنی اسرائیلو دَ ټول قوم ذمواری واغسته

د دوی ذمه واري دا وه چه پخپله د دے میثاق پابندي اوکړي او خپل خاندانونه ئے هم اوکړي - د لته دا خبره د یاد ولو قابل ده چه د عزت او فضیلت په معامله کښے د اسلام اصول څه دي چه :-

بندهٔ عشق شدی ترک نسب کن جامی — که درین راه فلان بن فلان چیزے نیست

(یعني د عاشقانو په تولی کښے د نسب تپوس نیشته د لته د اخلاق او صدق تپوس کیږي)
نبي کریم صلی الله علیه وسلم د حجة الوداع په تاریخي خطبه کښے په پوره وضاحت سره د دے اعلان فرمائیلے دے چه په اسلام کښے د عربي، عجمي، تور، سور او لوئے او وړوکي ذات پات هیڅ فرق نیشته - ځوک چه په اسلام کښے داخل شو هغه د ټولو مسلمانانو رورشو، حسب او نسب، د رنګ او وطن د ذریعے قوم فرقونه چه په جاهلیت کښے وُو د دے ټولو له اسلام مات کړل - لیکن د دے معني دا نه ده، چه په انتظامي معاملاتو کښے د انتظام قائم ساتلو د پاره دے هم د خاندان خصوصیاتو لحاظ نه شي کولے -

دا فطري خبره ده - چه د یو خاندان خلق د خپل خاندان په معلوم سړي باندے د نورو نه زیات اعتماد کولے شي - او دا سړے د دوی د پوره تفسیاتو نه خبر داري په وجه د دوی د جذباتو او خیالاتو زیات رعایت ساتلے شي، نو د دے حکمت او مصلحت په بنا باندے د بني اسرائیلو د دولسو خاندانونو نه چه کله عهد اخستے شو نو د هر یو خاندان نه ئے یو یو سردار ذمه وار کړو -

او د دے انتظامي مصلحت او اطمینان رعایت په هغه وخت کښے هم اوساتلے شو کوم وخت چه د بني اسرائیلو قوم د اوبو نه مونده وه په وجه په سخته پریشانئ کښے وُو - حضرت موسیٰ علیه السلام دعا اوکړه او د الله تعالیٰ په حکم باندے دوی خپله همسا په یو کټه او وهله نو الله تعالیٰ د د غے کټے نه دولس چینے د دولسو خاندانونو د پاره جدا جدا جاري کړے -

په سورتِ اعراف کښے قرآن کریم د الله تعالیٰ د دے لوئے احسان ذکر دا سے فرمائیلے دے :-

وَقَطَّعْنٰهُمُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ اَسْبَاطًا | مونږ تقسیم کړی وُو د دوی دولس خاندانونه

| | |
|---|---|
| أُمَمًا - او - فَانْۢبَجَسَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ | او بیا را په دولسو ډلو کښې او ورته دولس چینې روانې کړې (هر یو خاندان وپاره جُدا جُدا) - |

او دا د دولسو عدد هم څه عجیبه خصوصیت او مقبولیت لري -

کوم وخت چه د مدینې انصار نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته راغلو د مدینې د تلو دعوت ئے ورکولو او د دوی ترمنځ د بیعت په ذریعه معاهده واغستله نو په دے معاهده کښې هم د انصارو دولسو سردارانو ذمواري واغستله، او د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په لاسو مبارکو ئے بیعت کړے وُه - په دوی کښې درے سرداران د قبیلے د اَوس نه وُو او نهٔ سرداران د قبیلے د خزرج نه وُو (ابن کثیر)

او په صحیحینو کښې د حضرت جابر بن سمرة رض نه روایت دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه د خلقو کارا و انتظام به تر هغه وخته پورے چلیږی ترڅو چه دولس خلیفه گان د دوی مشری کوی، امام ابن کثیر د دے حدیث نقل کولو نه پس لیکی چه د دے حدیث د یو لفظ نه دا نه معلومیګی چه دا دولس خلیفه گان به پرلپسے وی، بلکه د دوی په مینځ کښې فاصله هم کیدے شی. لکه چه څلور خلیفه گان حضرت صدیق اکبر رض، فاروق اعظم رض، عثمان رض، علی رض رضی الله تعالیٰ عنهم پرلپسے دی او په مینځ کښې څهٔ موده پس حضرت عمر بن عبد العزیز رح په اجماع د امّت سره پنځم خلیفه برحق منلے شوے دے -

څو پورے د خبرے دا دے چه د بنی اسرائیلو نه د معاهدے اغستو د پاره الله تعالیٰ د دوی د دولسو خاندانو نه دولس سرداران ذموارمقرر کړل، او دوی ته ئے او فرمائیل: اِنِّیْ مَعَکُمْ: یعنی زهٔ ستاسو سره یم. مطلب دا دے چه که تاسو د میثاق (لوظ قول) پابندی اوکړه او په نورو خلقو موهم د پابندئ کولو قصد اوکړو نو زما امداد او نصرت به ستاسو سره وی، د دے نه پس په ذکر شوی ایات کښې د دے میثاق د خواهمو د فقورحکمونو او د بنی اسرائیلو د وعدے ما تولو او په دوی د الله د عذاب ذکر دے -

د میثاق (لوظ قول) د حکمونو ذکر کولو نه وړاندے ئے یو دا جمله ارشاد او فرمائیله چه: اِنِّیْ مَعَکُمْ: چه په دے کښې دوه خبرے خوړلے شوی دی -

یوه داچه که تاسو په میثاق قائم پاتې شوئ نو ځما امداد به ستاسو سره وی اوتاسو به په هرقدم داوینئ، دویم داچه الله تعالیٰ هروخت اوهرځائے ستاسو سره دے اود دے میثاق نګرانی کوی ستاسو هیڅ قصداواراده، فکر او خیال یاحرکت اوعمل د ده د علم نه باهر نه دی، هغه ستاسو د پټو رازونو نه هم خبردے اوآوری اوستاسو د زړه نوډ ارادو نه هم خبردے - که د میثاق خلاف ورزی مو اوکړه نو په هیڅ شان د هغه د نیونه نشئ بچ کیدے - د دے نه پس د میثاق په دفعو کښې د ټولو نه اول د: اِقَامَتِ صلوٰۃ: ذکر دے - او بیا د: اداکولو د زکوٰۃ: د دے نه معلومه شوه چه د مونځ اوزکوٰۃ فرض والے د اسلام نه مخکښې د حضرت موسیٰ علیه السلام په قوم باندے هم وُه - او د نورو قرآنی اِشارو اوروایتونو نه ثابتیږی چه دا فرض صرف د بنی اسرائیلو سره خاص نه دی بلکه په هر پیغمبر او هر یو شریعت کښې همیشه د پاره لازم راغلی دی - دریم نمبر په میثاق کښې دادی چه د الله تعالیٰ په ټولو رسولانو ایمان راوړئ او د دوی په مقصد رشد او هدایت کښې د دوی امداد کوئ، یعنی د دین په خوره ولو کښې ورسره مدد کوئ -

په بنی اسرائیلو کښې چونکه دیر پیغمبران راتلونکی وُو په دے وجه دوی ته په خصوصیت سره د دے خبرے تاکید اوکړے شو- اوچونکه د ایمانی خبرو درجه د عملی کارونو نه وړمبئ ده مګر په میثاق کښې ئے عملی کارونه مونځ اوزکوٰۃ مخکه وړاندے کړل چه په دوی فی الحال عمل کول وُو- اوراتلونکی پیغمبرانؤ خوبه ورستی راځی په دوی ایمان راوړل اود دوی د امداد کولو موقع وروستو راتلونکے ده په دے وجه ئے دا وروستو بیان کړل -

څلورم نمبر په میثاق کښې دادی چه : اَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا : ریعنی تاسو الله تعالیٰ له قرض ورکړئ ښهٔ شان قرض) - د ښهٔ شان قرض مطلب دادے چه په اخلاص سره وی څه دنیوی غرض په دے کښې شامل نه وی او د الله په لاره کښې خپل د خوښې شے خرچ کړی، ردی او بے کاره شے ورنه کړی - په دے کښې ئے د الله تعالیٰ په لاره کښې د خرچ کولو نه په قرض سره ځکه تعبیر اُوکړو چه د قرض بدله قانوناً اوعرفاً او اخلاقاً واجب الادا ګنړلے شی - دغه شان چه

په دے یقین سره خرچ کوی چه د الله په لاره کښے خرچ شی نو بدله به ئے خامخا ملاوېږی
او د فرض ذکوٰة جدا ذکر کولو نه پس د لته د قرضِ حسنه ذکر کول دا
ښائی چه د دینه مراد د ذکوٰة نه علاوه نور صدقے او خیرات نو نه دی.
د دے نه دا هم معلومه شوه چه مسلمان صرف د ذکوٰة په ادا کولو
د ټولو ذمه وارو نه نه شی خلاصیدے. د ذکوٰة نه علاوه نور هم مالی
حقونه د انسان په ذمه لازم دی. که چرته جماعت نه وی نو د جماعت آباد ول
او د دینی تعلیم که حکومت انتظام نه کوی نو د دینی تعلیم انتظام هم په
مسلمانانو لازم دے - فرق دومره دے چه زکوٰة فرض عین دے او دا
فرض کفایه دی -
د فرضِ کفایه معنیٰ داده چه د قوم څو کسان یا یو جماعت دا ضرورتونه
پوره کړی نو د نورو مسلمانانو غاړه خلاصه شی - او که هیچا هم اونه کړه
نو ټول گناه کار دی - نن صباچه دینی تعلیم او د دے مدرسے څومره په
بے ارزښۍ او بے کسۍ کښے دی د وی لره هغه خلق پیدا ن چاچه دا مدرسے
د دین یوا هم خدمت گنړلے دے او قائم کړے ئے دی - د زکوٰة ادا کولو
ترحده پورے خو مسلمان پوهیږی چه دا ئما په ذمه فرض دی او د دے
پیژندو باوجود ډیر کم خلق دی چه زکوٰة ادا کوی - او په ادا کونکو کښے هم
ډیر کم خلق دی چه پوره زکوٰة ادا کوی - او کوم چه خال خال پوره ادا کونکی
هم دی نو هغوی بالکل دا گنړی چه اوس ئما ذمه آزاده شوه - که د جماعت
ضرورت ورته رامخکښے شی نو د زکوٰة مال ورته پیش کوی او که د دینی مدرسے ورته
ضرورت رامخکښے شی نو صرف د زکوٰة مال ورته وړاندے کوی او حال دا دے چه
دا د فرض زکوٰة نه علاوه په مسلمانانو لازم دی ، او د قرآن کریم دا آیات او د
دے په مثل نور ډیر آیاتونه دا خبره واضحه کوی -
د میثاق د احکامو د بیانولو نه پس ئے دا اوخوده چه که تاسو د میثاق
پابندی اوکړه نو د دے جزا به داوی چه ستاسو ټیر گناهونه به هم معاف
کړے شی او د همیشه راحت او عافیت په جنت کښے به در لره ځائے هم ورکړے
شی - او په آخر کښے ئے دا هم اوخوده چه د دے ټولو واضحو بیانونو او

ارشادات ونه پس هم که چا کفر او سرکشي اختیار کړه نو ده صاف او ښیغه لار پرېښوده
د ملو لاسونه د تباهۍ په کنده کښې ارتا شو۔

فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ

پس د دوی د عهد په ماتولو مونږ په دوی لعنت او کړو او کړه مونږ د دوی

قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ۙ وَنَسُوْا حَظًّا

زړونه لوه سخت ۔ اړوي دوی کلام له د خپل ځایه نه ۔ او هیر دوی نفع

مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ

افستل د هغې څه نه چه دوی ته پرې نصیحت شوې وه او همیشه ته خبرېږې د دوی په څه خیانت باندې

اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

مګر لږ خلق د دوی نه پس معافي کوه دوی ته او درګوزر کوه ۔ الله دوست ګنړي

يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا

احسان کوونکو له ۔ او هغه چه وائي ځانته چه مونږ د

نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا

نصارٰی یو، د دوی نه هم اغستې وه مونږ عهد بیا هیر کړه دوی هغه څه چه

ذُكِّرُوْا بِهٖ ۠ فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَآءَ

دوی ته پرې نصیحت شوې وه ۔ بیا مونږ او غورځوله په مینځ د دوی کښې دشمني او بغض

اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللّٰهُ بِمَا

د قیامت د ورځې پورې او اخر به خبر کړي دوی لره الله په هغه څه

كَانُوا يَصْنَعُونَ ⑭

چه دوی کول۔

# لنډ تفسير

(د بیان القرآن نه)

(لیکن بنی اسرائیلو دغه ذکر شوي عهدمات کړو۔ او د عهدماتولو نه پس په قسم قسم عذابونو لکه مسخ کیدل او ذلت وغیره کښې گرفتار شو۔ پس دا چه کوم په دوی د الله تعالیٰ د مهربانۍ نه پس اوشو) نو صرف د دوی د عهد د ماتولو په وجه مونږ دوی د خپل رحمت (یعنی د اثارو) نه لرې کړل (او داحقیقت دے د لعنت) او (د دے لعنت اثار دادی چه) مونږه د دوی زړونه سخت کړل (چه د حقې خبرې په دوی اثر نه کیږی او د دے زړونو سختید و اثار دادی چه دغه خلق (یعنی د دوی عالمان) کلام (د خدائے یعنی تورات) لره د دهٔ د الفاظو یا مطلبونو) د موقعونه بدلوی (یعنی لفظی بدلون یا معنوی بدلون پکښې کوی) او (د دے بدلون اثر دا شو چه) دغه خلق چه دوی ته (په تورات کښې) کومه نصیحت شوې وه په دے کښې خپله یولویه حصه (د نفع چه دوی ته په عمل کولو نصیب کیده) فوت ئے کړه (ځکه چه زیات بدلون دوی په هغې مضامینو کښې اوکړو پکو موکښې د محمد صلے الله علیه وسلم د رسالت تصدیق وه، او ظاهره ده چه د ایمان نه سوالویه حصه به څهٔ وی۔ غرض دا چه د عهد ماتولو په وجه پرې لعنت اوشو او د لعنت په وجه ئے زړونه سخت شو، او د سختی د لې په وجه ئے تحریف یعنی بدلون اوکړو او د بدلون په وجه ترے لویه حصه فوت شوه چه په نصیحت عمل کول وُو او د دے ترتیب وجه ښکاره ده) او (زمیا داسې هم نه ده چه کوم ئے اوکړه په دے بس کړی بلکه حالت دا دے چه) تاته روزانه (یعنی همیشه د دین په باره کښې) د څهٔ نه څهٔ (نوی نوی) خیانت خبر کیږی کوم چه د دوی نه کیږی بغیر د یو څو کسانو نه (کوم چه مسلمانان شوی وُو) پس ته د دوی له معاف که، او درگذر ترے کوه (یعنی ترڅو پورے چه شرعی ضرورت نه وی

د دوی د خیانتونو اظهار او د دوی رسوا کول مه کوه) بے شکه الله تعالیٰ د نیکئ د کوونکو سره محبّت کوی (او بے ضرورته رسوا کول نیکی کول دی) او کوم خلق چه (د دین د نصرت په دعوے سره) وائی چه موږ نصارا یُو موږ د دوی نه د دوی عهد (پشان د عهد د یهودو) اغستے وو پس دوی هم څهٔ چه دوی ته (په انجیل وغیره کښے) نصیحت شوے وو په دے کښے خپله یوه لویه حصّه (د نفع کومه چه دوی ته په عمل کولو نصیب کیده) فوت کړه (ځکه هغه کار کوم چه ذوی فوت کړو توحید دے او ایمان دے په نبی کریم صلے الله علیه وسلم باندے چه د دے حکم دوی ته هم شوے وو او بنکاره خبره ده چه دا لویه نصیبه ده نو هر کله چه دوی توحید پاتے کړو) نو موږ په دوی کښے د دوی په مینځ کښے تر قیامته پورے بغض او دشمنی اوغورزوله (دا خو د دُنیا عذاب شو) او څیر زر (په آخرت کښے) چه هغه هم نزدے دے به دوی ته الله تعالیٰ د دوی کاروننه اُوښائی (بیا به ورلره سزا ورکړی)۔

# معلومات او مسئلے

په آیات کښے دا خبره ښکاره شوے ده چه بنی اسرائیلو د خپلے بد بختئ په وجه د ښکاره هدایتونه په غوږ وانه اچول، او د میثاق (عهد) مخالفت ئے اوکړو، نو الله تعالیٰ دوی په قسم قسم عذابونو کښے اخته کړل۔

په بنی اسرائیلو د دوی د بد عملئ او سرکشئ په سزا کښے دوه قسمه عذاب راغے یو ظاهری او لیدونکے لکه چه په دوی د مینے او چند خانو بارانونه وغیره یا پټراؤ یا د زمکے پاسترکیدل وغیره چه ذکر ئے په قرآن شریف کښے په څیرو آیاتونو کښے په مختلفو ځایونو کښے راغلے دے۔

دویم قسم عذاب معنوی او روحانی دے، چه د سرکشی په سزا کښے د دوی زړونه او دماغ مسخ شو او په دوی کښے د سوچ او پوهید صلاحیت پاتے نه شو او دوی د خپلو گناهونو په وبال کښے په زیاتو گناهونو کښے اخته شو۔ ارشاد دے: فَبِمَا نَقْضِهِم مِّيثَاقَهُمْ لَعَنَّاهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوبَهُمْ قَاسِيَةً ؛ یعنی موږ د دوی د عهد ماتولو او د میثاق نه خلاف کولو په سزا کښے دوی لره د خپل

رحمت نه لرے کړۀ. او د دوی زړو نه مو سخت کړهٔ- چه اوس په کښے نور هیڅ شے نه ځائیږی - دا د رحمت نه لرے والے او د زړو نوسختی قرآن کریم په سورت مطففین کښے د: رَانَ: په لفظ سره تعبیر فرمائیلے دے. كَلَّا بَلْ رَانَ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ: یعنی د قرآن کریم د واضحو آیاتو نو او بنکاره نښو نه د انکار وجه دا ده چه د دوی په زړونو باندے د دوی د ګناهونو په وجه سره زنګ پرے وَتے دے-

نبی کریم صلے الله علیه وسلم په یو حدیث کښے ارشاد فرمائی چه:

انسان کله چه اول ځل ګناه اوکړی نو د ده په زړهٔ یو توره نقطه او لګی چه د دے داغ بد والے دے هر وخت داسے محسوس کوی لکه په صافه سپینه کپړه چه یو تور داغ او لګی او هر وخت چه ویني نو بد پرے لګی- نو بیا که ده د دے نه توبه اوکړه او آئنده ئے بیا ګناه پریښوده- نو د غه تور ټکے وران شی- او که ده پرواه اونه کړه او په مخه په نورو ګناهونو کښے اخته شو نو په هر یو ګناه کولو سره د غه تور ټکی سره بل تور ټکے سوا کیږی. تر دے چه د ده د زړهٔ مخ په دے تورو ټکو سره بالکل تور شی- دغه وخت د ده د زړهٔ داحالت شی لکه چه یو لوښے نسکور کیښودے شی او بیا پکښے څهٔ وراچوی او ځائیږی پکښے نه بلکه ترے راووځی- په دے وجه د څهٔ خیر او نیکی خبره د ده په زړهٔ کښے نه ځائیږی- دغه وخت د ده د زړهٔ حالت داسے شی چه: لَا يَعْرِفُ مَعْرُوْفًا وَّلَا يُنْكِرُ مُنْكَرًا: یعنی نه اوس دے نیکی نیکی ګڼړی نه بدئ لره بدی، بلکه معامله په عکس سره شی چه عیب لره هنر، بدئ لره نیکی او ګناه لره بیا ثواب ګڼړی- او په دغه خپله سرکشئ کښے په مخه زیاتیږی، دا د ده د ګناه نقد سزا ده چه ده ته په دنیا کښے ملاویږی-

بعض مفسرانو فرمائیلی دی: إِنَّ مِنْ جَزَآءِ الْحَسَنَةِ الْحَسَنَةَ بَعْدَهَا وَإِنَّ مِنْ جَزَآءِ السَّيِّئَةِ السَّيِّئَةُ بَعْدَهَا: یعنی د نیکئ یوه نقد جزاء دا ده چه د دے نه پس د ده د بلے نیکئ توفیق کیږی- دغه شان د ګناه نقد سزا دا ده چه د یو ګناه نه پس د ده زړهٔ بل ګناه کولو ته مائیله کیږی- معلومه شوه چه په

عبادتونو او ګناهونو کښې تماڅ (یعنی فرابیلولو ماده ده) چه
؛ زرزر کشد در جهان ګنج ګنج ؛
(یعنی زر زر ولره ځانته راکاګی په دنیا کښې او خزانه ځانته خزانه راکاګی)
بنی اسرائیلو ته د عهد ماتولو نقد سزا دا ملاؤ شوه چه دوی د الله تعالیٰ د رحمت نه لرے شو چه دا د ټولو نه لویه وسیله د نجات ده، او د دوی زړه نه سخت شو چه نوبت ئے دے حد ته اور سید و چه: يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ؛ یعنی دا خلق د الله کلام لره د خپل ځائے نه بدلوی۔ یعنی د خدائے په کلام کښے تحریف (بدلون) کوی۔ کله ئے په الفاظو کښے او کله ئے په معنیٰ کښے، کله ئے په تلاوت کښے تحریف کوی۔ د تحریف دا ټول قسمونه په قرآن کریم او په کتابونو د حدیثو کښے بیان شوی دی، چه د دے څهٔ قدرے اقرار د نن صبا بعضے یورپیانو عیسایانو هم کړے دے (تفسیر عثمانی)
د دے معنوی سزا دا نتیجه شوه چه: وَنَسُوا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوا بِهٖ؛ یعنی نصیحت چه کوم دوی ته شوے وهٔ د هغې نه ئے نفع اغستل هیر کړل۔ او بیا ئے اوفرمائیل چه د دوی دا سزا دا سے د دوی د غاړے هارجوړ شو: وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَائِنَةٍ مِّنْهُمْ؛ یعنی تهٔ همیشه د دوی په څهٔ مکر و فریب باندے خبریګے۔: اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ؛ په غیر د لږو خلقو نه لکه حضرت عبد الله بن سلام وغیره چه اول د اهلِ کتابو په دین باندے وو بیا رښتونی مسلمانان شو۔
تر دے پورے د بنی اسرائیلو د بد و عملونو او بد اخلاقو چه کوم بیان راغے په ظاهره د دے مقتضیٰ دا وه چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دے د دوی سره انتهائی د نفرت او سپکوالی معامله او کړی۔ چه دوی دے ځانته نه پریدی په دے وجه ئے د آیات په آخره جمله کښے نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته داهدایت اوکړو چه: فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ؛ یعنی تاسو دوی ته معافی کوئی او د دوی د بد عملئ نه ور ګذر کوئے۔ د دوی نه نفرت مه اختیاره وئ، ځکه چه الله تعالیٰ احسان کونکو لره خوښوی۔
مطلب دا دے چه د دوی د دا سے حالاتو باوجود په خپل طبعی خواهش عمل مکوئ یعنی د نفرت یعنی د کرکې سلوک ورسره مکوئ۔ ځکه چه د دوی د سخت دِ لئ

او بې پوهې نه پس آګرچه څه وعظ او نصیحت په دوی هیڅ اثر نه کوی. لیکن رواداری او د ښه خوئي معامله یو داسې کیمیا ده چه د دې په ذریعه سره په ډېر بې پوهو کښې هم پوهه پیدا کیدے شي - او که په دوی کښې پوهه پیدا کیږي یا نه خو په هر حال خپل اخلاق برابر لرل خو ضرور وری دي - د احسان معامله د الله تعالیٰ خوښه ده - د دې په ذریعه مسلمانانو ته د الله تعالیٰ نو نزدیکت هم حاصلیدے شي -

وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى ، د دے آیات نه په اول آیات کښې د یهودو د عهد ماتولو او عذاب ذکر وو - په دے آیات کښې د نصارٰؤ څه حال بیان شوے دے -

په عیسائی فریقو کښې دَ یو بل سره دُشمنی | په دے آیات کښې الله تعالیٰ د عیسایانو د عهد ماتولو داسزا بیان کړے ده چه د دوی په مینځ کښې کم د تو کیدل بُغض او عداوت غورزه ولے شوے دے چه ترقیامته پورے به دغه شان وی -

په دے باندے د نن صبا د عیسایانو د حالاتو نه دا شُبه پیدا کیدے شی چه دوی خو ټول مُتحد په نظر راځی - جواب دا دے چه دا حال د هغو خلقو بیان شوے دے کوم چه واقعی عیسایان دی او د عیسائی مذهب پابند دی، او کوم چه خپل مذهب یاتے کړے دے دهریان جوړ شوی دی دوی په حقیقت کښې د عیسایانو د فهرست نه خارج دی، اګرکه دوی په قومی لحاظ سره ځانته عیسایان وائی، په داسے خلقو کښې که دغه مذهبی کم وچ والے او دشمنی نه وی نو د دے آیات مومنافی نه دی - ځکه چه کم وچ والے او دُشمنی او اختلاف خو د مذهب په بنیاد باندے وي هر کله چه مذهب یاتے نه شو نو اختلاف هم پاتے نه شو - او په آیات کښې بیان د هغو خلقو دے چه د مذهب په لحاظ سره نصارا او عیسایان دی - د دوی اختلاف او کم وچ والے خو مشهور او معلوم دے -

د بیضاوی په حاشیه کښې د تیسیر نه نقل کړی دی چه په نصارا ؤ کښې اصل درے فرقے وے ، یوه نسطوریه چه عیسیٰ علیه السلام ته

بـه ئې د خدائے ځوئ وي۔ دويمه يعقوبيه چه پخپله عيسیٰ عليه السلام به ئې د خدائے سره شريک منلو۔ دريمه ملکائيه کوم چه عيسیٰ عليه السلام به ئې په درے خدايانو کښے شريک منلو۔ او
ښکاره خبره ده چه د دومره لوئے اختلاف د عقيدے وسره پخپل مينځ کښے اختلاف او عداوت ضروری خبره ده۔

يَاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ

اے اهلِ کتابو په تحقيق راغلے دے تاسو ته رسول زمونږه ښکاره کوی تاسو ته

كَثِيْرًا مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَعْفُوْا

ډيرڅيزونه کوم چه تاسو پټول د کتاب نه او عفوه کوی

عَنْ كَثِيْرٍ ۚ قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ

د ډيرو څيزونو نه۔ بے شکه تاسو ته راغلے ده د الله د طرف نه رڼړا او کتاب

مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ يَّهْدِيْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ

ظاهرونکے۔ چه په دے سره الله هدايت کوی هغه چاته چه تابع شه د هغهٔ د رضا

سُبُلَ السَّلٰمِ وَيُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ

د سلامتیٔ د لارو او راوباسی دوی لره د تيرونه رڼړا طرف ته

بِاِذْنِهٖ وَيَهْدِيْهِمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۶﴾ لَقَدْ

پخپل حکم سره او دوی ته هدايت کوی د نيغے لارے۔ بے شکه

كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ

کافر شو چا چه اُو وے چه الله خو هغه مسيح دے ځوئ

مَرْيَمَ ط قُلْ فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ

دَ مریمے۔ ته ووایه پس دَچا طاقت چلیدے شی دَ الله په وړاندے که هغه اوغواړی

اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗ وَمَنْ

چه هلاک کړی مسیح دَ مریم ځوئی لره او دَ دهٔ مور لره او څوک چه

فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا ط وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

خلق چه په زمکه کښے دی ټول۔ او دَ الله دَ پاره دے حکومت دَ اسمانونو او دَ زمکے

وَمَا بَيْنَهُمَا ط يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ط وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ

او څهٔ چه په مینځ دَ دے دواړو کښے دی۔ پیدا کوی څهٔ چه اوغواړی۔ او الله په هر شی باندے

قَدِيْرٌ ﴿۱۷﴾ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ

قادر دے۔ او ووائی یهود یان او نصارٰی چه مونږ

اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ط قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ط

ځامن یُو دَ الله او دَ هغه دوستان یُو۔ ته ووایه بیا وَلے عذابوی تا سو لره په ګناهونو ستاسو۔

بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ط يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَ

هیڅ نیشتے بلکه تاسو هم بنی ادم یئ دَ هغهٔ په مخلوق کښے۔ بخښی چا لره چه اوغواړی او

يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ط وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ

عذابوی چا لره چه اوغواړی۔ او دَ الله دَ پاره دے حکومت دَ اسمانونو او دَ زمکے

وَمَا بَيْنَهُمَا ز وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿۱۸﴾

او څهٔ چه دَ دواړو په مینځ کښے دی۔ او دَ هغهٔ طرف ته واپسی ده۔

# لنډ تفسير

اے اهلِ کتابو (يعني يهودو او نصاراؤ) تاسو ته زمونږ دا رسول (محمد صلے الله عليه وسلم) راغلے دے (چه دَ علمي کمال ئے دا حال دے چه دَ کتاب (دَ مضامينو) نه کوم څيزونه چه تاسو پټوئ دَ دے نه ډير خبرو لره (دَ کومو په ظاهرو لو کښے چه څهٔ شرعي مصلحت وي دَ ظاهري علم حاصلولو په وجه نه بلکه خالص دَ وحئ په ذريعه خبريږي) ستاسو په وړاندے ئے صاف صاف بيان کوي ښکاره کوي ئے راو دَ علمي او اخلاقي کمال ئے دا حال دے چه کوم څيزونه تاسو پټوول دَ دغو نه) ډيرو کارونو لره (سره دَ دے چه پيږے پوهه او خبردار دے اخلاقاً دَ هغو دَ ظاهرو لو نه) درګذر فرمائي (کله چه دَ دغو په ظاهرو لو کښے څه شرعي مصلحت نه وي او صرف تاسو پرے رسوا کيږئ، او دا علمي کمال ئے دَ نبوّت دليل دے او دا اخلاقي کمال ئے دَ دے تائيد او مضبوطيا کوي - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ نبي کريم صلے الله عليه وسلم دَ نورو معجزو نه علاوه پخپله ستاسو سره دا سے سلوک کول دَ دوئ دَ نبوّت ثابتولو دَ پاره کافي دے - او دَ دے رسولؐ په ذريعه) تاسو ته دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه يو روښانه شے راغلے دے او (هغه) يو کتاب واضح (دے) چه دَ دے په ذريعه الله تعالىٰ دا سے خلقو ته څوک چه دَ حق رضا طلب کونکي وي دَ سلامتئ لارے ښائي (يعني جنت ته دَ تلو طريقے چه خاص عقيدے او عملونه دي تعليم فرمائي - ځکه چه مکمّله سلامتي په جنّت کښے کيدے شي چه نه پکښے دَ کمئ کيدے شي او نه دَ زوال يَره) او دوي لره پخپل توفيق سره (دَ کفر او ګناه) دَ تيرو نه راوباسي (دَ ايمان او طاعت) نور طرف ته ئے راولي او دوي لره (هميشه) په نيغه لارے قائم ساتي - بے شکه هغه خلق کافر دي چه دا سے وائي چه الله تعالىٰ عيسیٰ ابن مريم دے، تاسو دَ دوي نه دا تپوس اوکړئ چه کهٔ دا سے وي نو تاسو اوښايئ چه که الله تعالىٰ عيسیٰ ځوئ دَ مريم (کوم چه تاسو عينِ الله ګنړئ) او دَ دهٔ مور (حضرت مريمؑ لره او څومره چه په زمکه کښے آباد دي دے ټولو لره (په مرګ سره) هلاکول اوغواړي

رنو) آیا څوک سړے داسے شته چه د خدائے تعالیٰ نه یوه ذره هم دوی لره بچ کړی (یعنی دومره خبره خو تاسو هم منئ چه د دوی هلاکول د الله تعالیٰ په قدرت کښے دی نو د کوم ذات هلاکول چه د بل په قبضه کښے وی هغه خدائے څنګه کیدے شی - په دے سره د مسیح د الله کیدو عقیده باطله شوه) او (څوک چه په حقیقت کښے خدائے او د ټولو معبود دے یعنی) الله تعالیٰ (د هغهٔ داشان دے چه هغه) لره دے خاص حکومت په اسمانونو او په زمکے او څومره څیز ونه چه د دے دوارو په مینځ کښے دی په دوی باندے او هغه څهٔ شی لره (چه پیدا کول ئے) چه غواړی پیدا کوی او الله تعالیٰ لره په هر شی باندے پوره قدرت دے - او یهودو او نصاراٰ (دواړه فریقه) وائی چه موږ د الله تعالیٰ ځامن یُو او د هغه دوستان یُو (مطلب دا معلومیګی چه چونکه موږ د انبیاؤ اولادیُو نو په دے وجه د الله تعالیٰ په نزد زموږ یو خاص شان دے چه که موږ ګناه هم اوکړو نو هغه پورے دومره نه ناراضه کیږی لکه د نورو په ګناه چه ناراضه کیګی ، لکهٔ پلار چه د ځوئ په نافرمانئ باندے دومره اثر نه کیږی لکه څومره چه د غیر سړی په دے کار باندے کیږی - د دوی د دے باطل خیال د باطلولو د پاره نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب دے چه) تاسو (د دوی نه) تپوس اوکړئ چه بیا نو بیا تاسو ته ستاسو د ګناهونو په عوض کښے (په اخرت کښے) عذاب ولے ورکولے شی (د کوم چه تاسو هم قائل یئ لکه چه د یهودو قول وُو : لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّا اَیَّامًا مَّعْدُوْدَةً ، یعنی که موږ لره د جهنم عذاب هم ورکولے شی نو یو څو ورځے به وی - او پخپله د حضرت مسیح علیه السلام د ژبنا په قرآن کښے ذکر دے : اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ ؛ یعنی چا چه د الله سره شریک جوړ کړو نو الله تعالیٰ په دهٔ جنت حرام وی - نو د دینه هم د نصاراٰ د قول په مثل عذاب لازمیګی -

لنډه دا چه د اخرت د عذاب هر کله چه تاسو پخپله هم اقرار کوئ ، نو دا دعوا چه آیا ... چه یو پلار خپل ځوئ لره یا دوست لره هم عذاب ورکوی نو په دے وجه چه تاسو ځانته د خدائے اولاد وائئ دا باطل دی -

دلته دا شُبْهَه نه دی کول پکار چه بعض وخت پلار هم خپل اولاد لره د اصلاح او تربیت دپاره دَادب کولو په جوړ سزا ورکوی، نو سزا ورکول دَ ځوئ والی منافی نه دی- ځکه چه دَ پلار رسزا دَ آدب دپاره شوے ده چه دے دَ بیا دپاره داسے کار نه کوی او په آخرت کښے دَادب کولو څهٔ مقام نیشتے- ځکه چه هغه دارالعمل ردَ کار کولو ځائے) نه دے دارُالجزاء ردَ بدلے موندو ځائے) دے هلته د بداندے دَ څهٔ کار دَ کولو، یا دَ څهٔ کار نه دَ منع کولو هیڅ احتمال نیشتے چه تادیب ریعنی په ادب کول) ورته اووائی- نو په دے وجه هلته چه کومه سزا وی هغه به خالصه سزا او عذاب وی- چه دَ اولاد یا دَ محبوب سره قطعًا منافی به وی- په دے وجه معلومه شوه چه ستاسو هیڅ خصوصیت دَ الله سره نیشتے) بلکه تاسو هم دَ دے نورمخلوق غوندې معمولی خلق یئ، الله تعالیٰ چا لره چه غواړی اُوبه بخی چا لره چه غواړی سزا به ورکړی او خاص دَ الله دے تول حکومت په آسمانونو کښے هم او په زمکه کښے هم او څهٔ چه دَ دوی په مینځ کښے دی په دے کښے هم او الله طرف ته دَ ټولو واپس کیدل او ورتلل دی ردَ هغهٔ نه سِوا هیڅ دَ پناه ځائے نیشتے) -

# مَعلومَات اومَسئلے

په دے آیات کښے دَ نصارا وُ دَ یو قول رَدْ شوے دے چه دَ دوی دَ یوے فرقے عقیده ده یعنی دا چه حضرت مسیح (معاذالله) عینِ الله تعالیٰ دے- لیکن رَدْ په داسے دلیل سره شوے دے چه دَ ټولو فرقو باطلے عقیدے رَدْکوی هغو مره چه دَ توحید نه خلاف دی خواه که دَ خدائے دَ ځوئ والی عقیده وی یا په دریو خدایانو کښے دَ یو خدائے والی فاسده عقیده وی- په دے سره دَ ټولو رَدْ او باطِلُوَالے اوشو-

او دلته دَ حضرت مسیح او دَ هغهٔ دَ مور په ذکر فرمائیلو کښے دوه حکمتونه کیدے شی- اوّل خو دا چه دَ حضرت مسیح علیه السلام دَ الله تعالیٰ په دربانندے دا عجز چه دے نه خپل ځان دَ الله تعالیٰ نه بچ کولے شی او نه خپله مور، دَ کومے خدمت او حفاظت چه شریف ځوئ دَ خپل روح نه هم زیات خوښوی،

دویم دا چه په دې کښې دَهغې فرقې دَخیال هم رَدْ او شو کومه چه حضرت مریم لره په درې خدایانو کښې یو خدائې مَنِیْ۔

او دلته ئې دَحضرت مسیح او مریم علیهما السلام مرګ لره په طور دَفرض ذکر کړے دے۔ حال دا دے چه دَقرآن دَنزول په وخت کښې دَحضرت مریم مرګ محض فرضی نه وُه بلکه واقع شوے وُه۔ دَدے وجه په اصل کښې دَحضرت عیسیٰ علیه السلام مرګ په طور دَفرض ذکر کول وُو نو دَمور دَمرګ ذکر ئې هم په دے ضمن کښې اوکړے شو اګرچه دَدے مرګ واقع شوے وُه۔ او دا هم کیدے شي چه مراد دا وی چه لکه څنګه په حضرت مریم باندے موږ مرګ راوستے دے په حضرت مسیح او نور ټول مخلوق باندے هم دغه شان مرګ راوستل زموږ په قبضه کښې دی۔ او په: یَخْلُقُ مَا یَشَآءُ: کښې دَعیسایانو دے باطلے عقیدے لره باطلول دی۔ ځکه چه دَحضرت مسیح علیه السلام په خدائې جوړه دَلو کښې دَدوی اصل منشاء دا ده چه دَدهٔ پیدائیش دَټولے دُنیا دَقاعدو نه خلاف بغیر دَپلار نه صرف دَمور نه شوے دے کم دے بنده وے نو دَقاعدے مطابق به دَمور و پلار دَدواړو په ذریعه دَے پیدا شوے وُه۔

په دے جمله کښې ئې دَدے جواب ورکړو چه الله تعالیٰ ته په هر شان کامل قدرت حاصل دے چه څهٔ غواړی او څنګه ئې غواړی پیدا کوی ئې۔ لکه چه په آیات: اِنَّ مَثَلَ عِیْسٰی عِنْدَ اللّٰهِ کَمَثَلِ اٰدَمَ: کښې ئې دَدے شبُهِ ازاله فرمائیلے ده۔ چه دَحضرت مسیح علیه السلام پیدائیش دَقدرت دَعام قانون نه جُدا کیدل دَدهٔ دَخدائی دلیل نه شی کیدے۔

اوګورئ چه حضرت آدم علیه السلام لره خو حق تعالیٰ دَمور او پلار دواړو نه بغیر پیدا کړے وُه۔ دهٔ لره هر شان قدرت شته هم دغه الله تعالیٰ خالق او مالک او لائق دَعبادت دے بل هیڅوک دَده شریک نه شی کیدے۔

---

يَاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ

اے اهلِ کتابو راغلے دے تاسو ته رسول زمونږ چه بيانوي تاسو ته

عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَآءَنَا

د رسولانو د قطع کيدو نه پس چه چرته اونه وايئ چه مونږ ته نه وَه راغلے

مِنْ بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَشِيْرٌ وَّ

څوک زيرے ورکوونکے يا يَرَوُونکے - پس راغے تاسو ته زيرے کوونکے او

ع ٨ ٧ نَذِيْرٌ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ⑲

يَرَوُونکے - او الله په هر څۀ باندے قادر دے -

# لنډ تفسير

اے اهلِ کتابو تاسو ته دا زمونږ رسول (محمد صلے الله عليه وسلم) راغے چه تاسو ته (د شريعت خبرے) صاف صاف بنائي په داسے وخت کښے چه د رسولانو د راتلو سلسله (د موده نه) بنده وه (او د پخوانيو شريعتونو ورک شوي وُو ، او د انبياؤ سلسله د ډيرے مودے پورے د بنديدو په وجه د ورک شوو شريعتونو د دوباره ژوندي کولو امکان هم نه وُه پاتے شوے نو په دے وجه اوس د يو رسول د راتلو سخت ضرورت وُه نو په داسے وخت کښے د دوی تشريف راوړل لوئے نعمت او غنيمت گنړل پکار دي) د دے د پاره چه تاسو (په قيامت کښے) داسے اونۀ وايئ (چه د دين په معامله کښے د غلطئ او کوتاهي کولو کښے مونږ څکه معذور يو چه) مونږ ته (څوک رسول چه) زيرے ورکوونکے او يَرَوُونکے (وي چه په ښه سره مونږ صحيح علم او عمل ته راپاريدلي وے) نه دے راغلے (نو اوس د دے عذر ځائے پاتے نه شو ځکه چه) تاسو ته زيرے ورکوونکے او يَرَوُونکے (يعني محمد صلے الله عليه وسلم

راغلے دے (او س که نه منئ نو بیا انجام به پخپله پوهه شئ) او الله تعالیٰ په هرشي پوره قدرت لري رحه کله غواړي نو پخپل رحمت سره خپل پیغمبران لیږي کله چه غواړي په حکمت سره ئے بندوي، دَ هیچا داحق نیشته چه دَ ډیرے مُدے نه دَ انبیاؤ سلسله بنده نو او س څوک رسول نیشته، ځکه چه دا سلسله دَ یوے مُدے پورے بنده ساتل دَ الله تعالیٰ په حکمت سره وُو- دَ دَ نبوت دَ سلسلے بندَ ولو او ختمولو څهٔ اعلان دَ دغه وخته پورے نه وُو کړے- بلکه دَ تیرو ټولو پیغمبرانو علیهم السلامو په ذریعه سره ئے دا خبرونه هم ورکړی وُو چه په اخرِ زمانه کښے یو خاص رسول په خاص شان او خاصو صفاتو سره راتلونکے دے- چه په هغهٔ به نبوت ختمیږي- دَ دے اعلان مطابق خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم تشریف راوړو-

## معلومات او مسئلے

عَلٰی فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ: دَ فترت لفظی معنیٰ سست کیدل، ساکن کیدل، او دَ څهٔ کار معطل کیدل او بندیدل دی- په دے ایات کښے دَ تفسیر اماما نو دَ فترت دا معنے بیان کړی دی-. او مراد دَ دے نه دَ څهٔ مُدے دَ پاره دَ نبوت سلسله او دَ انبیاؤ بندیدل دی کومه چه دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام نه پس دَ خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم دَ راتلو پورے زمانه ده -

**دَ فترت دَ زمانے تحقیق** حضرت عبد الله بن عباس رض فرمائی چه دَ حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت عیسیٰ علیه السلام په مینځ کښے یو زر اوه سوه کاله زمانه ده- په دے ټوله زمانه کښے انبیاء علیهم السلام برابر راتلل جاری وُو- په دے وخت کښے چرته هم فترت نه دے شوے- صرف په بنی اسراعیلو کښے یو زر انبیاء په دے زمانه کښے راغلی دی- او په غیرو بنی اسرائیلو کښے چه کوم انبیاء راغلی دی هغه دَ دے نه علاوه دی - بیا دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ پیدا کیدونه دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ راتلو پورے په دے مینځ کښے پنځه سوه کاله زمانه ده- په دے کښے دَ انبیاؤ سلسله بنده وه، په دے وجه دے زمانے ته دَ فترت زمانه وائی- دَ دے نه وړاندے

چه ته دو مره زمانه د انبیاؤ د درا تلو نه خالی نه ده پاتې شوې (قرطبی مع ایضاح)

د حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت عیسیٰ علیه السلام په درمیانی مُده کښې او دغه شان د حضرت عیسیٰ علیه السلام نه تر خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم پورې په درمیانی مُده کښې نور هم مختلف روایتونه دی چه د دې نه کمې او زیاتې مُدې پکښې بیان شوی دی لیکن په اصل مقصد باندې د دې هیڅ اثر نه پریوځي۔

امام بخاریؒ د حضرت سلمان فارسیؓ نه روایت کړے دے چه د حضرت عیسیٰ علیه السلام او د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم په مینځ کښې شپږ سوه کاله زمانه وه او په دې ټوله مُده کښې یو نبی نه دے راغلے۔ لکه چه د صحیح بخاری او مسلم په حواله سره په مشکوٰة شریف کښې حدیث راغلے دے چه په هغې کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی: اَنَا اَوْلَی النَّاسِ بِعِیْسٰی: یعنې زۀ حضرت عیسیٰ علیه السلام ته د ټولو خلقو نه زیات نژدې یم۔ او د دې مطلب د حدیث په اٰخر کښې داسې بیان شوے دے: لَیْسَ بَیْنَنَا نَبِیٌّ: یعنې زمونږ دواړو په مینځ کښې یو نبی نه دے راغلے۔

او په سورتِ یٰسٓ کښې چه کوم د دریو رسولانو ذکر دے دغه په حقیقت کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام لیګلی شوی قاصدان وُو چه د لُغوی معنیٰ په اعتبار سره ورته رسولان وئیلی شوی دی۔

او د خالد بن سنان عربی چه بعضو په دې زمانه د فترت کښې را تلل ذکر کړی دی۔ د دې متعلق په تفسیر روح المعانی کښې په حواله د شهاب بیان کړی چه دے خو نبی وے مګر زمانه ئې د حضرت عیسیٰ علیه السلام نه اوّل ده ورووستو نه ده۔

## د زمانې د فترت احکام

د ذکر شوی ایات نه په ظاهره دا معلومیږی چه که بالفرض یو قوم داسې وی چه دوی ته نه څۀ رسول او نه څۀ پیغمبر راشي او نه ورته د دوی نائبان اورسی او نه د تیرو انبیاؤ شریعت د دوی سره محفوظ وی او دا خلق د شرک نه علاوه په څۀ غلط کاری او ګمراهئ کښې اخته شي نو دوی به معذور ګڼلے شي او د عذاب مستحق به نه وی۔ په دې وجه د فقهاؤ حضراتو د اهلِ فترت په معامله کښې

اختلاف دے چه دوی به او بخلے شی او کہ نه -

دَ جمهورو رائے دا ده چه اُمید دَ دے دے چه دوی به او بخلے شی هرکله چه دوی دَ دغه مذهب پابند دی کوم چه غلط ملط دوی ته دَ حضرت موسیٰ علیه السلام یا دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام دَ طرفنه رسید لے وی په دے شرط چه دوی دَ توحید نه مخالف او په شرک کښے اخته نه وی۔ ځکه چه مسئله دَ توحید دَ څهٔ نقل محتاجه نه ده۔ دا داسے مسئله ده چه هر یو انسان لږ شان هم غور اوکړی نو پخپل عقل سره ئے معلوموَلے شی۔

## یو سوال او دَ هغے جواب

دلته دا سوال پیدا کیدے شی چه کوم اهلِ کتاب یهودو او نصارا ؤ ته په دے ایات کښے خطاب دے۔ دوی ته اګرچه په زمانه دَ فترت کښے څهٔ رسول نه دے رسید لے مګر دَ دوی سره تورات او انجیل خو موجود وُو او عالمان ئے هم وُو۔ نو بیا په قیامت کښے دَ دوی دَ پاره دَ دے عذر کولو څهٔ موقع وَه چه مونږ ته څهٔ هدایت نه دے رسیدَ لے - جواب دا دے چه دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ زمانے مبارکے پورے تورات او انجیل اصلی نه وُو پاتے شوی۔ بدلون په کښے شوے وُو او دَ دروغو قصے پکښے داخلے شوے وے په دے وجه دَ دوی وجود او نشتوالے برابر وُو۔ او که اتفاقاً چرته څهٔ اصلی نسخه هم دَ چا سره چرته په یو نا معلوم ځائے کښے محفوظ وَه نو هغه دَ دے منافی نه ده۔ لکه چه بعضے عالمانو ابن تیمیه وغیره لیکلی دی چه دَ تورات او انجیل اصلی نسخے هم چرته خال خال موجود وے -

## دَ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم خاصو کمالاتو ته اِشاره

په دے ایات کښے اهل کتاب مخاطب کول او دا ارشاد فرمائیل چه زمونږ رسول محمد صلی الله علیه وسلم دَ یو اوګد فترت نه پس راغلے دے۔ په دے کښے یوه اشاره دے طرف ته هم ده چه تاسو خلقو له پکار دی چه دَ دوی وجود لوئے غنیمت او لوئے نعمت اوګنړئ ځکه چه دَ ډیرے مودے نه دا سلسله بنده وَه او س ستاسو دَ پاره بیا پرانستے شوه -

دویمه اشاره دے طرف ته هم ده چه دَ دوی تشریف راوړل په داسے زمانه

او داسے مقام کښے اوشو پکوم ځائے کښے چه دَ علم او دین هیڅ رنړا موجوده نه وَه ـ مخلوق دَ خدائے نه نا آشنا شوی په بُت پرستئ کښے اخته شوی وُو ـ په داسے زمانه کښے دَ داسے قوم اصلاح کول څۀ آسان کار نه وُه ـ دَ داسے جاهلیت په زمانه کښے داسے وران شوے قوم دوّی ته حواله شو ـ دَ دوی دَ مجلس په برکت او په نورُ دَ نبوّت سره په لږه زمانه کښے دا قوم دَ ټولے دُنیا دَ پاره دَ علم، عمل، اخلاقو، معاملو او دَ ژوند په ټولو اړخونو کښے استاذان او لارخودُونکی جوړ شو، چه په دے سره دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم نبوّت او رسالت او دَ دوی پیغمبرانه تعلیم دَ ټولو تیرو پیغمبرانو نه غوره او اعلیٰ ثابت شو ـ کوم ډاکټر چه دَ ژوند نه دَ یو نا اُمیده شوی مریض علاج اوکړی او په داسے ځائے کښے ورله علاج اوکړی کوم ځائے چه دَ طبابت سامان او دوایانے هم نشی موندے او بیا دے په دغه علاج کښے دومره کامیاب شی چه مرګ ته نزدے شوے مریض نه صرف دا چه جوړ شی بلکه یو پوهه او حاذق ډاکټر هم جوړ شی ـ نو دَ داسے ډاکټر په کمال کښے به دَ چا څۀ شُبه اُوشی ـ

دغه شان دَ او ګډے زمانے دَ فطرت نه پس کله چه هر طرف ته دَ کفر او ګناهونو تیرے خورے شوے وے ـ دَ دوی تعلیماتو او تربیت داسے رنړا کړه چه مثال ئے په تیر دور کښے چرته په نظر نه راځی ـ نو ټولے معجزے یو طرف ته او یوائے دا یوه معجزه ئے انسان لره په دوی باندے ایمان راوړلو مجبوره کوی ـ

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِ يَا قَوْمِ اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ

او کله چه اووے موسیٰ خپل قوم ته اے ځما قومه یاد کړئ احسان دَ الله

عَلَيْكُمْ إِذْ جَعَلَ فِيكُمْ أَنبِيَاءَ وَجَعَلَكُم مُّلُوكًا

په خپل ځان کله چه پیدا ئے کړه په تاسو کښے نبیان او کړهٔ ئے په تاسو کښے بادشاهان

وَآتَاكُم مَّا لَمْ يُؤْتِ أَحَدًا مِّنَ الْعَالَمِينَ ﴿٢٠﴾ يَا قَوْمِ

او درکړے کړهٔ تاسو لره هغه چه نه ئے وُو کړی هیچا ته په جهان کښے ـ اے ځما قومه

ادْخُلُوا الْأَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ الَّتِي كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ وَ

داخل شئ زمکې پاکې ته کومه چه مقرر کړې ده الله ستا سو د پاره او

لَا تَرْتَدُّوا عَلَىٰ أَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ ﴿۲۱﴾

مه واپس کیږئ په شا کانو خپلو بالدې پرې به اوړئ په نقصان کښې۔

قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِنَّ فِيهَا قَوْمًا جَبَّارِينَ ۖ وَإِنَّا لَنْ

اووې دوی اے موسیٰ حلته یو قوم دے زبردست - او مونږ به هډو

نَدْخُلَهَا حَتَّىٰ يَخْرُجُوا مِنْهَا ۚ فَإِنْ يَخْرُجُوا مِنْهَا

حلته لا نه شو ترڅو چه دوی ترې اونه وځی - پس که دوی ترې او وتل

فَإِنَّا دَاخِلُونَ ﴿۲۲﴾ قَالَ رَجُلَانِ مِنَ الَّذِينَ يَخَافُونَ

نو مونږ به ورته داخل شو خامخا - اووې دوه سړو د الله نه یریدونکو

أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِمَا ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَإِذَا

چه د خدائے انعام وو په دوی - داخل شئ په دوی حمله کوونکی دروازې ته - بیا کله چه

دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَالِبُونَ ۚ وَعَلَى اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا

تاسو ورننوځئ نو تاسو به غالب شئ - او په الله توکل کوئ

إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ ﴿۲۳﴾ قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِنَّا لَنْ

که تاسو یقین کوونکی یئ - اووې دوی اے موسیٰ مونږ هرګز نه

نَدْخُلَهَا أَبَدًا مَا دَامُوا فِيهَا ۖ فَاذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ

داخلیګو تول عمر ترڅو چه دوی پکښې وی پس ته لاړ شه او ستا رب

فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ ﴿۲۴﴾ قَالَ رَبِّ اِنِّیْ

او تاسو دواړه جنګ او کړئ مونږ به دلته ناست یُو - او وې موسیٰ اے ربه ځما ځما په اختیار

لَآ اَمْلِکُ اِلَّا نَفْسِیْ وَ اَخِیْ فَافْرُقْ بَیْنَنَا وَ بَیْنَ

کښې نه دے مګر خپل ځان او ځما رور پس ته جدائی راولې په مینځ زمونږ او ددے

الْقَوْمِ الْفٰسِقِیْنَ ﴿۲۵﴾ قَالَ فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَیْهِمْ

نافرمان قوم کښے - او فرمائیل (الله) بے شکه هغه (زمکه حرامه شوه په دوی

اَرْبَعِیْنَ سَنَةً ۚ یَتِیْهُوْنَ فِی الْاَرْضِ ؕ فَلَا تَاْسَ

څلویښت کاله - سرګردانه به ګرځی په ملک کښے - پس ته افسوس مکوه

ع ۷/۸ عَلَی الْقَوْمِ الْفٰسِقِیْنَ ﴿۲۶﴾

په نافرمان قوم باندے -

# لنډ تفسیر

او هغه وخت هم د یادولو قابل دے کله چه موسیٰ (علیه السلام) خپل قوم ته (جهاد ته د ترغیب ورکولو په شروع کښے دا) او فرمائیل چه اے ځما قومه تاسو د الله تعالیٰ هغه انعام کوم چه پتا سو باندے شوے دے یاد کړئ کله چه الله تعالیٰ پتاسو کښے ډیر پیغمبران جوړ کړه (لکه حضرت یعقوب علیه السلام او حضرت یوسف علیه السلام او بیا په حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام او دا سے نور، او په یو قوم کښے د پیغمبرانو راتلل د دوی دُنیوی او دینی شرافت دے دا خو ئے معنوی نعمت ذکر کړو) او (ظاهری نعمت ئے دا ذکر کړو چه) تاسو لره ئے بادشاهان جوړ کړه (لکه چه د فرعون په ملک باندے اوس تاسو قبضه کړے ده) او تاسو لره ئے (بعضے

بعضې) هغه څیزونه درکړي دي چه د دنیا په خلقو کښې ئې هیچا لره نه دي ورکړي
(لکه په دریاب کښې لار درکول دشمن لره په عجیبه طریقه سره غرق کول چه د
دې نه پس په یو دم د انتهائي ذلت او زحمت نه انتهائي بُلندئ او راحت ته
اورسیدې یعني په دې کښې ئې تاسو لره خاص شان درکړو، بیا د دې ابتدائي
خبرو نه پس اصل مقصد دوی ته فرمائي چه) اے زما قومه (د دې نعمتونو
او احسانونو مقتضا داده چه تاسو ته کوم چه د دې جهاد متعلق د الله حکم
شوې دې دیته تیار شئ او) په دې مبارک ملک (یعني د شام په دارالحکومت)
کښې (کوم ځائې چه د دې عمالقو حکومت دې د جهاد په اراده سره) داخل
شئ چه الله تعالیٰ ستاسو په حصه کښې لیکلې دې (په دې وجه به د قصد کولو
سره تاسو دا ملک فتح کړئ) او (روستو (د وطن طرف ته) واپس مه ځئ چه
بیا به بالکل په تاوان کښې پریوځئ (په دنیا کښې هم چه د حکومت لویه د لو
نه به محرومه شئ او په اٰخرت کښې هم چه د فرض جهاد په پاتې کولو سره به ګنا ه
ګار شئ) او ئې وې اے موسیٰ هلته خو لوئې لوئې زبردست خلق دی او
مونږ خو به هلته هرګز قدم کیښنږو ترڅو چه دوی (په څه شان) د هغه
ځائې نه اُونه وځي البته که دوی د دغه ځائې نه چرته بل خوا لاړشي نو بیا
به مونږ بې شکه چه هلته تلو ته تیار یُو (د موسیٰ علیه السلام د خبرې د
تائید د پاره) هغې دوه سړو (هم) کوم چه (د الله نه) د یریدونکو نه وُو
(یعني متقیان وُو او) په چا چه الله تعالیٰ فضل کړې وُه (چه پخپل عهد باندِ
ثابت قدم وُو دې بې همتو ته د پوهه کولو په طور سره) او وې چه تاسو
په دوی باندې (حمله او کړئ د دغې ښهر) د دروازې پورې خو ور شئ
پس څهٔ وخت چه تاسو په دروازه باندې قدم کیدې دغه وخت به غالب
شئ (مطلب دا دې چه زر به فتح شي خواه د رُعب نه به او تختي یا به قدرې
مقابله اوشي) او په الله باندې بروسه کوئ که تاسو ایمان لرئ (یعني د دوی
قوت او غټوالي ته مه ګورئ، لیکن په دې خلقو د پوهه کولو هیڅ اثر اُو
نه شو بلکه د دې دواړو مشرانو خبرې ئې هم وخبره او نه ګڼلې او موسیٰ
علیه السلام ته ئې په ډیره بې پرواهئ او بې شرمئ سره) او وې چه اے

موسیٰ مونږ خو (یوه خبره کړې ده چه مونږ) هرګز هم هلته قدم کې نه ږدو
تر څو چه دغه خلق هلته موجود وي (او که تا ډېر جنګ ضروري وي) نو ته او ستا
الله بادشاه لاړ شئ او دواړه جنګ او کړئ مونږ به دلته ناست یو. خو زه
(موسیٰ علیه السلام ډېر پریشانه او تنګ شو) دعائې اوغوښته چه اے زما
پروردګاره زه څه او کړم په دوي باندې هیڅ وس نه رسي) خو مګر پخپل ځان
او پخپل ورور (باندې) اختیار لرم چه ته زمونږ دواړو (ورونړو) او د دے
نافرمانه قوم په مینځ کښې (مناسب) فیصله او کړې (یعنې زمونږ د هر یو سره
د خپل حال مناسب کار او کړې) ارشاد اوشه (ربه ده) خو مونږ دا فیصله
کړې چه) دا ملک به څلویښتو کاله دوي لاس لره ورنه شي (او کوم تلل به ئې
هم نصیب نه شي لاړ به نه موي) دغه شان به (تر څلویښتو کالو پورې) په
زمکه کښې سرګردانه ګرځي (حضرت موسیٰ علیه السلام چه دا فیصله واوریده
چه د دے خو دوئ کمان نه وو خیال ئې داوه چه څه معمولي تنبیه به ورته اوشي
نو خفه شانتې شو. ارشاد ورته اوشو چه اے موسیٰ هرکله چه د دے سرکشانو
دپاره مونږ دا خبره تجویز کړه نو دا مناسب ده) پس ته د دے بے آوریدو
قوم (په حالت) باندے (ذرا) غم مه کوه۔

## مَعلومات او مَسئلے

د دے ذکر شوي آیاتونو په وړاندے آیات کښې د هغه عهد اغستلو ذکر
وو کوم چه د الله تعالیٰ او د هغه د پیغمبرانو د حکم منلو په باره کښې د
بني اسرائیلو نه اغستے شوے وُه۔ او د دے سره د دوي د عامے وعدے
(عهد) ماتولو او د میثاق (عهد) د خلاف کولو او په دے باندے د سزا
کانو بیان وُو۔ په دے ذکر شوي آیات کښې د دوي د عهد ماتولو د
یو خاص واقعے ذکر دے۔

هغه دا دے چه کله فرعون او د ده لښکر په دریاب کښې غرق شو۔ او
موسیٰ علیه السلام او د ده قوم بني اسرائیلو د فرعون د غلامۍ نه خلاصے
بیا مونده د مصر د حکومت مالکان شو نو الله تعالیٰ د خپل زیات انعام

او د دوی د نیکونو وطن د شام حکومت هم د دوی په قبضه کښې د واپس ورکولو د پاره دوی ته په ذریعه د موسیٰ علیه السلام دا حکم ورکړے شو چه دوی دے د جهاد په نیت سره مقدسے زمکے یعنی ملک د شام ته داخل شی او د دے سره ورته دا خوشخبری هم واورولے شوه چه په دے جهاد کښے به فتح د دوی وی الله تعالیٰ دا مقدسه زمکه د دوی په حصه کښے لیکلے ده، دغه به خامخا دوی ته ملاویګی، لیکن بنی اسرائیل د خپل طبعی خصوصیت په وجه سره د الله تعالیٰ دا انعاما تو د فرعون غرقیدل او د مصر حکومت فتح کیدل وغیره لره په سترګو د لیدو سره بیا هم په عهد او میثاق پوره او نه ختل او د شام د جهاد حکم چه ورته د الله تعالیٰ د طرف نه او شه دا حکم ئے او نه مانه او ضد ئے او کړه کیناستل، نو د دے سزا ورته د قدرت د طرف نه دا ملاؤ شوه چه د ځلویښتو کالو پورے په یو محدود علاقه کښے قید او بند پاتے شو چه په ظاهره تر ے نه چا پیره څۀ قلعه وۀ او نه د دوی لاس او ښپے په څۀ قید کښے بند ے وے بلکه په کهلاؤ میدان کښے وو- او خپل وطن مصر ته به د واپس تلو د پاره به ئے روزانه د سحر نه تر ماښامه پورے سفر کولو لیکن چه ماښام به شو بیا به په خپل هغه ځائے وو د کوم ځائے نه چه به دوی سحر روان شوی وو- په دغه دوران کښے حضرت موسیٰ علیه السلام او حضرت هارون علیه السلام وفات شو او دا خلق هم دغه شان په دغه تیهٖ بیابان کښے حیران او پریشان ګرځیدل- د دے نه پس الله تبارک وتعالیٰ نور پیغمبران د دوی د هدایت د پاره دا او لیګل-

ځلویښت کاله دغه شان د پوره کیدو نه پس بیا د دوی پاتے نسل د دغه وخت د پیغمبر په مشرئ کښے د شام او بیت المقدس د جهاد قصد او کړو، او د الله تعالیٰ هغه وعده پوره شوه چه دا مقدسه زمکه ستاسو په حصه کښے لیکلے شوے ده- او دا اجمال دے د دغه واقعے کومه چه په دے ذکر شوؤ آیاتونو کښے بیان شوے ده- او س د دے تفصیل په قرآنی آیاتونو کښے واورئ-

حضرت موسیٰ علیه السلام ته چه کله دا هدایت ملاؤ شو چه خپل قوم ته

د بیت المقدس او د شام د ملک د فتح کولو د پاره د جهاد حکم او کړی۔ نو دوی ورته د پیغمبری حکمت او وعظ په بنا د حکم آوُرَ دَ لو نه اول د الله تعالیٰ هغه انعامونه وریاد کړه کوم چه په بنی اسرائیلو باندے تر او سه پورے شوی وُو۔ ارشاد فرمائی:

اُذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا وَّاٰتٰكُمْ مَّالَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ: (یعنی د الله تعالیٰ هغه فضل او انعام یاد کړئ کوم چه پتا سو شوے دے چه ستا سو په قوم کښے ئے ډیر پیغمبران اولیګل او تا سو لره بادشاهان جوړ کړه او تا سو لره ئے هغه نعمتو نه ورکړهٔ چه په دُنیا کښے ئے هیچا لره نه دی ورکړی)۔

په دے کښے د دریؤ نعمتونو بیان دے چه اوّلنے یکښے یو روحانی او معنوی نعمت دے، چه د دوی په قوم کښے ئے پرلپسے ډیر پیغمبران را اولیګل چه د دے نه زیات اخروی او معنوی عزّت بل هیڅ نه شی کیدے۔ په تفسیر مظهری کښے نقل شوے دے چه په یو قوم او یو امت کښے دومره پیغمبران نه دی را غلی لکه څومره ډیر چه په بنی اسرائیلو کښے را غلی دی۔

د محد یثو امام ابن ابی حاتم په روایت د اعمش نقل کوی چه د بنی اسرائیلو د قوم په آخری دور کښے کوم چه د حضرت موسیٰ علیه السلام نه واخله تر عیسیٰ علیه السلام پورے دے صرف په دے دور کښے یو زر انبیاء په بنی اسرائیلو کښے لیګلی شوی دی۔ دوېم نعمت د کوم ذکر چه په دے آیات کښے دے هغه دُنیوی او ظاهری نعمت دے چه دوی لره ئے بادشاهان یعنی د حکومتونو خاوندان جوړ کړه۔ په دے کښے دے طرف ته اشاره ده چه دا بنی اسرائیل چه د مُدے نه د فرعون او د قوم د فرعون غلامان جوړ شوی وُو او شپه ورځ به ئے پرے ظلمونه کول، نن الله تعالیٰ د دوی دشمن نیست و نابود کړو، دوی ئے د هغهٔ د حکومت او مُلک مالکان کړهٔ۔ دلته دا خبره د غور کولو قابله ده چه د انبیاؤ په معامله کښے خو ارشاد او شو چه: جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ: یعنی ستا سو په قوم کښے ئے ډیر و خلقو لره انبیاء جوړ کړه چه د دے مطلب دا دے چه ټول قوم انبیاء نه وُو۔ او دا حقیقت هم دے چه انبیاء یو څو کسان وی،

او نور ټول قوم د دوی اُمت او تابعداران وی - او کوم ځائے چه د دنیا د مُلك او حکومت ذکر راغلے دے نو هلته ئے فرمائیلی دی: وَجَعَلَكُمْ مُلُوكًا: یعنی جوړ کړه مونږ تاسو لره بادشاهان - چه د دے ظاهري مطلب دا دے چه تاسو ټول مونږ بادشاهان جوړ کړئ، لفظ د: ملوک: د مُلک: جمع ده چه په عام عُرف کښے د دے معنیٰ د بادشاه ده - او دا ښکاره خبره ده چه لکه څنګه ټول قوم نبی او پیغمبر نه شی کیدے - دغه شان په یو ملک کښے ټول قوم بادشاهان هم نه شی کیدے - بلکه د قوم یو څو کسان یا یو کس بادشاه وی نور ټول قوم ئے تابعدار وی - لیکن د قرآن الفاظو دے ټولو ته بادشاهان او وے -

د دے یوه وجه خو هغه ده چه په بیان القرآن کښے د بعض مشرانو نه نقل ده - چه په عام عرف کښے چه بادشاه د کوم قوم وی د هغهٔ د حکومت او بادشاهئ نسبت دغه ټول قوم ته کولے شی - لکه د اسلام په درمیانی زمانو کښے به ئے حکومت ته د بنی اُمیه او د بنی عباس حکومت وے، دغه شان په هندوستان کښے د غزنوی او غوری حکومتونه بیا د مغلو حکومت بیا د انګریزانو حکومت چه د ټول قوم افرادو ته ئے نسبت کیدے شو - نو په دے وجه د کوم قوم چه یو بادشاه وی هغهٔ ته د ټول قوم حکمران او بادشاه وئیلے شی -

د دے محاورے مطابق ټول قوم د بنی اسرائیلو ته قرآن کریم بادشاهان او وے په دے کښے اشاره دے طرف ته هم کیدے شی چه اسلامی حکومت په حقیقت کښے عوامی حکومت وی - عوامو ته د خپل امیر او امام منتخب کولو حق وی - او عوام د هٔ لره پخپل اجتماعی رائے سره معزول کولے هم شی - په دے وجه په ظاهر کښے اګر چه حکمران یو کس وی لیکن په حقیقت کښے دغه حکومت خاص د عوامو حکومت وی -

بله وجه داده کومه چه ابن کثیر او تفسیر مظهری کښے د بعض مشرانو نه نقل شوے ده چه لفظ د مَلِک د بادشاه د مفهوم (معنیٰ) نه زیات عام دے دا سے سړی ته مَلِک وئیلے شی چه آسوده حال وی، د مکان، جائیداد نوکرچاکو مالک وی - د دے معنیٰ په اعتبار سره دغه وخت د بنی اسرائیلو هر یو کس د

مَلِکْ مصداق وُه۔ په دے وجهٔ دے تولو ته مُلُوک اووے۔

دریم نعمت دَکوم ذکر چه پَه دے ایات کښے دے دغه دَمعنوی او ظاهري دواړه قسمو نعمتو نو مجموعه ده چه فرمائي: وَ اٰتٰىكُمۡ مَّا لَمۡ يُؤۡتِ اَحَدًا مِّنَ الۡعٰلَمِيۡنَ: یعنی تاسو ته هغه نعمتونه درکړے شو چه په دُنیا کښے هیچا ته نه دی ورکړی شوی۔ په دے نعمتونو کښے معنوی شرافت او نبوّت او رسالت هم داخل دی او ظاهري حکومت بادشاهي او مال دولت هم۔ البته دلته دا سوال کیدے شي چه دَ قرآن په نص سره اُمّتِ محمدیؐ په ټولو امتونو کښے غوره دے۔

دَ قرآن ارشاد دے: كُنۡتُمۡ خَيۡرَ اُمَّةٍ اُخۡرِجَتۡ لِلنَّاسِ، او: كَذٰلِكَ جَعَلۡنٰكُمۡ اُمَّةً وَّسَطًا: په دے باندے شاهد دے۔ او دَحضورؐ په احادیثو کښے بے شماره روایتونه دَدے تائید کوی۔ جواب دا دے چه په دے ایات کښے دَدُنیا دَ هغه خلقو ذکر دے کوم چه دَ بنی اسرائیلو دَموسیٰ علیه السلام په زمانه کښے موجود وُو۔ چه دغه وخت په ټوله دنیا کښے هیچا ته دغه نعمتونه نه وُو ورکړی شوی کوم چه بنی اسرائیلو ته ورکړی شوی وُو۔ په راتلونکے زمانه کښے که یو اُمّت ته دَدوی نه هم زیات نعمتونه ملاؤ شی نو دا دے نفی نه کوی۔

په دے اوّلنی ایات کښے چه ئے دَحضرت موسیٰ علیه السلام کوم قول نقل کړے دے دا سریزه وه دَدے حکم دَ بیا نولو کوم چه په راتلونکی ایات کښے دا سے راغلے دے: يٰقَوۡمِ ادۡخُلُوا الۡاَرۡضَ الۡمُقَدَّسَةَ الَّتِىۡ كَتَبَ اللّٰهُ لَـكُمۡ: یعنی اے زما قومه تاسو هغه پاکے زمکے ته داخل شئ کومه چه الله ستاسو په حصه کښے لیکلے ده۔

### دَ اَرضِ مُقَدَّسَه نه کومه زمکه مراد ده؟

دَ اَرضِ مقدسه (پاکے زمکے) نه کومه زمکه مراد ده؟ په دے کښے دَ تفسیر لیکونکو وَینا کانے په ظاهره دَ یو بل نه مخالفے دی۔ بعض فرمائی چه: بیت المقدس: ترے مراد دے: بعض دَ: قدس ښهر او ایلیا: ته ارضِ مقدسه وائی۔ بعض دَ: اَریحا: ښهر ته وائی چه دَ اُردن دَ نهر او دَ بیت المقدس په مینځ کښے دَدُنیا دَ ټولو نه پخوانے ښهر دے او ترا وسه پورے موجود دے۔ او دَ حضرت موسیٰ علیه السلام په زمانه کښے دَدے عجیبه او نا آشنا دلویئے او فراخئ حالات نقل کړلے شی۔

په بعض روایتونو کښے دی چه دَ دے ښهر یو زر حصے (وارډونه) وُو۔ په هره

حصه کښې یو یوزر باغونه وُو- او په بعض روایتونو کښې دی چه دَ ارضِ مقدسه نه مراد: دمشق، فلسطین؛- او دَ بعضو په نزد: اردن دے- او حضرت قتادهؓ فرمائی چه دَ شام ملک ټول: ارضِ مقدس دے - کعب احبارؒ فرمائی چه ما دَ الله تعالیٰ په کتاب (غالبًا تورات) کښې لیدلی دی چه دَ شام په ټول ملک کښې دَ الله تعالیٰ یو خاص خزانه ده او په دے کښې دَ الله تعالیٰ خاص مقبول بندګان دی- دے زمکے ته مقدسه په دے وجه وئیلے شوے ده چه دا دَ انبیاء علیهم السلامو وطن او دَ اوسید ځائے پاتے شوے ده- په بعضِ روایتونو کښې دی چه یوه ورځ حضرت ابراهیم علیه السلام دَ لبنان غرَه ته اوختلو-

الله تعالیٰ ارشاد او فرمایه چه اے ابراهیمؑ دَ دے ځائے نه خپل نظر واچوه ترخومره حده پورے چه ستا نظر اورسی مَا هغے لره ارضِ مقدسه جوړه کړه- دا ټول روایتونه دَ تفسیر ابن کثیر او تفسیر مظهری نه نقل شوی دی- او صافه خبره داده چه په دے قولونو کښې هیڅ تعارض (اختلاف) نیشته- دَ اخری روایتونو مطابق دَ شام ټول ملک ارضِ مقدس دے- په بیان کښې بعض حضراتو دَ شام دَ ملک یوه حصه بیان کړے ده او بعضو ټول ملک لره-

﴿قَالُوْا یٰمُوْسٰی﴾ دَ دینه په اوّلنی ایات کښے الله تعالیٰ بنی اسرائیلو ته په ذریعه دَ موسیٰ علیه السلام دَ عمالقه دَ قوم سره جهاد کولو او دَ شام دَ ملک دَ فتح کولو حکم ورکړے وَه- او دَ دے سره ئے دا خوشخبری هم ورکړے وه چه دَ شام زمکه الله تعالیٰ دَ دوی دَ پاره لیکلے ده په دے وجه دَ دے فتح کول یقینی دی-

په دے ذکر شوی ایات کښے دَ دے بیان دے چه دَ دے خبرے باوجود بیا هم بنی اسرائیلو دَ خپلے معلومے سرکشیٔ او کوږ طبعیٔ په وجه سره دا حکم هم او نه منلو- بلکه موسیٰ علیه السلام ته ئے اُووے چه اے موسیٰ په دے ملک باندے خو دَ ډیرو زبرستو او قوی خلقو قبضه ده- موږ ترهغے وخته پورے دَ هغه مُلک ته به داخل نه شو ترڅو پورے چه دغه خلق هلته قبضه کوُنکی وی- البته که دوی ترے چرته لاړل نو بے شکه چه بیا به موږ هلته لاړ شو-

دَ دے واقعه کومه چه دَ تفسیر دَ امامانو حضرت عبد الله بن عباسؓ، عکرمهؒ او علی بن ابی طلحهؒ وغیره نه نقل ده داده- چه دغه وخت په شام او بیت المقدس

باندې دَ عمالقه دَ قوم قبضه وَه چه دَ عادیا نو دَ قوم یو شاخ او ډیر غټ جُوسه ناک او هیبت ناک قد وقامت خلق وو ۔ دَ کوموسره چه دَ جهاد کولوا و دَ بیت المقدس فتح کولو حکم حضرت موسیٰ علیه السلام او دَ دهٔ قوم ته شوے وَه ۔

حضرت موسیٰ علیه السلام دَ الله تعالیٰ دَحکم دَ پوره کولو دَ پاره خپل قوم بنی اسرائیل دَ ځان سره کړل شام طرف ته روان شو ۔ لاړے په بیت المقدس وَه هرکله چه دَ اُردن دَ نهرونه پورے وتل دَ دنیا دَ ټولونه پخوانی ښهر: آریحا: ته اورسیدل نو دلته ډیره شوا و دَ بنی اسرائیلو دَ انتظام دَ پاره دَ دولسو سردارا نو دَ انتخاب کولو بیان دَ قرآنِ کریم په تیروا یا تو نو کښے بیان شوے دے ۔ د غه سرداران ئے مخکښے او لیږل چه دَ دے خلقو حالات او دَ جنګ دَ ځائے اندازه معلومه کړی واپس راشی دَ دغې خلقو حالات کوم چه په بیت المقدس باندے قابض دی او دَ کوموسره چه دَ جهاد کولو حکم شوے دے ۔ دا حضرات چه بیت المقدس ته اورسیدل نو دَ ښهر نه باهر ورته دَ عمالقه قوم یو سړے ملاؤ شو چه هغه دا ټول ګرفتار کړل او دَ خپل بادشاه مخے ته ئے پیش کړل چه دا خلق زمونږ سره جنګ کولو له راغلی دی ۔ په شاهی دربار کښے مشوره او شوه چه دا ټول دِ قتل کړے شی یا دے ورلوه بَله څهٔ سزا ورکړے شی ۔ خو اخر په دے رائے اتفاق اوشو چه دوی دے آزاد کړے شی چه خپل قوم ته لاړ شی او دَ عمالقه دَ قوم دَ ستړکو لیدلے قوت او شوکت هغوی ته بیان کړی چه هغوی چرته هم بیا دے طرف ته دَ مخ کولو خیال په زړهٔ کښے را نه وړی ۔

په دے موقع باندے دَ تفسیر په اکثرو کتابو نو کښے دَ یلښوا و کد واسرائیلی روایتو نو قصے لیکلے شوے دی ۔ چه په دوی کښے دَ دے ملاوید ونکی سړی نوم: عوج بن عنق: خودَلے شوے دے او دَ دهٔ ئے ډیر بے اندازے قد وقامت او قوت او طاقت په دومره مبالغه سره بیان کړے دے چه یو هوښیار سړی ته دَ دے نقل کول هم ډیر ګران دی ۔

دَ تفسیر امام ابن کثیر فرمائی چه دَ عوج بن عنق کومے قصے په اسرائیلی روایتونو کښے ذکر دی نه عقل دغه قبلولے شی او نه په شریعت کښے دَ دے څهٔ جواز شته ۔ بلکه دا ټول دروغ او دَ ځانه جوړے شوے دی ۔ خبره صرف دومره ده چه دَ عمالقه قوم

خلق د عاد یا نو اولاد دے د کوم چه د هیبتناک قد و قامت ذکر په مخکښې قرآن کریم فرمائیلے دے، د دے قوم قد و قامت قوت او طاقت مثالی وه - د دے قوم یو سړے د بنی اسرائیلو د دولسو سړو په کوفتاره ولو قادر شوے وه -

په هر حال د بنی اسرائیلو دولس سرداران د عمالقه قوم د قید نه آزاد شو خپل قوله د اریحا په مقام باندے راغلل او حضرت موسیٰ علیه السلام ته ئے د دے عجیبه او نا آشنا قوم د قیاس نه باهر د قوت او شوکت ذکر اوکړو - د حضرت موسیٰ علیه السلام په زړه باندے خو د دے خبر ویوه ذرّه هم اثر اونه شو ځکه چه الله تعالیٰ د وحئ په ذریعه سره د فتح او کامیابئ زیرے ورکړے وو - په قول د اکبر ؎

مجھ کو بے دل کردے ایسا کون ہے ۔ یاد مجھ کو اَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ ہے

(یعنی دا سے څوک دے چه ما به بے زړه کړی - ماته د الله تعالیٰ دعده چه تاسو به غالب یئ یاده ده -

حضرت موسیٰ علیه السلام خو د دوی د قوت او شوکت حال واورید و خپل ځائے لکه د غر ثابت قدم ولاړ د جهاد په فکر کښې وه - لیکن دا یره ورسره پیدا شوه چه که بنی اسرائیلو ته د دے مقابل دشمن د بے پناه طاقت علم اوشی نو د دوی خپے به او خوځیږی - په دے وجه ئے دے دولسو سردارانو ته دا هدایت او فرمایه چه د عمالقه قوم دا حالت بنی اسرائیلو ته چرته هم ښکاره نه کړئ - بلکه دا خبره په راز کښې اوساتئ - مګر دا سے اوشوه چه په دوی کښې هر یو خپلو خپلو دوستانو ته په پټه باندے د دے ذکر اوکړو صرف دوه کسانو چه د یو نوم یوشع بن نون او د بل کالب بن یوقنا وه - دوی د موسیٰ علیه السلام په هدایت باندے عمل اوکړو او دا راز ئے هیچا ته اونه وے -

او ښکاره خبره ده چه په دولسو کښې لسو کسانو راز ښکاره کړو) نو د دے خور یدل قدرتی خبره وه - په بنی اسرائیلو کښې چه کله دا خبر خور شو نو په چرا انګولا شو او وئے وے چه کدے نه خو غوره دا وه چه مونږ هم د فرعونیانو په شان په دریاب کښې ډوب شوی وے - د هغه ځائے نه ئے چې کړو او س دلته مونږ د ځنی - په دے حالاتو کښې بنی اسرائیلو دا الفاظ او وئیل ؛-

: يٰمُوسٰى اِنَّ فِيْهَا قَوْمًا جَبَّارِيْنَ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى يَخْرُجُوْا مِنْهَا : يعنې اے موسىٰ په دے ښهر کښې ډير زبردست قوم اباد دے چه مقابله ئے مونږ نه شو کولے په دے وجه ترڅو پورے چه دغه خلق په کښې موجود وي مونږ به دَ دغه ځائے دَ تلو نوم هم وا نخلو - په راتلونکي ايات کښې دي چه دوه سړي کوم چه يَرېدونکي وُو او په چا چه دَ الله تعالىٰ انعام شوے وه هغوي چه دَ بني اسرائيلو دا خبره واؤريده نو په طور دَ نصيحت ئے او وے ووي ته چه تاسو مخکښې ولے دَ يَرے نه مړي لږ قدم پورته کړي دَ بيت المقدس دَ ښهر دَ دروازے پورے خو ورشئ زمونږ يقين دے چه ستاسو دغه هومره عمل به ستاسو دَ کاميابئ او فتح سبب جوړ شي او دَ بيت المقدس دروازے ته دَ داخليدو سره به تاسو غالب شئ - او دشمن به شکست اوخوري او به تختي - دا دوه سړي دَ کوم چه په ايات کښې ذکر دے دَ اکثرو مفسرينو په نزد دَ دغو دولسو نه دوه سرداران دي کوم چه دَ حضرت موسىٰ عليه السلام په هدايت باندے عمل اوکړو دَ عمالقه پوره حال ئے بني اسرائيلو ته نه وَه خودَلے - يعنې يوشع بن نون او کالب بن يوقنا -

قرآنِ کريم په دے ځائے کښې دَ دے دوه وړو بزرګانو دوه صفتونه په خاص طور سره ذکر کړي دي يو : اَلَّذِيْنَ يَخَافُوْنَ : يعنې دا خلق کوم چه يَرېدلي - په دے کښې ئے دا ذکر نه کړو چه دَ چانه يَرېدلي - اشاره دے خبرے طرفته ده چه دَ يَرے لايق په ټول عالَم کښې صرف يو ذات دے يعنې الله جل شانه ځکه چه ټول کائنات دَ هغهٔ په قبضهٔ قدرت کښې دي - دَ هغهٔ دَ رضا او اجازت نه بغير څوک نه چا له معمولي نفع رسولے شي نه څهٔ معمولي نقصان - او هر کله چه دَ يَرے لايق خاص يو ذات دے او هغه معلوم دے نو بيا دَ هغهٔ دَ تعين ضرورت پاتے نه شو -

دويم صفت دَ دے بزرګانو قرآن کريم دا بيان کړے دے چه : اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمَا يعنې الله تعالىٰ په دے دواړو انعام فرمائيلے دے - په دے کښې دے خبرے طرف ته اشاره ده چه يکوم سړي کښې چه کوم ښهٔ والے او نيکي ده دا دَ الله تعالىٰ انعام او بخشش دے ورنه په دے دولسو سردارانو کښې ظاهري قوت دَ لاسو پښو سترګو غوږونو او ظاهري او باطني قوتونه او عقل هوش او بيا دَ حضرت موسىٰ عليه السلام صحبت او ملګرتيا دا ټول څيزونه ټولو ته يو شان حاصل وُو -

او دَ دے باوجود تهول او خوئیدل او داده پخپل ځائے ثابت قدم پاتے شو ل. نو معلومه شوه چه اصل هدایت دَ انسان دَ ظاهری او باطنی قوتونو او دَهٔ دَ کوشش او عمل تابع نهٔ دے بلکه دَ الله تعالیٰ انعام دے - البته دَ دے انعام دَپاره دَ کوشش او عمل شرط ضرور شته -

دَ دے نه معلومه شوه چه کوم سړی له الله تعالیٰ عقل هوش او پوهه او هوښیاری ورکړے وی دے دے به دے خپلو طاقتونو ناز نه کوی بلکه دَ الله تعالیٰ نه دے هدایت غواړی-

عارف رومیٌ څهٔ ښهٔ فرمائیلی دی ؛ ـه

فهم وخاطر تیز کردن نیست راه     جز شکسته می نگیرد فضلِ شاه

رپه عقل او پوهه باندے لارمو ندل نیشته- لارمو ندل دَ الله تعالیٰ په فضل سره حاصلیږی) -

نهوړه دَ خبرے دا دے چه دے دواړو بزرګانو په خپله زور ولی کښے دا نصیحت او کړو چه دَ عمالقهٔ دَ ظاهری قوّت او شوکت نه مه یریږئ په الله تعالیٰ توکل او کړئ دَ بیت المقدس دَ دروازے پورے لاړشئ نو فتح او غلبه به ستا سو وی. دَ دے بزرګانو دا فیصله چه دَ دروازے پورے دَ رسید و نه پس به دوی ته غلبه خامخا حاصله شی او دشمن به او تختی - کیدے شی چه دَ عمالقه قوم دَ حالاتو په بنا باندے وی چه دا خلق که څه هم غټ کټ دی خو هسے دَ مالُو چو پاغوندے دی چه دَ حملے نه خبر شی نو تختی به - او دا هم ممکنه ده چه کوم دَ الله دَ طرف نه دَ فتح زیرے دوی دَ موسیٰ علیه السلام نه آوریدلے وُه په دے باندے دَ کامل یقین په وجه ئے دا فرمائیلی وی -

لیکن بنی اسرائیلو چه کله دَ خپل پیغمبر موسیٰ علیه السلام خبره وا نهٔ آوریده نو دَ دے دوه بزرګانو به ئے څهٔ آوریدلی وُو- بیائے هم دغه جواب په ډیر تهٔ بد تمیزئ سره ورکړه چه ؛ فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قَاعِدُوْنَ ؛ یعنی تهٔ او ستا رب لاړشئ دَ دوی سره جنګ او کړئ مونږ به دلته ناست یُو - دَ بنی اسرائیلو دا خبره که دَ مسخرے په طور وے نو ښکاره کفر دے او دَ دے نه پس دَ حضرت موسیٰ علیه السلام دَ دوی سره پاتے کیدل - او دَ دوی

دَ پاره په میدان دَ تِیه کښې دُعا کانے کول چه ذکر ئے په راتلونکی آیات کښے راځی ددے امکان نه وَه -

په دے وجه دَ تفسیر اماما نو دَ کلمے مطلب دا مقرر کړے دے - چه ته لا ړشه او دَ دوی سره جنګ کوه ستا رب به ستا مدد کوی ، مونږ خو دَ مدد کولو نه قاصر یُو - دَ دے معنی په اعتبار سره دا کلمه دَ کفر دَ حد نه اُووته - اګر چه دا جواب ډیر دَ بد تمیزئ او زړهٔ آزاره ولو دے - دا وجه ده چه دَ بنی اسرائیلو دا کلمه ضرب المثل جوړه شوه -

دَ بدر په غزا کښے دَ تش با نړ دا و دُکو مسلمانا نو په مقابله دَ یو زر باوسله ځوانا نو لښکر را نغے مقابل شو - نو نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه دا حالت اولید و خپل رب ته ئے دُعا کانے شروع کړے - نو حضرت مقداد بن اسودؓ صحابی را وړاندے شو او عرض ئے اوکړهٔ یا رسول الله په خدائے قسم دے مونږ به هرګز هغه خبره او نه وایُو کومه چه دَ موسیٰ علیه السلام قوم حضرت موسیٰ علیه السلام ته کړے وَه چه : فَاذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَآ اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ : بلکه مونږ به ستا ښیٔ او کینړ او مخے او شا طرفو نو ته مدافعت کوُو - تا سو بے فکره اوسئ او دَ مقابلے تیارے کوئ -

نبی کریم صلے الله علیه وسلم چه دا واوریدو ډیر خوشحاله شو او په صحابه کرامو کښے هم دَ جهاد یو نوے جوش راپورته شو - حضرت عبد الله بن مسعود به همیشه فرمائیل چه دَ حضرت مقداد بن اسود دے کارنامے ته زهٔ ډیر پَښَخیګم چه کاش دا سعادت ما ته هم حاصل وے -

دَ خبرے پخوړ دا دے چه دَ حضرت موسیٰ علیه السلام قوم په داسے نازکه موقعَ باندے حضرت موسیٰ علیه السلام لره داسے بد جواب ورکړو چه خپل تول عهد او میثاق ئے مات کړو -

**دَ قوم انتهائی بے وفائی او دَ موسیٰ علیه السلام انتهائی صبر او ثابت قدمی**

قَالَ رَبِّ اِنِّیْ لَآ اَمْلِكُ اِلَّا نَفْسِیْ - دَ بنی اسرائیل قوم تیر حالات او واقعات او دَ دوی سره دَ الله تعالیٰ او دَ حضرت موسیٰ علیه السلام دَ معاملو جائزه اغستو نکے که په سرسری طور سره هم دا خا نته را وړاندے کړی - چه دَ بنی اسرائیلو

قوم دَهصبدنو راسے په غلامئ دَ فرعون کښې په قسم قسم ذلتونو او عذابونو کښې اَخته وُو. دَحضرت موسیٰ علیه السلام دَ تعلیم او برکت په وجه ذوی لره خدائے پاک دَ کوم ځائے نه کوم ځائے ته اورسول -

دَ دوی دَ سترګو په وړاندے دَ الله جل شانهٔ دَ کامل قدرت څنګه څنګه ننداره شوے - فرعون او دَ فرعون قوم پخپل دربار کښې دَ موسیٰ علیه السلام او هارون علیه السلام دَ لاسه شکست اوخوړو - پکوموساحرانو چه دَ دوی بهروسه وه هغوی اوس په حضرت موسیٰ علیه السلام باندے ایمان راوړو او دَ موسیٰ علیه السلام سره شو - بیا دَ دغه فرعون نه چه دَ خدائیٔ دعوه ئے کړے وه او په شاهی محلونو کښې اوسیدو نکو فرعونی قوم نه دَ خدائے عزّوجلّ قدرت کامله څنګه ټول محلونه او مکانات او دَ دوی ساز و سامان په یو وخت خالی کړه - او څنګه ئے دَ بنی اسرائیلو دَ سترګو دَ وړاندے په دریاب کښې غرق کړه - او څنګه ئے په معجزانه طور سره بنی اسرائیل په دریاب پورے ویستل - او څهٔ رنګې ئے هغه دولت چه فرعون به: اَلَيْسَ لِيْ مُلْكُ مِصْرَ وَهٰذِهِ الْاَنْهٰرُ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِيْ : وئیل فخر به ئے پرے کاوه - الله تعالیٰ دغه ټول ملک او ساز و سامان بغیر دَ څهٔ جنګ جګړے نه بنی اسرائیلو ته ور عطاء کړل -

په دے ټولو واقعاتو کښې دَ الله جل شانهٔ دَ لوئے قدرت علامے دَ دے قوم په وړاندے راغلے - حضرت موسیٰ علیه السلام دے قوم لره اول دَ غفلت او جهالت نه بیا دَ فرعون دَ غلامئ نه په خلاصولو کښې څومره تکلیفونه او مصیبتونه تیر کړل - دَ دے ټولو څیزونو نه پس هر کله چه دے قوم ته دَ خدائے دَ امداد او انعامونو دَ وعد وسره دَ شام په ملک کښې دَ جهاد کولو حکم ملاؤ شو نو دے خلقو دَ خپلے دے ناا هلئ اظهار اوکړو او اوئے وے : اِذْهَبْ اَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا اِنَّا هٰهُنَا قٰعِدُوْنَ:

دَ دنیا دَ لوئے نه لوئے مصلح دے په زړهٔ لاس کیدی او دِ کوری چه دَ دے حالاتو او دَ دے نه پس دَ قوم په دے حرکتونو باندے به په دهٔ څهٔ اثر کیږی - لیکن دلته دَ الله تعالیٰ اُولوا العزم رسولان دی چه دَ یو

مضبوط عزم پشان پخپل کار کښې ثابت قدم لګیا دی۔

دَ قوم په دې پرلپسې وعده ماتولو او وعدې هیره ولو سره عاجزه شو دَ خپل رب په وړاندې صرف دومره عرض کوي: إِنِّي لَا أَمْلِكُ إِلَّا نَفْسِي وَأَخِي: یعنې ځما دَ خپل ځان او خپل رور نه سوا په بل هیڅ اختیار نیشته۔ نو دَ عمالقه وو سره څنګه دَ جنګ مهم سرته کړو۔ دلته دا خبره هم دَ غور کولو قابله ده۔ په قوم دَ بني اسرائیلو کښې دَ کم نه کم دوه سرداران یوشع بن نون او کالب بن یوقنا کوم چه په پوره شان سره دَ موسی علیه السلام دَ تابعدارۍ ثبوت ورکړې وُه او دَ قوم دَ پوهه کولو دَ پاره او دوی لره ئیغ لارې ته دَ راوستو دَ پاره ئې دَ حضرت موسی علیه السلام سره پرلپسې کوشش کړې وُه دغه وخت حضرت موسی علیه السلام دَ دوی هم ذکر او نه کړو۔ بلکه صرف خپل او دَ حضرت هارون علیه السلام ذکر ئې او فرمایه، دَ دې سبب هم دغه دَ بني اسرائیلو عهد ماتول اونا فرماني وه۔ چه صرف حضرت هارون علیه السلام په وجه دَ پیغمبرۍ بانديې معصوم وُه او دَ ده په حق قائم پاتې کیدل یقیني وُه۔ او دغه باقي دواړه سرداران معصومان هم نه وُو۔ نو دَ دې انتهائي غم او غصې په حالت کښې ئې صرف دَ هغۀ ذکر او کړو دَ چا چه په حق باندې قائم پاتې کیدل یقیني وُو۔ دَ دې خبرې دَ ښکاره کولو سره چه ځما دَ خپل ځان او خپل رور نه سوا په بل هیڅ باندې اختیار نیشته۔

حضرت موسی علیه السلام دا دُعا او فرمائیله: فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ: یعنې زمونږ دواړو او زمونږ دَ قوم په مینځ کښې ته فیصله او کړې دَ دې دُعا حاصل دَ حضرت عبد الله ابن عباس رض دَ تفسیر مطابق دا وُه۔ چه دا خلق دَ کومې سزا مستحق دي دوی ته دې دغه سزا ورکړې شي۔ او مونږ دواړه چه دَ کوم صورتِ حال مستحق یُو مونږ ته دې هغه راکړې شي۔

الله تعالی دې دُعا لره دا سې قبوله او فرمائیله چه ارشاد او شه چه: فَاِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ اَرْبَعِيْنَ سَنَةً ۚ يَتِيْهُوْنَ فِي الْاَرْضِ: یعنې دَ شام دَ ملک زمکه په دوي باندې ترڅلویښتو کالو پورې حرامه کړې شوه،

اوس که دوی هلته تلل هم غواړی نو نه شی تلے - او بیا داهم نه ده چه شام ته به نه شی تلے، بلکه که دوی خپل وطن مصر ته واپس تلل غواړی نو هلته به هم نه شی تلے - بلکه په دے میدان کښے به دوی نظر بند کړے شی -

دَ الله جل شانهٗ دَ سزا لکه نو دَپاره نه پولیس او هتکړئ شرط دی او نه دَ جیل خانے مضبوط دیوالونه اوکاؤ سپینو دروازے - بلکه کله چه هغه چالوره قید کول او غواړی نو په ډاګه میدان کښے ئے هم قید کولے شی۔ او سبب ئے ښکاره دے چه ټول کائنات دَ دهٔ مخلوق دے او دَدهٔ په حکم کښے دی - هر کله چه دے کائنات ته دَچا دَ قید کولو حکم اوشی نو ټوله هوا او فضا او زمکه او مکان دَ دهٔ دَپاره جیل جوړ یګی - ؎

خاک و باد و آب و آتش بنده اند　　　　با من و تو مرده باحق زنده اند

رخاورے باد او اوبه او اور ټول دَ هغهٔ دَ حکم تابعدار دی - ما او تاته مړهٔ دی او دَ الله تعالیٰ په نزد ژوندی دی )

نو دغه لنډ شان میدان چه دَ مصر او بیت المقدس په مینځ کښے دے چه پلنوالے او اوږدوالے ئے دَحضرت مقاتل دَ تفسیر مطابق دیرش فرسخه اوږدوالے او نهٔ فرسخه پلنوالے دے - یو فرسخ که درے میله مقرر کړے شی نو لس اتیا میله اوږدوالے او اوویشت میله پلنوالے ترے جوړیګی - او دَ بعض روایتونو مطابق صرف دیرش ضرب اتلس میله رقبه ده - الله تعالیٰ دے ټول قوم لره چه شمار ئے دَحضرت مقاتل دَ بیان موافق شپږ لکه نفسونه وُو - په دے لنډ شان کلاؤ میدان کښے ئے داسے قید کړل چه څلویښت کاله پورے په دے منځ و ترو کښے وُو چه څهٔ رنګ به دَ دے میدان نه اوځی او مصر ته به واپس لاړشی، او یا چه وړاندے لاړشی او بیت المقدس ته اورسی - مګر کیده به داسے چه ټوله ورځ به ئے سفر اوکړو او چه ماښام به شو نو داسے به معلومیده چه دوی په دے ټوله ورځ سفر باندے صرف هغه ځائے ته اورسیدل دَ کوم ځائے نه چه دوی سحر روان شوی وُو -

دَ تفسیر عالمان فرمائی چه الله جل شانهٗ چه کله یو قوم لره سزا ورکوی

هغه ددوی د بد عمل په مناسبت سره وی. نو دے نافرمانه قوم چونکه دا کلمه ویلې وه چه: إِنَّا هَٰهُنَا قَٰعِدُونَ: یعنی مونږ دلته کینو - نو الله تعالیٰ دوی لره په دے سزا کښے ترڅلو ییښتو کالو پورے هلته قید کړل - د تاریخ روایتو نه په دے کښے مختلف دی چه په دے څلویښت کاله موده کښے د بنی اسرائیلو موجود نسل کوم چه نافرمانی کړے وه ټول فنا شو او د دوی راروان نسل باقی پاتے شو کوم چه د دے څلویښت کاله قید نه د خلاصیدو نه پس بیت المقدس کښے داخل شو یا د دوی نه هم څه خلق باقی وو - په هرحال قرآن کریم نو یوه داوعده کړے وه چه: كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ: یعنی د شام ملک ئے د بنی اسرائیلو په حصه کښے لیکلے دے دغه وعده پوره کول ضروری وو چه د بنی اسرائیل قوم به په دے ملک قابض وی - لیکن د بنی اسرائیلو موجوده خلقو نافرمانی اوکړه او د الله تعالیٰ د دے انعام نه ئے د ده اوکړه نو دوی ته داسزا ملاؤ شوه چه: مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ أَرْبَعِينَ سَنَةً: یعنی څلویښت کاله دوی د ارضِ مقدسه د فتح کولو نه محرومه کړے شو - بیا د دوی په نسل کښے چه کوم خلق پیدا شو د دوی په لاسو دا ملک فتح شو او د الله تعالیٰ وعده پوره شوه -

په دے تیهٖ بیابان کښے حضرت موسیٰ او هارون علیهما السلام هم د خپل قوم سره وو - مګر دا بیابان د دوی د پاره قید او سزا وه او د دے دواړو حضراتو د پاره د الله تعالیٰ د نعمتونو اظهار وو -

دغه وجه ده چه دا څلویښت کاله دور کوم چه په بنی اسرائیلو دعتاب تیر شو په دے کښے هم الله تعالیٰ دوی لره د حضرت موسیٰ او حضرت هارون علیهما السلام په برکت سره په قسم قسم نعمتونو سرفراز کړل - په ډاګ میدان چه د غرمونه عاجز شو نو د موسیٰ علیه السلام په دعا سره الله تعالیٰ په دوی وریځ سورے کړه کوم طرفته چه به دوی تلل وریځ به ورسره روانه وه - د تندے سخته پرے راغله نو الله تعالیٰ حضرت موسیٰ علیه السلام ته یوه داسے کاڼه ورکړه چه هرځائے به د دوی سره وه او کله چه به د اوبو ضرورت شو نو موسیٰ علیه السلام به ور لره خپله

همسادا پوېږو ده نو دولس چینې به تړ ے روانے شوے- دَ لوګے تکلیف ورلره راغے ، نو اسمانی خوراک مَنّ او سَلویٰ پرے نازل شو- دَ شپے دَ تیږے نه تنګ شو نو الله تعالیٰ ورته دَ رنړا یو مَنارہ اودرہ وَلہ چہ دَ هغے په رنړا کښې به دے ټولو خپل خپل کار وته کول-

غرض دا دے چه په دے میدان دَ تِیه کښې یوا ځے دغه په عتاب شوی خلق نه وُو بلکه دَ الله تعالیٰ دوه محبوب پیغمبران او دَ دوی سره دوه مقبول بندګان یوشع بن نون او کالب بن یو قنا هم وُو- دَ دوی په برکت سره دَ دے قید او سزا په زمانه کښې هم دا انعامات په دوی باندے کیدل او الله تعالیٰ دَ رحیما نو رحیم دے- ممکنه ده چه دَ بنی اسرائیلو دے خلقو هر کله دا حالات لیدلی وی او تو به ګار شوی وی- او دَ دے په بدله کښې ورته دا انعامات ملاؤ شوی وی-

دَ صحیح روایاتو په مطابق په دے څلویښت کاله دور کښې اوّل حضرت هارون علیه السلام وفات شو او دَ دے نه یو کال یا شپږ میاشتے پس حضرت موسیٰ علیه السلام وفات شو- دَ دے نه پس حضرت یوشع بن نون لره الله تعالیٰ نبی جوړ کړ و دَ بنی اسرائیلو په هدایت باندے ئے مامور کړ و- او دَ څلویښت کاله قید ختمیدو نه پس دَ بنی اسرائیلو باقی قوم دَ حضرت یوشع بن نون په مشرئ کښې دَ بیتُ المقدس دَ جهاد دَ پاره روان شو دَ الله تعالیٰ دَ وعدے مطابق دَ شام ملک دَ دوی په لاس فتح شو او دَ دے ملک بے اندازے دولت دَ دوی لاس لره راغے-

په اٰخرِ اٰیات کښې چه کوم ارشاد فرمائیلے دے چه: فَلَا تَاْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ: یعنی په دے نافرمان قوم باندے مه خفه کیږه- دا په دے بنا باندے چه پیغمبران علیهم السلام دَ خپل طبیعت او فطرت په وجه دا سے وی چه دَ خپل امت تکلیف او پریشانی نه شی برداشت کولے که دوی ته سزا ملاؤ شی نو هم پرے دوی غم ژن کیږی- په دے وجه حضرت موسیٰ علیه السلام ته دا تسلّی ورکړے شوه چه دوی ته په سزا ملاویدو سره ته مه خفه کیږه-

وقف لازم

وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ ابْنَيْ اٰدَمَ بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا

او واؤره وه دوی ته واقعي حال د آدم د دوه ځامنو - کله چه قربانئ اوکړه دواړو

فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ ؕ

ځه قربانی- او قبوله شوه د یو نه او قبوله نه شوه
د بل نه -

قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ؕ قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ

اوئے وے چه زهٔ به تا مړ کړم - هغه اووے چه الله قبلوی
د پرهیز

الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۷﴾ لَئِنْۢ بَسَطْتَّ اِلَيَّ يَدَكَ لِتَقْتُلَنِيْ

النصف

کارانو نه - که ته لاس اوچلوے په ما د مرګ د پاره

مَاۤ اَنَا بِبَاسِطٍ يَّدِيَ اِلَيْكَ لِاَقْتُلَكَ ۚ اِنِّيْۤ اَخَافُ

زهٔ نه چلوم پتا لاس نه خپل ستا د مرګ د پاره - زهٔ یریږم د الله نه

اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۸﴾ اِنِّيْۤ اُرِيْدُ اَنْ تَبُوْٓاَ بِاِثْمِيْ

چه رب د ټول جهان دے - زهٔ غواړم چه ته واخلے زما ګناه

وَاِثْمِكَ فَتَكُوْنَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ ۚ وَذٰلِكَ جَزٰٓؤُا

او خپل ګناه پس شے به ته د دوزخ والو نه - او دا سزا ده

الظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۹﴾ فَطَوَّعَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ قَتْلَ اَخِيْهِ

د ظالمانو - بیا دهٔ لره راضی کړو د دهٔ نفس په قتل د رور د دهٔ

فَقَتَلَهٗ فَاَصْبَحَ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۳۰﴾ فَبَعَثَ اللّٰهُ

پس دے ئے مړ کړو پس شو د نقصان کونکو نه - بیا او لیږهٔ الله

غُرَابًا يَّبْحَثُ فِى الْاَرْضِ لِيُرِيَهٗ كَيْفَ يُوَارِىْ سَوْءَةَ

یو مارغه چه کنستلے ئے زمکه چه دهٔ ته او ښائی چه څهٔ رنګے پټوی لاش دَ

اَخِيْهِ ؕ قَالَ يٰوَيْلَتٰۤى اَعَجَزْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا

خپل رور - او ئے وے اے افسوس دے ما نه دومره هم اونهٔ شوه چه شم برابر دَ دے

الْغُرَابِ فَاُوَارِىَ سَوْءَةَ اَخِىْ ۚ فَاَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ ﴿٣١﴾

مارغه چه پټ کړم لاش دَ رور خپل - پس شو دَ خپيمانه کيدونکو نه -

مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۛ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِىْۤ اِسْرَآءِيْلَ اَنَّهٗ مَنْ

په دے سبب سره - او ليکل مونږ په بنی اسرآءيلو چه څوک قتل کړی

قَتَلَ نَفْسًا ۢ بِغَيْرِ نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ فِى الْاَرْضِ

يو نفس لره بے بدله دَ بل نفس يا بغير دَ فساد کولو نه په ملک کښے

فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ وَمَنْ اَحْيَاهَا

نو ګويا قتل کړهٔ دهٔ ټول خلق - او چا چه ژوندے پاتے کړو

فَكَاَنَّمَاۤ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيْعًا ؕ وَلَقَدْ جَآءَتْهُمْ

يو نفس نو ګويا دهٔ ژوندی کړل ټول خلق - او را ئے وړی دی دوی ته

رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ۫ ثُمَّ اِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ بَعْدَ

زمونږ رسولانو ښکاره حکمونه - بيا هم ډير خلق پس دَ دے نه په

ذٰلِكَ فِى الْاَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ﴿٣٢﴾

ملک کښے زياتے کوی -

# لنډ تفسیر

او (اے محمد صلی اللہ علیہ وسلم) تاسو دے اهل کتابو ته دَ (حضرت) آدم (علیه السلام) دَ دوه ځامنو (یعنی هابیل او قابیل) قصه په صحیح طور سره واؤره وئے (چه دَ دوی دا غرور چه مونږ دَ صالحانو اولاد یو ختم شی، دَ کوم چه دوی په نَحْنُ اَبْنٰٓءُ اللّٰهِ کښے اظهار کوی، او دغه قصه هغه وخت شوے وه) کله چه دواړو (وَرُوڼو دَ الله په نوم) یو یو قربانی پیش کړه او په دوی کښے دَ یو (یعنی هابیل) نه قبوله شوه او دَ بل (یعنی قابیل) قبوله نه شوه (ځکه چه په کومه معامله کښے دَ فیصلے دَ پاره دغه قربانی شوے وه په دغے کښے هابیل په حقه وَه په دے وجه دَ دهٔ قربانی قبوله شوه او قابیل په حقه نه وَه نو دَ دهٔ قبوله نه شوه، که دا سے نه وے نو فیصله نه کیده، بلکه نوره اشتباه به پیدا شوے وه هرچه هغه دویم (یعنی قابیل فیصله او نه گڼله نو چغه ئے کړه) او ئے وے چه زهٔ به تا لره خامخا قتل کوم دغے بل (یعنی هابیل) جواب ورکړو (چه ستا بَیَد او خو ستا دَ ناحق والی په وجه دے ما څهٔ گناه دے ځکه چه) الله تعالیٰ دَ پرهیزګا نو عمل قبلوی (ما پرهیزګاری اختیار کړه او دَ خدائے حکم مِ او منلو نو الله تعالیٰ ځما قربانی قبوله کړه. تا پرهیزګاری پاتے کړه او دَ خدائے دَ حکم نه دے مخ واړه دلو نو ستا قربانی ئے قبوله نه کړه نو پس دا خطائی ستا ده که څما انصاف او کړه لیکن که بیا هم ستا دا اراده وی نو ته پوهه شه چه ما خو پوخ قصد کړے دے) که تا ما لره دَ قتل کولو دَ پاره لاس راوړل نو بیا هم زهٔ تا لره ستا دَ قتل کولو دَ پاره هرګز لاس دَ دُوړُوکے نهٔیم (ځکه چه) زهٔ دَ الله رب العٰلمین نه یَرِیږم (چه سره دَ دے چه په ظاهره خو ستا دَ قتل کولو دَ جواز سبب موجود دے. یعنی دا چه ته ما قتل کول غواړے مګر په دے وجه چه دَ دے جائز والے ترا وسه پورے په یو دلیل سره ما ته نه دے ثابت شوے، په دے وجه ستا دا کار دَ احتیاط نه خلاف ګڼړم. او دَ دے شك په وجه سره دَ خدائے نه یَرِیږم. او دا همت ستا سره دے چه سره دَ دے چه ځما دَ قتل دَ جواز دَ پاره هیڅ دا سے خبره نیشته بلکه مانع موجود دے

لیکن بیا هم د خدائے نه نه یریږې) زهٔ خو دا غواړم چه (ځما نه څهٔ ګناه او نه شی خواه
که ته هرڅو مره په ما ظلم وَلے او نه کړې چه په دے سره به) ته ځما ګناه او خپل ګناه
ټول پخپل سر واخلے بیا به ته په دوزخیانو کښے شامل شے او دا سزا وی دَ ظلم
کونکو رهسے خو هم هغهٔ دَ قتل اراده دَ اوّل نه کړے وه او چه دائے واوریده
چه دے خپل مدافعت هم نه کوی نو پکار خو دا وه چه سوړ شوے وے لیکن بے
فکره شو او نو رهم) دَ دهٔ زړهٔ دهٔ لره دَ خپل رور قتل ته تیار کړ و (بیا) آخر
دے ئے قتل کړ و چه په دے سره (دا کم بخت) په لوئے نقصان کونکو کښے شامل شو
(په دنیا کښے خو دا نقصان چه خپل دَ متبو قوّت او دَ روح راحت ئے ورک کړو، او
په آخرت کښے دا نقصان چه په سخت عذاب کښے به اخته وی۔ او س چه کله دَ قتل نه
فارغ شو نو حیران شو چه اوس په دے لاش څهٔ اوکړم چه دا راز پټ پاتے شی
او څهٔ پته ئے او نه لګی هیڅ پوهه نه شو نو) بیا (آخر) الله تعالیٰ یو مارغه (راحلته)
ورا و لیږلو چه دهٔ (په مَنبُوکه او پنجو) زمکه کنستله (او دَ کنستلو نه پس ئے یو بل
مارغه چه هغه مړ وَه په دغه چوغل کښے کیخو دخاورے ئے پرے وراَ چولے)
چه دغه (مارغه) دهٔ (قابیل) ته او ښائی چه دَ خپل رور (هابیل) لاش په
څهٔ طریقه سره پټ کړی (قابیل چه دا واقعه اولیده په خپل زړهٔ کښے ډیر
خپیانه شو چه دَ دے مارغه هومره پوهه هم ځما نیشتے او په ډیر افسوس
سره) ئے اووے چه افسوس دے ځما په حالت آیا زهٔ دَ دے نه هم کم یم چه
دَ دے مارغه برابر شوے وے او دَ خپل رور لاش م پټ کړے وے (پس په دے
بد حالئ باندے) ډیر شرمنده شو دَ دے روا قعے) په وجه سره (چه دَ ناحق
قتل فساد و نه ترے ثابتیږی) موښږه (په ټولو مکلفو عموماً او) په بنی اسرائیلو
(خصوصاً) دا (حکم) اولیکه (یعنی مقرر کړو) چه (د ناحق قتل دومره لوئے
ګناه دے چه) کوم سړے چه بل کس لره بے دَ بدلے دَ بل کس نه (چه ناحق قتل
شوے وی) یا بغیر دَ څه (شراو) فساد نه چه په زمکه کښے دَ دهٔ نه خور شوے
وی (خواه مخواه) قتل کړی نو (دهٔ ته به په بعض اعتبار سره دومره ګناه وی
چه) ګویا دهٔ ټول خلق قتل کړهٔ (هغه بعض اعتبار دا دے، چه په دے ګناه
ئے جرأت (زیړه ورتیا) او کړه، دَ خدائے تعالیٰ نافرمانی ئے او کړه خدائے تعالیٰ

دده نه ناراض شه، په دنیا کښې د قصاص لائق شو، او په اخرت کښې د دوزخ لائق شو. دا کار ونه د یو قتل او زر و قتلو نو یو شان دی اګر چه د سخت والی فرق پکښې شته. او دا دوه قید ونه په کښې ځکه اولګولے شو چه په قصاص کښې قتل کول جائز دی او دویم سبب د قتل د جواز د پاره لار شو کول دی چه وړاندې راغی او حربي کفر دے چه د جهاد په احکامو کښې داغلی دے دا ټول په کښې داخل دی چه د دوی قتل جائز بلکه په بعض صورتونو کښې واجب دے) او (دا هم لیکلی وُو چه څوک مړه ناحق قتل کول لوئ ګناه دے دغه شان چالره د غیر واجب قتل نه بچ کول لوئ عظیم ثواب دے چه) کوم سړے چه چالره بچ کړی نو (دده ته به دا سے ثواب میلا ویږی چه) ګویا دهٔ ټول خلق بچ کړل، (د غیر واجب قید پکښې ځکه اولګیده چه د کوم سړی قتل شرعًا واجب وی دده امداد یا سفارش حرام دے. او د دے ژوندی کولو د مضمون نه هم د قتل سخت والے معلوم شو چه هرکله ژوندی ورکول دومره غوره دی نو خامخا به قتل ناکاره وی په دے وجه د دے ترتّب او تسبّب هم په واسطے د عطف په مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ سره صحیح شو) او بنی اسرائیلو ته (د دے مضمون د لیکلی ورکولو نه پس) زمونږ ډیر پیغمبران هم د واضحو دلیلو نو (د نبوّت) سره راغلل راو وَقتًا فو قتًا ئے په دے د دے مضمون تاکید کولو) مګر بیا هم (د دے تاکید او اهتمام) نه پس ډیر په دوی کښې په دنیا کښې زیاتے کونکی پاتے شو. (او په دوی هیڅ اثر اونه شو تر دے چه بعضو پکښې پخپله دغے پیغمبرانو لره قتل کړی ؤ) -

## مَعلومَات او مَسئلے

**دهابیل او د قابیل قصّه**

په دے آیاتونو کښې الله تعالیٰ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته دا هدایت فرمائیلے دے چه تاسو اهلِ کتابو ته یا ټول امّت ته د حضرت آدم علیه السلام د دوه ځامنو قصّه صحیح صحیح واوُره وئے.

په قرآن مجید نظر کونکی پوهیږی چه قرآنِ کریم څه د قصو...

یا تاریخ کتاب نه دے - چه مقصد ئې د یوے واقعے د اول نه تر آخره پورے بیانول وی - لیکن تیرو واقعات او په تیرو قومونو چه څه تیر شوی وی دوی پخپل ځان کښے ډیر عبرتونه او نصیحتونه لری او دغه د تاریخ اصل روح دے او په دوی کښے چه کوم حالات او واقعات داسے هم وی چه د مختلفو شرعی حکمونو بنیاد دوی، نو د دے فائدو په بنا باندے د قرآن شریف طریقه هر ځائے کښے داوی چه موقع په موقع یو واقعه بیانوی او اکثر پوره واقعه هم په یو ځائے نه بیانوی بلکه د دے واقعے څومره حصه چه د دغه ځائے د مقصد سره متعلق وی یعنی تعلق ورسره لری هم هغه ټکړه ئې دغلته بیانولے شی -

د حضرت آدم علیه السلام د دوه ؤ ځامنو دا قصه هم د دے حکمت په طریقه سره نقل کړے شی - په دے کښے د موجوده او راتلونکو نسلونو د پاره ډیر عبرتونه او نصیحتونه دی او د دے په ضمن کښے ډیرو شرعی احکامو ته اشاره شوے ده -

اوس اول د قرآن د الفاظو تشریح او د دے لاندے اصل قصه اوکوری - د دے نه پس د دے متعلق د احکامو او مسئلو بیان دے -

د دے نه په وړاندے آیاتونو کښے بنی اسرائیلو ته د جهاد حکم او په دے کښے د دوی د بزدلئ او کم همتئ ذکر وو - په دے قصه کښے د دے په مقابله کښے د ناحق قتل د بد والی او د دے د تباه کارئ بیان کوی قوم لره اعتدال طرف ته راوستل غواړی چه لکه څه رنګے د حق په ملګو تیا او د باطل په ختمولو کښے د قتل و قتال نه ځان بچ ساتل غلطی ده دغه شان په ناحقه قتل و قتال کول د دین او دنیا تباهی ده -

په اول آیات کښے د : اِبْنَيْ اٰدَمَ ؛ لفظ راغلے دے - هسے خو هر یو انسان بنی آدم او د آدم اولاد دے - هر یو ته د آدم ځوئ ویلے شی - لیکن د جمهورو علمائو د تفسیر په نزد دلته د : اِبْنَيْ اٰدَمَ ؛ نه د حضرت آدم علیه السلام دوه صلبی او حقیقی ځامن مراد دی - یعنی هابیل او قابیل - د دے دواړو د قصے بیانولو د پاره ارشاد اوشو:-

دتاریخي روایتونو په نقل کولو کښې احتیاط او رشتونولی واجب دے

: وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَأَ ابْنَيْ آدَمَ بِالْحَقِّ : یعني دے خلقو ته د آدم د دوو ځامنو قصه د صحیح صحیح واقعے مطابق واؤره وئے - په دے کښې ئې د بالحق
په لفظ سره د تاریخي روایتونو په نقل کولو کښې یو اهم اُصول او خودل چه د تاریخي روایتونو په نقل کولو کښې ډیر احتیاط لازم دے - چه نه پکښې دروغ وي نه څۀ خلط ملط او دوکه او نه په اصل واقعه کښې د څۀ قسم تبدیلي او یا کمے زیاتے شوی وي (ابن کثیر)

قرآن کریم صرف په دے ځائے کښې نه بلکه په نورو موقعو باندے هم په دے اُصولو د قائم پاتے کیدو هدایات کړی دی - یو ځائے ارشاد دے : اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ : بل ځائے ارشاد دے : نَحْنُ نَقُصُّ عَلَيْكَ نَبَأَهُمْ بِالْحَقِّ : دریم ځائے ارشاد دے : ذٰلِكَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ قَوْلَ الْحَقِّ : په دے ټولو موقعو باندے د تاریخي واقعاتو سره په لفظ د حق راوړو ئے د دے خبرے اهمیّت په ډاګه کړے دے چه د واقعو په نقل کولو کښې د حقّ او رشتیا والي رِعَایت لازمي دے، د روایتونو او قصو په بِنا چه څومره فسادونه په دنیا کښې کیږی د دے ټولو بُنیاد په عام طور سره د واقعو په نقل کولو کښې بے احتیاطي وی - په لږ شان لفظ او عنوان بدلولو سره د واقعے حقیقت وران شی، د تیرو قومونو مذهبونه او شریعتونه د دے بے احتیاطئ په وجه سره ضائع شوی دی. او د دوی مذهبي کتابونه د یو څو بے سنده او بے تحقیقه قصو مجموعے جوړے شوی دی - دلته ئې د یو لفظ : بِالْحَقِّ : اضافه او کړه د دے اَهَم مقصد طرف ته ئې اشاره او فرمائیله -

د دے نه علاوه په دے لفظ کښې د قرآن کریم مخاطبینو ته دا خبره هم ښائی چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم کوم چه محض اُمّيّ دے او د زړکو نو کلونو وړاندے واقعات بالکل رشتونی او صحیح بیانوي نو د دے سبب بغیر د الله تعالیٰ د وحی او نبوّت نه څۀ کیدے شی -

د دے سریزے نه پس د دے دواړو ځامنو واقعه قرآن کریم دا بیان کړه : اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ : یعني دے دواړو

د الله تعالیٰ د پاره خپله خپله قربانی پیش کړه - لیکن د یو قربانی قبوله شوه او د بل قبوله نه شوه -

لفظ د: قُربَان: د عربي لغت په اعتبار سره هغه شی ته وئیلے شی کوم له چه چا ته د نزدیکت ذریعه جوړه وَلے شی - او د شرعے په اصطلاح کښے هغے ذبح وغیره ته وئیلے شی چه د الله تعالیٰ د نزدیکت حاصلولو د پاره اوکړے شی -

د دے قربانئ پیش کولو واقعه کومه چه په صحیح او قوی سند ونو سره نقل ده او ابن کثیر د دُنُو ومُبنو او د وُستنو عالمانو په جمع سره وُینا مقرر کړے ده - داده چه، هر کله حضرت آدم او حواء علیهما السلام دُنیا ته راغلل او د بچو پیدا کید و سلسله شروع شوه نو د هر یو حمل نه به د دوی دوه بچی پیدا کیدل یو هلک او بل جینئ - دغه وخت چه د آدم علیه السلام په اولاد کښے د خویاند و رونړو نه سوا نور څوک نه ؤ او د خور رور په منځ کښے نکاح نه شو کیدے - نو الله جَلَّ شانهٔ د دغه وخت د ضرورت په لحاظ سره د آدم علیه السلام په شریعت کښے دا خصوصی حکم جاری اُوفرمایه چه د یو حمل نه کوم هلک او جینئ پیدا شو هغه به په خپل منځ کښے حقیقی خور رور گنړلے شی او د دوی په منځ کښے به نکاح حرام وی - لیکن د یو حمل نه پیدا شوے هلک به د بل حملٔ د پیدا شوے جینئ حقیقی رور نه شی گنړلے او د دوی په منځ کښے به نکاح جائز وی -

لیکن اوشوه دا سے چه د اوّلنی هلک قابیل سره چه کومه جینئ پیدا شوے وَه هغه بنائسته او ښکلے وه او د بل هلک هابیل سره چه کومه پیدا شوے وه هغه بد شکله وَه - هر کله چه د نکاح وخت راغے نو د قاعدے مطابق د هابیل سره پیدا شوے بد شکله جینئ د قابیل په حصّه کښے راغله - نو په دے قابیل خفه او د هابیل دشمن شه او په دے خبره ئے زور او لګاؤ چه ځما سره کومه جینئ پیدا شوے وه دغه دے ما لره په نکاح کښے راکړے شی - حضرت آدم علیه السلام د شرعی قاعدے مطابق دا خبره قبوله نه کړه - او د هابیل او قابیل په منځ کښے د اختلاف لرے کَولو د پاره ئے دا طریقه جوړه کړه چه تا سو دواړه خپله خپله قربانی

دَ الله دَ پاره پیش کړئ دَچا قربانی چه قبوله شی داجیتمۀ به هغۀ لره ورکولے شی- ځکه چه دَحضرت آدم علیه السلام دا یقین وَه چه قربانی به دَهغه چا قبلیګی دَچا چه حق دے- یعنی دَهابیل-

په دغه زمانه کښے دَ قربانۍ دَقبلیدو دغه یوه ښکاره نښنه وَه چه دَآسمان نه به یو اور راتلو او قربانی بہ ئے خوړه- او کومه قربانی چه به اور او نۀ خوړه او دا دَدے دَ نۀ قبلیدو نښنه وه-

اوس چل داسے اُوشه چه دَهابیل سره کړے بیزے وے دۀ یو ښکلے څونډ ګډ قربانی کړو- قابیل زمیندار سړے وه دۀ څه غلّه، اغنم وغیره دَ قربانۍ دَپاره پیش کړه- او داسے اوشوه چه دَ دستور مطابق دَآسمانه اور راغے او دَهابیل قربانی ئے اوخوړۀ او دَقابیل قربانی پخپل ځائے هم دغه سے پاتے شوه- په دے باندے دَقابیل غصّه نوره هم زیاته شوه نو دَدۀ نه صبر اونه شو او په ښکاره طور سره ئے خپل رورته اُووے، لَاَقْتُلَنَّكَ: یعنی زۀ به تا لره مړ کړم-

هابیل دغه وخت هم دَغصّے دَخبرے په غصّه سره دَجواب ورکولو په ځائے په سړه سینه یو اُصولی خبره اوکړه چه دَدۀ سره همدردی او خیرخواهی پکښے هم وه- چه: اِنَّمَا یَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِیْنَ: یعنی الله تعالیٰ دستور دا دے چه هغه دَ پرهیزګارانو عمل قبلوی- که تا تقویٰ او پرهیزګاری اختیار ه وَلے نو ستا قربانی به هم قبوله شوے وه خو تا داسے او نه کړه نو قربانی دے قبوله نه شوه په دے کښے زما څۀ قصور دے؟

په دے خبره کښے دَحاسد دَحسد علاج هم ذکر شوے دے چه حاسد هرکله دا اُوینی چه په یو سړی الله پاک خپل څۀ خاص داسے نعمت فرمائیلے دے چه دۀ ته حاصل نه دے نو ده لره پکار دی چه خپله محرومی دَخپل عمل کوتاهی او دَګناهونو سبب اوګڼړی دَتوبے ویستلو په فکر کښے شی- داسے نه چه دَدغه بل نه دَ نعمت زائله کیدو په فکر کښے پریوځی- ځکه چه داسے کول دَدۀ فائده نه ده بلکه دا دَدۀ دَضرر سبب دے، ځکه چه دَ الله تعالیٰ په نزد دَقبلیدو دارمدار په تقویٰ باندے دے (مظهری)

**دَ عمل دَ قبلیدو دارمدار په اخلاص او په تقویٰ باندے دے**

د لته دَ هابیل او قابیل دَ یو بل سره په خبرو اترو کښے یو دا سے جُمله راغله چه دَ یو خاص اُصول حیثیت لری - چه دَ عملونو او عبادتونو قبلیده په تقویٰ دَ خدائے نه په یره ساتلو سره دی - په چا کښے چه تقویٰ نه وَه دَ دهٔ عمل مقبول نه دے - په دے وجه سره پخوانی عالمان فرمائی چه دا آیات دَ عبادت کوُنکوا و عمل کوُنکو دَ پاره یوه تازیانه ده - دغه وجه وَه چه حضرت عامر بن عبد اللهؓ دَ خپل وفات په وخت کښے جړل، خلقو ورته عرض اوکړو چه تاسو خو ټول عمر په نیکو عملونو او عبادتونو کښے مشغول وئے، بیا دَ ژړا وجه څهٔ ده؟ او ئے فرمائیل - تاسو دا ویئ او ځما په غوږونو کښے دَ الله تعالیٰ دا ارشاد بنګیږی : اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ؛ ما ته څهٔ معلومه ده چه ځما څهٔ عبادت به قبول شوے هم وی او که نهٔ -

حضرت عبد الله ابنِ مسعودؓ فرمائی چه که ځما یقین راشی چه ځما څهٔ عمل الله تعالیٰ قبول کړو نو دا هغه نعمت دے چه که ټوله زمکه دَ سرو زرونه ډکه شی او ځما په قبضه کښے راشی نو هم به ئے دَ دے په مقابله کښے هیڅ اونه ګنړم -

دغه شان حضرت ابودرداءؓ فرمائی چه که دا خبره په یقینی طور سره معلومه شی چه ځما یو مونځ دَ الله تعالیٰ په نزد قبول شوے دے نو ځما دَ پاره دغه دَ ټولے دُنیا او دَ دے دَ نعمتونو نه زیات دے -

حضرت عمر بن عبد العزیزؒ یو سړی ته په خط کښے دا نصیحتونه اولیکل چه:

"زهٔ تا ته دَ تقویٰ تاکیدکوم چه دَ دے نه بغیر هیڅ عمل نه شی قبلیدے، او دَ تقویٰ دار و نه سِوا په بل هیچا رحم نه شی کولے، او دَ دے نه سوا په بل هیڅ شی ثواب نه ملاویږی- دَ دے خبرے کوُنکی خو ډیر دی لیکن عمل کوُنکی ډیر کم دی"۔

او حضرت علی مرتضیٰؓ فرمائی چه دَ تقویٰ سره وړوکے عمل هم وړوکے نه دے، او کوم عمل چه مقبول شی هغه ته بیا وړوکے څنګه وئیلے کیدے شی؟ (ابن کثیر) -

# د جرم او سزا یو څو قرآنی ضابطے

إِنَّمَا جَزَٰٓؤُا الَّذِينَ يُحَارِبُونَ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ وَ

دا سزا ده د هغو چه جنګ کوی د الله سره او د هغهٔ د رسول سره او

يَسْعَوْنَ فِى الْأَرْضِ فَسَادًا أَنْ يُقَتَّلُوٓا أَوْ يُصَلَّبُوٓا

کوشش کوی په زمکه کښے د فساد کولو۔ چه دوی د قتل کړے شی یا د په سولی کړے شی

أَوْ تُقَطَّعَ أَيْدِيهِمْ وَأَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ أَوْ

یا د پریکړے شی د دوی لاسونه او خپے د بدل طرف نه او یا

يُنْفَوْا مِنَ الْأَرْضِ ۭ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْىٌ فِى

د ویستلے شی د دغه زمکے نه۔ دا د دوی رُسوائی ده په

الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِى الْأٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿۳۳﴾

دُنیا کښے او د دوی د پاره په آخرت کښے لوئے عذاب دے۔

إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ قَبْلِ أَنْ تَقْدِرُوا عَلَيْهِمْ

مګر چا چه توبه اووِیستله ستا سو په قابو کښے دا راتلو نه وړاندے:

ع ۵ ۸ ۹ فَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللّٰهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۳۴﴾

نو پوهه شئ چه الله تعالیٰ بخونکے مهربان دے

**لنډ تفسیر** کوم خلق چه د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول (صلی الله علیه وسلم) سره جنګ کوی (او د دے جنګ مطلب دادے

چه) په ملک کښې فساد (یعنې بد امنی) خوره وی (مراد د دینه لا رښوکول او اکړده،
په داسې سړی باندې چالوه چه الله تعالیٰ په شرعی قانون سره چه اظهار ئې د نبی کریم
صلی الله علیه وسلم په ذریعه شوې دې امن ورکړې وی یعنې په مسلمان یا په ذمی
باندې او اکه اچوی یا ئې قتلوی نو په دې وجه ئې دیته د الله او د رسول سره جنګ
ویلې دې چه دوه د الله تعالیٰ ورکړې شوې امن مات کړو - او چونکه د دې اظهار
د رسول په ذریعه شوې دې نو په دې وجه ئې د رسول سره تعلق هم زیات
کړو، غرض کوم خلق چه داسې حرکت کوی) د هغوی دا سزاده چه (په یو حالت کښې نو
به قتل کولې شی (دغه حالت دا دې چه دغه او اکوا نو ښوک صرف قتل کړې وی او د
مال اغستو نوبت نه وی راغلې) یا (که بل حالت شوې وی نو) په سولۍ کړې
شی (دا هغه حالت دې چه دوی مال هم اغستې وی او قتل ئې هم کړې وی) یا
(که د دریم حالت شوې وی نو) لاس او خپې دې ترې پریکړې شی د مخالف طرف
نه (یعنې ښی لاس او کیڼه خپه، دا هغه حالت دې چه مال ئې اغستې وی او قتل ئې
نه وی کړې) یا (که څلورم حالت شوې وی نو) د زمکې نه دې (د آزادو وسیدو نه
او وېستلې شی (جیل ته دې او لیږلې شی، دا هغه حالت دې چه نه ئې مال اغستې وی
نه ئې قتل کړې وی خو د قصد کولو نه پس ګرفتار شوی وی) دا (ذکر شوې
سزاګانې نو) د دوی د پاره په دنیا کښې سخته رسوائی (او ذلت) دې او دوی
له په آخرت کښې (چه کوم) لوئې عذاب به وی (لېب هغه جدا دې) البته کوم خلق
چه وړاندې د دینه چه تاسو دوی لره ګرفتار کړئ توبه او باسی نو په دې
حالت کښې) پوهه شئ چه الله تعالیٰ (خپل حقونه) او بخی دوی لره (او په توبه
قبلولو کښې) مهربانی او کړی (مطلب دا دې چه هره کومه سزا ذکر شوې
ده دا حد دې او د الله تعالیٰ حق دې چه د بنده په معاف کولو باندې نه
معاف کیږی. قصاص د بنده د حق په طور سره نه دې چه د بنده په معاف
کولو سره معاف کیږی. نو پس هر کله چه د ګرفتارئ نه وړاندې د دغې خلقو
توبه کول ثابت شی نو حد به ساقط شی کوم چه د الله تعالیٰ حق وه. البته
د بنده حق به باقی وی نو که مال ئې اغستې وی د هغې تاوان به ورکوی. او که
قتل ئې کړې وی د هغې قصاص به ترې اغستې شی. لیکن د دې تاوان او قصاص

دَ معاف کولو حق دَ مال خاوند او دَ قتل شوی ولی ته به حاصل وی)۔

# معلومات او مسئلے

**دَ قرآن دَ قوانینو عجیبه او نا اشنا انقلابی طریقه۔** په مخکښې ایاتونو کښې دَ هابیل واقعه دَ قتل او دَ دې دَ گناه څخه توبې والی ذکر وُه۔ په دې ذکر شو ایاتونو کښې او دَ دې نه په وروستو کښې دَ قتل، او ډاکے لوټ او غلا دَ شرعی سزاګانو بیان دے۔ دَ ډاکے او غلا دَ سزاګانو په درمیان کښې دَ خدائے نه دَ ډېرے او دَ عبادت په ذریعه دَ دُه ته دَ ځان نزدے کولو تلقین دے۔ دَ قرآن کریم دا طریقه ډیره نرمه طریقه او په ذهنونو کښې انقلاب پیدا کونکے ده۔ چه دے دَ دنیا دَ تعزیراتو دَ کتابونو پشان صرف دَ جرم او سزا په بیان باندے صبر نه کوی۔ بلکه دَ هر یو جرم او سزا سره دَ خدائے ډیره او اخرت را وړاندے کوی دا انسان مخ یو دا سے دنیا طرف ته کړځوی چه دَ هغې په خیال او تصور کښې را تلل دَ دُه لره دَ هر عیب او گناه نه پاکوی، او که په حالاتو او واقعاتو غور او کړے شی نو ثابته به شی چه دَ خدائے او دَ اخرت دَ ډېرے نه بغیر دَ دنیا هیڅ یو قانون پولیس او فوج دَ جرمونو ضمانت نه شی ورکولے دَ قرآن حکیم دا طریقه حکیمانه او مربیانه طرز دے چه په دنیا کښې ئے انقلاب را پورته کړو۔ او دَ دا سے انسانانو معاشره ئے پیدا کړه چه دَ خپل پاکوالی دَ وجې نه دَ ملائکو نه هم پورته مقام لری۔

**دَ شرعی سزاګانو درے قسمونه** دَ ډاکے او غلا شرعی سزاګانې چه ذکر ئے په دے ذکر شوو ایاتونو کښې دے۔ دَ دے دَ تفصیل او دَ دغې ایاتونو دَ تشریح او تفسیر بیانولو نه اول مناسب ده چه دَ دغې سزاګانو متعلق دَ شرعی اصطلاحاتو څه وضاحت اوشی دکوم چه دَ ناخبرئ په وجه ډیر و تعلیمیافته خلقو ته هم اشکالونه وړاندے راځی۔ دَ دنیا په عاموقانونو کښې دَ جرمونو ټولو سزاګانو ته مطلق دَ تعزیراتو نوم ورکولے شی خواه دَ هر قسم جرم سره چه تعلق لری۔ دَ تعزیراتِ هند، تعزیراتِ پاکستان وغیره په نومونو سره چه څومره کتابونه شائع کیږی هغه دَ هر قسم جرمونو او سزاګانو باندے

مشتمل دی- لیکن په اسلامی شریعت کښې معامله داسې نه ده بلکه د جرمونو سزاګانې ئې په درې قسمه مقرر کړی دی۔

حدود، قصاص، تعزیرات- د دې درې واړو قسمونو د تعریف او مطلب د پیژندونه اول یوه داخبره پیژندل ضروری دی چه د کومو جرمونو نه بل انسان ته تکلیف یا نقصان رسی په دې کښې په مخلوق هم ظلم وی او د خالق نافرمانی په کښې هم وی نو په هر داسې جرم کښې د الله او د بنده دواړو حقونه شامل وی او انسان د دواړو مجرم ګڼلې شی-

لیکن په بعض جرمونو کښې د بنده د حق اهمیت زیات دے او بعضو کښې د الله تعالیٰ د حق اهمیت زیات دے- او د حکمونو مدار ئې هم په دے زیات اهمیت باندے دے-

دویمه خبره داپیژندل ضروری دی، چه اسلامی شریعت د خاصو خاصو جرمونو نه علاوه د باقی جرمونو د سزاګانو د پاره څهٔ خاص پیمانه نهٔ ده مقرر کړے- بلکه د قاضی په اختیار کښې ئې ورکړے ده، چه د هرے زمانے او هرځائے او هر حالات په لحاظ سره چه څنګه او څومره سزا د جرم د مخ نیوی د پاره ضروری ګنړی هغه دے جاری کړی- داهم جائز ده چه د هرځائے او هرے زمانے اسلامی حکومت د شرعی قاعدو د لحاظ ساتلو لاندے د قاضیانو په اختیاراتو باندے پابندی او لګوی او د جرمونو د سزاګانو څه خاص پیمانه مقرر کړی او د دے ئې پابند کړی- لکه چه په ورستو قرنونو کښې داسې شوے ده- او د اوخت په ټولو ملکونو کښې تقریباً دا طریقه رائج ده-

اوس پوهه شئ چه د کومو جرمونو څهٔ سزا قرآن او سنت نه ده مقرر کړے بلکه د حاکمانو رائے ته ئې پریخودے ده، د غې سزاګانو ته د شریعت په اصطلاح کښې "تعزیرات" وائی- او د کومو جرمونو سزاګانے چه قرآن او سنت مقرر کړی دی هغه په دوه قسمه دی یو هغه چه په هغې کښې د الله تعالیٰ حق غالب ګنړلے شوے دے د هغې سزا ته "حد" وائی چه جمع ئې "حدود" ده- او دویم هغه جرمونه چه په هغې کښې د بنده حق د شریعت په رُوسره غالب ګنړلے شوے دے، د هغې سزا ته "قصاص" وائی-

قرآن کریم د حدودو او قصاص بیان په پوره تفصیل او تشریح سره پخپله کړے دے باقي د تعزیري جرمونو تفصیلونه ئې د رسول ﷺ بیان ته او هم د وخت د حاکمانو رائے ته پاتې کړي دي۔

لنډه دا ده چه قرآن کریم د کومو جرمونو سزا ګانې په طور د الله د حق مقرر کړي او جاري کړي دي دے ته "حدود" وائي۔ او کومې چه ئې په طور د بنده د حق جاري کړي دي دے ته "قصاص" وائي۔ او د کومو جرمونو د سزا چه ئې تعین نه دے فرمائیلے دے ته "تعزیر" وائي۔ د سزا د دے درے قسمو نو حکمونه په ډیرو څیزونو کښې مختلف دي۔ کوم خلق چه د خپل عام عرف په بنا باندے د هر جرم سزا ته تعزیر وائي او د شرعي اصطلاحاتو په فرق باندے نظر نه کوي دوی ته په شرعي احکامو کښې ډیرے غلطۍ مخې ته راځي۔

تعزیري سزا ګانې د حالاتو لاندے د سپکو نه سپکے کولے هم شي او د سختو نه سختے هم او معاف کولے هم شي۔ په دے کښې د حاکمانو اختیارات ډیر لوے دي۔ او په حدودو کښې چا حکومت یا حاکم او امیر ته د معمولي شان تغیر او تبدیل یا کمي زیاتي اجازت نیشته۔ او نه د زمانے او د ځائے په بدلیدو سره په دوی څۀ اثر پریوځي۔ او نه چا امیر او حاکم ته د دے د معاف کولو حق شته په اسلامي شریعت کښې حدود صرف پنځۀ دي۔ ډاکه، غلا، زنا، تهمت د زنا د دے سزا ګانې په قرآن شریف کښې راغلي دي۔ پنځم د شرابو سکلو حد دے، چه د صحابو په اجماع سره ثابت دے۔ دغه شان د پنځه وو جرمونو سزا ګانې معین شوے چه "حدود" ورته وئیلے شي۔ دا سزا ګانې لکه څنګه چه یو حاکم او امیر کمولے یا معاف کولے نه شي۔ دغه شان په توبه ویستلو سره هم د دنیاوي سزا په حق کښې نه شي معاف کیدے۔ البته د آخرت ګناه د اخلاص په توبه سره معاف کیدے شي او د هغې ځائے کا تہ بے باقه کیدے شي په دوی کښې صرف د ډاکے په سزا کښې یوه استثناء ده چه ډاکو که د ګرفتارئ نه وړاندے توبه اوکړي او د معاملا تو کښې د ده په توبه باندے اطمینان حاصل شي نو هم ترے حد ساقط کیدے شي۔ او د ګرفتاریدو نه پس ئې توبه معتبره نه ده۔ د دے نه علاوه نور حدونه په توبه سره

هم دَ دنیا په حق کښې نه معاف کیږی خواه دا توبه دَ گرفتارئ نه د مخکښې وی او که وروستو وی - په تهولو تعزیری جرمونو کښې دَ حق موافق سفارشونه اَورېدے شی او دَ الله په حدونو کښې سفارش کول هم جائز نه دی او اَورېدل ئې هم جائز نه دی - نبی کریم صلے الله علیه وسلم دَ دے سخته منعه فرمائیلے ده - دَ حدودو سزا لګانے په عام طور سره سختے دی او دَ دے دَ نافذ کولو قانون هم سخت دے چه په دے کښې هیچا ته دَ هیڅ کمی زیاتی په هیڅ حال کښې اجازت نیشته او نه څوک دا معاف کولے شی - کوم ځائے کښې چه دَ سزا او قانون دا سے سختی اېخودے شوے وی هلته دَ معاملے دَ معتدل کولو دَ پاره دَ جرم دَ مکمل کولو او دَ جرم دَ ثبوت مکمل کولو دَ پاره شرطونه هم ډیر سخت اېخودی شوی دی - په دے شرطونو کښې چه یو شرط هم مفقود (وُرک) شی نو حد ساقطیږی - بلکه که څهٔ معمولی شان شبهٔ هم په ثبوت کښې بیاموند شی نو حد ساقطیږی - دَ اسلام منلے شوے قانون په دے کښې دا دے چه اَلۡحُدُوۡدُ تَنۡدَرِءُ بِالشُّبۡهَاتِ ؛ یعنی حدونه په ادنیٰ شان شبهَ سره ساقِط کولے شی -

دلته دا هم پیژندل پکار دی چه پکومو صورتونو کښې شرعی حَد په څهٔ شبهَ یا دَ شرط دَ کمی په وجه ساقط شی - نو دا ضروری نه ده چه مجرم نه آزادی ملاؤ شی چه بیا بیا په دے جرم باندے زړه ور شی - بلکه حاکم به ورلره دَ حالت مطابق تعزیری سزا ورکوی - او دَ شریعت تعزیری سزا لګا نے هم په عام طور سره بدنی او جسمانی سزا لګانے دی - چه دَ عبرتناکو کیدو په وجه سره دَ جرمونو ختمولو مکمل انتظام دے په کښې - فرض کړه چه دَ زنا په ثبوت باندے صرف درے ګواهان ملاؤ شی او ګواهان عادلان او ثقه وی چه دَ دروغو شبهَ پرے نه شی کیدے - لیکن دَ شرعی قانون په بِنا سره دَ څلورم ګواه نه پیښ کیدو په وجه په ده شرعی حد نه شی جاری کیدے نو دَ دے دا مطلب نه دے چه دے به آزاد پریخودے شی بلکه دَ وخت حاکم به ده لره تعزیری سزا دَ حال مناسب ورکوی چه دَ کومو ګڼګوکو په صورت کښې به وی - یا دَ غلا دَ ثبوت دَ پاره چه کوم شرطونه مقرر دی په دے کښې دَ څهٔ کمی یا شبهِ پیدا کیدو په وجه سره په ده دَ لاس پرے کول شرعی حد نه شی جاری کیدے

خو دا دے دا مطلب نه دے چه دے بالکل آزاد شو بلکه دهٔ له به پهٔ تعزیری سزا د حال مطابق ورکولے شی۔

د قصاص سزا هم د حدود پهٔ شان په قرآن کښے مقرر ده چه د روح په بدله کښے به روح اغستے شی۔ د زخمونو په بدله کښے به د زخم برابر سزا ورکولے شی۔ لیکن فرق دا دے چه په حدود کښے د الله تعالیٰ حق غالب دے او د حق الله په حیثیت نافذ کړے شوی دی که د حق خاوندهٔ معاف کوی هم خو نه معاف کیږی او حد نه ساقطیږی۔ مثلاً د چا مال غلا شوے دے نو که هغه ئے معاف هم کړی خو د غلا شرعی سزا نه شی معاف کیدے۔ په خلاف د قصاص نه چه په دے کښے د بنده حق قرآن او سنت غالب مقرر کړے دے۔ هم دا وجه ده چه په قاتل د قتل د جرم د ثابتیدو نه پس به دے د قتل شوی د ولی ته حواله کړے شی که هغه غواړی نو دهٔ نه به قصاص واخلی او دے به قتل کړی او که غواړی نو معاف دے کړی۔

دغه شان د زخمونو د قصاص هم دا حال دے۔ د اخبره تا سو وړاندے معلومه کړے ده چه د حدود یا د قصاص د ساقط کیدو نه دا نه لازمیګی چه مجرم ته آزاد پریخودے شی بلکه د وخت حاکم ته ورله تعزیری سزا څومره او څنګه چه مناسب ګنړی ورکړی۔ په دے وجه دا شبهه کول نه دی پکار چه د قتل مجرم که د قتل شوی اولیاء معاف کړی نو آزاد دے پریخودے شی چه په دے به د قاتلانو زړهٔ ور تیا زیاته شی او قتلونه به عام شی۔ ځکه چه د دے سړی قتل کول خو د قتل شوی د ولی حق وهٔ او هغه دهٔ معاف کړو، لیکن د نورو خلقو د روحونو حفاظت د حکومت حق دے هغه د دے حق د حفاظت د پاره دهٔ له د عمر قید یا بل قسم سزا ګانو ورکولو سره د دے خطرے دفع کولے شی۔

تو د دے ځائے پورے د شرعی سزا ګانو حدود، قصاص، او تعزیرا تو د شرعی اصطلاحاتو او د دوی متعلق د ضروری معلوماتو بیان او شو۔ او س د دے متعلق د آیاتونو تفسیر او د حدودو تفصیل او ګورئی۔ په اوّلنی آیات کښے د هغو خلقو د سزاګانو بیان دے کوم چه د الله او د هغهٔ د رسول ﷺ

سره دَ مقابلې او جګړې کونکي دي او په زمکه کښې دَ فساد خوره ونکي دي -
دلته اول له خبره دَ غور قابله داده چه دَ الله او رسول سره جګړه او په زمکه کښې دَ فساد څهٔ مطلب دے او کوم خلق دَ دے مصداق دے؟ - لفظ دَ محاربے دَ حَرْب نه جوړ دے او دَ دے اصلي معنیٰ دَ سَلْب کولو او تختو لوده، او په محاورا تو کښې دالفظ دَ سَلْم په مقابل کښې استعمال شوے دے چه معنیٰ ئې اَمْن او سلامتي ده - نو معلومه شوه چه دَ حَرْب مطلب بَدْ اَمْنِي خوره وَل دي او ظاهره خبره ده چه دَ يو نيم قتل يا لوټ مار نه عام اَمْن نه ختميږي بلکه دا حالت هلته وي چه يو طاقتور جماعت په رهزنۍ او قتل وغارتګرۍ باندے راپورته شي - په دے وجه فقهاوُ حضراتو دَ دے سزا مستحق صرف هغه جماعت يا فرد مقرر کړے دے چه دَ وسلے سره په عوامو باندے ډاکه واچوي او دَ حکومت قانون په قوت سره ماتول او غواړي چه په نورو لفظونو کښې ورته ډاکو يا باغي وائي - عام غل، جيب کټ وغيره په دے کښې داخل نه دي - (مظهري)
دويمه خبره دلته دا دَ غور قابله ده چه په دے ايات کښې ئې دَ محاربے نسبت دَ الله او دَ رسول طرف ته کړے دے - اصحال داده چه ډاکو يا بغاوت کونکے چه کومه مقابله يا جګړه کوي دا دَ بني آدمو سره وي - وجه ئې داده چه يو طاقتور جماعت هر کله چه په طاقت سره دَ الله اَوْ دَ هغهٔ دَ رسول صلے الله عليه وسلم قانون ماتول او غواړي نو اګر چه په ظاهر کښې دَ دهٔ مقابله دَ عوامو او انسانانو سره ده ليکن په حقيقت کښې دَ دهٔ جنګ دَ حکومت سره دے او په اسلامي حکومت کښې چه کله دَ الله او دَ رسول قانون نافذ وي نو دے جګړے ته هم دَ الله او دَ رسول سره جګړه ويلے شي -
لنډه داده چه په اولني ايات کښې دَ کومے سزا ذکر دے دا سزا په هغې ډاکوانو او باغيانو باندے پرے وُځي چه په اجتماعي قوت سره حمله اوکړي عام امن برباد کړي او دَ حکومت دَ قانون په ډاکه دَ ماتولو کوشش اوکړي او ښکاره خبره ده چه دَ دے مختلف صورتونه کيدے شي، دَ مال لوټ کولو په عزت دَ حملے کولو نه واخله دَ قتل او وينو تو يولو پورے ټول پکښې شامل دي

نو دے ځائے نه د مقاتلے (دوینے تو یوُنکے جنګ) او محاربے (په طاقت سره بد امنئ خوره ولو) فرق معلوم شو - چه لفظ د "مقاتلے" خون ریزئ جنګ ته وئیلے شی که څوک قتل شی یکښے او که نه او په دے کښے مال هم لوټ کړے شی - او لفظ د "محاربے" په طاقت سره بد امنئ خوره ولو ته وئیلے شی او د امن او سلامتئ ختمولو په معنیٰ کښے دے - په دے وجه دا لفظ په اجتماعی طاقت سره د عوامو په ځان او مال او عزت کښے په یوشئ باندے حملے کولو د پاره استعمالولے شی - چه رهزنئ ډاکه، او بغاوت ورته وئیلے شی -

د دے جرم سزا قرآن کریم پخپله مقرر کړے ده او د الله تعالیٰ د حق په طور ئے یعنی د سرکاری جرم په حیثیت سره ئے نافذه کړے ده - چه د شریعت په اصطلاح کښے ورته حد وئیلے شی - نو اوس وا اورئ چه د ډاکے او رهزنئ یعنی لارے شوکولو شرعی سزا څه ده؟ - په ذکر شوی آیت کښے د لارے شوکولو څلور سزاګانے ذکر شوی دی :-

؛اَنۡ یُّقَتَّلُوۡۤا اَوۡ یُصَلَّبُوۡۤا اَوۡ تُقَطَّعَ اَیۡدِیۡهِمۡ وَ اَرۡجُلُهُمۡ مِّنۡ خِلَافٍ اَوۡ یُنۡفَوۡا مِنَ الۡاَرۡضِ؛ یعنی قتل دے کړے شی یا دے په سولئ کړے شی یا دے د دوی لاسو نه او خپے د مختلفو طرفو نو نه پریکړے شی یا دے دوی د زمکے نه او ویستلے شی" په دے کښے په او لو دریو سزاګانو کښے د مبالغے لفظ د باب تفعیل نه استعمال شوے دے چه د کار په مکرر کولو او سختولو سره دلالت کوی او د جمع صیغه ئے پکښے هم استعمال کړه دے طرف ته ئے اشاره اوفرمائیله چه د دوی قتل کول یا په سولئ کول یا ترے لاسونه او خپے پریکول د عامو سزاګانو پشان نه دی چه پکوم سړی جرم ثابت شی صرف په هغه سړی باندے سزا جاری کولے شی بلکه دا جرم چه د ډلے پکوم یوکس باندے ثابت شی نو ټوله ډله به قتلولے یا په سولئ کولے یا ترے لاسونه خپے پریکولے شی -

دا رنګې دے طرف ته ئے هم اشاره اوکړه چه دا قتلول او په سولئ کول وغیره د قصاص په طور باندے نه دی چه د قتل شوی اولیاء ئے معاف کړی نو معاف به شی - بلکه دا د شرعی حد او د الله د حق په حیثیت سره نافذ شوے دے نو چا ته چه ترے نقصان رسیدلے دے د هغوی په معاف کولو شرعاً سزا نه معاف کیږی -

دا دوه حکمونه دَ دے نه دَ تفعیل دَ صیغې په ذکر کولو سره معلوم شو (مظهری وغیره)۔

دَ رهزنئ دا خلو روا به سزا ګانې په حرف دَ "اَوْ" سره ذکر شوی دی چه دا "اَوْ" په څو ځیزو نو کښې دَ یَوْ دَ اختیار ورکولو دَ پاره هم استعمالولے شی او دَ تقسیم دَ کار دَ پاره هم۔ په دے وجه دَ امّت دَ فقها وُ صحابه وُ او تابعینو یو جماعت دا حرف دَ "اَوْ" دَ اختیار دَ پاره مقرر کړے دے دے طرف ته تلی دی چه په دے څلورو سزاګانو کښې امام او امیر ته شریعت اختیار ورکړے دے چه دَ ډاکوانو دَ قوّت دَ باؤ او دَ جرم دَ سخت والی او کموالی په لحاظ سره دَ دوی دَ حال مطابق دا خلور وا به سزاګانې یا په دوی کښې یوه جاری کړی۔

سعید بن مسیّبؒ، عطاءؒ، داؤدؒ، حسن بصریؒ، ضحاكؒ، نخعیؒ، مجاهدؒ او دَ څلورو اماما نو نه دَ امام مالكؒ دا مذهب دے۔ او امام ابوحنیفهؒ، شافعیؒ، احمد بن حنبلؒ او دَ صحابوؓ دَ یو جماعت او تابعینؒ حرف دَ "اَوْ" دلته دَ تقسیم دَ کار په معنیٰ کښې اخستے دَ آیت مطلب ئې دا مقرر کړے دے چه دَ رهزنانو او رهزنئ دَ مختلفو حالاتو په وجه مختلفې سزاګانې مقرر دی۔ دَ دے تائید دَ یو حدیث نه هم کیږی۔ چه په هغې کښې په روایت دَ ابن عباس نقل دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ ابو برده اَسلمی سره دَ صلح معاهده فرمائیلے وه۔ مګر هغه معاهده ماته کړه او څهٔ خلق دَ مسلمانیدو دَ پاره مدینې طیبې ته راتلل په دوی ئې ډاکه واچوله په دے واقعه کښې جبرئیل امین دَ سزا دا حکم راؤړو۔ چه کوم سړی څوک قتل هم کړه او مال ئې هم لوټ کړو دے دِ په سولئ کړے شی او چاچه صرف قتل او کړو مال ئې لوټ نه کړو دے دِ قتل کړے شی او چاچه قتل نه دے کړے صرف مال ئې لوټ کړے دَ دهٔ لاس خپے دے دَ مختلفو طرفونو نه کټ کړے شی او څوک چه په دوی کښې مسلمان شی دَ هغهٔ جرم دِ معاف کړے شی او چاچه قتل او لوټ مار هیڅ نه دی کړی صرف خلق ئې ویرا وهٔ چه په دے سره په عام امن کښې خلل راغے دے دِ جلا وطن کړے شی۔ او که دے خلقو دَ دار الاسلام یو مسلمان یا غیر مسلم شهری قتل کړے وی مګر مال ئې نه وی لوټ کړے نو دَ دوی سزا: اَنْ یُّقَتَّلُوْٓا: یعنی دے ټولو له دِ قتل کړے شی۔

اګرچه د قتل کار به د واسطې نه صرف د بعضې افرادو نه شوې وي- او که څوک ئې قتل هم کړي وي او مال ئې هم لوټ کړې نو د دوی سزا: **يُصَلَّبُوْٓا**: ده- يعنې دوی دې په سولئ کړې شي- چه د دې صورت دا دې چه ژوندي په سولئ آويزان کړې شي- بيا دې په نيزه وغيره ورلره ګيډه او شلولې شي- او که دې خلقو صرف مال لوټ کړې وي څوک ئې نه وي قتل کړې نو د دوی سزا: **اَنْ تُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ مِّنْ خِلَافٍ**: ده- يعنې د دوی ښئ لاس د مړوند نه او ګس پښه د ګونډې نه ورته پرې کړې شي- او په دې کښې هم د مال لوټ کولو دا کار اګرچه به د واسطې نه د بعضو نه صادر شوې دې ليکن سزا به د ټولو د پاره هم دغه وی ځکه دې کوم چه ټوله کړې دي د دې خپلو ملګرو په مدد او تعاون سره ئې کړې دي- په دې وجه په جرم کښې ټول شريک دي- او که لا تر اوسه د قتل او لوټ مار څه کار د دوی نه نه وی شوې چه د دې نه اول دوی ګرفتار شي نو د دوی سزا: **اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ**: ده- يعنې د زمکې نه د دې او ويستلې شي-

د زمکې نه د ويستلو مطلب د فقهاؤ د يو جماعت په نزد دا دې چه دوی دې د دار اسلام نه او ويستلې شي- او د بعضو په نزد دا دې چه يو کوم مقام کښې دوی چه اوسيدلې وه د هغه ځائے نه دې او ويستلې شي حضرت فاروق اعظم په دې قسم معاملو کښې دا سې فيصله فرمائيله ده چه که مجرم لره د دغه ځائے نه او ويستلې شي په نورو ښهرونو کښې آزاد پريښودې شي نو د دغه ځائے خلق به بيا تنګوی په دې وجه دا سې مجرم دې په قيد خانه کښې بند کړې شي، دا د ده د زمکې نه ويستل دي چه په زمکه کښې چرته ګرځيدې نه شي- امام اعظم ابو حنيفه هم دا اختيار کړې ده-

پاتې شو دا سوال چه په دغه شان باوسله حملو کښې نن صبا په عام طور سره صرف مال لوټ کولو او قتلو نو کولو صبر نه شي کولې بلکه اکثر د ښځو پرده دري او د اغوا وغيره واقعات هم مخې ته راځي- او د قرآن مجيد جمله: **وَيَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا**: د دې قسم ټولو جرمونو لره شامل ده، نو دوی به د کومې سزا مستحق وي، په دې کښې خو ښکاره خبره دا ده چه امام او امير لره اختيار دې-

چه په دے څلورو سزاګانو کښې د دوی د حال سره مناسب کومه سزا ګڼې هغه ورکړی۔ او که د بدکارئ شرعی ثبوت ملاؤ شی د زنا حد پرې جاری کړی۔

دغه شان که صورت داسے وی چه نه ئے مال لوټ کړے وی او نه ئے څوک قتل کړے وی بلکه څۀ خلق ئے زخمی کړی وی نو د زخمونو د قصاص قانون به پرے نافذ کړے شی (مظهری)

د آیت په آخر کښې فرمائی: ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي الدُّنْيَا وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيْمٌ: یعنی دا شرعی سزا کومه چه ېد وی په دُنیا کښې جاری کړے شوے ده دا خو د دُنیا رُسوائی ده او د سزا یو نمونه ده او د آخرت سزا د دے نه هم سخته او اوګده ده۔ د دے نه معلومه شوه چه د دُنیا په سزاګانو حدودو او قصاص یا تعزیرات وغیره سره بغیر د توبے نه د آخرت د سزا نه شی خلاصیدے، البته چه سزا اوخوری او بیا په زړۀ سره توبه او باسی نو د آخرت سزا به معاف شی۔

په دویم آیت: اِلَّا الَّذِيْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَقْدِرُوْا عَلَيْهِمْ: کښې یوه استثناء ذکر شوے ده هغه دا ده چه ډاکوان او باغی که د حکومت په ګیره کښې د راتلو نه اوبه ده د قابو موندو نه وړاندے چه ښېل قوّت او طاقت ئے په ځائے وی په دے حالت کښې که توبه اوکړی او د رهزنئ او ډاکو لونه ځانونه ېچپله قلار شی نو دا شرعی حد به د ډاکو نه ساقط شی۔ دا استثناء د عامو حدودو د قانون جُدا ده۔ ځکه چه په نورو جرمونو غلا زنا وغیره کښې د جُرم کولو او د قاضی په عدالت کښې د جُرم ثابتیدو نه پس که مجُرم په رشتونی زړۀ سره توبه هم اوکړی نو اګرچه په دے توبه سره د آخرت سزا خو به معاف شی لیکن د دُنیا شرعی حد نه معاف کیږی لکه یو څو ایاتو نه پس چه د غلا په سزا کښې د دے تفصیلی بیان به راشی۔

حکمت په دے استثناء کښې دا دے چه یو طرفته ئے د ډاکوانو په سزا کښې دا سختی اختیار کړے ده چه په ټول جماعت کښې که د یو نه هم جُرم صادر شی، نو سزا ټول جماعت له ورکولے شی۔ په دے وجه ئے بل طرفته د دے استثناء په ذریعه معامله سُپکه کړه چه که توبه اوکړی نو د دُنیا سزا به هم معاف شی او د دے نه علاوه په دے کښې یو سیاسی مصلحت هم دے۔ چه په یو طاقتور

جماعت بانډې هر وخت قابو موندل ګران وي نو په دے وجه ئې په دے طریقه سره د ترغیب دروازه پرانستے پریخوده چه دوي توبے ته مائل شي۔

دارنګ په دے کښې دا مصلحت هم دے چه د نفس قتل کول یو انتهائي سزا ده په دے کښې د اسلامي قانون رُخ دا دے چه دا د کمونه کمه دي او د چاکے په صورت کښې خو د یو جماعت قتل کول لازمیږي په دے وجه په ترغیبي اړخ سره ئې د دوي د اصلاح دعوت هم د دے سره سره جاري پاتے کړو۔ د دے اثر دا وُه چه علي اسدي کوم چه د مدینے طیبے په خواکښے ئې ځانله ډله جمع کړے وَه په تلونکو راتلونکو به ئې ډاکه اچوله ۔یو ورځ ئې په قافله کښے د یو قاري د خولے نه دا آیت په غوږ کښے پریوت: يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ؛ د قاري خواته ئې ځان اُورساوُه او د دوباره لوستو درخواست ئې ورته اوکړو چه په دویمه پیره ئې آیت واؤریدو نو توره ئې په تیکی کښے دننه کړه او د ډاکو نه ئې توبه اُوویسته مدینے منورے ته اورسید و۔ دغه وخت په مدینه منوره مروان بن حکم حاکم وُه حضرت آبو هریره د ده لاس او نیوُه د مدینے امیر له ئې بوتلو او د قرآن شریف دا ذکر شوے آیات ئې او لوستو او ئې فرمائیل چه ته ده له هیڅ سزا نه شے ورکولے۔

حکومت هم د ده د دے ډاکو د فساد نه عاجزه شوے وُه قول ډیر خوشحاله شو۔

دغه شان د حضرت علي کرم الله وجهه په زمانه کښے حارثه بن بدر بغاوت اوکړه او وتلو او قتلونه او لوټ مارئې ځانله پیشه جوړه کړه لیکن بیا ورله الله تعالیٰ توفیق ورکړو او توبه ئې اوویسته واپس راغی نو حضرت علي کرم الله وجههٔ په ده شرعي حد جاري نه کړو۔

دلته دا خبره د یادوو قابله ده چه د شرعي حد د معاف کید و نه دا نه لازمیګي چه د بندګانو حقونه کوم چه ده ضائع کړي دي هغه هم معاف شو، بلکه که د چا مال ئې اغستے وي او هغه موجود وي نو د هغې واپس کول ضروري دي او که څوک ئې قتل کړے وي یا زخمي کړے وي نو د هغې قصاص پرے لازم دے۔ البته

چونکه قصاص د بنده حق دے نو د قتل شوی اولیاء یا د حق مالک ئے که معاف
کړی نو معاف به شی - او کوم چه مالی نقصان ئے چا ته رسولے دے د هغې تاوان
ادا کول یا ئے پرے معاف کول په دهٔ لازم دی - د امام ابوحنیفهؒ او جمهور فقهاؤ
دا مذهب دے - او که غور او کړے شی نو دا خبره هسے هم ښکاره ده چه د
بندګانو د حقونو نه ځان خلاصول په خپله د توبے یو جزء دے - بغیر د
دے نه خو توبه نه مکمل کیږی - په دے وجه یو چا کو به هغه وخت توبه
کونکے منلے شی هر کله چه دے د بندګانو حقونه ادا کړی او یا ئے
معاف کړی -

یَا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوا إِلَیْهِ

اے ایماندارو یره کوئ د الله نه او لټوئ هغهٔ ته

الْوَسِیلَةَ وَجَاهِدُوا فِی سَبِیلِهِ لَعَلَّکُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۳۵﴾

وسیله او جهاد کوئ د هغهٔ په لاره کښے چه تاسو کامیاب شئ -

إِنَّ الَّذِینَ کَفَرُوا لَوْ أَنَّ لَهُمْ مَا فِی الْأَرْضِ جَمِیعًا

کوم خلق چه کافر دی که د دوی سره وی هر څه چه په زمکه کښے دی ټول

وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِیَفْتَدُوا بِهِ مِنْ عَذَابِ یَوْمِ

او د دے سره دومره نور چه په بدله کښے ئے ورکړی په ورځ

الْقِیَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِیمٌ ﴿۳۶﴾

د قیامت د عذاب نه نو د دوی نه به قبول نه شی - او د دوی د پاره عذاب دردناک دے.

یُرِیدُونَ أَنْ یَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُمْ

غواړی به چه او وځی د اور نه او دوی به د دے نه

بِخٰرِجِيْنَ مِنْهَا وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۳۷﴾ وَالسَّارِقُ

د وتونکي نه دي او د دوي د پاره عذاب هميشه دے ۔ او غلا کونکے سړے

وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا اَيْدِيَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا كَسَبَا

او غلا کونکے ښځه پرېکړئ د دوي نه لاس د دوي په سزا کښې د دوي د کسب

نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۳۸﴾ فَمَنْ تَابَ

خبر دارے دے د الله د طرف نه ۔ او الله غالب دے حکمت والا دے ۔ بيا چه چا توبه او کړه

مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ۗ

پس د ظلم خپل نه او اصلاح ئے او کړه نو الله قبلوي د دهٔ توبه

اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳۹﴾ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ

بے شکه الله بخونکے مهربان دے ۔ تا ته معلومه نه ده چه د الله د پاره دے

مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۗ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَ

حکومت د اسمانو نو او د زمکے ۔ عذاب ورکوي هغه چا له چه او غواړي او

يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۴۰﴾

بخي هغه چا له چه او غواړي ۔ او الله په هر څهٔ باندې قادر دے ۔

# لنډ تفسير

اے ايماندارو د الله تعالىٰ (د احکامو د مخالفت) نه او يريږئ (يعنې گناهونه پاتے کړئ) او (د عبادت په ذريعه) د خدائے تعالىٰ نزديکت او لټوئ (يعنې د ضروري عبادتونو پابندي کوئ) او (په عبادتونو کښې خاص) د الله تعالىٰ په لاره کښې جهاد کوئ اُميد دے چه

(په دې طريقه سره) تاسو (پوره) کامياب شئ (او کاميابي د الله تعالیٰ رضا حاصلول او د دوزخ نه نجات دے) يقيناً کوم خلق چه کافر دي که (بالفرض) د دوی (هر يو) سره د ټولے دُنيا ټول څيزونه وی (چه په دے کښے ټولے دفينے او خزانے هم راغلے) او (يواځے دا نه بلکه) د دے څيز ونو سره نور هم دومره څيزونه وی چه هغه ورکړی د قيامت د عذاب نه خلاص شی خو بيا به هم دغه څيزونه هرګز د دوی نه قبول نه کړے شي (او د عذاب نه به بچ نه شي بلکه) دوی لره به دردناک عذاب وی (بيا په عذاب کښے د داخليدو نه پس) د دے خبرے خواهش (او ارزو) به کوی چه د دوزخ نه (په څه شان) اوځي او د دا خواهش به ئے چرته پوره نه شی او) دوی به د دے نه چرته او نه وتلے شی او دوی لره به هميشه عذاب وی (يعنی په هيڅ تدبير سره به تورے نه سزا لوے شي او نه به تورے هميشوالے د سزا لوے شي) -

او کوم سړے چه غلا او کړی او (دغه شان) کومه ښځه چه غلا او کړی پس (حکم ئے دا دے چه اے حاکمانو) د دے دواړو ښئ لاسونه (د مړوندونه) پرے کړئ د دوی د (دے) کار په عوض کښے (او دا عوض) په طور د سزا (دے) د الله تعالیٰ د طرف نه او الله تعالیٰ لوئے قوت والا دے (کومه سزا چه غواړی مقرر کوی او) لوئے حکمت والا دے (چه مناسب سزا تجويز فرمائی) بيا چه کوم سړے (د شرعی قاعدے موافق) توبه او کړی د خپل دے زياتی (يعنی غلا) کولو نه پس او (د ائينده د پاره) خپل عملونه برابر کړی (يعنی غلا وغيره نه کوی په خپله توبه قائم وی) نو بے شکه الله تعالیٰ په (حال د) ده (په رحمت سره) به توجه او فرمائی (چه په توبه به ورته تير ګناه معاف کړی او په توبه د قائم پاتے کيدو په وجه به پرے زياته مهربانی او فرمائی) بے شکه الله تعالیٰ لوئے بخنے والا دے (چه د ده ګناه ئے معاف کړو) لوئے رحمت والا دے (چه ائينده ئے پرے لويه مهربانی او فرمائيله - اے مخاطبه) آيا ته نه پوهيګے (بلکه ټول پوهه دی) چه د الله تعالیٰ د پاره ثابت دے حکومت د ټولو اسمانونو او د زمکے هغه چا لره چه غواړی سزا ورکوی او چا لره چه غواړی معاف کوی او الله تعالیٰ په هر څه باندے پوره قدرت لرونکے دے -

# مَعلومات او مَسئلے

د دے ذکر شوو اٰیاتونو نه په وړاندے اٰیاتونو کښے د ډاکے او بغاوت شرعی سزا او د دے د احکامو تفصیل ذکر وُو - او وړاندے د درے اٰیاتونو نه پس د غلا د شرعی سزا بیان راروان دے د دے په مینځ کښے په درے اٰیاتونو کښے' د تقوٰی' اطاعت او عبادت او جهاد طرف ته ترغیب دے' او د کفر او عناد' او گناهونو د تباه کارو بیان دے - د قراٰن کریم په دے خاص طور باندے چه غور اوشی نو معلومه به شی چه د قراٰن کریم عامه طریقه او طرز دا دے چه دے محض په حاکمانه طور باندِ د تعزیر او سزا قانون بیان کړے نه پاتے کوی بلکه د تربیت او پالنے په انداز کښے ذهنونو لره د جرمونو نه د لرے ساتلو د پاره هم هواره وی - د خدائے پاک او اٰخرت یره او د جنّت همیشه پاتے کیدونکی نعمتونه ورته راوړاندے کوی د دوی په زړونو کښے د جرمونو نه نفرت پیدا کوی - دغه وجه ده چه اکثر د جرم او سزا د قانون نه وروستو: اِتَّقُوا اللّٰهَ: وغیره بیا بیا راوړی - دلته کښے ئے هم اَوّل اٰیت کښے د درے څیزونو حکم کړے دے

اوّل: اِتَّقُوا اللّٰهَ: یعنی د الله نه ووېرېږئ، ځکه چه د الله یره هغه شے دے چه انسان لره په حقیقی طور سره په پټه او په ښکاره د گناهونو نه منع کولے شی -

دوېم ارشاد دے: وَابْتَغُوْا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ: یعنی د الله تعالیٰ نزدیکت تلاش کړئ - لفظ د: وَسِیلے: د: وَسْلٌ: مصدر نه مشتق دے چه معنیٰ ئے د یو ځائے کیدو او ملاویدو ده (یعنے پیوست کیدو ده) - دا لفظ په: سین: او: صاد: دواړو سره تقریبًا په یوه معنیٰ کښے راځی - فرق دومره دے چه: وَصْلٌ: په صاد سره مطلقًا د ملاویدو او پیوست کیدو په معنیٰ کښے دے - او: وَسْلٌ: په سین سره د رغبت او محبّت په جوړ د ملاویدو د پاره مستعملیږی - صحاح' جوهری او مفردات القراٰن د راغب اصفهانی کښے د دے تصریح ده - په دے وجه په صاد سره: وُصْلَه او: وَصِیْلَه:

هرهغه شی ته ویلے شی چه د دوه څیزونو په مینځ کښے میلان او پیوستون پیدا کړی - خواه دغه میلان او پیوستون په رغبت او محبت سره یا په بل صورت سره وی او په سین سره د لفظ وسیله معنی هغه شے دے چه یو لوره د بل سره په رغبت او محبت سره ملاؤ کړی (لسان العرب، مفردات راغب)

د الله تعالیٰ طرف ته وسیله هرهغه شے دے چه بنده لوره په رغبت او محبت سره خپل معبود ته نزدے کړی - په دے تیر نیکان صحابه او تابعین په دے ایت کښے د وسیلے تفسیر په عبادت نزدیکت او ایمان او نیک عمل سره کوی - په روایت د حاکم حضرت حذیفہؓ فرمائی چه د وسیلے نه مراد نزدیکت او عبادت دے - او ابن جریرؒ د حضرت عطاءؒ، مجاهدؒ، حسن بصریؒ وغیره نه هم دا نقل کړے دے -

او ابن جریرؒ وغیره د حضرت قتادهؒ نه د دے ایت تفسیر دا نقل کړے دے : تَقَرَّبُوا اِلَیْهِ بِطَاعَتِهٖ وَالْعَمَلِ بِمَا یُرْضِیْهِ : یعنی د الله تعالیٰ طرف ته نزدیکت حاصل کړئ د هغهٔ د رضا مندئ او فرمانبردارئ په کار کولو سره. نو په دے وجه د ایت د تفسیر نچوړ دا شو چه د الله تعالیٰ نزدیکت تلاش کړئ په ایمان او نیک عمل سره -

او د مسند احمدؒ په یو صحیح حدیث کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی - وسیله یو اعلیٰ درجه ده د جنت چه د دے نه پورته بله درجه نیشتے تاسو د الله تعالیٰ نه سوال کوئ چه دغه درجه ما لره راکړی -

او د صحیح مسلم په یو روایت کښے دی چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه کله بانګی کونکے بانګ وائی نو تاسو هم هغه کلمے وایئ کومے چه بانګ ویونکے وائی - د دے نه پس په ما درود وایئ او زما د پاره د وسیلے دعا کوئ -

د دے احادیثو نه معلومه شوه چه وسیله یو خاص درجه ده د جنت چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره خاص ده - او په ذکر شوی ایت کښے هر مؤمن لره د وسیلے طلب کولو او تلاش کولو حکم په ظاهره د دے خصوصیت سره

منافی ده، لیکن جواب ئې ښکاره دے چه لکه څه رنګې د هدایت اعلیٰ مقام د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د پاره خاص دے او دوی به همیشه د دے د پاره دُعا کوله. مګر د دے ابتدائی او درمیانه درجے د ټولو مؤمنانو د پاره عامے دی. دغه شان د وسیلے اعلیٰ درجه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د پاره خاص ده. او د دے نه لاندے درجے د ټولو مؤمنانو د پاره د دوی په واسطه او ذریعه سره عامے دی۔

حضرت مجدد الف ثانیؒ په خپلو مکتوباتو کښے، او قاضی ثناء الله پانی پتیؒ په تفسیر مظهری کښے په دے باندے خبرداری فرمائیلے دے. چه په لفظ د وسیله کښے د محبت او رغبت معنیٰ شامله ده وسره دے طرف ته اشاره ده چه د وسیلے په درجو کښے ترقی د الله تعالیٰ او د هغهٔ د رسول صلے الله علیه وسلم په محبت باندے موقوف ده - او محبت پیدا کیږی د تابعداری د سُنتونه. ځکه چه د الله تعالیٰ ارشاد دے: فَاتَّبِعُوْنِیْ یُحْبِبْکُمُ اللّٰهُ: په دے وجه څومره چه څوک په خپلو عباداتونو، معاملو، اخلاقو او د ژوند د طریقو په ټولو اړخونو کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د سُنتو تابعداری کوی دومره به د الله تعالیٰ محبت دهٔ ته حاصلیږی. او دے به پخپله الله تعالیٰ ته نزدے او محبوب شی - او څومره چه محبت زیاتیګی دومره به الله تعالیٰ ته نزدیکت حاصلیږی۔

د لفظ د وسیلے د لغوی تشریح او د صحابوو او تابعینو د تفسیر نه چه کله دا معلومه شوه چه هر هغه شے کوم چه د الله تعالیٰ د رضا او نزدیکت ذریعه جوړیګی هغه د انسان د پاره الله تعالیٰ ته د نزدے کیدو وسیله ده په دے کښے څهٔ رنګې چه ایمان او نیک عمل داخل دی دغه شان د پیغمبرانو او صالحانو سره صُحبت او محبت پکښے هم داخل دی چه دغه هم د الله تعالیٰ د رضا د اسبابو نه دی. او په دے وجه د دوی وسیله جوړول او د الله تعالیٰ نه سوال کول دُرست شو. لکه چه حضرت عمرؓ د قحط په زمانه کښے حضرت عباسؓ لره وسیله جوړه کړه او د الله تعالیٰ نه ئې د باران دُعا اُوغوښته او الله تعالیٰ قبوله کړه۔

او په یو روایت کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلّم یو نابینا صحابي ته دا سې دَ دعا ښودنه کړې وه: اَللّٰهُمَّ اِنِّیۡ اَسۡئَلُکَ وَاَتَوَجَّهُ اِلَیۡکَ بِنَبِیِّکَ مُحَمَّدٍ نَبِیِّ الرَّحۡمَةِ:۔(منار)۔

په ذکر شوی آیت کښې ئې اوّل دَ تقوی خودنه اوکړه بیا په الله تعالیٰ باندِ دَ ایمان او نیک عمل په ذریعه دَ نزدیکت حاصلولو. په آخر کښې ارشاد فرمائی: وَجَاهِدُوا فِیۡ سَبِیۡلِهٖ: یعنی جهاد کوئ دَ الله په لاره کښې۔ اګر چه په نیک عمل کښې جهاد هم داخل وَه۔ لیکن په نیکو عملونو کښې دَ جهاد دَ اعلیٰ مقام خودلو دَ پاره ئې دَ دهٔ جُدا ذکر اوکړو. لکه چه په حدیث کښې دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلّم ارشاد دے: وَذِرۡوَةُ سِنَامِهِ الۡجِهَادُ: یعنی دَ اسلام اعلیٰ مقام جهاد دے۔ بل دلته جهاد په اهمیّت سره دَ ذکر کولو کښې دا حکمت هم دے۔ چه په تیرو شوو آیاتونو کښې دَ زمکے دَ فساد خورولو والے او ناجائز والے او دَ دے دَ دُنیا او آخرت دَ سزا ګانو بیان راغلے وَه۔ نو جهاد هم په ظاهری اعتبار سره دَ زمکے دَ فساد صورت معلومیګی۔ په دے وجه ممکنه وه چه څوک ناخبره دَ جهاد او فساد فرق اونه پیژنی۔ په دے وجه ئې دَ زمکے دَ فساد منع کولو نه پس دَ جهاد حکم په اهمیّت سره بیان کړو۔ دَ دواړو فرق ئې ښکاره کړو په لفظ دَ: فِیۡ سَبِیۡلِهٖ: سره ئې ورته اشاره اوفرمائیله۔ ځکه چه په ډاکه بغاوت وغیره کښې چه کوم قتل و قتال او مال لوټ کولے شی هغه محض دَ خپلو ذاتی غرضونو او خواهشونو او ذلیلو مقصدونو دَ پاره وی۔ او په جهاد کښې که نوبت دے ته اورسی هم نو دا محض دَ الله دَ کلمے اوچتولو او ظلم زور وړُکولو دَ پاره وی۔ چه دَ زمکے او دَ آسمان فرق دے۔

په دویم او دریم آیت کښې دَ کفر او شرک او دَ ګناه لوئے وبال په دا سے انداز کښې خودلے شوے دے چه که لږ غوَر پرِهم اوُشی نو دغه به دَ انسان په ژوند کښې یو ډیر لوئے انقلاب راولی، او دَ کفر، شرک او ګناه نه لو په پریخودو به ئې مجبوره کړی۔

هغه دا ده چه په عام طور سره انسان چه پکومو ګناهونو اخته وی۔

دغه دَ نیلو خواهشونو او ضرورتونو یا دَ اهل وعیال دَ خواهشونو دَ پاره وی۔ او دا تول دَ مال دولت جمع کولو دَ پاره وی او دَ مال دولت په جمع کولو کښې دَ حرامو او حلالو دَ تمیز کولو نه بغیر لګیدلے وی۔ په دے ایت کښې الله جل شانهٗ دَ دهٔ دَ دے بَدْ مَستئ دَ علاج دَ پاره او فرمائیل چه تۀ دَ دے ځو ورځو ژوند دَ پاره او دَ دے دَ راحت حاصلولو دَ پاره چه کوم څیزونه تا سو په زړګونو محنتونو او کوششونو سره جمع کوئ او بیا هم تول نه جمع کیږی دَ دے ناجائز خواهش انجام دا دے چه دَ قیامت عذاب هرکله مخے له راشی نو دغه وخت که دا خلق او غواړی چه په دنیا کښې حاصل کړے مال دولت او ساز و سامان تول په فدیه کښې ورکړی ځان دَ عذاب نه بچ کړی نو دا مُمکِنَه نَهٔ دهٔ۔ بلکه فرض کړه که دَ تولے دُنیا مال دولت او تول سامان دغ یو سړی ته ملاوُ شی او بیا په دے هم بَس نه وی دومره ورسره نور هم ملاوُ شی او دا تول دَ ځان دَ عذاب نه دَ خلاصولو دَ پاره فدیه کول او غواړی نو هیڅ شے به ئے قبول نه وی۔ او دے به دَ اخرت دَ عذاب نه خلاص نه شی۔

په دریم ایت کښې ئے دا هم ښکاره کړه چه دَ کفارو دا عذاب به دائمی وی چه دوی به دَ دے نه چرته هم نجات بیا نه مومی۔

په څلورم ایت کښې بیا دَ جرمونو دَ سزاګانو طرفته واپس اوشوه۔ او دَ غلا دَ شرعی سزا بیان ئے اوفرمایه۔ دَ شرعی سزاګانو دَ ے قسمونه چه مخکښې بیان شوی دی دَ غلا سزا په دے قسم حدود وکښې داخله ده۔ ځکه چه قرآن کریم دا سزا په خپله مقرر کړه۔ دَ حاکمانو رائے ته ئے پاتے نه کړه۔ او دَ الله دَ حق په طور ئے مقرر کړه۔ په دے وجه دے ته حد دَ غلا وائی په ایت کښې ارشاد دے:

:اَلسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوْٓا اَیْدِیَهُمَا جَزَآءًۢ بِمَا کَسَبَا نَکَالًا مِّنَ اللّٰهِ وَاللّٰهُ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ "یعنی دَ غلا کوُنکی سړی او غلا کوُنکے ښځے لاس پرے یکړئ دَ دوی دَ کار په بدله کښې او الله زبردست حکمت والا دے"

دلته دا خبره دَ غور قابل ده چه دَ قرآن په حکمونو کښې عام طور سره خطاب سړوته وی او ښځے هم په هغے کښې تبعًا شاملے وی۔ مونځ، روژه

حج، زکوٰة او په نورو احکامو کښې دَ قرآن اوسنت دغه اُصول دی' لیکن دَ غلا په سزا کښې او دَ زنا په سزا کښې ئې صرف دَ سړو په ذکر باندِ اکتفا او نه کړهٔ بلکه دواړه قسمو نه ئې جُدا جُدا کړهٔ او حکم ئې اوفرمایه -

دَ دے وجه دا ده چه معامله دَ حدودو دهٔ چه په معمولی شان شبُهَ باندِ ساقطیږی په دے وجه ئې دَ ښځو ذکو جدا او کړو او وضاحت ئې اوفرمایه -

دویمه خبره دلته دَ غور قابله دا ده چه دَ سَرقے دَ لفظ لغوی معنیٰ او شرعی تعریف څهٔ دے؟ په قاموس کښې دی چه یو سړے دَ بل چا مال دَ یو محفوظ ځائے نه بغیر دَ هغهٔ دَ اجازت نه واخلی دے ته سَرقه (یعنی غلا) وائی دا دَ دے شرعی تعریف دے- او دَ دے تعریف په بنا سره دَ سرقے دَ ثابتیدو دَ پاره څو څیزونه ضروری شو -

اَوّل دا چه دغه مال دَ چا فرد یا جماعت ذاتی ملکیّت وی ، دَ غلا کوُنکی نه په دے کښې ملکیّت وی نه دَ ملکیّت شبُهَ وی- او نه دا سے څیز وی چه په هغې کښې دَ عوامو حقونه برابر وی لکه دَ عامے فائدے ادارے او دَ دے څیزونه- دَ دے نه معلومه شوه چه که چا یو دا سے شے واغستو چه دَ دهٔ ملکیّت یا دَ ملکیّت شبه پکښې وی یا پکښې دَ عوامو حقوق برابر وی نو حدِ دَ سرقے به پدهٔ نه شی جاری کیدے- حاکم به پرے دَ خپل مناسب تعزیری سزا جاری کوی -

دویم شے دَ سرقے په تعریف دَ مال محفوظ کیدل دی یعنی په مکان کښې ئے جندره کول یا دَ څوکیدار په ذریعه ئې ساتل- نو کوم مال چه په محفوظ ځائے کښې نه وی او څوک ئې اوچت کړی نو په دهٔ هم دَ سرقے حد نه شی جاری کیدے او که دَ مال په محفوظ کیدو کښې شبُهَ هم راشی' نو هم به حد ساقط شی- دَ گناه او تعزیری سزا معامله جُدا ده -

دریم شرط بے اجازته اوچتول دی - نو دَ کوم مال دَ را اِغستلو یا استعمال کولو چه چاته اجازت ورکړے شوے وی که دغه بالکل یوسی نو هم دَ سرقے حد نه جاری کیږی- او که دَ اجازت شبُهَ قدرے پیدا شی نو هم به حد ساقط شی -

ځلورم شرط په پټه وړل دي. ځکه چه د بل مال په ډاګه لوټ کړے شي نو هغه سرقه نه ده بلکه ډاکه ده چه سزا ئے مخکښے بیان شوے ده. غرض دا دے چه په پټه نه وي نو حد د سرقے پرې نه شي جاري کیدے.

د دے ټولو شرطونو د تفصیل آوریدو نه به دا تاسو ته معلومه شوے وي چه زمونږ په عُرف کښے کوم شي ته غلا ویلے شي دا یو عام او وسیع مفهوم دے د دے په ټولو افرادو باندے د سرقے حد یعنې لاس پریکولو سزا شرعًا نه شي جاري کیدے. بلکه د غلا به صرف په هغه صورت باندې دا شرعي حَدّ جاري کیږي په کوم کښے چه دا ټول شرطونه موجود وي.

د دے سره به تاسو ته دا معلومه کړے وي چه په کومو صورتونو کښے د غلا شرعي حَدّ ساقطیږي، نو دا لازمه نه ده چه مجرم له دے ازادي پریخودے شي. بلکه د وخت حاکم به ده له د خپل صوابدید په مطابق تعزیري سزا ورکوي چه د جسماني کوړو په صورت کښے هم کیدے شي.

دغه شان دا دے هم نه گنړلے شي چه یکومو صورتونو کښے د یو شرط نه پیدا کید و په وجه سره د سرقے شرعي حد جاري نه شو نو کوم دے دغه شے به شرعًا جائز او حلال وي؛ ځکه چه بره خودلے شوے ده چه دلته د گناه او د اخرت د عذاب ذکر نیشته، د دُنیوي سزا او هغه هم د یو خاص قسم سزا ذکر دے هسے خو د چا مال بغیر د هغهٔ د زړهٔ د خوشحالۍ نه په هرشان سره چه یوړے شي نو حرام دے او د اخرت د عذاب واجبوُنکے دے. لکه چه د قرآن کریم په ایت لَا تَأْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ: کښے د دے وضاحت موجود دے.

دلته دا خبره هم د ذکر قابله ده چه په غلا کښے د قرآن کریم کوم الفاظ راغلي هم دغه د زنا په سزا کښے دي. لیکن د غلا په معامله کښے د سړي ذکر اوّل دے او د ښځے وروستو دے. او په زنا کښے د دے اُلټه د ښځے ذکر اوّل دے. د غلا په سزا کښے ارشاد دے: اَلسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ: او د زنا په سزا کښے فرمائي: اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ: د دے ترتیب د اُلټه کولو حکمتونه تفسیر لیکونکو صاحبانو ډیر لیکلي دي. په دے کښے دا یوه خبره ډیره په زړهٔ لگیدونکے ده چه د غلا جرم د ښځے په نسبت د سړي د پاره زیات سخت دے ځکه چه ده له الله تعالیٰ د کسبِ معاش

هغه قوّت ورکړے دے چه بنځے ته نه دے حاصل- نو چه دَ کسبِ معاش دَ دومره دروازو پرانستو سره بیا هم دے دَ غلا په ذلیل جرم کښے اخته کیږی نو دا دَ ده جرم زیاتوی- او دَ زنا په معامله کښے بنځے ته الله تعالیٰ دَ طبعی شرم او حیا سره داسے ماحول ورکوی چه دَ دے تهولو څیزونو په موجودګئ کښے دَ دے دا سے بے حیائی کول دَ دے دَ پاره زیات جرم دے- په دے وجه په غلا کښے دَ سړی ذکر اوّل دے او په زنا کښے دَ بنځے-

دَ ذکر شوی آیت په الفاظو کښے دَ غلا دَ شرعی سزا بیانولو نه پس دوه جُملے ارشاد فرمائی- یوه: جَزَاءً بِمَا كَسَبَا: یعنی دا سزا بدله ده دَ دوی دَ بدعملئ- دویمه جُمله فرمائی: نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ: په دے کښے دوه لفظونه دی :نَكَالًا: او :مِنَ اللّٰهِ: دَ لفظ دَ نکال معنی په عربی لغت کښے دَ داسے سزا ده چه دَ دے په لید ونورخلق هم عبرت واخلی- او دَ داسے جرم کولو نه منع شی په دے وجه دَ: نکال: ترجمه زمونږ دَ محاورے موافق: عبرتناک سزا: شوه په دے کښے اشاره ده چه دَ لاس پریکولو سخته سزا په یو خاص حکمت بانډے مبنی ده- چه په یو بانډے سزا جاری شی نو تهول به او یریګی- او دا قبیح جرم به بند شی- بل لفظ دَ :مِنَ اللّٰهِ: ئے زیات کړو یو اهم مضمون طرف ته ئے اشاره او فرمائیله هغه دا دے- چه دَ غلا دَ جرم دوه حیثیتونه دی یو دا چه ده دَ بل انسان مال بغیر دَ حق نه واغستو چه دائے په هغهٔ ظلم اوکړو، دویم دا چه ده دَ الله تعالیٰ دَ حکم خلاف ورزی اوکړهٔ- په اول حیثیت سره دا سزا دَ مظلوم حق دے او دَ دے په بنا سره که دے معافی اوکړی نو معاف به شی لکه دَ قصاص په تهولو مسئلو کښے چه داسے عمل کولے شی- په دویم حیثیت سره دا سزا دَ الله دَ حق په خلاف ورزئ کولو سره ده- نو په دے بنا سره چه دَ کوم سړی نه ئے غلا کړے ده که هغه ئے معاف هم کړی خو نه معاف کیږی ترڅو چه پخپله الله تعالیٰ ئے معاف نه کړی -کوم ته چه په اصطلاح دَ شرع کښے حَد یا حدود وئیلے شی- په لفظ دَ :مِنَ اللّٰهِ: سره ئے دَ دے دویم حیثیت تعین اوکړه دے طرف ته ئے اشاره او فرمائیله چه دا سزا حد دے قصاص نه دے یعنی دَ سرکاری جُرم په حیثیت سره دا سزا ورکړے شوے ده- په دے وجه

دَ چا چه ئې غلا کړې ده دَ هغهٔ په معاف کولو هم سزا نه معاف کیږی.
دَ آیت په آخر کښې ئې: وَاللّٰهُ عَزِیْزٌ حَکِیْمٌ: او فرمائیل دَ دې شبهې جواب ئې ورکړو چه نن صبا په عام طور سره دَ خلقو په ژبه ده چه دا سزا ډیره سخته ده او بعضې بې شرمه ناخبره خو دا دې نه هم باک نه کوی چه وائی "دا وحشیانه سزا ده". نعوذ بالله منه - اشاره ئې دې طرف ته او فرمائیل، چه دَ دې سخته سزا تجویز کول محض په دې وجه بانډې نه دی چه الله تعالیٰ قوی او زبردست دې بلکه په دې بنا بانډې هم دی چه دې حکیم دې - کوم شرعی سزاګانې لره چه نن صبا دَ یورپ عاقلان سخته او وحشیانه وائی دَ دوی حکمت او ضرورت او دَ فائدې وبحث به دَ دې آیاتونو دَ تفسیر نه پس په تفصیل سره راشی.

په دویم آیت کښې ئې ارشاد او فرمایه: فَمَنْ تَابَ مِنْ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ یَتُوْبُ عَلَیْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ: "یعنی کوم سړې چه دَ خپلې بد عملئ او غلا نه وا پس شی او دَ خپل عمل اصلاح او کړی نو الله تعالیٰ به دهٔ لره معاف کړی ځکه چه الله تعالیٰ ډیر بخښونکي والا او مهربان دې".

دَ ډاکې شرعی سزا دَ کومې چه بیان خو آیاتونه وړاندې راغلې دې - په دې کښې هم دَ معافئ ذکر دې - او دَ غلا دَ سزا نه پس هم دَ معافئ ذکر دې لیکن دواړه ځایه دَ معافئ په بیان کښې یو خاص فرق دې - او دَ دې فرق په بنا په دواړو سزاګانو کښې دَ معافئ مطلب دَ فقهاؤ په نزد مختلف دې - دَ ډاکې په سزا کښې خو الله تعالیٰ په طور دَ استثناء ذکر او فرمایه: اِلَّا الَّذِیْنَ تَابُوْا مِنْ قَبْلِ اَنْ تَقْدِرُوْا عَلَیْهِمْ: چه دَ دې حاصل دا دې چه دَ ډاکې کومه شرعی سزا په آیت کښې ذکر ده دَ هغې نه دا صورت مستثنٰی دې چه په ډاکوانو دَ حکومت قابو موندلو او ګرفتارولو نه اول چه توبه او باسی نو دا شرعی سزا به ورته معاف شی - او دَ غلا دَ سزا نه پس چه دَ کومې معافئ ذکر دې په دې کښې دَ دې دنیوی سزا نه استثناء نشته - بلکه دَ آخرت په اعتبار سره دَ دوی دَ توبې قبلید و بیان دې، چه دَ دې طرف ته په: فَاِنَّ اللّٰهَ یَتُوْبُ عَلَیْهِ: کښې اشاره موجوده ده چه دَ وخت حاکمان به دَ دې توبې په وجه شرعی سزا نه معاف کوی - بلکه الله تعـ

به د دوی جرم معاف کړی د آخرت د سزا نه به ئې خلاص کړی - په دے وجه باندې فقهاء صاحبان تقریبًا په دے باندې متفق دی چه ډاکو که گرفتار ریدو نه وړاندې توبه اوکړی نو د ډاکے شرعی سزا به په ده جاری نه وی - لیکن غل که د غلا کولو نه پس د گرفتارئی نه وړاندې یا وروستو توبه اوکړی نو د سرقے حد چه د دُنیا سزا ده هغه به معاف نه وی - او د گناه نه معافیدل او د آخرت د سزا نه خلاصیدل د دے نه منافی نه دی -

په دُروستو آیت کښے ئې ارشاد اوفرمایه: اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ یُعَذِّبُ مَنْ یَّشَآءُ وَ یَغْفِرُ لِمَنْ یَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ؕ" یعنی آیا تا ته معلومه نه ده چه د آسمانونو او زمکے حکومت او بادشاهت صرف د الله دے او د هغهٔ دا شان دے چه چا له غواړی عذاب ورکوی چا له چه غواړی بخی ئې - او الله تعالیٰ په هرڅهٔ قادر دے"

د دے آیت تړون او مناسبت د تیرو آیاتونو سره دا دے چه په تیرو آیاتونو کښے د ډاکے او غلا د شرعی حدونو چه لاس خپه یا صرف د لاس پریکولو سخت حکمونه دی. په ظاهری نظر کښے دا حکمونه د انسانی شرافت او د ده د اشرف المخلوقات کیدو نه منافی دی - د دے شُبهے د لرے کولو د پاره په دے آیت کښے الله جلّ شانه اول دا اوفرمائیل چه زهٔ د ټول جهان د پاره حقیقی مالك یم بیائے د خپل قادر مطلق کیدو ذکر اوفرمایه - او د دے په مینځ کښے ئې دا ارشاد اوفرمایه چه هغه صرف سزا یا عذاب نه ورکوی بلکه معاف کول هم کوی - او د دے معافئ او سزا دار مدار د ده په حکمت باندے دے، ځکه چه هغهٔ لکه څه رنګ چه مالكِ مطلق او قادر مطلق دے دغه شان حکیم مطلق هم دے - لکه څهٔ رنګ چه د هغهٔ د قدرت او سلطنت احاطه د یو انسان طاقت نه شی کولے - دغه شان د هغهٔ د حکمتونو پوره احاطه هم د انسان عقل او دماغ نه شی کولے - او په اصُولو سره غور او فکر کولو ته په قدر د کفایت څهٔ علم هم حاصلیږی چه په دے سره د دوی زړونه مطمئن کیږی -

د اسلامی سزاګانو په باره کښے د یورپ والو او د دوی د تهذیب

او تعلیم نه د متأثرو خلقو دا عام اعتراض دے چه دا سزا ګانے سختے دی او بعضے عاقبت ته فکر نه کوُنکی خودا خبره هم کوی چه دا سزاګانے وحشیانه او د انسانی شرافت نه خلاف دی۔

د دے متعلق خو اوّل دا خبره ښپلے ځنے ته کیدے کومه چه اوّل بیان شوے ده چه قرآن کریم صرف د څلورو جرمونو سزاګانے پخپله مقرر او معیّن کړے دی چه د شریعت په اصطلاح کښے ورته حد ویلے شی۔ د ډاکے سزا بنئ لاس او ګینړه خپه کټ کول۔ د غلا سزا بنئ لاس د مړوند نه کټ کول د زنا سزا په بعض صورتونو کښے سل کوړے لګول او په بعض کښے سنګسار کول او قتلول، د زنا د دروغو تهمت په چا باندِ د لګولو سزا اتیا کوړے پخپله شرعی حد د شرابو سکلو دے چه په اجماع د صحابو سره اتیا کوړے مقرر شوے دے۔ د دے پنځه وُو جرمونه سوا د نورو ټولو جرمونو سزا د وخت د حاکم په صوابدید باندِ ده۔ چه جرم او مجرم او ماحول ته نظر او کړی څومره او څنګه چه غواړی سزا ورکړی۔ په دے کښے دا هم کیدے شی چه د سزاګانو د حد ونو او تعین څه خاص نظام د عالمانو او اهل الرائے په مشوره سره مقرر کړی قاضی یا جج د هغې پابند کړی۔ لکه چه ننِ صبا عام تعزیری سزاګانے د اسمبلو په ذریعه متعیّن کولے شی۔ او قاضی یا جج د مقرر شو و حد ونو دننه سزا جاری کوی۔ البته په دے پنځه وُو جرمونو کښے چه سزاګانے ئے په قرآن یا په اجماع سره مقرر شوی دی او په دے کښے یو فرد یا جماعت یا اسمبلئ ته د اوّل بدّل کولو څهٔ اختیار نیشته۔ مګر په دے کښے هم که د جرم ثبوت د شریعت په مقرر کړے ضابطے د شهادت سره اونه شی، یا د جرم ثبوت خوملاؤ شی مګر په دے جرم باندِ چه په کومو شرطونو سره دا سزا جاری کولے شی هغه شرطونه مکمّل نه وی او نفسِ جرم د قاضی یا جج په نزد باندِ ثابت وی نو په دے صورت کښے هم شرعی حد نهٔ شی جاری کیدے بلکه تعزیری سزا به ورکولے شی۔ د دے سره دا شرعی ضابطه هم مقرر او منلے شوے ده چه د شُبہے فائده مجرم ته د سی۔

دَ جُرم په ثبوت یا دَ جرم په شرطونو کښې چه په څهٔ شی کښې شُبهٔ پریوځی، نو شرعی حد سا قطیږی- لیکن چه دَ نفس جُرم ثبوت اوشی نو تعزیری سزا به ورکولے شی-

دَ دے نه معلومه شوه چه په دے پنځهٔ وُجهونو کښې ډیر صورتونه داسے راوځی چه شرعی حدود په کښې نه شی نا فذ کیدے - بلکه تعزیری سزا به دَ حاکم په صواب دید سره ورکولے شی- تعزیری سزا ګانے چونکه اسلام نه دی متعین کړی بلکه دَ هرے زمانے او هر ماحول مطابق دَ عامو ملکونو دَ قوانینو په شان په دے کښې ادل بدل او کمے زیاتے کولے شی په دے وجه په دے باندِ هیڅ یو دَ هیڅ اعتراض ځائے نیشتے- اوس بحث صرف په پنځهٔ وُ سزاګانو او دَ دوی هم په خاصو صورتونو کښې پاتے شو- دَ مثال په طور غُلا واخلئ او اوګورئ چه په اسلامی شریعت کښې دَ لاس پریکولو سزا مطلق په هر یوه غلا نه عائد کیږی کومے ته چه په عام عرف کښې غلا وئیلے شی، بلکه هغه غلا چه دَ غل لاس په کښې پریکولے شی دَ هغې یو خاص تعریف دے چه تفصیل ئے بره تیر شوے دے -چه دَ چا مال دَ محفوظ ځائے نه چه دَ حفاظت سامان مات کړی په ناجائزه طریقه په پټه سره راوباسی او یوسی- دَ دے تعریف په بنا سره ډیر صورتونه چه په عرف کښې ورته غلا وئیلے شی دَ غُلا دَ حَد دَ تعریف نه باهر کیږی مثلاً دَ محفوظ مکان دَ شرط نه معلومه شوه چه دَ عامو پبلک ځایونو مثلاً جمات، عیدګاه، پارک، کلب، استیشن، ویټنګ روم، ریل، جهاز وغیره عامو ځایونو باندِ ایښودے شوے مال چه پټ کړی، یا دَ اونو نه میوے اوشوکوی پټے کړی یا دَ کبین غلا اوکړی نو په دهٔ حَد دَ سرقے نه جاری کیږی - بلکه دَ عامو ملکونو دَ قوانینو په شان تعزیری سزا به ورکولے شی دغه شان هغه سړے چه کور ته دَ راتلو اجازت ورلره ورکړے شوے وی خواه نوکر وی، که مزدور او مستری او که کار یا بل دوست او خپلوان وی، دے که دَ دے مکان نه څه شے یوسی نو اګر چه دا په عامه غلا کښې داخل او دَ تعزیری سزا مستحق دے لیکن دَ لاس پریکولو شرعی سزا په دهٔ نه شی جاری کیدے،

ځکه چې دے کورته په اجازت داخل شوے دے، د دهٔ په حق کښې حفاظت مکمل نه دے.
دغه شان که چا د چا جیب کټ کړو، یائے ورله د لاسو نو نه کالی یا پیسے او تختوٰلے یائے په دوکه د چا نه څهٔ واغستل یا په آمانتو بانډې مُنکر شو. دا ټول څیزونه حرام او نا جائز دی او په عامو غلا کانو کښې خامخا داخل دی، مګر د دے ټولو سزا تعزیری ده چې د حاکم په صواب دید بانډې موقوف ده. د شرعی غلا په تعریف کښې نه ده داخل. په دے وجه په دے لاس نه شي پریکولے.
دغه شان د کفن چور لاس هم نه شي پریکولے. ځکه چې اول خو دغه محفوظ ځائے نه دے، دویم کفن د مړی ملکیت نه دے. البته د دهٔ دا کار سخت حرام دے، په دهٔ به تعزیری سزا د حاکم د صوابدید مطابق جاری کولے شي. دغه شان که چا په یو مشترک مال کښې غلا اوکړه چې د دهٔ پکښې هم څه حصه ده، خواه د میراث مشترک مال وَه او که د تجارت شریک مال وه. نو په دے صورت کښې د اغستونکی هم څهٔ حصه په دے کښې شامله ده. د دے ملکیت د شُبُهِ په وجه سره شرعی حد ساقطیږی تعزیری سزا به ورکولے شي.
د ا ټول شرطونه د جُرم د تکمیل لاندے راځی چې سرسری نقشه ئے تا سو اولیده. او س یو بل شے د ثبوت د پاره مکمل کول نکے دے. د حدودو په نافذ کولو کښې اسلامی شریعت د شهادت ضابطه هم د عامو معاملو نه جدا او ډیره د احتیاط جوړه کړې ده. د زنا په سزا کښې د دوٰه وُو ګواهو په ځائے ئې څلورو ګواهانو شرط مقرر کړے دے او هغه هم چې داسے عینی ګواهی ورکړی چې هیڅ مُشتبه لفظ پکښې نه وی. د غلا وغیره په معامله کښې اګرچې دوه ګواهان کافی دی. مګر د دے دوه وُو د پاره ئے هم د شهادت د عامو شرطونو نه علاوه څهٔ نور شرطونه هم عائد کړی دی. مثلاً په نورو معاملو کښې د موقع د ضرورت په وخت کښې قاضی ته دا اختیار ورکړے شوے دے چې د یو فاسق سړی په باره کښې که قاضی ته دا اطمینان اوشی چې دا سړے اګرچې عملی فاسق دے خو دروغ نه وائی نو قاضی ئے ګواهی قبلولے شي. لیکن په حدودو کښې قاضی ته د دهٔ د ګواهئ قبلولو اختیار نیشته. په عامو معاملو کښې د یو سړی او دوه ښځو په ګواهئ سره فیصله کیدے شي. مګر په حدودو کښې د دوه وُو سړو ګواهی ضروری ده. په عامو

معاملو کښې اسلامي شریعت موده ټیریدو له څهٔ عذر نه درې مقرر کړې ده په معامله که هر څو مره موده تیره شي او وروستو بیا څوک ګواهي ورکړي نو قبلیدے شي. لیکن په حدودو کښې که فوري ګواهي اونه شي بلکې یوه میاشت یا زیات صبر اوکړي او بیا ګواهي اوکړي نو قبوله به نه وي ـ

دَ غلا دَ حد دَ نافذ کولو کوم شرطونه چه داوخت بیان شو دا تول دَ فقه حنفي دَ مستند کتاب "بدائع الصنائع" نه راغستي شوي دي ـ

دَ دے ټولو شرطونو حاصل دا دے چه شرعي حد صرف په هغه صورت کښې جاري کیدے شي هر کله چه دَ پاک شریعت دَ مقرر دے ضابطے مطابق جُرم هم مکمل وي ـ او ثبوت ئے هم مکمل وي ـ او مکمل هم دا سے چه یوه ذره ئے هم مشتبه پاتے نه شي ـ دَ دے نه معلومه شوه چه اسلامي شریعت کوم ځائے چه دَ دے جرمونو سزا ګانے دَ حکمت په مقتضاء باندې سخته مقرر کړې دی هلته ئے دَ شرعي حد ونو په نفاذ کښې هم انتهائي احتیاط کړے دے دَ حدودو دَ شهادت ضابطه ئے هم دَ عامو معاملو دَ شهادت دَ ضابطے نه مختلفه او ډیره په احتیاط باندې بنا کړے ده ـ په دے کښې که یوه ذره شان کمي را شي نو شرعي حد په تعزیري سزا کښې بدلیږي ـ دغه شان که دَ جرم مکمل کیدو په سلسله کښې څه کمي او موندے شي نو بیا هم شرعي حد ساقط شي تعزیري سزا پاتے شي ـ چه په دے وجه شرعي حد ونه چرته شاذ ونادر نافذ کیږي ـ په عامو حالاتو کښې دَ حد ودو جرمونه هم په تعزیري سزاګانو کښې بدلیګي ـ لیکن کله چه چرته جرم دَ ثبوت سره مکمل شي اګر چه یو په سلو کښې وَلے نه وي نو سزا ډیره سخته او عبرتناکه ورکولے شي چه دَ دے هیبت دَ خلقو په زړه او دماغو باندې مسلط شي ـ او دغے جرم ته په نزدے کیدو سره ئے بیا بدن لړزیګي ـ او دَ همیشه دَ پاره دَ جرمونو دَ بندیدو او دَ عام امن راتلو ذریعه جوړیګي ـ په خلاف دَ دے موجوده تعزیري سزاګانو او قوانینو چه پیشه وَر و مجرمانو په نظر کښې دا یو لوبه ده چه ډیره په خوشحالۍ سره ئے دوي کوي ـ په جیل خانه کښې ناست وي او دَ آئنده جرمونو کولو دَ پاره څهٔ مزیدار او ښائسته پروګرامونه جوړه وي ـ په کومو ملکونو کښې چه شرعي حدودته نافذ کولے شي ـ دَ هغوي دَ حالاتو

که چا ته دا غیسته شي نو حقیقت به معلوم شي چه هلته به نه چرته تا سو دَ چا لاسونه پرې کړي او وینئ او نه به په کلونو کښې چرته دَ سنګسارئ واقعه اوُ لیدے شي. لیکن دَ دے شرعي سزاګانو دا سے هیبت په زړونو ناست وی چه هلته دَ غلا، دَاکے او بے حیایئ نوم په نظر نه راځي. دَ سعودي عرب دَ حالاتو نه عام مسلمانان نیغ په نیغه خبر دی، ځکه چه دَ حج او دَ عمرے په سلسله کښې دَ هرے طبقے او هر ملک خلق هلته حاضری ورکوی. په ورځ کښې پنځه پیرے هر سړے دا وینی چه دکانونه پرَے ته پراته دی دَ لاکونو ساما نونه پکښې پراته دی. او مالک ئے بغیر دَ دُکان بندَولو نه دَ مانځه په وخت کښې حرم شریف ته ځان رسوئ او بنځهٔ په اطمینان سره مونځ ادا کوی او بیا راځي. دَ دهٔ چرته هم داشک نه راځي چه دَ دهٔ دَ دُکان نه به څهٔ شے ورک شوے وی. او بیا دا دَ یوے ورځے خبره هم نه ده عمرونه په دے کښې تیریږی. دَ دُنیا یو څیر مهذب ملک کښې دا سے او کړئ نو بیا او ګورئ چه په یوه ورځ کښې به په سوَونو غلاګانے او دَاکے او شي. دَ انساني تهذیب او انساني حقوقو دعوه لرونکی عجیبه دی چه په مجرمانو باندِ رحم کوی مګر په ټول انسانیت باندِ رحم نه کوی دَ چا ژوند چه دے مجرمانو په اوُر کښې کړے دے. حقیقت دا دے چه په یو مجرم باندِ ترس کول په ټول مخلوق ظلم کول دی. او دَ عام امن خرابولو دَ ټولو نه لوئے سبب دے. هم دا وجه ده چه ربُّ العٰلمین چه نیکو، بد و، متقیانو، اولیاؤ، کافرانو، فاجرانو ټولو لره رزق ورکوی، مارانو، لړمانو، منزرو، شرمخانو لره رزق ورکوی او دَ چا رحمت چه په ټولو باندے عام دے. هغهٔ چه کله شرعي حدونه په قرآن کښې نازل کړل نو دَ دے سره ئے دا هم او فرمائیله: وَلَا تَأْخُذْكُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ فِي دِيْنِ اللّٰهِ: "یعنی دَ الله تعالیٰ په حدود و جاری کولو کښې په دے مجرمانو چرته ترس مه کوئ." او بل طرف ته ئے قصاص دَ عالمِ انساني ژوند مقرر کړے دے: وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيٰوةٌ يَّاُولِي الْاَلْبَابِ: معلومیږی چه دَ اسلامي حدونو خلاف کُونکي دا دَ سره نه غواړی چه جُرمونه دِ بند شي. ګنې ترڅو پورے چه دَ رحمت او شفقت معامله ده هغه دَ اسلامي شریعت نه زیاته څوک خوړے شي چا چه په عینِ میدانِ جنګ کښې دَ ځپلو قاتلو دشمنانو حق پیژندلے دے.

او حکم ئې کړے دے چه ښځه مخې له واشي نو لاس بند کړئ، بچے مخې له راشي نو لاس بند کړئ بوډا مخې له راشي نو لاس بند کړئ، مذهبي عالم چه ستاسو خلاف په جنګ کښې شريک نه وي د چپل طرز په عبادت کښې مشغول وي نو دے مه قتلوئ۔

او د ټولو نه عجيبه خبره داده چه په دے اسلامي سزاګانو د اعتراض د پاره د هغې خلقو ژبې خوځيږي د کوم لاسونه چه تر اوسه پورې د هيرو شيما د لاکونو بې ګناه، بې قصوره انسانانو په وينو رنګين دي، د کوم په زړه کښې چه شايد چرته هم د جنګ او مقابلے تصور نه وي راغلے۔ په دوي کښې بچي ښځې بوډاګان ټول داخل دي۔ او د کوم چه د غضب او د هيرو شيما په حادثه سره هم تيږ شوے نه دے بلکه روزانه د خطرناک نوي بم جوړولو او تجربو کولو کښې ... مشغول دي، مونږ به د دے نه علاوه څه او وايو چه الله تعالیٰ دے د دوي د سترګو نه د خود غرضۍ پردے لرے کړي۔ او په دنيا کښې دے د امن قائمولو صحيح اسلامي طريقو طرف ته د دوي هدايت نصيب کړي۔

---

يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ

اے رسوله غم مه کوه د هغو چه په منډه غورزيږي

فِي الْكُفْرِ مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ

په کفر کښې هغه خلق چه وائي مونږ مسلمانان يو په خولو خپلو سره

وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛ

او زړونه ئې مسلمانان نه دي۔ او هغه چه يهوديان دي۔

سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ

جاسوسي کوي د دروغو ويلو د پاره۔ دوي جاسوسان دي د بل جماعت

لَمْ يَأْتُوكَ ۖ يُحَرِّفُونَ الْكَلِمَ مِنْ بَعْدِ مَوَاضِعِهِ ۚ

چه تا ته نه دي راغلي - بدلوي خبرے لره د خپل ځائے نه -

يَقُولُونَ إِنْ أُوتِيتُمْ هَٰذَا فَخُذُوهُ وَإِنْ لَمْ

وائي كه تاسو ته دا حكم ملاؤ شو نو قبول ئے كړئ او كه دا حكم

تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوا ۚ وَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ فِتْنَتَهُ فَلَنْ

ملاؤ نه شو نو ځان ترې ساتئ - او چا لره چه الله تعالىٰ گمراه كول اوغوښتل نو ته

تَمْلِكَ لَهُ مِنَ اللَّهِ شَيْئًا ۚ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ

د هغهٔ د پاره هيڅ نه شے كولے د الله په نزد - دا هغه خلق دي

لَمْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ ۚ لَهُمْ فِي

چه الله نه دي غوښتلي چه د دوي زړونه پاك كړي - دوي لره په

الدُّنْيَا خِزْيٌ ۖ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ

دُنيا كښې ذلت دے او دوي لره په اخرت كښې لوئے

عَظِيمٌ (٤١) سَمَّاعُونَ لِلْكَذِبِ أَكَّالُونَ لِلسُّحْتِ ۚ

عذاب دے - جاسوسي كوونكي د دروغو وئيلو د پاره او لوئے حرام خوړونكي

فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ

پس كه راشي دوي تا ته نو فيصله كوه په دوي كښې . يا مخ اړوه د

عَنْهُمْ ۖ وَإِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَضُرُّوكَ

د دوي نه - او كه ته مخ واړوے د دوي نه نو دوي ستا هيڅ نه شي

شَيْئًا ؕ وَاِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ؕ اِنَّ

ورانولے - او که ته فیصله کوے نو فیصله کوه په دوی کښے په انصاف سره - بے شکه

اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ﴿۴۲﴾ وَكَيْفَ يُحَكِّمُوْنَكَ وَ

الله دوست لری انصاف کوونکی - او دوی به تا څنګه منصف جوړ کړی او

عِنْدَهُمُ التَّوْرٰىةُ فِيْهَا حُكْمُ اللّٰهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ

د دوی سره خو تورات دے چه په هغے کښے حکم دے د الله بیا دوی واپس کیږی

مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ ؕ وَمَآ اُولٰٓئِكَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۴۳﴾ ع ۹ ۱۰

پس د دے نه - او دوی هرګز منونکی نه دی -

## د اٰیاتونو تړون

د سورت مائده د دریمے رکوع نه د اهل کتابو ذکر راروان وه - په مینځ کښے لږ شان او بعض مضامین په خاصو خاصو مناسبتونو سره راغلی وو - او س مخکښے بیا د اهل کتابو ذکر د لرے پورے تلے دے - په اهل کتابو کښے د یهودو او نصاراؤ دوه فرقے خو وے - یوه دریمه فرقه پکښے بله شامله شوے وه چه په حقیقت کښے یهودیان وو لیکن په منافقانه طور سره مسلمانان شوی وو - د مسلمانانو په وړاندے به یے خپل اسلام ښکاره کاوه - او چه پخپلو منځ کښے یا نو یهودیانو کښے به کیناستل نو په اسلام او مسلمانانو پورے به یے مسخرے کولے دا ذکر شوی درے آیاتونه د دے درے واړو فرقو د دا سے کارونو او حالاتو متعلق دی چه د دوی نه ظاهریږی چه دا خلق د الله تعالیٰ د حکمونو او هدایتونو په مقابله کښے خپل خواهشونه او خپلے رائے وړاندے ساتی - او په حکمونو او هدایتونو کښے تاویلونه کوی د خپلو خواهشونو سره یے د مطابق کولو په فکر کښے دی - په دے ذکر شوو آیاتونو کښے د دا سے خلقو په دنیا او اخرت کښے د رسوائی او بد انجام بیان دے - او د دے په درمیان کښے

دَ مسلمانانو دَ پاره یو څو اُصولي هدایتونه او دَ شرعي حکمونو بیان دے۔

## شانِ نزُول

دَ ذکر شوو آیاتونو دَ نزول سبب څو واقعات دي کوم چه دَ نبي کريم صلے الله علیه وسلم په مبارک وخت کښے دَ مدینے په خوا وُشا اُوسیدونکو یهودو قبائلو کښے راپیښے شوے وے۔ یوه واقعه دَ قتل او قصاص ده او بله واقعه دَ زنا او دَ هغے دَ سزا ده۔

دا خبره خو دَ هیڅ تاریخ پیژندونکي نه پټه نه ده چه دَ اسلام نه اوّل هرځائے په هره زمکه او هره طبقه کښے دَ ظلم او زیاتي حکومت وه۔ قوي به کمزوري لره عزت مند به بے عزته لره غلام جوړه وَ لو۔ دَ زورآورو او عزت مندو دَ پاره قانون یو شان وه او دَ کمزوري او بے عزته دَ پاره قانون بل شان۔ لکه نن چه هم خینځائے ته مهذب او متمدن وَیُونکو چیرو ملکونو کښے دَ تورو او سپینو قانون جُدا جُدا دے۔ په انسانیت احسان کونکے رسولِ عربي صلے الله علیه وسلم چه راغے دا فرقونه ئے ورک کړه۔ او دَ بني آدمو دَ حقونو دَ برابري اعلان ئے او کړو۔ او انسان ته ئے دَ انسانیت او سړیتوب سبق ورکړو۔ دَ رسولِ کریم صلے الله علیه وسلم مدینے منورے ته دَ تشریف راوړونه وړاندے دَ مدینے په اطرافو کښے دَ یهودو دوه قبیلے بنو قریظه او بنو نضیر آباد وے په دوي کښے بنو نضیر دَ قوت او شوکت او دَ عزت او دولت په لحاظ دَ بنو قریظه نه زیات وُو۔ دے خلقو به په مخه په بنو قریظه باندِ ظلم کولو او دوي به چار و چار دغه زغملو۔ تر دے چه بنو نضیر و بنو قریظه په دے ذلیله معاهده مجبوره کړل چه که دَ بنو نضیر و څوک سړے دَ بنو قریظه وُ چا سړي لره قتل کړي نو دَ ده قصاص یعني دَ جان په بدلے جان اَغستلو حق به دوي ته نه وي بلکه صرف اتیا وَسَق کجورے به ده ته دَ خون بها په طور ادا کولے شي (وَسَق دَ عربي وزن یو پیمانه ده چه زمونږ دَ وزن په اعتبار سره تقریبًا پنځه مَنه لس سیره ده) او که معامله دَ دے نه په عکس وي چه دَ بنو قریظه و سړے دَ بنو نضیر و سړي لره قتل کړي نو قانون به دا وي چه دغه قاتل به قتلولے هم شي او خون بها به ترے هم اغستے شي او هغه به هم دَ بنو نضیر د دَ خون بها نه دوچنده یعني یو سل شلویښت وَسَق کجورے، او صرف دا هم نه

بلکه د دې سره دا هم چه که د دوینه به ئې څوک قتل کړے وه نو د بنو قریظه نه به سړے قتلولے شو او که سړے به ئې قتل کړے وه نو د بنو قریظه نه به ئې دوه سړي قتلول، او که د بنو نضیر نه به ئې غلام قتل کړے وه نو په بدله کښې به ئې د بنو قریظه ؤ نه آزاد قتل کولے شو - او که د بنو نضیر و د سړي به ئې پولاس پرے کړے وه نو د بنو قریظه ؤ د سړي به دواړه لاسونه پرېکیدل - که یو غوږ به ؤو نو دوه غوږ بړونه به ئې ترې پرېکول - دا قانون وه چه د اسلام نه اوّل په دے دواړو قبیلو کښې رائج وه - او بنو قریظه د خپلے مجبورئ په وجه د دے په منلو مجبوره ؤو -

هرکله چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم هجرت اوکړو مدینے منورے ته ئے تشریف راوړو - او مدینه یو دارالاسلام جوړ شو - نو دا دواړه قبیلے لا تر اوسه نه په اسلام کښې داخلے شوے وے، او نه د څه معاهدے په بنا سره د اسلامی حکمونو پابندے وے لیکن د اسلامی قوانینو عدل کول او عام آسانئ ئې د لرے نه لیدلے -

په دے وخت کښې دا واقعه راپیښه شوه چه د بنو قریظه ؤ یو سړي د بنو نضیر و یو سړی له مړ کړو - نو بنو نضیر و د ذکر شوے معاهدے مطابق د بنو قریظه ؤ نه د دوچند دیّت یعنی خون بها مطالبه اوکړه - بنو قریظه اګرچه نه په اسلام کښې داخل ؤو او نه ئې د نبی کریم صلے الله علیه وسلم سره دغه وخت څه معاهده وه - لیکن دا خلق یهودیان ؤو، په دوی کښې ډیر تعلیمیافته خلق هم ؤو - چه د تورات د پیشینګویانو مطابق په دے پوهه ؤو چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم نبی آخرزمان دے چه د دوی د راتلو خوشخبری تورات کړے ده - لیکن د مذهبی تعصب یا د دُنیا د لالچ په وجه سره ئې ایمان نه ؤو راوړے - او دا ئې هم لیدل چه د دوی مذهب د انسانی برابرئ او عدل او انصاف علمبردار دے - په دے وجه د بنو نضیر د ظلم نه د خلاصئ کولو د پاره دوی ته یو سهارا ملاؤ شوه - او دوی د دوچند دیّت ورکولو نه انکار اوکړه دائے اُووے، چه مونږ او تاسو د یو خاندان نه یُو د یو وطن او سیدُونکی یُو او زمونږ د دواړو مذهب یَو

یعنې یهودیت دے - دا بے انصافه معامله چه تر ننه پورے ستا سو د زورآور او زمونږ د کمزورئ په سبب کیده او س مونږ دا نه شو منلے -
په دے جواب بنو نضیر په جوش کښے راغله او نږدے وه چه جنګ جوړ شی لیکن بیا د مشرانو په مشوره سره دا مقرر شوه چه د دے معاملے فیصله به نبی کریم صلی الله علیه وسلم کوی - د بنو قریظه ځو خود اعین مراد وه - ځکه چه دوی پوهیدل چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د بنو نضیر و ظلم به ځائے پاتے نه کړی - بنو نضیر هم د خبرو اترو او صلح په بنا سره دے ته مجبور شو لیکن دا سازش ئے او کړو چه دوئ تر د مقدمے وړو نه اول ئے څه دا سے خلق وړاندې او لیږل چه په اصل کښے د دوی د مذهب یهودیان وو لیکن په منافقانه طور سره ئے د اسلام اظهار کړے وو نبی کریم صلی الله علیه وسلم لره به راتلل - او مطلب د دوی دا وو چه دا خلق به څه جوړ سره مقدمه او د دے د فیصلے نه اول به د دے معامله کښے د نبی کریم صلی الله علیه وسلم خیال او نظر به معلومه کړی او دا تاکید ئے د دے خلقو ته او کړو چه که نبی کریم صلی الله علیه وسلم زمونږ د مطالبے موافق فیصله او فرمائیله نو قبول لرئے کړئ او که خلاف حکم ئے او کړو نو د منلو وعده ورسره مه کوئ -
د نزول د سبب دا واقعه په تفصیل سره بغوی نقل کړے ده او په مسند احمد او ابو داؤد کښے د حضرت عبد الله ابن عباس نه د دے نجوړ نقل دے - (مظهری)
دغه شان یو بله واقعه د زنا ده چه تفصیل ئے بغوی دا سے نقل کړے دے چه د خیبر په یهودیا نو کښے دا واقعه راپیښه شوه - او د تورات د مقرر کړے سزا موافق دے دواړو لره سنګسار کول لازم وو - مګر دا دواړه د یو لوئے خاندان د وئ یهودیا نو د خپل نجوانی عادت به موافق دا او غوښته چه د دوی سره به سزا کښے نرمی او شی او دوی ته دا معلومه وه چه په اسلامی مذهب کښے ډیرے اسانئ ورکړے شوے دی - په دے وجه دوی نجینل نږدے دا او ګنړله چه په اسلام کښے به په

دغه سزا کیدے هم اساني وي. د خیبر خلقو د خپلې دورولئ خلقو بني قریظه ته پیغام اولیږه چه د دے معاملے فیصله په محمد (صلے الله علیه وسلم) اوکړه او دوا ړه مجرمان ئے هم ورسره اولیږل. د دوي منشاء هم دا وه چه کم دوي څه اسانه سزا جاري کړه نو او دے منلے شي ورنه انکار دِ اوکړی. بنو قریظه خو اوّل څه کړ وکښان شو چه معلومه نه ده دوي څنګه فیصله کوي او هلته د تلو نه پس به بیا مونږ لره مشکل وي. مګر د څه ساعت خبرو کولو نه پس دا فیصله اوشوه چه د دوي یو څو سرداران دے د نبي کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے دا مجرمان بوځي او په دوي دے د دے مجرمانو فیصله اوکړي.

نو په دے بنا سره کعب بن اشرف وغیره یو وفد دوي لره د نبي کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر کړل او سوال ئے اوکړو، چه واده شوے سړے او ښځه که بدکاري اوکړي نو سزا ئے څه ده؟ حضورؐ اوفرمائیل چه ولے تاسو به زما فیصله اومنئ؟ دوي اقرار اوکړو دغه وخت جبرئیل امین د الله تعالیٰ دا حکم نازل کړو چه د دوي سزا سنګسار کول او قتل کول دي. دے خلقو چه دا فیصله واوریده نو حیران شو او د منلو نه ئے انکار اوکړو.

جبرئیل علیه السلام نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته مشوره ورکړه چه تاسو دے خلقو ته اووایئ چه زما د دے فیصلے منلو یا نه منلو د پاره ابن صوریا حکم مقرر کړئ. او د ابن صوریا حالات او صفات ئے نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته اوخودل. حضورؐ دے راغلی وفد ته اُووے چه آیا تاسو هغه ځوان پیژنئ چه سپین رنګے مګر په یوه سترګه معذور دے، په فدک کښے اوسي او ابن صوریا ورته وئیلے شي تهولو اقرار اوکړو حضورؐ تپوس اوکړو چه تاسو دغه سړے څنګه ګنړئ؟ هغوي اووے چه د یهودو په عالمانو کښے په ټول د ځمکے د ده نه لوئ بل هیڅوک عالم نیشته. نو حضورؐ اوفرمائیل چه دے رااوغواړئ.

نو هغه راغے حضورؐ ده لره قسم ورکړو تپوس ئے ترې اُو کړو.

چه په دے صورت کښے د تورات څهٔ حکم دے؟ - دهٔ اووے چه قسم دے په هغه ذات د چا قسم چه تا مالوه راکړو، که تا قسم نه وے راکړے او ځما سره دا یره نه وے چه د غلطے خبرے کولو په صورت کښے به تورات مالره اوسیزی، نو ما به دا حقیقت نه وهٔ ښکاره کړے۔ حقیقت دا دے چه د اسلامی حکم په شان په تورات کښے هم دا حکم دے چه دا دواړه دے سنګسار او قتل کړے شی۔

نبی کریم صلے الله علیه وسلم اوفرمائیل چه بیا په تاسو څهٔ آفت راغلے دے چه تاسو د تورات د حکم خلاف ورزی کوئ؟ ابن صوریا اووے چه اصل خبره دا ده چه د زنا شرعی سزا خو زمونږ په مذهب کښے دا ده۔ لیکن زمونږ یو شهزاده په دے جرم کښے ګرفتار شو، مونږ د هغهٔ رعایت اوکړو پاتے مو کړو، سنګسار مو نه کړو۔ بیا دا جرم د یو معمولی سړی نه اوشو نو ځه مه دا نو دے سنګساره ولو نو د دهٔ د ډلے خلقو احتجاج اوکړو چه که شرعی سزا دهٔ له ورکوئ نو اول شهزاده له ورکړئ ورنه مونږ به دهٔ د دے سزا جاری کولو ته تیار نه یُو۔ دا خبره زیاته شوه، نو قول یوځائے شو صلح یے اوکړه چه د هر یو د پاره ښکه سزا دے مقرر کړے شی او د تورات حکم دے پاتے کړے شی، نو مونږ د څهٔ لږ و هلو ټکولو او مخ تور ولو د جلوس ویستلو سزا تجویز کړه۔ او اوس دا په تولو کښے رواج شوه۔

## لنډ تفسیر

اے رسول (صلے الله علیه وسلم) کوم خلق چه (په خبرو د) کفر کښے په منډه ور پریوځی (یعنی ښهٔ په ازادئ په مینه سره دغه خبرے کوی) تاسو لره دے دغه غمژن نه کړی (یعنی تاسو د دوی په دغے کفر یا تو غم او افسوس مه کوئ) خواه دغه د هغو خلقو نه وی چه پخپلو خولو سره خو (دروغ) وائی چه مونږ ایمان راوړے او د دوی زړهٔ یقین (یعنی ایمان) نه راوړی (مراد تری منافقان دی چه په یوه واقعه کښے د نبی کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضر شوی وُو) او خواه که دغه د هغه خلقو نه وی کوم چه یهودیان دی (لکه په بله واقعه کښے چه دا خلق حاضر شوی وُو) دا (دواړه قسمه) خلق (د محمکښے نه د دین په باره کښے د خپلو

تحریف کونکو عالمانو نه ، دَ غلطو خبرو اورېدو عادي دي (او دَ دغې غلطو خبرو دَ
تائید په لټو لوګېنې دلته راغلل) ستا سو خبرې دَ بل قوم دَ پاره غوږ نیسي کوم چې دَ آورې
دَ کوم قوم چه دا حالت دے چه (یهودو) دغه ستا خواله (دَ ډېر تکبر او دشمنۍ نه
پچپله) نه راځي (بلکه نور ئے را او لیږل او دغه نور دي هم دَ حق دَ طلب کولو دَ
پاره نه دي را لیږلي بلکه شاید چه دَ خپلو تحریف کړو حکمونو موافق څه خبره
ورته ملاؤ شي ځکه چه دَ مخکښې نه) کلام (دَ خدائے) پس دَ هغې نه چه دغه (کلام)
پخپله (صحیح) موقع باندې (قائم) وي (لفظاً یا معنًا یا دواړه قسمه) بدلوي
ئے (چنانچه دَ دے عادت موافق خون بها او دَ رجم حکم ئے هم دَ خپل جوړ شوي
رسم په شان بدل کړو - بیا په دے احتمال سره چه شاید په شریعتِ محمدي ﷺ
کښې دے رسم ته سهارا ملاؤ شي دلته ئے خپل جاسوسان را او لیږل - دریمه
صفت دا دے چه دَ خپل تحریف شوي رسم موافق دَ خبرے دَ تلاش پورے وے
بلکه دَ دے نه سوا دا دہ چه دغې تلونکو ته) وائي چه که تا سو ته (هلته په تلو
دا حکم (تحریف شوے) ملاؤ شو نو دغه قبلو ئے (یعني دَ دے موافق عمل درا مد
کوئ او اقرار او کړئ) او که تاسو ته دا حکم (تحریف شوے) ملاؤ نه شي نو (دَ
قبلولو نه ئے) احتیاط کوئ (ریښتیا دا دے لیکونکی قوم دَ کوم چه دا جاسوسان
راغلي دي څو خرابۍ شوے ، اول تکبر او عداوت چه دَ دے په سبب پخپله
حاضر نه شو ، دویم دَ حق نه طلب کول بلکه حق بدلوي او دَ تائید فکرے کوي
دریم نور خلق هم دَ حق دَ قبلولو نه منع کول - تر دے ځائے پورے دَ راتلونکو
او دَ راليږونکو جدا جدا بد والے بیان شو ، وړاندې دَ دے ټولو بد والے
دے) او (اصل خبره دا ده چه) دَ چا چه خراب او ګمراه کیدل خدائے ته منظور
وي (ځکه چه دا پیدائیښتي منظوري دَ دے ګمراه دَ ګمراهۍ دَ قصد کولو نه پس وي)
نو دَ دهٔ دَ پاره دَ الله سره (دَ عام مخاطبه) ستا هیڅ زور نه شي چلیدے (چه
دا ګمراهي دَ پیدا کیدو نه منع کړے شې دا خو عامه قاعده شوه او س په دے
پوهه شئ چه) دا خلق دا سے دي چه خدائے تعالی ته دَ دوي دَ زړونو (دَ کفر یا تونه)
پاکول منظور نه شو (ځکه چه دوي قصد نه کوي په دے وجه الله تعالی پیدائیښتي
پاکوالے نه پیدا کوي بلکه دَ دوي دَ ګمراهۍ دَ قصد په وجه سره پیدائیښتي دَ دوي

خرابيدل منظور دى، پس دَ ذکر شوى قاعدے مطابق څوک دهٔ ته هدايت نه شي کولے۔ مطلب دا دے چه کله دے پخپله دَ خرابيدو قصد لرى او دَ قصد نه پس دَ دے کار پيدا کول دَ الله تعالىٰ عادت دے او دَ الله تعالىٰ پيدا کول دَ يو شي څوک نه شي منع کولے، پس دَ دوى نه به دَ ښهٔ کيدو څه اُميد اُوشي؟ په دے سره نبي کريم صلے الله عليه وسلم ته زياته تسلّي کيدے شي، چه دَ دے نه کلام شروع شوے هم وهٔ۔ پس شروع او اخر کالام دَ تسلّي مضمون شو، وړاندے دَ دوى دَ عملونو فائده فرمائي چه) دے (قتولو) خلقو لره په دُنيا کښے رسوائي ده او په اخرت کښے دے (قتولو) لره لويه سزا ده۔ (يعنى دوزخ، نو دَ منافقانو دا رسوائي شوه چه مسلمانانو ته دَ دوى نفاق معلوم شو او تولو ورته په ذلّت سره کتل، او دَ يهودو قتل او قيد او دَجلا وطنئ ذکر په روايتونو کښے مشهور دے، او دَ اخرت عذاب خو ښکاره دے) دا خلق (دَ دين په باره کښے) دَ غلطو خبرو دَ اُوريدو عادى دى (لکه چه مخکښے دا علم دَ لوئے حرام (مال) خوړونکي دى (دا دے حرص دوى لره په حکمونو کښے غلط بيانو ته دَ کومو په وجه چه دوى ته نذرانے وغيره ملا ويکي خوګو کړى دى، هر کله چه دَ دے خلقو دا حالت دے) نو که دا خلق (خپله څهٔ مقدمه) تا ته (دَ فيصلے دَ پاره) راشي نو (ستا اختيار دے) خواه تا سو (په معامله دَ) دوى کښے فيصله کوئے يائے وروستو کوئے او که تاسو (دا رائے مقرر کړئ چه تاسو دوى لره وروستو کړئ نو (دا يره مه کوئ چه شايد خفه به شي دشمني به ښکاره کړى ځکه چه) دَ دوى مجال نيشته چه تاسو ته يوه ذره هم ضررا ورسوى (ځکه چه الله پاک ستاسو نګهبان دے) او که (فيصله کولو باندے ستاسو رائے مقرر شي او) تاسو فيصله کوئ نو په دوى کښے په عدل (يعنى دَ اسلامي قانون په) موافق فيصله کوئ، بے شکه حق تعالىٰ دَ عدل کونکو سره محبّت کوى (او اوس دغه عدل په اسلامي قانون کښے دے پس دغه خلق به ئے خوښ وى چه دَ دے قانون موافق فيصله کوى) او (دَ تعجب خبره ده چه) دوى آ (په ديني معامله کښے) په تاسو څنګه فيصله او کړى حال دا دے چه دَ دوى سره تورات (موجود) دے چه په هغے کښے دَ الله حکم (ليکلے) دے (چه دَ هغے دَ منلو دوى دعوه کوى او ل خو دا خبره حيره لرے ده) بيا (دا تعجب په دے سره نور پوخ شو چه) دَ دے (فيصلے راوړو) نه پس (هر کله چه ستا فيصله آورى نو دَ دے فيصلے نه هم) واپس

کیږي (یعني اول خو په دے حالت کښے د فیصلے راوړلو ونه تعجّب کیدو، لیکن په دے احتمال سره رفع کیده چه شاید ستاسو په حقه باندے کیدل په دوی ښکاره شوی وی په دے وجه راغلی وی- لیکن چه دغه فیصله ئے اونه منله نو د دغه تعجّب رحیرانه بیا تازه شوه چه اوس دغه احتمال هم پاتے نه شو، بیا به څهٔ خبره وی چه د هغې په وجه ئے دا فیصله راوړې وی) او (په دے سره به هر عاقل پوهه شوی وی چه) دا خلق هرګز اعتقاد والا نه دی (دلته په اعتقاد سره نه دی راغلی د څیل مطلب د پاره راغلی وو، او هر کله چه نهٔ منل د نهٔ عقیدے دلیل دے نو د دے نه دا هم معلومه شوه چه لکه څنګه د محمد صلی الله علیه وسلم سره د دوی عقیده نیشته دغه شان د څپل کتاب سره هم د دوی پوره اعتقاد نیشته ورنه دغه به ئے ولے پاتے کولو او راتلل به- غرض په دوا ړه طرف سره لاړل، چه د چا نه ئے انکار دے د هغهٔ سره ئے هم عقیده نیشته او د چا سره چه ئے د عقیدے دعوه ده د هغهٔ سره ئے هم نیشته-

## مَعْلُومَاتْ اَوْمَسَائِلِ

دا درے ایاتونه او د دے نه پس ایاتونه د کوموواقعاتو د اسبابو تحت چه نازل شوی دی د هغے تفصیلی بیان مخکښے راغلے دے چه د هغې نچوړ دادے چه د یهودیانو دا پخوانئ خوئ وو، چه کله د اقرباء پروری لاندے او کله د مرتبے او د مال په حرص کښے د خلقو د خواهش مطابق فتوے جوړولے او ورکولے- خاصکر د سزاګانو په معامله کښے دا عام رواج جوړ شوے وو چه کله به د یو لوئے سړی نه جرم اوشو نو د تورات سخته سزا به ئے په معمولی سزا کښے بدلوله- د دوی دا حال په ذکر شوی ایات کښے په دے الفاظو سره بیان شوے دے: يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ:

هر کله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم مدینے منورے ته تشریف یوړو او د اسلامی شریعت عجیبه او نا آشنا نظام د دوی مخے ته راغے چه دیرے اسانئ او سهولتونه په کښے هم وو او د جرمونو د بندولو د پاره پکښے د سزاګانو یو معقول انتظام هم وو- دغه وخت هغه خلقو ته کوم چه د تورات

سختو سزاګانو لره برئ بڼ لوګي اسانو ئ لي ته ئ دوی لره دا موقع هم په لاس راغله چه په دا سے معاملو کښے نبی کریم صلے الله علیه وسلم لره حَکَمْ جوړ کړی، چه د دوی د شریعت د نرمواو اسانو احکامو نه فائده هم واخلي او په تورات کښے د ادل بدل کولو ځیهان هم جوړ نه شي. مګر په دے کښے به ئے هم داشارت کولو چه د با قاعده حکم جوړ ولو نه وړاندے په څهٔ ذریعه سره د خپلے معاملے حکم په طور د فتوے معلوم کړی. بیا د دوی دا حکم که د خپلو خواهشاتو موافق بیا مومی نو حَکَمْ ئے جوړ وی او فیصله ب کوی او که دا سے نه وی نو پاتے کوی ئے. د دے سلسلے کوم واقعات چه ذکر شوی دی په دے کښے چونکه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته اذار رسیدلے ؤه په دے وجه د ایت په شروع کښے ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته تسلّی ورکړه چه په دے تاسو مه غم جن کیږئ مه. د انجام په لحاظ سره داستا سو د پاره خیر دے.

بیا ئے دا اطلاع ورکړه چه دا خلق په اخلاص سره تاسو لره حکم نه جوړ وی. بلکه د دوی په نیتونو کښے فساد دے. بیا ئے په وړیسے ایت کښے دوی لره اختیار ورکړ وچه که تاسو غواړئ نو د دوی د معاملے فیصله کوئ یائے واپس کوئ ستاسو اختیار دے. او دائے هم اطلاع ورکړے ده چه که تاسو ئے واپس کول غواړئ نو دوی تاسو ته هیڅ نقصان رسولے نه شي. د ایت : فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ الاية : دامضمون دے. او د ئ نه په وړیسے ایت کښے ارشاد دے چه که تاسو فیصله کول خوښوئے نو په دے کښے تاسو ته دا هدایت ورکړے شوے دے چه فیصله د عدل او انصاف په بنیاد کول پکار دی چه مطلب ئے دادۀ چه فیصله د خپل شریعت مطابق کوئ، ځکه چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د راتلو نه پس ټول وړاندینی شریعتونه او د دوی قانونونه منسوخ شوی دی. پیغمبر د هغو نه کوم لره چه قرآن کریم او شریعت مصطفوی باقي پاتے کړی دی. په دے وجه په وړیسے ایت کښے ئے د الله د قانون خلاف په بل قانون یا رسم ورواج باندے فیصله کولو ته ظلم او فسق او کفر ویلے دے.

**په اسلامي حکومت کښې دَ غیر مُسلمو دَ مقدمو فیصلې**

دلته دا خبره دَ یادَ ولو قابله ده چه د الیهودیانو کومو چه خپلې مقدمې دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم عدالت ته او لیږلې دَ دوی نه په نبي کریم صلی الله علیه وسلم او دَ دوی په شریعت ایمان وُه اونه دا چه دوی دَ مسلمانانو دَ حکومت لاندې ذمیان وُو. البته دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره دَ دوی دَ جنګ نه کولو معاهده شوې وَه۔ دغه وجه ده چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته اختیار ورکړے شو چه که غواړئ نو واپس ئې کړئ او که غواړئ نو فیصله ئې دَ خپل شریعت مطابق اوکړئ۔ ځکه چه دَ دې خلقو څۀ ذمواری په اسلامي حکومت بانډې نیشته۔ او که دوی ذمیان وې او اسلامي حکومت طرف ته ئې رجوع کړې وې نو په مسلمان حاکم به دَ دوی فیصله کول فرض وُو۔ واپس کول ئې جائز نه وُو۔ ځکه چه دَ دوی دَ حقوقو حفاظت کول او دوی لره دَ ظلم نه بچ کول دَ اسلامي حکومت ذمواري ده۔ لکه دَ مسلمانانو دَ حقوقو او دَ دوی نه دَ ظلم لرې کول دَ اسلامي حکومت فرض دي۔ په دې وجه په راتلونکي یو ایت کښې دا هم ارشاد دے: ﴿وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ﴾: "یعني که دا خلق خپله معامله تاته راوړي نو تاسو دَ دوی فیصله دَ خپل شریعت مطابق کوئ"۔

په دې ایت کښې دَ اختیار ورکولو په ځائې دَ یوې متعیّنې فیصلې حکم کولو ارشاد دے۔ امام ابوبکر جصّاص په احکام القرآن کښې دَ دې دواړو تطبیق داسې کړے دے چه اوّلنی ایت پکوم کښې چه اختیار ورکړے شوے دے هغه دَ هغو غیر مسلمو متعلق دے چه زمونږ دَ حکومت اوسیدُونکي یا ذمیان نه دي بلکه پخپل ځائې کښې اُوسي دَ دوی سره څۀ معاهده شوې وي لکه بنو قریظه او بنو نضیر چه وُو۔ چه دَ اسلامي حکومت دَ دینه سوا دَ دوی سره نور څه تعلق نه وُه چه دَ یو معاهدې په ذریعه دوی دَ جنګ نه کولو پابند شوي وُو۔

او دویم ایت دَ هغې غیر مسلمو متعلق دے چه دَ مسلمانانو ذمیان دَ اسلامي حکومت اوسیدونکي شهري او دَ حکومت لاندې وي۔

اوس دلته دا یوه خبره د غور قابله ده چه په اولنی ایت د اختیار او په دویم ایت دوا یو وکښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا هدایت دے چه کله د دے غیر مسلمو په معامله کښې فیصله کوے نو د الله تعالیٰ د نازل کړی حکم یعنی د خپل شریعت مطابق کوه - د دے غیر مسلمو د خواهشو نو یا د دوی د مذهب مطابق مه کوه -

د دے وضاحت داد ے چه دا حکم د هغې معاملو متعلق دے د کو مو ذکر چه د دے ایا تو نو په شانِ نزول کښې تاسو اوریدلے دے - چه یوه معامله د قتل د سزا او د خون بها وه - او دویمه د زنا او د دے د سزا وه - په دا سې معاملو یعنی د جرمونو په سزا ګانو کښې د ټولے دنیا دا دستور دے چه د ټول ملک قانون یو وی - چه جنرل قانون ورته وائی په دے جنرل قانون کښې د طبقو یا مذهبونو په وجه سره څهٔ فرق نهٔ شی کولے مثلاً د غل سزا لاس پریکول دی نو دا صرف د مسلمانانو د پاره خاص نهٔ ده بلکه د ملک د هر یو اوسیدونکی د پاره به دا سزا وی - دغه شان د قتل او زنا سزا ګانے هم د ټولو د پاره عامے وی - لیکن د دے نهٔ دا نهٔ لازمیګی چه د غیر مسلمانانو شخصی او خالص مذهبی معاملو فیصله به هم د اسلامی شریعت مطابق کول ضروری وی -

په خپله نبی کریم صلی الله علیه وسلم شراب او خنزیر د مسلمانانو د پاره خو حرام کړل او سزاګانے پرے مقرر کړه - لیکن غیر مسلمانانې د دے نه آزاد او ساتل - د غیر مسلمانانو د نکاح واده وغیره شخصی معاملو کښې ئې چرته هم دخل نه دے ورکړیلے - د دوی د مذهب مطابق چه څنګه نکاح صحیح دے هم هغه ئے د دوی د پاره قائم پاتے کړے دے -

د هجر مقام مجوسیان، او د نجران او وادی قری یهودیان او نصارا د اسلامی حکومت ذمیان جوړ شو - او نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته دا معلومه وه چه د مجوسیانو په نزد د خپلے مورا و خور سره هم نکاح حلال دے - دغه شان په یهودو او نصاراؤ کښې بغیر د عدت تیریدو نه یا بغیر د ګواهانو نه نکاح معتبر دے مګر د دوی په دے شخصی معاملو کښې هیڅ مداخلت او نه فرمایه - او د دوی نکاحونه

ئې بو قرار داؤ منل -

لنډه دا چه غیر مسلمانان کوم چه د اسلامي حکومت او سیدونکي دي د دوی د شخصي او ذاتي او مذهبي معاملو فیصله د دوی په مذهب او خیال باندې پاتې کولې شي - او که د مقدمو د فیصله کولو ضرورت راپیښ شي نو د دوی د مذهب حاکم به مقرر کولې شي فیصله به کولې شي -

البته که دوی مسلمان حاکم ته رجوع کوی او د ده په فیصله دواړه فریقه رضامند وی نو بیا به اسلامي حاکم فیصله د خپل شریعت مطابق کوی - ځکه چه اوس دے د فریقینو د طرف نه د ثالث حکم لری - ایت کریمه: اَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللهُ کوم چه وړاندې راځي، په دے کښې د اسلامي شریعت مطابق د فیصلے کولو حکم کوم چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته ورکړے شوے دے یا خو په دے بنا باندې چه معامله د عام قانون یعني جنرل قانون وی چه په دے کښې بوه فرقه نه شي مستثنی کیدے او یا په دے بنا چه د خلقو خپله نبي کریم صلے الله علیه وسلم لره حکم منلے دے او په دوی باندې فیصلے کولو لره راغلي دي - نو ښکاره خبره ده چه د دوی فیصله به کار ده په کومه چه د دوی ایمان دے - او د دوی د شریعت حکم دے -

په هرحال په ذکر شوو ایاتو نو کښې په اول ایت کښې وړمبی نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته تسلی ورکړے شوه - د دے نه پس د یهودیانو د سازشونو دوی خبر کړے شو: يٰٓاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ: نه تر اخره پورې د دے بیان دے. چه په دے سره ئې دا ښکاره کړه چه ستاسو په خدمت کښې راتلونکے د فقه د منافقانو دے چه پټ ساز باز ئې د یهودیانو سره دے او د هغوی د طرفنه راځي - د دے نه پس د راتلونکي د فدخه ناښکاره خصلتونه بیانوي چه مسلمانان د دوی په ناکاروالی باندې خبردار شي او ضمني طور ئې دوی ته دا هدایت اوفرمایه چه دا خصلتونه د کافرانو دی د دوی نه ځان ساتلو او لرې اوسیدلو اهتمام کوئ -

د یهودو دویم ناکاره خصلت

اول ئې خصلت ئې دا اوخودو: سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ: یعني دا خلق د دروغو او غلطو خبرو آوریدو سره عادت دي خپل ځان ته د عالمانو د یو نکو غداری یهودیانو دا سے په رند وستر کو تا بعداري، چه د تورات د احکامو د ښکاره خلاف ورزئ لیدو باوجود بیا هم د دوی تابعداری کوی او د دوی غلطے

مَلِكَتِ بيان شوے قِصے اَوُري -

**دَعوامو دَپاره دَعلماؤ دَتابعداري ضابطه**

په دے کښے لکه څنګه چه دَ تحريف کونکو او دَ خدائے او دَ رسول ﷺ په احکامو کښے دَ غلطو څيزونو شاملونکو دَپاره دَ سزا ذِکر راغلے دے، دغه شان هغه خلق ئے هم مجرمان مقرر کړی دی چه دا سے خلقو لره امامان جوړ وی دَکمانه دَجوړ شوُو او غلطو روايتونو آورید وعادی شوی دی- په دے کښے دَمسلمانانو دَپاره يو اَهم هدايت دا دے چه اګر که دَجاهلو عوامو دَ پاره په دين دَ عمل کولو لار صرف دغه ده چه دَ علماؤ په فتویٰ او تعليم عمل اوکړی- ليکن دَ دے ذموارئ نه عوام هم آزاد نه دی چه دَ فتویٰ اغستو نه او په دے دَ عمل کولو نه اَوّل دَ خپلو پيشوايانو متعلق دومره تحقيق خو اوکړی څومره چه يو بيمار دَچا ډاکټر يا حکيم ته دَ رجوُع کولو نه اول کوی چه دَ يو څه خلقو نه تحقيق کوی چه دَ دے مرض دَپاره کوم ډاکټر پوهه دے او کوم حکيم بنۀ دے- دَ دۀ کومے کومے ډګرئ دی. په دۀ بانده دَ علاج کونکو حال څۀ دے؟ دَ خپل ممکن تحقيق نه پس هم که دے دَچا غلط ډاکټر يا حکيم په جال کښے او نخلی يا دے څۀ غلطی اوکړی نو دَ هوښيارانو په نزد دے نه شی ملامته کولے - ليکن کوم سړے چه بے تحقيقه دَچا عطائ په جال کښے اُونخلی او بيا په څۀ مصيبت کښے ګرفتار شی نو دَ هوښيارانو په نزد دے پخپله دَ خپلے خود کُشئ ذموار دے -

هم دا حال دَ عوامو دَ پاره دَ دينی کارونو په باره کښے دے -چه که دوی دَ خپل کلی دَ عالمانو او تجربه کارو خلقو نه دَحالاتو دَ تحقيق کولو نه پس چا عالم لره خپل پيشوا جوړه وَلے او دَ دۀ په فتویٰ ئے عمل کولے نو دَ خلقو په نزد به معذور ګنړلے کيدوا و دَ الله تعالیٰ په نزد هم، دَ دا سے معاملے متعلق په حديث شريف کښے دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے : فَاِنَّ اِثْمَهٗ عَلٰی مَنْ اَفْتٰی : يعنی په دا سے صورت کښے که عالم او مفتی غلطی اوکړه او يو مسلمان دَ دۀ په غلطه فتویٰ عمل اوکړو نو ګناه ئے په دۀ نيشته بلکه په دغه عالم او مفتی بانده دے - او دا هم هغه وخت کله چه دے عالم قصدًا دا غلطی کړی وی يا په ممکنه غور او فکر کښے ئے کمی کړی وی يا دا چه دے عالم وی نه او خلقو لره ئے دوکه ورکړے وی او په دے منصب مسلّط شوے وی -

ليکن که يو سړے بے تحقيقه محض پخپل خيال سره چا لره عالم او پيشوا مقرر کړی

دَ دهٔ په قول باندې عمل کوی او دے په واقع کښې دَ دے اهل نه وی، نو دَ دے وبال پوائې په دغه مفتی او عالم باندې نه ده بلکه دا سړے په کښې هم دَ برابر شریک دے - چه دَ دهٔ بے تحقیقه خپل ایمان واګے یو داسے سړی ته حواله کړے - دَ داسے خلقو په باره کښې دَ قرآن ارشاد دے سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ ؛ یعنی دا خلق دَ دروغو آوریدو عادی شوی دی، دَ خپلو پیشوایانو دَ علم او عمل اَمانت او دیانت تحقیق کولو نه بغیر په دوی پسے ګلیدلی دی - او دَ دوی نه دَ ګمان نه دَ جوړ شوا و غلطو روایتو نو دَ آوریدو او منلو عادیان شوی دی -

قرآن کریم دا حال دَ یهودیانو بیان کړے دے او مسلمانانو ته ئے اَوره ولے دے چه دوی دَ دے نه ځان اوساتی - لیکن دَ نن دُنیا په مسلمانانو کښې دَ ډیرے لوئے بربادئ سبب دا هم دے چه دوی دَ دنیا په معاملو کښې خو ډیر هوښیاران چست او چالاک دی - چه ناجوړه شی نو دَ عوره نه دَ عوره ډاکټر او حکیم په تلاش کښې وی - چه څهٔ مقدمه ورته راپیښه شی نو دَ ښهٔ نه ښه وکیل بیرسټر لټوی که څهٔ مکان جوړه وی نو دَ اعلیٰ نه دَ اعلیٰ کاریګر او انجینیر تلاش کوی - لیکن دَ دین په معامله کښې داسے سخیان دی چه دَ چا ګیره او ځلکا او دینی او څه الفاظ تړے واوری بس دغه خپل پیشوا عالم، مُفتی او رهبر جوړه وی، بغیر دَ دے تحقیق نه چه دهٔ چرته باقاعده په څهٔ مدرسه کښې تعلیم موندلے دے او که نه؛ دَ ماهرو عالمانو په خدمت کښې ئے دَ علمِ دین څه ذوق پیدا کړے دے او که نه؛ دَ علم څهٔ خدمتونه ئے کړی دی او که نه؛ دَ رشتو نو بزرګانو او خدائی خلقو په خدمت کښې پاتے شوے دے څه تقویٰ او پاکی ئے حاصله کړے ده او که نه؟

دَ دے دا نتیجه ده چه په مسلمانانو کښې کوم خلق که دَ دین طرف ته متوجه هم شی خو دَ دوی زیاته حصّه دَ جاهلو واعظانو او ګداګرانو پیرانو په جال کښې اُونخلی دَ دین دَ صحیح لارے نه ډیر لرے لاړ شی - دَ دهٔ علمِ دین صرف هغه قصے جوړے شی پکوموکښې چه دَ نفس په خواهشاتو څه زَدْ نه پرے ځئی - (یعنی دَ نفس خواهشات پرے نه کمیږی) دوی خوشحاله وی چه مونږ په دین روان یُو - او ډیر عبادت کوؤ، لیکن په حقیقت کښې هغه کیږی کوم لره چه قرآن کریم په دے الفاظو کښې بیان فرمائیلے دے :- اَلَّذِيْنَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ يَحْسَبُوْنَ

أَنَّهُمْ يُحْسِنُوْنَ صُنْعًا: "يعنې هغه خلق دي چه د دوی کوشش او عمل په دُنيا کښې برباد شوی دی او دوی په خپل خيال کښې داسې گنړی چه مونږ ډير ښه عمل کړے دے".

لنډه دا ده چه قرآن کريم د دے منافقانو يهوديانو حال د: سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ: په الفاظو کښې بيان کړے دے يو اهم او ډيرلوئے اُصول ئے خودلی دی۔ چه د جاهلو عوامو خو د عالمانو پيروی کول د ناچارئ نه دی۔ ليکن په دوی لازمه ده چه بے تحقيقه چا عالم لره پيشوا نه جوړ وی او د ناواقفو خلقو نه د غلطو ملتو خبرو آوريدو نه عادی نه کيږی۔

| دَ يهودو دويم بد خصلت | د دے منافقانو ئے دويم ناکاره خصلت دا او خودو

چه: سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ لَمْ يَاْتُوْكَ: يعنې دا خلق په ظاهره خو تاسو ته د يو د يهنی مسئلے د تپوس د پاره راغلی دی، ليکن په حقيقت کښې د دوی مقصد نه دين دے نه د دينی معاملے حکم معلومول دی، بلکه دا د يو داسے يهودی قوم جاسوسان دی چه د خپل تکبر په وجه سره تا ته پخپله نه دی راغلی۔ د هغوی د خواهش مطابق صرف دا غواړی چه د زنا د سزا په باره کښې ستا نظريه معلومه کړی او هغوی ته ئے اوښائی۔ بيا د منلو او نه منلو فيصله به پخپله کوی په دے کښې مسلمانانو ته دا خبردارے دے چه د يو عالم دين نه د فتوے د معلومولو د پاره ضروری ده چه د تپوس کوونکی نيت د الله او د رسول حکم معلومول او د هغے تابعداری کول وی۔ محض د مفتيانو نه رائے معلومول د خپل خواهش مطابق حکم تلاش کول ښکاره د نفس او شيطان تابعداری ده، د دے نه ځان ساتل پکار دی۔

| دريم ناکاره خصلت د کتاب الله تحريف | دريم ناکاره خصلت ئے د دے خلقو دا بيان کړو چه دا خلق د الله کلام لره د هغهٔ د موقع نه ځنگ

کوی غلط معنیٰ ورته وړاندی وی، او د الله تعالیٰ په حکمونو کښې تحريف (بدلون) کوی۔ په دے کښې دا صورت هم داخل دے چه د تورات په الفاظو کښې څهٔ ردو بدل اوکړی، او دا هم چه الفاظ هم دغه پلتے کړی او په معنیٰ کښې ئے عبث قسم تأويل او تحريف اوکړی۔ يهوديانو د دے دواړو قسمونو

تحریف عادیان دی۔

دَ مسلمانانو دَ پاره په دے کښې دا خبر دارے دے، چه دَ قرآن کریم دَ حفاظت الله تعالیٰ په خپله ذمه اَغستے دے۔ په دے کښې دَ لفظي تحریف خو هیڅوک زړه، وَرتیا نه شي کولے۔ چه دَ لیکلو شوُو صحیفو نه علاوه دَ لاکونو انسانانو په سینو کښې په محفوظ کلام کښې چه دَ یو زبر زیر څوک غلطي کوي نو فورًا نیولے کیږي دَ معنو تحریف په ظاهر کیدے شي او کوُنکو کړے هم دے، مګر دَ دے دَ حفاظت دَ پاره الله تعالیٰ دا انتظام فرمائیلے دے چه په دے اُمّت کښې تر قیامته پورے یوه داسے ډله وي چه دَ قرآن کریم دَ صحیح مفهوم (معنیٰ) حاملان وي او دَ تحریف کوُنکو پرده څیرَ وي۔

| خلورم ناکاره خصلت رشوت خوري |
|---|

په دویم آیت کښې ئے دَ دوي دا ناکاره خصلت فرمائیلے دے؛ اَکّٰلُوْنَ لِلسُّحْتِ: یعني دا خلق دَ سُحت خوړلو عادیان دي۔ دَ: سُحْت: لفظي معنیٰ یو شے دَ ذیلو نه ویستل او بربادَ وَل دي۔ په دے معنیٰ کښې قرآن کریم فرمائي؛ فَيُسْحِتَكُمْ بِعَذَابٍ: یعني که تاسو دَ خپلو حرکتو نه وا پس نه شوئ نو الله تعالیٰ به بخپل عذاب سره ستاسو ذیلے اوُباسي۔ په قرآن شریف کښې دلته دَ "سُحت" دَ لفظ نه مراد رشوت دے حضرت علی کرّم الله وجهه، ابراهیم نخعيؒ، حسن بصريؒ، مجاهدؒ، قتادهؒ، ضحاکؒ وغیره دَ تفسیر امامانو دَ دے تفسیر په رشوت سره کړے دے۔

رشوت ته دَ: سُحت: ویلو وجه دا ده چه دا صرف اغستوُنکو ورکوُنکو لره نه بربادَ وي بلکه دَ پوره ملک او ملّت ذیلے اوبنیا دا او عام امن تباه کوُلے دے۔ په کوم ملک یا محکمه کښې چه رشوت او چلیږي حلته قانون معطل شي۔ او قانون دَ ملک هغه شے دے په کوم سره چه دَ ملک او ملّت امن برقرار پاتے کولے شي۔ او چه دا معطل شي نو نه ئے جان محفوظ پاتے کیدے شي، نه عزت او نه مال، په دے وجه ئے اسلامي شریعت کښې ئے دے ته اُسُحت: او دے سخت حرام ئے مقرر کړو۔ او دَ دے دَ دروازے بندَ ولو دَ پاره ئے دَ امیرانو او حاکمانو هغه هدئے او تحفے چه دوي ته ورکولے شي په صحیح حدیث کښې رشوت مقرر کړے او حرامے کړي دي (جصاص)

او په یو حدیث کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلّم ارشاد فرمائي چه الله تعالیٰ په رشوت اخستونکی او ورکوونکی باندې لعنت کوي، او په هغه سړي هم چه د دې دواړو په مینځ کښې دلال او واسطه جوړ شي (جصاص)

د رشوت شرعي تعریف دا دے چه د کوم شي معاوضه اخستل شرعاً جائز نه وي، د هغې معاوضه واخستے شي. مثلاً کوم کار چه د یو سړي په فرائضو کښې داخل وي او د هغې پوره کول د ده په ذمه لازم وي په دے د یو فریق نه معاوضه اخستل، لکه د حکومت افسران وکلرک د سرکاري ملازمت په وجه د خپلو فرضو اداکولو ذمه وار دي. دوي چه د معاملے د خاوند نه څه واخلي، نو دا رشوت دے. یا د جینئ مور و پلار د دے په واده کولو ذمه وار دي. د چا نه د دے معاوضه نه شي اخستے. دوي چه چا له رشته ورکوي او څه ترې واخلي دا رشوت دے. یا روژه او مونځ او حج او تلاوت د قرآن عبادتونه دي چه د مسلمان په ذمه دي. په دے چه د چا نه معاوضه واخلي نو دا رشوت دے. د قرآن تعلیم او امامت د دے نه مستثنیٰ دي (د متأخرینو په فتویٰ)

بیا چه کوم سړے رشوت واخلي او د چا کار د حق په مطابق کوي نو دے د رشوت اخستو ګناه ګار دے او دا مال د ده د پاره سُحت او حرام دے. او که د رشوت په وجه د حق نه خلاف کار ئے اوکړو. نو دا دویم سخت جرم حق وهل او د خدائے حکم بدلول د دے نه علاوه شو الله تعالیٰ دې ترې مونږ او ساتي.

إِنَّآ أَنزَلْنَا ٱلتَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ يَحْكُمُ

مونږ نازل کړې دے تورات چه په دے کښې هدایت او رڼا ده، حکم کا و ده

بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسْلَمُوا۟ لِلَّذِينَ هَادُوا۟

په دے سره پیغمبرانو کوم چه حکم منونکي وو د الله یهودو ته

وَٱلرَّبَّٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ بِمَا ٱسْتُحْفِظُوا۟ مِن

او حکم کاوه خدائي خلقو او عالمانو په دے وجه چه دوي حفاظت کوونکي مقرر شوي وو د

كِتٰبِ اللّٰهِ وَكَانُوْا عَلَيْهِ شُهَدَآءَ ج فَلَا تَخْشَوُا

الله د کتاب او د دوئ په خبر اخستو مقرر دوو - پس تا سو یره مکوی د

النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ط

خلقو نه او زما نه یره کوئ او مه اخلئ زما په آیا تو نو قیمت لږ -

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ

او څوک چه حکم نه کوی د دے موافق کوم چه الله نازل کړے دے پس دغه خلق

الْكٰفِرُوْنَ (۴۴) وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَآ اَنَّ النَّفْسَ

کافران دی - او اُو لیکل مونږه په دوی باندے په دغه کتاب کښے چه د نفس په بدله

بِالنَّفْسِ لا وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْاَنْفَ بِالْاَنْفِ وَ

کښے نفس دے - او د سترګے په بدله کښے سترګه، او د پوزے په بدله کښے پوزه او

الْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ لا وَالْجُرُوْحَ

د غوږ په بدله کښے غوږ ، او د غاښ په بدله کښے غاښ دے، او د زخمونو بدله د

قِصَاصٌ ط فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ ط

هغے په برابر دے - بیا چا چه معافی او کړه نو هغه د ګناه نه پاک شو -

وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ

او څوک چه حکم نه کوی د هغے په موافق کوم چه الله نازل کړے دے نو دغه خلق

هُمُ الظّٰلِمُوْنَ (۴۵) وَقَفَّيْنَا عَلٰٓى اٰثَارِهِمْ

ظالمان دی - او روستو او لیګل مونږ د دوی په قدمونو

بِعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ

عیسیٰ دَ مریم ځوئ تصدیق کونکے دَ تورات چه دَ مخکښې نه وُه . . . . .

وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ هُدًى وَّنُوْرٌ وَّمُصَدِّقًا

او ورکړه مونږ ده لره انجیل چه په دے کښې هدایت او رڼا وه او تصدیق کونکے وُه

لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً

دَ هغې کتاب تورات چه دَ دهٔ نه وړاندې وُه او لار خودُونکے او نصیحت وُه

لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۴۶﴾ وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ اَنْزَلَ

یَرِیدُونکو ته - او پکار دی چه حکم کوی انجیل والا موافق دَ هغې چه نازل کړو

اللّٰهُ فِيْهِ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ

الله په هغې کښې - او څوک چه حکم نه کوی موافق دَ هغې چه الله نازل کړو نو دغه خلق

هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ

دی نافرمانه - او په تا نازل کړو مونږ دا کتاب رشتو نے

مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ الْكِتٰبِ وَمُهَيْمِنًا

تصدیق کونکے دَ وړاندې کتابونو او دَ دوی دَ مضمونونو نګهبان

عَلَيْهِ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ

پس ته حکم کوه په دوی کښې موافق دَ هغې چه نازل کړی دی الله او دَ دوی په

اَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ۚ لِكُلٍّ جَعَلْنَا

خواهشاتو مه ځه - چه کومه نیغه لار تا ته راغلے ده هغې باندې کړے - هر یو لره په تاسو کښې

مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ۭ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ

درکړے دے موږ هر یو دستور او لاره - او که الله غوښتے نو تاسو به ئے - یه

اُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِنْ لِّيَبْلُوَكُمْ فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ

یو دین کړی وئ لیکن ستاسو آزمائیل غواړی په خپلو درکړو شوو حکمونو کښے

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ۭ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا

پس تاسو وړاندې کیږئ نیکو ته - الله ته ستاسو د ټولو رسیدل دی

فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿٤٨﴾ وَاَنِ احْكُمْ

بیا به خبر کړی تاسو په هغے چه ستاسو په کښے اختلاف وُه - او دا ئے فرمائیلی دی چه حکم

بَيْنَهُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَلَا تَتَّبِعْ اَهْوَآءَهُمْ

کوه په دوی کښے موافق د هغے چه نازل کړی دی الله او مه ځه د دوی په خواهشو بانډے

وَاحْذَرْهُمْ اَنْ يَّفْتِنُوْكَ عَنْۢ بَعْضِ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

او بچ اوسه د دوی نه چه تا وانه اړوی د داسے حکم نه چه الله نازل کړے دے

اِلَيْكَ ۭ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَاعْلَمْ اَنَّمَا يُرِيْدُ اللّٰهُ اَنْ

په تا - بیا که نه منی نو پوهه شه چه الله دا غواړی چه

يُّصِيْبَهُمْ بِبَعْضِ ذُنُوْبِهِمْ ۭ وَاِنَّ كَثِيْرًا مِّنَ

اورسوی دوی ته څه سزا د دوی د گناهونو - او په خلقو کښے ډیر

النَّاسِ لَفٰسِقُوْنَ ﴿٤٩﴾ اَفَحُكْمَ الْجَاهِلِيَّةِ يَبْغُوْنَ ۭ

نافرمانه دی - آیا دوی اوس حکم غواړی د کفر د وخت -

وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿٥٠﴾ ع ۷ ۱۱

او د الله نه غوره څوک دے حکم کوونکے د یقین کوونکو د پاره -

# لنډ تفسیر

**د ایاتونو ترون**

دا د سورتِ مائده اُوومه رکوع ده په دے حق تعالیٰ یهودو، نصاراؤ، او مسلمانانو ته په یو ځائے با ندې یو اَهَم او خاص شرعي حکم با ندې خبردارے فرمائیلے دے، چه ذکوئے په سورتِ مائده کښے په ځان ځانله طور سره د بره نه را روان دے. او دغه معامله ده د الله جلّ شانهٔ سره د شوي عهد نه خلاف ورزي کول، او د دهٔ په را لیګلو شوو احکامو کښے تغیر تبدیل او تاویل تحریف کوم چه د یهودو او نصاراؤ همیشه خصلت او عادت جوړ شوے وهٔ -

په دے رکوع کښے الله تعالیٰ اوّل تورات والا یهود مخاطب کړل دوی لوه ئے د دوی په ګلګییو او د دے په بد انجام با ندې په اوّلنو دوه ایاتونو کښے خبردار کړل او د دے په ضمن کښے ورته د قصاص متعلق بعضِ احکام هم په دے مناسبت سره ذکر کړل، چه په تیرو ایاتونو کښے کومه واقعه د یهودو د سازش ذکر شوے ده هغه د قصاص متعلق وه، چه بنونضیر په دیت او قصاص کښے د برابری قائل نه وُو- بلکه بنو قریظه ئے د ځان نه په کم دیت اغستو مجبوره کړی وُو - په دے دوارو ایاتونو کښے ئے یهودو د الله تعالیٰ د نازل کړی قانون په خلاف خپل قانون جاری کولو با ندے سخت خبردارے او فرمائیلو او دا سے کوونکی ئے کافران او ظالمان مقرر کړل -

د دے نه پس په دریم ایت کښے اهلِ انجیل نصاراؤ ته په دغه مضمون سره خطاب او فرمایه د الله د نازل شوی قانون خلاف په خپل قانون جاری کولو با ندې ئے ورته سخت خبردارے او فرمایه- او دا سے کوونکی ئے سرکش او نافرمان مقرر کړل -

د دے نه پس په څلورم، پنځم او شپږم ایت کښے ئے نبی کریم صلے الله علیه وسلّم

لوه مخاطب کړو مسلمانانو ته ئې د دے مضمون متعلق هدایتونه او کړل، چه دوی چرته د اهلِ کتابو په دے بیمارئ کښې اخته نه شی - چه د مرتبے او مال په لحرص کښې د الله تعالیٰ د حکمونو بدلول شروع نه کړی - یا د الله تعالیٰ د قانون خلاف خپله قانون د چپل طرف نه جاری نهٔ کړی -

په دے ضمن کښې ئے یو اَهم اصولی مسئله داهم ...... بیان کړه، چه اګر که د عقید وپه اصولو کښې او د حق جلّ شانه د حکم منلو په معامله کښې ټول پیغمبران علیهم السلام د یوے عقیدے او د یوے طریقے پابند دی - لیکن د حکمت او مصلحت په تقاضا سره هر یو پیغمبر ته د هغهٔ د زمانے په مناسبت سره شریعت ورکړے شوے دے، چه په هغے کښې ډیر فروعی او جزوی اَحکام مختلف دی - او دائے او خودله چه هر یو پیغمبر ته کوم شریعت چه ورکړے شو د دهٔ په زمانه کښې هم دغه د حکمت مقتضا او تابعداری ئے واجب وَه - او هرکله چه دغه منسوخ شو بل شریعت به راؤړے شو نو دغه وخت به هغه عینِ حکمت او مصلحت وَه او تابعداری به ئے واجب وه - په دے کښې ئے د شریعتو نو مختلف کید و او بدلید و کښې یو خاص حکمت طرف ته هم اشاره او فرمائیله -

مونږه (په موسیٰ علیه السلام) تورات نازل کړے وَه چه په هغے کښې (د صحیح عقید وهم) خود نه وَه او (د عملی حکمونو هم) وضاحت وَه انبیاؤ (د بنی اسرائیلو) کوم چه (د الله کو نو خلقو پیشوایان اَد دوی حکم منلو او د دے سره) د الله تعالیٰ فرمانبرداره وُو د دے (تورات) موافق به ئے یهودو ته حکم کولو او (دغه شان په دوی کښې) خدائی خلقو او عالمانو هم (د دے موافق چه هم دغه په دغے وخت کښې شریعت وَه حکم کولو) په دے وجه چه د دے (خدائی خلقو او عالمانو) ته د دے کتاب د الله تعالیٰ (عمل پرے کول او په نورو ئے کولو) د ساتنے حکم (د پیغمبرانو علیهم السلامو په ذریعه سره) ورکړے شو او دوی د دے (یعنی ځپله د عمل کولو او په نورو ئے د کولو) اقرار کړے وَه (یعنی چونکه دوی ته د دے حکم شوے وه او دوی دا حکم قبول کړے وَه په دے وجه همیشه د دے پابند وُو) پس (اے د دے زمانے مشرانو او عالمانو د یهودو هر کله چه همیشه

ستاسو ټول پیشوایان دَ تورات منونکی راغلی دی نو) تاسو هم (دَ محمّد صلی الله علیه وسلم دَرسالت په باب کښې چه حکم ئې په تورات کښې دے) دَ خلقو نه (دا) یره مه کوئ (چه که مونږ ئې تصدیق اوکړو نو دَ عامو خلقو په نظر کښې به زمونږ په مرتبه کښې فرق راشی) او (صرف) ځما نه یره کوئ (چه په تصدیق نه کولو بانډې دَ سزا اهل نو) او ځما دَ احکامو په بدله کښې (دَ دُنیا) لږ سامان (دکوم چه دَ خپلو عوامو نه تاسو ته ملاوېږی) مهٔ اخلئ (چه دا دَ مرتبې او مال محبّت په تاسو باعث کیږی او تاسو لره دَ تصدیق کولو نه منع کوی) او (یاد ساتئ چه) کوم سړے چه دَ خدائے دَ نازل شوی حکم موافق حکم نه کوی (بلکه غیر شرعی بَل حکم قصدًا اخلقو ته شرعی حکم بنائی دَ هغې موافق حکم کوی) پس دا سے خلق بالکل کافر دی (څنګه چه اے یهودو تاسو کوئ چه په عقیده کښې هم لکه دَ رسالتِ محمّدی صلی الله علیه وسلم عقیده او په عملونو کښې هم لکه حکم دَ رجم وغیره خپلو جوړ شوو لره دَ الله حکم بنکاره کوئ په ګمراهئ او ګمراه کولو کښې اَخته کیږئ) او مونږ په دوی (یهودو) بانډې په دے (تورات) کښې دا خبره فرض کړے وه چه (که څوک چا لره په ناحقه قصدًا قتل یا زخمی کړی او دَ حق خاوند دعوه اوکړی نو) دَ نفس په بدله نفس دے او دَ سترګے په بدله سترګه او دَ پوزے په بدله پوزه او دَ غوږ په بدله غوږ او دَ غاښ په بدله غاښ او دغه شان دَ نورو) خاصو زخمونو هم بدله ده (بیا کوم سړے چه (دَ دے قصاص یعنی بدلے اَخستو مستحق شی هم) دے (قصاص) لره معاف کړی دغه (معاف کول) دَ دے (معاف کوُنکی) دَ پاره (دَ دهٔ دَ ګناهونو) کفاره (یعنې دَ ګناه لرے کیدو سبب) شی (یعنی معاف کول موجبِ ثواب دے) او (چونکه یهودو دے احکامو لره پاتے کړی وُو په دے وجه ورته پرلپسے دَ عذاب وعدے اَوُره وی چه) کوم سړے دَ خدائے دَ نازل شوی موافق حکم نه کوی (چه معنیٰ ئې بره تیره شوه) پس دا سے خلق بالکل ظالمان دی (یعنی ډیر ناکاره کار کوی) او مونږ دَ دوی (پیغمبرانو) نه روستو (چه ذکر ئې په يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّونَ کښې راغلے دے) عیسیٰ ځوئ دَ مریم (علیه السلام) لره په دا سے حالت کښې (پیغمبر جوړ کړو) او لیږه چه دے دَ ځان نه

د وړاندې کتاب یعنې تورات تصدیق کوی (چه د رسالت د لوازمو نه دا چه د خدائے د ټولو کتابونو تصدیق اوکړی) او مونږ دوی لره انجیل ورکړو چه په هغے کښې (د تورات په شان د صحیح عقیدو هم) هدایت وه او (د عملی حکمونو هم) وضاحت وه او دغه (انجیل) د خپل ځان نه د وړاندې کتاب یعنی تورات تصدیق (هم) کولو (چه دا هم د الله د کتاب سره لازمه ده) او دغه سراسر هدایت او نصیحت وه د خدائے نه د یریدونکو د پاره او (انجیل مو ورلره ورکړو وحکم مو ورته کړے وه چه) انجیل والو لره پکار دی چه الله تعالیٰ په دے کښې څه نازل کړی دی د دے موافق حکم دے کوی او (ادے د دے زمانے نصاراؤ وادوریځ چه) کوم سړے چه د الله تعالیٰ د نازل شوی موافق حکم نه کوی (او د دے معنی بره تیرے شوے دی) نو داسے خلق بالکل نافرمانی کوونکی دی (او انجیل د محمد صلے الله علیه وسلم د رسالت خبر ورکوی نو تاسو د دے خلاف ولے چلیږئ) او (د تورات انجیل نه پس) مونږه دا کتاب (چه نوم ئے قرآن دے) تاته در لیګلے دے چه بخپله هم په صدق (او رشتیا) سره موصوف دے او د دے نه مخکښې چه کوم (آسمانی) کتابونه (راغلی) دی (لکه تورات انجیل زبور) د هغوی هم تصدیق کوی (چه دغه د الله تعالیٰ د طرفه نازل شوی دی) او (چونکه دغه کتاب چه نوم ئے قرآن دے تر قیامته پورے محفوظ دے او عمل به پرے کولے شی- او په دے کښې د دغه اسمانی کتابونو تصدیق موجود دے په دے وجه دغه کتاب) د دے کتابونو (د تصدیق مضمون) لره (همیشه د پاره) حفاظت کوونکے دے (ځکه چه په قرآن شریف کښې به همیشه دغه خبره محفوظه وی چه دغه کتابونه د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شوی دی، هر کله چه قرآن شریف داسے کتاب دے نو د دوی (اهل کتابو) د خپل مینځ معاملے (لکه چه ستا په مجلس کښې پیښی شی) د دے لیږلی شوی کتاب موافق فیصله کوه او دا کوم رشتونے کتاب چه تاته ملاؤ شوے دے د دے نه لرے کیدل او د دوی د (خلاف شرع) خواهشونو (او فرمائشونو) باندے (رائنده هم) عمل در امه کوئ (لکه څنګه چه تر اوسه پورے سره د دوی د درخواست او التماس تاسو صاف انکار

اوفرمایه- یعنی ستاسو دارائے ډیره برابره ده په دے همیشه قائم اوسئ- او اے اهلِ کتابو تاسو دے قرآن د حق کنړلو او دے د فیصلے منلو نه ولے انکار کوئ؟ آیا د نوی دین راتلل څهٔ د تعجب خبره ده؟ آخر) په تاسو کښے د هر یو (امت) د پاره (د دے نه وړاندے) موږ خاص شریعت او خاصه لار تجویز کړے وه (مثلًا د یهودو شریعت او لار تورات وه او د نصاراؤ شریعت او لار انجیل وه، پس که د امت محمدی صلے الله علیه وسلم د پاره شریعت او لار قرآن مقرر کړے شو، چه حق والے ئے هم په دلائلو سره ثابت دے، نو د انکار وجه څهٔ ده؟) او که الله تعالیٰ ته د دے تولو په یوه لاره ساتل) منظور وے نو (په دے هم هغه قادر وُه چه) تاسو ټولو (یهودو او نصارا او مسلمانانو لره (یو شریعت ورکړے وه) به ئے بیا یو امت بانده جمع کړی وئ) او نوے شریعت به نه وُه راغلے چه تاسو ترے نفرت کوئ) لیکن (پخپل حکمت سره داسے ئے اُونه کړه (بلکه هر امت لره ئے جُدا جُدا لار ورکړه) د دے د پاره چه کوم دین تاسو ته (په هر زمانه کښے نوے نوے) ورکړے شوے دے په دے کښے ستاسو د ټولو (ستاسو د حکم منلو د ظاهرو د لو د پاره) امتحان اوکړی (ځکه چه اکثر طبعی امر دے چه د نوے طریقے د ډیرے او د مخالفت طرف ته حرکت کښے راځي- لیکن کوم سړے چه د صحیح عقل او انصاف نه کار اخلی هغه د دے حقیقت بنکاره کیدو نه پس خپل طبیعت په منلو بانڼ مجبوره کوی، او دا یو لوئے امتحان دے- پس که ټول یو شریعت وے نو د دے شریعت په اوّل کښے چه کوم خلق وُو د هغوی امتحان خو به شوے وُه لیکن د نورو خلقو کوم د دوی په نقش قدم تلو نکی او د دے طریقے سره اشنا وی د هغوی امتحان به نه کیده- او اوس د هر یو امت امتحان اوشو- او د امتحان یو صورت دا وی چه انسان د کوم شی نه منع کوَلے شی که د هغے رواج وی او که پاتے شوے وی خو د دے د هغے په کولو حارص وی او دا امتحان په کنړو شریعتو نو کښے ډیر قوی دے، چه د منسوخ شوی شریعت نه منع کوَلے شی- او د شریعت په یو والی کښے اگرچه د گناهونو نه منع کولے شی لیکن په دے کښے خو د حقیقت څه شبُه نه وی نو په دے د دے

درجې امتحان نه وي. ځکه چه د دوړاندې نه به معلومه وه چه دا ګناه دے. د دے دواړو امتحانونو مجموعه د هر امت د وړمبو او وروستو ټولو د پاره عامه شوه. لکه چه اوّل لئے صورت صرف د وړمبو سره خاص دے. پس هر کله چه په نوی شریعت کښې دا حکمت دے) نو (تعجب پرېږدئ) فائده منو خیرو طرف ته (یعنې هغه عقید و عملونو احکامو طرف ته چه په قرآن کښې دی) ورانډے شئ (یعنې په قرآن ایمان راوړئ او په دے عمل کوئ یوه ورځ) تاسو ټولو لره د خدائے طرف ته تلل دی بیا به هغه تاسو ټولو ته ښکاره کړی هغه چه تاسو ورسره د حق ښکاره کیدو نه په دنیا کښې خاځا) اختلاف کاوه (نو په دے وجه دا بے ځایه اختلاف پرېږدئ حق لره چه اوس صرف په قرآن کښې دے قبول کړئ) او (ځو نکه چے اهل کتابو دا سے لویه خبره او کړه چه تاسو ته درخواست د خپل موافق د فیصلې کولو کوی چه که دے هدو احتمال نیشتے په دے وجه که دوی د حوصلې ماتولو او دوی ته په آوازه ولو او د همیشه د پاره ئے د نا اُمیده کولو په وجه) مونږ لږ بیا بیا) حکم کوو چه تاسو که دوی (اهل کتابو) د خپل مینځ په معاملو کښې (هر کله چه ستاسو په مجلس کښې پیښ شی) د دے لیکلی شوی کتاب موافق فیصله کوئ او د دوی (د شریعت نه خلاف) په خوا هشونو داو فرمائیشونو) باندې (را ئنده هم) عمل درآمد مه کوئ (لکه چه ترا وسه پورې هم نه دے کړے) او د دوی نه یعنې که دوی د دے خبرے نه را ئنده هم د تیرو پشان) احتیاط کوئ چه دوی تاسو لره د خدائے تعالیٰ د لیکلی شوی څه حکم نه بل طرف ته نه کړی (اګر چه د دے نو هیڅ احتمال هم نیشتے مګر د ځان نه ساتلو قصد کول هم ثواب دے) بیا (هم که سره د واضح کیدو د قرآن او د دغه د فیصلې حق تابلیدو هم که دا خلق (د قرآن نه او ستا د فیصلې نه چه موافق د قرآن ده) مخ ګرځوی نو دا یقین اوکړئ چه بس خدائے ته منظوره ده چه د دوی د بعضے جرمونو په وجه (په دنیا کښې) دوی لره سزا ورکړی (او دغه بعض جرم فیصله نه منل دی. او د قرآن د حق والی نه منلو سزا به پوره په آخرت کښې ملاویږی. ځکه چه دا لئے جرم د دوی د ذمې والی نه خلاف دے. او دویم جرم د ایمان خلاف د حرمتیا سزا په

دنیا کښې وی۔ او د کفر سزا په آخرت کښې وی۔ نو کله چه د یهودو سرکشی او عهد شکنی د حد نه زیاته شوه نو دوی ته د قتل، قید او ملک نه د ویستلو سزا ورکړې شوه)
او (اے محمد صلے الله علیه وسلم د دوی د دے حال په آورید و باندِ به تاسو ته غم او خفګان وی لیکن تاسو زیات غم مکوئی ځکه چه) زیات خلق خو د په دنیا کښې نافرمانه وی داخلق (چه د قرآن د فیصلے نه چه عین عدل دے ځ ځ ه کوی) آ یا بیا د جاهلیت فیصلے غواړی (کومے چه دوی د اسمانی شریعت نه خلاف د ځا نه جوړے کړے دے چه ذکر ئے د دوه وړو واقعو په ضمن کښې د دے رکوع نه په وړاندے رکوع "یَا اَیُّهَا الرَّسُوْلُ" په تمهید سره تیر شوے دے حال دا ئے چه دغه سراسر د عدل او دلیل نه خلاف دے۔ یعنی سره د علم نه د ځ ځ ځ کول او جهل طلب کول د عجیبه وو نه عجیبه دی) او په فیصله کولو کښې د الله نه څوک په بنه (فیصله کونکے) وی۔ (بلکه څوک ورسره برابر هم نیشته، پس خالق فیصله پاتے کول او د بل د فیصلے طلب کول عین جهل نه دے نو څه دی، لیکن دا خبره هم) د یقین (او ایمان) لرونکو په نزد (ځکه چه په دے پوهیدل موقوف دی د عقل په صحت باندِ او دغه کافران د دے نه بے نصیبه دی)۔

# معلومات او مسئلے

د ذکر شوو آیاتو نه په اولنی آیت کښې ارشاد فرمائی:-

"اِنَّآ اَنْزَلْنَا التَّوْرٰىةَ فِيْهَا هُدًى وَّ نُوْرٌ" یعنی مونږ خپل کتاب تورات لیکلے چه په دے کښې د حق طرف ته رهنمائی او یو خاص نور وه، په دے کښې دے خبرے طرف ته اشاره اوشوه چه نن کوم د تورات شریعت منسوخ کولے شی۔ په دے کښې د تورات څه نقص نیشته۔ بلکه د زمانے د بدلیدو په سبب سره د احکامو د بدلون د ضرورت لاندے داسے او کړے شوه۔ ورنه تورات هم زمونږ نازل کړے شوے کتاب دے۔ په دے کښې د بنی اسرائیلو د پاره اصولی هدایت هم ذکر دے۔ او یو خاص نور هم دے۔ چه په روحانی طور سره د دوی په زړونو اثر کوی۔ د دے نه پس ارشاد فرمائی: "يَحْكُمُ بِهَا النَّبِيُّوْنَ الَّذِيْنَ اَسْلَمُوْا لِلَّذِيْنَ هَادُوْا وَالرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ" یعنی تورات مونږ د دے د پاره نازل کړے وه چه تر څو

پورې دَ دۀ شریعت منسوخ نه کړے شي تر هغې وخته پورې دا تلوُنکي انبیآء او دَ دوئ نائبین خدائي خلق او عالمان قول دے دَدے تورات مطابق فیصلے کوي، دا قانون دے په دُنیا کښے چلوِي۔ په دے کښے ئے دَ انبیآء علیهم السلام نائبین په دوه قسمه ذکر کړي دي، اوّل: رَبَّانِیُّوْنَ، دویم: اَحْبَارُ۔ لفظ دَ رَبَّانِيُّ ربّ طرف ته منسوب دے چه معنیٰ ئے ده: الله والا، او اَحْبَار دَ حِبْرٌ جمع ده۔ دَ یهودو په محاوره کښے عالم ته به حِبْرٌ وئیلے شو۔ اګرچه دا خبره ښکاره ده چه څوک الله والا وي ضروري ده چه هغۀ ته به دَ الله تعالیٰ دَ ضروري احکامو علم هم وي ورنه بغیر علم نه عمل نه شي کیدے او بغیر دَ الله تعالیٰ دَ احکامو منلونه او عمل کولو نه پوسرے الله والا نه شي جوړیدے۔ دغه شان دَ الله تعالیٰ په نزد عالم هغۀ ته وئیلے شي چه بچپل علم باندې عمل هم کوي۔ ورنه هغه عالم چه دَ الله تعالیٰ دَ احکامونه دَ خبریدو با وجود ضروري فرائض او واجبات نه ادا کوي او نه ورته څۀ خیال کوي۔ هغه دَ الله او رسول په نزد دَ جاهل نه بدتر دے۔ دَ دے نتیجه دا شوه چه هر الله والا عالم وي او هر عالم الله والا وي۔ مګر دلته ئے دواړه جدا جدا بیان کړۀ دَ دے خبرے خبرداره ئے ورکړه چه اګرچه دَ الله والا دَ پاره علم ضروري او دَ عالم دَ پاره عمل ضروري دے، لیکن په کوم چه دَ کوم رنګ غلبه وي دَ دغے په اعتبار سره دَ هغۀ نوم ایښودے شي۔ دَ کوم سړي توجه چه زیاته عباداتو او عمل او دَ الله تعالیٰ ذکر طرف ته مصروفه وي۔ او دَ دین علم صرف په قدر دَ ضرورت حاصلوي هغۀ ته ربّاني یعنی الله والا وائي چه دَ نن صبا په اصطلاح کښے ورته شیخ، مرشد، پیر وغیره وائي۔ او کوم سړے چه علمي مهارت پیدا کړي خلقو ته دَ شرعي احکامو خودلو او ازده کولو په خدمت کښے زیات مشغول وي، او دَ فرضو واجبو او مؤکد وسنتو نه علاوه په نورو نفلي عبادتو نو کښے زیات وخت نه لګوي، دۀ ته حبر یا عالم وئیلے شي۔

لنډه دا ده چه په دے کښے ئے دَ شریعت او طریقت او عالمانو او شیخانو اصلي یو والے هم اوخودلو۔ او دَ کار دَ طریقے او دَ غالب شغل په اعتبار سره ئے په دوي کښے فرق هم واضحه کړو۔ چه دَ دے نه معلومه شوه چه دَ عالمانو او

صوفیاؤ څخه دوه فریقے یا دوه ډلے نه دی۔ بلکه دَ دواړو دَ ژوند مقصد دَ الله او دَ رسول حکم منل او فرمانبرداری ده۔ البته دَ دے مقصد دَ حصول دَ پاره دَ دوی دَ کار طریقه صورتًا دَ یو بل نه بدله په نظر سره راځی۔

دَ دے نه پس ارشاد فرمائی: بِمَا اسْتُحْفِظُوا مِنْ كِتَابِ اللَّهِ وَكَانُوا عَلَيْهِ شُهَدَاءَ: یعنی دا انبیاء او دَ دوی دواړه قسمه نائبین عالمان او مشائخ دَ تورات دَ احکامو جاری کولو په دے وجه پابند وُو چه الله تعالیٰ دَ تورات حفاظت دَ دوی په ذمه لګولے وُه۔ او دوی دَ دے دَ حفاظت عهد او پیمان کړے وُه۔

تر دے پورے دَ تورات ذکر وه چه دا دَ الله تعالیٰ کتاب او هدایت او نور وُه چه انبیاء علیهم السلامُ او دَ دوی رشتونی نائبینو مشائخو او عالمانو دَ دے حفاظت فرمائیلے وُه۔ دَ دے نه پس دَ موجوده زمانے دَ یهودو دَ ګلیدواو په ګوتلو او دَ دے په اصل سبب باندے خبردارے اوفرمایه۔ چه تاسو په ځائے دَ دے چه دَ خپلو مشرانو په نقش قدم سره تلے دَ تورات حفاظت ئے کړلے۔ دَ دے تورات په احکامو کښے ئے تغیّر او تبدّل اوکړه چه په تورات کښے په ډیر وضاحت سره او تفصیل سره دَ نبی اخر زمان محمّد صلے الله علیه وسلم دَ راتلو خبر او یهودوته په دوی دَ ایمان راوړو هدایت ذکر وُه۔ دے خلقو دَ دے خلاف وَرزیا اوکړه او په نبی کریم صلے الله علیه وسلم باندے دَ ایمان راوړو په ځائے ئے دَ دوی مخالفت شروع کړو۔ او دَ دے سره ئے دَ دوی دَ دغے هلاکونکے غلطۍ سبب هم بیان کړو چه دا ستاسو دَ مرتبے او مال محبّت دے۔ تاسو دا منئ چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم برحق رسول دے خو دَ دے سره دَ دوی دَ تابعداری کولو نه ځکه یریږئ چه اوس تاسو دَ خپل قوم پیشوایان منلے شئ عام یهودیان په تاسو دریږی دی۔ که تاسو اسلام قبول کړو نو تاسو به دَ مسلمانانو دَ یو فرد په حیثیت پاتے شئ دا مشری به ختم شی۔ دویم دے خلقو دا پیشه جوړه کړے وَه چه دَ لویو خلقو نه به ئے رشوتونه اغستو دَ دوی دَ پاره به ئے دَ تورات احکام بدلول آسانئ به ئے پکښے پیدا کولے۔ په دے دَ خبرداری ورکولو دَ پاره ئے دَ موجوده زمانے یهودوته اوفرمائیل چه:-

فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِي ثَمَنًا قَلِيلًا: یعنی تاسو دَ خلقو نه

مه یې ګڼئ چه دوی به ستاسو تابعدارۍ ته تیار شي او که نه یا به ستاسو مخالف شي او تاسو دُنیا په لپاره سامان اغستو سره دَ دوی دَ پاره دَ الله تعالیٰ په احکامو کښې رَدّو بدل مه کوئ چه دا ستاسو دَ پاره دَ دین او دُنیا بربادی ده حُکم چه: وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ، یعني کوم خلق چه دَ الله تعالیٰ په نازل شوو احکامو باندې حکم نه کوي واجب ئې نه ګنړي بلکه دَ دے خلاف فیصله کوي نو دوی کافر او مُنکر دي چه سزا ئې همیشه عذاب دَ جهنّم دے۔

دَ دے نه پس په دویم آیت کښې دَ قصاص احکام په دے حواله سره بیان کړي دي چه مونږ دا احکام په تورات کښې نازل کړي دي، ارشاد دے: وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَآ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْاَنْفَ بِالْاَنْفِ وَالْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ، یعني مونږ دَ یهودو دَ پاره په تورات کښې دَ قصاص دا حکم نازل کړے وه چه دَ نفس په بدله کښې نفس دَ سترګے په بدله کښې سترګه دَ پوزے په بدله کښې پوزه دَ غوږ په بدله کښې غوږ دَ غاښ په بدله کښې غاښ او دَ خاص زخمونو بدله ده۔

دَ بنو قریظه او بنو نضیر کوم مقدمه چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته پیش شوے وه چه بنو نضیر وَ خپل قوّت او شوکت په وجه بنو قریظه دیته مجبور کړي وُو چه که دَ بنو نضیر وُ څوک سړے دَ دوی دَ چا سړي دَ لاسه قتل شي نو قصاص به ئې هم دَ نفس په بدله کښې نفس اغستې شي او دَ دے نه علاوه دیّت به هم اغستے شي۔ او که معامله په عکس او شي چه دَ بنو نضیر وَ سړي دَ لاسه دَ بنو قریظه وُو سړے مړ شي نو قصاص به نه وي صرف دیّت به اغستے شي او هغه هم دَ بنو نضیر وَ نه په نیمه۔

په دے آیت کښې الله تعالیٰ دَ دے خلقو دَ دے غلا نه پرده اوچته کړه چه څنګه په تورات کښې هم دَ قصاص او دیّت دَ برابرۍ احکام موجود دي دا خلق قصداً ددې نه مخ اړوي۔ او محض دَ حیلے لټولو دَ پاره خپله مقدمه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم حضور ته را وړې ده۔

په آخر آیت کښې ئې ارشاد او فرمایه: وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ، یعني څوک چه دَ الله تعالیٰ په نازل شوو احکامو باندې حکم نه کوي

دغه کافران دي - ځکه چه د الله تعالیٰ د حکم نه باغیان او منکر دي - په دریم ایت کښې اول د حضرت عیسیٰ علیه السلام د بعثت ذکر دے چه دے د تیر کتاب یعنې تورات د تصدیق کولو د پاره رالیږلے شوے وو - بیا د انجیل ذکر دے چه دغه هم د تورات په شان هدایت او نور دے -

په څلورم ایت کښې ئے اوفرمائیل چه انجیل والؤ له پکار دي چه کوم قانون الله تعالیٰ په انجیل کښې نازل کړے دے د دے مطابق احکام نافذ کړي - او کوم خلق چه د الله تعالیٰ د نازل کړو احکامو خلاف حکم جاري کوي هغه نافرمان او سرکش دي -

**قرآن د تورات او انجیل هم محافظ دے**

په پنځم او شپږم ایت کښې نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته خطاب دے چه مونږ تا باندې قرآن نازل کړو چه د ځان نه د مخکښې کتابونو تورات او انجیل تصدیق هم کوي او د دوی محافظ هم دے ځکه چه هرکله تورات والؤ په تورات کښې او انجیل والو په انجیل کښې تحریفات (ادل بدل) اوکړو - نو قرآن کریم هغه محافظ او نګران ثابت شو چه د دوی د تحریفاتو پرده ئے څیرے کړه حق او حقیقت ئے ښکاره کړو - او د تورات او انجیل اصل تعلیمات نن هم د قرآن په ذریعه په دنیا کښې باقي دي - اګرچه د دوی وارثانو او د دوی پیروی کونکو مُدعیانو د دے شکل داسے وران کړے دے چه د حق او باطل جدا کول ناممکن شوي دي، په اخر ایت کښې ئے نبي کریم صلے الله علیه وسلم ته هغه حکم ورکړو کوم چه تورات والو او انجیل والو ته ورکړے شوے وو - چه ستاسو احکام او فیصلے ټولے د الله تعالیٰ د نازل کړو احکامو مطابق کیدل پکار دي - او دا خلق چه په تاسو باندې د خپلو خواهشاتو مطابق فیصلے کول غواړي د دوی د مکر نه خبردار اوسه - د دے ارشاد یو خاص وجه داوه چه د یهودو یو څو عالمان د نبي کریم صلے الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئے اوکړو چه تاسو پوهیګئ چه مونږ د یهودو عالمان او پیشوایان یو که مونږ مسلمانان شو نو دوی به هم ټول مسلمانان شي - لیکن زمونږ یو شرط دا دے چه زمونږ یو مقدمه ستاسو د قوم د خلقو سره ده - مونږه

په دا مقدمه تاسو لوره راوړی، دا فیصله تاسو زموږ موافق اوکړئ. نو موږ به مسلمانان شو. الله تعالیٰ په دې باندې خبردار کړو چه تاسو د دې خلقو د مسلمانېدو د وجه نه د عدل او انصاف او د خدای د نازل کړی قانون خلاف فیصله هرګز مه کوئ او د دې پرواه هرګز مه کوئ چه دا خلق به مسلمانان شی او یا نه.

د انبیاؤ په شریعتونو کښې جزوی اختلاف او د دې حکمت | په دې آیت کښې د دویم هدایت سره د یو اهم اصولی سوال جواب هم بیان شوې دې هغه دا چه هرکله

ټول انبیاء علیهم السلام د الله تعالیٰ د طرف نه رالیږلی شوی دی او په دوی نازل شوی کتابونه صحیفې او د دوی شریعتونه ټول د الله جل شانه د طرف نه دی نو بیا په دې کتابونو او شریعتونو کښې اختلاف ولې دې؟ او نوې راتلونکې شریعت او کتاب وړاندینی شریعت او کتاب لره منسوخ کوی ولې؟ د دې جواب سره د خدائی حکمت نه په دې آیت کښې بیان شو.

لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلَٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَاتِ" یعنی موږ به تاسو کښې د هرې طبقې د پاره یو خاص شریعت او یو خاص طریقه د عمل جوړه کړې ده چه په دې کښې سره د دې چه اصول (یعنی بنیاد) شریک او متفق یعنی د ټولو یو شان دی البته فروعی احکام ئې د مصلحت په وجه مختلف دی او که الله تعالیٰ غوښتې نو هغهٔ ته هیڅ ګران نه وو چه تاسو ټول ئې یو امت او یو ملت جوړ کړی وې، د ټولو یو کتاب او یو شریعت وې. لیکن الله تعالیٰ دا حکم خوښه نه کړه چه خلق وازمائی چه کوم خلق دی چه د عبادت د حقیقت نه ځان خبره وی او هر وخت حکم منلو ته ئې غوږ وی چه کوم حکم ملاؤ شی د هغې تعمیل کوی یعنی منی ئې. چه کوم نوې کتاب یا نوې شریعت راځی د هغې تابعداری کوی. او وړاندینی کتاب او شریعت که ئې هر څو مره خوښ وی او د پلار نیکه د مذهب په وجه که د دې پاتې کول ګډه ته هر څو مره ګران وی خو بیا هم هر وخت ئې غوږ ایښودې وی د حکم منلو ته تیار وی. او څوک دی چه د دې حقیقت نه ځان غافله کوی یو خاص شریعت یا کتاب ئې خپل مقصد جوړ

کړے وی او د اګے د خپل یو نیکئی مذهب په حیثیت سره اغستے وی د دے خلاف د الله تعالیٰ یو حکم ته غوږ نه کدی -

د شریعتونو په اختلاف کښے دا یو لوئے حکمت دے چه د دے په ذریعه سره د هرے زمانے د هرے طبقے خلقو ته د صحیح عبادت او بندګئ پته ورکولے شی - چه په حقیقت کښے عبادت نوم دے د بندګئ او حکم منلو چه دا یوازے په مونځ روژه حج او زکوٰة کښے راګیر نه دے او نه دا څیزونه پخپل ذات کښے مقصد وَ نه دی - بلکه د دے ټولو مقصد صرف یو د الله د حکم فرمانبردارئ ده دا وجه ده چه یکو مو وختونو کښے د مانځه ممانعت دے په دغه وختونو کښے د مانځه هیڅ کار د ثواب نه دے بلکه اُلټه ګناه دے - د اخترونو وغیره په ورځو کښے روژه نیول منع دی نو په دغه ورځ روژه نیول ګناه دے - د نهمے ذی الحج نه علاوه په بله ورځ په څه میاشت کښے د عرفات په میدان کښے جمع کیدل دُعا او عبادت کول د ثواب کار نه دے - حال دا دے چه په نهمه ذی الحجه د ټولو نه لوئے عبادت دغه دے - دغه شان د نورو ټولو عبادتونو حال دے - ترکومه حده پورے چه ئے د کولو حکم دے نو هغه عبادت دے - او کله او کوم وخت کښے ئے چه منع شوے ده نو دغه عبادت هم بیا حرام او ناجائز شی - جاهل عوام د دے حقیقت نه خبر نه وی - کوم عبادتونه چه د دوی عادت جوړ شی ، بلکه کوم قومی رسمونه چه دوی عبادت او ګڼړی اختیار ئے کړی ، نو د الله او رسول ښکاره حکمونه هم بیا په دے پسے نظر انداز کوی - دغه بدعتونه او نوی کارونه د دین جُز وجوړ شی چه هم دا خبرے د تیرو شریعتونو او کتابونو د تحریف سبب شوی دی - الله جلّ شانهٔ په مختلفو پیغمبرانو مختلف کتابونه او شریعتونه نازل کړی دی انسانانو ته ئے دا خودلی دی چه یو عمل یا یو قسم عبادت مقصود نه جوړ وی بلکه په صحیح معنو کښے د الله تعالیٰ فرمانبردار بندګان جوړ شی - او کوم وخت چه د تیر عمل پریخودو حکم وی او چه فوراً ئے پاتے کړی او د کوم عمل د کولو چه حکم وی فوراً په هغے عمل کول شروع کړی -

د دے نه علاوه د شریعتونو د اختلاف یو لوئے حکمت دا هم دے چه د دنیا د هر دوړا و هرے طبقے د انسانانو مزاج او طبیعتونه مختلف وی - د زمانے اختلاف

په انساني طبيعت ډير زيات اثر اچوي - که د ټولو دپاره فروعي احکام يوشان شي نو انسانانو ته به ډيره گرانه شي - په دے وجه د الله تعالیٰ حکمت داوغوښتل چه د هرے زمانے او هر مزاج د خلقو پاتو لحاظ اوساتلے شي په فروعي احکامو کښې تبديلي راوستلے شي - دلته د ناسخ او منسوخ دا معنیٰ نه وي چه حکم ورکونکي ته اوّل حالات معلوم نه وو - نو يوشان حکم ئے اوکړو، بيا چه نوي حالات مخے ته راغلل نو هغه حکم ئے منسوخ کړو، يا اوّل ئے د غفلت او غلطئ په وجه يو حکم کړے وُه بيا پوهه شو نو بدل ئے کړو، بلکه په شريعت کښې د ناسخ او منسوخ مثال بالکل د يو حکيم يا ډاکټر د نسخې په مثال دے، په کومه کښې چه دوا يانے دوره بدلولے شي - چه حکيم ډاکټر ته اول دا اندازه وي چه درے ورځے د دوائئ استعمالولو نه پس به په مريض دا سے حالت راشي نو دغه وخت به فلانئ دوائي ورکولے شي - کله چه دے اوّله نسخه منسوخ کوي دويمه ورکوي نو دا سے وئيل صحيح نه وي چه اوّله نسخه غلطه وه په دے وجه ئے منسوخ کړه - بلکه حقيقت داوي چه په اولو ورځو کښې هغه نسخه صحيح او ضروري وَه - او په دے ورستو حالاتو کښې دا دويمه نسخه صحيح او ضروري ده -

**په ذکر شوو اياتو کښې راغلي د واضحو او ضمني احکامو نچوړ**

اوّل د اوّلنو اياتو نه معلومه شوه چه د يهودو مقدمه کومه چه د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په حضور کښې پيش شوے وه او دوئ کړے فيصلا وفرمائيله نو دا فيصله د تورات د شريعت مطابق وَه - د دے نه ثابته شوه چه د تيرو شريعتو کوم خدائي حکمونه چه نافذ وَو، ترڅو چه قرآن کريم او د خدائے تعالیٰ وحئ هغه منسوخ کړي نه وي دغه پخپل حال باقي وي - لکه د يهودو په مقدمو کښې د قصاص برابره او د زنا د سزا د سنگسارئ حکم په تورات کښې هم وُه - بيا قرآن هم دغه بعينه باقي پاتے کړو -

دغه شان په دويم ايت کښې د زخمونو د قصاص حکم چه د تورات په حواله بيان شوے دے په اسلام کښې هم دا حکم نبي کريم صلے الله عليه وسلّم جاري کړے دے په دے بنا باندے د اسلام د جمهورو علماؤ په نزد ضابطه دا ده - چه د تيرو شريعتونو هغه حکمونه چه قرآن هغه منسوخ کړي نه وي دغه زمونږ په شريعت کښې هم، قد

او عمل پرې واجب دے- دغه وجه ده چه تورات والوته د تورات مطابق او انجیل والوته د انجیل مطابق د حکم کولو او عمل کولو حکم ورکړے شوے دے- حال دا دے چه دا دواړه کتابونه او د دوی شریعتونه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د راتلو نه پس منسوخ شوی دی- مطلب دا دے چه د تورات او انجیل کوم احکام چه قرآن نه دی منسوخ کړی د هغوی تابعداری نن هم واجب ده-

دریم حکم په دے ایاتونو کښے دا ثابت شو چه د الله تعالیٰ د نازل شوو احکامو خلاف حکم کول په بعض صورتونو کښے کفر دے کله چه په عقیده کښے هم د غے خلاف لره حق گنړی- او په بعض صورتونو کښے ظلم او فسق دے کله چه د عقیدے په رو سره خو دغه نازل شوی احکام حق منی مگر په عمل کښے د دے خلاف کوی-

څلورم حکم په دے ایاتونو کښے دا راغلے دے- چه رشوت اغستل مطلق حرام دی- او خاص په عدالتی فیصله رشوت اغستل نور زیات سخت دی-

پنځم حکم د دے ایاتونو نه دا واضحه شو چه ټول انبیاء علیهم السلام او د دوی شریعتونه په اصولو کښے بالکل متفق او یو دی مگر په جزوی او فرعی حکمونو کښے مختلف دی او دا اختلاف په ډیرو حکمتونو مبنی دے -

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُوْدَ وَالنَّصٰرٰٓى

اے ایماندارو! مه جوړوئ یهود او نصاراؤ لره

اَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ اَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۭ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ

دوستان- دوی په خپل مینځ کښے دوستان دی د یو بل- او څوک چه پتاسو کښے

مِّنْكُمْ فَاِنَّهٗ مِنْهُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ

دوستی کوی د دوی سره نو هغه د دوی نه دی- الله هدایت نه کوی ظالمانو

الظّٰلِمِيْنَ ۝ (۵۱) فَتَرَى الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ يُّسَارِعُوْنَ

خلقو ته- او س به ته او وینے هغو لره چه په زړه کښے ئے بیماری ده منډے وهی

فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰ أَنْ تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ ۚ فَعَسَى

په دوی کښې دا ئې چه زمونږ يره ده چه را نه شي په مونږ گردش د ما نے - پس نږدے ده

اللَّهُ أَنْ يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِنْ عِنْدِهِ فَيُصْبِحُوا

چه الله ذر ښکاره کړی فتح يا څهٔ حکم د خپل طرف نه نو شي به

عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنْفُسِهِمْ نَادِمِينَ ﴿۵۲﴾ وَيَقُولُ

د خپلو زړونو په خبره بانډې ستوما نه - او وائې

الَّذِينَ آمَنُوا أَهَٰؤُلَاءِ الَّذِينَ أَقْسَمُوا بِاللَّهِ

مسلمانان آيا دا هغه خلق دی چه قسمونه ئې خوړل په الله

جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ ۙ إِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ۚ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ

په تاکيد سره چه مونږ ستاسو سره يو - برباد شو د دوی عملونه

فَأَصْبَحُوا خَاسِرِينَ ﴿۵۳﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَنْ

پس پاتے شو په نقصان کښې - اے ايمان والو! څوک چه ستاسو کښې

يَرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَسَوْفَ يَأْتِي اللَّهُ

واپس شي د خپل دين نه نو الله به ژر زر را ولی

بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ

دا سے قوم لره چه الله به ورسره مينه کوی او دوی به د هغهٔ سره مينه کوی نرم زړی به وی په مسلمانانو

أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ يُجَاهِدُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

زبردست به وی په کافرانو - جنګ به کوی د الله تعالیٰ په لاره کښې

وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ

او نه ویریږي د چا د الزام نه - دا فضل دے د الله ورکوي ئې

مَنْ يَّشَآءُ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۵۴﴾ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ

هغه چاته چه غواړي - او الله فراخئ والا دے خبردار ستاسو ملګرے

اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ

الله دے او د هغهٔ رسول او هغوک چه ایماندار دي چه قائم ساتي

الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ ﴿۵۵﴾

مانځهٔ لره او ورکوي زکوٰة او عاجزي کونکي دي -

وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

او هغوک چه دوست لري الله او د هغهٔ رسول لره او ایماندارو لره

فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۵۶﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ

ع ۸ ۱۲

نو هغه د الله جماعت په ټولو غالب دے - اے ایماندارو!

اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ

مه جوړ وئ هغو خلقو لره چه نیسي ستاسو دین په

هُزُوًا وَّلَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ

ټوقو او لوبو سره هغه خلق چه کتاب ورلره ورکړے شوے دے

قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ

ستاسو نه وړاندے او نه کافرانو لره خپل دوستان - او ویره کوئ د الله نه که چرے

كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۵۷﴾ وَإِذَا نَادَيْتُمْ إِلَى الصَّلٰوةِ

تاسو ایمان دار یئ - او کله چه تاسو آواز کوئ د پاره د مانځه

اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ

نو دوی پورے ټوقے او مسخرے کوی - دا په دے وجه چه دغه خلق

لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿۵۸﴾

ناپوهه دی

# لنډ تفسیر

په ذکر شوو آیاتونو کښے د درے اهمو اُصولی مضامینو بیان دے چه د مسلمانانو د اجتماعی او مِلّی یووالی او راغونډیدو بنیادی اُصول دی:-

اوّل دا چه مسلمانان د غیر مسلمو سره رواداری، همدردی، خیرخواهی عدل او انصاف، او احسان او سلوک هر څۀ کولے شی، او دا سے کول پکار دی ځکه چه دوی ته د دے تعلیم ورکړے شوے دے. لیکن د دوی سره دا سے جوړه دوستی او خلط ملط چه په دے سره د اسلام امتیازی نښے ګډے وډے شی د دے اجازت نیشته - دا هغه مسئله ده چه د "ترکِ موالات" په نوم سره پیژندے شی -

دویم مضمون دا دے چه کچرے په څه وخت کښے په څۀ ځائے کښے مسلمانان د دے بنیادی اُصولونه واوړی د غیر مسلمو سره دا سے خلط ملط او کړی نو دا دِ نه ګنړی چه د دے سره به اسلام ته څۀ ضرر او نقصان اورسی - ځکه چه د اسلام د حفاظت او باقی پاتے کیدو ذمواری الله تعالیٰ اغستے ده دا هیڅوک هم نۀ شی ختمولے - که فرض کړه یو قوم بالکل اسلام پرےے دی او بل طرف ته واوړی نو الله تعالیٰ به یو بل دا سے قوم راپورته کړی چه د اسلام

اصول او قانون په قائم کړی۔

دریم مضمون دا دے چه کله یو طرف ته مُنفي اَرَخ معلوم شو نو مسلمانانو لره جوړه دُوستي صرف دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسولؐ او په دوی دَ ایمان راوړونکو سره کیدے شي۔

دا سرسري بیان دے دَدے مضامینو کوم چه په بره ذکو شو وُپنځه وُو ایاتو نو کښے بیان شوے دے۔

اوس دَدے ایاتو نو لنډ تفسیر واورئ:-

اے ایماندارو! تاسو (دَمنافقانو پشان) یهود و او نصاراؤ لره (خپل) دوستان مه جوړ وئ دوی (دپخپل مینځ کښے) دَ یو بل دوستان دی (یعنی یهوُد دَ یهود و سره او نصاراؤ دَ نصاراؤ سره۔ مطلب دا دے چه دوستي کیږي په مناسبت سره، پس دَ دوی دَ یو بل سره مناسبت دے، مګر په تاسو او په دوی کښے څهٔ مناسبت دے) او دَ هر کله چه دَدے بیان نه معلومه شوه چه دو ستي کیږي په مناسبت سره نو) کوم سړے چه ستا سو کښے دَ دوی سره دوستي کوي بے شکه دغه (دَ څهٔ خاص مناسبت په اعتبار سره) به دَ دوی نه وي او که چه دا کار خوښکاره دے لیکن) یقینًا الله تعالیٰ (دَدے کار) پوهه نه ورکوي هغو خلقو ته کوم چه (دَ کفارو سره دوستي کوي) خپل نقصان کوي (یعني په دوستۍ کښے دَ ورننوتو په وجه سره دا خبره هم وَدوی په خیال کښے نه راځي او چونکه دا سے خلق ټَه کار نه پوهیګي) په دے وجه راے لید ونکو) تاسو دا سے خلقو لره چه په زړهٔ کښے ئے (دَ نفاق) مرض دے وینئ چه منډے وَهي په دوی (کفارو) کښے وَرننوځي را وکه څوک ئے ملامته کوي نو دَ حیلے او خبرے جوړ وَلو دَ پاره دا سے) وائي چه (زمونږ دَ دوی سره ملاویدل دَ زړهٔ نه نهٔ دي بلکه زړهٔ و نه خو زمونږ ستاسو سره دی صرف دَ یو مصلحت په وجه دَ دوی سره ملاویګو هغه دا چه) زمونږه سره یره ده چه رشا ئک دَ زمانے په انقلاب سره) په مونږ څهٔ حادثه راشي (لکه قحط دے، تنګي ده او دا یهودیان زمونږ ساهوکاران دی دَ دوی نه مونږ ته قرض اونسیا ملاویګي، که دا ظاهري ملاویدل ورسره پاتے کړو نو په وخت باندِ

"نَخْشٰٓى اَنْ تُصِيْبَنَا دَآئِرَةٌ" : دا مطلب اغستو
به مونږ ته تکلیف وی- په ظاهره برخے دَ
لیکن په زړهٔ کښے به ئے مطلب اغستو چه که په آخر کښے په مسلمانانو باندِ کافران غالب
راشی نو بیا به زمونږ دَوی ته حاجت وی په دے وجه دَ دوی سره دوستی ساتل پکار
دی)- پس نزدے امید (یعنی وعده) ده چه الله تعالیٰ (مسلمانانو له کامله) فتح دَ دَ
دے کفارو په مقابله کښے چه دوی ورسره دوستی کوی) ورکړی (چه په دے کښے
به دَ مسلمانانو دَ کوشش هم دخل وی) یا دَ څهٔ بلے خبرے خاص دَ خپل طرف
نه (ښکاره کول او فرمائی یعنی دَ دوی نفاق دَ وحیٔ په ذریعه ښکاره کړی چه
په دے کښے دَ مسلمانانو دَ تدبیر اصلاً دخل نیشتے- مطلب دا چه دَ مسلمانانو
فتح او دَ دوی راز ښکاره کول دواړه کارونه نزدے کیدُونکی دی) بیا به
(دغه وخت) دَ خپلو زړونو په (تیر و) پټو خیالاتو باندِ شرمنده شی (چه
مونږ څهٔ گنړل چه کفار به غالب شی او دا خو په عکس کار اوشو- یوه خیمانی
به ئے دَ خپل خیال په غلطیدو وی چه دا طبعی اَمر دے- دویمه خیمانی به ئے
پخپل نفاق وی چه دَ هغے په وجه ئې رسوا شو- په : مَا اَسَرُّوْا : کښے دا دواړه
داخل دی- او دا دریمه خیمانی چه دَ کفارو سره دوستی ئے عبث شوه او دَ
مسلمانانو سره ئے هم بنهٔ جوړه نه شوه- چونکه دوستی دَ دوی په : مَا اَسَرُّوْا :
باندِ مبنی وه په دے وجه دَ دے دوه خیمانو په ذکر سره دا دریمه ئے دَ ذکر
نه په دا اکله پخپله معلومه شوه) او (کله چه دَ فتح په دے زمانه کښے دَ دے
خلقو نفاق هم ښکاره شی نو پخپل مینځ کښے به) مسلمانان خلق (په تعجب سره)
او وائی چه آیا دا هغه خلق دی چه په ډیره مبالغه سره به ئے (زمونږ په وړاندِ
قسمونه خوړل چه مونږ (دَ زړهٔ نه) ستاسو سره یو (دا خو بلٰ څه خبره ثابته شوه
الله تعالیٰ فرمائی چه) دَ دے خلقو ټول کارونه (چه دَ دواړو طرف یقوسره ئے ښهٔ
اوسیدل غوښتل ټول) تالا ترغه شو چه په دے سره (دَ دواړه طرف نه)
نا اُمیده شو (ځکه چه کفار خو مغلوب شو دَ دوی سره ملګری کیدل خو محضِ
بے کاره دی- او دَ مسلمانانو سره خو ئے راز ښکاره شو دَ دوی سره ئے اوس
جوړه راتلل هم گران دی" بس دغه مثال ئے شو چه نه دَ دے جهان شو او نه دَ هغے"
اے ایمانداراو (یعنی کوم خلق چه دَ دے آیت دَ نزول په وخت کښے مسلمانان دی)

کوم سړي چه ستاسو کښې د خپل (دے) دین نه واپس شي نو (د اسلام هیڅ نقصان
نشته ځکه چه د اسلام د خدمت د پاره به) الله تعالیٰ ژر (د دوي په ځائې) داسې
قوم پیدا کړي د کوم سره چه به د الله تعالیٰ محبت وي او د دوي به د الله سره محبت
وي مهربان به وي دوي په مسلمانانو باندې تیز به وي په کافرانو باندې (چه د دوي
سره) جهاد به کوي د الله په لاره کښې او (د دین او جهاد په باره کښې) دغه خلق به د
چا ملامت کونکي د ملامتیا نه ویره نه کوي (لکه چه د منافقانو حال دے چه بې زړه
به جهاد ته تلل لیکن دا فکر به ورسره وه چه کفار د کوم سره چه ئې د زړه
دوستي ده ملامت به ئې کړي، یا د چا سره چه ئې د جهاد د مقابله ده هغه د دوي
دوستان او خپلوان دي که اتفاقاً دوي چرته او وینې نو لعن طعن به پرې کوي
چه تاسو د داسې خلقو د وژلو د پاره تللي وئ) دا (ذکر شوي صفتونه)
د الله تعالیٰ فضل دے چا له چه ئې غواړي ورکوي ئې او الله تعالیٰ ډیر
فراخئ والا دے (چه که او غواړي نو ټولو له دا صفتونه ورکولے شي لیکن)
لوئ علم والا دے (د دې په علم کښې چا له چه مصلحت وي هغه له
ئې ورکوي) ستاسو دوستان خو (د کوم سره چه تاسو له دوستي پکار ده)
الله تعالیٰ او د هغه رسول (صلی الله علیه وسلم) او ایمانداران خلق دي
کوم چه په داسې حالت کښې د مانځه پابندي کوي او زکوٰة ورکوي چه په دوي باندې
(د زړونو) کښې خشوع وي (یعنې اخلاقو د عملونو بدني او مالي ټولو له جمع
کونکي دي) او کوم سړې چه (د دې مضمون موافق) د الله سره دوستي ساتي
او د هغه د رسولؐ سره او د ایماندارو خلقو سره پس (دغه د الله په ډله
کښې شامل شو او) د الله ډله بې شکه غالبه ده (او کفار مغلوب دي نو غالب
له د مغلوب سره موافقت او دوستي فکر کول محض نالائقه خبره ده) اے
ایماندارو! کومو خلقو ته چه ستاسو نه وړاندې کتاب (آسماني یعنې تورات
انجیل) ملاؤ شوې دي (مراد یهود او نصاریٰ) کوم چه داسې دي چه دوي
ستاسو دین له خندا او لوبه جوړه کړې ده (چه دا نبینه ده د دروغژن
کولو) دوي له او (دغه شان) نورو کفارو له (هم لکه مشرکان وغیره
شو) دوستان مه جوړه وئ (ځکه چه اصل علت کفر او دروغژن کول مشترک دي)

او دَ الله تعالیٰ نه یَره کوئ که تاسو ایما ندار یئ (یعني ایما ندار خو یئ پس دَ کوم شی نه چه الله تعالیٰ منع کړے ده دغه مَه کوئ) او ژلکه څنګه چه دَ دین دَ اُصولو سره تړلې کوی دغه شان دَ فروعو سره هم چنانچه) کله تاسو دَ مانځه دَ پاره (دَ اذان په ذریعه سره) اعلان کوئ نو دغه خلق (ستاسو) دے (عبادت) سره (په کوم کښے چه اذان او مونځ دواړه داخل) خندا او لوبے کوی (او) دا (حرکت) په دے سبب سره دے چه دوی داسے خلق دی چه بالکل عقل نه لری (ورنه حق کار به ئے پیژندو او په دے پورے به ئے خندا نه کوله)۔

# مَعلُومَاتُ اَوْمَسَئلے

په اوّلنی ایٰت کښے مسلمانانو ته حکم ورکړے شوے دے چه دوی دَ یهودو او نصاراؤ سره مَوالات (یعني جوَړه دوستی) نه کوی، لکه چه دَ عامو غیرمسلمو او یهودو او نصاراؤ په خپله دا دستور دے چه دوی جوَړه دوستی صرف دَ خپل قوم دَ خلقو سره ساتی، دَ مسلمانانو سره دا معامله نه کوی۔

بیا که چا مسلمان دَ دے خلاف ورزی اوکړه دَ چا یهودی یا نصرانی سره ئے جوَړه دوستی اوکړه نو دے به دَ اسلام په نظر کښے په ځائے دَ مسلمان دَ دَغے قوم فرد شمار یدلے قابل وی۔

**شانِ نزول** دَ تفسیر امام ابن جریرؒ په روایت دَ عکرمهؓ بیان فرمائی چه دا ایٰت په یو خاص واقعه کښے نازل شوے دے۔ هغه دا چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم هرکله په مدینه منوّره کښے تشریف فرما شو۔ نو دَ مدینے دَ اطرافو دَ یهودوا و نصاراؤ سره ئے یو معاهده په دے با ندِ کړے وَه چه دوی به دَ مسلمانانو خلاف نه پخپله جنګ کوی او نه به دَ جنګ کوُنکی قوم امداد کوی، بلکه دَ مسلمانانو سره به یو ځائے کیږی او دَ هغوی مقابله به کوی۔ دغه شان به مسلمانان نه دَ دوی سره جنګ کوی نه به دَ دوی خلاف دَ یو قوم مدد کوی بلکه دَ مخالف مقابله به کوی۔ څهٔ موده دا معاهده دَ دواړه طرفه قائمه وه۔ لیکن یهودیان دَ خپل سازشی خوئی او اسلام دشمن طبیعت په وجه سره په دے معاهده زیات قائم پاتے نه شو۔ او دَ مسلمانانو خلاف

ئې د مکې د مشرکانو سره سازش اوکړو، د دوی ته ئې خپل قلعه ته د راتللو د پاره
خط اولیکه، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته چه کله دا سازش معلوم شو نو دوئ د دوی
د مقابلې د پاره د مجاهدینو یو دسته اولیګله - د بنی قریظه دے یهودیانو
خو یو طرف ته د مکې د مشرکانو سره دا سازش کولو، او بل طرف ته په مسلمانانو
کښې ننوتلی وُو د دیرو مسلمانانو سره ئې د دوستئ معاهدے کړے وے.
او دغه شان به ئې د مسلمانانو خلاف د مشرکانو د پاره د جاسوسئ کار کولو
په دے وجه دا ذکرشوے ایت نازل شو چه د دٔ مسلمانانو لوره د یهودو
او نصاراؤ د جوړے دوستئ نه منع کړل. د دے د پاره چه د مسلمانانو د خاص
خبرو نو پته ورته او نه لګیدے شی. دغه وخت بعض صحابه کرامؓ حضرت
عباده بن صامتؓ وغیره خو په ډاګه د دغو خلقو سره خپله معاهده ختم
کړه - او د دوستئ پریښودو اعلان ئې اوکړو. او بعض خلق چه په منافقانه طور سره
د مسلمانانو سره ملاؤ شوی وُو، یا ئې لا تراوسه ایمان په زړونو کښې نه وُو کلک شوے
دوی به د دغو خلقو سره په تعلقاتو ختمولو کښې دا یرے محسوس کولے - چه
ممکنه ده که د مشرکانو او یهودو سازش کامیاب شی او مسلمانان مغلوب شی
نو موږ به لوره د دغې خلقو سره هم داسې معامله ساتل پکار دی چه دغه وخت بیا
زموږ د پاره مصیبت جوړ نه شی - عبدالله بن اُبیّ ابن سلول په دے بنا باندې
اُووے چه د دغې خلقو سره په تعلق قطع کولو کښې ما ته یره ده - په دے
وجه دا سے نه شم کولے - په دے دویم ایت نازل شو۔

﴿فَتَرَى الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَارِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰ أَن تُصِيبَنَا دَائِرَةٌ﴾: "یعنی د دوستئ پاتے کولو شرعی حکم چه واورید و نو هغه خلق
د کومو په زړونو کښې چه د نفاق مرض دے خپلو کافرو دوستانو طرف ته په
منډو شو او او وئیل چه د دوی سره په تعلقاتو پاتے کولو کښې زموږ
سره یره ده۔"

الله جل شانه د دوی په جواب کښې اوفرمائیل: ﴿فَعَسَى اللَّهُ أَن يَأْتِيَ بِالْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ عِندِهِ فَيُصْبِحُوا عَلَىٰ مَا أَسَرُّوا فِي أَنفُسِهِمْ نَادِمِينَ﴾" یعنی دا
خلق په دے خیال کښې دی چه مشرکین او یهود به په مسلمانانو غالب راشی

مګر الله تعالیٰ فیصله فرمائیلې ده چه داسې به او نه شي بلکه نژدې ده چه مکه فتح شي یا د مکې د فتح نه اوّل الله تعالیٰ د دې منافقانو د نفاق پرده څیرې کړي دوی رُسوا کړي۔ نو دغه وخت به دا خلق په خپلو پټو خیالاتو پښیمانه شي۔

په دریم آیت کښې ئې د دې ذیاته تشریح داسې او فرمائیله چه کله د دې منافقانو د نفاق پرده څیرې شي او د دوی د دوستو د دعوو او قسمو نو حقیقت ښکاره شي نو مسلمانان به حیران پاتې شي او اُوبه وائي چه آیا دا هغه دي چه مونږ ته به ئې په الله تعالیٰ سخت قسمونه خوړل د دوستۍ دعوې به ئې کولې۔ او نن د دوی حشر دا شو۔ چه د دوی ټول اسلامي عملونه چه محض د ځان خودلو د پاره ئې کول ضائع شو۔ او الله جلّ شانُهٗ په دې آیاتونو کښې کوم چه د مکې د فتح او د منافقانو د رسوائۍ ذکر فرمائیلې دې هغه یو څو ورځې پس ټولو په خپلو سترګو سره او لیدل۔

په څلورم آیت کښې دا خودلې شوي دي چه د غیر مسلمو سره د جوړې دوستۍ او خلط ملط چه کوم ممانعت شوې دې دا یچپله د مسلمانانو د فائدې د پاره دې ورنه اسلام هغه حق دین دې چه د حفاظت ذمه ئې الله تعالیٰ یچپله ذمه اغستې ده۔ د یو فرد یا جماعت ګډبډل یا نافرماني خو به خپل ځائې دي۔ که د مسلمانانو یو فرد یا یو جماعت خامخا اسلام پریدي او بالکل مرتد شي د غیر مسلمو سره ملاؤ شي په دې سره هم اسلام ته هیڅ ضرر نه شي رسیدې ځکه چه قادر مطلق چه د دې د حفاظت ذمه وار دې فوراً به یو بل قوم میدان ته راؤباسي چه د الله تعالیٰ د دین حفاظت او د اِشاعت فرض به پوره کوي۔ د ده کار نه به څهٔ ذات پورې موقوف دې نه د لوئې نه په لوئې جماعت یا اداره پورې هغه چه کله غواړي نو د مشکلې نه د ښئ کار اغستې شي او که د هغهٔ رضا نه وي نو ښهٔ هم بیا خزله وي۔ چا څهٔ ښهٔ وئیلي دي ؎

اِنَّ الْمَقَادِیْرَ اِذَا سَاعَدَتْ اَلْحَقَتِ الْعَاجِزَ بِالْقَادِرِ

ربعیٰ د الله تقدیر چه کله د چا مدد ګار شي نو د یو عاجز او بې کاره نه د قادر او توانا کار اخلي)

په دے آیت کښے چرته کوم ځائے دا ذکر او فرمایه چه که مسلمانان مرتد شی نو پرواه نیشته الله تعالیٰ به بل جماعت راپورته کړی- هلته ئے د دے پاکباز جماعت څهٔ صفتونه هم بیان کړل- چه په دے جماعت کښے به دا سے صفتونه وی- نو د دین په خدمت کونکو کښے دا صفتونه پکار دی ځکه چه د آیت نه معلومه شوه چه د دے صفتونو او عادتونو لرونکی خلق د الله تعالیٰ په نزد مقبول دی او د هغهٔ محبوب دی-

د دوی اوّلنے صفت قرآن کریم دا بیان فرمائیلے دے چه الله تعالیٰ به د دوی سره محبّت ساتی او دوی به د الله تعالیٰ سره محبت ساتی- د دے صفّت دوه جُز ونه دی یو د دے خلقو محبّت د الله تعالیٰ سره- دا خو په څهٔ نه څهٔ درجه کښے د انسان په اختیار کښے کنټرول شی- چه د یو انسان که د بل سره طبعی محبّت نه وی نو کم نه کم عقلی محبّت خو د خپل قصد او ارادے تابع ساتلے شی- او طبعی محبّت هم اګرچه په اختیار کښے نه دے مګر د دے .... اسباب اختیاری دی مثلاً د الله تعالیٰ لوئی او جلال او کامل قدرت او په انسان د دهٔ اختیار او د انعاماتو فکر او تصوّر به لازمی طور سره د انسان په زړهٔ کښے د الله تعالیٰ محبّت په طبعی طور سره هم پیدا کوی-

لیکن دویم جُز یعنی د الله تعالیٰ محبّت به د دے خلقو سره وی په دے کښے خو په ظاهره دا معلومیږی چه د انسان د اختیار او عمل هیڅ دخل به دے کښے نیشته- او کوم شے چه زمونږ د قدرت او اختیار نه باهر دے د دے د آورولو او خودلو هم په ظاهره څه حاصل نه راوځی-

لیکن د قرآن شریف په نورو آیاتو نو چه غور او شی نو معلومه به شی چه د محبت د دے جُز اسباب هم د انسان په اختیار کښے دی که دے دغه اسباب استعمال کړی نو د الله تعالیٰ محبّت به د دهٔ سره لازمی وی او دغه اسباب د قرآن کریم په دے آیت: قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ، کښے ذکر شوی دی- یعنی اے رسول صلے الله علیه وسلم تاسو دے خلقو ته اووایئ چه که ستاسو د الله تعالیٰ سره محبّت وی، نو

څخه تابعداري کوي د دې نتيجه به داوي چه الله تعالیٰ به ستاسو سره محبت شروع کړي -

د دې آيت نه معلومه شوه چه کوم سړې داغواړي چه الله تعالیٰ د ده سره محبت اوکړي نو ده لره پکار دي چه د نبي کريم صلی الله عليه وسلم سنّت د ځان ډونه معمول جوړ کړي او د ژوند په هر شعبه کښې او هر کار کښې د سُنّتو تابعداري په ځان لازمه کړي - او د دې آيت نه داهم معلومه شوه، چه د کفر او ارتداد مقابله هغه جماعت کولې شي چه د سنتو تابعداري وي - نه د شريعت په حکمونو کښې کوتاهي کوي او نه د خپل طرف نه د سُنّتو نه خلاف څه کارونه او بدعتونه جاري کوي -

دويم صفت د دې جماعت داخو د لې شوې دې چه: أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِينَ: په دې کښې لفظ د: أَذِلَّةٍ: د قاموس د وضاحت په بنا سره د: ذَلِيلٌ: يا: ذَلُولٌ: دواړو جمع کيدې شي - د ذليل معنیٰ د عربۍ ژبې په بنا سره هغه ده کومه چه په اُردو وغيره کښې معلومه ده او د ذلول: معنیٰ ده نرم، او په آسانه قابو کيدونکې - د جمهورو مفسرينو په نزد دلته دا معنیٰ مراد ده - يعنی دا خلق به د مسلمانانو په وړاندې نرم وي، که په څه معامله کښې اختلاف هم وي خو په آسانئ به په قابو کښې راځي جګړه به پاتې کوي - اګر چه دوي به خپله جګړه کښې حق بجانب هم وي لکه چه په صحيح حديث کښې نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي -: أَنَا زَعِيمٌ بِبَيْتٍ فِي رَبَضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَكَ الْمِرَاءَ وَهُوَ مُحِقٌّ: "يعنی زه هغه سړي لره د جنّت په مينځ کښې په کور ورکولو ذمواريم څوک چه په حق باندې وي او سره د دې نه جګړه پاتې کړي"

نو حاصل د دې لفظ دا شو چه دا خلق د مسلمانانو سره په خپلو حقونو او معاملو کښې څه جګړه نه کوي - دويم لفظ: أَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِينَ: راغلې دې - په دې کښې هم أَعِزَّةٍ: د عزيز جمع ده چه معنیٰ ئې غالب، قوي، او سخت دې، مراد دا دې چه دا خلق د الله او د هغه د دين د مخالفو په مقابله کښې سخت او قوي دي او دغه خلق په دوي قابو نه شي موندې -

او دَ دواړو وجملو دَ یو ځائے کولو نه حاصل دا را اُوځي چه دا به یو داسے قوم وی چه دَ دوی محبّت او دشمنی او دوستی او دوړانه دَ خپل ذات او ذاتی حقو نو او معاملو په ځائے صرف دَ الله او دَ حقۀ دَ رسول او دَ حقۀ دَ دین په خاطر وی په دے وجه دَ دوی دَ جنګ رُخ دَ الله او رسول دَ فرمانبردارو طرف ته نه وی بلکه دَ دوی دَ دشمنانو او نافرمانو طرف ته وی۔ دا مضمون دے دَ سورتِ فتح دَ دے ایت: اَشِدَّآءُ عَلَى الْكُفَّارِ رُحَمَآءُ بَيْنَهُمْ: ۔

دَ اوّلنی صفت حاصل دَ حقوقو تکمیل دَه، او دَ دویم صفت حاصل دَ حقوق العبادُ او معاملو اعتدال دے۔ دریم صفت ئے دَ دے جماعت دا بیان کړو: چه: يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ: یعنی دا خلق دَ حق دین دَ خورَ دَلو اَوَ او چتولو دَ پاره جهاد کوی۔ دَ دے حاصل دا دے چه دَ کفر او ارتداد په مقابله کښے صرف معلوم قسم عبادتو نه کول او نرم او سخت کیدل کافی نه دی، بلکه دا هم ضروری ده چه دَ دین دَ قائم ساتلو جذبه هم وی دَ دے جذبے دَ پوره کولو ئے څلورم صفت دا اوخودو: وَلَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ: یعنی دَ دین دَ قائم ساتلو او دَ حق دَ کلمے دَ او چتولو په کوشش کښے دَ اخلق دَ څۀ ملامت کولو پرواه نه کوی۔

چه غور اوکړے شی نو معلومه به شی چه دَ یو تحریک چلولو په لاره کښے دوه قسمه څیز و نه حائل کیږی۔ یو دَ مخالف قوّت زور، دویم دَ خپلو لعن طعن او ملامت۔ او . تجربه سره معلومه شوے ده چه کوم خلق دَ تحریک چلولو دَ پاره ستدا وکړی او پورته شی۔ او په اکثر وحالاتو کښے دَ مخالف قوت نه خو نه مغلوب کیږی، دَ قید بند او زخم وینے هرڅۀ برداشت کوی لیکن دَ خپلو لعن طعن او بد و رَد و ویئلو نه دَ لویو لویو قصد لوړ نکو په قدمو نو کښے هم لغزش راځی۔ نو شاید په دے وجه الله تعالیٰ په دے ځائے کښے دَ دے اهمیّت زیاتولو په وجه په دے باندے اکتفاء اوکړه۔ چه دا خلق دَ چا دَ ملامت کولو پروا نه ساتی او خپل جهاد جاری ساتی۔

په اخر ایت کښے ئے دا هم اوخوده چه دا صفتونه او ښۀ خویونه خاص

د الله تعالیٰ انعام دے، هغه چرته چاله غواړي ورکوي ئے، انسان محض په خپل محنت او کوشش سره بغیر د الله د فضل نه دے له ده نه شي حاصلولے۔

د آیت د الفاظو د تشریح نه دا واضحه شوه چه که په مسلمانانو کښې څه خلق مُرتدّ شي نو دین اسلام ته هیڅ نقصان نه شي رسولے۔ بلکه د دے د حفاظت او مدد د پاره به الله جلّ شانهٗ د ډیر اعلیٰ اخلاقو او عملونو جماعت راپورته کړي۔

جمهور و مفسرینو فرمائیلي دي چه دا آیت په حقیقت کښې د راتلونکے فتنے پیشینګوئي او د دے په همت سره د مقابله کونکو او کامیابیدونکی جماعت د پاره زیرے دے۔ راتلونکے هغه فتنه د ارتداد ده چه د هغې زهر د نبوت د زمانے په بالکل اخري وخت کښې خوریدل شروع شوی ؤ۔ او بیا د نبي کریم صلے الله علیه وسلم د وفات نه پس خواره شو په ټوله جزیره د عرب کښې د دے طوفان راپورته شو۔ او دغه زیرے موندونکے د صحابه وُ هغه جماعت ؤ کوم چه د خلیفه اوّل حضرت ابوبکر صدیق اکبرؓ په ملګرتیا کښې د دے فتنے د ارتداد مقابله اوکړه۔

واقعات دا ؤ چه د ټولو نه اوّل مسیلمه کذّاب د نبي کریم صلے الله علیه وسلم سره د شریک نبوّت دعوه اوکړه او دومره زړه ورتیا ئے اوکړه چه د دوی قاصدانو ته ئے دا اُووے وایس ئے کړل چه که د تبلیغ او اصلاح په مصلحت سره دا دستور عام نه وے چه قاصدان او سفیران نه شي قتلولے، نو ما به تاسو قتل کړي وئ۔ مسیلمه په خپله دعوه کښې کذّاب (ډیر دروغژن) وه، بیا دوی ته د ده خلاف د جهاد موقع ملاؤ نه شوه تر دے چه وفات شو۔

دغه شان په یمن کښې د قبیلے مذحج سردار اسود عنسي د خپل نبوّت اعلان اوکړو۔ نبي کریم صلے الله علیه وسلم د خپل طرف نه د یمن مقرر کړی حاکم ته د ده سره د مقابلے کولو حکم ورکړو مګر په کومه شپه کښې چه ئے دے قتل کړو د دے په راتلونکے ورځ نبي کریم صلے الله علیه وسلم وفات شو۔ صحابه کرامو ته د دے خبر د ربیع الاوّل په اخر کښې راورسیدو

دغه شان واقعه په قبیله بنو اسد کښې راپیخه شوه، چه د دوی سردار طلحه بن خویلد پخپله د ځان د نبوت دعوه کوونکے شو۔
د دے درے واړو قبیلو د اجماعتونه خو د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د وفات په مرض کښې مرتد شوی وو۔ او د د وئی د وفات خبر اَورید و سره د دے مرتد کیدو دے فتنے د طوفان شکل اختیار کړو۔ د عرب اووه قبیلے په مختلفو ځایونو کښې د اسلام او د اسلامی حکومت نه واپس شو۔ او د دغه وخت خلیفه حضرت صدیق اکبر رض لرے د زکوٰة ورکولو نه انکار اوکړو۔
د سرورِ کائنات صلے الله علیه وسلم د وفات نه پس د ملک او ملت ذمواری د اولنی خلیفه حضرت صدیق اکبر رض په غاړه شوه۔ یو طرف ته په دے حضراتو دا غم ژنه عظیمه حادثه او بل طرف ته د فتنو او بغاوتونو سیلاب۔ حضرت عائشه صدیقه رض فرمائی چه د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د وفات نه پس چه کوم صدمه صحابه پلار حضرت صدیق اکبر رض باندِ پریوَته که دا چه یو مضبوط غر پریوتے وے نو ذرے ذرے شوے به وُه۔ مګر الله تعالی دوی له د صبر او ثابت قدمئ هغه اُوچت مقام ورکړے وُه چه د تولو اَفتونو او مصیبتونو ئے بشه په همت او ثابت قدمئ سره مقابله اُو کړه۔ او آخر دا چه کامیاب شو۔
دا ښکاره خبره ده چه د بغاوتونو مقابله په طاقت استعمالولو سره کوَلے شی لیکن حالات دومره نازک حدته رسیدلی وُو، چه صدیق اکبر رض د صحابه کرامو سره مشوره اوکړه، نو هیچا ورله دا رائے ورنه کړه چه په دے وخت کښې د د بغاوتونو په مقابله کښے سخت قدم پورته کړے شی، ځکه دا وه چه که په دے وخت کښې صحابه کرام رض په اندرونی جنګو کښے مشغول شی۔ نو بهرنی طاقتونه به په دے نوی اسلامی ملک حملے اوکړی لیکن الله تعالی د ځپل صدیق رض زړه د دے جهاد د پاره مضبوط کړو۔ او دوئی یو داسے بلیغه خطبه د صحابه کرامو په وړاندِ ورکړه چه د دے جهاد ته د دوی سینے هم پرانستے شوے۔ دا خطبه دوئی په نهایت عزم او ثابت قدمئ سره په دے الفاظو کښے اوفرمائیله:-

"کوم خلق چه د مسلمانید ونه پس د نبی کریم صلے الله علیه وسلم د ورکړو احکامو او اسلامی قانون نه انکار کوی، نو څما فرض دی چه زه د دوی خلاف جهاد اوکړم، که څما مقابلے ته ټول پیریان او بنی آدم او د دنیا د ونے کټے ټول جمع کړے شی، او هیڅوک څما ملګرے نه وی خو بیا به هم زه یو ائے پخپل ځان دا جهاد سرته رسوم"

او دا ئے اوفرمائیل په اس سور شو روان شو۔ دغه وخت صحابه کرامؓ راوړاندے شو او صدیق اکبرؓ ئے پخپل ځائے کینولو۔ په مختلفو محاذونو د مختلفو حضراتو د روانید و نقشه تیاره شوه۔

په دے وجه حضرت علی کرم الله وجهه، حسن بصریؒ، ضحاک، قتاده وغیره جمهور مفسرین فرمائی چه د ا آیت د حضرت ابوبکر صدیقؓ او د دهٔ د ملګرو په باره کښے راغلے دے هم دوئ د ټولو نه اول د دے قوم مصداق ثابت شو د کوم چه د الله د طرف نه د عمل میدان ته د راوستو په دے ذکر شوی آیات کښے ارشاد دے۔

مګر دا خبره د دے نفی نه کوی چه څوک بل جماعت دِهم د دے آیت شریف مصداق وی۔ په دے وجه کوم حضراتو چه د دے آیت مصداق آبو موسیٰ اشعریؓ یا نور صحابه کرام مقرر کړی دی هغه هم د دے نه مخالف نه ده بلکه صحیح دا ده چه دا ټول حضرات بلکه د قیامته پورے راتلونکی هغه مسلمانان چه د قرآن د هدایاتو مطابق د کفر او ارتداد مقابله کوی د دے آیت په مصداق کښے به داخل وی۔ په هرحال د صحابه کرامو یو جماعت د حضرت صدیق اکبرؓ د هدایت لاندِ د دے مرتدکید ونکو د فتنے په مقابله کښے راپورته شو۔ حضرت خالد بن ولید له ئے یو لوئے لښکر ورکړو د مسیلمه کذاب د مقابلے د پاره ئے یمامے ته روان کړو۔ هلته د مسیلمه کذاب جماعت یو بنه زیات طاقت نیولے وه۔ سخت جنګ اوشه او آخر مسیلمه کذاب د حضرت وحشی رضی الله عنه د لاسه مړ کړے شو او نوره ډله ئے ټوله توبګاره شوه بیا د مسلمانانو سره یوځائے شو۔

دغه شان د طلحه بن خويلد مقابلې ته هم حضرت خالد بن وليد تشريف يوړو هغه او تختيد وچرته با هر لاړه د او بيا ورله الله تعالیٰ خود بخود د اسلام دوباره توفيق ورکړه او مسلمان شو واپس راغے۔

د حضرت صديقؓ د خلافت په اولنۍ مياشت د ربيع الاول په آخر کښې د اسود عنسي د قتل او د هغه د قوم د فرمانبردارۍ کيدو خبر راورسيدو او دا خبر د ټولو نه اولنے د فتح خبر و. کوم چه صديق اکبرؓ ته په داسے حالاتو کښې را رسيدلے وه۔ دغه شان د نورو قبيلو کوم چه زکوٰة نه منع کړې وه د هغوی په مقابله کښې هم په هر محاذ باذن الله تعالیٰ صحابه کرامو له ښکاره فتح ورکړه۔

دغه شان د الله تعالیٰ دا ارشاد چه د دريم آيت په آخر کښې ذکر دے: فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ: يعنی د الله والو جماعت به غالب وی۔ د دے عملی تفسير دُنيا په سترګو سره اوليدو۔ او هر کله چه د تاريخی او واقعاتی رنګ په شکل کښې دا خبره په واضح طور سره ثابته ده چه د نبی کريم صلے الله عليه وسلم د وفات نه پس د عرب په قبيلو کښې د ارتداد فتنه ... ره شوه۔ او الله تعالیٰ چه د دے د مقابلے د پاره کوم قوم راپورته کړو هغه صديق اکبرؓ او د ده ملګری صحابه کرامؓ وو۔ نو د دے آيت نه دا هم ثابته شوه چه کوم صفتونه د دے جماعت الله تعالیٰ په قرآن کريم کښې بيان کړی دی۔ هغه ټول صديق اکبرؓ او د ده په ملګرو صحابه کرامؓ کښې موجود وو۔

اول دا چه الله تعالیٰ د دوی سره محبت کوی۔

دويم دا چه دوی د الله تعالیٰ سره محبت کوی۔

دريم دا چه دا ټول حضرات د مسلمانانو په معاملو کښې نهايت نرم دی او د کفارو په مقابله کښې تيز۔

څلورم دا چه د دوی جهاد ټهيک د الله په لاره کښې وه۔ چه په دے کښې دوی د چا د ملامت وغيره پرواه نه ده کړے۔

په آخر آيت کښې د دے حقيقت له واضح کړو چه دا ټول کمالی صفتونه او بيا د دوی په خپل وخت استعمال، بيا د دے په ذريعه په اسلامی مهم کښې

کامیابي، دا تحول شیز ونه په حسبي تدبیر، طاقت یا جماعت په بنیاد سره نه شي حاصلیدے بلکه دا محض د الله تعالیٰ فضل دے هغه چه ئے چاله غواړي ورکوي ورله دا نعمت۔

په تیرو څلورو دوایاتو نوکښې ئے مسلمانانو لره د کافرانو سره د ژور دے دوستئ ساتلو نه منع کړې وو۔ په پنځم ایت کښې ئے په مُثبت انداز کښې دا اوخوده چه د مسلمانانو ژور دوستي اوملګرتیا چه د چا سره کیدے شي هغه څوک دي؛ په دے کښې د ټولو نه اوّل د الله تعالیٰ او بیا د هغهٔ د رسول صلے الله علیه وسلم ذکر دے، چه په حقیقت کښې د مؤمن دوست اوملګرے هر وخت او په هر حال کښې الله تعالیٰ دے۔ او هم دے کیدے شي۔ او د الله تعالیٰ د تعلق نه سوا هر تعلق او دوستي فاني ده۔ او د نبي کریم صلے الله علیه وسلم سره تعلق هم په حقیقت کښې د الله تعالیٰ تعلق دے د دے نه جُدا نه دے په دریم نمبر کښې د مسلمانانو ملګري او مخلص دوستان هغه مسلمانان دي چه صرف په نوم سره مسلمانان نه دي۔ بلکه رشتوني مسلمانان دي۔ چه د هغوي درے صفتونه اوښیئے دا اوخود ے:

اَلَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ؛

اوّل دا چه دوي مونځ د پوره آدابو او شرطونو سره په پابندئ کوي دوېم دا چه د خپلو مالونو نه زکوٰة آدا کوي، دریم دا چه دغه خلق تواضع او عاجزي کوونکي دي۔ په خپلو نیکو باندې نازاو تکبر نه کوي۔

د دے ایت دریمه جمله: وَهُمْ رٰكِعُوْنَ؛ کښې د لفظ د رکوع ډیر مطلبونه کیدے شي۔ په دے وجه د تفسیر په اماما نو کښې بعضو فرمائیلي دي چه د رکوع نه مراد د لته اصطلاحي رکوع ده چه د مانځه یو رکن دے۔ او د يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ؛ نه پس د؛ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ؛ جملے راوړو دا مطلب دے چه د مسلمانانو مونځ د نورو فرقو د مانځه نه ممتاز کړے شي۔

ځکه چه مونځ خو یهود او نصارا هم کوي مګر په هغې کښې رکوع نه وي رکوع صرف د اسلامي مانځه یو امتیازي صفت دے (مظهري)

مګر جمهور مفسرین فرمائي چه د لفظ د رکوع نه اصطلاحي رکوع مراد نه ده،

بلکه دَ دے لغوی معنی مراد ده یعنی خکته کیدل، تواضع، عاجزی او کینمخوئی کول په تفسیر بحر محیط کښے ابوحیان او تفسیر کشاف کښے زمخشری دا معنی اختیار کړے ده۔ او په تفسیر مظهری او بیان القرآن وَ غیره کښے هم دے لره اغستے ده. نو معنی دَ دے جملے دا شوه چه دا خلق په خپلو نیکو عملونو باندِ ناز نه کوی بلکه تواضع او عاجزی دَ دوی خصلت دے۔

او په بعض روایتونو کښے دی چه دا جمله دَ حضرت علی کرم الله وجههٔ په باره کښے دَ یو خاص واقعے متعلق نازله شوے ده۔ هغه دا چه یوه ورځ حضرت علی مرتضیٰ په مانځه کښے مشغول وُه۔ کله چه دے رکوع ته لاړو۔ نو یو سوال کونکے راغے سوال ئے ترے اوکړو۔ دُه په دے حالت دَ رکوع کښے دَ خپلے یوے کوتے نه کوتئ او ویستله هغهٔ ته ئے غوزاره کړه۔ دَ غریب فقیر په حاجت پوره کولو کښے ئے دومره وخت تیرَ وَ نۀ هم نه خوښول چه دَ مونځ نه فارغ شی دَ هغهٔ ضرورت پوره کړی۔ دا په خیرات کښے وړاندِ کیدل دَالله تعالیٰ په نزد غوره راغله۔ او دَ دے جملے په ذریعه ئے دَ دهٔ عزت افزائی اوفرمائیله۔

دَ دے روایت په سند کښے دَ عالمانو او حدیث بیانونکو خبرے شتے۔ لیکن که روایت صحیح اوګڼلے شی نو حاصل به ئے دا وی۔ چه دَ مسلمانانو دَ جوړے دوستئ لائق دَ مانځه او زکوٰة پابند عام مسلمانان دی۔ او په دے کښے په خصوصیت سره حضرت علی کرم الله وجهه، دَ دے دوستئ زیات مستحق دے لکه چه په یو بل صحیح حدیث کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے :مَنْ کُنْتُ مَوْلَاهُ فَعَلِیٌّ مَوْلَاهُ ؛ (رواه احمد ازمظهری) "یعنی چه زهٔ دَ چا دوست یم نو علیؓ هم دَ هغهٔ دوست دے"

او په یو حدیث کښے دَ نبی کریم صلے الله علیه وسلم ارشاد دے: اَللّٰهُمَّ وَالِ مَنْ وَالَاهُ وَعَادِ مَنْ عَادَاهُ ؛ "یعنی یا الله ته محبوب کړه هغے سړی لره چه محبت ساتی دَ علیؓ سره او دشمن کړه هغه سړی لره چه دشمنی کوی دَ علیؓ مرتضیٰ سره"۔

حضرت علی کرم الله وجهه، لره په دے خاص شرافت سره غالبًا ځکه نمائخلے شوے دے چه نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته وړاندِ راتلونکے فتنه ښکاره شوې وه۔

چه څۀ خلق به دَ حضرت علی رضی الله عنه سره دُرانه او دُشمنی ساتی، او دَ دوی ؓ په مقابله کښې به دَ بغاوت جنډه اوچتوی۔ لکه چه دَ خوارجو په فتنه کښې دَ دے ظهور اوشو۔

په هرحال دَ ذکرشوی ایت نزول که دَ دے واقعے متعلق شوے وی خو الفاظ دَ ایت عام دی چه ټولو صحابه کراموا و ټولو مسلمانانو لره شامل دی دَحکم په بنا سره په کښے دَ یو کَس خصوصیت نیشتے۔ په دے وجه کله چه چا دَ حضرت باقر صاحبؒ نه تپوس اوکړو چه په دے ایت کښے دَ: اَلَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا: نه آیا حضرت علی کرم الله وجههٗ مراد دے؟ نو دوئ او فرمائیل چه هغه هم په مؤمنانو کښے دَ داخلید و په وجه سره دَ دے ایت مصداق دے۔

دَ دینه پس په دویم ایت کښے دَ دغے خلقو دَ فتح او نصرت او په دنیا باندے دَ غالب راتلو زیرے ورکړے شوے دے۔ کوم چه دَ ذکرشوو ایاتو نو په حکمونو عمل اوکړی دَ غیرمسلمو سره دَ جوړے دوستئ نه ځان اوساتی۔ او صرف الله تعالیٰ او دَ هغهٔ رسولؐ او ایماندارو لره خپل دوستان جوړ کړی۔ ارشاد فرمائی:۔

وَمَنۡ یَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ وَالَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا فَاِنَّ حِزۡبَ اللّٰهِ هُمُ الۡغٰلِبُوۡنَ ؛

په دے کښے ارشاد فرمائی چه په دے خدائی حکمونو عمل کوونکی مسلمانان دَ الله تعالیٰ ډلړده۔ او بیا دا خوشخبری اورَوی چه دَ الله تعالیٰ ډله به آخر کار غالبه وی۔

راتلونکو واقعاتو دَ دے تصدیق اوکړو چه هر سترګو خاوند اولیدل چه صحابه کرام رضوان الله تعالیٰ علیهم اجمعین په ټولو غالب راغلل۔ کوم طاقت چه دَ دوی سره ټکره او وهله ذرے ذرے شو، دَ اولنی خلیفه صدیق اکبرؓ په مقابله دَ ملک دَ ننه فتنے او بغاوتونه راپورته شو، نو الله تعالیٰ دے په ټولو غالب کړو۔ دَ حضرت فاروق اعظمؓ په مقابله دَ دُنیا ټول لوئے لوئے طاقتونه قیصر او کسرای راغلل نو الله تعالیٰ دَ هغوی نوم نښنه ورک کړل او بیا دَ دوی نه پس په خلفاؤ او مسلمانانو کښے چه ترڅو پورے دَ دے احکامو پابندی وه چه مسلمانانو دَ غیرو سره خلط ملط او جوړه دوستی او تعلقات نه جوړ وَل،

نو دوی همیشه کامیاب او فتح مند دي.

په شپږم ایت کښې ئې بیا په طور د تاکید سره دا حکم دوباره فرمائیلې دے کوم چه د رکوع په شروع کښې بیان شوے وه چه مطلب ئې دا دے، اے ایماندارو تاسو هغه خلق چې ملګري یا جوړ دوستان مه جوړ وئ کوم چه ستاسو په دین پورے ټوقې او لوبې کوي. او دا دوه ډلې دي یو اهلِ کتاب دویم عام کافران او مشرکان.

امام ابوحیان په بحر محیط کښې فرمائي چه په لفظ د کفارو کښې خو اهلِ کتاب هم داخل دي، بیا ئې په خصوصیت سره د اهلِ کتاب وجه اذکر دلته غالبًا ځکه او فرمایه، چه اهلِ کتاب اګرچه په ظاهر کښې په نسبت د نورو کفارو اسلام ته نزدې دي، مګر په تجربه سره معلومه شوه چه په دوی کښې ډیر ولږو خلقو اسلام قبول کړو، دغه وجه ده چه د زمانې د رسالت او د دوستو ایمان راوړونکو خلقو تعداد او شمار ته چه او کتې شي نو په دے کښې زیات شمار د عامو کفارو دے. د اهلِ کتابو نه د مسلمانیدونکو شمار ډیر کم دے.

او وجه د دے دا ده چه اهلِ کتاب په دے نازیږي چه موږ د دینِ اِلٰهي او اسماني کتاب پابند یو، دے فخر او ناز دوی لره د حق قبلولو نه بیرته اوساتل، او په مسلمانانو پورے د خندا او ټوقو معامله هم زیاده تر دوی اوکړه. د دے شرارتونو یوه واقعه هغه ده چه په اووم ایت کښې دا سے بیان شوے ده: وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّ لَعِبًا؛" یعنی کله چه مسلمانان د مانځه د پاره اذان کوي نو دا خلق په دوی پورے ټوقې کوي. دا واقعه په حواله د ابنِ ابي حاتم په تفسیر مظهري کښې دا سے نقل کړې ده: چه په مدینه طیبه کښې یو نصراني وه هغه چه به کله په اذان کښې د ؛اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ؛ لفظ اُوریدو نو دا به ئې وئې؛ اَحْرَقَ اللّٰهُ الْكَاذِبَ؛ یعني دروغژن لره دِ الله او سیزي.

اخر کار د دهٔ دا کلمه د ده د ټول خاندان د سوزولو او خاورے کولو سبب جوړه شوه. واقعه دا سے او شوه چه د شپے کله چه دے او د دهٔ کیده د دهٔ نوکر د څهٔ ضرورت د پاره اُور کورته راوړو، د دے نه یو بڅرے والوت په کپړه پریوت

او دَ توکولو دَ اوده کیدو نه پس هغه بَلْ شو او توکول په جمع او سُوا یوه شو۔

دَ دے ایت په اٰخر کښے فرمائی: ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ: یعنی دَ حق دین سره دَ مسخرو او توکولو وجه ده چه دا خلق بے عقله دی"

په تفسیر مظهری کښے قاضی ثناء الله پانی پتی فرمائی، چه الله تعالیٰ دوی ته بے عقله فرمائیلی دی حال دا دے چه دَ دُنیا په کاروبو کښے دَ دوی عقل او پوهه خو مشهور دی۔ دَ دے نه معلومه شوه چه دا سے کیدے شی چه یو انسان په یو قسم کاروبو کښے هوښیار او عقلمند او هوښیار وی مگر په بل قسم کښے یا دے دَ عقل نه کار نه اخلی یا دَ دهٔ عقل دغے طرف ته نه ځی۔ په دے وجه په دے کښے بے وقوف او بے عقل ثابتیږی۔ قرآن کریم دا مضمون په بل ایت کښے داسے فرمائیلے دے:۔

يَعْلَمُوْنَ ظَاهِرًا مِّنَ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَهُمْ عَنِ الْاٰخِرَةِ هُمْ غٰفِلُوْنَ:
یُعنی دا خلق دَ دنیا دَ ژوند په سرسری کاروبو کښے ښهٔ پوهه دی لیکن دَ انجام او اٰخرت نه غافله دی"

---

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّآ اِلَّآ اَنْ اٰمَنَّا

ته او وایه اے اهلِ کتابو څهٔ ضد دے ستاسو زمونږ سره مگر دا چه مونږ ایمان

بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ

راوړے دے په الله او په هغے چه مونږ ته نازل شوی دی او په هغے چه مخکښے نازل شوی دی او دا چه تاسو

فٰسِقُوْنَ ﴿۵۹﴾ قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ

کښے ډیر فاسقان دی او وایه چه زهٔ تاسو ته او ښایم چه په دوی کښے دَ چا بده جزاء

مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَيْهِ

ده دَ الله په نزد۔ هم هغه په چا چه الله لعنت او غضب کړے دے

وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِيرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوتَ ۚ

او په دوی کښې ئې بعض شادوګان کړه او بعضو له خنزیران او چا چه بندګي او کړه د شیطا ن -

أُولَٰئِكَ شَرٌّ مَكَانًا وَأَضَلُّ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيلِ ﴿٦٠﴾

دغه خلق به تر دی په درجه کښې او ډیر غلط شوی دی د نیغې لا رے نه -

وَإِذَا جَاءُوكُمْ قَالُوا آمَنَّا وَقَدْ دَخَلُوا بِالْكُفْرِ

او کله چه تا سو له راشي نو وائي چه موږ ایمان راوړے دے او حال دا دے چه کافر راغلی دی

وَهُمْ قَدْ خَرَجُوا بِهِ ۚ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوا

او کافران لاړه - او الله ته ښه معلوم دی هغه چه دوی

يَكْتُمُونَ ﴿٦١﴾

پټ کړی وو -

# لنډ تفسیر

ته او وایه چه اے اهل کتابو تاسو په موږ کښې څۀ عیب موندئ په غیر د
دے نه چه موږ ایمان راوړے دے په الله او د هغۀ په کتاب چه موږ ته
رالیږلے شوے دے (یعنی قرآن) او په هغۀ (کتاب هم) کوم چه د (موږ نه)
مخکښې رالیږلے شوی دی (یعنی ستاسو کتاب تورات او انجیل) سره د دے
چه ستاسو کښې اکثر خلق د ایمان نه خارج دی (چه نه په قرآن د دوی ایمان
دے چه پخپله ئې دوی هم اقرار کوی او نه په تورات او انجیل ئې ایمان دے
ځکه چه که په دوی ئې ایمان وے نو په دغو کښې خپه نبی کریم صلی الله علیه
وسلم او قرآن د ایمان راوړو هدایت موجود دے نو په دے به ئې
هم خامخا ایمان وو - د قرآن نه انکار به دے ګواه دے چه په تورات او

انجیل هم دَ دوی ایمان نیشتے - دا حال خو ستاسو خلقو شو - او مونږ دَ دے په
خلاف په ټولو کتابونو ایمان لرو، نو عیب په مونږ کښې نه دے بلکه په تاسو
کښې دے غور (اُوکړئ) او تاسو دوی ته او وایئ چه (که په دے دَ پاسه بیا هم
تاسو زمونږ طریقه بده ګنړئ نو راشئ) آیا څهٔ (په ښهٔ او بدو کښې دَ موازنې
کولو دَ پاره) تاسو ته یو داسے طریقه او نه ښایم چه (زمونږ) دَ دے (طریقے) نه
هم (کومه چه تاسو بده ګنړئ) دَ خدائے په نزد په سزا ملاویدو کښې زیاته
ناکاره وی دَ غه دَ هغو خلقو طریقه ده کوم لره چه (دَ دے طریقے په وجه)
الله تعالیٰ دَ خپل رحمت نه لرے کړی وی او په دوی ئے غضب کړے وی او دَ
دوی نه ئے شادوګان او خنزیران جوړ کړی وی او دوی دَ شیطان عبادت
کړے وی (اوس اوګورئ چه په دوی کښې کومه طریقه ناکاره ده، آیا هغه
طریقه پکومه کښې چه دَ غیر الله عبادت او په هغهٔ دا وُبال پریوتے وی - یا
هغه طریقه کومه چه سراسر توحید او دَ پیغمبرانو دَ نبوّت تصدیق وی
یقیناً دَ موازنې نتیجه دا ده چه) داسے خلق (دَ چا طریقه چه اوس ذکر کړے
شوه په اٰخرت کښې) دَ مکان په اعتبار سره هم (کوم چه به دوی ته دَ سزا
په طور سره ملاویګی) ډیر ناکاره دی (ځکه چه دا مکان دوزخ دے) او
(په دنیا کښې) دَ نیغے لارے نه هم ډیر لرے دی (اشاره دا ده چه تاسو
خلق په مونږ پورے خاندئ او حال دا دے چه دَ خندا قابل ستاسو
طریقه ده، ځکه چه دا ټول خصلتونه په تاسو کښے موندے شی چه یهودو
دَ سخی عبادت اوکړو، او نصاراؤ دَ حضرت مسیحؑ نه خدائے جوړ کړو. بیا
ئے خپلو عالمانو او شیخانو ته دَ خدائیئ اختیارات اوسپارل - په دے وجه
یهودو چه کله دَ خالی دَ ورځے دَ احکامو نه خلاف وَرزی اوکړه نو دَ الله
عذاب راغے او دَ دوی نه ئے شادوګان جوړ کړهٔ - او دَ نصاراؤ په درخواست
باندِ دَ آسمان نه مائدهٔ نازیلیدل شروع شو نو دوی بیا هم ناشکری
اوکړه نو دَ دوی نه شادوګان او خنزیران جوړ شو - وړاندِ دَ دوی دَ
یو خاص جماعت ذکر دے چه منافقان وُو چه دَ مسلمانانو په وړاندِ
به ئے دَ اسلام اظهار کولو او په زړهٔ کښې یهودیان وُو) او کله چه دا

(منا فقان) خلق ستاسو خواته راځي نو وائي چه مونږ ایمان راوړے دے حال دا دے چه دوی د کفر سره (د مسلمانانو مجلس ته) راغلي وو او د کفر سره واپس شو، او الله تعالیٰ ښه پیژني هغې لره چه دوی ئے (رپټول) زړه کښې پټوی

(په دے وجه که دوی نفاق د الله تعالیٰ په وړاندې کار نه شي کولے، او د کفر دا بد ترینه سزا به مومی)۔

# معلومات او مسئلے

په: اَكْثَرُكُمْ فٰسِقُوْنَ: کښې الله تعالیٰ یهودو او نصاراؤ ته په خطاب کښې د ټولو په ځائے اکثرو لره د ایمان نه خارج فرمائیلي دی۔ د دے وجه دا ده چه په دوی کښې څه خلق دا سے هم وو چه په هرحال کښې مؤمنان پاتے شوی دی۔ ترڅو پورے چه د نبي کریم صلے الله علیه وسلم بعثت نه وو شوے دوی د تورات او انجیل د احکامو تابع وو او په دوی باندې ئے ایمان وو۔ هرکله چه نبي کریم صلے الله علیه وسلم مبعوث شو او قرآن نازل شو نو په دوی ئے هم ایمان راوړو او خپل عمل ئے د قرآن تابع کړو۔

په تبلیغ او دعوت کښې د مخاطب لحاظ دلته په: قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ: کښې چه کوم حال د یومثال په انداز کښې د دا سے خلقو بیان کړے دے په کومو چه د الله لعنت او غضب دے۔ د دے مصداق به حقیقتاً کښې هم دغه مخاطب وو۔ د دے ځائے وو چه په دوی ئے دا الزام لګولے وے چه تاسو دا سے یئ۔ لیکن قرآن کریم د بیان طرز بدل کړو، د یو مثال په صورت کښې ئے بیان اوکړو۔ چه په دے کښې ئے د پیغمبرانو د دعوت یو خاصه طریقه اوخودله۔ چه د بیان عنوان دا سے اختیار ول په کار دی چه مخاطب پرے غصه کیږی نه۔

---

وَتَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ يُسَارِعُوْنَ فِي الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

او ته به اووینې ډیرو لره د دوی نه چه منډے وهي په ګناه کښې او ظلم باندې

وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۶۲﴾

او په حرامو خوړو باندې - ډیر نا کاره کار دے کوم چه دوی کوی -

لَوْلَا يَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ

ولے نه منع کوی ګرځه دوی شیخان او عالمان د ګناه د خبرے

الْاِثْمَ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿۶۳﴾

د ویلو او د حرامو خوړو نه - ډیر بد عمل دے کوم چه دوی کوی -

# لنډ تفسیر

او تاسو به دوی (یهودیانو) کښے ډیر خلق داسے وینئ چه منډے وهی په ګناه (یعنی دروغو) او ظلم او حرام (مال) خوړلو باندې (رغور زیکی واقعی دا کار نا کاره دے (دا خو د عوامو حال دے وړاندې د خواصو حال دا دے چه) دوی لره شیخان او عالمان د ګناه د خبرے ویلو نه (سره د دے چه علم او مسئله او اطلاع د واقعے ورته شته) ولے نه منع کوی، واقعی د دوی دا عادت نا کاره دے -

# معلومات او مسئلے

**د یهودو د اخلاقو تباه حالی**

په ذکر شوو ایاتونو کښے په اوّل ایت کښے اکثر د یهودو د غور زیدلو اخلاقو او د عمل د بربادئ ذکر دے - چه آوریدونکی ترے نصیحت واخلی او د دے کارونو او د دے د اسبابو نه ځان او ساتی -

اګر چه عام طور سره د یهودو دا حال وه - لیکن په دوی کښے څه ښه خلق هم وو - قرآن کریم د دوی د مستثنیٰ کولو د پاره لفظ د "کَثِیْرًا" استعمال کړو - او ظلم زیاتے او حرام خوری دواړه اګر چه په لفظ د "اِثْمٌ" یعنی ګناه

په معنیٰ کښے داخل دی- لیکن د دے دواړه قسمه ګناه تباه کاری او د دے په وجه سره د پوره امن او اطمینان بربادئ د ښکاره کولو د پاره ئے په خاص طور سره د دوی ذکر جدا اکړو (بحر محیط)

او په تفسیر روح المعانی وغیره کښے دی چه د دے خلقو متعلق په دے عنوان اختیار د ولو سره چه په منډه په ګناهونو ورغورزیګی قرآن کریم دے طرف ته اشاره اوفرمائیله چه دا خلق د دے بدو خصلتونو مجرمان دی او دوی د دے بدو خصلتونو سره دا سے عادت شوی دی چه په دګو نو کښے ئے داپیوست شوی دی چه بے د څۀ ارادے نه هم دا خلق دغے طرف ته ځی-

د دے نه معلومه شوه چه نیک عمل وی او که بد خو چه انسان ئے ډیر کوی نو رو رو دا د ده یو ملکه جوړه شی او عادت ئے شی- بیا د دے په کولو کښے ده ته څۀ مشقت او تکلیف نه وی- په بدو خصلتونو کښے یهودیان دے حد ته رسیدلی وُو- د دے له د ښکاره کولو د پاره ئے ارشاد او فرمایه: یُسَارِعُوْنَ فِی الْاِثْمِ: او دغه شان په ښو خصلتونو کښے د انبیاؤ او اولیاؤ حال دے- د دوی په باره کښے قرآن کریم د: یُسَارِعُوْنَ فِی الْخَیْرَاتِ: الفاظ استعمال کړی دی-

**د عملونو د اصلاح طریقه** د ټولونه زیات د عملونو اصلاح کوُنکی حضرات صوفیائے کرامؒ او اولیاء اللهؒ دی- د دے حضراتو د قرآن د دے ارشاداتو نه دا اهم اصُول را ویستلی دی چه څو مره بد یا ښۀ عملونه انسان کوی په اصل کښے د دے اصلی سرچشمه هغه پټ ملکات او اخلاق وی کوم چه د انسان خوئی او عادت جوړ شی- په دے وجه د بدو عملونو او جرمونو د بندولو د پاره د دے نظر په دغه پټو ملکو باندِ وی او د دغے اصلاح کوی یعنی د هیل باطن اصلاح کوی نو چه باطن صحیح شی نو ټول عملونه بیا پخپله برابریګی- مثلاً د یو سړی په زړه کښے د دُنیا د مال حرص زیات دے او د دے په وجه دے رشوت هم اخلی سود هم کوی او که موقع ملاویګی نو په غلا او ډاکه باندِ هم ناراسته نۀ کوی صوفیاء کرامؒ د دے جرمونو د جُدا جُدا علاج کولو په ځائے هغه نسخه

استعمالوی پکومی سره چه دا دے تولوجهونو بنیاد ختمیږی- او هغه ده دُنیا ناپائیداری او دا دے ټولے خوشحالئ په غم لږلےځان ته مخامخ کول -

دغه شان چه دچاپه زړهٔ کښے تکبر او غروری یا د ے دغُصّے نه مغلو به وی ، او نور خلق ورته سپک ښکاری - دَ دوستانو او ګاونډیانو سره په جنګ وی ، دا حضرات دَ آخرت فکر او دَ خدا ئے په مخکښے حاضریدل او جواب ورکول ځانته مخامخ کولو نسخه استعمالوی چه په دے سره دا کارونه خود بخود ختم شی -

لنډه دا چه دَ قرآن کریم دَ دے اِشارے نه معلومه شوه چه په انسان کښے څهٔ ملکے وی چه دغه دَ دهٔ خوئی خصلت او عادت جوړیګی - دا مَلکے چه که دَ خیر او نیکئ وی نو نیک عمل بخپله دَ ځانه کیږی - دغه شان که دا مَلکے دَ بدئ وی نو انسان دَ ځانه بد و عملونو طرفته منډے وهی - دَ خپلے مکمّلے اصلاح دَ پاره اوّل دَ دے مَلکو اصلاح ضروری ده -

**په عالمانو دَ عوامو دَ عملونو ذمواری**

په دویم آیت کښے ئے دَ یهود و شیخانو او عالمانو ته په دے خبره سخت خبردارے ورکړے دے چه دوی دا خلق دَ بد و عملونو نه وَلے نه منع کوی - په قرآن کریم کښے دلته دوه لفظونه استعمال شوی دی یو 'رَبَّانِيُّوْنَ' چه ترجمه ئے ده الله والا (یعنی خدائی) خلق چه زمونږ په عُرف کښے ورته شیخان پیران وائی او دویم لفظ دَ 'اَحْبَار' دے - دَ یهود و عالمانو ته احبار وئیلے شی - دَ دے نه معلومه شوه چه دَ امر بالمعروف او نهی عن المنکر (یعنی دَ نیکو حکم کول او بدو نه منع کول) اصل ذمواری په دے دوه طبقو باندِ ده یو شیخان او دویم عالمان - او بعض تفسیر لیکونکی فرمائی چه دَ 'رَبَّانِيُّوْن' نه مراد هغه عالمان دی کوم چه دَ حکومت دَ طرف نه مامور شوی دَ اقتدار خاوندان وی ، او دَ احبار نه مراد عام عالمان دی په دے صورت کښے دَ جرمونو نه دَ منع کولو ذمواری په حاکمانو او عالمانو دواړه وباندِ پریوځی - او په بعض نورو آیاتونو کښے دَ دے وضاحت هم راغلے دے -

دعالمانو او مشائخو دپاره خبرداری

په اخر ایت کښې فرمائي : لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ؛ يعنې ددې مشائخو او عالمانو دا سخت ناکاره عادت دې چه خپل منصبي فرض په نيکو حکم او دبد ونه منع نۀ کوي ، قوم هلاکت طرف ته تلونکے وينې او دوي ئې نه منع کوي۔

عالمان تفسير ليکونکې فرمائي چه په اول ايت کښې پکوم کښې چه دعوامو دغلطو کارونو ذکرو ده دهغې په اخر کښې خوئې ، لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ : او فرمائيل - او په دويم ايت کښې پکوم کښې چه دشيخانو او عالمانو په غلطئ باندې خبردارې ورکړے شوې دې ددې په اخر کښې ئې : لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ؛ او فرمائيل - وجه دا ده چه دعربي لغت په اعتبار سره لفظ د فعل خوهر کار له شامل دے خواه که په اراده سره وي او که په اراده سره نه وي۔ او لفظ دعمل صرف هغه کارته وئيلے شي چه په قصد او اراده سره اوشي - او د لفظ د صُنع او صنعت اطلاق په داسے کار باندې کيدے شي چه په قصد او اختيار سره هم وي او بار بار ئې په طور دعادت او مقصد برابر دوي اوکوي ئې - په دې وجه دعوامو دبد عملئ په نتيجه کښې خوئې صرف لفظ د عمل اختيار کړو - : لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ : او د خواصو شيخانو او عالمانو دغلط کارئ په نتيجه کښې ئې لفظ د صُنع اختيار کړو ؛ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ؛ په دې کښې دے طرف ته اشاره کيدے شي - چه دے عالمانو او شيخانو ته دا معلومه وه چه که موږ دوي ددے غلطو نه منع کړونو دوي منع کيږي او زموږ خبره مني او بيا هم دوي دغلطو د ندرانو په حرص کښې يا په دے وجه چه زموږنه به بد اعتقاده شي ددوي په رنړ ونو کښې دحق دحمايت کولو جذبه نه پيدا کيده نو ددوي دا غلط روش د دغ بدکارو دبدو عملونو نه هم زيات سخت دے -

چه ددے نه پوهه شو چه دکوم قوم خلق په جرمونو او ګناهونو کښې اخته وي - او دددوي عالمانو او شيخانو ته دا معلومه هم وي چه که موږ دوي منع کړو نو منع کيدے شي ، په داسے صورت کښې که دوي د څۀ حرص لالچ يا يرے په وجه سره دوي له دجرمونو او ګناهونو نه ئ

منع کوی، نو د دوی دا جرم د اصل مجرمانو د جرم نه هم زیات سخت دے. په دے وجه حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه فرمائی چه د علماؤ او شیخانو د پاره په ټول قرآن کښے د دے نه زیات سخت تنبیه (خبردارے) چرته نیشته - او د تفسیر امام ضحاک رحمه الله فرمائیلی دی چه ځما په نزد د علماؤ او شیخانو د پاره دا آیت د ټولو نه زیات خوفناک دے (ابن جریر و ابن کثیر)

وجه دا ده چه د دے آیت په رو سره د دوی جرم د ټولو غلو ځاکوانو او هر قسم بدکارو د جرم نه هم زیات سخت یږی (العیاذ بالله) مګر دا خبره ده یاده وی چه دا سخت والے او زور نه په دے صورت کښے ده کله چه د شیخانو او عالمانو دا یقین وی چه د دوی خبره منلے شی او اوریدے شی - او کوم ځائے چه په تجربه سره دا خبره معلومه وی چه څوک د دوی خبره نه آوری، بلکه دلته به آزار او رسوی، نو هلته دا حکم دے چه د دوی ذمواری او س ساقطیږی - لیکن اعلیٰ او غوره بیا هم دا ده چه که څوک منی او که نه منی خو دوی خپل فرض ادا کوی - او په دے کښے د چا د ملامتیه کولو یا آزار رسولو څهٔ فکر نه کوی - لکه چه یو څوا یا تو وړاندے الله تعالیٰ د مقبولو مجاهدینو په صفتو نو کښے تیر شوی دی: وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ؛ یعنی دا خلق د الله تعالیٰ په لاره کښے او په حق ښکاره کولو کښے د چا ملامت کونکی د ملامت کولو پرواه نه کوی.

لنډه دا چه کوم ځائے د خبرے آوریدو او منلو احتمال غالب وی هلته په شیخانو او عالمانو بلکه په هر یو مسلمان چا ته چه د دغے کار جرم او ګناه والے معلوم وی فرض دی چه د ګناه بندَ د لو او منع کولو د خپل طاقت په مطابق کوشش کوی، خواه په لاس ئے وی او که په ژبه سره یا د کم نه کم د خپل زړهٔ په نفرت او د چه کولو سره وی، او کوم ځائے چه غالب ګمان داوی چه د دهٔ خبره نه شی آوریدے یا به د دهٔ خلاف دشمنی جوړه شی، نو په دا سے حالت کښے منع کول او بندَ ول فرض نه دی مګر غوره او اعلیٰ په هر حال دی د نیکو د حکم کولو او د بدو نه د منع کولو متعلق دا تفصیلات د صحیح احادیثو نه مآخستی شوی دی. ښچپله نیک عمل کول او د بدو نه ځان ساتلو سره

نورو ته هم دَ نیکۍ طرف ته هدایت او دَ بدۍ نه دَ منع کولو فرض په عام مسلمانانو او خاص په علماؤ او شیخانو باندې اوغورځو. دَ اسلام په دنیا کښې دَ امن او اطمینان پیدا کولو یو داسې زرین اُصول جوړ کړی دی چه که په دې عمل شروع شي نو ټول قوم به چیرې په اسانۍ سره دَ ټولو بدو او جرمونو نه پاک شي۔

**دَ اُمت دَ اصلاح طریقه**

دَ اسلام په وړمبی دَور او په وروستو دَور کښې تر څو پورې چه په دې عمل کیده۔ دَ مسلمانانو ټول قوم دَ علم وعمل اخلاقو او کردار په اعتبار سره په ټوله دُنیا کښې اُوچت او غوره وو او دَ کله نه چه مسلمانانو دا فریضه پریخوده۔ او دَ جرمونو بندَول ئې صرف دَ حکومت او دَ هغهٔ دَ پولیسو فرض او کنټرول پخپله دَ دې نه بې غوره شو نو نتیجه ئې دا شوه چه نن هرځائې را پیښه ده چه مور و پلار او ټول خاندان دیندار او دَ شریعت پابند دی، لیکن اولاد او متعلقین ئې دَ دې نه برعکس دی۔ دَ دوی دَ نظر او فکر لار هم بدله ده او دَ عمل طریقې ئې هم جُدا دی۔ په دې وجه په قرآن کریم کښې او په احادیثو کښې ئې دَ ملت دَ اجتماعي اصلاح دَ پاره په امر بالمعروف او نهي عن المنکر (دَ نیکو حکم کول او دَ بدو نه منع کولو) باندې په خاص طور سره زور ورکړې دې۔ قرآن کریم دا کار دَ اُمتِ محمدیؐ په خصوصیاتو کښې شمار کړې دې او دَ دې خلاف ورزي کولو ته ئې سخت گناه او دَ عذاب واجیونکې وئیلې دې. په یو حدیث کښې دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چه کله په یو قوم کښې دَ گناه کار کولې شي او یو سړې په دې قوم کښې اوُسي او هغه گناه نهٔ منع کوي نو نزدې ده چه الله تعالیٰ په دې ټولو خلقو باندې عذاب راولیږي (بحر محیط)۔

**په گناهونو باندې دَ نفرت په اظهار نه کولو دَ عذاب وعده**

مالک بن دینار فرمائي چه یوځائې الله تعالیٰ خپلو فرشتو ته حکم اوکړو چه فلانے کلے تباه کړئ، فرښتو عرض اوکړو چه په دې کلي کښې خو ستا فلانے عبادت گذار بنده هم دې حکم وشو چه ده ته هم دَ عذاب مزه او څکوئ ځکه چه دې ځما نا فرماني

اوګنا هونه وینی او غصه قدرے ورلره هم نه ورځی، او دده مخ په غصه سره چې ته نه دے ترېو شوے۔

په حضرت یوشع بن نون علیه السلام باندې الله تعالیٰ وحی اولیږله، چې ستا د قوم یو لاک خلق به په عذاب سره هلاک شی چې څلوېښت زره به ښکښې نیکان وی او شپیته زره بد عمله، حضرت یوشع علیه السلام عرض اوکړو چې رب العلمین د بد عملو د هلاکولو وجه خو ظاهره ده لیکن نیکان خلق د ولے هلاکولے شی؟ نو ارشاد اوشو چې دے نیکو خلقو هم د دے بد کردارو خلقو سره دوستانه تعلقات وو۔ د دوی سره به خوراک سکاک او ګپ شپ کښے شریک وو، څما نافرمانئ اوګنا هونه کول به ئے لیدل او چرته ئے هم په مخو نو د نا خوښئ اثر نه دے ښکاره شوے (دا ټول روایتونه د بحر محیط نه نقل شوی دی)۔

---

وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ ؕ غُلَّتْ اَيْدِيْهِمْ وَ

او وائی یهود د الله لاسونه بند شو - د د وی لاسونه دې بند شی او

لُعِنُوْا بِمَا قَالُوْا ۘ بَلْ يَدٰهُ مَبْسُوْطَتٰنِ ۙ يُنْفِقُ كَيْفَ

لعنت دې په دوی په دې وینا - بلکه د هغهٔ دواړه لاسونه خو کلاؤ دی خرچ کوی څنګه چې

يَشَآءُ ؕ وَلَيَزِيْدَنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ مَّآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ

غواړی - او په دوی کښے ډیرو لره زیاتیګی په دے کلام سره کوم چې پتا نازل شو ستا

رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَّكُفْرًا ؕ وَاَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ

د رب د طرف نه شرارت او انکار - او مونږ غورزولے ده په دوی کښے دشمنی او

وَالْبَغْضَآءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ؕ كُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا

بغض تر قیامت د ورځے پورے - کله چې اور بل کړی

لِلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ ۙ وَيَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا ؕ

د پاره د جنګ الله مړ کوي دے لره او منډے وهي په ملک کښې د پاره د فساد -

وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِيْنَ ﴿٦٤﴾ وَلَوْ اَنَّ اَهْلَ الْكِتٰبِ

او الله نه خوښوي فساد کوونکي - او که اهلِ کتاب ایمان

اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاَدْخَلْنٰهُمْ

راوړے او پرهیز ګولے نو مونږ به لرے کړے وے د دوی نه بدئي د دوی او داخل کړي

جَنّٰتِ النَّعِيْمِ ﴿٦٥﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ وَ

به وُو مونږه دوی باغونو د نعمت ته - او که دوی قائم ساتلے تورات لره او

الْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِمْ مِّنْ رَّبِّهِمْ لَاَكَلُوْا مِنْ

انجیل لره او هغې لره چه نازل شو په دوی د دوی د رب د طرف نه نو خوړل به ئے

فَوْقِهِمْ وَمِنْ تَحْتِ اَرْجُلِهِمْ ؕ مِنْهُمْ اُمَّةٌ مُّقْتَصِدَةٌ ؕ

د خپل د پاسه نه او د خپلو خپو د لاندې نه - څۀ خلق دي په دوی کښې په نیغه لار -

ع
٩
١٠
١٣
وَكَثِيْرٌ مِّنْهُمْ سَآءَ مَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٦٦﴾ يٰاَيُّهَا الرَّسُوْلُ

او ډیر په دوی کښې بد کار کوي - اے رسوله -

بَلِّغْ مَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ مِنْ رَّبِّكَ ؕ وَاِنْ لَّمْ تَفْعَلْ فَمَا

د رسوه څۀ چه پتا بانې نازل شو د رب ستا نه - او که دا سے دِ او نه کړل نو تا هیڅ

بَلَّغْتَ رِسَالَتَهٗ ؕ وَاللّٰهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ؕ

او نه رسا وه د هغه پیغام - او الله به ساتي تا لره د خلقو نه -

إِنَّ اللّٰهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٦٧﴾

بے شکه الله لار نه بنائی قوم د کافرانو ته -

**د آیاتونو تړون**

په تیرو آیاتونو کښې د یهودو د بعض حالاتو ذکر وه وړاندې په دے آیاتونو کښې نور هم بعض خاص حالات بیان شوی دی - چه قصه داسے اوشوه چه نباش بن قیس او فنحاص رئیس د قینقاع یهودو د الله تعالیٰ په جناب کښې بے باکه الفاظ د بخل وغیره اووے چه بیان ئے وړاندې راځی، په دے باندې دا تلو منکے آیت نازل شو - دا رنګ په لباب کښې دی په روایت د طبرانی د ابن عباس رض نه او په روایت د ابی الشیخ د ده نه -

# لنډ تفسیر

او یهودو اووے چه د الله تعالیٰ لاس بند شوی دے (یعنی نعوذ بالله بخل ئے شروع کړے دے، په حقیقت کښې) د دوی لاس بند دی (یعنی په واقع کښې بخیله د بخل په عیب کښې اخته دی او عیب په خدائے ور اړوی) او د خپلے دے وینا په وجه دوی د (الله) رحمت نه لرے کړے شو (چه د دے اثر په دنیا کښې ذلت او قید او قتل وغیره شو، او په آخرت کښې د دوزخ عذاب او داسے خو بالکل نه ده چه په الله کښې به د دے احتمال هم وی) بلکه د هغهٔ خو دواړه لاسونه کلاؤ دی (یعنی ډیر سخی او کریم دے لیکن حکیم هم دے په دے وجه) څنګه چه غواړی خرچ کوی (پس په یهودو چه کومه تنګی راغلے ده د دے وجه حکمت دے چه مقصود ترے د دوی ته د کفر وبال څکول دی نه دا چه وجه ئے بخل دے) او (د یهودو د کفر او سرکشئ دا حالت دے چه د دوی دا توفیق نه شی کیدے چه مثلاً د خپلے وینا باطل والے ئے په دلیل سره واؤریده و نو اوس به د دینه توبه او باسی داسے نه ده بلکه) کوم مضمون نے چه تا ته ستا د پروردګار د طرف نه رالیګلے شی دغه په دوی کښې د ډیرو د سرکشئ او د کفر د ترقئ سبب جوړیګی (د داسے چه دوی د دے نه هم انکار کوی

نو څۀ وېلا نازل نه دی نو هغه کفر او سرکشي وه بیا نوره زیاته شوه) او (ما د دوی د کفر په وجه چه په دوی کوم لعنت یعني د رحمت نه لرې والې پرېوتې دې د دې دنیا د نبنو نه یو ه داده چه) مونږ د دوی په مینځ کښې (د دین په باره کښې) تر قیامته پورې دشمني او بغض واچولو (نو په دوی کښې مختلفې فرقې دي او هره فرقه د بلې دشمنه ده نو د خپل مینځ د دشمنۍ او بغض په وجه سره) کله چه (د مسلمانانو سره) د جنګ اور بلول غواړي (یعني د جنګ اراده کوي) نو الله تعالیٰ دغه لره مړ کوي (یعني د جنګ اور وجنې یا مرعوب شي یا او جنګیږي او مغلوب شي یا د یو بل سره د اختلاف په وجه سره د اتفاق نوبت نه راځي) او (کله چه د جنګ نه پاتې شي نو خپله دشمني په بله طریقه سره اوباسي چه) په ملک کښې (په پټه) فساد کوي ګرځي (لکه نوي مسلمانان غولول، چغل خوري، او د تورات تحریفا شوي مضامین عوامو ته اوروول او د اسلام نه ئې منع کول) او الله تعالیٰ فساد کوونکو لره دوستان نه ګڼړي (یعني غضب شوي ئې ساتي په دې وجه د دې فساد به دوی ته چیره سزا ملاوېږي خواه په دنیا کښې هم وي او په اخرت کښې خو ضرور ده) او که دا اهل کتاب (یهود نصارا) چه د کوم حقو کار و نو نه منکر دي لکه د رسالت محمدي او حق والي د قرآن نه په دې تهولو) ایمان راوړې او (د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په واسطه چه د کومو کارونو کفر او ګناه والې خود لې شوې دې د دې تهولو نه) تقویٰ (یعني پرهیز) اختیار کړلې نو مونږ به خامخا د دوی تهول (تیر شوي) بد عملونه (کفر او شرک او ګناهونه چه په دې کښې تهولې خبرې او حالات راغلل) معاف کړي وې او خامخا به مونږ دوی د آرام باغونو کښې (یعني جنت کښې) داخل کړي وې (نو دا خو د اخرت برکتونه شو) او که دې خلقو (دا ذکر شوې ایمان او تقویٰ اختیار کړلې چه په نورو لفظونو کښې ورته دا سې وئیلې شي چه) د تورات او انجیل او کوم کتاب چه د دوی د رب د طرف نه راوس (دوی ته (په واسطه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم) لیګلې شوې دې (یعني قرآن) د دې ئې پوره پابندي کړلې (یعني په دې کښې چه ئې د کوموکارونو د کولو لیکلي دي په تهولو ئې پوره عمل کړلې، په دې کښې د رسالت تصدیق هم راغې

او دا دے نه تحریف شوی او منسوخ شوی احکام اُو تل ځکه چه دا دے ټولو کتابونو مجموعه په دے عمل کول نه بنائی بلکه منع ترے فرمائی) نو دے خلقو به (په دے وجه چه) د بره نه (یعنی د اسمان نه به اُوبه وریدے) او د لاندې نه (یعنی د زمکے نه به پیداوارکیده) بنځه په فراغتا سره خوړه (استعمالوله، دا د ایمان د دُنیوی برکتونو ذکر شو، لیکن دوی په کفر پورے اُونختل په دے وجه په تنګسا سره اونیوے شو، چه په دے سره بعضو د الله تعالی په شان کښے د بُخل نسبت اوکړه بے باکئے اوکړه، لیکن بیا هم ټول یهود او نصارا برابر نه دی) په دوی کښے یو جماعت په نیغه لار چلید ونکے (هم) دے (لکه په یهودو کښے حضرت عبد الله بن سلام او د ده ملګری، او په نصاراؤ کښے نجاشی او د ده ملګری لیکن داسے ډیر لږ دی) او (باقی) ډیاتے په دوی کښے داسے دی چه د دوی کردار ډیر ناکاره دے (ځکه چه د کفر او عناد نه به زیات ناکاره څهٔ کردار وی) اے رسول (صلے الله علیه وسلم) څهٔ چه ستا د رب د طرف نه پتا نازل شوی دی تا سو (خلقو ته) ټول اورسوی او که (بفرض محال) تاسو داسے اونه کړئ نو (داسے به ګنړلے شی لکه چه) تاسو د الله تعالی پیغام نه وی رسولے (ځکه چه دا ټو مجموعه فرض دی نو لکه څنګه چه د ټولو په پټولو سره دا فرض فوت کیږی دغه شان د بعضو په پټولو سره هم دغه فرض فوت کیږی) او (د تبلیغ په باره کښے د کفارو څیځ یره مه کوئ ځکه چه) الله تعالی تاسو لره د خلقو نه (یعنی د دے نه چه ستا سو مقابله اوکړی قتل او هلاک مو کړی) محفوظ ساتی (او) یقیناً الله تعالی کافر خلقو ته (ستا سو د قتل او هلاکولو د پاره په دے شان سره د دا رسیدو) لار نه ښائی۔

## معلومات او مسئلے

**د یهودو د یوے ګستاخئ جواب**

د قَالَتِ الْيَهُودُ : په دے ایت کښے د یهودو د یو سنګین جرم او یو بد ترینے کلمے ذکر شوے دے چه دغه کم بختو داسے اُووے چه (معاذ الله) الله تعالی تنګ لاس شو۔

واقعه دا ده چه الله تعالیٰ د مدینې یهودو ولره ډیر مال او دولت فراخئ والاجوړ کړی وو مګر کله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته تشریف راوړو او د حضور د دعوت دوی ته اورسیدو، نو دې ظالمانو د خپلې قومی سردارئ او د خپلو جاهلی رسمونو په وجه د حاصلیدونکو نذرانو په خاطر د دې حق دعوت نه مخ واړولو او د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مخالفت ئې اوکړو نو د دې په سزا کښې الله تعالیٰ په دوی باندې دنیا هم تنګه کړه او دوی تنګدست شو نو په دې باندې د دې نالائقو د خولو نه داسې کلمات وتل شروع شو چه (معاذ الله) د خدائ په خزانو کښې کمې راغلې، یا الله تعالیٰ بخل اختیار کړو۔ د دې په جواب کښې ئې په دې آیت کښې ارشاد اوفرمایه چه لاسونه خو د دې ویوتکو بند دی او په دوی لعنت دے چه اثرئې په آخرت کښې عذاب او په دنیا کښې د ذلت رسوائی په صورت کښې به ښکاره شی۔ د الله تعالیٰ لاس خو همیشه د پاره پرانستی دی د ده سخا او کرم همیشه دی او همیشه به وی، مګر لکه څنګه چه هغه غنی او فراخئ والا دے دغه شان حکیم هم دے نو په حکمت سره د دے مطابق خرچ فرمائی چاله چه مناسب ګنړی فراخی ورکوی او په چا چه مناسب ګنړی تنګی او تنګدستی پرې راولی۔

بیا فرمائی چه دا سرکش خلق دی پتا شو چه کوم قرآنی واضح آیاتونه نازلیګی د دې نه د فائدې اغستو په ځائ د دوی کفر او انکار نور هم سختیګی او الله تعالیٰ مسلمانانو لره د دوی د شر نه د بچ کولو د پاره ښخیله د دوی په فریقو کښې اختلاف سخت غورځولے دے، چه د دے په وجه سره دوی نه د مسلمانانو سره په ښکاره جنګ کولے شی او نه د دوی څه سازش چلیدے شی۔

په "کُلَّمَآ اَوْقَدُوْا نَارًا لِّلْحَرْبِ اَطْفَاَهَا اللّٰهُ" کښې د ښکاره جنګ کولو ناکامی، او په "يَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ فَسَادًا" کښې د پټو سازشونو د ناکامئ ذکر دے۔

دَ الله تعالیٰ په حکمونو باندِ پوره عمل کول په دنیا کښې هم دَ برکتونو سبب دے

په آیت نمبر ۶۶ کښې یهودو ته هدایت او شو چه دَ تورات او انجیل دَ هدایتونو او دَ انبیاء علیهم السلام و دَ ارشاداتو نه دے خلقو خَه فائده وانه آخسته، دَ دُنیا په حرص کښې اخته شو هرڅه ئے هیر کړهٔ نو دَ دے په نتیجه کښې په دنیا کښې هم تنګدسته شو - لیکن که اوس هم داخلق ایمان او دَ خدائے نه دَ یرے طریقے اختیار کړی نو مونږ به دَ دوی ټول مخکینئ خطاګانے معاف کړو او دوی له به دَ نعمتو نو نه ډک باغونه ورکړو -

دَ الله تعالیٰ په حکمونو باندِ پوره عمل څنګه کیدے شي؟

وَلَوْ اَنَّهُمْ اَقَامُوا التَّوْرٰىةَ ؛ په دے آیت کښې دَ دے ایمان او دَ خدائے نه دَ یرے څهٔ تفصیل ذکر دے په کوم چه ئے دَ دُنیوی برکتونو آرام او راحت وعده په تیر آیت کښې کړے ده، او تفصیل دا دے چه تورات او انجیل او دَ دے نه پس کوم آخری کتاب قرآن چه را لیګلی شوی دی دے له قائم کړئ - دلته دَ عمل کولو په ځائے ئے لفظ دَ اِقامت: یعنی قائم کولو راوړے دے، مراد دا دے چه دَ دوی په تعلیماتو باندِ پوره پوره صحیح عمل به صله وی چه نه په کښے کوتاهي او کمے وی او نه زیاتے، لکه څنګه چه یو ستنے ته ولاړه هغه وخت ویلے شي کله چه هغه یو طرف ته کګه نه وی نیغه سیده ولاړه وی -

دَ دے بحث دا شو چه یهود که نن هم ........ دَ تورات او انجیل او قرآن کریم په هدایاتو باندِ ایمان راوړی او په دوی پوره پوره عمل دَ هدایاتو مطابق اوکړی، نه په عملی کوتاهئ کښې اخته وی نه په غلو او زیاتی کښے، چه دَ ځان نه جوړ شوی خیز ونو له دین جوړ کړی، نو دَ آخرت دَ وعده شوو نعمتونو مستحق به وی، او په دنیا کښې به هم په دوی دَ رزق دروازے دا سے او سپړ دے شي چه دَ بره به پرے رزق وریږی او دَ لاندے نه به راخو ټکیږی - دَ لاندِ باندِ نه په ظاهره مراد دا دے چه په آسانئ به ورته پرلپسے رزق ملاویږی - (تفسیر کبیر)

په بره آیت کښې خو صرف دَ آخرت دَ نعمتونو وعده وه - په دے آیت کښې

دَ دُنیوِي آرام او راحت وعده هم په ډیر تفصیل سره بیان شوې ده. دَ دې وجه به شاید دا وي چه دَ یهودو دَ بَدْ عملۍ او دَ تورات په حکمو نو کښې دَ اَدْلُون بَدْلُون او تاویلو نو لویه وجه دَ دوي دُنیا پَرَسْتي او دَ مال حرص وُه- او دا هغه آفت وه چه دوي ئې دَ قرآن کریم او نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ بنکاره آیتو نو لیدلو با وجود دَ دوي دَ حکم منلو نه منع کړي وُو- دَ دوي یَره دا وَه چه که موږ مسلمانان شو نو زمونږ دا مشري به ختم شي او دَ دِیني پیشوایانو په حیثیت سره چه کوم نذرانې او ډالۍ مونږ ته ملاویږي دَ دې سلسله به بنده شي- الله تعالیٰ دَ دوي دَ دې وسوَسې لرې کولو دَ پاره دا هم وعده او فرمائیله چه که دوي په رشتیا سره ایمان او نیک عمل اختیار کړي نو دَ دوي دَ دُنیا دولت او راحت کښې به هم څهٔ کمے نه وي بلکه زیاتے به وي پکښې-

## دَ یو شُبْهِ جواب

دَ دې تفصیل نه دا هم معلومه شوه چه دا خاص وعده دَ هغو یهودیانو سره شوې وه کوم چه دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم په وخت کښې موجود او دَ دوي مخاطب وُو- دوي کره احکمو له منلې وې نو په دنیا کښې به هم دوي ته دَ هرقسم راحت او نعمت ورکړې شوې وُه، نو چه دغه وخت کوم حضراتو ایمان او نیک عمل اختیار کړو هغوي ته دا نعمتو نه پوره ملاوُ شو، لکه نجاشي دَ حبشو بادشاه ، او عبد الله بن سلام رضی الله عنهما- دَ دې نه دا نهٔ لازمیګي چه کله څوک دَ ایمان او نیک عمل پابند شي نو په دُنیا کښې به دَ دهٔ دَ پاره دَ رزق فراخي ضروري وي او کوم چه نه وي نو دَ هغهٔ دَ پاره به دَ رزق تنګي ضروري وي- ځکه چه دلته څه عامه قاعده او ضابطه بیانول مقصود نه دي- دَ یو خاص جماعت سره په یو خاص حالت کښې وعده شوې ده-

البته په ایمان او نیک عمل باندِ دَ عام قاعدې او ضابطې په صورت کښې دَ پاک ژوند ملاوید و وعده عامه ده- مګر دا دَ رزق دَ فراخۍ په صورت کښې هم کیدې شي، او دَ ظاهري تنګدستۍ په صورت کښې هم، لکه چه دَ انبیاؤ او اولیاؤ علیهم السلام حالات په دې باندِ ګواه دي- چه

ټولو ته همیشه د رزق فراخي خوملاؤ شوې وه، لیکن پاکیزه ژوند ټولو ته ملاؤ شوې دې -

په اخر ایت کښې ئې د عدل او انصاف په تقاضا سره دا هم او فرمائیل چه کوم کوږوالے او بد عملي د یهودو بیان شوې ده، دا حال د ټولو یهودو نه دې بلکه؛ مِنۡهُمۡ اُمَّةٌ مُّقۡتَصِدَةٌ: په دوی کښې یو لږ شان جماعت په نیغه لار باندې هم دې - لیکن د دوی اکثریت بد کار او بد عمله دی - د نیغې لارې کیدونکو نه مراد هغه خلق دي چه مخکښې یهودیان یا نصرانیان وُو - بیا ئې په قرآن کریم او نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړو - په دې دوارو آیاتونو کښې او د دې نه وړاندې پر لیسې په دوه وُو رکوع ګانو کښې د یهودو او نصاراؤ د کږیدو او بې لارې کیدو او ضد او د اسلام په خلاف د سازشونو ذکر راروان وُو -

**د تبلیغ تاکید او نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته تسلي**

د انساني طبیعت په تقاضا سره د دې اثر یو دا هم کیدې شو چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه د مایوسئ یا مجبورئ په وجه سره په تبلیغ یا رسالت کښې کمې راشي او دویم اثر دا هم کیدې شو چه دوئی د مخالفت او دشمنئ د پرواه کولو نه بغیر په تبلیغ او رسالت کښې لګیا وی او د دې په نتیجه کښې دوئی ته د دشمنانو د لاسه تکلیفونه او مصیبتونه اورسی - په دې وجه په دریم آیت کښې ئې یو طرف ته خو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته دا تاکیدی حکم ورکړو چه څهٔ تاسو ته د الله تعالیٰ د طرفه نازل کړے شي هغه ټول خلقو ته بغیر د څهٔ یرې ترې نه رسوه، که څوک بد ګنړي او که بنهٔ او مخالفت کوي او که قبلوي او دویم طرف ته ئې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته دا خوشخبري ورکړه مطمئن ئې هم کړو چه د تبلیغ او رسالت په سلسله کښې به دوی ستاسو هیڅ نه شي ورانولے الله تعالیٰ به پخپله ستاسو حفاظت کوي -

په دې ایت کښې یوه جمله خو دا د غور قابله ده چه؛ وَاِنۡ لَّمۡ تَفۡعَلۡ فَمَا بَلَّغۡتَ رِسَالَتَهٗ: مراد د دې دا دې چه که د خدائې یو حکم هم تاسو امت ته اوُنه رسا وَه نو تا به د پیغمبرئ فرض نه وی پوره کړی - دا وجه وَه چه نبي کریم

صلی الله علیه وسلّم ټول عمر ددے فرض په اداکولو کښے خپل ټول همّت او قوّت صرف کړو۔ او دَ حجّة الوداع مشهوره خطبه چه په یو حیثیت سره دَ اسلام یو دستور دوه او په بل حیثیت سره دَ یو مشفق مهربانه او دَ مورو پلار نه زیات خوږ من پیغمبر صلی الله علیه وسلم آخری وصیّت وه۔

| | |
|---|---|
| دَ حجّة الوداع په موقع دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو نصیحت | په دے خطبه کښے دوی دَ صحابه کرامو دَ یو لوئے جمع په وړاندې دَ یو خاص هدایت فرمائیلو نه پس دَ مجمع نه سوال اوکړو: |

اَلَا هَلْ بَلَّغْتُ؟: اُوګورئ آیا ما تاسو ته دین اورساوه؟ صحابه کرامو اقرار اوکړو چه خامخا دے راورساوه۔ نو حضور ارشاد اوفرمایه چه تاسو په دے با ندې ګواه شئ۔ دَ دے سره ئے دا ارشاد هم اوفرمایه چه: فَلْيُبَلِّغِ الشَّاهِدُ الْغَائِبَ: یعنی کوم خلق چه په دے مجمع کښے حاضر دی هغوی دے غائبو ته ځما خبره اُورسوی، په غائبو کښے هغه خلق هم داخل دی کوم چه دغه وخت په دُنیا کښے موجود وُو لیکن په مجمع کښے حاضر نه وُو۔ او هغه خلق په کښے هم داخل دی چه لا پیدا شوی نه وُو۔ دوی ته دَ پیغام رَسَولو طریقه دَ دین دَ علم نشر و اشاعت وه۔ کوم لره چه صحابو او تابعینو په پوره کوشش سره رسته اورسولو۔

دَ دے دا اثر وه چه په عامو حالاتو کښے صحابه کرامو رضوان الله تعالیٰ علیهم اجمعین دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشادات او کلمات دَ الله تعالیٰ دَ یو ډیر لوئے امانت په شان اوګنړل او په پوره طاقت سره ئے دا کوشش اوکړو چه دَ دوی دَ ژبے نه راوتلے یو جمله هم داسے پاتے نه شی چه اُمّت ته اونه رسی۔ که چرته چا په یو خاص سبب یا مجبوری سره څه خاص حدیث خلقو ته بیان نه کړو نو دَ خپل مرګ نه اوّل برئے دوه خلورو سره هم تر خامخا آوروَلو، دَ دے دَ پاره چه دَ دے امانت نه دَ دوه غاړه خلاصه شی۔ په صحیح بخاری کښے دَ حضرت معاذ دَ یو حدیث متعلق داسے واقعه نقل ده چه: اَخْبَرَ بِهٖ مُعَاذٌ عِنْدَ مَوْتِهٖ تَاَثُّمًا: یعنی حضرت معاذ دا حدیث دَ خپل مرګ په وخت کښے بیان کړو، دَ دے

دَ پاره چه دَ امانتونو نه رَسولو په وجه ګناه ګار نه شي -

دَ ایت په دویمه جمله: وَاللهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ: کښې زیرے ورکړے شوے دے چه دَ ذرګو نو مخالفتونو با وجود هم دشمن ستاسو هیڅ نه شي ورانولے -

په حدیث شریف کښې دي چه دَ دے ایت دَ نازلیدو نه وړاندې به یو څو صحابه کرامؓ دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ حفاظت دَ پاره په عام طور...... دَ رَسره وُو- او په کلي او سفر کښې به ئې دَ دوی حفاظت کولو دَ دے ایت دَ نازلیدو نه پس دوی دغه ټول رُخصت کړلﷺ چه اوس دَ چا دَ پهرے او حفاظت کولو ضرورت یا تے نه شو - الله تعالیٰ دا کار پخپله ...... ذمه اغستے دے -

په یو حدیث کښې دَ حضرت حسنؓ نه روایت دے چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه کله ما ته دَ تبلیغ او رسالت حکم نه ملاؤ شو نو ځما په زړه کښې دَ دے لوئې هیبت وُه - چه دَ هر طرف نه به خلق ځما دروغژن والے او مخالفت کوي - بیا کله چه دا ایت نازل شو نو سکون او اطمینان حاصل شو (تفسیر کبیر)

نو دَ دے ایت دَ نازلیدو نه پس دَ هیچا مجال نه وُه چه دَ تبلیغ او رسالت په مقابله کښې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته څۀ ازار ورسوي، په جنګ او جهاد کښې څه عارضي طور رسره تکلیف او سخته رسیدل دَ دے نه منافي نه دي -

---

قُلْ يَاَهْلَ الْكِتٰبِ لَسْتُمْ عَلٰى شَيْءٍ حَتّٰى تُقِيْمُوا

اووایه چه اے اهل کتابو تاسو په هیڅ لارے نه یئ ترڅو چه قائم نه کړئ

التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ

تورات او انجیل لره او څۀ چه ستاسو نازل شو ستاسو دَ ربّ دَ طرف نه-

وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ

او زیاتیږی ډیرو لره د دوی نه په دے کلام سره کوم چه پتا نازل شوے دے ستا د رب د طرفه

طُغْيَانًا وَكُفْرًا ۚ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿٦٨﴾

شرارت او کفر۔ پس ته افسوس مه کوه په دے قوم کافرانو۔

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّابِئُونَ

بے شکه کوم چه مسلمانان دی او کوم چه یهودیان دی او فرقه صابي

وَالنَّصَارَىٰ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا

او نصارا کوم چه ایمان راوړی په الله او په ورځ د قیامت او عمل کوی نیک

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٩﴾

نه به په دوی یره وی او نه به دوی غمژن وی۔

**د ایاتو تړون**

بره اهلِ کتابو ته د اسلام ترغیب وه ورپسے د دوی په موجوده طریقه باندے د کومے چه دوی د حقوالی دعوه کوله، د الله په نزد د ناکاروالی او د نجات د پاره ئے د نه پوره والی او په اسلام باندے د نجات د موقوف والی ذکر دے. او د دے نه پس هم نبی کریم صلے الله علیه وسلم ته د دوی په کفر باندے د پاتے کیدو په وجه د تسلی مضمون ارشاد فرمائی، او په مینځ کښے په یو خاص مناسبت او ضرورت سره د تبلیغ مضمون راغلے وه۔

## لنډ تفسیر

تاسو ردے یهودو او نصاراؤ ته) او وایئ چه اے اهلِ کتابو تاسو په هیڅ لارے باندے هم نه یئ رګه چه په نا مقبوله لاره کیدل په مثل د بے لارے

کیدو دی) ترڅو چه د تورات او انجیل او کوم کتاب چه (اوس) تاسو ته (په واسطه د رسول الله صلی الله علیه وسلم) ستاسو د رب د طرف نه رالیږلے شوے دے (یعنی قرآن) د دے هم پوره پابندی او نه کړئ (د کوم چه معنیٰ ترغیب او بوکتو نه بره ذکر شوی دی) او (اے محمد صلی الله علیه وسلم چونکه په دوی کښے اکثر خلق په ناکاره دشمنئ کښے اخته دی په دے وجه دا) خامخا (ده چه) کوم مضمون تاسو ته ستاسو د رب د طرف نه رالیږلے شی هغهٔ په دوی کښے د ډیرو د سرکشئ او کفر د زیاتید و سبب جوړیگی (او په دے کښے ممکنه ده چه تاسو ته رنج او غم وی، لیکن کله چه دا معلومه شوه چه دا خلق تعصب کونکی دی) نو تاسو د دے کافرو خلقو (په دے حالت) غم مه کوئ (دا تحقیقی خبره ده چه یهودیان او فرقه د صابیئو او نصارا (په دے ټولو کښے) کوم سړے چه یقین لری په الله (په ذات او صفات) باندے او په قیامت باندے او نیک عمل کوی (یعنی د شرعی قانون موافق) په داسے خلقو باندے (په آخرت کښے) به نه څهٔ قسم یره وی او نه به دوی غمژن وی -

# معلومات او مسئلے

**اهل کتابو ته د الله تعالیٰ د شریعت د تابعداری خو د نه**

په اول آیت کښے اهل کتابو یهودو او نصاراؤ ته د الله تعالیٰ د شریعت د تابعداری هدایت (حکم) په دے عنوان سره او فرمائیلے شو، چه که تاسو د شریعت پابند نه او نه کړئ نو تاسو هیڅ نه یئ مطلب دا دے چه د اسلامی شریعت د پابندئ نه بغیر ستاسو ټول کمالونه او عملونه عبث دی، تاسو ته الله تعالیٰ یو فطری کمال دا درکړے دے چه د انبیاء علیهم السلام او لاد یئ، دویم د تورات او انجیل علمی کمالات هم تاسو ته حاصل دی، په تاسو کښے ډیر خلق درویش خو یه هم دی ځاهد ے او ریاضتونه کوی - مګر د دے ټولو څیزونو قدر و قیمت د الله تعالیٰ په نزد صرف په دے باندے موقوف دے چه تاسو د خدائے د شریعت تابعداری اوکړئ، د دے نه بغیر نه څهٔ نسبی غوره والے په کار رائی

اونه علمي تحقيقونه ستاسو د نجات سامان تياره ولے شي او نه ستاسو مجاهدے او رياضتونه۔

په دے ارشاد کښے مسلمانانو ته هم دا هدايت ملاؤ شو چه څۀ درويشي او سلوک او طريقت مجاهدے او رياضتونه او کشف او الهام تر هغه وخته پورے د الله تعالیٰ په نزد د غوره والي او نجات څيز نه دے ترڅو چه د شريعت پوره پابندي نه وي۔

په دے ايت کښے د الله د شريعت د تابعدارئ کولو د پاره د درے څيزونو د تابعدارئ هدايت کړے دے اوّل د تورات دويم د انجيل چه د يهودو او نصاراؤ د پاره اول نازل شوي وو دريم د: وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ: يعني څۀ چه د الله تعالیٰ د طرف نه تاسو ته اوليګلے شو۔

د جمهورو مفسرينو اصحابو او تابعينو په دے باندے اتفاق دے چه د دے نه مراد قرآن کريم دے۔ چه د ټول اُمّت د دعوت (بلنے) د پاره چه يهودا و نصارا پکښے هم شامل دي د نبي کريم صلے الله عليه وسلم په واسطے سره رالیګلے شوے دے۔ په دے وجه معنیٰ د ايت دا شوه چه ترڅو پورے تاسو د تورات او انجيل او قرآن کريم په رالیږلو شوو احکامو باندے صحيح صحيح او پوره پوره عمل او نه کړئ ستاسو هيڅ نسبي يا علمي کمال د الله تعالیٰ په نزد مقبول او معتبر به نه وي۔

دلته يوه خبره د غور قابله ده، چه په دے ايت کښے د تورات او انجيل پشان د قرآن کريم د لنډ نوم په ځائے ئے يوه اوږده جمله: وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ: استعمال کړو په دے کښے څۀ حکمت دے؟ کيدے شي چه په دے کښے د هغے حديث مضمون طرف ته اشاره وي په کوم کښے چه نبي کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد فرمائي چه لکه څرنګے ما ته د علم او حکمت خزانه قرآن کريم راکړے شوے دے دغه شان نور علمونه او معلومات را ته هم راکړي شوي دي کوم ته چه په يو حيثيت سره د قرآن کريم تشريح هم ويلے شي۔ د حديث الفاظ دا دي:۔

اَلَا اِنِّیْ اُوْتِیْتُ الْقُرْاٰنَ وَمِثْلَهٗ مَعَهٗ، اَلَا یُوْشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانُ عَلٰٓی اَرِیْكَتِهٖ یَقُوْلُ عَلَیْكُمْ بِهٰذَا الْقُرْاٰنِ فَمَا وَجَدْتُّمْ فِیْهِ مِنْ حَلَالٍ فَاَحِلُّوْهُ وَمَا وَجَدْتُّمْ فِیْهِ مِنْ حَرَامٍ فَحَرِّمُوْهُ وَاِنَّمَا حَرَّمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ كَمَا حَرَّمَ اللّٰهُ۔

(ابوداؤد، ابن ماجه، دارمی وغیرها)

"یا وساتئ چه ما لره قرآن راکړے شوے دے او دَ دے سره دَ دے په شان نور هم علمونه راکړی شوی دی په راتلونکے زمانه کښے داسے کیدُونکے ده چه یو موړ خیټے راحت خوښوُنکے به او وائی چه تاسو لره صرف قرآن پوره دے کوم چه په دے کښے حلال دی صرف دغه حلال گنړئ او کوم چه په دے کښے حرام دی صرف دَ غه حرام گنړئ او حال دا دے چه تحقیق کوم شے چه دَ الله رسول حرام کړے دے دغه هم دغسے حرام دے لکه څنګه چه الله تعالیٰ خپل کلام په ذریعه څیز ونه حرام کړی دی۔"

**دَ احکامو درے قسمونه**

او بیا خپله قرآن کریم هم دَ دے مضمون گواهی کوی: وَمَا یَنْطِقُ عَنِ الْهَوٰی اِنْ هُوَ اِلَّا وَحْیٌ یُّوْحٰی؛ یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم څهٔ خبره دَ خپل طرف نه نهٔ کوی څهٔ چه دوی فرمائی هغه ټول دَ الله دَ طرفه وحیٔ وی، او بیکومو حالاتو کښے چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم څهٔ خبره دَ خپل اجتهاد او قیاس په ذریعه فرمائیلے ده او دَ وحیٔ په ذریعه بیا دَ هغے خلاف څهٔ هدایت دوئ ته نه دے ملاؤ شوے نو آخر دغه قیاس او اجتهاد هم په حکم دَ وحیٔ شی۔

دَ دے پوهه دا شو چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم کوم احکام امت ته ورکړی دی په دوی کښے یو هغه دی چه په قرآن کریم کښے په ډاګه سره ذکر دی دویم هغه دی چه په قرآن کریم کښے په ډاګه سره ذکر نه دی بلکه په نبی کریم صلی الله علیه وسلم دَ جدا وحیٔ په ذریعه نازل شوی دی۔ دریم هغه دی چه دوی دَ خپل اجتهاد دَ قیاس په ذریعه څه حکم کړے وی او بیا الله تعالیٰ دَ هغے خلاف څهٔ حکم نه وی نازل کړے دغه هم دَ وحیٔ په حکم کښے شو دَ دے درے قسمه حکمونو تابعداری واجب ده او په: مَآ اُنْزِلَ اِلَیْكُمْ

مِّنْ رَّبِّكُمْ: كښې داخل دي۔

شائد چه په ذكرشوي ايت كښې ئې د قرآن كريم لپاره نوم پاتې كړو دا او كړه جمله: وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ مِّنْ رَّبِّكُمْ: ئې اختيار كړه او دې طرف ته ئې اشاره او كړه چه د دې ټولو حكمونو تابعداري لازم او واجب ده كوم چه په ځائې په قرآن شريف كښې ذكر دي، يا نبي كريم صلے الله عليه وسلم دغه حكمونه خودلي وي۔

دويمه خبره په دې ايت كښې د غور قابله داده چه په دې كښې ئې يهودو او نصارا ؤ ته په تورات انجيل او قرآن د درې واړو په حكمونو د عمل كولو خود نه كړې ده، حال دا دې چه په دوي كښې بعضې د بعضو د پاره ناسخ دي، انجيل د تورات بعضې حكمونه منسوخ كړي دي او قرآن د تورات او انجيل ډير حكمونه منسوخ كړه۔ نو بيا په درې واړو باندې عمل څنګه شو؟۔

جواب ئې ښكاره دې چه هر را تلونكي كتاب د وړاندې كتاب كوم حكمونه چه بدل كړه نو په بدله شوې طريقه باندې عمل كول په دواړو كتابونو عمل كول دي۔ په منسوخ شوؤ حكمونو باندې عمل كول د دواړو كتابونو د مقتضٰى نه خلاف دي۔

**نبي كريم صلے الله عليه وسلم ته يوه تسلّي**

په اخر كښې نبي كريم صلے الله عليه وسلم ته د تسلّۍ د پاره ارشاد فرمائي چه اهل كتاب سره د دومره مهربانو نو زمونږه په دوي كښې ډير داسې خلق دي چه د الله تعالىٰ د دې مهربانو نه هيڅ فائده نه اخلي، بلكه كفر او عناد په ئې نور زياتيږي، تاسو په دې مه غم ژن كيږئ۔ او په داسې خلقو باندې ترس مه كوئ۔

**خلورو قومونو ته د ايمان او نيك عمل ترغيب او په اخرت كښې د نجات وعده**

په دويم ايت كښې الله جلّ شانهٗ څلور قومونه مخاطب كړل د ايمان او نيك عمل ترغيب او په دې باندې ورته د اخرت د نجات وعده او فرمائيله۔ او په دوي كښې اول: اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا: يعني

مسلمانان دی، دویم: اَلَّذِیۡنَ هَادُوۡا، یعنې یهودیان دی: دریم: صَابِئُوۡنَ: اوڅلورم: نَصَارٰی: دی، په دوی کښې درې قومونه مسلمانان، یهودیان، نصارا معلوم او مشهور او دَ دنیا په اکثرو حصو کښې موجود دی، دَ صابئون یا صابه په نوم سره نن صبا یو قوم هم معلوم نه دے، په دے وجه دَ دے په تعین کښې دَ عالمانو او اماما نو دَ رَایُنا کانے مختلفے دی دَ تفسیر امام ابن کثیر په حواله دَ قتاده یو قول دا هم نقل کړے دے چه صَابِئُوۡنَ هغه خلق دی چه دَ فرښتو عبادت کوي او دَ قبلے نه خلاف مونځ کوي او دَ آسماني کتاب زبور تلاوت کوي دکوم چه په حضرت داؤد علیه السلام نازل شوے وُه) -

دَ قرآن کریم دَ دے بیان نه په ظاهره دَ دے خبرے تائید کیږي چه څلور آسماني کتابونه دَ کوم چه په قرآن مجید کښې ذکر دے، تورات، زبور، انجیل او قرآن دلته په دے کښې دَ دے څلورو کتابونو دَ منونکو ذکر راغلے دے۔

دَ دے مضمون یو آیت تقریبًا دَ دے الفاظو سره دَ سورتِ بقره په اوومه رکوع کښې تیر شوے دے: اِنَّ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا وَالَّذِیۡنَ هَادُوۡا وَالنَّصٰرٰی وَالصّٰبِئِیۡنَ مَنۡ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمۡ اَجۡرُهُمۡ عِنۡدَ رَبِّهِمۡ وَلَا خَوۡفٌ عَلَیۡهِمۡ وَلَا هُمۡ یَحۡزَنُوۡنَ: په دے ځائے دَ مقام په وجه سره دَ بعضِ الفاظو دَ وړاندې والي او روستو والي نه سِوا نور هیڅ فرق نیشته -

| | |
|---|---|
| دَ الله تعالیٰ په نزد دَ غور والي دارمدار په نیک عمل سره دے | دَ دے دواړو آیاتونو دَ مضمون خلاصه دا دے چه زمونږ په دربار کښې دَ چا نسبي وطني او قومي |

غورَ والے هیڅ نه دے. کوم سړے چه پوره فرمانبرداري نیکه عقیده او نیک عمل اختیار کړي، خواه دے دپلانے هرڅنګه چه وي زمونږ په نزد مقبول او دَ دهٔ خدمت دَ قدر لائق دے. او دا ښکاره خبره ده چه دَ قرآن دَ نزول نه پس پوره فرمانبرداري په مسلما نیدو کښې ده ځکه چه په تیرو کتابونو تورات او انجیل کښې هم دَ دے خبرے خود نه موجود ده. او قرآن کریم خو سرا سر دَ دے دپاره نازل شو، په دے وجه دَ قرآن دَ نازلیدو او دَ نبي کریم صلی الله علیه وسلم دَ راتلو نه پس په قرآن او نبي کریم صلی الله علیه وسلم باندې دَ

ایمان راؤړونه بغیر نه د تورات او انجیل تابعداری صحیح کیدے شی، نه د زبور نو مطلب د آیت به داشی چه په دے تولو قومونو کښے چه کوم مسلمانان شی په آخرت کښے به د نجات او ثواب مستحق وی - په دے کښے د هغے خیال جواب اوشه چه داکفر او گناه نافرمانی او د اسلام او مسلمانانو خلاف شوارتو نه چه کے تراوسه کول د مسلمانیدو نه پس به که دوی څهٔ انجام وی - معلومه شوه چه وړاندې تول گناهونه او خطاګانے به ټے معاف شی او په آخرت کښے به نه د دے خلقو سره څه فکروی او نه به ورته څه غم او تکلیف رسی -

چه مضمون ته او کتے شی نو په ظاهره خو داسے معلومیږی چه دلته د مسلمانانو ذکر کول نه ؤو پکار ځکه چه دوی خو د ایمان او فرمانبرداری په هغه مقام باندې دی کوم چه په دے آیت کښے غواړی دلته ذکر صرف د هغه خلقو کول پکار دی کوم لره چه دے مقام ته رابللے شی - مګر په دے خاص طرز کښے چه د مسلمانانو ذکر ئے هم د دوی سره ملاؤ کړه - یو خاص بلاغت پکښے پیدا شه - د دے داسے مثال دے چه یو حاکم یا بادشاه په یو داسے موقع باندې داسے اووائی چه زما قانون عام دے که څوک موافق وی او که مخالف خو کوم سړے چه فرمانبرداری کوی په هغهٔ باندې به مهربانی او انعامونه وی - او س ښکاره خبره ده چه موافق خو وی فرمانبردار خو خبره په اصل کښے هغو ته آورَوی کوم چه مخالفت کوی - لیکن دلته د موافقو په ذکر کولو کښے چه کوم حکمت دے هغه دا دے چه د موافقو سره کومے مهربانی موږه کوؤ دا د څهٔ نسب یا قومی خصوصیت په بنا باندې نه دی بلکه په دوی کښے د فرمانبرداری چه کوم صفت دے دا ټولے مهربانئ ورسره د هغے په وجه دی - که مخالف هم فرمانبرداری اختیار کړی نو دے به هم د دے مهربانو مستحق شی -

دے ذکر شوو خلورو قومونو ته چه کے د کوم کار کولو د پاره ویُنا اوکړه د دے کار درے جُزونه (حصّے) دی - په الله ایمان - په ورځ د آخرت ایمان - او نیک عمل کول -

| ښکاره خبره ده چه په دے آیت کښے | په رسول د ایمان نه بغیر نجات نیشته |
|---|---|

دَ ټولو ایمانونو او اسلامي عقیدو تفصیلونه بیانول منظور نه دي، او نه کوم خاص موقع ده - دَ اسلام دَ یو څو بنیادي عقیدو ذکر کول ټولو اسلامي عقیدو طرف ته اشاره کول ئې مقصد دے - او نه داخو ضروري خبره چه یکوم آیت کښې چه دَ ایمان ذکر واشي دَ هغه ټول تفصیلونه دِ هلته ذکر شي - په دے وجه که هرو ودلته په رسول یا رسالت باندې دَ ایمان خاص ذکر نیشته نو دا خو دَ لږ عقل او پوهے لرونکي دَ پاره هم دَ څه شبهه ځائے نه لري ځکه چه ټول قرآن او په سوونو آیاتونه په ایمان بالرسول او ایمان بالرسالت باندې را غلي دي چه په هغوی کښې دا وضاحتونه شوي دي چه په رسول او په ارشادا تو دَ رسول دَ پوره او مکمل ایمان راوړو نه بغیر نجات نیشته - او هیڅ ایمان او عمل بغیر دَ دے نه قبول او معتبر نه دے - لیکن دَ بے دینانو یو ے ډلے چه په خاص خاص شان سره په قرآن کښې خپل مکر وهه نظریاتو نه ورننو یستل غواړي - او دوي په دے آیت کښے چه په صراحت سره دَ رسالت ذکر او نه موندو نو خپله یوه نوے نظریه ئې قائمه کړه چه دَ قرآن او سُنّت دَ بے شماره وضاحتونو نه قطعًا خلاف ده - هغه دا چه هر سړے خپل خپل مذهب یهودیت نصرانیت تردے چه هندو او بت پرست هم وي خو چه صرف په الله او په ورځے دَ قیامت ایمان لري او نیک کارکوي نو دَ آخرت دَ نجات مستحق کیدے شي - دَ آخرت دَ نجات دَ پاره په اسلام کښې داخلیدل ضروري نه دي (نعوذ بالله منه)

کوم خلقو ته چه الله تعالی دَ قرآن دَ تلاوت توفیق او په دے صحیح ایمان ورکړے وي، دَ دوي دَ پاره دَ قرآن په وضاحتونو سره دَ دے غلطۍ لرے کول څه ډیر علم او پوهے ته محتاج نه دي - دَ قرآن کریم په اردو پښتو ترجمه پوهیدونکي حضرات هم په دے خیالي غلطۍ په آسانه پوهیدے شي - یو څو آیاتونه په طور دَ مثال دا دي :-

قرآن کریم چه یکوم ځائے کښې دَ مفصل ایمان بیان فرمائیلے ...... دے دَ دے الفاظ دَ سورتِ بقره په آخر کښے دا دي :-

كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَ مَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ | ټولو ایمان راوړے دے په الله او دَ هغه په فرښتو

| | |
|---|---|
| وَرُسُلِهٖ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۔ | او دَ هغهٔ په کتابونو او دَ هغهٔ په رسولانو داسے چه دَ هغهٔ په رسولانو کښے هيڅ فرق نهٔ کوی۔" |

په دے آيت کښے په واضح طور سره چه دَ ايمان کوم تفصيلات بيان شوی دی په دے کښے داهم واضحه شوه چه په چا يو يا څو رسولانو باندِ ايمان راوړل قطعاً دَ نجات دَ پاره پوره نه دی بلکه په ټولو رسولانو ايمان راوړل شرط دی که په يو رسول باندے هم ايمان رانهٔ وړی نو دَ دهٔ ايمان دَ الله په نزد معتبر او مقبول نهٔ دے۔

بل ځائے ارشاد دے:-

| | |
|---|---|
| اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ۙ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ؕ | "کوم خلق چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسولانو انکار کوی او دا غواړی چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسولانو په مينځ کښے جُدا والے راولی چه په الله ايمان راوړی خو دَ هغهٔ په رسولانو ئے ايمان نهٔ وی او دوی دا غواړی چه دَ کفر |

او دَ اسلام په مينځ مينځ کښے څهٔ لار راوباسی نو پوهه شه چه دغه اصل کافران دی۔"

دَ نبی کريم صلے الله عليه وسلم ارشاد دے:-

| | |
|---|---|
| لَوْ كَانَ مُوْسٰى حَيًّا لَمَا وَسِعَهٗ اِلَّا اتِّبَاعِيْ ۔ | "يعنی که بالفرض نن حضرت موسیٰ عليه السلام هم ژوندے وے |

نو هغهٔ لره به ځما دَ تابعداری نه سِوا بل چاره نه وه۔"

نو اوس دَ چا داوَينا چه هر مذهب والا پخپل خپل مذهب باندِ عمل اوکړی نو بخير دے چه په نبی کريم صلے الله عليه وسلم باندِ ايمان راوړی او بغير دَ مسلمانيد و نه هغه جنّت او دَ آخرت نجات موندے شی، دَ قرآن شريف دَ دے ذکر شو و آيا تو نو نه بنکاره خلاف ورزی ده۔

دَ دے نه علاوه که هر مذهب او ملّت داسے څيز دے چه په دے په

هره زمانه کښې عمل کول د اخرت د نجات د پاره پوره دي نو بیا خو د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم رالیږل او د قرآن نازلیدل بې معنې کیږي - او که یو شریعت نه پس بل شریعت لیږل فضول کیږي - د ټولو نه وړومبی رسول چه کوم کتاب او شریعت راوړې وې هغه به پوره وه نو د رو رسولانو او کتابونو او شریعتونو لیږلو ته څه ضرورت وه؟ که زیاتو نه زیات د دا بې خلقو وجود به پوره وه چه دغه شریعت او کتاب به ئې باقي پاتې کولې شوې او په خپله ئې پرې عمل کولې او په خلقو ئې کولې لکه چه په عام طور سره د هر امت د عالمانو دا فریضه پاتې شوې ده - او په دې صورت کښې به د قرآن کریم دا ارشاد چه: لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا: یعنی مونږ ستاسو کښې د هر امت د پاره یو خاص شریعت او خاصه لار جوړه کړې ده - دا ټول به بې معنې شي -

او بیا به د دې څه جواز پاتې کیدې شي، چه نبي کریم صلی الله علیه وسلم پخپله ځان او په خپل کتاب قرآن باندې د ایمان نه لرونکو ټولو یهودیانو او نصارانو او نورو قومونو سره نه صرف تبلیغي جهاد وکړو بلکه په توره ئې ورسره هم جنګونه کړي دي - او که د انسان د مؤمن کیدو او د الله په نزد د مقبول کیدو د پاره صرف په الله او په ورځ د اخرت ایمان راوړل کافي وي نو بیا ابلیس عاجز په کوم جرم کښې مردود شو، د ده په الله او په ورځ د اخرت ایمان نه وه - د ده خو عین د غضب په حالت کښې هم: إِلَىٰ يَوْمِ يُبْعَثُونَ: او وې، په ایمان بالاخرت ئې اقرار کړې دې -

حقیقت دا دې چه دا مغالطه صرف د دغه نظرئې پیدا اواروې چه مذهب د خپلولئ د حدالئ په شان چاته په تحفه کښې ورکولې شي او د دې په ذریعه د نورو قومونو سره رشتې پیوند کولې شي - حال دا دې چه قرآن په ښکاره په ښکاره واضحه کړې ده چه د غیر مسلمو سره رواداري همدردي، احسان او سلوک هر څه کول پکار دي، لیکن د مذهب د حدونو د پوره حفاظت او د ده د سرحدونو د پوره پوره نګرانئ کولو سره سره -

دَ قرآن کریم په ذکر شوی اٰیت کښې که فرض کړه په رسول دَ ایمان راوړو ذکر بالکل هم نه وی نو دَ قرآن نورا یا تونه چه ذکر ئې بره اوشو چه په دوی کښې ئې سخت تاکید موجود دے پوره وه - لیکن که غور پرے اوکړے شی نو پخپله په دے اٰیت کښې هم په رسول دَ ایمان راوړو طرف ته واضحه اشاره ده - ځکه چه دَ قرآن په اصطلاح کښې په الله څخه ایمان معتبر دے یکوم کښې چه دَ الله تعالیٰ دَ خودلو شوو ټولو څیزو منو باندِ ایمان وی ، قرآن کریم خپله دا اصطلاح په دے الفاظو کښې ښکاره کړے ده : فَإِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا : یعنی ځنګه ایمان چه دَ صحابه کرامو وه صرف هغه ایمان په الله دَ ایمان ویلو مستحق دے او ښکاره خبره ده چه دَ دوی دَ ایمان لوئے رکن په رسول ایمان وه - په دے وجه دَ مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ : په لفظونو کښې پخپله په رسول ایمان داخل دے-

لَقَدْ اَخَذْنَا مِیْثَاقَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ وَ اَرْسَلْنَآ

مونږ اغستے وه پوخ قول دَ بنی اسرائیلو نه او لیګلی وُو مونږ دوی ته

اِلَیْهِمْ رُسُلًا ؕ كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا

رسولان - کله چه به راوړو دوی ته یو رسول هغه حکم چه نه

تَهْوٰٓی اَنْفُسُهُمْ ۙ فَرِیْقًا كَذَّبُوْا وَ فَرِیْقًا

به خوښاوه دَ دوی زړونو نو ډیر ولره ئې دروغژن کړل او ډیر ولره

یَّقْتُلُوْنَ ﴿۷۰﴾ وَ حَسِبُوْٓا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَعَمُوْا

ئې قتلول - او خیال ئې اوکړو چه څه خرابی به نه وی نو پړاندهٔ شو

وَ صَمُّوْا ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا وَ

اکانړهٔ شو بیا توبه قبوله کړه الله دَ دوی بیا پړاندهٔ او

صَمُّوا كَثِيرٌ مِّنْهُمْ ۚ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِمَا يَعْمَلُونَ ﴿٧١﴾

کانړه شو په دوی کښې ډیر - او وینی الله څۀ چه دوی کوی -

# لنډ تفسیر

مونږ د بنی اسرائیلو نه (اول په تورات کښې د ټولو پیغمبرانو د فرمانبردارئ او رشتونئ کولو) عهد واغستلو (کوم د چه وعدے د یاد ولو د پاره) مونږ دوی ته ډیر پیغمبران اولیګل (لیکن د دوی دا حالت وۀ چه) کله به چه دوی ته یو پیغمبر دا سے حکم راوړو کوم لره چه به د دوی زړۀ نه غوښتو (نو مخالفت به ئے شروع کړو) پس بعضو ته ئے دروغژن اووے او بعضو لره ئے (بے دریغه) مړۀ کول او (همیشه په هر شرارت به ورته کله چه یو څو ورځے مهلت ورکړے شو) داګمان به ئے اوکړو چه هیڅ سزا به نه وی (په دے ګمان) سره نو (هم) ړانده او کا نړه شو (چه نه ئے د پیغمبرانو د صداقت دلیلونه لیده او نه ئے د دوی کلام اوریده) بیا (د یو سے مودے نه پس) الله تعالیٰ په دوی (په رحمت سره) نظر او فرمایه (چه بل پیغمبر به ئے راولیګه چه اوس به په نیغه لار شی مګر) بیا هم دغه شان) ړانده او کانړه جوړ شو یعنی (قبول ئے نه کړو) په دوی کښې ډیر او الله تعالیٰ د دوی (دا) عملونه ښۀ وینی (یعنی د دوی ګمان غلط وۀ نو دوی لره وخت په وخت سزا هم ورکړے شوه مګر د دوی دغه طریقه وه، تر دے چه اوس ستاسو سره هم دغه شان د دروغو او خلاف سلوک کوی) -

# معلومات او مسئلے

**د بنی اسرائیلو عهد ماتول**

كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُولٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُهُمْ : یعنی کله چه به بنی اسرائیلو ته د دوی رسول څۀ حکم راوړو چه د دوی د خواهش مطابق به نه وۀ نو لوظ قول به ئے مات کړو د خدائے سره

به ئې عقد اری شروع کړه ، د الله تعالیٰ په پیغمبرانو کښې ئې څنو لره دروغژن کړل څنو لره ئې قتل کړل داخو د دوی "به الله د ایمان او نیک عمل" حال وه ، "په ورځ د آخرت د ایمان" اندازه ئې د دے نه اوکړئ چه دومره سخت ظلمونه او د باغیانو کارونه ئې کول او بے فکره کیدل به چه گویا د دے کارونو به هیڅ وبال په دوی نه پریوځي او د ظلم او بغاوت خراب انجام به چرته دوی ځانته نه راوړاندې کاوه- په دے خیال کولو سره د خدائي نښو او خدائي کلام نه بالکلړاندہ او کانړه شو- او د اسے ناشوني کارونه ئې شروع کړه چه بعض پیغمبران ئې قتل کړه او بعض ئې قید کړه ، آخر په دوی باندې الله تعالیٰ بخت نصر مسلّط کړو- بیا د یو څیرے اوکړے مودے نه پس د فارس بادشاهانو دوی د بخت نصر د قید نه آزاد کړل او د بابل نه ئې بیت المقدس ته واپس کړل ، دغه وخت خلقو توبه اوویستله او د خپل حال برابرولو طرف ته ئې مخه شوه ، خدائے پاک د دوی توبه قبوله کړه- لیکن څهٔ زمانه پس ئې بیا هغه شرارتونه شروع کړل او بالکل ړانده او کانړه شو حضرت زکریا او حضرت یحییٰ علیهما السلام ئې قتل کړل او د حضرت عیسیٰ علیه السلام قتل ته تیار شو-

(فوائد عثمانيؒ)

---

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ

بے شکه کافر شو چا چه اووے چه الله هغه مسیح دے ځوئ

مَرْيَمَ ؕ وَقَالَ الْمَسِيْحُ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اعْبُدُوا

د مریم - او مسیح وئیلی دی اے بنی اسرائیلو بندګی کوئ

اللّٰهَ رَبِّيْ وَرَبَّكُمْ ؕ اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ

د الله چه رب دے ځما او رب ستاسو- بے شکه چا چه شریک جوړ کړه د الله پس

حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ الْجَنَّةَ وَمَاْوٰىهُ النَّارُ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيْنَ

حرام کړو الله په دهٔ باندې جنت او ددهٔ ځائے دوزخ دے - او هیڅوک نیشته د

مِنْ اَنْصَارٍ ﴿٧٢﴾ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ

ګناه ګارانو مدد کوونکے - بے شکه کافر شو چا چه اووے الله دے یو په دریو

ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ؕ وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا

کښے - حال دا دے چه هیڅ معبود نیشته بغیر د یو معبود نه - او که دوی واپس نه شو

عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ

د دے خبرے نه چه وائی نو بے شکه او به رسی په دوی کښے په کفر قائم پاتے کیدونکو ته عذاب

اَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾ اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ؕ

دردناک - د لے توبه نه کوی الله ته او د لے بخنه نه غواړی د هغه نه -

وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧٤﴾ مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ

او الله دے بخښونکے والا مهربان - نه دے مسیح د مریم ځوئی

اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ وَ

مګر رسول دے - تیر شوی دی د دهٔ نه وړاندې ډیر رسولان - او

اُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ؕ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ؕ اُنْظُرْ

د دهٔ مور ولیه ده - دواړو خوړو خوراک - او ګوره

كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٧٥﴾

مونږ څنګه بیانوؤ دوی ته دلیلونه بیا او ګوره چه دوی کوم طرف ته اړولے کیږی -

قُلْ اَتَعْبُدُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا

ته اُو وایه چه آیا تاسو د داسے شی عبادت کوئ د الله نه سوا کوم چه مالک نه دے ستاسو د ضرر

وَّلَا نَفْعًا ؕ وَاللّٰهُ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۷۶﴾

او نه د نفع - او الله دے آوریدونکے پوهیدونکے -

# لنډ تفسیر

بے شکه هغه خلق کافر شو چا چه داؤوے چه الله عین مسیح ځوئی د مریم ع
دے (یعنی دواړه یو دی) حال دا دے چه (حضرت) مسیح په خپله فرمائیلی وُو
چه اے بنی اسرائیلو تاسو د الله تعالیٰ عبادت کوئے چه ځما هم رب دے او
ستاسو هم رب دے (او په دے قول کښے د ده د خپل ځان د بنده خودلو
وضاحت دے نو بیا ده ته الله وئیل داسے خبره ده چه منی ئی سُست او
ګواه چُست) بے شکه کوم سړے چه د الله سره (په خدائی یا د خدائی
په خصوصیاتو کښے) څوک شریک مقرر کړی نو په ده به الله تعالیٰ جنّت حرام
کړی او د ده ځائے (د همیشه د پاره) دوزخ دے او د داسے ظالمانو به
هیڅوک مددګار نه وی (چه د دوزخ نه ئے خلاص کړی جنّت ته ئے داخل
کړی او لکه څنګه چه دا عقیده د اتحاد کفر دے دغه شان عقیده د
تثلیث هم کفر دے پس) بے شکه هغه خلق هم کافر دی کوم چه وائی
چه الله تعالیٰ په درے (معبودانو) کښے یو دے حال دا دے چه بغیر د
یو معبود (حق) نه بل معبود (حق) نیشته (نه دوه او نه درے کله چه
دا عقیده هم کفر او شرک دے نو په: اِنَّهٗ مَنْ يُّشْرِكْ الخ: کښے چه کومه
سزا ذکر ده هغه به د دے د پاره هم وی) او که دا (د دے دواړو
عقیدو) خلق د خپلو خبرو (د کفر) نه واپس نه شو نو پوهه دے شی
چه) کوم خلق په دوی کښے کافر دی په دوی به (په اخرت کښے) دردناک
عذاب واقع شی آیا (د دا د توحید او د عذاب د وعید مضامین اوری) بیا هم

دَخپلو دے عقیدوا وخبرو نه) دَخدائے تعالیٰ په وړاندې توبه نه کوی او دَ دۀ نه معافی نه غواړی حال دا دے چه الله تعالیٰ (رکله چه څوک توبه کوی نو) لوئے مغفرت والا (او) لوئے رحمت کونکے دے (حضرت) مسیح ځوئے دَ مریم (یعنې خدائے یا جزو خدائے) هیڅ نه دے صرف یو پیغمبر دے چه دَ دۀ نه وړاندې نور هم پیغمبران (دَمعجزو خاوندان) تیرشوی دی (چه دوی لره عیسایان خدایان نه منی، پس که پیغمبری یا معجزے دلیل دَ اُلوهیت وی نو تولو لره خدایان منل پکاردی، او که دلیل دَخدائی نه وی نو بیا حضرت مسیح ته وَلے خدائے ویلے شی، غرض دا دے چه هرکله دے نورو ته تاسو خدائے نه دی ویلی نو عیسیٰ علیه السلام ته هم مه وایئ) او (دغه شان) دَ دوی مور (هم اِله یا جز دَ اِله نه وه بلکه دا) یوه وَلیّه بی بی ده (رکله چه نورے وَلیّا نے بیبیانے تیرے شوی دی او دَ دے دواړو (حضراتو دَ اِله نه کیدو په دلیلو نو کښے یو اسان دلیل دا دے چه) دواړو (حضراتو) خوراک خوړ (او کوم سړے چه خوراک خوری هغه هغے ته محتاج وی، او خوراک خوړل دَمادی خواصو نه دی او احتیاج او مادیت دَممکن الوجود خاصه ده، چه وجود ئے ضروری نه وی، او کوم شے چه ممکن وی یعنی وجود ئے ضروری نه وی هغه خدا ئے نه شی کیدے) او گوره ئ چه مونږ څنګه صاف صاف دلیلو نه دوی ته بیانوو بیا اوګوره ئ چه دوی اُلټه کوم طرفته ځی تاسو (دوی ته) او وایئ چه آیا دَ خدائے نه سوا دَ داسے (مخلوق) عبادت کوئ چه نه تاسو ته دَ څه ضرر دَسَولو اختیار لری او نه دَ نفع رسولو اختیار لری نو عاجز والے دَ خدائے سره منافی دے) حال دا دے چه الله تعالیٰ هرڅۀ اوری پیژنی (بیا هم دَخدائے نه یره نه کوئ او دَخپل کفر او شرک نه نۀ واپس کیږئ) -

# معلومات او مسئلے

دَ الله تعالیٰ دا قول: اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ: یعنی حضرت مسیح، روح القدس او الله یا مسیح، مریم او الله درے واړه خدایان دی (العیاذ بالله) په دوی دریواړو کښے یو الله بیا دا درے یۀ او دغه یو درے دی - دَعیسایانو

عامه عقیده داده، او دا دَعقل او هدایت نه خلاف عقیده په کول مول او اَلوَّل عبارتونو سره ادا کوی، او کله چه پرې څوک پوهه نه شی نو وائی چه دا دَعقل نه اوچته خبره ده - (فوائد عثمانیؒ)

**دَمسیح علیه السلام دَخدائی تردید**

(الله تعالیٰ فرمائی) قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ : یعنے کله څنګه چه نور پیغمبران دُنیا ته راغلل او څهٔ ورځے د لته اوسیدل بیا لاړل، په دوی کښے هیشه پاتے کیدل او بقاء نه وه کومه چه دَخدائی شان دے - دغه شان حضرت مسیح علیه السلام (چه دَدوی پشان یو انسان دے) دهٔ ته هم هیشه پاتے کیدل او بقاء حاصل نه وُو په دے وجه دے إِلٰه نه شی کیدے۔

چه لږ غور او کړئ نو معلومه به شی چه کوم سړے دَخوراک سکاک محتاج وی هغه تقریباً دَ دُنیا هر شی ته محتاج دے، دَ زمکے، هوا، اوبو نمو او حیواناتو نه دے بے حاجته نه شی پاتے کیدے - دَغلے خیټے ته دَ رسیدو او هضم کیدو وروستو خیال او کړئ چه په واسطه سره یا بے دَواسطے نه دَڅومره څیزو نو ضرورت دے، بیا دَغلے دَخوراک نه چه کوم اثرات او نتیجے پیدا کیږی دَ هغے سلسله کوم حد ته رسی. نو دَحاجت او محتاجئ په دے لویه سلسله چه غور او کړو نو مونږ دَمسیح او مریم دَخدائی باطلوالے په دلیل سره داسے بیا نولے شو چه مسیح او مریم دَ خوراک سکاک نه بے حاجته نه وُو. او څوک چه دَخوراک سکاک نه بے حاجته نه وی هغه دَ دنیا دَ هیڅ شی نه بے حاجته کیدے نه شی- نو بیا تاسو او وائی چه کوم ذات دَ ټولو انسانانو په شان ټچپلو باقی پاتے کیدو کښے دَ اسبابو نه بے حاجته نه وی اسبابو ته ئے حاجت وی هغه څنګه خدائے جوړیدے شی- دا داسے قوی او واضحه دلیل دے چه عالم او جاهل پرې یو شان پوهیدے شی- یعنی خوړله سکل دَخدائی سره نه جوړیګی، اګرچه نه خوړل هم څهٔ دَخدائی دلیل نه دے ورنه ټول فرښتے به خدایان جوړ شی۔

(فوائد عثمانی)

| حضرت مریم بتول نبیه وه یا ولیه؟ | دَ حضرت مریم دَ ولایت او نبوت په باره کښې اختلاف دے په ذکر شوی ایت کښې دَ دے دَ صفت په مقام کښې دَ لفظ دَ |
|---|---|

صدیقه: نه په ظاهر اشاره دے طرف ته معلومیږی چه دا ولیه وه نبیه نه وه ځکه چه په مقام دَ صفت کښې اعلیٰ درجه ذکر کولے شی که دے ته نبوت حاصل وے نو دلته به ئے نبیه وئیلے وه حال دا دے چه دلته صدیقه وئیلے شوی دی چه دا دَ ولایت مقام دے (روح ملخصًا)

دَ جمهور امت تحقیق دا دے چه په ښځو کښې نبوت نه دے راغلے دا مرتبه خاص دَ سړو دَ پاره ده، وَمَآ اَرْسَلْنَا مِنْ قَبْلِكَ اِلَّا رِجَالًا نُّوْحِیْٓ اِلَيْهِمْ مِّنْ اَهْلِ الْقُرٰى (یوسف رکوع ۱۲)

(فوائد عثمانی)

---

قُلْ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِیْ دِيْنِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ

ته او وایه چه اے اهل کتابو مبالغه مه کوئ دَ خپل دین په خبره کښې ناحق

وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَ

او مه ځئ په خواهشاتو دَ هغے خلقو چه ګمراه شوی دی وړاندې او

اَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَّضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ ﴿۷۷﴾ لُعِنَ

ع ۱۴

ګمراه کړی ئے دی ډیر ولره او ګمراه شوی دی دَ نیغ لارے نه - لعنت شوے دے

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْۢ بَنِیْٓ اِسْرَآءِيْلَ عَلٰى لِسَانِ دَاوٗدَ

په کافرانو دَ بنی اسرائیلو په ژبه دَ داؤد علیه السلام

وَعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ ؕ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّكَانُوْا

او دَ عیسیٰ ځوئ دَ مریم - دا ځکه چه دوی نافرمانه وو او دَ

يَعْتَدُوْنَ ﴿۷۸﴾ كَانُوْا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَنْ مُّنْكَرٍ فَعَلُوْهُ ط

حد نه تېرېدل – دوی به يوبل نه منع کول له هغه بد کار نه چه دوی به کولو
نه تېرېدل شوی وو – دوی به يوبل نه منع کول هغه بد کار چه دوی به کولو –

لَبِئْسَ مَا كَانُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۹﴾ تَرٰى كَثِيْرًا مِّنْهُمْ

خو مره ناکاره کار وو چه دوی کولو – ته وينې په دوی کښې ډېرو خلقو له
خومره ناکاره کار وو چه دوی کولو – ته به وينې په دوی کښې ډېر خلقو له

يَتَوَلَّوْنَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ

چه دوستي کوی د کافرانو سره – خومره ناکاره سامان اولېږه دوی

اَنْفُسُهُمْ اَنْ سَخِطَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ وَ فِي الْعَذَابِ هُمْ

د ځانونو دپاره هغه دا چه د الله غضب اوشو په دوی باندې او دوی به همېشه

خٰلِدُوْنَ ﴿۸۰﴾ وَلَوْ كَانُوْا يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالنَّبِيِّ وَ

په عذاب کښې وی – او که دوی يقين کولې په الله او په نبی باندې او

مَا اُنْزِلَ اِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوْهُمْ اَوْلِيَآءَ وَلٰكِنَّ

او په هغې چه په نبی باندې نازل شو نو کافران به ئې دوستان نه جوړه ول لېکن

كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۸۱﴾

په دوی کښې ډېر خلق نافرمان دی –

# لنډ تفسير

تاسو (د عيسی) نصارا (ته) او وايئ چه اے اهل کتابو تاسو د خپل دين
په باره کښې غلو (او افراط) مکوئ او په دے (افراط) کښې د هغے خلقو په خيالاتو
(يعنې بے سنده خبرو) پسے مه ځئ (د دے وخت نه) دوی مخکښې په غلطئ کښې

پریوتي دي او (د خپل ځان سره) نورو لره (ئې هم ډوب کړه) په غلطۍ کښې
ئې اچوی او (د اغلطي په دې وجه نه ده شوې چه حق ورک شوې دې یا
ئې پته نه لګی بلکه) (دغه خلق د بېنځ لارې نه ریه قصد سره) لرې (او جُدا)
شوي دي (یعني کله چه د دوی غلطي په دلیلونو سره ثابته شوه نو بیا د دوی
پېروي ولې نه پاتې کوی) په بني اسرائیلو کښې چه کوم خلق کافر وو په دوی (د
الله تعالیٰ د طرفه سخت) لعنت شوې وه (په زبور او انجیل کښې چه ظهور ئې) د
(حضرت) داؤد (علیه السلام) او (حضرت) عیسیٰ ځوئې د مریم (علیه السلام)
په ژبه سره (یعني په زبور او انجیل کښې ئې په کافرانو لعنت لیکلې وه لکه چه
په قرآن مجید کښې هم دی (فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ) چونکه دا کتابونه د حضرت
داؤد او حضرت عیسیٰ علیهما السلام باندې نازل شوي وو په دې وجه دا
مضمون د دوی د ژبونه ظاهر شوې وه او) دا لعنت په دې سبب سره
شوې وه چه دوی د (عقیدې د) حکم مخالفت اوکړو (کوم چه کفر دې) او
(په دې مخالفت کښې) د حد نه (ډېر لرې) لاړل (یعنی کفر ئې هم سخت وه
بیا د سخت سره اوکړ هم وه یعنی همیشو لې ئې پراوکړو نو) کوم ناکاره
کار (یعنی کفر) چه دوی (اختیار) کړې وه د دې نه (بیا هم) نه واپس
کیدل (بلکه په دې جړ شوی وو، پس د دوی د سخت او اوکړ کفر په سبب
په دوی سخت لعنت اوشو) واقعی د دوی (دا) کار (ذکر شوې یعنی
کفر او هغه هم سخت او اوکړ) بې شکه ناکاره وه (چه دا سې سزا پرې مُرتّبه
شوه) ته د دوی (یهودو) کښې ډېر خلق وینې چه د (مشرکانو) کافرانو
سره دوستي کوی (لکه چه د مدینې د یهودو او د مشرکانو د مکې د مسلمانانو
د دشمنئ په بنا سره د یو بل سره دوستي وه چه منشاء ئې په کفر کښې یو والې وه)
کوم کار چه دوی ورانده لیګلې دې (یعنی کفر چه سبب وه د دوستئ د کفارو او د
دشمنئ د مؤمنانو) هغه بې شکه ناکاره دې چه (د دې په سبب) الله تعالیٰ
د دوی نه (د همیشه د پاره) خفه شو او (د دې همیشه خفه کیدو ثمره به
داوی چه) دا خلق به همیشه په عذاب کښې وی او که دې (یهودو) خلقو به
الله ایمان لرلې او په پیغمبر (یعنی موسیٰ علیه السلام) باندې (ایمان لرلې د کوم

چه د دوی دعوه ده) او په دې کتاب (ایمان لرلی) کوم چه دوی (پیغمبر) ته
لیکلی شوی وه (یعنی تورات) نو دوی (مشرکانو) لره به ئې دوست نه جوړ
ول لیکن په دوی کښې زیات خلق (د داسې) د ایمان نه خارج دی (په دې
وجه د کافرانو سره د دوی یو کیدل او دوستی او شوه)۔

## معلومات او مسئلې

**د بنی اسرائیلو د کوږوالی یو دوهم اړخ۔**

(د الله تعالی قول چه) قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ : په تیر واړیاتو نو کښې د بنی اسرائیلو
د سرکشئ او د دوی د ظلم او زیاتی بیان شوی وه چه د الله تعالی د را لیګلی شوي
رسول چه د دوی د پاره ئې د همیشه ژوند پیغام او د دوی د دنیا او د اخرت
د برابرولو دستور العمل ئې راوړے وه د دوی حق دا و مرتبه پیژندو او
د تعظیم او تکریم کولو په ځائے دوی د دوی سره بد سلوک کړے وه، چه
: فَرِيقًا كَذَّبُوا وَفَرِيقًا يَقْتُلُونَ ؛ یعنی بعض پیغمبران ئې دروغژن کړل
او بعضو لره ئې قتل کړل۔

په ذکر شوو ایاتو نو کښې ئې د دې بنی اسرائیلو کږ بیه و دوهم اړخ خودلے دے
چه دا جاهلان یا خو د سرکشئ او نافرمانئ په هغه غاړه بانډې وو چه د الله رسولان
ئې دروغژن کړل او بعضو لره ئې قتل کړو او یا د ګمراهئ او کږ بیه و هغه غاړے
ته اورسیدل چه د رسولانو په تعظیم کښې ئې غلو او کړه دوی لره ئې خدایان
جوړ کړل : لَقَدْ كَفَرَ الَّذِينَ قَالُوا إِنَّ اللَّهَ هُوَ الْمَسِيحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؛ یعنی دغه
نبی ستر آئیل سکا فر شو چا چه دا او وے چه الله د عیسی ابن مریم نوم دے،
ولته دا خبره صرف د نصاراو ذکر ده۔ بل ځائے دا غلو او ګمراهی د
یهودو هم بیان شوی ده : قَالَتِ الْيَهُودُ عُزَيْرٌ ابْنُ اللَّهِ وَقَالَتِ النَّصَارَى
ابْنُ اللَّهِ ؛ یعنی یهودو دا او وے چه حضرت عزیر علیه السلام د الله
ځوئ دے او نصاراو دا او وے چه عیسی ځوئ د مریم علیه السلام د الله
ځوئ دے۔
ولا تغلوا معنی د حد نه وتل دی۔ په دین کښې د غلو مطلب دا دے چه په

عقیده او عمل کښې دین کوم حد ونه مقرر کړی دی د هغې نه وړاندې تیر شی. لکه د پیغمبرانو د تعظیم حد دا دے چه دوی لره د خدائے په مخلوق کښې د ټولو لوړ نه غوره او گڼړی د دے حد نه وړاندې کیدل دوی ته خدائے یا د خدائے څوئی ویئل د عقیدے غلو ده -

**د بنی اسرائیلو افراط او تفریط**

د انبیاؤ او رسولانو په معامله کښې د بنی اسرائیلو دا دوه متضاد عملونه چه یا دوی ته دروغژن وائی او قتلوی یې، او یا دا زیاتے چه پخپله دوی ته خدائے یا د خدائے څوئی وائی - دا هغه افراط او تفریط دے چه د جهالت سره لازم دے - د عربو مشهوره مقوله ده: اَلْجَاهِلُ اِمَّا مُفْرِطٌ اَوْ مُفَرِّطٌ؛ یعنی جاهل سړے چرته په میانه روئی بانډې نه وی بلکه یا په افراط کښې اخته وی یا په تفریط کښې - د افراط معنیٰ ده د حد نه زیاتیدل او د تفریط معنی ده د فرضونو په اداکولو کښې کمول.

او دا افراط او تفریط ..... ممکنه ده چه د بنی اسرائیلو د دوو مختلفو ډلو په عمل کښې راغلی وی. او دا هم ممکنه ده چه د یوے ډلے دا دوه مختلف عملونه د مختلفو انبیاؤ علیهم السلام سره شوی وی چه بعض یې دروغژن کړی او قتل کړی وی او بعض یې د خدائے سره برابر کړی وی.

په دے آیاتونو کښې یې اهل کتاب مخاطب کړی دی کوم هدایات چه یې دوی ته او تر قیامته پورے راتلونکو نسلونو ته ورکړی دی هغه په دین او مذهب او د دوی په پیروئ کښې د یو بنیادی اصولو حیثیت لری چه که دے نه لږ شان هم اخوا دیخوا کیدل انسان لره د گمراهئ په کنده کښې ورغورزوی- په دے وجه اوس د دے په تشریح ځان پوهه کړی ئی -

**الله جل شانهٗ ته د رسید و طریقه**

حقیقت دا دے چه د ټول جهان او د په دے کښې چه څومره موجودات دی د دے ټولو خالق او مَالِكِ صرف یو الله جل شانهٗ دے - د هغه ملکیت دے او د هغهٔ حکم دے - د دهٔ حکم منل په هر یو انسان بانډې لازم دی - لیکن بیچاره د خاورو جوړ انسان پخپل مادی تیرو او پستو کښې گیر دے، د ده

ټولو رسالې دغې پاک ذات ته یادَ دغه احکامو وهلایا تو معلومَولو ته څنګه به وی؟ الله جلّ شانه په خپل فضل سره دَ دے دَ پاره دوه واسطے مقرر کړے چه دَ دے په ذریعه سره انسان ته دَ الله تعالیٰ دَ خوښې او ناخوښې حُکم او مَنع علم اوشي - یو خپل کتاب نه چه دَ انسان دَ پاره دَ قانون او هدایت نامے حیثیّت لری، دویم خپل داسے خاص او مقبول بندګان کوم لره چه الله تعالیٰ په بنی آدمو کښے غوره کړه او دُوی لره ئے دَ خپل خوښې او ناخوښې عملی نمونه او دَ خپل کتاب عملی شرح جوړ کړه دا او لیکل چه دَ دین په اصطلاح کښے ورته رسول یا نبی وئیلے شی - ځکه چه په تجربه سره معلومه شوے ده چه یو کتاب خواه هرڅومره جامع او مفصّل وَلے نه وی خو دَ یو انسان دَ اصلاح او تربیّت دَ پاره کافی نه وی - بلکه په فطری طورسره دَ انسان تربیّت کوُنکے او اصلاح کونکے صرف انسان کیدے شی - په دے وجه الله تعالیٰ دَ انسان دَ اصلاح او تربیّت دَ پاره دوه سلسلے اوساتلے یو دَ الله کتاب، دویم دَ الله بندګان - چه په دوی کښے انبیاء علیهم السلام او بیا دَ دوی نائبین عالمان او مشائخ ټول داخل دی - دَ الله دَ دے بندګانو دَ دے سلسلے متعلق دنیا دَ ډیرو انه دَ افراط و تفریط په غلطو کښے اخته ده - او په مذهبونو کښے چه څومره مختلف فرقے پیدا شوے دغه ټولے دَ دے غلطۍ پیداوار دے - چرته ئے دَ حد نه زیات رجال پرستۍ ته نوبت اورساوه او چرته ئے بالکل دَ دے نه قطع نظر اوکړو: حَسْبُنَا كِتَابُ اللهِ؛ ته ئے غلط معنیٰ ورواچو لَه په دے ئے ځان صبر کړو - یو طرف ته ئے رسول بلکه پیرانو لره هم دَ عالم الغیب او خاص خدائی صفات ورکړه او پیر پرستۍ بلکه قبر پرستۍ ته اورسیدل - بل طرف ته ئے دَ الله رسول لره هم محض دَ یو قاصد او چټهٔ رسان حیثیت ورکړو - په ذکر شوو آیاتو نو کښے ئے دَ رسول الله نوره پکاروے کونکو لره هم کافر مقرر کړهٔ او دَ حد نه زیا تو تَونکو دَ خدائے سره ئے برابرَوُنکو لره هم کافر مقرر کړهٔ - آیت: لَا تَغْلُوْا فِيْ دِيْنِكُمْ؛ دَ دے مضمون ابتداء ده - چه په دے سره دا واضحه شوه چه دین په اصل کښے دَ څو حدونو او قیدونو

نوم دے۔ ځکه حدونو دننه چه څنګه کمے کول جرم دے دغه شان په دے کښے زیاتے کول هم جرم دے۔ څنګه چه د رسولانو او د دوی د نائبانو خبرے نه منل او سپکاوے ئے کول لوئے ګناه دے۔ دغه شان دوی لره د الله تعالیٰ خاص صفتونه ورکول یائے ورسره برابر ګنړل دا دے نه زیات لوئے ګناه دے۔

**علمي تحقيق او باريكات لټول غلو نه ده**

په ذکر شوی ایت کښے د: لَا تَغْلُوْا فِىْ دِيْنِكُمْ: سره لفظ د: غَيْرَ الْحَقِّ: راوړے دے چه د دے معنیٰ ده چه په ناحقو کښے غلو مه کوئ۔ دا لفظ د تفسير د تحقيق کوونکو په نزد د تاكيد د پاره استعمال شوے دے۔ ځکه چه په دين کښے غلو هميشه ناحقه وی په دے کښے د حق والی د سره احتمال نيشته۔ او علامه زمخشری وغيره دلته د غلو...... دوه قسمونه مقرر کړی دی۔ يو ناحق او باطل چه ممانعت ئے دلته شوے دے۔ دويم حق او جائز چه په مثال کښے ئے دوی علمي تحقيق او باريكات پيش کړی دی۔ لکه چه د عقيدے په مسئلو کښے د متکلمينو صاحبانو او په فقهي مسئلو کښے د فقهاؤ طريقه ده۔ د دوی په نزد دا هم اګرچه غلو ده مګر حقه او جائزه غلو ده۔ او د جمهور و تحقيق دا دے چه دا د سره د غلو په تعريف کښے نه دی داخل۔ د قرآن او سُنّت په مسئلو کښے ژور نظر او باريکو ته تلل د څو مره حده پورے چه د نبی کريم صلے الله عليه وسلم او صحابه رضی الله عنهم او تابعينو نه ثابت دی هغه غلو نه ده۔ او کوم چه د غلو حد ته اورسی هغه په دے کښے هم بده ده۔

**بني اسرائيلو ته د درميانه لار ښے هدايت**

د ذکر شوی ايت په اخر کښے موجوده بني اسرائيل مخاطب کوی ارشاد فرمائی: وَلَا تَتَّبِعُوْٓا اَهْوَآءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوْا مِنْ قَبْلُ وَاَضَلُّوْا كَثِيْرًا الخ: يعنی د هغے قوم د خيالاتو تابعداری مه کوئ کوم چه ستاسو نه وړاندے پخپله ګمراه شوی وو او نور ئے هم ګمراه کړی وو۔ د دے نه پس د دوی د ګمراهۍ حقيقت او وجه په دے الفاظو سره بيانوی: وَضَلُّوْا عَنْ سَوَآءِ السَّبِيْلِ: يعنی دا خلق د ښيخے لارے نه اوړيدلی وو کوم چه د افراط او تفريط په مينځ کښے درميانه لار وه۔ دغه شان په دے ايت کښے د غلو او افراط او تفريط د هلاکونکے غلطۍ بيان هم راغے۔ او

په دودمیانه لارے صراطِ مستقیم دَ قائم پاتے کیدو وهم -

**دَ بنی اسرائیلو بَدْ انجام** په دویم ایت کښے دَ دے بنی اسرآئیلو دَ بدانجام ذکر دے کوم چه دَ دے افراط او تفریط په گمراهئ کښے اخته وُو - چه په دوی دَ الله تعالیٰ لعنت شوے دے اوّل دَ داؤد علیه السلام په ژبه سره چه دَ دوی شکل نه مَسَخ شو خنزیران ترِجوړ شو - بیا دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام په ژبه سره دا لعنت په دوی مسلّط شو چه په دنیا کښے شادوګان شو - او بعض تفسیر لیکونکی فرمائی چه دلته دَ مقام په مناسبت سره صرف دَ دوه وُو پیغمبرانو په ژبو په دوی دَ لعنت ذکر دے لیکن حقیقت دا دے چه په دوی دَ لعنت اِبتِدا دَ حضرت موسیٰ علیه السلام نه شوے ده او انتهائے په حضرت خاتم الانبیاء صلے الله علیه وسلم شوے ده - دغه شان پَرلیسے دَ څلورو پیغمبرانو په ژبو په دے خلقو باندِ لعنت مسلّط شوے دے - چا چه دَ پیغمبرانو علیهم السلام مخالفت کړے دے - یائے دَ حد نه زیات کړی دَ خدائے سره ئے په صفاتو کښے شریک کړهٔ -

په آخری دوایت او ایاتو نو کښے دَ کفارو سره دَ جوړے دوستئ او دَ رورولئ منع او کړے دَ تباه کونکو نتیجو بیان دے - چه په دے کښے دے طرف ته هم اشاره کیدے شی چه دَ بنی اسرائیلو دَ دے ټولے گمراهئ او کږیدو نتیجه وه کَه دوی دَ غلط قسم ماحول او دَ کفارو سره دَ زړهٔ دَ دوستئ کولو چه دوی ئے دَ تباهئ کندے ته وَرُوا چَوَلُ -

لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا

تهٔ به بیامومے په ټولو خلقو کښے زیات دُشمنان دَ مسلمانانو

الْيَهُوْدَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْاۚ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ

یهودیانو لره او مشرکانو لره او تهٔ به بیامومے په ټولو کښے نزدے

مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰىؕ

په محبت کښے مسلمانانو لره هغه خلق چه وائی چه مونږ نصارا یُو -

ذٰلِكَ بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ

دا په دے وجه چه په نصاراؤ کښے عالمان دی او درویشان دی او په دے وجه

لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۸۲﴾

چه دوی تکبر نه کوی -

# لنډ تفسیر

(په غیر مؤمنانو کښے) دَ قولو خلقو نه زیات دَ مسلمانانو سره دُشمنی لرونکی به تاسو دغه یهودوا او مشرکانو لره بیا موئ او په دوی (غیر مؤمنانو خلقو کښے دَ مسلمانانو سره دوستی لرونکی زیات نزدے (په نسبت دَ نورو) به تاسو هغو خلقو لره بیاموئ چه ځانته نصارا وائی (دَ نزدیات نزدے مطلب دا دے چه دوستان خو دغه هم نه دی مگر په نورو کفارو ته کوشو کښے دوی غنیمت دے) دا (په دوستئ کښے دَ دوی زیات نزدے کیدل او په دشمنئ کښے کمیدل) په دے سبب سره دی چه په دوی (نصاراؤ) کښے ډیر علم دوسته عالمان دی او ډیر دنیا ترک کړی درویشان دی (او کله چه په یو قوم کښے دا سے خلق ډیر دوی نو په عوامو کښے هم دَ حق سره زیات عناد نه وی. اگر چه عام او خاص حق لره قبول هم نه کړی) او په دے سبب سره دی چه دوی (نصارا) متکبره نه دی (دَ عالمانو او درویشانو نه زړ متأثره کیږی او دارنګ دَ تواضع خاصه ده دَ حق په وړاندې نرم کیدل په دے وجه دَ دوی زیات عداوت (دشمنی) نیشته - پس دَ عالمانو او درویشانو وجود اشاره ده سبب دَ کار (علتِ فاعله) ته - او دَ تکبر نیشتوالے اشاره ده قابلیت ته په خلاف دَ یهودو او مشرکانو چه په دُنیا مینی او متکبره دی اگر چه په یهودو کښے هم حقانی عالمان وُو چه مسلمانان شوی وُو لیکن دَ لږ والی په وجه ئے عوامو ته اثر نه رسید و - عنا پکښے ډیر وُه او دغه ئے سبب وُه دَ سختے دشمنئ نو یهود کم مسلمانان شو او دَ مشرکانو نه چه عناد او تلو نو مسلمانان کیدل پکښے شروع شو - (کاتب و مترجم: مولوی گل برخان ابو حسین سواتی)

(دسمبر ۳۰ ۱۹۷۸ء) شپږم پاره ختم شوه بحمدالله تعالیٰ (جمادی الاول ۲۸ ۱۳۹۹ھ)